# فتح الهداية





# هداية

داول ټول لپاره په آسانه معياري پښتو
دهدايي يوه جامع شرحه

ژباړه او ترتيب

مولوي حبيب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربيه

صداقت کتبخانه

حنفی شافعی

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب وغیرہ۔




کفایت اللہ ابن صدیق
+923052488551
+923247442395




مالکی حنبلی

وَاللّٰهُ يَهْدِىْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ [القرآن]

# فتح الهداية

پښتو شرح

# هدايه

## د اول ځل لپاره په آسانه معياري پښتو

## د هدايې يوه جامع شرحه





ژباړه او ترتيب:

مولوى حبيب الرحمن مدني

فاضل وفاق المدارس العربية



صداقت كتب خانه- كندهار

بسم الله الرحمن الرحیم



## د کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| ❁ د کتاب نوم | : **فتح الهدایه پښتو شرح هدایه** |
| ❁ ژباړه او ترتیب | : مولوي حبیب الرحمن مدني |
| ❁ ټوک | : اتم |
| ❁ خپرندوی | : **صداقت کتب خانه**/ کندهار |
| ❁ کمپوز/ ډیزاین | : صداقت د کتاب چاپولو اداره |
| ❁ د چاپ کال | : ۱۳۹۸ ل./ ۱٤٤٠ هـ.ق. / ۲۰۱۹ م. |
| ❁ چاپ شمېر | : ۱۰۰۰ ټوکه |

د تر لاسه کولو ځای:

**صداقت کتب خانه**

کندهار – افغانستان

تلیفون: ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

ایمېل: sadaqat.books@gmail.com

# فهرس

بَابُ الْوَكَالَةِ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ (فَصْلٌ فِي الشِّرَاءِ) ...... ۱
درانیولو په توکیل کي پر مؤکل د شي جنس او صفت بیانول ضروري دي ...... ۱
د مبهم توکیل حکم ...... ۳
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ...... ۶
د ثمن او نوع بیانولو حکم ...... ۸
د طعام په توکیل کي څه شي داخلیږي؟ ...... ۸
د وکیل د خیارِ عیب بیان ...... ۱۰
د بیع سَلم او بیع صَرف د توکیل بیان ...... ۱۲
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ...... ۱۳
که وکیل له خپل طرفه ثمن اداء کړي (حکم او تفصیل) ...... ۱۵
د ثمن اخیستلو (ترلاسه کولو) لپاره د مبیع راګرځولو حکم ...... ۱۷
د وکیل په قبضه کي د مبیع هلاکېدلو حکم ...... ۱۹
د توکیل او وکیل په فعل کي د مخالفت بیان ...... ۲۳
د وکالت شی د خپل ځان لپاره رانیول (حکم او تفصیل) ...... ۲۶
د غیرِ معین شي د وکالت په صورت کي به د شي مالک څوک وي؟ (حکم او تفصیل) ...... ۲۹
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ...... ۳۴
د متعیّن شي د رانیولو د وکالت یو صورت ...... ۳۸
د وکالت یوه مسئله ...... ۳۹
د دوو متعیّنو شیانو د وکالت په صورت کي یو شی رانیول (حکم او تفصیل) ...... ۴۲
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ...... ۴۳
مقروض (پوروړی) کس د قرض په عوض کي د یو شي د رانیولو وکیل جوړول (حکم او تفصیل) ...... ۴۷
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ...... ۴۸
که وکیل او مؤکل د مبیع په قیمت کي اختلاف وکړي (حکم او تفصیل) ...... ۵۴

د پورتنۍ مسئلې بل صورت ........................ ۵۶

فَصْلٌ فِي التَّوْكِيْلِ بِشِرَاءِ نَفْسِ الْعَبْدِ ........................ ۶۱

که غلام د خپل ځان د رانیولو لپاره بل څوک وکیل جوړ کړي (حکم او تفصیل) ........................ ۶۱

د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........................ ۶۲

غلام وکیل جوړول (حکم او تفصیل) ........................ ۶۶

د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........................ ۶۷

فَصْلٌ فِي الْبَيْعِ ........................ ۷۰

وکیل بالبیع والشراء د کومو کسانو سره معامله نه سي کولای؟ ........................ ۷۰

که وکیل بالبیع په غبنِ فاحش (زیات تاوان) سره بیع وکړي (حکم او تفصیل) ........................ ۷۳

د وکیل بالشراء د اختیار حدود ........................ ۷۸

د غبنِ فاحش او غبنِ یسیر تعریف ........................ ۸۰

که د غلام په بیع کي وکیل نیم غلام خرڅ کړي (حکم او تفصیل) ........................ ۸۳

د نیم غلام رانیولو حکم ........................ ۸۶

دیو عیب په وجه وکیل بالبیع ته د مبیع واپس کېدلو حکم او تفصیل ........................ ۸۸

د پورتنۍ مسئلې بل صورت ........................ ۹۲

د وکیل د اقرار په وجه هغه ته د مبیع واپس کېدلو حکم ........................ ۹۳

په نغد او قرض کي د مضارب او ربُ المال اختلاف ........................ ۹۷

که وکیل بالبیع د ثمن په عوض کي رهن قبول کړي (حکم او تفصیل) ........................ ۹۹

فَصْلٌ (فِي تَوْكِيْلِ الرَّجُلَيْنِ) ........................ ۱۰۲

دیو کار لپاره دوه کسان وکیلان جوړول (حکم او تفصیل) ........................ ۱۰۲

د پورتنۍ مسئلې بل صورت ........................ ۱۰۳

د وکیل لپاره د بل چا د وکیل جوړولو حکم ........................ ۱۰۷

د پورتنۍ مسئلې تفریع ........................ ۱۰۸

د مکاتب، غلام او ذمي لپاره پر خپل کوچني بچي د ولایت حکم ........................ ۱۱۱

د مرتد او حربي د ولایت حکم ........................ ۱۱۲

بَابُ الْوَكَالَةِ بِالْخُصُوْمَةِ وَالْقَبْضِ ........ ۱۱۴
وکیل بالخصومت وکیل بالقبض هم دی، که نه؟ ........ ۱۱۴
د قبضه کولو په صورت کي د دواړو وکیلانو قبضه کول ضروري دي ........ ۱۱۶
وکیل بالقبض ضمنًا وکیل بالخصومت کېدل (حکم او تفصیل) ........ ۱۱۷
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ........ ۱۲۱
د مؤکل په خلاف د وکیل اقرار کول (حکم او تفصیل) ........ ۱۲۴
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........ ۱۲۷
کفیل د قرض اخیستلو وکیل جوړول ........ ۱۳۱
د غائب له طرفه د وکیل کېدلو دعویٰ کول ........ ۱۳۳
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........ ۱۳۵
د امانت (ودیعت) واپس اخیستلو د وکالت دعویٰ ........ ۱۳۹
د مقروض له طرفه د قرض اخیستلو دعویٰ ........ ۱۴۱
د عیب په وجه د مبیع واپس کولو لپاره وکیل جوړول ........ ۱۴۲
د نفقه رانیولو د وکالت په صورت کي له خپل طرفه د ثمن اداء کولو حکم او تفصیل ........ ۱۴۵
بَابُ عَزْلِ الْوَكِيْلِ ........ ۱۴۸
د عزل اختیار او د هغه عقلي دلیل ........ ۱۴۸
وکیل تر کومه وخته پر خپل وکالت پاتیږي؟ ........ ۱۴۹
د مؤکل په کومو عوارضو سره وکالت باطلیږي؟ ........ ۱۵۱
د مؤکل د غلام کېدلو په صورت کي وکالت باطلېدل ........ ۱۵۴
د وکیل په کومو عوارضو سره وکالت باطلیږي؟ ........ ۱۵۶
د وکالت باطلېدلو یو بل صورت ........ ۱۶۰
كِتَابُ الدَّعْوىٰ ........ ۱۶۵
د مدعي او مدعیٰ علیه تعریفونه ........ ۱۶۵
دعویٰ به کله قبلول کیږي؟ ........ ۱۶۹
د غیرِ منقول شي (جایداد) په باره کي د دعوې کولو شرطونه ........ ۱۷۲
له دعویٰ صحیح کېدلو او ثابتېدلو څخه وروسته د قاضي ذمه واري ........ ۱۷۸

بَابُ الْيَمِيْنِ ........ ۱۸۱
له مدعیٰ علیه څخه به کله قسم اخیستل کیږي؟ ........ ۱۸۱
له مدعي څخه د قسم نه اخیستلو بیان ........ ۱۸۳
د مطلق ملکیت په دعویٰ کي به د قابض بیّنه قبلول کیږي او که د غیرِ قابض؟ ........ ۱۸۴
له قسم څخه د مدعیٰ علیه انکار کول ........ ۱۸۷
پر مدعیٰ علیه د قسم پېشولو طریقه ........ ۱۸۹
په کومو صورتونو کي به له مدعیٰ علیه څخه قسم نه اخیستل کیږي؟ ........ ۱۹۱
له قسم څخه د غله انکار کول ........ ۱۹۷
د طلاق نه ورکولو له قسم څخه انکار کول (او د دې په ضمن کي څو نوري مسئلې) ........ ۱۹۸
د قتل نه کولو له قسم څخه انکار کول ........ ۲۰۱
له خصم (مدعیٰ علیه) څخه د ضمانت طلب کول (حکم او تفصیل) ........ ۲۰۵
فَصْلٌ فِيْ كَيْفِيَّةِ الْيَمِيْنِ وَالْإِسْتِحْلَافِ ........ ۲۱۰
د قسم د الفاظو بیان ........ ۲۱۰
په طلاق یا عتاق سره قسم اخیستل ........ ۲۱۳
له یهودي او نصراني (عیسایي) څخه به څنګه قسم اخیستل کیږي؟ ........ ۲۱۴
له مجوسي (آتش پرست) او بُت پرست څخه به څنګه قسم اخیستل کیږي؟ ........ ۲۱۵
د ځای یا وخت په تأکید سره قسم اخیستل ........ ۲۱۷
قسم به پر سبب اخیستل کیږي او که پر نتیجه (حاصلِ معنی)؟ ........ ۲۱۸
د میراث د ملکیت دعویٰ کول ........ ۲۲۴
بَابُ التَّحَالُفِ ........ ۲۲۷
د بائع او مشتري تر مینځ په ثمن یا مبیع کي د اختلاف بیان ........ ۲۲۷
په مخکنۍ مسئله کي د بیّنې د نشتوالي تفصیل ........ ۲۲۹
اول به له چا څخه قسم اخیستل کیږي؟ ........ ۲۳۱
د هغه صورتونو بیان چي په هغه کي اول له مشتري څخه قسم نه اخیستل کیږي، بلکي قاضي ته اختیار وي ........ ۲۳۳
د بائع او مشتري دواړو د قسم اخیستلو حکم ........ ۲۳۵
په کومو صورتونو کي به له عاقدَینو څخه قسم اخیستل کیږي؟ ........ ۲۳۶

له مبيع هلاکېدلو څخه وروسته دبائع او مشتري تر مينځ داختلاف راتللو يو صورت ........ ۲۳۹
د مبيع ديوې حصې له هلاکېدلو څخه وروسته دبائع او مشتري تر مينځ اختلاف راتلل ........ ۲۴۳
د "إِلَّا أَنْ يَّرْضَى الْبَائِعُ" دويم تفسير او د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........ ۲۴۷
داقاله کولو پر مهال د ثمن په مقدار کي داختلاف کولو حکم ........ ۲۵۲
دبيع سَلم په اقاله کي داختلاف کولو حکم ........ ۲۵۵
د مهر په مقدار کي داختلاف کولو حکم او تفصيل ........ ۲۵۶
په اجاره کي اختلاف او د قسم موقع ........ ۲۶۱
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ........ ۲۶۴
په بدلِ کتابت کي داختلاف کولو پر مهال به قسم له چا څخه اخيستل کيږي؟ ........ ۲۶۷
د ښځي او خاوند تر مينځ د.کورني سامان په هکله داختلاف واقع کېدلو حکم ........ ۲۶۹
د خاوند يا ښځي تر مرګ وروسته د کورني سامان په هکله د وارثانو داختلاف کولو حکم ........ ۲۷۰
فَصْـلٌ فِيْ مَنْ لَا يَكُوْنُ خَصْمًا ........ ۲۷۴
که مدعیٰ عليه دعویٰ وکړي چي دا شی د بل سړي دي (حکم او تفصيل) ........ ۲۷۴
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ........ ۲۸۱
د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت ........ ۲۸۵
بَابُ مَا يَدَّعِيْهِ الرَّجُلَانِ ........ ۲۸۷
ديوه شي په باره کي د دوو کسانو دعویٰ کول او بيّنه پېشول ........ ۲۸۷
ديوې ښځي په باره کي د دوو کسانو دعویٰ کول او بيّنه پېشول ........ ۲۹۰
له قابض (صاحبُ اليد) څخه د شي رانيولو په باره کي د دوو کسانو دعویٰ کول او بيّنه پېشول ........ ۲۹۳
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........ ۲۹۶
ديوه شي په باره کي د دوو کسانو د شراء او هبه مع القبض دعویٰ کول ........ ۲۹۸
ديوه غلام په باره کي د رانيولو او په مهر کي د ټاکل کېدلو دعویٰ کېدل (حکم او تفصيل) ........ ۳۰۱
له يوه کس څخه په دوو مختلفه اوقاتو کي د رانيولو دعویٰ کول ........ ۳۰۴

په قابض او غیرِ قابض کې د ملکیت اختلاف ........................ ۳۰۷
په "نتاج" کې د قابض او خارج اختلاف ........................ ۳۱۳
د "نتاج" په څیر حکم والا یو څو نور شیان ........................ ۳۱۶
د مطلق ملکیت او رانیولو په دعوو کې اختلاف ........................ ۳۱۸
له بل چا څخه د رانیولو دعویٰ کول ........................ ۳۱۹
د دعوې پر ثبوت د ګواهانو د کثرت او قلت اثر ........................ ۳۲۵
د ټوله او نیم کور د دعوې کولو یو صورت ........................ ۳۲۶
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........................ ۳۲۸
د څاروي په ملکیت کې د اختلاف کولو پر مهال د څاروي پر عُمر د فیصله کولو بیان ........................ ۳۲۹

## فَصْلٌ فِي التَّنَازُعِ بِالْأَيْدِي ........................ ۳۳۲

که د څاروي د دعوې په صورت کې یو مدعي پر څاروي سپور وي او بل د هغه قیزه نیولې وي (حکم او تفصیل) .... ۳۳۲
که کوچنی هلک د خپل آزاد والي دعویٰ وکړي ........................ ۳۳۴
پر کوم دېوال چې دیو چا تیران وي یا د یو چا عمارت (ځای) ورسره متصل وي، نو هغه د چا حق کیږي؟ ........ ۳۳۶
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ........................ ۳۳۸
په مشترک کور کې صحن (غولی) د چا حق کیږي؟ ........................ ۳۴۱

## بَابُ دَعْوَى النَّسَبِ ........................ ۳۴۴

د مینځې تر خرڅولو وروسته د پیدا کېدونکي بچي د نسب دعویٰ کول ........................ ۳۴۴
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ........................ ۳۴۶
د بچي یا د مینځې د مرګ په صورت کې د نسب دعویٰ کول ........................ ۳۴۸
د مشتري له طرفه د مینځې یا بچي تر آزادېدلو وروسته د بائع له طرفه د بچي د نسب دعویٰ کېدل ........ ۳۵۱
د غلام تر خرڅولو وروسته د هغه د بچي کېدلو دعویٰ کول ........................ ۳۵۵
په دوو غبرګولي بچیانو کې د یوه د نسب دعویٰ کول ........................ ۳۵۶
د نسب په اقرار کې رجوع کول ........................ ۳۵۹
د یو کوچني په باره کې د مسلمان او کافر د اختلاف کولو بیان ........................ ۳۶۵
د یو کوچني په باره کې د ښځې دعویٰ کول ........................ ۳۶۶
که مینځه تر اُمِ ولد ګرځېدلو وروسته د بل چا مستحقه وخیږي (حکم او تفصیل) ........................ ۳۷۰

كِتَابُ الإِقْرَارِ ........................................ ۳۷۴
داقرار حکم او شرائط ........................................ ۳۷۴
دمجهول اقرار بيان ........................................ ۳۷۸
ديو څو مبهمو الفاظو داقرار حکم او تفصيل ........................................ ۳۸۲
په داسې الفاظو سره اقرار کول چې په هغوی کې صراحتاً اقرار ذکر نه وي (حکم او تفصيل) ............ ۳۸۶
په اقرار کې مبهم اعداد ذکر کول (حکم او تفصيل) ........................................ ۳۹۲
هغه شيان چې د هغوی په اقرار کې ضمناً نور شيان هم واجبيږي ........................................ ۳۹۴
د "فِيْ"، "مِنْ" او "مَا بَيْنَ" داقرار حکم ........................................ ۳۹۹
فَصْلٌ ........................................ ۴۰۲
د حمل لپاره اقرار کول (حکم او تفصيل) ........................................ ۴۰۲
بَابُ الإِسْتِثْنَاءِ ........................................ ۴۰۶
د استثناء حکم او شرط ........................................ ۴۰۶
مستثنیٰ د مستثنیٰ منهٔ له جنس څخه کېدل ........................................ ۴۰۷
له اقرار کولو څخه وروسته "انشاء الله" ويل ........................................ ۴۱۰
د کور داقرار کولو په صورت کې د هغه د عمارت (ودانی) استثناء کول (حکم او تفصيل) ......... ۴۱۱
تر اقرار وروسته داقرار په سبب کې اختلاف کول (حکم او تفصيل) ........................................ ۴۱۳
په ناجائز سبب سره د حق واجبېدلو اقرار کول ........................................ ۴۲۰
تر اقرار وروسته د شي يو صفت يا قيد بيانول ........................................ ۴۲۱
په پورتني صورت کې د غصب يا امانت اقرار کول ........................................ ۴۲۷
تر مطلق اقرار وروسته يو خاص قيد والا شی پېشول ........................................ ۴۲۹
د بل چا لپاره د قبضې اقرار کول او د هغه داستحقاق انکار کول (حکم او تفصيل) ........................................ ۴۳۲
بَابُ إِقْرَارِ الْمَرِيْضِ ........................................ ۴۳۹
د مرض الموت اقرار (حکم او تفصيل) ........................................ ۴۳۹
د مخکني قرضونو تر اداء وروسته پاتېدونکی مال ........................................ ۴۴۴

په مرض الموت کي د وارث لپاره د اقرار کولو حکم ........................ ۴۴۵
په مرض الموت کي تر اقرار وروسته د نسب دعویٰ کول ........................ ۴۴۸
فَصْلٌ (فِي الْإِقْرَارِ بِالنَّسَبِ) ........................ ۴۵۱
د نسب د اقرار (اقرار بالنسب) د صحیح کېدلو شرطونه ........................ ۴۵۱
دیو چا په باره کي د مور و پلار کېدلو، بچي کېدلو او داسي نورو د اقرار کولو حکم ........................ ۴۵۲
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ........................ ۴۵۵
د پلار تر مرګ وروسته یو شوک خپل ورور ګرځول ........................ ۴۵۷
كِتَابُ الصُّلْحِ ........................ ۴۶۱
د صلح اقسام او د دعوی په جواز کي د اختلاف بیان ........................ ۴۶۱
د صلح د دریو سره اقسامو حکم او تفصیل ........................ ۴۶۴
د ځمکي په صلح کي حقُ الشفعه نه ثابتیږي ........................ ۴۶۸
تر صلح وروسته دعوه داره (متنازَع فیه) شی د بل چا مستحق ختل ........................ ۴۶۹
د مبهمي دعوې په هکله صلح کول ........................ ۴۷۳
فَصْــلٌ ........................ ۴۷۵
د کومو شیانو په هکله صلح کول جائز دي؟ (د مال د دعوې په هکله صلح کول) ........................ ۴۷۶
د قصاص او دیت په هکله صلح کول ........................ ۴۷۶
د حدّ او داسي نورو شیانو په هکله صلح کول ........................ ۴۸۱
د غلامۍ او آزادۍ په دعویٰ کي د صلح بیان ........................ ۴۸۴
له متنازع شي څخه پر زیات بدل (عوض) صلح کول ........................ ۴۸۷
د مشترک غلام د آزادولو په صورت کي د صلح کولو بیان ........................ ۴۸۹
بَابُ التَّبَرُّعِ بِالصُّلْحِ وَالتَّوْكِيلِ بِهِ ........................ ۴۹۱
د صلح لپاره یو شوک وکیل جوړول او د وکیل صلح کول (حکم او تفصیل) ........................ ۴۹۱
دیو چا له حکم څخه بغیر د هغه له طرفه د صلح کولو بیان ........................ ۴۹۳

بَابُ الصُّلحِ فِي الدَّيْنِ ........................................ ۴۹۸
دزيات قرض په صورت كي پر كم مقدار صلح كول يا په كَرَه دراهمو كي پر كم كوټه دراهمو يا په ميعادي دراهمو كي پر غيرِ ميعادي دراهمو يا دنانيرو صلح كول (حكم او تفصيل) .............. ۴۹۸
د پورتنی مسئلې نور صورتونه ........................................ ۵۰۰
د قرض په صورت كي مؤقت او مشروط صلح كول ........................................ ۵۰۳
د پورتنی مسئلې نور صورتونه ........................................ ۵۰۷
اقرار په مهلت يا په حق كمولو سره مشروط كول ........................................ ۵۱۱
فَصْلٌ فِي الدَّيْنِ الْمُشْتَرَكِ ........................................ ۵۱۲
له دوو شريكانو څخه ديوه د صلح كولو حكم ........................................ ۵۱۲
د پورتنی مسئلې بل صورت ........................................ ۵۱۴
كه له دوو شريكانو څخه يو د خپل قرض په عوض كي سامان رانيسي (حكم او تفصيل) ........ ۵۱۵
په پورتنی مسئله كي د بيع سَلم صورت ........................................ ۵۲۰
فَصْلٌ فِي التَّخَارُجِ ........................................ ۵۲۳
د تخارج لغوي او اصطلاحي معنیٰ ........................................ ۵۲۳
د تخارج تعريف، حكم او دليل ........................................ ۵۲۳
په ميراث كي د سرو زرو او سپينو زرو د موجودوالي په صورت كي د تخارج طريقه ........ ۵۲۵
كه په ميراث كي داسي مال وي كوم چي پر خلكو قرضاً پاته وي؟ ........................................ ۵۲۸
پر غيرِ معيّنه تركه صلح كول (حكم او تفصيل) ........................................ ۵۳۰
كِتَابُ الْمُضَارَبَةِ ........................................ ۵۳۳
د مضاربت لغوي معنیٰ او عقلي دلائل ........................................ ۵۳۳
د مضاربت اصطلاحي تعريف او د صحت شرطونه ........................................ ۵۳۵
د مضاربت د صحت نور شرطونه ........................................ ۵۳۸
هغه كارونه كوم چي د مضارب لپاره جائز يا ناجائز دي ........................................ ۵۴۴

د مضارب لپاره کوم کارونه ناجائز دي؟ ........ ۵۴۶
په مضاربت کي قيود لګول (حکم او تفصيل) ........ ۵۴۸
په مضاربت کي د تاکلي وخت قيد لګول او داسي غلام رانيول کوم چي د ربُ المال په حق کي آزاديږي ........ ۵۵۴
که مضارب داسي غلام رانيسي کوم چي په رانيولو سره د هغه په حق کي آزاديږي ........ ۵۵۶
که مضارب له مال مضاربت څخه مينځه اُمِ ولد جوړه کړي (حکم او تفصيل) ........ ۵۵۹

## بَابُ الْمُضَارِبِ يُضَارِبُ ........ ۵۶۴

د ربُ المال له اجازت څخه بغير مضاربت ثانيه کول (حکم او تفصيل) ........ ۵۶۴
د ربُ المال په اجازت سره مضاربت ثانيه کول (حکم او تفصيل) ........ ۵۶۹
مضاربت ثانيه د نصف نفعي پر شرط کول ........ ۵۷۲
مضاربت ثانيه د زياتي نفعي پر شرط کول ........ ۵۷۴

## فَصْلٌ (فِي بَيَانِ إِدْخَالِ الْغَيْرِ مَعَ الْمُضَارِبِ) ........ ۵۷۶

د مضارب سره بل څوک شريک کول (حکم او تفصيل) ........ ۵۷۶

## فَصْلٌ فِي الْعَزْلِ وَالْقِسْمَةِ ........ ۵۷۹

د ربُ المال يا مضارب د مړه کېدلو حکم ........ ۵۷۹
مضارب له مضاربته معزوله کول (حکم او تفصيل) ........ ۵۸۱
له مضاربت ختمېدلو څخه وروسته به قرضونه څوک اداء کوي؟ ........ ۵۸۳
په مالِ مضاربت کي به هلاک سوی مقدار له نفعي څخه ايستل کيږي ........ ۵۸۶
مالِ مضاربت په نغدو يا په قرض سره خرڅول ........ ۵۸۹

## فَصْلٌ فِيمَا يَفْعَلُهُ الْمُضَارِبُ ........ ۵۸۹

د مضارب لپاره حواله قبلول او داسي نورو کارونه کول (حکم او تفصيل) ........ ۵۹۱
په مالِ مضاربت سره د غلام او مينځي نکاح کول ........ ۵۹۶
ربُ المال ته د کاروبار لپاره مالِ مضاربت ور کول (حکم او تفصيل) ........ ۵۹۷
د مضارب د خرڅو (اخراجاتو) مسئله ........ ۶۰۰
د پورتني مسئلې نور وضاحت او په خرڅو کي به د عُرف لحاظ ساتل کيږي ........ ۶۰۲

د مضارب د خرچ کړل سوي مال بيان ............ ۶۰۴
د مالِ مضاربت اضافي خرچې (اخراجات) ............ ۶۰۶

فَصْلٌ اُخَرُ ............ ۶۰۹
په مضاربت کې د نقصان يو صورت ............ ۶۰۹
د مضاربت کې د مرابحه يو صورت ............ ۶۱۲
د مالِ مضاربت هلاکېدلو حکم ............ ۶۱۶

فَصْلٌ فِي الْاِخْتِلَافِ ............ ۶۱۹
د مالِ مضاربت په هکله د مضارب او ربُ المال اختلاف کول ............ ۶۱۹
داختلاف يو بل صورت ............ ۶۲۱

كِتَابُ الْوَدِيْعَةِ ............ ۶۲۵
د وديعت لغوي او اصطلاحي معنیٰ ............ ۶۲۵
د وديعت او امانت په مينځ کې فرق ............ ۶۲۶
د وديعت حکم ............ ۶۲۶
د بل مال سره د وديعت ګډولو حکم ............ ۶۳۰
د بل مال سره د وديعت ګډېدلو حکم ............ ۶۳۵
له وديعت څخه د مودَع د انکار کولو حکم ............ ۶۳۸
د سفر په وخت کې د ځان سره د وديعت ساتلو حکم او تفصيل ............ ۶۴۰
د مشترکه وديعت حکم ............ ۶۴۳
دوو کسانو ته قابلِ تقسيم وديعت اېښوول (حکم او تفصيل) ............ ۶۴۷
د مودِع (مالک) د منع کولو باوجود خپلي ښځي يا خپل کورنۍ والا ته وديعت ورکول ............ ۶۵۰
بل چا ته وديعت ورکول او د هغه په قبضه کې وديعت ضايع کېدل ............ ۶۵۳
ديوه وديعت په باره کې د دوو کسانو دعوىٰ کول (حکم او تفصيل) ............ ۶۵۶




# بَابُ الْوَكَالَةِ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ

(دا) باب د خرڅولو او رانيولو د وکالت (په بيان کي) دى

## فَصْلٌ فِي الشِّرَاءِ

**تشريح**: څرنګه چي د وکالت په بابونو کي زيات ضرورت بيع وشراء ته پيښيږي، نو په همدې وجه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله "باب الوكالة بالبيع والشراء" د وکالت له نورو بابونو څخه مخکي کړی دی، او څرنګه چي په بيع وشراء کي زياتره وخت د شراء (رانيولو) لپاره وکيل ټاکل کيږي، نو ځکه يې "فصلٌ في الشّراء" تر "فصلٌ في البيع" مخکي بيان کړی دی. (عنايه وبنايه)

### د رانيولو په توکيل کي پر مؤکل د شي جنس او صفت بيانول ضروري دي

قَالَ: وَمَنْ وَكَّلَ رَجُلًا بِشِرَاءِ شَيْءٍ فرمايي: او کوم څوک چي يو سړی د يو شي د رانيولو وکيل جوړ کړي فَلَا بُدَّ مِنْ تَسْمِيَةِ جِنْسِهِ وَصِفَتِهِ أَوْ جِنْسِهِ وَمَبْلَغِ ثَمَنِهِ نو د هغه شي جنس او صفت يا د هغه جنس او د ثمن مقدار بيانول ضروري دي لِيَصِيرَ الْفِعْلُ الْمُوَكَّلُ بِهِ مَعْلُومًا د دې لپاره چي د کوم کار په باره کي چي وکيل جوړ سوی دی هغه کار معلوم وګرځي فَيُمْكِنُهُ الِائْتِمَارُ او [د مؤکل] د حکم پر ځای کول ممکن سي [يعني د هغه کار کول ممکن وګرځي] إِلَّا أَنْ يُوَكِّلَهُ وَكَالَةً عَامَّةً فَيَقُولُ: ابْتَعْ لِي مَا رَأَيْتَ مګر دا چي مؤکل د عام وکالت په توګه هغه وکيل جوړ کړي او داسي ووايي: چي کوم څه ته مناسب وګڼې هغه زما لپاره رانيسه! لِأَنَّهُ فَوَّضَ الْأَمْرَ إِلَى رَأْيِهِ ځکه چي [په دې صورت کي] مؤکل معامله د وکيل رايي ته وسپارله فَأَيُّ شَيْءٍ يَشْتَرِيهِ يَكُونُ مُمْتَثِلًا نو ځکه کوم شی چي هم وکيل رانيسي، هغه به [د مؤکل] د حکم پر ځای کونکی وي وَالْأَصْلُ فِيهِ أَنَّ الْجَهَالَةَ الْيَسِيرَةَ تُتَحَمَّلُ فِي الْوَكَالَةِ كَجَهَالَةِ الْوَصْفِ اسْتِحْسَانًا او د وکالت په باب کي قاعده دا ده چي معمولي جهالت استحساناً په وکالت کي برداشت کيږي لِأَنَّ مَبْنَى التَّوْكِيلِ عَلَى التَّوْسِعَةِ ځکه چي د وکيل

جوړولو مدار پر وسعت [پراخی] دی لِأَنَّهُ اسْتِعَانَةٌ ځکه وکيل جوړول [ګواکي] مرسته غوښتل دي وَفِي اعْتِبَارِ هٰذَا الشَّرْطِ بَعْضُ الْحَرَجِ او د دې شرط په اعتبار کولو کي څه حرج دی وَهُوَ مَدْفُوعٌ او حرج ا په شريعت کي اليري کړی سوی دی.

**اللغات**: ﴿جنس﴾ منطقي لفظ دی، مثلاً غوا يو جنس دی چي په هغه کي مختلفه قسمه غواوي شاملي دي، لکه ولايتي غوا، جرمني غوا او داسي نور نسلونه. "نوع" يو قسم ته وايي، مثلاً ولايتي غوا يو نوع ده. "صفة" يعني ښه والي (اصلي والي) او بد والی چي دا غوا ښه ده يا د مينځوی درجې ده يا کمزوري غوا ده. وروسته به ذکر سي چي له صفة څخه مراد "نوع" ده. ﴿مبلغ﴾ مقدار. ﴿موکل بہ﴾ د کوم کار او شي لپاره چي يو څوک وکيل جوړ سوی وي. ﴿ايتمار﴾ په اصل کي اِئْتِمَار دی: امر منل (حکم منل)، اطاعت کول، حکم پر ځای کول. ﴿مبنٰی﴾ بنياد، مدار. ﴿ممتثل﴾ د افتعال د باب فاعل دی: حکم پر ځای کونکی، حکم پوره کونکی. ﴿تتحمّل﴾ د تفعّل له بابه د مضارع صيغه ده: زغمل کېدل، برداشت کېدل. ﴿توسعة﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: پراخي کول، پراختيا. ﴿استعانة﴾ د استفعال د باب مصدر دی: د مدد طلب کول، مرسته او کومک غوښتل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی بل څوک د يو شي د رانيولو وکيل جوړ کړي (چي زما لپاره فلانکی شی رانيسه!)، نو د مؤکل لپاره ضروري ده چي وکيل ته د هغه شي جنس او صفت ور وښيي يا د هغه جنس او د قيمت مقدار ور وښيي، مثلاً که د موټر رانيولو وکيل يې جوړ کړي نو د هغه د ماډل (model) نوم دي ور وښيي چي فلانکی قسم موټر، او د کمپنۍ نوم او جوړ دي ور وښيي چي د چين يا جاپان جوړ سوی موټر. يا مثلاً د هغه ماډل او قيمت دي ور وښيي چي په درې لکه يې رانيسه! (يا مثلاً د غوا د رانيولو وکيل يې جوړ کړي کوم چي موږ ضمناً په لغاتو کي ذکر کړه)؛ دليل دا دی چي د کوم شي لپاره چي وکيل جوړ سوی وي او وکيل ته چي د کوم کار حکم سوی وي، د هغه تر سره کول په هغه وخت کي د وکيل لپاره ممکن دي کله چي وکيل ته هغه کار (موکّل بہ) معلوم وي، او ښکاره خبره ده چي د جنس او صفت يا د جنس او قيمت په بيانولو سره هغه معلوميږي، نو ځکه د مؤکل لپاره دا ضروري ده چي د شي جنس او صفت وکيل ته ور وښيي.

ها! که چيري مؤکل يو څوک د عام وکالت په توګه وکيل جوړ کړي او داسي ووايي چي "هر شی تا ته مناسب او خوندور معلوم سي هغه زما لپاره رانيسه!"، نو په دې صورت کي د مؤکل لپاره د

شي جنس او صفت بيانول ضروري نه دي او وکيل چي هر شی هم رانيسي نو هغه به د مؤکل د حکم پر ځای کونکی او د وکالت پوره کونکی شمارل کيږي.

**والأصل فيه إلخ:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د وکالت په باب کي يوه قاعده بيانوي فرمايي چي په وکالت کي استحساناً معمولي (لږ غوندي) جهالت برداشت کيږي، له معمولي جهالت څخه مراد د وصف جهالت دی، مثلاً مؤکل وکيل ته ووايي چي فلانکی قسم موټر رانيسه لېکن د موټر د کمپنی نوم نه ور وښيي، نو که څه هم په دې کي د وصف جهالت سته لېکن دا جهالت د وکالت له صحت (صحيح والي) څخه مانع نه دی؛ دليل دا دی چي د وکالت دار ومدار پر وسعت دی، ځکه چي په وکالت کي له بل چا څخه مرسته غوښتل کيږي او په مرسته غوښتلو کي ډېر وسعت او آساني کيږي. لهذا اوس که موږ په دې کي معمولي جهالت معاف نه کړو، نو حرج او ضرر به لازم سي، حال دا چي په شريعت کي د حرج ګنجايش نسته.

## د مبهم توکيل حکم

ثُمَّ إِنْ كَانَ اللَّفْظُ يَجْمَعُ أَجْنَاسًا أَوْ مَا هُوَفِي مَعْنَى الْأَجْنَاسِ بيا که [موکل به] لفظ څو جنسونو لره شامل وي يا هغه شي لره شامل وي کوم چي د څو جنسونو په معنیٰ سره وي لَا يَصِحُّ التَّوْكِيلُ نو دا توکيل [وکيل جوړول] نه صحيح کيږي وَإِنْ بَيَّنَ الثَّمَنَ که څه هم ثمن بيان کړي لِأَنَّ بِذَلِكَ الثَّمَنِ يُوجَدُ مِنْ كُلِّ جِنْسٍ ځکه چي د دې ثمن په عوض کي له هر جنس څخه [شی] پيدا کيږي فَلَا يُدْرَى مُرَادُ الْآمِرِ نو ځکه د مؤکل مراد به معلوم نه وي لِتَفَاحُشِ الْجَهَالَةِ د فاحش [زيات] جهالت په وجه وَإِنْ كَانَ جِنْسًا يَجْمَعُ أَنْوَاعًا او که داسي جنس وي کوم چي څو انواعو [اقسامو] لره شامل وي لَا يَصِحُّ إِلَّا بِبَيَانِ الثَّمَنِ أَوْ النَّوْعِ نو توکيل نه صحيح کيږي مګر د نوع يا ثمن په بيانولو سره لِأَنَّهُ بِتَقْدِيرِ الثَّمَنِ يَصِيرُ النَّوْعُ مَعْلُومًا ځکه چي د ثمن په اندازه کولو [بيانولو] سره نوع معلومه ګرځي وَبِذِكْرِ النَّوْعِ تَقِلُّ الْجَهَالَةُ او د نوع په ذکر کولو سره جهالت کميږي فَلَا تَمْنَعُ الِامْتِثَالَ نو ځکه دا جهالت به [د مؤکل د حکم له پوره کولو څخه] مانع نه وي مِثَالُهُ: إِذَا وَكَّلَهُ بِشِرَاءِ عَبْدٍ أَوْ جَارِيَةٍ د دې مثال دا دی: لکه کله چي مؤکل د غلام يا مينځي د رانيولو لپاره يو څوک وکيل جوړ کړي لَا يَصِحُّ نو دا توکيل صحيح نه دی لِأَنَّهُ يَشْمَلُ أَنْوَاعًا ځکه چي دا ډېرو انواعو لره شامل دی فَإِنْ بَيَّنَ النَّوْعَ كَالتُّرْكِيِّ أَوْ

الْحَبَشِيِّ أَوِ الْهِنْدِيِّ أَوِ السِّنْدِيِّ أَوِ الْمُوَلَّدِ [لېکن] که چيري مؤکل نوع بيان کړي مثلاً ترکي يا حبشي يا هندي يا سندي يا مولد غلام جَازَ نو دا توکيل جائز دی وَكَذَا إِذَا بَيَّنَ الثَّمَنَ او همدارنګه کله چي ثمن بيان کړي [نو هم توکيل جائز دی] لِمَا ذَكَرْنَاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلَوْ بَيَّنَ النَّوْعَ أَوِ الثَّمَنَ وَلَمْ يُبَيِّنِ الصِّفَةَ وَالْجَوْدَةَ وَالرَّدَاءَةَ وَالسِّطَةَ او که چيري نوع يا ثمن بيان کړي او صفت، ښه والی، بدوالی او متوسط والی بيان نه کړي جَازَ نو [هم] جائز دی لِأَنَّهُ جَهَالَةٌ مُسْتَدْرَكَةٌ ځکه چي دا جهالت قابل د تلافی دی [يعني د دې جهالت تلافي او تدارک ممکن دی، د مؤکل حالت ته په کتلو سره، مطلب دا چي دا معمولي جهالت (جهالت يسيره) دی] وَمُرَادُهُ مِنَ الصِّفَةِ الْمَذْكُورَةِ فِي الْكِتَابِ النَّوْعُ او په کتاب [متن] کي چي کوم "صفة" ذکر سوی دی له هغه څخه د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد "نوع" ده.

**اللغات**: ﴿لا يُدرٰى﴾ د ضرب د باب مضارع مجهوله ده: نه خبرېدل، نه معلومېدل، ﴿تفاحش﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: زيات واضح کېدل، ډېر بدېدل، ﴿سِطَةٌ﴾ له "وسط" څخه مشتق دی لکه عِدَةٌ چي له "وعد" څخه مشتق دی، متوسط والی (درميانه والی)، متوسطه درجې والا، ﴿مستدركة﴾ د استفعال د باب مفعول دی: قابل د تدارک، هغه شی چي تلافي (جبران) يې ممکن وي، مراد ځني معمولي جهالت دی (احسن الهدايه، اثمار الهدايه)، ﴿مولّد﴾ مراد ځني هغه غلام دی کوم چي په دارُ الاسلام (اسلامي مملکت) کي پيدا سوی وي، هسي خو د دې لفظ څو تعريفونه ذکر سوي دي: ① هغه عجمي کس ته وايي چي تربيه او پالنه يې په عربو کي وسي او په عربو کي راغټ سي او د هغو په آدابو او طريقو سره مزين سي، ② نا خالص عربی (العربي غير المحض)، چي فقط مور يا پلار يې عربی وي، ③ دوه تخمه کس چي مثلاً پلار يې هندی وي او مور يې حبشی وي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مؤکل مثلاً وکيل ته داسي ووايي چي زما لپاره يو "څاروی" (حيوان) رانيسه!، نو وکالت نه صحيح کېږي؛ ځکه چي د "څاروي" په لفظ کي ډېر اجناس شامل دي، مثلاً غوا، ګامېښه، آس، خر او داسي نور ټولو ته "څاروی" وايي او دا ټوله جلا جلا جنسونه دي، يا مثلاً مؤکل داسي لفظ ذکر کړي چي د اجناسو په معنیٰ سره وي لکه کور (دَار)، لنډه دا چي په دې دواړو صورتونو کي توکيل صحيح نه دی، که څه هم مؤکل وکيل ته د ثمن مقدار ور وښيي چي مثلاً د پنځلس سوه درهمو څاروی يا کور (دَار) رانيسه!؛ ځکه مؤکل چي کوم ثمن بيان کړی دی په

هغه سره هم مطلب او مراد پوره نه ښکاره کيږي، ځکه چي د دومره ثمن شی په هر جنس کي سته(يعني په دومره ثمن سره گران قيمته غوا هم پيداکيږي، آس هم پيدا کيږي او داسي نور)، لهذا تر څو چي د مؤکل مراد ښکاره نه سي تر هغه وخته د مؤکل پر حکم عمل کول مشکل دي، نو ځکه دا توکيل به صحيح نه وي.

وإن كان جنسا يجمع أنواعاً إلخ: فرمايي که مؤکل يو داسي لفظ ذکر کړي کوم چي ډېرو انواعو (اقسامو) لره شامل وي، نو د دې دوه صورتونه دي: ① مؤکل به د هغه لفظ يو نوع يا ثمن ذکر کړی وي، ② يا به يې نه وي ذکر کړی، که چيري دويم صورت وي يعني مؤکل يو نوع او ثمن نه وي ذکر کړی، نو توکيل نه صحيح کيږي، ځکه چي د مؤکل مراد مجهول پاته سو. او که چيري اول صورت وي يعني مؤکل د هغه لفظ يو نوع يا ثمن ذکر کړی وي، نو توکيل صحيح کيږي؛ ځکه چي د نوع په ذکر کولو سره جهالت ختميږي او د ثمن په ذکر کولو سره د نوع پته لگيږي (او اندازه يې معلوميږي) چي د مؤکل مراد او مطلب دغه شی دی، لهذا په دې صورت کي د وکيل لپاره د مؤکل پر حکم عمل کول ممکن گرځي، نو ځکه دا توکيل به صحيح وي.

د دې مثال دا دی لکه يو سړی چي بل څوک د غلام رانيولو وکيل جوړ کړي (چي زما لپاره غلام رانيسه!)، نو د غلام لفظ جنس دی چي تر هغه لاندي ډېر انواع راځي مثلاً تُرکي غلام، حبشي، هندي، سندي، مولد غلام، نو که هغه سړی له پورتني دوو شيانو (نوع او ثمن) څخه يو شی ذکر کړي، مثلاً نوع ذکر کړي چي هندي غلام رانيسه! نو دا توکيل صحيح کيږي. يا د غلام قيمت بيان کړي چي درې سوه درهمو والا غلام رانيسه!، نو ځرنگه چي په قيمت سره هم د نوع پته لگيږي چي مثلاً په درې سوه درهمه فقط هندي غلام رانيول کېدای سي، نو ځکه په دې صورت کي هم توکيل صحيح کيږي، ځکه چي اوس فقط معمولي جهالت پاته دی، او د وکالت په باب کي معمولي جهالت برداشت کيږي، لېکن که مؤکل له دغه دوو شيانو څخه يو شی هم ذکر نه کړي، فقط جنس ذکر کړي، نو توکيل نه صحيح کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي جهالت فاحش او کامل دی.

ومراده إلخ: فرمايي چي په قدوري (متن) کي چي کوم د ''صفة'' لفظ ذکر سوی دی، په هغه سره د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد ''نوع'' ده؛ او دغه وضاحت ته ځکه ضرورت پيښ سو چي صاحب د هدايې او نورو فقهاؤ د جنس او نوع بيانول ضروري گرځولي دي، نو ځکه د ''صفة'' په لفظ سره به ''نوع'' مرادول کيږي، د دې لپاره چي د امام قدوري او د نورو فقهاؤ رايه سره متحده سي. (عنايه وبنايه)

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ: اِشْتَرِ لِيْ ثَوْبًا أَوْ دَابَّةً أَوْ دَارًا او په جامع صغير کې [ذکر سوي] دي: څوک چې بل چا ته ووايي: ته زما لپاره کپړه يا دابه يا کور رانيسه فَالْوَكَالَةُ بَاطِلَةٌ لِلْجَهَالَةِ الْفَاحِشَةِ نو د فاحش جهالت په وجه دا وکالت باطل دی فَإِنَّ الدَّابَّةَ فِي حَقِيقَةِ اللُّغَةِ اسْمٌ لِمَا يَدِبُّ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ ځکه چې د حقيقتِ لغوي په اعتبار سره ”دابه“ د [هر] هغه شي نوم دی کوم چې د ځمکې پر مخ ګرځي وَفِي الْعُرْفِ يُطْلَقُ عَلَى الْخَيْلِ وَالْحِمَارِ وَالْبَغْلِ او په عُرف کې د ”دابه“ اطلاق پر آس، خره او غاترې کيږي فَقَدْ جَمَعَ أَجْنَاسًا نو دا لفظ څو جنسونو لره شامل دی وَكَذَا الثَّوْبُ او کپړه هم داسې ده [يعني هغه هم څو جنسولو لره شامله ده] لِأَنَّهُ يَتَنَاوَلُ الْمَلْبُوسَ مِنَ الْأَطْلَسِ إِلَى الْكِسَاءِ ځکه چې کپړه له وريښمي کپړې څخه تر ادنیٰ کپړې پورې هر ډول جامې لره شامله ده [يعني کپړه هم له اعلیٰ څخه واخله تر ادنیٰ پورې هر ډول کپړو لره شامله ده] وَلِهٰذَا لَا يَصِحُّ تَسْمِيَتُهُ مَهْرًا او په همدې وجه کپړه د مهر په توګه ټاکل صحيح نه دي وَكَذَا الدَّارُ تَشْمَلُ مَا هُوَ فِي مَعْنَى الْأَجْنَاسِ او همدارنګه کور [يعني د کور لفظ] هم هغه شيانو لره شامل دی کوم چې د څو جنسونو په معنیٰ سره دي لِأَنَّهَا تَخْتَلِفُ اخْتِلَافًا فَاحِشًا بِاخْتِلَافِ الْأَغْرَاضِ وَالْجِيرَانِ وَالْمَرَافِقِ وَالْمَحَالِّ وَالْبُلْدَانِ ځکه چې کور د مقاصدو، همسايه ګانو، منافعو، محلو او ښارونو په اختلاف [بدلون] سره ډېر زيات مختلف کيږي فَيَتَعَذَّرُ الِامْتِثَالُ نو ځکه [د مؤکل] د حکم پر ځای کول به ناممکن وي.

**اللغات**: ﴿دابّة﴾ په عرف کې څاروي ته وايي، سپارلی. ﴿يدبّ﴾ د نصر مضاع ده: تلل، تګ کول. ﴿بغل﴾ غاتره (خچره). ﴿أطلس﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغه څخه يوه معنیٰ ده: وريښمي کپړه (له وريښمو څخه جوړه سوې کپړه)، مراد ځني اعلیٰ کپړه ده. ﴿كساء﴾ عامه کپړه (کوم چې هر ځای رائج ده)، مراد ځني ادنیٰ کپړه يعني کم قيمت والا کپړه ده. ﴿امتثال﴾ د افتعال د باب مصدر دی: حکم پر ځای کول (حکم پوره کول)، اطاعت کول.

**تشريح**: په تېر عبارت کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د قدوري په حواله سره دا خبره بيان کړه چې که مؤکل داسې لفظ ذکر کړي کوم چې اجناسو لره شامل وي يا هغه شي لره شامل وي کوم چې د اجناسو

په معنیٰ سره وي، نو توکيل صحيح نه دی، اوس په دې عبارت کې هماغه خبره او مضمون د جامع صغير په حواله سره بيانوي، نو فرمايي: په جامع صغير کې ذکر سوي دي چې که موکل وکيل ته داسي ووايي: "ته زما لپاره کپړه يا دابّه يا کور رانيسه". نو په دې صورت کې توکيل باطل دی؛ ځکه دلته چې کوم شی موکل بِهٖ دی يعني کپړه، دابّه او کور، دا هر شی ډېرو اجناسو لره شامل دی، او څرنګه چې د مؤکل له طرفه د هيڅ جنس تعيين نه دی سوی، نو د هغوی جهالت به فاحش وي او له اُمتثالُ الامر (حکم پر ځای کولو) څخه به مانع وي، او کله چې د هغوی جهالت (مجهول والی) له امتثالُ الامر څخه مانع دی، نو ښکاره خبره ده چې وکالت به هم صحيح نه وي.

"دابّه" خو ځکه ډېرو اجناسو لره شامله ده چې د "دَابَّةٌ" لغوي معنیٰ ده "هر هغه ساکښ کوم چې د ځمکي پر مخ ګرځي" او ښکاره ده چې د ځمکي پر مخ بيخي ډېر شيان ګرځي، همدارنګه په عرف او اصطلاح کي د "دَابَّةٌ" لفظ د مختلفو څارويو لپاره استعماليږي، مثلاً غوا، ګامېښه، آس، خر او داسي نور، او ښکاره خبره ده چې د دې ټولو جنسونه سره جلا "مختلفُ الاجناس" دي، همدارنګه د "ثَوْب" (کپړې) لفظ هم د هر ډول اغوستل کېدونکي کپړې لپاره استعماليږي، او تاسو ته معلومه چې په کپړه کي هم مختلف جنسونه سته کوم چې يو له بل څخه جلا دي او ځيني اعلیٰ او ځيني ادنیٰ دي، نو دا لفظ هم "مختلفُ الاجناس" شيانو لره شامل دی، نو ځکه د دې لفظ جهالت به هم فاحش او کامل وي. همدا وجه ده چې کپړه په مهر کي ټاکل صحيح نه دي.

همدارنګه د "دَار" (کور) لفظ که څه هم مختلف الاجناس (مختلفه اجناسو) لره شامل نه دی، خو هغه د داسي ځايو لپاره استعماليږي کوم چې د مختلف الاجناس په معنیٰ سره دي؛ ځکه چې د استوګني، جوړښت، ښايست په اعتبار سره، همدارنګه بازار ته د نژدې کېدلو، ليري کېدلو، د صحرا، ښار او د داسي نورو اغراضو په اعتبار سره کورونه هم يو له بل څخه ډېر جلا وي او د هغو قيمتونه هم ډېر سره جلا وي، لهذا د "دَار" په مطلق لفظ سره نه د مؤکل مراد ښکاره کيږي او نه د وکيل لپاره د هغه حکم پر ځای کول ممکن دي، همداسي د "ثَوب" او "دَابّه" مطلق الفاظ هم داسي دي چې په هغه سره نه د مؤکل مراد ښکاره کيږي او نه د هغه د حکم پر ځای کول ممکن دي، حال دا چې د وکالت مقصد همدا دی، لهذا کله چې په دې صورت کي ګرسره د وکالت مقصد فوتيږي، نو ښکاره خبره ده چې وکالت به هم باطل او ناجائز وي.

## د ثمن او نوع بيانولو حکم

قَالَ: وَإِنْ سَمّٰى ثَمَنَ الدَّارِ وَوَصَفَ جِنْسَ الدَّارِ وَالثَّوْبِ فرمايي: او که چيري موکل د کور ثمن بيان کړي او د کور او کپړې جنس بيان کړې جَازَ نو توکيل جائز دی مَعْنَاهُ نَوْعَهُ د دې معنیٰ ده د هغه نوع [يعني له وصف څخه نوع مراد ده] وَكَذَا إِذَا سَمّٰى نَوْعَ الدَّابَّةِ بِأَنْ قَالَ: حِمَارًا أَوْ نَحْوَهُ او همدارنګه کله چي د "دابه" نوع بيان کړي په دې توګه چي مؤکل ووايي: خر او داسي نور.

**اللغات**: ﴿ثمن﴾ قيمت، ﴿دابة﴾ څاروی، سپارلی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مؤکل د موکل به يعني د "دَار"، "دابه" او "ثوب" قيمت او نوع بيان کړي او وکيل ته مثلاً داسي ووايي چي دومره خونو (کمرو) والا او دومره قيمت والا کور په فلانکي ښار يا محله کي رانيسه!، يا د پنځلس سوه درهمو والا خر يا آس رانيسه!، يا سل ګزه د "اريش" کپړه رانيسه!، نو په دغو ټولو صورتونو کي توکيل جائز دی؛ دليل دا دی چي د ثمن او نوع په بيانولو سره د مؤکل مراد هم ښکاره سو او د موکل به جهالت هم کم سو، او کوم څه معمولي جهالت چي پاته دی هغه د وکالت له صحت څخه مانع نه دی، نو ځکه په دې صورت کي وکالت جائز او صحيح دی.

## د طعام په توکيل کي څه شي داخليږي؟

قَالَ: وَمَنْ دَفَعَ إِلٰى آخَرَ دَرَاهِمَ وَقَالَ: اِشْتَرِ لِيْ بِهَا طَعَامًا فرمايي: او څوک چي بل چا ته يو څو دراهم ورکړي او ووايي: چي په دې سره زما لپاره "طعام" رانيسه! فَهُوَ عَلَى الْحِنْطَةِ وَدَقِيْقِهَا اِسْتِحْسَانًا نو دا [لفظ او وکالت] استحساناً پر غنمو او د هغه پر اوړو واقع کيږي وَالْقِيَاسُ أَنْ يَكُوْنَ عَلٰى كُلِّ مَطْعُوْمٍ اعْتِبَارًا لِلْحَقِيْقَةِ او قياس دا دی چي پر هر خوړل کېدونکي شي واقع سي، د حقيقت په اعتبار کولو سره كَمَا فِي الْيَمِيْنِ عَلَى الْأَكْلِ لکه پر خوراک د قسم اخيستلو په صورت کي [يعني که يو څوک قسم واخلي چي په الله قسم! "طعام" به نه خورم نو دا قسم پر هر مطعوم واقع کيږي] إِذِ الطَّعَامُ اسْمٌ لِمَا يُطْعَمُ ځکه چي "طعام" د [هر] هغه شي نوم دی کوم چي خوړل کيږي وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ: أَنَّ الْعُرْفَ أَمْلَكُ ځکه چي عرف زيات قوي [او زيات راجح] دی [د قياس په نسبت] وَهُوَ عَلٰى مَا ذَكَرْنَاهُ إِذَا ذُكِرَ مَقْرُوْنًا بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ او عرف پر هغه شي دی کوم چي موږ ذکرې [يعني حنطة او دقيق] کله چي [د

طعام لفظ] د خرڅولو او رانيولو سره متصل ذکر سي وَلَا عُرْفَ فِي الْأَكْلِ او په "اكل" (خوړلو) کي هيڅ عرف نسته فَبَقِيَ عَلَى الْوَضْعِ نو ځکه هغه به پر خپل اصل وضع باقي پاتيږي وَقِيْلَ: إِنْ كَثُرَتِ الدَّرَاهِمُ فَعَلَى الْحِنْطَةِ او ويل سوي دي: چي که دراهم ډېر وي نو [وكالت] پر غنمو واقع کيږي وَإِنْ قَلَّتْ او که دراهم لږ وي فَعَلَى الْخُبْزِ نو پر ډوډيو واقع کيږي وَإِنْ كَانَ فِيمَا بَيْنَ ذٰلِكَ او که د ډېر او لږ په مينځ کي وي فَعَلَى الدَّقِيْقِ ❁ نو پر اُوړو واقع کيږي.

**اللغات**: ﴿دقيق﴾اوړه. ﴿خبز﴾ مفرد يې "خُبْزَةٌ" راځي: ډوډۍ (له اُوړو څخه پخه سوې روټۍ).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی بل چا ته يو څو دراهم ورکړي او هغه ته ووايي چي "ته په دې سره ما ته طعام رانيسه!" يعني د "طعام" لفظ ووايي، نو په داسي وكيل جوړولو کي د استحسان او قياس دوې جلا نظريې دي، يعني استحساناً دا وكالت د غنمو او د هغه د اُوړو سره خاص دی او وكيل ته به دې دواړو کي ديوه شي د رانيولو اجازت سته، لېکن د قياس تقاضا دا ده چي وكيل ته د هر هغه شي د رانيولو اجازت سته کوم چي د غذا (خوراک) په توګه خوړل کيږي؛ ځکه چي د "طعام" لفظ د هر خوړل کېدونکي (مطعوم) شي لپاره استعماليږي او همدا د هغه لغوي حقيقت دی، نو ځکه د دې حقيقت په اعتبار کولو سره به پر هر مطعوم شي د هغه اطلاق کيږي، مثلاً که څوک دا قسم واخلي چي "لَا آكُلُ طَعَاماً" (زه به "طعام" نه خورم)، نو په دې قسم کي د "طعام" لفظ عام دی او د هر مطعوم شي په خوړلو سره قسم اخيستونکی سړی حانث کيږي، برابره هغه غنم يا اُوړه وي يا له دې څخه بغير نور مطعومات وي، نو له دې څخه هم معلومه سوه چي د "طعام" لفظ عام دی، لهٰذا څرنګه چي په قسم کي د "طعام" لفظ ټولو مطعوماتو لره شامل دی. همداسي به په وكالت کي هم قياساً هغه هر ډول مطعوماتو لره شامل وي.

د دې په خلاف په استحسان کي د "طعام" لفظ د غنمو او د اُوړو سره خاص کړل سوی دی، د استحسان دليل دا دی چي که په عرف عام کي د "طعام" د رانيولو يا خرڅولو خبره وسي نو له هغه څخه غنم يا اُوړه مراديږي، او څرنګه چي عرف له قياس څخه زيات قوي دی، نو ځکه دلته به د عرف اعتبار کيږي او له "طعام" څخه به غنم يا د هغه اُوړه مرادول کيږي او وكيل ته به فقط د همدې دوو شيانو د رانيولو اجازت وي. د دې په خلاف د "أَكْل" (خوړلو) په باره کي هيڅ عرف نسته يعني په

---

❁ **القول الراجح**: هو العمل بالعرف، كما قال صاحب الدر المختار:... وقع في عرفنا على المعتاد المهيّأ للأكل من كل مطعوم يمكن أكله بلا إدام وبه قالت الثلاثة وبه يُفتى (الدر المختار ج:۴، ص:۴۴۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۵۱]

"لَا آكُلُ طَعَاماً" کي هیڅ عرف نسته او هغه بله هیڅ عرفي معنیٰ نه لري، نو ځکه د "عدم اکل" (نه خوړلو) د قسم په صورت کي به د طعام لفظ پر خپل اصل وضع یعني پر "اِسمٌ لِمَا یُطعم" باقي پاتیږي او د هر مطعوم په خوړلو سره به قسم اخیستونکی حانث کیږي. لیکن دا خبره په یاد لرئ! چي د هر ښار او د هري زماني عرف جلا جلا وي، او صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله چي دلته کوم عرف بیان کړی دی، له هغه څخه د اهل کوفه (کوفیانو) عرف مراد دی چي هغوی به د "طعام" لفظ د غنمو او اوړو لپاره استعمالوی او د "سوقُ الطعام" په نامه سره د هغوی بازار هم وو چي په هغه کي به اوړه او غنم خرڅول کېدل. کنې د زیاتره قومونو او ملکونو په عرف کي د "طعام" لفظ د هر مطعوم لپاره استعمالیږي، لکه څرنګه چي همدا د قیاس تقاضا ده. (بنایه ج: ۸. ص: ۲۹۰. وهكذا في فتح القدير)

وقیل إلخ: دا قول د فقیه ابو جعفر هندواني رَحِمَهُ الله وطرف ته منسوب دی. حاصل یې دا دی چي که مؤکل یو څوک د "طعام" رانیولو وکیل جوړ کړي او ډېر دراهم ورکړي، نو په دې صورت کي وکالت پر غنمو واقع کیږي، او که لږ دراهم ورکړي، نو وکالت پر ډوډیو (روټیانو) واقع کیږي، او که درمیانه مقدار والا دراهم ورکړي، نو په دې صورت کي وکالت د اوړو پر رانیولو واقع کیږي. لیکن دا د فقیه ابو جعفر صاحب خپله ذاتي رایه ده او کېدای سي چي همداسي به د هغو عرف وو. والله أعلم

## د وکیل د خیارِ عیب بیان

قَالَ: وَإِذَا اشْتَرَى الْوَكِيلُ وَقَبَضَ فرمایي: او کله چي وکیل یو شی رانیسي او [پر هغه] قبضه وکړي ثُمَّ اطَّلَعَ عَلَى عَيْبٍ بیا په یو عیب خبر سي فَلَهُ أَنْ يَرُدَّهُ بِالْعَيْبِ مَا دَامَ الْمَبِيعُ فِي يَدِهِ نو وکیل ته دا اختیار سته چي د عیب په وجه هغه شی [مبیع] واپس کړي، تر څو چي مبیع د هغه په قبضه کي وي لِأَنَّهُ مِنْ حُقُوقِ الْعَقْدِ ځکه چي دا [د عیب په وجه واپس کول] د عقد له حقوقو څخه دي وَهِيَ كُلُّهَا إِلَيْهِ او د عقد ټوله حقوق د وکیل وطرف ته راجع کیږي فَإِنْ سَلَّمَهُ إِلَى الْمُوَكِّلِ لیکن که وکیل مبیع مؤکل ته وسپاري لَمْ يَرُدَّهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ نو [په دې صورت کي] وکیل هغه د مؤکل له اجازت څخه بغیر نه سي واپس کولای لِأَنَّهُ انْتَهَى حُكْمُ الْوَكَالَةِ ځکه چي د وکالت حکم پوره سو وَلِأَنَّ فِيهِ إِبْطَالَ يَدِهِ الْحَقِيقِيَّةِ او ځکه چي په واپس کولو کي د مؤکل د حقیقي قبضې باطلول سته فَلَا يَتَمَكَّنُ مِنْهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ نو ځکه هغه به فقط د مؤکل په اجازت سره پر دې [باطلولو] قادر کیږي وَلِهَذَا كَانَ خَصْمًا لِمَنْ

يَدَّعِيَ فِي الْمُشْتَرٰى دَعْوٰى كَالشَّفِيعِ وَغَيْرِهِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ إِلَى الْمُوَكِّلِ او په همدې وجه مؤکل ته د مبيع تر ورسپارلو مخکې وکيل د هغه کس خصم ګرځي کوم چې په رانيول سوي شي [مبيع] کې يو دعوىٰ وکړي لکه شفيع او داسې نور لَا بَعْدَهُ او تر ورسپارلو وروسته وکيل خصم [مدعىٰ عليه] نه ګرځي.

**اللغات**: ﴿يردّه﴾ د نصر د باب مضارع ده: واپس کول. ﴿ما دام﴾ تر څو چې وي. ﴿إذن﴾ اجازت، اجازه. ﴿انتهٰى﴾ د افتعال د باب ماضي ده: ختمېدل. پوره کېدل. ﴿لا يتمکّن منه﴾ د دغه باب په صِله کې چې "مِنْ" ذکر سي نو معنىٰ يې ده: قادر کېدل (قدرت پيدا کول). کامياب کېدل. ﴿خصم﴾ د دعوې يو فريق. يعني مدعي يا مدعىٰ عليه. ﴿مشترٰى﴾ د افتعال د باب مفعول دى: رانيول سوى شى. يعني مبيع.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى که وکيل له يو سړي څخه شى رانيوى او پر هغه يې قبضه وکړه، تر دې وروسته وکيل په هغه شي کې يو عيب وليدى، نو که چيري دا شى (مبيع) تر اوسه د وکيل په قبضه کې وي او مؤکل ته يې نه وي ورکړى، نو وکيل ته دا حق سته چې هغه (مبيع) د خيار عيب پر بناء بائع ته واپس کړي؛ ځکه چې د خيار عيب پر بناء مبيع واپس کول د عقد له حقوقو څخه يو حق دى. او د عقد ټوله حقوق د عاقد وطرف ته راجع کيږي او عاقد وکيل دى. نو ځکه وکيل ته به د هغه د واپس کولو حق او اجازت وي.

او که چيري وکيل هغه شى (مبيع) مؤکل ته وسپارى، نو په دې صورت کې د مؤکل له اجازت څخه بغير وکيل ته د هغه د واپس کولو حق نسته؛ ځکه چې مؤکل ته د مبيع په ورسپارلو سره د وکالت حکم پوره سو او وکالت ختم سو. نو ځکه اوس وکيل په دې بيع وشراء کې د اجنبي سړي (غيرِ عاقد) په څېر سو. او د اجنبي سړي لپاره دا اختيار نسته چې د بل چا په مال کې د هغه له اجازت څخه بغير تصرف وکړي. نو ځکه په دې مسئله کې به هم د مؤکل له اجازت څخه بغير د وکيل لپاره مبيع واپس کول صحيح او جائز نه وي.

دويم دليل دا دى چې کله وکيل مبيع مؤکل ته وسپارله نو پر مبيع د مؤکل حقيقي قبضه راغله. نو اوس که د مؤکل له اجازت څخه بغير وکيل دا مبيع وبائع ته وسپاري نو ښکاره خبره ده چې هغه به د مؤکل د حقيقي قبضې فوتونکى وګرځي. حالانکې د وکيل لپاره داسې کول صحيح نه دي. نو ځکه په دې حواله سره هم د مؤکل له اجازت څخه بغير وکيل هغه مبيع نه سي واپس کولاى.

لهذا لو کان خصما إلخ: څرنګه چي اوس ضمناً دا خبره ذکر سوه چي که مبيع د مؤکل په قبضه کي وي نو د عقد حقوق د هغه وطرف ته راجع کيږي او کله چي وکيل هغه مؤکل ته وسپاري نو وکالت ختميږي، نو اوس صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله پر همدې خبره تفريع کوي فرمايي چي که يو سړی د وکالت په مبيع (کور) کي د شفعي دعویٰ وکړي نو وکيل په هماغه صورت کي خصم (مدعیٰ عليه) ګرځي کله چي مبيع د هغه په قبضه کي وي، او که چيري مبيع د وکيل په قبضه کي نه وي بلکي د مؤکل په قبضه کي وي، نو په دې صورت کي وکيل خصم نه ګرځي بلکي هغه خلاصيږي او مؤکل خصم ګرځي.

## د بيع سَلم او بيع صَرف د توکيل بيان

قَالَ: وَيَجُوزُ التَّوْكِيلُ بِعَقْدِ الصَّرْفِ وَالسَّلَمِ فرمايي: او د بيع صَرف او بيع سَلم وکيل جوړول جائز دي لِأَنَّهُ عَقْدٌ يَمْلِكُهُ بِنَفْسِهِ ځکه چي دا يو داسي عقد دی کوم چي يې مؤکل په خپله [د کولو] ملکيت لري فَيَمْلِكُ التَّوْكِيلَ بِهِ نو ځکه د هغه د وکيل جوړولو ملکيت [اختيار] به هم لري عَلَىٰ مَا مَرَّ لکه مخکي چي تېر سوه وَمُرَادُهُ التَّوْكِيلُ بِالْإِسْلَامِ دُونَ قَبُولِ السَّلَمِ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد بيع سَلم کول دي، نه بيع سَلم قبلول لِأَنَّ ذٰلِكَ لَا يَجُوزُ ځکه چي دا جائز نه دي [يعني د بيع سَلم د قبول لپاره وکيل جوړول ناجائز او باطل دي] فَإِنَّ الْوَكِيلَ يَبِيعُ طَعَامًا فِي ذِمَّتِهِ عَلَىٰ أَنْ يَكُونَ الثَّمَنُ لِغَيْرِهِ ځکه [په دې صورت کي به] وکيل د هغه "طعام" خرڅونکي وي کوم چي د ده پر ذمه واجب وي پر دې شرط چي ثمن به د بل چا لپاره وي [يعني په دې صورت کي چي وکيل کوم شی خرڅوي هغه به د وکيل پر ذمه واجب وي او د هغه قيمت به د بل چا يعني د مؤکل لپاره وي] وَهٰذَا لَا يَجُوزُ او دا جائز نه دي.

**اللغات**: ﴿بيع صَرف﴾ بيع النقد بالنقد، يعني ثمن د ثمن په عوض کي خرڅول. ﴿بيع سلم﴾ بيع الاجل بالعاجل، يعني څخه من شی د نغد شي په عوض کي خرڅول. مثلاً يو سړی (بائع) له يو چا څخه ثمن في الحاله واخلي او د يوې مياشتي پر قرض غنم پر خرڅ کړي چي غنم يوه مياشت وروسته درکوم، په بيع سَلم کي ثمن ورکونکي (مشتري) ته ربُ السَلم وايي او خرڅونکي "غنم ورکونکي" (بائع) ته مسلم اليه وايي او په کوم شي کي چي بيع سَلم وسي لکه دلته چي غنم دي، هغه ته "مسلم فيه" وايي. په بيع سَلم او بيع صَرف کي دا ضروري ده چي په مجلس کي به دننه پر ثمن او عوض قبضه کېږي، کنې بيا هغه فسخ کيږي، ﴿طعام﴾ هر خوړل کېدونکی شی، هغه شی

چي خوراک ځني حاصلیږي لکه غنم، اوربشي او داسي نور. او د اهل حجاز او اهل کوفه (عراق) په نیز "طعام" غنمو ته ویل کیږي کله چي دا لفظ مطلق ذکر سي. (مصباح منیر، معجم وسیط)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی د بیع سَلم کولو یا د بیع صَرف کولو لپاره بل څوک وکیل جوړ کړي، نو دا توکیل جائز دی؛ ځکه کله چي مؤکل په خپله (بذات خود) د دې عقودو د کولو مالک دی (یعني دا ملکیت او اختیار لري چي په خپله دا عقدونه وکړي) نو ښکاره خبره ده چي هغه به د دې عقودو لپاره د وکیل جوړولو هم مالک وي او د هغه توکیل به جائز او صحیح وي؛ ځکه چي د مطلق بیع وشراء په څېر په دې عقدونو کي هم توکیل ته ضرورت پېښیږي، او د ضرورت پر بناء په ممنوعاتو کي هم جواز او روایښت سته نو په مباحاتو کي خو به په درجه اولیٰ جواز وي (یعني د ضرورت په وخت کي ممنوع امر هم جائز ګرځي نو ځکه مباح امر خو به په درجه اولیٰ جائز وي).

**ومراده التوکیل إلخ:** فرمایي: په متن کي چي د بیع سَلم د وکیل جوړولو (توکیل) کومه یادونه سوې ده، له هغه څخه د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد د بیع سَلم د کولو لپاره وکیل جوړول دي، نه د بیع سَلم د قبلولو لپاره. یعني ربُ السَلم د بیع سَلم د کولو لپاره بل څوک وکیل جوړولای سي، لېکن مسلم الیه د بیع سَلم د قبلولو لپاره بل څوک وکیل نه سي جوړولای؛ ځکه چي مسلم فیه د مسلم الیه پر ذمه قرض وي، لهذا اوس که مسلم الیه وکیل وټاکل سي نو د هغه پر ذمه به هم مسلم فیه قرض وي او د وکیل او ربُ السَلم په مینځ کي به دا عقد پر دې شرط واقع سي چي د دې ثمن به د بل چا یعني د مؤکل لپاره وي او مبیع به د دې وکیل پر ذمه قرض وي، حالانکي داسي عقد کول جائز نه دي چي ثمن د بل چا لپاره وي او شی پر عاقد لازم وي، او څرنګه چي دا خرابي هغه وخت پېښیږي کله چي د بیع سَلم د قبلولو لپاره وکیل جوړ کړی سي، نو ځکه د هغه د قبلولو لپاره وکیل جوړول جائز نه دي.

## د پورتنی مسئلې بل صورت

| |
|---|
| فَإِنْ فَارَقَ الْوَكِيْلُ صَاحِبَهُ قَبْلَ الْقَبْضِ او که [په بیع سَلم او بیع صَرف کي] تر قبضه کولو مخکي وکیل له خپل ملګري عاقد څخه جلا سي بَطَلَ الْعَقْدُ نو عقد باطلیږي لِوُجُوْدِ الْافْتِرَاقِ مِنْ غَيْرِ قَبْضٍ ځکه چي [دلته] له قبضه کولو څخه بغیر [د عاقدَینو] سره جلا کېدل موجود سوه وَلَا يُعْتَبَرُ مُفَارَقَةُ الْمُوَكِّلِ او د مؤکل جدایي لره هیڅ اعتبار نسته لِأَنَّهُ لَيْسَ بِعَاقِدٍ ځکه چي هغه عاقد نه دی وَالْمُسْتَحَقُّ بِالْعَقْدِ قَبْضُ الْعَاقِدِ او د عقد [بیع سَلم او بیع صَرف] په وجه چي کومه قبضه واجب ده هغه د عاقد قبضه ده [یعني د دې عقد په صورت کي د عاقد قبضه کول ضروري دي نه د غیرِ عاقد (مؤکل)] وَهُوَ الْوَكِيْلُ او |

عاقد وكيل دى فَيَصِحُّ قَبْضُهُ نو ځکه د هغه قبضه کول به صحيح وي وَإِنْ كَانَ لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ الْحُقُوقُ که څه هم او کیل داسي وي چي] د هغه سره حقوق نه متعلق کیږي كَالصَّبِيِّ وَالْعَبْدِ الْمَحْجُورِ عَلَيْهِ لکه کوچنی او محجور غلام بِخِلَافِ الرَّسُولِ په خلاف د قاصد لِأَنَّ الرِّسَالَةَ فِي الْعَقْدِ لَا فِي الْقَبْضِ ځکه چي قاصد کول په عقد کي واقع کیږي نه په قبضه کي وَيَنْتَقِلُ كَلَامُهُ إِلَى الْمُرْسِلِ او د قاصد کلام د استونکي وطرف ته منتقل کیږي فَصَارَ قَبْضُ الرَّسُولِ قَبْضَ غَيْرِ الْعَاقِدِ نو د قاصد قبضه د غير عاقد قبضه وګرځېده فَلَمْ يَصِحَّ نو ځکه به [د قاصد قبضه] صحيح نه وي.

**اللغات**: ﴿فارق﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: جلا کېدل، جدا کېدل. ﴿محجور﴾ منع کړی سوی، يعني هغه غلام چي مالک له کاروبار او تجارت څخه منع کړی وي. ﴿الرسول﴾ هغه کس کوم چي يې يو څوک د خپل پيغام استولو لپاره بل چا ته واستوي، يعني پيغام رسونکی چي هغه ته قاصد ويل کيږي، ﴿مرسل﴾ استونکی (لېږونکی)، هغه کس کوم چي قاصد واستوي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د بيع صَرف يا د بيع سَلم وکيل چي د کوم چا سره دا عقدونه وکړي او بيا دواړه تر قبضې مخکي يو له بل څخه جلا سي، نو دا عقدونه (سَلم او صَرف) باطليږي؛ دليل دا دی چي په بيع صَرف کي پر دواړو عوضونو د عقد په مجلس کي دننه قبضه کول شرط دي همدارنګه په بيع سَلم کي پر رأسُ المال په مجلس کي دننه قبضه کول شرط دي (چي مسلم إليه به پر هغه قبضه کوي)، حالانکي دلته دواړه عاقدين تر قبضې مخکي سره جلا سوي دي، نو ځکه دا عقدونه باطليږي.

د دې په خلاف که مؤکل تر قبضې مخکي د عقد له مجلس څخه جلا سي (ولاړ سي)، نو په دې سره د عقد پر صحت هيڅ اثر نه لوېږي؛ ځکه چي د دې عقد په وجه فقط پر عاقد قبضه واجبيږي، او عاقد وکيل دی، نه مؤکل، نو ځکه د مؤکل جدايي لره به هيڅ اعتبار نه وي بلکي د وکيل په جدايي سره به عقد باطليږي، او فقط د همدې وکيل قبضه به صحيح او معتبره وي، که څه هم وکيل له هغه کسانو څخه وي چي د عقد حقوق نه ور سره متعلق کيږي، لکه کوچنی او محجور غلام، ځکه چي عاقد (عقد کونکی) وکيل دی، نو ځکه فقط د هغه د قبضې اعتبار به کيږي.

بخلاف الرسول إلخ: د دې حاصل دا دی چي په وکيل او قاصد کي فرق دی، يعني که يو سړی د بيع صرف يا بيع سلم د کولو لپاره يو څوک قاصد جوړ کړي، نو قاصد ته فقط د عقد کولو حق سته، نه د قبضه کولو؛ ځکه چي قاصد فقط د عقد د کولو (منعقد کولو) لپاره جوړول کيږي، نه د قبضه کولو

لیاره، او د قاصد کلام هم د مرسل (استونکي) وطرف ته منتقل کیږي. نو ځکه د رسالت والا په صورت کي به عاقد (عقد کونکی) فقط مرسل وي او د هغه قبضه به معتبره وي. او قاصد به عاقد نه وي او که هغه قبضه وکړي نو دا به د غیر عاقد قبضه وي. او د غیرعاقد یعني له عاقد ځخه بغیر د بل چا قبضه صحیح نه ده. نو ځکه د هغه قبضه کول به صحیح نه وي.

## که وکیل له خپل طرفه ثمن اداء کړي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِذَا دَفَعَ الْوَكِيلُ بِالشِّرَاءِ الثَّمَنَ مِنْ مَالِهِ وَقَبَضَ الْمَبِيعَ فرمايي: او که چيري وکيل بالشراء له خپل مال ځخه ثمن اداء کړي او پر مبيع قبضه وکړي فَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ بِهِ عَلَى الْمُوَكِّلِ نو هغه ته دا حق سته چي له مؤکل ځخه [اداء کړی سوی] ثمن واپس واخلي لِأَنَّهُ انْعَقَدَتْ بَيْنَهُمَا مُبَادَلَةٌ حُكْمِيَّةٌ ځکه چي د وکيل او مؤکل تر مينځ حکماً مبادله منعقد سوې ده وَلِهٰذَا إِذَا اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ او همدا وجه ده چي کله وکيل او مؤکل په ثمن کي اختلاف وکړي يَتَحَالَفَانِ نو دواړه به قسم اخلي وَيَرُدُّ الْمُوَكِّلُ بِالْعَيْبِ عَلَى الْوَكِيلِ [همدارنګه] د عيب په صورت کي به مؤکل وکيل ته مبيع واپس کوي وَقَدْ سَلِمَ الْمُشْتَرٰى لِلْمُوَكِّلِ مِنْ جِهَةِ الْوَكِيلِ او [ځرنګه چي] د وکيل له طرفه مؤکل ته مبيع سپارل سوې ده فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ نو ځکه وکيل به له مؤکل ځخه ثمن واپس اخلي وَلِأَنَّ الْحُقُوقَ لَمَّا كَانَتْ رَاجِعَةً إِلَيْهِ او ځکه کله چي د عقد حقوق د وکيل وطرف ته راجع دي [الکه ځرنګه چي دا معلومه خبره ده] وَقَدْ عَلِمَهُ الْمُوَكِّلُ او مؤکل په هغه خبر [هم] دی يَكُونُ رَاضِيًا بِدَفْعِهِ مِنْ مَالِهِ نو ځکه له خپل مال ځخه د ثمن په اداء کولو به مؤکل راضي وي فَإِنْ هَلَكَ الْمَبِيعُ فِي يَدِهِ قَبْلَ حَبْسِهِ بيا که چيري مبيع د وکيل په قبضه کي هلاکه سي مخکي د هغه له راګرځولو ځخه [يعني که مبيع د وکيل سره وي لېکن هغه د ثمن اخيستلو (ترلاسه کولو) په نيت نه وي راګرځولې او په دې دوران کي هغه هلاکه سي] هَلَكَ مِنْ مَالِ الْمُوَكِّلِ نو هغه د مؤکل له مال ځخه هلاکيږي وَلَمْ يَسْقُطِ الثَّمَنُ او ثمن نه ساقطيږي لِأَنَّ يَدَهُ كَيَدِ الْمُوَكِّلِ ځکه چي د وکيل قبضه د مؤکل د قبضي په څېر ده فَإِذَا لَمْ يَحْبِسْهُ لهذا کله چي وکيل [د ثمن اخيستلو په نيت] مبيع نه راوګرځوي يَصِيرُ الْمُوَكِّلُ قَابِضًا بِيَدِهِ نو د وکيل په قبضه کولو سره به مؤکل [هم] قبضه کونکی ګرځي.

**اللغات**: ﴿شراء﴾ دا لفظ له اضدادو ځخه دی. يعني اصل معنیٰ يې "رانيول" ده لېکن ځيني وخت د "خرڅولو" معنیٰ هم ورکوي. همدارنګه د بيع لفظ هم له اضدادو ځخه دی (مصباح منير). ﴿انعقدت﴾ د

انفعال د باب ماضي ده: منعقد کېدل، تړل کېدل (تړون کېدل)، ﴿يتحالفان﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: يو تر بله قسم سره اخيستل، ﴿يد﴾ قبضه، ﴿حَبْس﴾ د ضرب د باب مصدر دی، د دغه باب اصل معنیٰ ده: منع کول، راګرځول (په خپل قبضه کې يو شی راګرځول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی بل څوک د يو شي د رانيولو وکيل جوړ کړي (چې هغه ته وکيل بالشراء وايي)، بيا دا وکيل بالشراء هغه شی رانيسي او له خپل جېب (خپل مال) څخه ثمن اداء کړي او پر مبيع قبضه وکړي، نو په دې صورت کې وکيل ته دا حق سته چې له مؤکل څخه اداء کړی سوی ثمن واخلي؛ ځکه چې د وکيل بالشراء او د هغه د مؤکل تر مينځ دغه معامله (وکالت) په حقيقت کې حکماً مبادلةُ المال بالمال ده چې په هغه کې وکيل د بائع په څېر دی او مؤکل د مشتري په څېر دی، او تاسو ته معلومه ده که د بيع کولو په صورت کې بائع ومشتري ته مبيع ورکړي او مشتري پر هغه قبضه وکړي نو بائع ته دا حق حاصلېږي چې له مشتري څخه ثمن واخلي، نو همداسې به په دې صورت کې هم حکماً بائع يعني وکيل ته له مشتري يعني له مؤکل څخه د ثمن اخيستلو حق او اختيار وي.

او د دې خبرې دليل "چې د وکيل او مؤکل تر مينځ وکالت حکماً مبادله ده" دا دی چې که چيري د ثمن د مقدار په هکله وکيل او مؤکل اختلاف سره وکړي او د يوه سره هم بيّنه نه وي، نو دواړه به قسم اخلي، همدارنګه که مؤکل په مبيع کې يو عيب ووينې، نو هغه به وکيل ته مبيع واپس کوي لکه څرنګه چې مشتري بائع ته مبيع واپس کوي، او ښکاره خبره ده چې د دواړو قسم اخيستل او د خيار عيب پر بناء وکيل ته مبيع واپس کول د دې خبرې ښکاره دليل دی چې وکالت د دوی تر مينځ حکماً مبادله ده، او په مبادله کې له دواړو طرفونو څخه ورکړه راکړه کيږي (يعني يو طرف والا ثمن ورکوي او بل طرف والا مبيع ورکوي)، لهذا کله چې دلته وکيل پر مبيع قبضه وکړه (او د وکيل قبضې داسې ده لکه د مؤکل قبضه)، نو ځکه اوس به وکيل ته له مؤکل څخه د اداء کړی سوي ثمن د اخيستلو حق او اختيار وي.

دويم دليل دا دی چې په دې صورت کې وکيل متبرّع هم نه دی (يعني هغه له خپل جېب څخه احساناً د ثمن اداء کونکی نه دی)؛ ځکه چې هغه د مؤکل په اجازت سره د مؤکل له طرفه ثمن اداء کړی دی، په دې توګه چې د عقد ټول حقوق د عاقد يعني د وکيل وطرف ته راجع کيږي، او د ثمن ورکول او اخيستل هم د عقد له حقوقو څخه يو حق دی، نو ځکه دا به هم د وکيل وطرف ته راجع کيږي، او څرنګه چې مؤکل په دې خبره بالکل خبر هم دی، نو ځکه د عقد په صورت کې به د وکيل له خپل طرفه اداء کړی سوی ثمن به د مؤکل په اجازت سره وي، او کله چې ثمن د مؤکل په اجازت سره اداء

سوی دی نو وکيل به "د مؤکل له طرفه د ثمن په اداء کولو کي" متبرّع هم نه وي، او کله چي هغه متبرّع (احساناً اداء کونکی) نه دی، نو ځکه هغه ته به له مؤکل څخه د ثمن اخيستلو اختيار وي.

فإن هلك المبيع إلخ: د دې حاصل دا دی که وکيل بالشراء له خپل جيب څخه ثمن اداء کړي او پر مبيع قبضه وکړي، لېکن مؤکل ته له ورسپارلو څخه مخکي هغه مبيع د وکيل په قبضه کي له څه تعدی او تجاوز څخه بغير هلاکه سي، او وکيل هغه د ثمن اخيستلو په نيت هم نه وي را گرځولې، نو په دې صورت کي دا هلاکت د مؤکل له مال څخه شمارل کيږي (يعني گواکي د مؤکل په قبضه کي مبيع هلاکه سوه)، نو ځکه د مبيع تر هلاکېدلو وروسته به هم وکيل ته له مؤکل څخه د خپل هغه ثمن د اخيستلو حق وي کوم چي وکيل د مؤکل له طرفه حقيقي مشتري ته ورکړی دی؛ دليل دا دی چي د وکيل قبضه د مؤکل قبضه شمارل کيږي، او څرنگه چي وکيل د ثمن اخيستلو په وجه مبيع نه ده راگرځولې، نو ځکه د وکيل په قبضه کي به د مبيع هلاکېدل داسي وي لکه د مؤکل په قبضه کي چي هلاکه سوې وي، او که چېري د مؤکل په قبضه کي مبيع هلاکه سي نو بنکاره خبره ده چي د وکيل د ثمن حق نه ختمېږي بلکي د هغه لپاره د ثمن اخيستلو حق باقي پاتېږي او اوس هم هغه ته له مؤکل څخه د ثمن اخيستلو حق او اختيار سته، نو ځکه په دې صورت کي به هم وکيل ته له مؤکل څخه د ثمن اخيستلو حق او اختيار وي.

## د ثمن اخيستلو (تر لاسه کولو) لپاره د مبيع راگرځولو بيان

وَلَهُ أَنْ يَحْبِسَهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الثَّمَنَ او وکيل ته دا حق سته چي مبيع را وگرځوي تر دې چي [له مؤکل څخه] خپل ثمن اخلي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْبَائِعِ مِنَ الْمُوَكِّلِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی چي وکيل پر بائع د خرڅونکی په شېر دی [يعني وکيل حکماً د بائع په شېر دی او مؤکل د مشتري په شېر دی، په بله وينا دا چي وکيل د بائع په حکم کي دی او مؤکل د مشتري په حکم کي دی] وَقَالَ زُفَرُ: لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي وکيل ته د مبيع راگرځولو حق نسته لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ صَارَ قَابِضًا بِيَدِهِ ځکه چي مؤکل د وکيل په قبضه سره قابض وگرځېدی فَكَأَنَّهُ سَلَّمَهُ إِلَيْهِ نو گواکي وکيل مؤکل ته مبيع وسپارله فَيَسْقُطُ حَقُّ الْحَبْسِ نو ځکه د راگرځولو حق به ساقطيږي قُلْنَا: هٰذَا لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ موږ [په جواب کي] وايو: چي دا يو داسي شی دی چي له هغه څخه ځان ساتل [محفوظ کېدل] ممکن نه دي فَلَا يَكُونُ رَاضِيًا بِسُقُوطِ حَقِّهِ فِي الْحَبْسِ نو ځکه [د مبيع] راگرځولو په

هکله به وکیل د خپل حق په ساقطولو راضي نه وي عَلٰى أَنَّ قَبْضَهُ مَوْقُوفٌ سره د دې چې د وکیل قبضه موقوف [هم] ده فَيَقَعُ لِلْمُوَكِّلِ إِنْ لَمْ يَحْبِسْهُ [ځکه] که چیرې هغه مبیع نه راوګرځوي نو دا قبضه به د مؤکل لپاره واقع کیږي وَلِنَفْسِهِ عِنْدَ حَبْسِهِ او د راګرځولو په صورت کې به د وکیل د خپل ځان لپاره واقع کیږي.

**اللغات**: ﴿یستوفي﴾ د استفعال د باب مضارع ده: (خپل حق) اخیستل، ترلاسه کول، وصولول.

﴿الحبس﴾ د ضرب مصدر دی: منع کول، راګرځول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مؤکل تر اوسه وکیل ته ثمن نه وي ورکړی، نو وکیل ته دا حق سته چې د خپل ثمن ترلاسه کولو لپاره مبیع د ځان سره راوګرځوي او له مؤکل څخه یې منع کړي؛ دلیل دا دی چې وکیل حکماً د بائع په څېر دی او مؤکل د مشتري په څېر دی او د دوی په مینځ کې حکماً مبادله سوې ده، لهذا څرنګه چې په مبادلۀ حقیقي کې له ثمن اخیستلو څخه مخکې بائع ته د مبیع راګرځولو حق سته، همداسې به په مبادلۀ حکمي کې هم له ثمن اخیستلو څخه مخکې وکیل ته د مبیع راګرځولو حق او اختیار وي.

د دې په خلاف امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي چې وکیل ته د مبیع راګرځولو حق نسته؛ دلیل یې دا دی چې د وکیل قبضه د مؤکل قبضه شمېرل سوې ده (لکه مخکې چې هم ضمناً ذکر سوه)، لهذا کله چې د وکیل قبضه د مؤکل د قبضې په څېر ده، نو داسې سوه لکه وکیل چې مؤکل ته حکماً مبیع وسپارله، او تاسو ته به معلومه وي که چیرې وکیل مؤکل ته مبیع وسپاري نو د هغه د راګرځولو حق (حقُ الحبس) ساقطیږي، نو ځکه د حکماً ورسپارلو په صورت کې به هم د وکیل حقُ الحبس ساقطیږي.

قلنا إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله جواباً فرمایي چې د امام زفر رَحِمَهُ الله بیان سوی قول او دلیل موږ ته تسلیم نه دی؛ ځکه چې د وکیل قبضه د مؤکل د قبضې په څېر شمېرل یو غیر اختیاري شی دی چې له هغه څخه ځان ساتل (محفوظ کېدل) ناممکن دي، او د غیرِ اختیاري شي په وجه د یو چا ثابت سوی حق او اختیار نه ساقطیږي، نو ځکه د وکیل قبضه د مؤکل د قبضې په څېر کېدلو او شمېرلو په وجه د هغه د راګرځولو حق (حقُ الحبس) نه سي ساقطول کېدای.

علٰى أن إلخ: د حقُ الحبس نه ساقطېدلو دویم دلیل دا دی چې د وکیل قبضه علی الإطلاق د مؤکل د قبضې په څېر نه ده، بلکې په دې کې څه تفصیل دی او هغه دا دی چې د وکیل قبضه ابتداءً موقوف پاتیږي، یعني که وکیل تر قبضې وروسته د ثمن اخیستلو (ترلاسه کولو) په نیت مبیع راوګرځوي نو

دا قبضه د هغه د خپل ځان لپاره شمارل کيږي، او که چيري په دې نيت سره يې نه را وګرځوي نو بيا هغه قبضه د مؤکل لپاره (او د مؤکل د قبضې په څير) شمارل کيږي؛ نو ځکه په شروع کې د وکيل قبضه موقوف پاتيږي، او په موقوف شي سره د هيڅ حق هم نه ساقطيږي، نو ځکه په دې حواله سره به هم د وکيل د راګرځولو حق (حقُ الحبس) نه ساقطيږي او د ثمن ترلاسه کولو لپاره به هغه ته د مبيع راګرځولو پوره حق او اختيار وي.

## د وکيل په قبضه کې د مبيع هلاکېدلو حکم

فَإِنْ حَبَسَهُ فَهَلَكَ نو که چيري وکيل [د خپل ثمن اخيستلو لپاره] مبيع راوګرځوي بيا هغه هلاکه سي كَانَ مَضْمُونًا ضَمَانَ الرَّهْنِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز دا مبيع د رهن د ضمان په څير مضمون کيږي [يعني درهن د ضمان په څير يې ضمان واجبيږي] وَضَمَانَ الْبَيْعِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د بيع د ضمان په څير مضمون کيږي وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ او همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی [يعني د طرفينو (امام صاحب او امام محمد رَحِمَهُمَا الله) په نيز د بيع د ضمان په څير مضمون کيږي] وَضَمَانَ الْغَصْبِ عِنْدَ زُفَرَ* او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز د غصب د ضمان په څير مضمون کيږي لِأَنَّهُ مَنْعٌ بِغَيْرِ حَقٍّ ځکه چې راګرځول [حبس] په ناحقه توګه منع کول دي [مطلب دا چې وکيل په ناحقه (بغير له حقه) مبيع راګرځولې ده] لَهُمَا: أَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْبَائِعِ مِنْهُ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې وکيل پر مؤکل د خرڅونکي په څير دی [يعني وکيل حکماً د بائع په څير دی] فَكَانَ حَبْسُهُ لِاسْتِيفَاءِ الثَّمَنِ نو د وکيل له طرفه [د مبيع] راګرځول به د ثمن اخيستلو [ترلاسه کولو] لپاره وي [لکه څرنګه چې بائع د ثمن اخيستلو لپاره مبيع راګرځوي] فَيَسْقُطُ بِهَلَاكِهِ نو ځکه د مبيع په هلاکېدلو سره به ثمن ساقطيږي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ مَضْمُونٌ بِالْحَبْسِ لِلِاسْتِيفَاءِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې مبيع د ثمن اخيستلو لپاره د راګرځولو په وجه مضمون سوې ده بَعْدَ أَنْ

---

* القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في العنايه (ج:۷، ص:۳۸)، والبحر الرائق (ج:۷، ص:۱۵۶)، وكذا قال العلامة فخر الدين قاضي خان:...وإن هلك بعد الحبس، يسقط بالثمن ويسقط الثمن عن الموكل في قول أبي حنيفة (الخانيه ج:۳، ص:۱۶۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۵۲]

لَمْ يَكُنْ حال دا چي تر اوسه هغه مضمون نه وه وَهُوَ الرَّهْنُ بِعَيْنِهِ او بعينه همدا د رهن معنیٰ ده [يعني د رهن صورت بعينه همداسي دی] بِخِلَافِ الْمَبِيْعِ په خلاف د مبيع لِأَنَّ الْبَيْعَ يَنْفَسِخُ بِهَلَاكِهِ ځکه چي د مبيع په هلاکېدلو سره بيع فسخ کيږي وَهٰهُنَا لَا يَنْفَسِخُ أَصْلُ الْعَقْدِ او دلته اصل عقد نه فسخ کيږي قُلْنَا: يَنْفَسِخُ فِي حَقِّ الْمُوَكِّلِ وَالْوَكِيْلِ موږ [په جواب کي] وايو: چي د مؤکل او وکيل په حق کي عقد فسخ کيږي كَمَا إِذَا رَدَّهُ الْمُوَكِّلُ بِعَيْبٍ وَرَضِيَ الْوَكِيْلُ بِهِ لکه په هغه صورت کي [چي فسخ کيږي] کله چي مؤکل د عيب په وجه مبيع واپس کړي او وکيل په هغه راضي سي.

**اللغات**: ﴿حبسه﴾ د ضرب د باب ماضي ده: منع کول، راګرځول، ﴿اسـتيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: اخيستل، ترلاسه کول، ﴿مضمون﴾، د سمع د باب مفعول دی: د کوم شي ضمان (تاوان) چي پر ذمه واجب وي هغه ته "مضمون" وايي، (مضمون کيږي يعني ضمان يې واجبيږي)، ﴿ضمان الرهن﴾ د مرهون شي ضمان، د دې تفصيل دا دی چي کله مرهون شی د مرتهن په قبضه کي هلاک شي، نو دې ته به کتل کيږي چي د مرهون شي قيمت څومره وو، او قرض څومره وو، بيا به د مرهون شي د قيمت په بدله کي قرض ساقطول کيږي، او تر ساقطولو وروسته که د قرض څه مقدار زائد پاته سي هغه به پر راهن واجب پاته وي او مرتهن به هغه له راهن څخه اخلي، مثلاً قرض دوه نيم سوه روپۍ وي او د مرهون شي قيمت دوه سوه روپۍ وي، بيا مرهون شی د مرتهن په قبضه کي هلاک سي، نو دوه سوه قرض به د دوه سو قيمت په بدله کي ساقطيږي او کوم پنځوس درهمه قرض چي زائد پاته سو، هغه به پر راهن واجب وي او مرتهن به هغه له راهن څخه اخلي، او که چيري قرض کم وي او د مرهون شي قيمت زيات وي، مثلاً قرض دوه سوه روپۍ وي او د مرهون شي قيمت دوه نيم سوه روپۍ وي، نو دوه سوه قرض به د دوه سوه قيمت په بدله کي ساقطيږي او د قيمت کوم مقدار چي زائد پاته سو، راهن هغه له مرتهن څخه نه سي اخيستلای يعني هغه پر مرتهن نه واجبيږي، ځکه چي پاته زائد مقدار د مرتهن سره د امانت په توګه دی، او د امانت هيڅ ضمان (تاوان) نه واجبيږي، نو ځکه پر مرتهن به د مرهون شي د قيمت زائد مقدار واجب نه وي، ﴿الثمن﴾ "ثمن" د شي هغه قيمت ته وايي کوم چي د بائع او مشتري تر مينځ و تاکل سي (يعني دوکاندار او مشتري چي دواړه پر کوم قيمت اتفاق او بيع وکړي او مشتري په هغه سره شی رانيسي، داسي قيمت ته ثمن وايي)، او د شي بازاري قيمت او نرخ ته "قيمة" وايي، (يعني په بازار کي چي په عامه توګه ديو شي کوم نرخ وي، هغه ته قيمت وايي)، ﴿ينفسخ﴾ د انفعال د باب مضارع ده: فسخ کېدل، ماتېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که وکيل د خپل ثمن اخيستلو (ترلاسه کولو) په نيت د ځان سره مبيع راګرځولې وي او په دې دوران کې هغه هلاکه سي، نو د مبيع ضمان (تاوان) واجبيږي، لېکن کوم ضمان يې واجبيږي؟ په دې باره کې د امامانو اختلاف دی، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د رهن ضمان واجبيږي، يعني د مبيع ثمن او د هغه بازاري قيمت ته به کتل کيږي چې د مبيع خپل ثمن څومره دی او د مبيع بازاري قيمت څومره دی، بيا به بازاري قيمت ساقطول کيږي. نو که د بازاري قيمت تر ساقطولو وروسته د ثمن څه مقدار زائد پاته سي (يعني ثمن تر بازاري قيمت زيات وي) نو هغه زائد مقدار به پر مؤکل د وکيل لپاره واجبيږي ، مثلاً که د مبيع بازاري قيمت (نرخ) دوه سوه روپۍ وي او وکيل هغه په دوه نيم سوه روپۍ (ثمن) رانيولې وي، نو بازاري قيمت يعني دوه سوه روپۍ به ساقطيږي او اوس چې د ثمن کوم مقدار زائد پاته سو يعني پنځوس روپۍ، هغه به پر مؤکل واجب وي او وکيل به هغه له مؤکل څخه اخلي (د بازاري قيمت د زياتېدلو يا کمېدلو نور حساب خپله ورته وکړئ! چې تر څه غور او فکر وروسته به تاسو ته خپله معلوم سي).

**وضمان البيع عند محمد إلخ:** فرمايي چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دا مبيع (يعني د وکيل قبضه کي هلاکه سوې مبيع) د بيع د ضمان په څېر مضمون کيږي، يعني لکه کله چې مبيع د بائع سره هلاکه سي نو له مشتري څخه د هغه ثمن ساقطيږي او تر دې وروسته بائع له هغه څخه هيڅ ثمن نه سي اخيستلای برابره ده د مبيع بازاري قيمت (نرخ) له ثمن څخه کم وي او که زيات وي، همداسي به په دې مسئله کي هم د مؤکل له ذمې څخه ثمن ساقطيږي او وکيل به له هغه څخه هيڅ ثمن نه سي اخيستلای برابره ده د مبيع بازاري قيمت له ثمن څخه کم وي او که زيات وي، او همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول هم دی.

**وضمان الغصب إلخ:** د دې حاصل دا دی چې د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز دا مبيع د غصب د ضمان په څېر مضمون کيږي، يعني که مبيع له ذواتُ الامثال څخه وي نو پر وکيل د هغه مثل واجبيږي او پر مؤکل ثمن واجبيږي، او که مبيع له ذواتُ القيم څخه وي نو پر وکيل د هغه بازاري قيمت (نرخ) واجبيږي. نو که د مبيع بازاري قيمت کم وي او د هغه ثمن زيات وي، مثلاً د مبيع بازاري قيمت دوه سوه روپۍ وي او ثمن دوه نيم سوه روپۍ وي، نو له قيمت څخه زائد مقدار يعني پنځوس روپۍ به وکيل له مؤکل څخه اخلي. او که بازاري قيمت زيات وي مثلاً هغه دوه نيم سوه روپۍ وي او ثمن دوه سوه روپۍ وي نو له ثمن څخه زائد مقدار به يعني پنځوس روپۍ به مؤکل له وکيل څخه اخلي. (اشرف الهدايه بحواله شرح الوقايه)

**د امام زفر دليل:** دا دی چي وکيل په نا حقه توګه مبيع راګرځولې ده؛ ځکه د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز پر مبيع د وکيل قبضه کول داسي دي لکه مؤکل چي قبضه پر کړې وي ، نو ځکه وکيل ته د مبيع راګرځولو حق نسته، او کله چي وکيل ته د دې حق نسته نو بيا پر مبيع د هغه قبضه کول او راګرځول نا حق دي، او پر يو شي نا حقه قبضه کول داسي وي لکه هغه غصب کول، او تاسو ته به معلومه وي چي که مغصوب شی د غاصب په قبضه کي هلاک سي، نو پر هغه د غصب ضمان واجبيږي، همداسي به په دې مسئله کي هم پر وکيل د غصب ضمان واجب وي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چي د وکيل او مؤکل تر مينځ حکماً بيع سوې ده، چي په هغه کي وکيل د بائع او مؤکل د مشتري په ځېر دی، او دا ښکاره خبره ده چي که د بيع په وخت کي مشتري ثمن اداء نه کړي نو بائع ته د مبيع راګرځولو حق سته او که مبيع د بائع سره هلاکه سي نو د مشتري له ذمې څخه ثمن ساقطيږي، نو همداسي به په دې مسئله کي هم د مؤکل (حکماً مشتري) له ذمې څخه ثمن ساقطيږي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي کله د ثمن اخيستلو په نيت مبيع راوګرځول سي نو هغه مضمون وګرځي او تر دې نيت مخکي مبيع مضمون نه وي (لکه څرنګه چي دا هم يو ښکاره خبره ده)، نو څرنګه چي د ثمن اخيستلو په نيت مبيع راګرځول مبيع مضمون ګرځوي، همداسي د قرض اخيستلو په نيت رهن يعني مرهون شی راګرځول هم مرهون شی مضمون ګرځوي، او کله چي دا مبيع د مرهون شي په ځېر ده، نو څرنګه چي د مرهون شي د هلاکېدلو په صورت کي د رهن ضمان واجبيږي، همداسي به د دې مبيع د هلاکېدلو په صورت کي هم د رهن ضمان واجبيږي.

بخلاف المبيع إلخ: په دې سره د طرفينو رَحِمَهُمَا الله د قياس جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي دا مبيع (کوم چي د وکيل په قبضه کي هلاکه سوې ده) د بيع والا پر مبيع قياسول صحيح نه دي، ځکه چي دا مبيع بالکل د بيع د مبيع په ځېر نه ده، ځکه چي د بيع د مبيع په هلاکېدلو سره عقد (بيع) فسخ کيږي لېکن د وکالت د مبيع په هلاکېدلو سره اصل عقد نه فسخ کيږي يعني کوم عقد چي د وکيل او بائع په مينځ کي واقع سوی دی هغه نه فسخ کيږي، نو ځکه دا مبيع د بيع پر مبيع قياسول صحيح نه دي.

لېکن صاحب د هدايي رَحِمَهُ الله د دې جواب دا ورکړی دی چي د وکيل په قبضه کي د مبيع د هلاکېدلو په صورت کي که څه هم د وکيل او بائع په مينځ کي عقد نه فسخ کيږي لېکن د وکيل او مؤکل په مينځ کي عقد (وکالت) فسخ کيږي، لکه څرنګه چي په هغه وخت کي فسخ کيږي کله چي مؤکل په مبيع کي يو عيب ووينې او د خيار عيب پر بناء مؤکل هغه مبيع وکيل ته واپس کړي او وکيل په خپل خوښه او رضا سره هغه قبوله کړي (نو دلته هم د وکيل او مؤکل په مينځ کي عقد فسخ کيږي)

حال دا چي دلته د وکيل او بائع په مينځ کي عقد نه دی فسخ سوی، او تاسو ته به معلومه وي چي وکيل او مؤکل هم د بائع او مشتري په څېر دي، نو ځکه د دوی په مينځ کي عقد فسخ کېدل داسي دي لکه د بائع او مشتري په مينځ کي عقد فسخ کېدل، نو په دې حواله سره د وکالت او بيع په مبيع کي مماثلت موجود دی (يعني په دې حواله سره د وکالت مبيع داسي ده لکه د بيع مبيع)، نو ځکه د وکالت مبيع به د هلاکېدلو په صورت کي د بيع د مبيع په څېر مضمون کېږي.

## د توکيل او وکيل په فعل کي د مخالفت بيان

قَالَ: وَإِذَا وَكَّلَهُ بِشِرَاءِ عَشَرَةِ أَرْطَالِ لَحْمٍ بِدِرْهَمٍ فرمايي: او که مؤکل يو څوک په يوه درهم سره د لس رطله غوښو د رانيولو وکيل جوړ کړي فَاشْتَرَى عِشْرِينَ رِطْلًا بِدِرْهَمٍ مِنْ لَحْمٍ يُبَاعُ مِنْهُ عَشَرَةُ أَرْطَالٍ بِدِرْهَمٍ بيا وکيل په يوه درهم سره شل رطله داسي غوښه رانيسي چي د هغه لس رطله په يوه درهم خرڅيږي [يعني په بازار کي په يوه درهم داسي لس رطله غوښه کيږي] لَزِمَ الْمُوَكِّلَ مِنْهُ عَشَرَةٌ بِنِصْفِ دِرْهَمٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له دې [شل رطله] غوښو څخه پر مؤکل لس رطله غوښه د نيم درهم په عوض کي لازميږي وَقَالَا ●: يَلْزَمُهُ الْعِشْرُونَ بِدِرْهَمٍ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي شل رطله غوښه [ټوله] پر مؤکل د يوه درهم په عوض کي لازميږي وَذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ قَوْلُ مُحَمَّدٍ مَعَ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ او په بعضي نسخو کي د امام محمد رَحِمَهُ الله قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره ذکر سوی دی وَمُحَمَّدٌ لَمْ يَذْكُرِ الْخِلَافَ فِي الْأَصْلِ او امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي اختلاف نه دی ذکر کړی لِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ أَمَرَهُ بِصَرْفِ الدِّرْهَمِ فِي اللَّحْمِ وَظَنَّ أَنَّ سِعْرَهُ عَشَرَةُ أَرْطَالٍ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مؤکل دغه وکيل ته په غوښو کي د يوه درهم د خرڅولو حکم کړی دی او مؤکل دا ګومان کړی دی چي د هغه نرخ لس رطله دی [يعني د هغه خيال دا دی چي په يوه درهم لس رطله غوښه کيږي] فَإِذَا اشْتَرَى بِهِ عِشْرِينَ لېکن کله چي وکيل په يوه درهم سره شل رطله رانيوله فَقَدْ زَادَهُ خَيْرًا نو وکيل د مؤکل لپاره د خير اضافه وکړه [مطلب دا چي د هغه سره يې ډېر ښه لو نېکي وکړه] وَصَارَ كَمَا إِذَا وَكَّلَهُ بِبَيْعِ عَبْدِهِ بِأَلْفٍ او دا داسي سوه لکه مؤکل چي يو څوک په زر

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن قوله قول المتون، كما ذكر في الكنز (ص:٢٦٩)، وكذا في تنوير الأبصار (ج:٤، ص:٣٢٩). [القول الراجح ج:٢، ص: ١٥٢]

درهمه سره د خپل غلام د خرڅولو وکیل جوړ کړي فَبَاعَهُ بِأَلْفَيْنِ او وکیل هغه په دوه زره درهمه خرڅ کړي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ أَمَرَهُ بِشِرَاءِ عَشَرَةِ أَرْطَالٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي مؤکل وکیل ته [فقط] د لس رطله غوښو د رانیولو حکم کړی دی وَلَمْ يَأْمُرْهُ بِشِرَاءِ الزِّيَادَةِ او هغه ته يې اله دې څخه [د زیات مقدار د رانیولو حکم نه دی فَيَنْفُذُ شِرَاؤُهَا عَلَيْهِ وَشِرَاءُ الْعَشَرَةِ عَلَى الْمُوَكِّلِ نو ځکه د زائد مقدار رانیول [بیع] به پر وکیل نافذیږي او د لس رطلو رانیول به پر مؤکل نافذیږي بِخِلَافِ مَا اسْتَشْهَدَ بِهِ په خلاف د هغه مثال چي په هغه سره امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله استشهاد کړی دی [یعني چي په هغه سره امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل نیولی دی] لِأَنَّ الزِّيَادَةَ هُنَاكَ بَدَلُ مِلْكِ الْمُوَكِّلِ ځکه چي هلته زائد مقدار د مؤکل د ملکیت بدل دی فَيَكُونُ لَهُ نو ځکه هغه به د مؤکل لپاره وي بِخِلَافِ مَا إِذَا اشْتَرَى مَا يُسَاوِي عِشْرِينَ رِطْلًا بِدِرْهَمٍ په خلاف د هغه صورت کله چي وکیل په یوه درهم شل رطله داسي غوښه رانیولې وي کوم چي د یوه درهم په عوض کي د شل رطلو سره برابره وي حَيْثُ يَصِيرُ مُشْتَرِيًا لِنَفْسِهِ بِالْإِجْمَاعِ نو [په دې صورت کي] وکیل بالاتفاق د خپل ځان لپاره رانیونکی ګرځي لِأَنَّ الْأَمْرَ يَتَنَاوَلُ السَّمِينَ وَهٰذَا مَهْزُولٌ ځکه چي [د مؤکل] حکم د چاغ څاروي [غوښو] لره شامل دي او دا د ډنګر څاروي [غوښې] دي فَلَمْ يَحْصُلْ مَقْصُودُ الْآمِرِ نو ځکه د حکم کونکي [مؤکل] مقصود حاصل نه سو [حال دا چي په وکالت سره د مؤکل هدف همدا دی چي په دې سره د هغه مقصود حاصل سي].

**اللغات**: ﴿أرطال﴾ جمع د رِطْلٌ ده: یو خاص قسم وزن دی کوم چي تقریباً نیم کیلو کیږي، او د ګرام په حساب سره (۴۴۲) ګرامه کیږي (اثمار الهدایه)، ﴿سعر﴾ نرخ، رېټ، ﴿سمين﴾ چاغ (غوښور)، ﴿مهزول﴾ ډنګر. (احسن الهدایه)

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو څوک بل سړی د ځان وکیل جوړ کړي او هغه ته ووایي چي "د دې یوه درهم په عوض کي ما ته لس رطله غوښه رانیسه!"، او وکیل د یوه درهم په عوض کي شل رطله غوښه رانیسي، نو د دې مسئلې دوه صورتونه دي: ① یو دا چي رانیول سوې غوښه به د چاغ څاروي نه او تازه غوښه وي چي داسي غوښه په یوه درهم فقط لس رطله کیږي (یعني قصابان په یوه درهم هغسې لس رطله غوښه ورکوي، نه شل رطله)، لیکن وکیل په خپل چالاکي سره د لسو پر ځای شل

رطله رانيولې وي، ② دويم دا چي هغه به د ډېر ښاروي کمزورې غوښه وي چي هغه په يوه درهم شل رطله کيږي.

که چيري اول صورت وي يعني هغه خوندوره غوښه وي چي په يوه درهم فقط لس رطله کيږي لېکن وکيل له يو ساده او ناخبره کس ځخه په يوه درهم شل رطله رانيولې وي، نو په دې صورت کې د امامانو مختلفه قولونه دي چي آيا دا بيع (رانيول سوې غوښه) پر مؤکل لازميږي، که نه؟، امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې صورت کي پر مؤکل د نيمايي غوښو بيع لازميږي يعني هغه به د نيم درهم په عوض کي له وکيل ځخه لس رطله غوښه اخلي او د پاته لس رطله غوښو بيع پر وکيل لازميږي يعني هغه به وکيل اخلي.

امام ابو يوسف او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي د پوره شل رطله غوښو بيع پر مؤکل لازميږي، يعني مؤکل به له وکيل ځخه د هغه يوه درهم په عوض کي ټوله غوښه اخلي.

وذكر في بعض النسخ إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د قدوري په بعضي نسخو کي د امام محمد رَحِمَهُ الله قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره ذکر سوی دی، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله په خپل کتاب "مسبوط" کي هيڅ اختلاف نه دی ذکر کړی، نو د قدوي د نسخو په اعتبار سره د امام محمد رَحِمَهُ الله قول مضطرب معلوميږي، همدا وجه ده چي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دليل بيانولو په وخت کي صرف "وَلِأَبِي يُوسُف" ويلي دي او د امام محمد رَحِمَهُ الله نوم يې نه دی ذکر کړی.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي دلته مؤکل هغه سړی ديوه درهم غوښو د رانيولو لپاره وکيل جوړ کړی دی او د مؤکل خيال او گومان دا دی چي په يوه درهم لس رطله غوښه کيږي، لېکن کله چي وکيل په يوه درهم شل رطله خوندوره غوښه رانيوله، نو دا هغه د مؤکل سره ډېره ښه او زياته نېکي وکړه، نه بد، نو ځکه د وکيل دا فعل د مؤکل حکم عَين مطابق سو، او کله چي د وکيل فعل د مؤکل د حکم مطابق او موافق دی، نو ښکاره خبره ده چي پر مؤکل به د هغه ټولو غوښو بيع لازم وي.

د دې مثال دا دی لکه مؤکل چي يو سړی د غلام خرڅولو وکيل جوړ کړي چي زما غلام په زر درهمه خرڅ کړه!، او وکيل هغه غلام په دوه زره درهمه خرڅ کړي، نو دا بيع بالاتفاق د مؤکل په حق کي لازميږي؛ ځکه چي په دې کي د مؤکل ښکاره نفع ده او هيڅ نقصان يې نسته، او ځرنگه چي په پورتني صورت کي هم د مؤکل ښکاره نفع ده او هيڅ نقصان يې نسته، نو ځکه ديوه درهم په عوض کي به د پوره شل رطله غوښو بيع پر مؤکل لازم وي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي مؤکل وکيل فقط د لس رطله غوښو د رانيولو وکيل جوړ کړی دی، نو ځکه د زياتو غوښو په رانيولو سره وکيل په زائد مقدار کي د مؤکل د حکم مخالفت وکړی، نو ځکه د زائد مقدار اخيستل به پر مؤکل لازم نه وي، ها! څرنگه چي د لس رطله غوښو په بيع کي وکيل د مؤکل د حکم موافقت کړی دی، نو ځکه د نيم درهم په عوض کي به د لس رطله غوښو اخيستل پر مؤکل لازم وي.

**بخلاف ما استشهد إلخ**: فرمايي په کوم مثال سره چي امام ابويوسف رَحِمَهُ الله دليل نيولی دی (يعني په زر درهمو سره د غلام خرڅولو وکيل جوړول) هغه مثال د پورتنۍ مسئلې سره مناسبت نه لري؛ ځکه چي په دې مثال کي زائد مقدار يعني زر درهمه (او ټوله دوه زره درهمه) په دې وجه پر مؤکل لازم دي، ځکه چي هغه فقط د مؤکل د ملکيت يعني د غلام بدل دی، نو ځکه فقط مؤکل به د هغه مستحق وي، نه وکيل، لهذا د دې مثال په ذريعه به د پورتنۍ مسئلې په باره کي دليل صحيح نه وي.

**بخلاف ما إذا اشترى إلخ**: له دې ځايه هغه دويم صورت بيانوي کوم چي موږ په شروع کي ذکر کړی، حاصل يې دا دی که وکيل د يوه درهم په عوض کي داسي شل رطله غوښه رانيولې وي کوم چي د يو ډنگر څاروي کمزورې غوښه وي چي هغه په يوه درهم شل رطله هم په آساني سره پيدا کېدای سي، نو په دې صورت کي بالاتفاق دا بيع پر وکيل لازميږي او پر مؤکل د يوې ټوټې بيع هم نه لازميږي؛ ځکه چي په دې صورت کي وکيل په هر اعتبار سره د مؤکل د حکم مخالفت کړی دی او د مؤکل مقصود نه دی حاصل سوی، نو ځکه دا ټوله غوښه به فقط وکيل خوري او پر مؤکل به هغه نه لازمول کيږي.

## د وکالت شی د خپل ځان لپاره رانيول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَلَوْ وَكَّلَهُ بِشِرَاءِ شَيْءٍ بِعَيْنِهِ فرمايي: او که مؤکل يو څوک د يو مُعيّن شي د رانيولو وکيل جوړ کړي فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَهُ لِنَفْسِهِ نو د هغه لپاره جائز نه دي چي دا شی د ځان لپاره رانيسي لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى تَغْرِيرِ الْآمِرِ ځکه چي دا مؤکل ته د دوکه ورکولو سبب جوړيږي [يعني دا مؤکل ته دوکه ورکول دي] حَيْثُ اعْتَمَدَ عَلَيْهِ ځکه چي مؤکل پر هغه [وکيل] اعتماد کړی دی وَلِأَنَّ فِيهِ عَزْلَ نَفْسِهِ او ځکه چي په دې کي [د وکيل] د خپل ځان معزوله کول سته وَلَا يَمْلِكُهُ "عَلَى مَا قِيلَ" إِلَّا بِمَحْضَرٍ مِنَ الْمُوَكِّلِ حال دا چي وکيل د دې ملکيت [اختيار] نه لري (لکه څرنگه چي ويل سوي دي) مگر د مؤکل په موجوديت کي [يعني د مؤکل له حضور څخه بغير وکيل ته دا اختيار نسته چي خپل ځان له وکالت

شخه معزوله کړي] فَلَوْ كَانَ الثَّمَنُ مُسَمًّى او که چیري ثمن متعن سوی [ذکر سوی] وي فَاشْتَرَى بِخِلَافِ جِنْسِهِ بیا مشتري د هغه ثمن د جنس په خلاف سره [شی] رانیسي أَوْ لَمْ يَكُنْ مُسَمًّى یا ثمن مُتعیّن سوی نه وي فَاشْتَرَى بِغَيْرِ النُّقُودِ او وکیل له نقودو شخه بغیر په بل شي سره [شی] رانیسي أَوْ وَكَّلَ وَكِيلًا بِشِرَائِهِ یا وکیل بل شوک د هغه شي د رانیولو وکیل جوړ کړي فَاشْتَرَى الثَّانِي وَهُوَ غَائِبٌ او دویم وکیل په داسي حال کي هغه رانیسي چي اول وکیل غائب وي يَثْبُتُ الْمِلْكُ لِلْوَكِيلِ الْأَوَّلِ فِي هٰذِهِ الْوُجُوهِ نو په دې [ټولو] صورتونو کي د اول وکیل لپاره ملکیت ثابتیږي لِأَنَّهُ خَالَفَ أَمْرَ الْآمِرِ ځکه وکیل د مؤکل د حکم مخالفت وکړی فَنَفَذَ عَلَيْهِ نو ځکه دا رانیول [بیع] به پر هغه نافذیږي وَلَوِ اشْتَرَى الثَّانِي بِحَضْرَةِ الْوَكِيلِ الْأَوَّلِ او که چیري دویم وکیل د اول وکیل په موجودیت کي هغه شی رانیسي نَفَذَ عَلَى الْمُوَكِّلِ الْأَوَّلِ نو دا رانیول [بیع] به پر اول مؤکل نافذیږي لِأَنَّهُ حَضَرَهُ رَأْيُهُ ځکه چي په دې رانیولو کي د اول وکیل رایه شامله سوه فَلَمْ يَكُنْ مُخَالِفًا نو ځکه هغه به [د مؤکل د حکم] مخالفت کونکی نه وي.

**اللغات**: ﴿بعینه﴾ په مُعیّنه توګه هغه، ﴿تغریر﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: دوکه ورکول. - ﴿مُسمّٰی﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: نومول سوی، ذکر سوی، ټاکل سوی، مُتعیّن. ﴿وجوه﴾ جمع د وَجْهٌ ده. د دې لفظ ځو معناوي دي چي له هغه ځخه یو معنیٰ د "صورت" ده. ﴿نُقود﴾ نغدي سکې کوم چي په ښار کي رائج وي، لکه دراهم او دنانیر، یا مثلاً زموږ په ښارو کي افغانی او کلداري. ﴿حضر﴾ د نصر د باب ماضي ده: حاضرېدل، راتلل، مراد: شاملېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که خالد دیو مُتعیّن شي د رانیولو لپاره زید وکیل جوړ کړي (مثلاً زید ته ووایي چي زما لپاره خاص دغه پُسه رانیسه!)، نو د وکیل یعني د زید لپاره دا جائز نه دي چي هغه شی (متعیّن پُسه) د خپل ځان لپاره رانیسي؛ دلیل دا دی چي مؤکل پر وکیل اعتماد کړی دی او اعتماداً یې هغه د دې شي د رانیولو وکیل جوړ کړی دی، لهذا اوس که وکیل هغه شی د ځان لپاره رانیسي نو ښکاره خبره ده چي هغه به مؤکل ته دوکه ورکونکی وګرځي، او د هیڅ مسلمان لپاره دا جائز نه دي چي بل مسلمان ته دوکه ورکړي، نو ځکه د وکیل لپاره دا جائز نه دي چي هغه مُتعیّن شی د ځان لپاره رانیسي.

دویم دلیل دا دی چي مؤکل (خالد) د یو مُتعیّن شي د رانیولو لپاره هغه (زید) وکیل جوړ کړی دی، اوس که وکیل هغه د ځان لپاره رانیسي نو هغه به (له وکالت څخه) د خپل ځان معزوله کونکی وګرځي (یعني ګواکي هغه خپل ځان د مؤکل له وکالت څخه ویستی او وکالت یې ختم کړی)، حال دا چي د وکیل لپاره دا صحیح نه دي چي د مؤکل په ناموجودیت کي خپل ځان معزوله کړي، لېکن که مؤکل په هغه مجلس کي موجود او حاضر وي نو بیا د مؤکل په موجودیت کي د وکیل لپاره دا جائز دي چي هغه مُتعیّن شی د ځان لپاره رانیسي؛ ځکه که څه هم د ځان لپاره د رانیولو په وجه هغه (له وکالت څخه) خپل ځان معزوله کوي، خو څرنګه چي د هغه دا کار د مؤکل په موجودیت کي واقع کیږي، نو ځکه جائز او صحیح دی.

فلوکان الثمن إلخ: د دې حاصل دا دی چي که خالد په مُتعیّن ثمن سره زید د یو شي د رانیولو وکیل جوړ کړي، او وکیل (زید) د هغه پر ځای بل ثمن ورکړي چي د هغه جنس د مؤکل د ذکر سوي ثمن له جنس څخه مختلف وي، مثلاً مؤکل (خالد) ویلي وي چي ته په دوه‌وه دراهمو سره فلانکی شی رانیسه!، لېکن وکیل په دنانیرو سره شی رانیسي، نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي وکیل د امر یعني د مؤکل د حکم مخالفت وکړی، نو ځکه دا بیع (رانیول سوی شی) به د وکیل لپاره وي او د مؤکل پر ذمه به نه لازمیږي.

همدارنګه که مؤکل هیڅ ثمن مُتعیّن نه کړي او مطلق د یو شي د رانیولو وکیل یې جوړ کړي، او وکیل هغه شی له نقودو څخه بغیر د بل شي په عوض کي رانیسي، نو په دې صورت کي هم وکیل د امر یعني د مؤکل د حکم مخالفت وکړی، په دې توګه چي د مؤکل له طرفه ثمن نه مُتعیّن کېدل د هغه د ښار د رائج نقودو وطرف ته ګرځي یعني کله چي مؤکل ثمن مُتعیّن نه کړي نو په دې صورت کي د مؤکل مقصد همدا وي چي وکیل دي د نقودو په عوض کي هغه شی رانیسي، لېکن کله چي وکیل له نقودو څخه بغیر د بل شي په عوض کي هغه رانیوی نو ښکاره خبره ده چي هغه د خپل وکیل مخالفت وکړی، نو ځکه په دې صورت کي به هم دا بیع د هغه لپاره وي او پر هغه به لازم وي، نه پر مؤکل.

د دې یو صورت دا دی چي خالد د یو مُتعیّن شي د رانیولو لپاره زید وکیل جوړ کړي او زید د هغه شي د رانیولو لپاره ادریس وکیل جوړ کړي، بیا ادریس د اول وکیل یعني د زید په ناموجودیت کي هغه شی رانیسي، نو دا بیع هم پر اول وکیل (زید) لازمیږي او پر مؤکل یعني خالد نه لازمیږي؛ ځکه چي خالد په دې غرض زید وکیل جوړ کړی وو چي زید په خپل رایه سره هغه شی زما لپاره رانیسي یعني چي زید هغه ښه اوګوري، خوښ یې کړي بیا یې زما لپاره رانیسي، لېکن زید دغه کار بل چا (ادریس) ته په لاس ورکړی، نو ځکه د هغه لزوم به هم پر زید یعني پر اول وکیل وي. ها! که

چيرې دويم وكيل (ادريس) داول وكيل (زيد) په موجوديت كې هغه شی رانيسي، نو څرنګه چې په دې رانيولو كې داول وكيل رايه او خوښه شامله سوه او دمؤكل غرض پوره سو (ځكه چې داول مؤكل [خالد] غرض همدا وو چې زيد په خپله رايه سره زما لپاره هغه رانيسي، او دلته د زيد [اول وكيل] رايه موجوده سوه)، نو ځكه هغه به دخپل مؤكل دحكم مخالفت كونكى نه وي او كله چې هغه مخالفت كونكى دى، نو ځكه دا رانيول او دا بيع به دمؤكل لپاره وي او پر هغه به لازم وي، نه پر وكيل.

## د غيرِ معين شي د وكالت په صورت كې به د شي مالک څوک وي؟ (حكم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنْ وَكَّلَهُ بِشِرَاءِ عَبْدٍ بِغَيْرِ عَيْنِهِ فرمايي: او كه مؤكل يو څوک د يو غير مُعيّن غلام د رانيولو وكيل جوړ كړي فَاشْتَرَى عَبْدًا بيا وكيل يو غلام رانيسي فَهُوَ لِلْوَكِيلِ نو هغه د وكيل لپاره دى إِلَّا أَنْ يَقُولَ: نَوَيْتُ الشِّرَاءَ لِلْمُوَكِّلِ مګر دا چې وكيل [داسې] ووايي: چې ما د مؤكل لپاره د رانيولو نيت كړى دى أَوْ يَشْتَرِيَهُ بِمَالِ الْمُوَكِّلِ يا دا چې مؤكل هغه د مؤكل په مال سره رانيسي قَالَ: هٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى وُجُوهٍ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا مسئله پر څو صورتونو [مشتمله] ده إِنْ أَضَافَ الْعَقْدَ إِلٰى دَرَاهِمِ الْآمِرِ [يو دا چې] كه وكيل دا بيع دمؤكل د دراهمو وطرف ته منسوب كړي كَانَ لِلْآمِرِ نو دا بيع به د حكم كونكي [يعني د مؤكل] لپاره وي وَهُوَ الْمُرَادُ عِنْدِي بِقَوْلِهِ أَوْ يَشْتَرِيهِ بِمَالِ الْمُوَكِّلِ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله په دې قول "أَوْ يَشْتَرِيهِ بِمَالِ الْمُوَكِّلِ" سره زما په نيز همدا مراد دې دُونَ النَّقْدِ مِنْ مَالِهِ او د مؤكل له مال څخه اداء كول مراد نه دي لِأَنَّ فِيهِ تَفْصِيلًا وَخِلَافًا ځكه چې په هغه كې تفصيل او اختلاف دى وَهٰذَا بِالْإِجْمَاعِ او دا حكم په اجماع سره [متفق عليه] دى وَهُوَ مُطْلَقٌ حال دا چې هغه مطلق دى وَإِنْ أَضَافَهُ إِلٰى دَرَاهِمِ نَفْسِهِ [دويم دا چې] كه وكيل دا بيع د خپل دراهمو وطرف ته منسوب كړي كَانَ لِنَفْسِهِ نو دا به دوكيل د خپل ځان لپاره وي حَمْلًا لِحَالِهِ عَلٰى مَا يَحِلُّ لَهُ شَرْعًا په حمل كولو سره د وكيل د حالت پر داسې شي كوم چې د هغه لپاره شرعاً حلال دى أَوْ يَفْعَلُهُ عَادَةً يا كوم چې وكيل د عادت [عرف] په توګه كوي إِذِ الشِّرَاءُ لِنَفْسِهِ بِإِضَافَةِ الْعَقْدِ إِلٰى دَرَاهِمِ غَيْرِهِ مُسْتَنْكَرٌ شَرْعًا وَعُرْفًا ځكه چې د بل چا دراهمو ته د بيع په نسبت كولو سره د خپل ځان لپاره [يو شی] رانيول شرعاً او عرفاً دواړه ډوله ناخوښه [او بد] دي وَإِنْ أَضَافَهُ إِلٰى دَرَاهِمَ مُطْلَقَةٍ [٣] او كه

وکیل دا بیع د مطلق دراهمو وطرف ته منسوب کړي فَإِنْ نَوَاهَا لِلْآمِرِ نو که چیري هغه د مؤکل لپاره د دې[بیع] نیت کړی وي فَهُوَ لِلْآمِرِ نو دا د مؤکل لپاره ده وَإِنْ نَوَاهَا لِنَفْسِهِ او که د خپل ځان لپاره يې د هغه نیت کړی وي فَلِنَفْسِهِ نو د هغه د خپل ځان لپاره ده لِأَنَّ لَهُ أَنْ يَعْمَلَ لِنَفْسِهِ وَيَعْمَلَ لِلْآمِرِ فِي هٰذَا التَّوْكِيلِ ځکه چي په دې توکیل [یعني د غیرِ مُعیّن شي په توکیل کې] کې وکیل ته دا اختیار سته چي د خپل ځان لپاره کار وکړي او [دا اختیار هم ورته سته] چي د مؤکل لپاره کار وکړي وَإِنْ تَكَاذَبَا فِي النِّيَّةِ او که د نیت په هکله وکیل او مؤکل دواړه یو د بل تکذیب وکړي [یعني دواړه یو بل دروا‌غجن وشماري] يُحَكَّمُ النَّقْدُ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق به ادا‌ینه حَکَم [فیصله کونکې] ګرځول کیږي [یعني بالاتفاق به د ثمن پر اداء کولو فیصله کیږي، یعني دې ته به کتل کیږي چي وکیل ثمن له خپل مال څخه اداء کړی دی او که د مؤکل له مال څخه] لِأَنَّهُ دَلَالَةٌ ظَاهِرَةٌ عَلٰى مَا ذَكَرْنَا ځکه چي مونږ د ذکر سوني بیان مطابق ادا‌ینه [له خپل یا د مؤکل له مال څخه اداء کول] ظاهري دلیل دی وَإِنْ تَوَافَقَا عَلٰى أَنَّهُ لَمْ تَحْضُرْهُ النِّيَّةُ او که چیري وکیل او مؤکل دواړه پر دې خبره اتفاق وکړي چي [د رانیولو په وخت کې] د وکیل هیڅ نیت نه وو [یعني وکیل ووایي چي ما د هیڅا نیت نه دی کړی او مؤکل هم دا خبره تسلیم کړي] قَالَ: مُحَمَّدٌ: هُوَ لِلْعَاقِدِ نو امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چي [په دې صورت کې] دا بیع د عاقد لپاره ده لِأَنَّ الْأَصْلَ أَنَّ كُلَّ أَحَدٍ يَعْمَلُ لِنَفْسِهِ ځکه اصل همدا دی چي هر انسان د خپل ځان لپاره کار کوي إِلَّا إِذَا ثَبَتَ جَعْلُهُ لِغَيْرِهِ مګر دا چي د بل چا لپاره کار کول ثابت سي [یعني دا ثابت سي چي هغه خپل کار د بل چا لپاره کړی دی] وَلَمْ يَثْبُتْ حالانکي [دلته] دا نه دي ثابت سوي [ځکه وکیل د هیچا نیت نه دی کړی] وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ❁ يُحَكَّمُ النَّقْدُ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز به ادا‌ینه [د ثمن اداء کول] حَکَم ګرځول کیږي لِأَنَّ مَا أَوْقَعَهُ مُطْلَقًا يَحْتَمِلُ الْوَجْهَيْنِ ځکه وکیل چي کوم کار [رانیول] مطلق واقع کړي دي هغه د دوو صورتونو احتمال لري [د مؤکل لپاره واقع کېدل او د وکیل لپاره واقع کېدل] فَيَبْقٰى مَوْقُوفًا لهذا دا کار [رانیول] به موقوف پاته وي فَمِنْ أَيِّ الْمَالَيْنِ نَقَدَ نو وکیل چي [د مؤکل او وکیل] په مالونو کې د

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، وعليه عامة الشرّاح (نتائج الأفكار ج:۷، ص:۴۵)، وكذا في الكفاية (ج:۷، ص:۴۶). [القول الراجح ج:۲، ص۱۵۴]

کوم چا له مال څخه ثمن اداء کړی وي فَقَدْ فَعَلَ ذٰلِكَ الْمُحْتَمَلَ لِصَاحِبِهِ نو [ګواکي] هغه دا محتمل کار [رانيول] هم د هغه مال د خاوند لپاره کړی دی وَلِأَنَّ مَعَ تَصَادُقِهِمَا يَحْتَمِلُ النِّيَّةَ لِلْآمِرِ او څکه چي [د نيت پر نشتوالي] د دواړو د اتفاق کولو باوجود د مؤکل لپاره د نيت کولو احتمال سته [په دې توګه چي وکيل به د مؤکل نيت کړی وي او بيا به څني هېر سوی وي] وَفِيمَا قُلْنَا حَمْلُ حَالِهِ عَلَى الصَّلَاحِ او کوم څه چي موږ [د امام ابو يوسف له طرفه] ويلي دي په هغه کي د وکيل حالت پر صلاح حمل کول دي [يعني امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله چي کوم دا خبره کړې ده چي د ثمن پر اداء کولو به فيصله کيږي، په هغه کي د وکيل حالت پر صلاح او سمون حمل کړی سوی دی] كَمَا فِي حَالَةِ التَّكَاذُبِ لکه د تکاذب په حالت کي [يعني لکه په هغه حالت کي چي د ثمن پر اداء کولو فيصله کيږي کله چي مؤکل او وکيل يو د بل تکذيب وکړي] وَالتَّوْكِيلُ بِالْإِسْلَامِ فِي الطَّعَامِ عَلَى هٰذِهِ الْوُجُوْهِ او په غله [غنم او داسي نورو کي] د بيع سَلَم کولو لپاره وکيل جوړول هم پر دغه صورتونو [مشتمل] دي.

**اللغات:** ﴿تكاذبا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو بل دروغجن ګڼل (دروغجن شمارل)، يو بل دروغجن ګرځول. ﴿يُحَكَّم﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: حَكَم (فيصله کونکی) ګرځول، يو څوک په خپل مينځ کي د فيصله کولو لپاره ټاکل. ﴿نَقَدَ﴾ د نصر د باب ماضي ده: نغد اداء کول. قيمت اداء کول. ﴿إسلام﴾ د دې لفظ څو معناوي دي، خو کله چي د بيع په باره کي ذکر سي نو معنیٰ يې ده: بيع سَلَم کول. (معجم وسيط)

**أصول:** دا مسئله پر دې أصول مبني ده چي که يو سړی بل څوک د غير مُتعيّن شي د رانيولو وکيل جوړ کړي، بيا وکيل هغه يو شی رانيسي، نو دا رانيول سوی شی هغه د وخت د مؤکل لپاره ګرځي يعني هغه وخت د مؤکل حق کيږي کله چي د مؤکل لپاره د رانيولو علامت او نښه موجوده وي چي وکيل دا شی د مؤکل لپاره رانيولی دی.

**تشريح:** په دې عبارت کي فقط د يوې مسئلې څو صورتونه ذکر سوي دي چي هغه به انشاء الله موږ په ترتيب سره ذکر کړو، تر ټولو مخکي صورت د مسئلې ته ګورئ!:

**صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی بل څوک د يو غير مُعيّن غلام د رانيولو وکيل جوړ کړي (مثلا ورته ووايي چي ما ته يو غلام رانيسه! او غلام مُتعيّن نه کړي چي خاص دا غلام رانيسه!)، بيا وکيل يو غلام رانيسي، نو د دې مطلق حکم دا دی چي دا بيع (رانيول) د وکيل لپاره دي او همدا وکيل به د

هغه غلام مالک وي، لېکن که وکیل داسي ووایي چي ما دمؤکل لپاره د رانیولو نیت کړی وو، یا وکیل دمؤکل په مال سره هغه غلام رانیسي، نو په دې صورت کي دا بیع دمؤکل لپاره ده.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي ګورئ! په اصل کي د دې مسئلې درې صورتونه دي:
(۱)... اول صورت دا دی چي که وکیل دا بیع (رانیول) دمؤکل د مال وطرف ته منسوب کړي او داسي ووایي چي "ما دمؤکل په مال (دراهمو) سره دا غلام رانیولی دی"، نو په دې صورت کي دا بیع د مؤکل لپاره ده او همدا مؤکل د هغه غلام مالک کېږي. دلته تاسو په دې خبره ځان پوه کړئ! چي په متن کي د امام قدوري رَحِمَهُ الله د دې قول "أَوْ يَشْتَرِيهِ بِمَالِ الْمُوَكِّلِ" دوه مطلبه دي: ① اول مطلب یې دا دی کوم چي موږ ذکر کړی، یعني وکیل دا بیع دمؤکل د مال (دراهمو) وطرف ته منسوب کړي چي ما دا غلام دمؤکل په مال سره رانیولی دی. ②... دویم مطلب یې دا دی چي وکیل دا بیع دمؤکل د مال وطرف ته منسوب نه کړي بلکي صرف دمؤکل له مال څخه د غلام ثمن اداء کړي او داسي نه ووایي چي ما دا غلام دمؤکل په مال سره رانیولی دی. په دې دواړو مطلبونو کي د شارح "علامه مرغیناني رَحِمَهُ الله" په نیز اول مطلب زیات صحیح او راجح دی، ځکه چي په هغه کي هیڅ اختلاف نسته او متفق علیه دی او د امام قدوري رَحِمَهُ الله عبارت "أَوْ يَشْتَرِيهِ إلخ" هم مطلق دی یعني په هغه کي هیڅ اختلاف نه دی ذکر سوی، نو ځکه هغه به پر متفق علیه صورت حمل کول کېږي، او د دې اول مطلب پر بناء د مذکوره غلام بیع دمؤکل لپاره واقع کېږي، نه د وکیل لپاره، نو ځکه په اول صورت کي به دا بیع (یعني رانیول سوی غلام) دمؤکل لپاره وي.
(۲)... د اصل مسئلې دویم صورت دا دی چي که وکیل دا بیع (رانیول) د خپل مال وطرف ته منسوب کړي او داسي ووایي چي "ما په خپل مال (دراهمو) سره دا غلام رانیولی دی"، نو په دې صورت کي دا بیع د وکیل لپاره ده او همدا وکیل د هغه غلام مالک کېږي.

حملاً لحاله ..شرعاً أو...عادتاً: په دې عبارت سره صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د پورتني دوو صورتونو دوه دلیلونه بیان کړي دي چي له هغه څخه یو دلیل عرف دی او بل دلیل شرع ده، یعني یو عرفي دلیل دی او دویم شرعي دلیل دی، عرفي دلیل په دواړو صورتونو کي جاري کېږي (بنایه)، او شرعي دلیل فقط د اول صورت سره خاص دی.

د عرفي دلیل حاصل دا دی چي په عرف عام کي چي کوم سړی د خپل مال (دراهمو) وطرف ته عقد منسوب کړي نو هغه د خپل ځان لپاره بیع کونکی (رانیونکی) وي، ها! کوم سړی چي د بل چا مال وطرف ته بیع منسوب کړي نو هغه د بل چا لپاره بیع کونکی وي، لهذا د دغه دلیل په اعتبار سره به په اول صورت کي بیع (رانیول) دمؤکل لپاره وي او په دویم صورت کي به د وکیل لپاره وي.

پاته سو شرعي دليل نو هغه خاص داول صورت سره متعلق دی، ځکه چي په هغه صورت کي وکيل بيع (رانيول) دمؤکل دمال وطرف ته منسوب کړي دي، اوس که دا بيع دمؤکل لپاره واقع نه سي او دوکيل لپاره واقع سي، نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي به وکيل دمؤکل دراهمو غصبونکی وشمارل سي، او دبل چا مال غصب کول شرعاً حرام دی، نو ځکه دشرع (شريعت) له رويه به هم په اول صورت کي دغلام بيع دمؤکل لپاره وي او دوکيل لپاره به نه وي.

(۳)... دريم صورت دادی چي وکيل بيع دمطلق مال(مطلق دراهمو) وطرف ته منسوب کړي او صرف داسي ووايي چي "ما په دوه سوه درهمه دا غلام رانيولی دی" (او مال يعني دراهم دهيچا وطرف ته منسوب نه کړي)، نو په دې صورت کي تفصيل دی او هغه دا چي که وکيل درانيولو نيت دمؤکل لپاره کړی وي نو بيع د مؤکل لپاره واقع کيږي، او که وکيل دهغه نيت د خپل ځان لپاره کړی وي نو بيع دهغه لپاره واقع کيږي؛ ځکه چي دا توکيل بالشراء دغير مُعيّن غلام سره متعلق دی (يعني په دې مسئله کي وکيل د غيرِ مُتعيّن غلام درانيولو وکيل جوړ سوی دی)، او دغير مُعيّن شي په توکيل کي وکيل ته اختيار وي که وغواړي نو هغه دي دخپل ځان لپاره رانيسي او که وغواړي نو دمؤکل لپاره دي يې رانيسي، نو ځکه په دې دريم صورت کي به دوکيل پر نيت فيصله کيږي او څنګه چي دهغه نيت وي هغسي حکم به کيږي.

وإن تكاذبا إلخ: ددې حاصل دادی که دوکيل او مؤکل په مينځ کي دنيت په حواله سره اختلاف راسي يعني وکيل ووايي چي "ما دخپل ځان لپاره رانيولی دی"، او مؤکل ووايي چي "ته دروواغ وايې، دا غلام تا زما لپاره لپاره رانيولی دی"، نو په دې صورت کي به د ثمن پر ادا ينه فيصله کيږي، يعني که چيري وکيل له خپل مال څخه ثمن اداء کړی وي نو دا بيع (رانيول) به دهغه لپاره وي او که دمؤکل له مال څخه يې ثمن اداء کړی وي نو بيع به دمؤکل لپاره وي.

وإن توافقا على أنه إلخ: فرمايي که وکيل او مؤکل اختلاف نه وکړي بلکي پر دې خبره اتفاق وکړي چي د رانيولو په وخت کي وکيل دهيچا نيت نه دی کړی، نو دا بيع او رانيول به دچا لپاره وي؟ په دې باره کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی، امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې صورت کي بيع دعاقد يعني دوکيل لپاره ده؛ ځکه چي اصل همدا دی چي انسان دخپل ځان لپاره کار کوي، ها! کوم کار چي هغه د بل وطرف ته منسوب کړي يا دبل چا لپاره يې نيت وکړي، نو دا کار دهغه بل چا لپاره واقع کيږي، او څرنګه چي په دې مسئله کي وکيل نه دبل چا وطرف ته هغه بنسوب کړی دی او نه يې دبل چا نيت کړی دی، نو ځکه دا بيع به په خپله دوکيل لپاره وي، ددې په خلاف امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې صورت کي به د ثمن پر ادا ينه فيصله کيږي او دچا له مال څخه چي ثمن اداء سوی وي، بيع

به هم د هغه لپاره وي؛ ځکه چي د وکیل دا بیع (رانیول) مطلق ده او په دې کي دوه احتماله دي: ① یو دا چي شاید دا بیع به د مؤکل لپاره وي، ② دویم دا چي د وکیل لپاره به وي، او له دې دواړو احتمالا تو څخه د ثمن د ادایني په ذریعه یو احتمال راجح ګرځي، نو ځکه د ثمن پر اداینه به فیصله کیږي او د یوه لپاره به بیع مُتعیّن کیږي.

دویم دلیل دا دی چي کله دلته وکیل او مؤکل پر دې خبره اتفاق وکړی چي د رانیولو په وخت کي د وکیل هیڅ نیت نه وو، نو په دې دا احتمال هم سته چي وکیل به د مؤکل لپاره نیت کړی وي لېکن بیا به ځني هېر سوی دی، نو ځکه فقط د ثمن پر اداء کولو به فیصله کیږي چي وکیل د چا له مال څخه ثمن اداء کړی دی. او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله چي څه ویلي دي په هغه کي د وکیل حالت پر صلاح او سمون حمل کړی سوی دی، ځکه که د امام محمد رَحِمَهُ الله په څېر د عاقد یعني د وکیل لپاره بیع (رانیول سوی غلام) مُتعیّن کړی سي په داسي حال کي چي ثمن هم د مؤکل له مال څخه اداء کړی سوی وي، نو په دې صورت کي به د وکیل غاصب کېدل لازم سي (یعني ګواکي وکیل هغه غلام غصب کړی) او دا قطعاً مناسب نه دي، نو ځکه غوره همدا ده چي د وکیل حالت پر صلاح او سمون حمل کړی سي او دا هغه وخت ممکن دي چي د ثمن پر اداینه فیصله وسي، نو ځکه د نیت پر نشتوالي د اتفاق کولو په صورت کي به د ثمن پر اداینه فیصله کیږي.

والتوکیل بالإسلام إلخ: فرمایي چي د توکیل بالشراء په هکله چي دلته کوم تفصیلات ذکر سول، دا تفصیلات په هغه صورت کي هم دي کله چي د غلې (یعني د غنم، اوربشو او داسي نورو) د بیع سَلم کولو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړی سي، او کوم صورتونه چي دلته جاري دي هغه د بیع سَلم په توکیل کي هم جاري کیږي. مثلاً که وکیل بیع سَلم وکړي نو دې ته به کتل کیږي چي ① وکیل دا بیع د خپل مال و طرف ته منسوب کړې ده ② او که د مؤکل د مال و طرف ته ③ او که د مطلق مال و طرف ته... إلی آخره.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا بِشِرَاءِ عَبْدٍ بِأَلْفٍ فرمایي: او چا چي یو سړي ته په زر درهمو سره د یو غلام رانیولو حکم وکړی فَقَالَ: قَدْ فَعَلْتُ وَمَاتَ عِنْدِيْ بیا هغه سړي [وکیل] وویل: چي ما دا کار وکړی [یعني غلام مي ستا لپاره رانیوی] لېکن هغه غلام زما سره مړ سو وَقَالَ الْآمِرُ: اشْتَرَيْتَهُ لِنَفْسِكَ او مؤکل وویل: چي تا هغه غلام د خپل ځان لپاره رانیولی وو فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْآمِرِ نو قول د مؤکل معتبر دی فَإِنْ كَانَ دَفَعَ إِلَيْهِ الْأَلْفَ لېکن که مؤکل و وکیل ته زر درهمه ورکړي وي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمَأْمُوْرِ نو قول

د وکيل معتبر دی لِأَنَّ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ أَخْبَرَ عَمَّا لَا يَمْلِكُ اسْتِئْنَافَهُ ځکه چې په اول صورت کې وکيل د داسې کار خبر ورکړی دی چې وکيل د هغه د راګرځولو [دوباره کولو] ملکيت نه لري [يعني هغه دوباره نه سي کولای] وَهُوَ الرُّجُوعُ بِالثَّمَنِ عَلَى الْآمِرِ او هغه له مؤکل څخه ثمن اخيستل دي وَهُوَ يُنْكِرُ حال دا چې مؤکل له هغه څخه منکر دی وَالْقَوْلُ لِلْمُنْكِرِ او قول د منکر معتبر وي وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي هُوَ أَمِينٌ يُرِيدُ الْخُرُوجَ عَنْ عُهْدَةِ الْأَمَانَةِ او په دويم صورت کې وکيل امين دی [او] هغه د امانت له ذمه وارۍ څخه وتل غواړي [يعني په خپل دې قول سره "چې غلام مې ستا لپاره رانيوی" د امانت له ذمه وارۍ څخه د ځان خلاصېدل او برې کېدل غواړي] فَيُقْبَلُ قَوْلُهُ نو ځکه د هغه به قبلول کيږي وَلَوْ كَانَ الْعَبْدُ حَيًّا حِينَ اخْتَلَفَا او که چيرې د وکيل او مؤکل د اختلاف کولو په وخت کې غلام ژوندی وي إِنْ كَانَ الثَّمَنُ مَنْقُودًا نو که چيري [د مؤکل له طرفه وکيل ته] ثمن ورکول سوی وي [يعني مؤکل د غلام رانيولو لپاره وکيل ته ثمن ورکړی وي] فَالْقَوْلُ لِلْمَأْمُورِ نو قول د وکيل معتبر دی لِأَنَّهُ أَمِينٌ ځکه چې هغه امين دی وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَنْقُودًا او که چيري ثمن ورکول سوی نه وي فَكَذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ نو هم د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا حکم دی لِأَنَّهُ يَمْلِكُ اسْتِئْنَافَ الشِّرَاءِ ځکه چې [په دې صورت کې] وکيل د دوباره رانيولو ملکيت [اختيار] لري فَلَا يُتَّهَمُ فِي الْإِخْبَارِ عَنْهُ نو ځکه د شراء [رانيولو] په خبر ورکولو کې به هغه متهم نه وي وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ الْقَوْلُ لِلْآمِرِ* او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز قول د مؤکل معتبر دی لِأَنَّهُ مَوْضِعُ تُهْمَةٍ ځکه چې دا د تهمت ځای دی بِأَنِ اشْتَرَاهُ لِنَفْسِهِ فَإِذَا رَأَى الصَّفْقَةَ خَاسِرَةً په دې توګه چې وکيل به هغه [غلام] د ځان لپاره رانيولی وي بيا چې کله وکيل دا سودا [ځان لپاره] تاواني وليدله أَلْزَمَهَا الْآمِرَ نو پر مؤکل به يې لازمه کړې وي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الثَّمَنُ مَنْقُودًا په خلاف د هغه صورت کله چې ثمن ورکول سوی وي لِأَنَّهُ أَمِينٌ فِيهِ ځکه چې په دې صورت کې وکيل امين دی فَيُقْبَلُ قَوْلُهُ تَبَعًا لِذٰلِكَ نو ځکه دده قول به د هغه په متابعت کې قبلول کيږي وَلَا ثَمَنَ فِي يَدِهِ هٰهُنَا او دلته [په دې صورت کې] د وکيل په قبضه کې ثمن نسته.

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما هو ظاهر من صنيع المصنف رَحِمَهُ الله، وكذا ذكر في تبيين الحقائق (ج:۴، ص:۲۶۶)، وفي الدر المختار (ج:۴، ص:۴۵۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۵۵]

**اللغات**: ﴿آمر﴾ د نصر د باب فاعل دی: حکم کونکی، مراد ځني مؤکل (وکیل جوړونکي) دی، ﴿مأمور﴾ د نصر د باب مفعول دی: چا ته چي حکم سوی وي، مراد ځني وکیل دی، ﴿استيناف﴾ او اِسْتِئْنَاف: يو کار له نوي سره شروع کول، راګرځول، دوباره کول. ﴿منقود﴾ د نصر د باب مفعول دی: نغد اداء کړل سوی، ورکول سوی، ﴿لا يُتّهم﴾ د افتعال د باب مضارع مجهوله ده: متهم کېدل، تورن کېدل (تومتي کېدل)، پر يو چا د يو شي تهمت کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک (مثلا خالد) بل سړی په زر درهمه د غلام رانيولو وکيل جوړ کړی چي زما لپاره په زر درهمه غلام رانيسه! (لېکن خالد هغه ته زر درهمه نه ورکړي)، بيا وکيل وويل چي ما د مؤکل (خالد) حکم پر ځای کړی او غلام مي رانيوی لېکن هغه غلام زما سره مړ سو (يعني زما په قبضه کي وو او په همدې دوران کي مړ سو)، او مؤکل وويل چي تا زما لپاره هغه نه وو رانيولی بلکي د خپل ځان لپاره دي رانيولی وو، نو په دې صورت کي بيع (رانيول) د وکيل لپاره واقع کيږي، نه د مؤکل لپاره، يعني وکيل به له مؤکل څخه د هغه غلام ثمن نه اخلي ځکه چي د غلام رانيول د وکيل لپاره واقع سوه، نه د مؤکل لپاره، لېکن که چيري مؤکل (خالد) و مامور (وکيل) ته مخکي زر درهمه ورکړي وي، نو په دې صورت کي بيع د مؤکل لپاره واقع کيږي، نه د وکيل لپاره.

د دې دواړو صورتونو په فرق کي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي اول صورت، يعني کله چي مؤکل و وکيل ته ثمن (زر درهمه) نه وي ورکړي او وکيل ووايي چي ما دا غلام د موکل (خالد) لپاره رانيولی وو لېکن هغه مړ سو نو ځکه مؤکل دي ما ته خپل ثمن راکړي (کوم چي ما د هغه په غلام کي ورکړی دی)، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دغه صورت کي وکيل د داسي بيع خبر ورکړی دی چي وکيل هغه دوباره نه سي کولای؛ ځکه چي غلام مړ سوی دی، او مړ غلام د بيع محل نه سي کېدای، په بله وينا دا چي که اوس وکيل دوباره دا غلام رانيول وغواړي، نو هغه يې نه سي رانيولای، يعني که مؤکل هغه ته وايي چي زه هغه غلام غواړم نو وکيل يې نسي ورکولای، او کله چي داسي ده، نو د هغه ثمن هم له مؤکل څخه نه سي اخيستلای (ځکه چي اوس وکيل مؤکل ته هغه غلام نه سي ورکولای). او بل دليل دا دی چي دلته وکيل له مؤکل څخه د غلام د ثمن اخيستلو مدعي دی او مؤکل له دې څخه منکر دی، او څرنګه چي د مدعي يعني د وکيل سره بيّنه هم نسته، نو ځکه د منکر يعني د مؤکل قول به معتبر وي، يعني دا بيع به د وکيل لپاره وي، نه د مؤکل لپاره (لهذا وکيل ته به دا حق نه وي چي له مؤکل څخه د هغه ثمن واخلي)

د دې په خلاف څرنګه چي په دويم صورت کي مؤکل و وکيل ته ثمن ورکړی دی، نو ځکه په دې صورت کي وکيل امين دی او هغه غواړي چي په خپل دې قول سره "چي ما ستا لپاره غلام

رانيولو وو مګر هغه مړ سو" خپل ځان د امانت له ذمه واری ځخه خلاص او بري کړي، او مؤکل په خپل دې قول سره د هغه نيول او ګيرول غواړي چي "تا زما لپاره نه، بلکي د خپل ځان لپاره رانيولی وو"، او حکم دا دی چي که د امين (امانت ساتونکي) او مالک په مينځ کي داسي اختلاف راسي، نو په دې صورت کي د امين قول معتبر وي، نو ځکه په دويم صورت کي د وکيل "کوم چي امين دی" قول به معتبر وي يعني د مذکوره غلام بيع به فقط د مؤکل لپاره واقع کيږي، نه د وکيل لپاره (لهذا په دې صورت کي به وکيل ته دا حق وي چي له مؤکل ځخه ثمن واخلي او مؤکل به هغه ته خپل ثمن ورکوي).

ولو کان العبد حيًا: د دې حاصل دا دی که د وکيل او مؤکل د دغه اختلاف په وخت کي غلام ژوندی وي، يعني د غلام د ژوندون په صورت کي مؤکل ووېل چي وکيل دا غلام د خپل ځان لپاره رانيولی دی، لېکن وکيل ووېل چي ما د مؤکل لپاره رانيولی دی، نو په دې صورت کي برابره ده مؤکل و وکيل ته ثمن ورکړی وي، که نه، په هر صورت کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د وکيل قول معتبر دی؛ لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د ثمن نه ورکولو په صورت کي د مؤکل قول معتبر او مقبول دی.

**د صاحبينو دليل**: د ثمن ورکولو په صورت کي خو د وکيل د قول معتبر والی ښکاره دی چي هغه امين دی او قول د امين معتبر وي، او د ثمن نه ورکولو په صورت کي د صاحبينو دليل دا دی چي د وکيل او مؤکل د دغه اختلاف په صورت کي غلام ژوندی دی او د بيع و شراء (رانيولو) محل دی، همدارنګه وکيل د مؤکل لپاره دوباره د بيع پر کولو (رانيولو) قادر هم دی (يعني دلته هغه دوباره د مؤکل لپاره غلام رانيولای سي)، نو ځکه اوس که وکيل دا خبره کوي چي ما د مؤکل لپاره دا غلام رانيولی دی نو هغه به په خپل دې قول کي درواغجن او متهم نه وي، او کله چي د هغه په حق کي د تهمت او درواغو احتمال ختم سو، نو ځکه د وکيل د قول په معتبر والي کي به هيڅ شک وشبهه نه وي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي د غلام د ژوندون په صورت کي هم وکيل په خپل قول او خبر کي متهم دی (يعني د هغه په قول او خبر کي د درواغو تهمت سته)، په دې توګه چي وکيل به اول د خپل ځان لپاره غلام رانيولی وي او بيا د غلام په دې بيع کي د نقصان او تاوان ليدلو په وجه به يې دا بيع د مؤکل صاحب وطرف ته منسوب کړې وي او پر هغه به يې لازم کړې وي، او تاسو ته به هم معلومه وي چي د وکيل او مؤکل په مينځ کي ځيني وخت داسي حالات او واقعات پېښيږي هم، نو ځکه په دې حواله سره د وکيل په قول کي تهمت سته او هغه په خپل خبر ورکولو کي متهم دی، او کله چي د هغه په قول او خبر کي تهمت سته، نو ښکاره خبره ده چي د هغه قول به معتبر نه وي بلکي د مؤکل قول به معتبر وي.

د دې په خلاف کله چې مؤکل و وکیل ته ثمن ورکړی وي، نو څرنګه چې وکیل په دې صورت کې امین دی او د مؤکل لپاره د غلام رانیولو په خبره کولو سره هغه د امانت له ذمه واری څخه خپل ځان بري کېدل غواړي، نو ځکه په دې صورت کې به دامین یعني د وکیل قول معتبر وي، او کله چې له امانت څخه په بري کېدلو کې د هغه قول معتبر دی نو د دې په ضمن کې به د هغه دا قول هم معتبر وي چې ما د مؤکل لپاره غلام رانیولی دی. لېکن په کوم صورت کې چې مؤکل و وکیل ته ثمن نه دی ورکړی، په هغه صورت کې وکیل امین نه دی، نو ځکه په هغه صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مؤکل قول معتبر او مقبول دی، نه د وکیل؛ ځکه چې تهمت موجود دی.

## د متعيّن شي د رانيولو د وکالت يو صورت

وَإِنْ كَانَ أَمَرَهُ بِشِرَاءِ عَبْدٍ بِعَيْنِهِ او که چیري مؤکل وکیل ته د یو مُعيّن غلام د رانیولو حکم وکړي ثُمَّ اخْتَلَفَا وَالْعَبْدُ حَيٌّ بیا دواړه اختلاف وکړي په داسي حال کي چي غلام ژوندی وي فَالْقَوْلُ لِلْمَأْمُورِ نو قول د وکیل معتبر دی سَوَاءٌ كَانَ الثَّمَنُ مَنْقُودًا أَوْ غَيْرَ مَنْقُودٍ برابره ده [د مؤکل له طرفه وکیل ته] ثمن ورکول سوی وي او که نه وي ورکول سوی وَهٰذَا بِالْإِجْمَاعِ او دا [مسئله] متفق علیه ده لِأَنَّهُ أَخْبَرَ عَمَّا يَمْلِكُ اسْتِئْنَافَهُ ځکه چي وکیل د داسي کار خبر ورکړی دی چي وکیل د هغه د راګرځولو [دوباره کولو] ملکیت لري وَلَا تُهْمَةَ فِيهِ او په دې کي تهمت [هم] نسته لِأَنَّ الْوَكِيلَ بِشِرَاءِ شَيْءٍ بِعَيْنِهِ لَا يَمْلِكُ شِرَاءَهُ لِنَفْسِهِ بِمِثْلِ ذٰلِكَ الثَّمَنِ فِي حَالِ غَيْبَتِهِ ځکه چي د مُعيّن شي د رانیولو وکیل د مؤکل په غائب والي [ناموجودیت] کي په هغومره ثمن سره د هغه شي د رانیولو ملکیت [اختیار] نه لري عَلٰى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سوه بِخِلَافِ غَيْرِ الْمُعَيَّنِ په خلاف د نا مُعيّن غلام [او نا مُعيّن شي] عَلٰى مَا ذَكَرْنَاهُ لِأَبِي حَنِيفَةَ لکه څرنګه چي موږ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په دلیل کي ذکر کړه.

**اللغات**: ﴿حيّ﴾ ژوندی، ﴿منقود﴾ د نصر د باب مفعول دی: نغد اداء کړل سوی ثمن، ورکول سوی قیمت، ﴿غیبة﴾ ناموجودیت (ناموجودګي).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی بل څوک د یو مُتعیّن غلام د رانیولو وکیل جوړ کړي او بیا د وکیل او مؤکل په مینځ کي اختلاف راسي، وکیل ووایي چي ما د موکل لپاره دا غلام رانیولی دی او موکل ووایي چي تا د ځان لپاره رانیولی دی، او غلام ژوندی وي، نو په دې صورت کي د امام صاحب او صاحبینو ټولو په نېز د وکیل (مامور) قول معتبر دی؛ برابره ده مؤکل (امر) هغه ته ثمن

ورکړی وي، که نه؛ دلیل دا دی چې وکیل د بیع (رانیولو) په هکله د داسې کار خبر ورکړی دی چې وکیل في الحاله د هغه پر کولو قادر دی (یعني وکیل دا غلام دوباره رانیولای سي)؛ ځکه چې غلام ژوندی دی، لهذا د هغه په قول او خبر کې هیڅ تهمت هم نسته، او بل دا چې مؤکل هغه ته د مُتعیّن او مشخص غلام د رانیولو حکم کړی دی، او کوم څوک چې د یو مُتعیّن غلام د رانیولو وکیل جوړ کړی سي، د هغه لپاره دا صحیح نه دي چې د مؤکل په ناموجودیت کې هغه غلام د ځان لپاره رانیسي، ځکه چې په دې سره وکیل له وکالت څخه معزوله کیږي (لکه مخکې چې ذکر سوه چې د مؤکل د ناموجود والي په حالت کې د خپل ځان لپاره د هغه د مُتعیّن شي په رانیولو سره وکیل معزوله کیږي)، نو ځکه دا تهمت معلوم او ختم سو چې وکیل به هغه د خپل ځان لپاره رانیولی وي، او د مؤکل لپاره د غلام رانیولو په خبر کې وکیل ریښتونی وختی، نو ځکه د هغه قول او خبر به معتبر وي.

د دې په خلاف که چیري هغه د نامُتعیّن غلام د رانیولو وکیل وای، نو په دې صورت کې به د هغه لپاره دا صحیح وای چې د ځان لپاره دا غلام رانیسي، لهذا هغه به په خپل قول او خبر ورکولو کې متهم وای، لکه څرنګه په تېر عبارت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دلیل په ضمن کې موږ د دې وضاحت وکړی.

## د وکالت یو مسئله

وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ: بِعْنِيْ هٰذَا الْعَبْدَ لِفُلَانٍ او څوک چې بل چا ته ووایي: ته پر ما د فلانکي لپاره دا غلام خرڅ کړه! [ځکه چې هغه ما ته د دې حکم کړی دی او زه یې د دې غلام د رانیولو وکیل جوړ کړی یم] فَبَاعَهُ نو هغه پر خرڅ کړی ثُمَّ أَنْكَرَ أَنْ يَكُوْنَ فُلَانٌ أَمَرَهُ بیا ویونکي سړي [قائل] له دې خبر څخه انکار وکړی چې فلانکي ما ته د دې حکم کړی دی ثُمَّ جَاءَ فُلَانٌ وَقَالَ: أَنَا أَمَرْتُهُ بِذٰلِكَ بیا فلانکی راغلی او ویې ویل: چې ما هغه [قائل] ته د دې حکم کړی وو، فَإِنَّ فُلَانًا يَأْخُذُهُ نو فلانکی به له هغه څخه [غلام] اخلي لِأَنَّ قَوْلَهُ السَّابِقَ إِقْرَارٌ مِنْهُ بِالْوَكَالَةِ عَنْهُ ځکه چې د قائل مخکنی قول د هغه له طرفه د فلانکي د وکیل کېدلو اقرار دی [یعني د هغه دا قول چې "دا غلام پر ما د فلانکي لپاره خرڅ کړه!" د دې خبري اقرار دی چې زه د فلانکي له طرفه وکیل یم] فَلَا يَنْفَعُهُ الْإِنْكَارُ اللَّاحِقُ نو ځکه وروستنی انکار به هغه ته فایده نه کوي فَإِنْ قَالَ فُلَانٌ: لَمْ آمُرْهُ او که چیري فلانکی ووایي: چې ما هغه ته [د دې غلام د رانیولو] حکم نه دی کړی لَمْ يَكُنْ لَهُ نو غلام د هغه لپاره نه دی [یعني په دې صورت کې فلانکي ته د غلام اخیستلو حق

نسته] لِأَنَّ الْإِقْرَارَ ارْتَدَّ بِرَدِّهِ ځکه چي اقرار د هغه په ردّ کولو سره ردّ سو إِلَّا أَنْ يُسَلِّمَهُ الْمُشْتَرَى لَهُ مگر دا چي وکيل [قائل] غلام هغه کس ته وسپاري چي د هغه لپاره غلام رانيول سوی وي [يعني مگر دا چي کله قائل و فلانکي ته غلام ورکړي او فلانکی هغه واخلي (له مشتریٰ لهٗ څخه فلان (فلانکی) مراد دی؛ ځکه چي غلام د هغه لپاره رانيول سوی دی] فَيَكُونُ بَيْعًا عَنْهُ نو [په دې صورت کي] دا بيع د فلانکي [فلان] له طرفه ده وَعَلَيْهِ الْعُهْدَةُ او پر هغه [د دې غلام داخيستلو او ثمن ورکولو] ذمه واري لازم ده [يعني هغه به دا غلام اخلي او هغه د دې بيع ذمه وار دی] لِأَنَّهُ صَارَ مُشْتَرِيًا بِالتَّعَاطِيْ ځکه چي د بيع تعاطي [ورکړه راکړي] په ذريعه فلانکی مشتري وګرځېدی [يعني کله چي قائل فلانکي ته غلام ورکړی او هغه واخيستی نو په دې سره فلانکی (فلان) مشتري وګرځېدی] كَمَنِ اشْتَرٰى لِغَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ لکه يو مشتري [رانيونکي] چي د بل چا له حکم څخه بغير د هغه لپاره يو شی رانيسي حَتّٰى لَزِمَهُ تر دې چي دا شی پر هغه [مشتري] لازم سي ثُمَّ سَلَّمَهُ الْمُشْتَرٰى لَهُ بيا مشتري [رانيونکی] دا شی هغه چا ته وسپاري چي د چا لپاره يې دا رانيولی وي [نو په دې صورت کي هم پر "مشتریٰ لهٗ" بيع لازم ده] وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى أَنَّ التَّسْلِيمَ عَلٰى وَجْهِ الْبَيْعِ يَكْفِي لِلتَّعَاطِيْ او دا مسئله پر دې خبره دلالت کوي چي د بيع په توګه ورسپارل د بيع تعاطي لپاره کافي دي وَإِنْ لَمْ يُوجَدْ نَقْدُ الثَّمَنِ که څه هم د ثمن ورکول [اداء کول] موجود نه سي وَهُوَ يَتَحَقَّقُ فِي النَّفِيْسِ وَالْخَسِيْسِ او بيع تعاطي په زيات قيمت لرونکي شي او کم قيمته شي دواړو کي ثابتيږي لِاسْتِتْمَامِ التَّرَاضِيْ ځکه چي د بائع او مشتري رضا پوره ده وَهُوَ الْمُعْتَبَرُ فِي الْبَابِ او د بيع په باب کي همدا [رضا] معتبر ده.

**اللغات**: ﴿بِعْ﴾ د ضرب له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده: خرڅول. ﴿العُهدة﴾ ذمه واري. ﴿سابق﴾ د ضرب د باب فاعل دی: مخکني. ﴿لاحق﴾ د سمع د باب فاعل دی: وروستني (وروسته واقع سوی). ﴿مشترٰی لهٗ﴾ د "مشتری" په لفظ کي دوه روايتونه منقول دي ① بکسر الراء يعني فاعل. ② بفتح الراء يعني مفعول، موږ دويم روايت اختيار کړی دی. ځکه چي په اول روايت کي هم له دې څخه "فلان" مراد دی خو له تقدير او څه تفصيل څخه وروسته. او په دويم روايت کي هم "فلان" ځني مراد دی بغير له څه تقدير او تفصيل څخه. ځکه په دويم روايت کي يې معنیٰ ده "د

چاڼپاره چي (غلام) رانيول سوى" چي هغه فلان (فلانكى) دى، لنډه دا چي په اول روايت كي يې معنىٰ اوږديږي، نو ځكه موږ دويم اختيار كړى دى، ﴿تعاطي﴾ د تفاعل د باب مصدر دى: وركړه راكړه، دبيع تعاطي صورت دا دى چي بائع او مشتري ايجاب وقبول نه سره وكړي بلكي بائع مبيع وركړي او مشتري هغه واخلي او ثمن وركړي، او مشتري په ثمن (قيمت) خبر وي چي د دې مبيع دومره قيمت دى، نو دې ته "بيع تعاطي" وايي، دا په كوچني او كم قيمته شي كي هم جائز ده او په غټ شي كي هم جائز ده، ﴿النفيس﴾ ارزښتمن، زيات قيمت والا، غوره، ﴿خسيس﴾ كم، سپك، كم قيمت والا، ﴿استتمام﴾ د استفعال د باب مصدر دى: پوره كول، بشپړ كول، ﴿التراضي﴾ د تفاعل د باب مصدر دى: يو له بل څخه راضي كېدل (يو تر بله راضي كېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى كه مثلاً زيد و خالد ته وويل چي زه فلانكي سړي مثلاً ادريس ستا د غلام رانيولو وكيل جوړ كړى يم (په بله وينا دا چي زه د ادريس له طرفه ستا د غلام رانيولو وكيل يم)، نو ځكه ته د ادريس لپاره پر ما غلام خرڅ كړه!، نو خالد پر زيد هغه غلام خرڅ كړى، تر دې وروسته زيد وويل چي زه ادريس ستا د غلام رانيولو وكيل نه يم جوړ كړى بلكي ما هغه د خپل ځان لپاره رانيولى دى، بيا ادريس راغلى او هغه وويل چي هو! ما زيد د غلام رانيولو وكيل جوړ كړى دى، نو اوس ادريس ته دا حق سته چي له مشتري يعني له زيد څخه هغه غلام واخلي او هغه ته ثمن وركړي؛ دليل دا دى چي دلته خو مشتري يعني زيد اول د خپل ځان د وكيل كېدلو او د ادريس لپاره د غلام رانيولو اقرار كړى دى او بيا يې د وكالت انكار كړى دى، او د هغه اقرار پر انكار مخكي دى، نو ځكه مخكني اقرار به په وروستني انكار سره نه باطليږي او د مذكوره غلام بيع به د موكل يعني د ادريس لپاره وي او د ثمن په عوض كي به هغه ته د غلام اخيستلو حق وي.

**فإن قال إلخ**: د دې حاصل دا دى چي كه ادريس (فلان) انكار وكړى يعني هغه وويل چي ما زيد د غلام رانيولو وكيل نه دى جوړ كړى، نو په دې صورت كي ادريس ته د مذكوره غلام د اخيستلو حق نسته؛ ځكه چي د وكيل اقرار د ادريس په ردّ كولو سره ردّ سو، او اوس په دې غلام كي د هغه هيڅ حق پاته نه سو.

**إلا أن يسلمه إلخ**: دا جمله د متن له دې جملې "لم يكن ذلك له إلخ" څخه استثناء كړى سوې ده، او حاصل يې دا دى چي په يوه صورت كي د انكار كولو باوجود ادريس (موكل [فلان]) ته د غلام اخيستلو حق سته او پر هغه بيع لازم ده، او هغه صورت دا دى چي زيد (وكيل) و ادريس ته غلام وسپاري او ادريس هغه قبول كړي، ځكه چي په دې صورت كي د دوى تر مينځ بيع تعاطي وسوه، نو ځكه غلام به د مؤكل (ادريس) وي او پر مؤكل به د هغه ثمن لازم وي يعني د هغه په عوض كي به وكيل ته ثمن وركوي.

د دې مثال دا دی لکه يو څوک چې ديو سړي له حکم څخه بغير د هغه لپاره يو شی رانيسي، نو دا رانيول سوی شی پر مشتري (رانيونکي) لازميږي او پر هغه سړي نه لازميږي. لېکن که مشتري دا رانيول سوی شی هغه سړي ته وسپاري او هغه دا واخلي هم، نو څرنګه چې دا بيع تعاطي ده، او بيع تعاطي جائز ده، نو ځکه دا بيع او رانيول سوی شی به پر هغه سړي لازم وي او هغه به مشتري ته خپل ته ثمن ورکوي، همداسې په پورتنۍ مسئله کي چې کله وکيل رانيول سوی غلام و ادريس (فلان) ته وسپاري او ادريس هغه واخلي، نو دا بيع به پر ادريس لازم وي او هغه به وکيل ته خپل ثمن ورکوي، ځکه چې دا هم بيع تعاطي ده.

ودلت المسألة إلخ: فرمايي له پورتنۍ مسئلې څخه دا خبره ښکاره او مستنبط سوه چې که يو څوک د بيع په توګه يو شی بل سړي ته وسپاري، نو دا د بيع تعاطي لپاره کافي دي يعني فقط په همدې سره بيع تعاطي منعقد کيږي او ثابتيږي؛ که څه هم دا بل سړي تر اوسه ثمن نه وي ورکړی، ځکه چې په بيع تعاطي کي فقط د مشتري او بائع رضا معتبره ده يعني چې د بائع او مشتري په رضا سره راکړه ورکړه وسي بس همدا کافي ده، او فقط په همدې سره بيع تعاطي ثابتيږي، برابره ده دا بيع په زيات قيمت لرونکي (اعلیٰ) شي کي وي او که په کم قيمته (ادنیٰ) شي کي وي، بس شرط د بائع او مشتري رضا ده، او هغه دلته موجوده او پوره ده.

## د دوو متعيّنو شيانو د وکالت په صورت کي يو شی رانيول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا أَنْ يَشْتَرِيَ لَهُ عَبْدَيْنِ بِأَعْيَانِهِمَا فرمايي: او څوک چې يو سړی ته د دې حکم وکړي چې هغه د ده لپاره دوه مُعيّن غلامان رانيسي وَلَمْ يُسَمِّ لَهُ ثَمَنًا او حکم کونکی د هغه سړي [وکيل] مخته ثمن ذکر نه کړي فَاشْتَرَىٰ لَهُ أَحَدَهُمَا بيا وکيل د ده [حکم کونکي (مؤکل)] لپاره له هغه دوارو څخه يو غلام رانيسي جَازَ نو [دا] جائز دي لِأَنَّ التَّوْكِيلَ مُطْلَقٌ ځکه چې وکيل جوړول مطلق دي وَقَدْ لَا يَتَّفِقُ الْجَمْعُ بَيْنَهُمَا فِي الْبَيْعِ او ځيني وخت په بيع کي د دواړو غلامانو جمع کول ممکن نه وي إِلَّا فِيمَا لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ مګر په هغه صورت کي [داسې کول جائز نه دي] چې په هغه کي خلک نه دوکه کيږي [يعني که وکيل يو غلام په ګران قيمت او په دومره زيات تاوان [غبنِ فاحش] سره رانيسي چې عموماً خلک په هغومره تاوان نه مبتلا کيږي] لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ بِالشِّرَاءِ ځکه چې دا د رانيولو وکيل جوړول دي وَهٰذَا كُلُّهُ بِالْإِجْمَاعِ او دا ټوله ازموږ د امامانو په مينځ کي] په اجماع سره دي.

**اللغات**: ﴿لم يسم﴾ د تفعيل د باب جحد صيغه ده: نومول، ذکر کول، مُتعين کول (ټاکل). ﴿لا يتغابن﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده: يو بل ته دوکه ورکول، يو بل ته نقصان رسول، دوکه خوړل، دوکه کېدل. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک (مثلا خالد) بل سړي ته ووايي چې "ته زما لپاره فلانکی او فلانکی غلام رانيسه!" (يعني مُتعين غلامان ورونبيي). لېکن هغه (خالد) ديوه غلام ثمن هم ذکر نه کړي چې په دومره قيمت يې رانيسه!. بيا وکيل له هغو څخه يو غلام رانيسي. نو دا بيع (رانيول) جائز دي او پر مؤکل (خالد) لازم دي (يعني خالد به هغه رانيول سوی غلام اخلي)؛ ځکه چې دلته توکيل مطلق دی، يعني مؤکل دا وکيل نه د جلا جلا رانيولو وکيل جوړ کړی دی او نه يې ديو ځای سره رانيولو وکيل جوړ کړی دی (يعني خالد هغه سړي ته دا نه دي ويلي چې دواړه غلامان يو ځای رانيسه! يا يې جلا جلا رانيسه!). نو ځکه دا توکيل به پر خپل اطلاق پاتيږي او وکيل که يو غلام رانيسي او که دواړه رانيسي، په هر صورت کې به دا بيع جائز وي او پر مؤکل به لازم وي.

وقد لايتفق إلخ: د دې حاصل دا دی چې ځيني وخت د وکيل لپاره دا مشکله وي چې دواړه غلامان يو ځای رانيسي او په يوه وخت کې دواړه سره جمع کړي، نو ځکه په دې حواله سره به هم ديوه غلام بيع جائز وي او پر مؤکل به لازم وي.

ها! که چيرې وکيل يو غلام په غبنِ فاحش (زيات تاوان) سره رانيولی وي، مثلاً دغلام خپل قيمت پنځه سوه درهمه وي او وکيل هغه په اته سوه درهمه رانيولی وي، نو په دې صورت کې دا بيع د وکيل لپاره واقع کيږي او پر وکيل لازميږي. نه پر مؤکل؛ ځکه چې مؤکل دا وکيل د رانيولو وکيل (وکيل بالشراء) جوړ کړی دی، او د رانيولو په وکالت (وکالت بالشراء) کې غبنِ فاحش نه برداشت کيږي يعني د رانيولو په وکالت کې قاعده دا ده چې هغه د غبنِ يسير (لږ تاوان) سره جائز دي، ځکه عموماً په لږ تاوان کې خلک مبتلا کيږي، لېکن غبنِ فاحش (زيات تاوان) چې په هغه کې خلک نه مبتلا کيږي د هغه سره دا وکالت جائز نه دی، نو ځکه د غبنِ فاحش په صورت کې به فقط وکيل ذمه وار وي. پر دې مسئله ټوله متفق دي.

## د پورتنې مسئلې بل صورت

وَلَوْ أَمَرَهُ بِأَنْ يَشْتَرِيَهُمَا بِأَلْفٍ او که مؤکل وکيل ته حکم وکړي چې هغه دواړه غلامان په زر درهمه رانيسي وَقِيمَتُهُمَا سَوَاءٌ او د دواړو غلامانو قيمت سره برابر وي فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِنِ اشْتَرَى أَحَدَهُمَا بِخَمْسِمِائَةٍ أَوْ أَقَلَّ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز که وکيل له هغه دواړو څخه يو غلام په پنځه سوه

درهمه یا تر دې په کمه رانیسي جَازَ نو جائز دي وَإِنِ اشْتَرٰى بِأَكْثَرَ [لیکن] که له پنځه سوو څخه یې په زیاته رانیسي لَمْ يَلْزَمِ الْآمِرَ نو دا بیع پر مؤکل نه لازمیږي لِأَنَّهُ قَابَلَ الْأَلْفَ بِهِمَا ځکه چې مؤکل د دواړو غلامانو په مقابله کې زر درهمه ذکر کړي دي وَقِيمَتُهُمَا سَوَاءٌ او د هغه دواړو قیمت سره برابر دی فَيُقَسَّمُ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ دَلَالَةً نو دلالتاً به زر درهمه د هغه دواړو په مینځ کې تقسیمول کیږي فَكَانَ آمِرًا بِشِرَاءِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِخَمْسِمِائَةٍ نو ځکه مؤکل به په پنځه سوه درهمو د هر غلام د رانیولو حکم کونکی وي ثُمَّ الشِّرَاءُ بِهَا مُوَافَقَةٌ بیا په پنځه سوه درهمه رانیول [د مؤکل د حکم] موافقت کول دي وَبِأَقَلَّ مِنْهَا مُخَالَفَةٌ إِلَى خَيْرٍ او له پنځه سوو څخه په کمه رانیول د ښېګڼې [فایدې] وطرف ته [د هغه] مخالفت کول دي وَبِالزِّيَادَةِ إِلَى شَرٍّ او له پنځه سوو څخه په زیاته رانیول د شر [نقصان] وطرف ته [د هغه] مخالفت کول دي قَلَّتِ الزِّيَادَةُ أَوْ كَثُرَتْ فَلَا يَجُوزُ برابره ده زائد مقدار کم وي او که زیات وي [په هر صورت کې] جائز نه دي إِلَّا أَنْ يَشْتَرِيَ الْبَاقِيَ بِبَقِيَّةِ الْأَلْفِ قَبْلَ أَنْ يَخْتَصِمَا مګر دا چې وکیل باقي [دویم] غلام له زر درهمو څخه د پاته درهمو په عوض کې رانیسي مخکې تر دې چې مؤکل او وکیل مخاصمه [دعوٰی] سره وکړي اسْتِحْسَانًا نو استحساناً جائز دي لِأَنَّ شِرَاءَ الْأَوَّلِ قَائِمٌ ځکه چې [په دې صورت کې] د اول غلام رانیول موجود دي [یعني هغه رانیول سوی دی؛ او تر هغه وروسته دویم غلام هم رانیول سو] وَقَدْ حَصَلَ غَرَضُهُ الْمُصَرَّحُ بِهِ او د مؤکل هغه مقصد حاصل سو چې د هغه صراحت سوی وو [یعني مؤکل چې د کوم مقصد صراحت او ښرګندونه کړې وه چې دواړه غلامان په زر درهمه غوارم!، هغه حاصل او ترسره سو] وَهُوَ تَحْصِيلُ الْعَبْدَيْنِ بِالْأَلْفِ او هغه په زر درهمو سره د دواړو غلامانو حاصلول دي وَمَا ثَبَتَ الِانْقِسَامُ إِلَّا دَلَالَةً او تقسیم فقط دلالتاً ثابت سوي وو وَالصَّرِيحُ يَفُوقُهَا او صراحت پر دلالت لوړ [او بالا] دی.

**اللغات**: ﴿يختصما﴾ د افتعال د باب مضارع ده: جنګ او جنجال کول، دعوٰی کول. ﴿يفوقها﴾ د نصر د باب مضارع ده: لوړېدل، بالا کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی (مثلا خالد) بل څوک وکیل جوړ کړي او هغه ته ووایي چې "ته د زر درهمو په عوض کې فلانکی او فلانکی غلام رانیسه!"، او د هغه دواړو قیمت سره برابر

وي. اوس که وکيل له هغو څخه يو غلام په پنځه سوه درهمه يا تر دې په کم قيمت رانيسي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا بيع جائز ده او پر مؤکل لازم ده. يعني برابره ده وکيل هغه په پنځه سوه رانيولی وي او که تر دې يې په کم قيمت رانيولی وي په هر صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا بائع جائز ده او دا بيع د مؤکل لپاره واقع کيږي او پر هغه لازميږي. ها! که چيري وکيل له پنځه سوه درهمو څخه په زيات قيمت يو غلام رانيولی وي، نو په دې صورت کي دا بيع د مؤکل لپاره نه واقع کيږي بلکي د وکيل لپاره واقع کيږي او پر هغه لازميږي. برابره ده له پنځه سوو څخه زائد مقدار کم وي مثلاً پنځويشت يا پنځوس درهمه زيات وي، يا دا مقدار ډير وي مثلاً سل، دوه سوه درهمه زيات وي.

په مجموعي توګه د دواړو صورتونو دليل دا دی چي مؤکل زر درهمه د دواړو غلامانو عوض ګرځولی دی، او څرنګه چي د دواړو قيمت برابر دی، نو ځکه دلالتاً دا خبره ثابته سوه چي دا زر درهمه به د دواړو په مينځ کي نيم، نيم تقسيمول کيږي، يعني مؤکل ګواکي وکيل ته په پنځه سوه درهمه د هر غلام د رانيولو حکم کړی دی، لهذا اوس که وکيل د پنځه سوه درهمو په عوض کي يو غلام رانيسي، نو ښکاره خبره ده چي دا بيع (رانيول) به د مؤکل د حکم موافق وي، نو ځکه به جائز وي، همدارنګه که وکيل تر دې په کم قيمت يو غلام رانيسي، نو که څه هم په دې صورت کي د مؤکل د حکم مخالفت سته خو څرنګه چي په دې کي د مؤکل فايده ده چي هغه ته له پنځه سوه درهمو څخه په کم قيمت غلام حاصل سو، نو ځکه په دې صورت کي به بيع جائز او صحيح وي او پر مؤکل به لازم وي. لېکن که وکيل له پنځه سوو څخه په زيات قيمت غلام رانيسي، نو څرنګه چي په دې صورت کي د مؤکل د حکم مخالفت هم سته او د هغه نقصان (تاوان) هم سته. نو ځکه دا بيع به پر مؤکل لازم نه وي او فقط وکيل به د دې ذمه وار وي.

او که چيري وکيل له پنځه سوو څخه په زيات قيمت مثلاً په اووه سوه درهمه يو غلام رانيسي او بيا مخکي تر دې چي مؤکل د قاضي په دربار کي دعویٰ او مخاصمه وکړي دا وکيل دويم غلام هم په باقي قيمت (درې سوه درهمه) سره رانيسي، نو په دې صورت کي استحساناً د دواړو غلامانو بيع د مؤکل لپاره واقع کيږي؛ ځکه د اول غلام شراء (رانيول) قائم او موجود دي يعني هغه خو وکيل رانيولی دی او بيا چي له زر درهمو څخه کوم قيمت پاته سو د هغه په عوض کي وکيل دويم غلام هم رانيولی دی، لهذا د مؤکل چي کوم مقصد او غرض وو يعني په زر درهمه دواړه غلامان رانيول. هغه حاصل سو. او پاته سو زر درهمه پر دواړو غلامانو برابر تقسيمېدل. نو دا د مؤکل په کلام سره صراحتاً نه. بلکي دلالتاً ثابت سوي وه. او دا ښکاره او مسلمه خبره ده چي صراحت له دلالت څخه اعلیٰ او بالا دی. او څرنګه چي په دې مسئله کي صراحتاً په زر درهمو سره دواړه غلامان رانيول سوي دي. نو ځکه د دواړو بيع به صحيح وي او پر مؤکل به لازم

وي، او په دې باره کې به هيڅ بحث نه کيږي چې زر درهمه ولي پر دواړو برابر تقسيم نه سول؛ ځکه چې دا تقسيم دلالتاً ثابت دی، او د صراحت په مقابله کې دلالت لره هيڅ اهميت نسته. (احسن الهدايه)

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَقَالَ: أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ❁: إِنِ اشْتَرَى أَحَدَهُمَا بِأَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ الْأَلْفِ بِمَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيْهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: که چيرې وکيل له هغه دواړو غلامانو ځخه يو غلام د زر درهمو له نصف ځخه [يعني له پنځه سوه درهمو ځخه يې] د دومره زائد مقدار په عوض کې رانيسي چې په هغه کې خلک دوکه کيږي [يعني په دومره تاوان سره يې رانيسي چې په داسې لږ تاوان عموماً خلک مبتلا کيږي] وَقَدْ بَقِيَ مِنَ الْأَلْفِ مَا يُشْتَرَى بِمِثْلِهِ الْبَاقِيْ او [تر هغه وروسته هم] له زر درهمو ځخه دومره پاته وي چې په هغومره دراهمو سره باقي [دويم] غلام رانيول کېدای سي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ التَّوْكِيلَ مُطْلَقٌ ځکه چې وکيل جوړول مطلق دي لٰكِنَّهُ يَتَقَيَّدُ بِالْمُتَعَارَفِ ليکن هغه په متعارف سره مقيد دی وَهُوَ فِيْمَا قُلْنَا او متعارف په هغه صورت کې دی کوم چې مونږ ذکر کړی وَلٰكِنْ لَا بُدَّ أَنْ يَبْقَى مِنَ الْأَلْفِ بَاقِيَةٌ يُشْتَرَى بِمِثْلِهَا الْبَاقِيْ ليکن دا ضروري ده چې له زر درهمو ځخه به دومره پاته وي چې په هغومره دراهمو سره باقي [دويم] غلام رانيول کېدای سي لِيُمْكِنَهُ تَحْصِيْلُ غَرَضِ الْآمِرِ د دې لپاره چې وکيل لره د مؤکل مقصد حاصلول ممکن وي.

**تشريح**: په مخکنې عبارت کې خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول او دليل بيان سو، اوس په دې عبارت کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د صاحبينو قول او دليل بيانوي، فرمايي چې په تېره مسئله کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز حکم دا دی که وکيل له دواړو غلامانو ځخه يو غلام په غبن يسير (لږ تاوان) سره رانيسي کوم چې عموماً خلک په هغومره مقدار کې دوکه خوري، او چې تر هغه وروسته هم له زر درهمو ځخه دومره دراهم پاته وي چې په هغه سره په آسانه دويم غلام رانيول کېدای سي، مثلاً د پنځه سوه درهمو والا غلام وکيل په پنځه سوه شل درهمه رانيسي، نو په داسې صورت کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا بيع (رانيول) د مؤکل لپاره واقع کيږي او پر هغه لازميږي.

---

❁ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما يظهر من داب المصنف رَحِمَهُ الله ترجيح قولهما وهو انسب للفتوى، وقال ﷺ: "يَسِّرُوْا وَلَا تُعَسِّرُوْا"، وكذا ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۴۵۱)، والبحر الرائق (ج:۷، ص:۱۶۳). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۵۶]

دليل يې دا دی چې مذكوره توكيل مطلق دی يعني په دې مسئله كې مؤكل هغه وكيل مطلق د دوو غلامانو د رانيولو وكيل جوړ كړی دی او دا شرط يې نه دی لګولی چې هر غلام په پنځه سوه دراهمه رانيسه!، خو بيا هم هغه د مطلق كېدلو باوجود په عرف او رواج سره مقيد دی او په عرف كې غبن يسير معاف شمارل كيږي، نو ځكه دلته به هم د وكيل په دې بيع كې واقع سوی غبن يسير معاف شمارل كيږي او دا بيع به د مؤكل لپاره وي او پر هغه به لازم وي، نه پر وكيل.

لېكن دا خبره په ياد لرئ! چې په غبن يسير سره د رانيولو په صورت كې به له زر درهمو څخه دومره دراهم خامخا پاته وي چې په هغه سره دويم غلام رانيول كېدای سي، د دې لپاره چې د مؤكل "مقصد" يعني "په زر درهمه دواړه غلامان رانيول" حاصل كړی سي او د هغه مطلب تر سره سي.

## مقروض (پور وړی) كس د قرض په عوض كې د يو شي د رانيولو وكيل جوړول (حكم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ أَلْفُ دِرْهَمٍ فرمايي: او د چا چې پر بل چا زر درهمه قرض باندي وي فَأَمَرَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ بِهَا هَذَا الْعَبْدَ بيا هغه و دا بل چا ته حكم وكړي چې په هغه زر درهمو سره دا [متعين] غلام رانيسي فَاشْتَرَاهُ او هغه دا غلام رانيسي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ فِي تَعْيِينِ الْمَبِيعِ تَعْيِينَ الْبَائِعِ ځكه چې د مبيع په مُتعيّن كولو كې د بائع تعيين [هم] سته [يعني د مبيع په مُتعينولو سره بائع هم مُتعيّن كيږي] وَلَوْ عَيَّنَ الْبَائِعَ او كه چيري مؤكل بائع مُتعيّن كړي يَجُوزُ نو جائز دي [لهذا كله چې هغه مبيع (غلام) مُتعيّن كړي نو دا به هم جائز وي] عَلَى مَا نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى لكه څرنګه چې موږ به [وروسته] انشاء الله د دې بيان وكړو.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو بالكل ښكاره دی چې كه د يو سړي مثلاً د خالد پر بل چا زر درهمه قرض باندي وي، بيا قرضخواه (خالد) و مقروض ته ووايي "زما چې پر تا كوم زر درهمه باندي دي، په هغه سره زما لپاره فلانكی غلام رانيسه!"، او مقروض (پور وړی) د قرضخواه حكم پر ځای كړي او هغه غلام رانيسي، نو دا بيع جائز ده او پر مؤكل (قرضخواه) لازم ده، يعني دا غلام د مؤكل "خالد" كيږي، نه د وكيل، او له وكيل (مقروض) څخه قرض ختميږي؛ دليل دا دی چې دلته مؤكل (قرضخواه) مبيع يعني غلام مُتعيّن كړی دی، او د مبيع په مُتعيّن كولو سره بائع هم مُتعيّن كيږي (يعني ګواكې مؤكل [قرضخواه] پر خپل قرض د قبضه كولو لپاره بائع مُتعيّن كړی دی)، او كه مؤكل بائع مُتعيّن كړي نو بيع جائز ده (او د مؤكل پر قرض د بائع قبضه كول جائز دي)، نو ځكه د مبيع د مُتعين كولو په صورت كې به هم بيع جائز وي او پر مؤكل به لازم وي. د دې نور تفصيل او تشريح به انشاء الله وروسته ذكر سي.

## د پورتني مسئلې بل صورت

وَإِنْ أَمَرَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ بِهَا عَبْدًا بِغَيْرِ عَيْنِهِ او که قرضخواه مقروض ته حکم وکړي چې په هغه زر درهمو سره يو غير مُعيّن [نا مُتعيّن غلام] رانيسي فَاشْتَرَاهُ نو مقروض هغه رانيسي فَمَاتَ فِي يَدِهِ قَبْلَ أَنْ يَقْبِضَهُ الْآمِرُ بيا هغه د مقروض [وکيل] په قبضه کې مړ سي مخکې تر دې چې مؤکل [قرضخواه] پر هغه قبضه وکړي مَاتَ مِنْ مَالِ الْمُشْتَرِيْ نو هغه د مشتري [مقروض] له مال څخه مړ سو [يعني هغه به د مقروض له مال څخه هلاک شمارل کيږي] وَإِنْ قَبَضَهُ الْآمِرُ او که چيري مؤکل پر هغه غلام قبضه وکړي فَهُوَلَهُ نو [په دې صورت کې] غلام د مؤکل دی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا: هُوَلَازِمٌ لِلْآمِرِ إِذَا قَبَضَهُ الْمَأْمُوْرُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې هغه د مؤکل لپاره لازم دی کله چې وکيل پر هغه قبضه کړې وي وَعَلٰى هٰذَا إِذَا أَمَرَهُ أَنْ يُسْلِمَ مَا عَلَيْهِ أَوْ يَصْرِفَ مَا عَلَيْهِ او پر همدغه اختلاف دي کله چې قرضخواه مقروض ته دا حکم وکړي چې کوم څه [زما] پر تا باندي دي په هغه سره بيع سَلَم وکړه! يا بيع صَرف وکړه لَهُمَا: أَنَّ الدَّرَاهِمَ وَالدَّنَانِيْرَ لَا يَتَعَيَّنَانِ فِي الْمُعَاوَضَاتِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې په معاوضاتو کې دراهم او دنانير نه مُتعيّن کيږي دَيْنًا كَانَتْ أَوْ عَيْنًا برابره ده هغه قرض وي او که عَين شی وي أَلَا تَرٰى أَنَّهُ لَوْتَبَايَعَا عَيْنًا بِدَيْنٍ آيا ته نه ګورې! چې که دوه خلګ يو عَين شی د قرض په عوض کې خرڅ کړي ثُمَّ تَصَادَقَا أَنْ لَا دَيْنَ بيا دواړه اتفاق وکړي چې قرض نه وو لَا يَبْطُلُ الْعَقْدُ نو بيع نه باطليږي فَصَارَ الْإِطْلَاقُ وَالتَّقْيِيْدُ فِيْهِ سَوَاءً لهذا په دې معامله کې اطلاق او تقييد دواړه برابر سول فَيَصِحُّ التَّوْكِيْلُ نو ځکه به توکيل [وکيل جوړول] صحيح وي وَيَلْزَمُ الْآمِرَ او بيع [رانيول] به پر مؤکل لازم وي لِأَنَّ يَدَ الْوَكِيْلِ كَيَدِهِ ځکه چې د وکيل قبضه د مؤکل د قبضې په څېر ده وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ: أَنَّهَا تَتَعَيَّنُ فِي الْوَكَالَاتِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې دراهم او دنانير په وکالتونو کې مُتعيّن کيږي أَلَا تَرٰى أَنَّهُ لَوْ قَيَّدَ الْوَكَالَةَ بِالْعَيْنِ مِنْهَا أَوْ بِالدَّيْنِ مِنْهَا آيا ته نه ګورې! چې که مؤکل په عَين دراهمو سره يا د قرض په دراهمو سره وکالت مقيد کړي ثُمَّ اسْتَهْلَكَ الْعَيْنَ أَوْ أَسْقَطَ الدَّيْنَ بيا عَين دراهم

هلاک کړي يا قرض ساقط کړي بَطَلَتِ الْوَكَالَةُ نو وکالت باطليږي وَإِذَا تَعَيَّنَتْ لهذا کله چي [په وکالت کي] دراهم او دنانير مُتعيّن کيږي كَانَ هٰذَا تَمْلِيكُ الدَّيْنِ مِنْ غَيْرِ مَنْ عَلَيْهِ الدَّيْنُ مِنْ غَيْرِ أَنْ يُوَكِّلَهُ بِقَبْضِهِ نو دا له مقروض څخه بغير د بل چا مالک جوړول سوه بغير له دې چي هغه د قبضه کولو وکيل جوړ کړي وَذٰلِكَ لَا يَجُوزُ حالانکي دا جائز نه دي كَمَا إِذَا اشْتَرٰى بِدَيْنٍ عَلٰى غَيْرِ الْمُشْتَرِيْ لکه يو سړی چي د داسي قرض په عوض کي يو شی رانيسي کوم چي له مشتري څخه بغير پر بل چا باندي وي أَوْ يَكُوْنُ أَمْرًا بِصَرْفِ مَا لَا يَمْلِكُهُ إِلَّا بِالْقَبْضِ قَبْلَهُ يا [مؤکل وکيل ته] د داسي مال د خرچولو [صرف کولو] حکم وکړي چي هغه يې په خپله مالک نه وي، مګر [په هغه وخت کي] چي تر حکم کولو مخکي پر هغه مال قبضه وکړي وَذٰلِكَ بَاطِلٌ او دا باطل دي كَمَا إِذَا قَالَ: أَعْطِ مَالِيْ عَلَيْكَ مَنْ شِئْتَ لکه په هغه صورت کي [چي باطل دي] کله چي ووايي: زما چي کوم مال پر تا باندي دی، دا چي ستا خوښه وي هغه چا ته يې ورکړه! بِخِلَافِ مَا إِذَا عَيَّنَ الْبَائِعَ په خلاف د هغه صورت کله چي مؤکل بائع مُتعيّن کړي لِأَنَّهُ يَصِيْرُ وَكِيْلًا عَنْهُ فِي الْقَبْضِ ثُمَّ يَتَمَلَّكُهُ ځکه چي [په دې صورت کي] بائع د مؤکل له طرفه د قبضه کولو وکيل ګرځي بيا بائع د هغه [قرض] مالک کيږي وَبِخِلَافِ مَا إِذَا أَمَرَهُ بِالتَّصَدُّقِ او په خلاف د هغه صورت کله چي مؤکل مقروض ته د مال صدقه کولو حکم وکړي لِأَنَّهُ جَعَلَ الْمَالَ لِلّٰهِ ځکه چي [په دې صورت کي] هغه د الله تعالیٰ لپاره مال وقف کړی دی وَهُوَ مَعْلُوْمٌ او هغه معلوم دی وَإِذَا لَمْ يَصِحَّ التَّوْكِيْلُ او کله چي توکيل صحيح نه دی نَفَذَ الشِّرَاءُ عَلَى الْمَأْمُوْرِ نو ځکه رانيول [يعني رانيول سوی غلام] په پر وکيل نافذيږي [او لازميږي] فَيَهْلِكُ مِنْ مَالِهِ او هغه غلام به د همدې وکيل له مال څخه هلاکيږي [يعني هغه به د وکيل له مال څخه هلاک شمارل کيږي] إِلَّا إِذَا قَبَضَهُ الْآمِرُ مِنْهُ مګر دا چي کله مؤکل د وکيل له طرفه قبضه وکړي لِانْعِقَادِ الْبَيْعِ تَعَاطِيًا ځکه چي [په دې صورت کي] بيع تعاطي وسوه.

**اللغات**: ﴿يُسلم ما عليه﴾ "يسلم" د تفعيل او افعال له بابه د مضارع صيغه ده، کله چي دا لفظ په بيع کي ذکر سي نو معنیٰ يې ده: بيع سَلَم کول. ﴿يصرف﴾ د ضرب د باب مضارع صيغه ده، کله چي په بيع کي ذکر سي نو د "بيع صَرف کولو" معنیٰ ورکوي. ﴿عَينًا﴾ عَين شی، مُتعيّن شی. ﴿دَين﴾

قرض، ﴿إطلاق﴾ د افعال د باب مصدر دی: مطلق لرل، مطلق کول، ﴿تقييد﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مقيد کول، قيد لګول، مثلاً مؤکل وکيل ته ووايي چې زما پر تا کوم زر درهمه باندې دي، په هغه سره غلام رانيسه!، نو دلته مؤکل زر درهمه مقيد کړل (د ځان سره)، او که هغه مطلق ووايي چې په زر درهمو سره غلام رانيسه! او داسې نه ووايي چې زما، نو هغه دا زر درهمه مطلق پرېښوول، همدې ته اطلاق او تقييد وايي، ﴿استهلك﴾ د استفعال د باب ماضي ده: هلاک کول، ضايع کول، ﴿عَين﴾ مُتعيَّن شی، ﴿يتملّك﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: مالک کېدل (مالک جوړېدل)، ﴿التصدّق﴾ د مخکنې باب مصدر دی: صدقه کول (خيراتول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مثلاً د خالد پر ادريس زر درهمه قرض باندې وو، بيا خالد ادريس ته وويل چې "وروره! زما کوم زر درهمه چې پر تا باندې دي، په هغه سره يو غلام رانيسه!" يعنې قرضخواه (خالد) غلام مُتعيَّن نه کړې چې خاص فلانکی غلام رانيسه!، بيا مقروض (ادريس) د زر درهمو په عوض کې يو غلام رانيوی او تر رانيولو وروسته او د قرضخواه (خالد) له قبضه کولو څخه مخکې هغه غلام د مقروض (ادريس) په قبضه کې مړ سو (يعنې تر اوسه ادريس هغه غلام خالد ته نه وو سپارلی او خالد پر غلام قبضه نه وه کړې بلکې غلام د ادريس په لاس کې وو، او په دې دوران کې هغه مړ سو)، نو دا غلام د مشتري يعنې د مقروض (ادريس) له مال څخه هلاک شمارل کيږي يعنې دا داسې ده لکه د ادريس خپل غلام چې مړ سو، نو د هغه له ذمې څخه د قرضخواه قرض نه ساقطيږي، يعنې کله چې د هغه خپل غلام مړ سوی دی، نو ځکه د هغه له غاړې څخه د قرضخواه (خالد) قرض نه ساقطيږي، بلکې د مخکې په څېر پر هغه قرض باقي پاتيږي.

او که چيرې مؤکل يعنې قرضخواه (خالد) پر هغه غلام قبضه وکړه، نو په دې صورت کې د غلام مرګ د قرضخواه له مال څخه شمارل کيږي او د مقروض (ادريس) له غاړې څخه د هغه قرض ساقطيږي، دا تفصيل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي که د مشتري يعنې د مقروض (ادريس) تر قبضې وروسته غلام مړ سوی وي، نو هغه د مؤکل يعنې د قرضخواه (خالد) له مال څخه هلاک شمارل کيږي، برابره ده مؤکل پر هغه قبضه کړې وي، که نه وي، په دواړو صورتونو کې دا هلاکت د مؤکل له مال څخه شمارل کيږي او د وکيل يعنې د مقروض (ادريس) له ذمې څخه د هغه قرض ساقطيږي.

وعلى هذا إذا أمره إلخ: فرمايي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف په هغه صورت کې هم دی کله چې مؤکل و مقروض (وکيل) ته داسې ويلي وي "پر تا چې زما کوم قرض باندې دی په هغه سره بيع سَلم يا بيع صَرف وکړه!"، نو که مقروض په هغه سره بيع سَلم يا بيع صَرف وکړي او بيا

مسلم فيه يا بدل صرف د هغه په قبضه کې هلاک سي او تر اوسه مؤکل يعني قرضخواه پر هغه قبضه نه وي کړې، نو دا هلاکت د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مقروض له مال څخه شمارل کيږي، او که مؤکل (قرضخواه) پر هغه قبضه کړې وي او د ده په قبضه کې هغه هلاک سوی وي، نو دا هلاکت د مؤکل يعني د قرضخواه له مال څخه شمارل کيږي او د مقروض له ذمې څخه د هغه قرض ساقطيږي.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز که مقروض پر مسلم فيه او بدل صرف قبضه کړې وي، نو دا هلاکت د مؤکل له مال څخه شمارل کيږي، برابره مؤکل پر هغه قبضه کړې وي، که نه وي؟.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې د معاوضې په عقدونو کې دراهم او دنانير په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيّن کيږي (او وکالت هم حکماً د معاوضې عقد دی، او د معاوضي په عقد کي دراهم او دنانير نه مُتعيّن کيږي)، برابره ده هغه دَين وي يعني د يو چا پر ذمه باندي وي (يعني د يو سړي پر بل سړي باندي وي) او که عَين وي يعني د يو چا پر ذمه باندي نه وي بلکي د عاقد سره موجود وي، په هر صورت کي هغه نه مُتعيّن کيږي؛ همدا وجه ده که خالد ووايي چي زما پر ادريس پنځه سوه درهمه قرض باندي دی او بيا خالد د هغه قرض په عوض کي له ادريس څخه يو شی رانيسي، تر دې وروسته دواړه پر دې خبره اتفاق وکړي چي د خالد پر ادريس قرض باندي نه وو بلکي خالد په خپل قول کي درواغجن وو (يعني ادريس ووايي چي تا پر ما پنځه سوه درهمه قرض باندي نه وو، او خالد دا خبره تسليم کړي چي هو! زه په خپل قول کي دروغجن يم)، نو د خالد او ادريس تر مينځ دغه واقع سوی عقد (بيع) نه باطليږي، حالانکي که دراهم او دنانير په عقد معاوضه کي مُتعيّن کېدلای نو د قرض پر نشتوالي په اتفاق کولو سره به د خالد او ادريس دغه عقد (بَيع) باطل سوي وای، لېکن د هغه نه باطلېدل د دې خبر ښکاره دليل دی چي دراهم او دنانير په معاوضاتو کي نه مُتعيّن کيږي، او هر هغه شی کوم چي په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيّن کيږي، په هغه کي اطلاق او تقييد دواړه سره برابر وي، يعني برابره ده په دې مسئله کي قرضخواه و مقروض ته داسي ويلي وي "چي زما پر تا کوم قرض (زر درهمه) باندي دي، په هغه سره زما لپاره يو غلام رانيسه!"، دا د تقييد صورت دی، يا قرضخواه مطلق داسي ويلي وي "چي زما لپاره په زر درهمه يو غلام رانيسه!"، نو دا د اطلاق صورت دی، لنډه دا چي په دې مسئله کي اطلاق او تقييد دواړه سره برابر دي، لهذا څرنګه چي د اطلاق په صورت کي توکيل صحيح دي، همداسي د تقييد په صورت کي هم توکيل صحيح دی، او کله چي توکيل (وکيل جوړول) صحيح دي، نو ځکه د وکيل شراء (رانيول) به پر مؤکل لازم وي که چيرې وکيل پر غلام قبضه کړې وي؛ ځکه چي د وکيل قبضه داسي ده لکه د مؤکل قبضه، نو ځکه د وکيل په قبضه کي به د غلام مړ کېدل داسي وي لکه وکيل په قبضه کي مړ کېدل، او که چيرې د مؤکل په قبضه کي غلام مړ سوي وای، نو ښکاره خبره ده چي د وکيل

(مقروض) له ذمې څخه به د هغه قرض ساقطېدای، لهذا کله چې د وکيل په قبضه کې غلام مړ سي، نو هم به د هغه له ذمې څخه د مؤکل قرض ساقطيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې دا مسئله د وکالت ده، او په وکالت کې دراهم او دنانير په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي؛ همدا وجه ده که مؤکل په عَين دراهمو او دنانيرو سره وکالت مقيد کړي (يعني مؤکل وکيل ته عَين [نغد] دراهم يا دنانير ورکړي)، يا د قرض په دراهم او دنانيرو سره وکالت مقيد کړي او داسي ووايي "زما چې پر تا کوم قرض (دراهم يا دنانير) باندي دي، په هغه سره فلانکی شی رانيسه!" (لکه څرنګه چې صورت د مسئلې هم داسي دی)، بيا وکيل هغه عَين دراهم يا دنانير هلاک کړي، يا مؤکل له وکيل څخه خپل قرض ساقط کړي او وکيل معاف کړي، نو په دې صورت کې وکالت باطليږي. او د وکالت باطلېدل د دې خبري دليل دی چې په وکالت کې دراهم او دنانير په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي، نو ځکه په پورتني مسئله کې مقروض (وکيل) ته د قرضخواه (مؤکل) دا حکم کول "چې زما پر تا کوم قرض (زر درهمه) باندي دي، په هغه سره يو غلام رانيسه!"، د دې مطلب دا دی چې قرضخواه له مقروض څخه بغير يو بل سړی يعني د غلام بائع د خپل قرض مالک جوړوي حال دا چې قرضخواه تر اوسه د غلام بائع پر خپل قرض د قبضه کولو وکيل نه دی جوړ کړی (همدې ته "تمليكُ الدَين مِن غير مَن عليه الدَين مِن غيرِ أن يوكله" وايي)، او د قرضخواه لپاره دا جائز نه دي چې بائع د قبضې له وکيل جوړولو څخه بغير د خپل قرض مالک جوړ کړي، ځکه قرضخواه بلا واسطه بائع د خپل قرض مالک نه سي جوړولای؛ ځکه چې قرضونه بامثالها اداء کيږي، نه باعيانها، او د مقروض له طرفه د قرضونو تر اداء کولو مخکې قرضخواه بالکل د هغه مالک نه وي بلکې هغه د مقروض په ملکيت کې وي، او کله چې قرضخواه د هغه مالک نه دی، نو ښکاره خبره ده چې قرضخواه بل څوک هم د هغه مالک نه سي جوړولای؛ ځکه انسان چې په خپله د کوم شي مالک نه وي، هغه بل څوک د دې شي مالک نه سي جوړولای، او دا خرابي دلته پېښه سوې ده، يعني کله چې قرضخواه مقروض وکيل بالشراء جوړ کړی (يعني کله چې خالد ادريس په خپل قرض سره د غلام رانيولو وکيل جوړ کړی)، نو په دې وکيل جوړولو سره دا خرابي (يعني له مالک کېدلو څخه بغير بل څوک مالک جوړول) لازمه سوه، نو ځکه امام صاحب رَحِمَهُ الله ګرسره د دې خرابۍ بېخ او بنياد يعني توکيل غلط او ناصحيح ګرځولی دی، او ښکاره خبره ده چې کله توکيل صحيح نه دی، نو د مذکوره غلام بيع د وکيل د خپل ځان لپاره واقع سوه او همدا وکيل د هغه ذمه وار سو، نو په همدې وجه د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې که د وکيل په قبضه کې غلام مړ سي، نو د هغه هلاکت (مرګ) د وکيل له مال څخه شمارل کيږي، ها! که چيري وکيل هغه غلام مؤکل ته سپارلی وي او مؤکل هغه اخيستی

وي، نو بيا په دې صورت كې د هغه هلاكت د مؤكل له مال څخه شمارل كيږي. لېكن دا هم په دې وجه نه چې توكيل صحيح دى، بلكې په دې وجه چې اوس د وكيل او د مؤكل په مينځ كې بيع تعاطي واقع سوه (ځكه چې بيع تعاطي همدې ته وايي چې يو څوك د بيع په توګه بل چا ته يو شى وسپاري او هغه يې واخلي. لكه مخكې چې ذكر سوه)، او بيع تعاطي صحيح ده. نو ځكه د مؤكل لپاره به د دې غلام مالك كېدل هم صحيح وي او غلام به د مؤكل په قبضه كې هلاک سوى وي او د هغه له مال څخه به هلاک شمارل كيږي. لهذا د مقروض وكيل پر ذمه چې د مؤكل كوم قرض باندې وو (يعني هغه زر درهمه كوم چې د قرضخواه (خالد) پر مقروض وكيل (ادريس) باندې وو چې په هغه سره وكيل د قرضخواه لپاره دا هلاک سوى غلام رانيولى وو)، هغه قرض به د وكيل له ذمې څخه ساقطيږي.

كما إذا اشترى بدين: دا د پورتنۍ جملې "تمليكُ الدَّين مِن غير مَن عليه الدَّين مِن غيرِ أن يوكله" مثال دى، د دې جملې وضاحت خو پورته ذكر سو، اوس صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې يو مثال بيانوي، او هغه دا چې كه يو سړى د داسې قرض په عوض كې يو شى رانيسي كوم چې له مشتري څخه بغير پر بل چا باندې وي، مثلاً د حامد پر زيد قرض باندې وو. بيا حامد له عمر څخه يو پُسه رانيوى او عمر ته يې وويل چې ته د دې پُسه روپۍ له زيد څخه واخله!، ځكه چې زما پر زيد قرض باندې دى، نو داسې معامله جائز نه ده، ځكه په دې كې هم هغه خرابي لازميږي كوم چې څه مخكې د "تمليكُ الدَّين مِن غير مَن عليه الدَّين إلخ" په عبارت سره بيان سوه، دويمه هغه خرابي لازميږي كوم چې موږ په دې عبارت سره بيان كړه چې "قرضونه بامثالها اداء كيږي"، يعني كله چې قرضونه بامثالها اداء كيږي، نو ښكاره خبره ده چې تر څو مقروض قرضخواه ته خپل قرض نه وركړي تر هغه وخته به قرضخواه د هغه مالک هم نه وي، او په دې توګه به دا خرابي لازم سي چې قرضخواه به بل څوک يعني بائع (لكه په دې مثال كې عُمر) د هغه قرض مالک جوړ كړي، او دا هيڅكله صحيح نه دي، د دې بل مثال داسې دى لكه د يو سړي چې پر بل چا قرض باندې وي، مثلاً د نعمان پر سليم قرض باندې وو، بيا قرضخواه (نعمان) و خپل مقروض (سليم) ته وويل "چې زما كوم څه قرض پر تا باندې دى، دا قرض چې ستا خوښه وي هغه كس ته يې وركړه!"، نو څرنګه چې په دې صورت كې هم قرضخواه د خپل قرض مالک نه دى، نو ځكه بل څوک د هغه مالک جوړول هم صحيح نه دي.

دا پورتنۍ خبرې خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل په ضمن كې ذكر سوي وې، لېكن د نور وضاحت لپاره موږ د مصنف د بيان مطابق هغه جلا او په تفصيل سره ذكر كړې.

بخلاف ما إذا عين البائع إلخ: د دې حاصل دا دى كه مؤكل يعني قرضخواه د غلام بائع مُتعيّن كړي او مقروض (وكيل) ته داسې ووايي چې ته د فلانكي سړي غلام رانيسه!، نو دا توكيل د امام صاحب

رَحِمَهُ الله په نيز هم صحيح دی او پر مؤکل لازم دی؛ ځکه چي د بائع د مُتعيّن کېدلو په وجه به هغه بائع اول د قرضخواه له طرفه پر قرض د قبضه کولو وکيل وګرځي او بيا به د بائع کېدلو په وجه د هغه قرض مالک هم وګرځي، لهذا نه به د ''تمليكُ الدّين مِن غير مَن عليه الدّين إلخ'' والا خرابي لازم سي او نه به قرضخواه د ''صَرْفُ مَا لَا يَملِكُه'' حکم کونکی وي او دا توکيل به له دې دواړو خرابيو څخه پاک وي، نو ځکه به جائز او صحيح وي او پر مؤکل به لازم وي.

وبخلاف ما إذا أمره إلخ: فرمايي همدارنګه که مؤکل (قرضخواه) و مقروض ته دا حکم وکړي ''چي زما پر تا کوم مال باندي دی، هغه غريبانو او مسکينانو ته صدقه کړه!''، نو په دې صورت کښ هم توکيل صحيح دی؛ ځکه چي په دې صورت کي مؤکل د الله لپاره مال وقف کړی دی او د الله ذات معلوم دی، نو ځکه دا صورت د بائع د مُتعيّن کولو په څېر سو، او مخکي ذکر سوه چي د بائع د مُتعيّن کولو په صورت کي توکيل صحيح او جائز دی، نو ځکه په دې صورت کي به هم توکيل صحيح وي.

وإذا لم يصح إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله په پورتنی مسئله کي دا صحيح نه دي چي قرضخواه مقروض د نا مُتعيّن غلام د رانيولو وکيل جوړ کړي، نو ښکاره خبره ده چي که مقروض (وکيل) غلام رانيسي، نو دا رانيول (يعني رانيول سوی غلام) به د هغه لپاره وي او پر هغه به لازم وي، نه پر مؤکل (قرضخواه). ها! که چيري مقروض هغه غلام مؤکل ته وسپاري او مؤکل قبضه پر وکړي، نو په دې صورت کي به رانيول د مؤکل لپاره وي او د وکيل او مؤکل په مينځ کي به بيع تعاطي واقع سي (لکه مخکي چي ذکر سوه) نو وکيل به بائع او مؤکل به مشتري وي، او تاسو ته معلومه ده چي که په عامه بيع کي مشتري پر مبيع قبضه وکړي او مبيع واخلي نو هغه د نفع او نقصان ذمه واره کيږي، همداسي به په دې مسئله کي هم مشتري يعني مؤکل (قرضخواه) د رانيول سوي غلام د نفع او نقصان ذمه وار وي، لهذا که غلام هلاک سي نو دا به د هغه له مال څخه هلاک شمارل کيږي، او د وکيل يعني د مقروض له ذمې څخه به د مؤکل قرض ساقطيږي.

## که وکيل او مؤکل د مبيع په قيمت کي اختلاف وکړي (حکم او تفصيل)

| قَالَ: وَمَنْ دَفَعَ إِلَى آخَرَ أَلْفًا وَأَمَرَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ بِهَا جَارِيَةً فرمايي: او څوک چي بل چا ته زر درهمه ورکړي او هغه ته حکم وکړي چي په دې دراهمو سره يوه مينځه رانيسي فَاشْتَرَاهَا نو هغه مينځه رانيول فَقَالَ: الْآمِرُ: اشْتَرَيْتَهَا بِخَمْسِ مِائَةٍ او مؤکل ووېل: چي تا دا مينځه په پنځه سوه درهمه رانيولې ده وَقَالَ الْمَأْمُورُ: اشْتَرَيْتُهَا بِأَلْفٍ او وکيل ووېل: چي ما په زر درهمه رانيولې ده فَالْقَوْلُ |
| --- |

قَوْلُ الْمَأْمُوْرِ نو قول د وکيل معتبر دی وَمُرَادُهُ إِذَا كَانَتْ تُسَاوِيْ أَلْفًا او د ماتن رَحِمَهُ الله مراد دا دی چې کله مينځه د زر درهمو په برابر وي [يعني د هغې ماليت او قيمت زر درهمه وي او په زر درهمه ارزي] لِأَنَّهُ أَمِيْنٌ فِيْهِ ځکه چې وکيل په دې باره کې امين دی وَقَدِ ادَّعَى الْخُرُوْجَ عَنْ عُهْدَةِ الْأَمَانَةِ او هغه د امانت له ذمه وارۍ څخه د وتلو دعویٰ کړې ده وَالْآمِرُ يَدَّعِيْ عَلَيْهِ ضَمَانَ خَمْسِ مِائَةٍ او مؤکل پر هغه د پنځه سوه درهمو د ضمان [تاوان] دعویٰ کړې ده وَهُوَ يُنْكِرُ او وکيل له دې څخه انکار کوي فَإِنْ كَانَتْ تُسَاوِيْ خَمْسَ مِائَةٍ [ليکن] که هغه مينځه د پنځه سوه درهمو په برابر وي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْآمِرِ نو قول د مؤکل معتبر دی لِأَنَّهُ خَالَفَ ځکه چې وکيل [د مؤکل د حکم] مخالفت وکړی حَيْثُ اشْتَرَى جَارِيَةً تُسَاوِيْ خَمْسَ مِائَةٍ په دې توګه چې هغه داسې مينځه رانيولې کوم چې د پنځه سوه درهمو په برابر ده وَالْأَمْرُ تَنَاوَلَ مَا يُسَاوِيْ أَلْفًا او [د مؤکل] حکم داسې مينځې لره شامل وو کوم چې د زر درهمو په برابر وي فَيَضْمَنُ نو ځکه به وکيل ضامن وي.

**اللغات**: ﴿دفع﴾ د فتح د باب ماضي ده: ورکول، ورسپارل. ﴿تساوي﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: مساوي کېدل، برابرېدل. ﴿عهدة﴾ ذمه واري. ﴿تناول﴾ د تفاعل د باب ماضي ده: شاملېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړي بل چا ته زر درهمه ورکړي او هغه ته ووايي چې "ته په دې سره زما لپاره يوه مينځه رانيسه!"، نو وکيل د هغه سړي (مؤکل) حکم پر ځای کړي او د هغه لپاره يوه مينځه رانيسي، تر دې وروسته مؤکل ووايي چې "تا دا مينځه په پنځه سوه درهمه رانيولې ده" او وکيل ووايي چې "ما په زر درهمه رانيولې ده"، نو د داسې اختلاف په صورت کې به د مينځې ماليت او قيمت ته کتل کېږي، که چېرې هغه مينځه په زر درهمه ارزي يعنې د هغې ماليت د زر درهمو په برابر وي، نو بيا د وکيل (مامور) قول معتبر دی؛ ځکه چې په دې سلسله کې وکيل امين دی او هغه په خپل دې قول سره "چې ما په زر درهمه مينځه رانيولې ده" د امانت له ذمه وارۍ څخه وتل غواړي، يعنې هغه غواړي چې د امانت له ذمه وارۍ څخه ځان خلاص او بري کړي، او د امانت له ذمه وارۍ څخه د وتلو په باره کې د امين قول معتبر وي، نو ځکه د لته به هم د وکيل "کوم چې امين دی" قول به معتبر وي.

دويم دليل دا دی چې مؤکل پر وکیل د پنځه سوه درهمو د ضمان (تاوان) مدعي دی او وکيل له دې څخه منکر دی، او څرنګه چې د مدعي يعني د مؤکل سره بيّنه هم نسته، نو ځکه د منکر يعني د وکيل قول به معتبر وي.

فإن كانت تساوي إلخ: فرمايي که د رانيول سوي مينځې قيمت فقط د پنځه سوه درهمو په برابر وي او بيا وکيل او مؤکل د هغې په قيمت کې اختلاف وکړي، نو په دې صورت کې د مؤکل قول معتبر دی، ځکه مؤکل و وکيل ته دا حکم کړی وو چې د زر درهمو والا مينځه رانيسه!، لېکن وکيل د پنځه سوه درهمو والا مينځه رانيولې ده، او ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې هغه د مؤکل د حکم مخالفت کړی دی او په دې کې د مؤکل نقصان هم دی، نو ځکه د وکيل دعویٰ به معتبره وي او دا بيع يعني رانيول سوی غلام به د وکيل لپاره وي، او کله چې رانيول سوی غلام د وکيل لپاره دی او د مؤکل دعویٰ معتبره ده، نو ځکه پر وکيل به د مؤکل د زر درهمو ضمان (تاوان) واجب وي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: وَإِنْ لَمْ يَكُنْ دَفَعَ إِلَيْهِ الْأَلْفَ فرمايي: او که مؤکل وکيل ته زر درهمه نه وي ورکړي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْآمِرِ نو قول د مؤکل معتبر دی أَمَّا إِذَا كَانَتْ قِيمَتُهَا خَمْسَ مِائَةٍ هر چې کله د مينځې قيمت پنځه سوه درهمه وي فَلِلْمُخَالَفَةِ نو [د مؤکل د حکم] د مخالفت کولو په وجه وَإِنْ كَانَتْ قِيمَتُهَا أَلْفًا او که د هغې قيمت زر درهمه وي فَمَعْنَاهُ أَنَّهُمَا يَتَحَالَفَانِ نو د هغه [يعني د مؤکل د قول معتبر کېدلو] مطلب دا دی چې وکيل او مؤکل به دواړه قسم اخلي لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ وَالْوَكِيلَ فِي هَذَا يَنْزِلَانِ مَنْزِلَةَ الْبَائِعِ وَالْمُشْتَرِي ځکه په دې صورت کې وکيل او مؤکل د بائع او مشتري په درجه کې دي وَقَدْ وَقَعَ الِاخْتِلَافُ فِي الثَّمَنِ او [دلته] په ثمن کې اختلاف واقع سوی دی وَمُوجَبُهُ التَّحَالُفُ او د هغه حکم د [بائع او مشتري] دواړو قسم اخيستل دي [يعني د ثمن په مقدار کې د اختلاف واقع کېدلو حکم دا دی چې بائع او مشتري به دواړه قسمونه اخلي] ثُمَّ يُفْسَخُ الْعَقْدُ الَّذِي جَرَى بَيْنَهُمَا بيا به هغه عقد فسخ کول کيږي [ماتول کيږي] کوم چې د دوی تر مينځ واقع سوی دی فَتَلْزَمُ الْجَارِيَةُ الْمَأْمُورَ نو ځکه مينځه به پر وکيل لازميږي.

**اللغات**: ﴿یتحالفان﴾ د تفاعل له بابه د تثنیه مذکر غائب مضارع صیغه ده. تَحَالَفَ یَتَحَالَفُ تَحَالُفًا: یو تربله قسم اخیستل، یو بل ته قسم خوړل. ﴿ثمن﴾ قیمت. ﴿جَرٰی﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جاري کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی بل چا ته ووایي چې "ته زما لپاره د زر درهمو یوه مینځه رانیسه!" لیکن هغه سړی (یعني مؤکل) وکیل ته زر درهمه نه ورکړي او وکیل په خپل مال سره د هغه لپاره یو مینځه رانیسي، تر دې وروسته وکیل او مؤکل د مینځې په قیمت کې اختلاف وکړي، مؤکل ووایي چې "تا دا مینځه په پنځه سوه درهمه رانیولې ده"، او وکیل ووایي چې "ما په زر درهمه رانیولې ده"، نو په دې صورت کې د مؤکل قول معتبر دی، برابره د مینځې مالیت او قیمت پنځه سوه درهمه وي او که زر درهمه وي، که چیرې د مینځې مالیت پنځه سوه درهمه وي نو ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې د مؤکل د حکم مخالفت سوی دی. او مخکې ذکر سوه چې که وکیل د مؤکل د حکم مخالفت وکړي او بیا د دواړو په مینځ کې اختلاف راسي، نو د مؤکل قول معتبر دی، نو ځکه په دې صورت کې به هم د همدې مؤکل قول معتبر وي.

او که چیرې د مینځې قیمت د زر درهمو په برابر وي (یعني په زر درهمه ارزي)، نو په دې صورت کې د مؤکل د قول معتبر کېدلو مطلب دا دی چې وکیل او مؤکل به دواړه قسم اخلي؛ ځکه چې وکالت د وکیل او مؤکل تر مینځ حکماً مبادله او حکماً بیع ده لکه مخکې چې تېر سوه نو په وکالت کې وکیل حکماً د بائع په څېر دی او مؤکل د مشتري په څېر دی، نو ځکه د دوی پورتنی اختلاف داسې دی لکه په ثمن کې اختلاف کول، او تاسو ته به معلومه وي چې که بائع او مشتري دواړه د ثمن (قیمت) په مقدار کې اختلاف وکړي، نو له دواړو څخه قسم اخیستل کیږي، لهذا په دې مسئله کې به هم له وکیل او مؤکل دواړو څخه قسم اخیستل کیږي، او کله چې دواړه قسم واخلي نو د دوی تر مینځ واقع سوی حکمي عقد (بیع) به فسخ کول کیږي، او کله چې د دوی تر مینځ عقد فسخ سو، نو ښکاره خبره ده چې مذکوره مینځه به پر وکیل لازمه وي او د هغه سره به پرېښوول کیږي. لنډه دا چې په دې صورت کې هم د مؤکل قول معتبر دی.

## د پورتنی مسئلې یو بل صورت

قَالَ: وَلَوْ أَمَرَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ لَهُ هٰذَا الْعَبْدَ فرمایي: او که مؤکل وکیل ته حکم وکړي چې هغه د ده لپاره دا غلام رانیسي وَلَمْ يُسَمِّ لَهُ ثَمَنًا او مؤکل د وکیل ته مخته ثمن ذکر نه کړي فَاشْتَرَاهُ بیا وکیل هغه رانیوی فَقَالَ الْآمِرُ: اِشْتَرَيْتَهُ بِخَمْسِ مِائَةٍ نو مؤکل ووېل: چې تا هغه په پنځه سوه درهمه رانیولی دی وَقَالَ الْمَأْمُوْرُ:

بِأَلْفٍ او وکیل وویل: چي په زر درهمه [مي رانیولی دی] وَصَدَّقَ الْبَائِعُ الْمَأْمُوْرَ او بائع د وکیل تصدیق وکړی فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمَأْمُوْرِ مَعَ يَمِيْنِهِ نو قول د وکیل معتبر دی د قسم سره [یعني له هغه څخه به قسم اخیستل کیږي او په قسم سره به د هغه قول منل کیږي] قِيْلَ: لَا تَحَالُفَ هٰهُنَا وویل سوي دي: چي دلته تحالف نشته [یعني له وکیل او مؤکل دواړو څخه به قسم نه اخیستل کیږي] لِأَنَّهُ ارْتَفَعَ الْخِلَافُ بِتَصْدِيْقِ الْبَائِعِ ځکه چي د بائع د تصدیق کولو په وجه [د بائع او مشتري] اختلاف ختم سو إِذْ هُوَ حَاضِرٌ ځکه بائع [په دې مسئله کي] حاضر دی وَفِي الْمَسْأَلَةِ الْأُوْلٰى هُوَ غَائِبٌ او په اوله [مخکنۍ] مسئله کي هغه غائب دی فَاعْتُبِرَ الْاخْتِلَافُ نو په دې وجه [هلته] اختلاف معتبر [او ثابت] سو وَقِيْلَ*: يَتَحَالَفَانِ او ویل سوي دي: چي دواړه به قسم اخلي لِمَا ذَكَرْنَاهُ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی دی وَقَدْ ذَكَرَ مُعْظَمَ يَمِيْنِ التَّحَالُفِ وَهُوَ يَمِيْنُ الْبَائِعِ او [دلته] امام محمد رَحِمَهُ الله ستر [اهم] قسم بیان کړی دی او هغه د بائع [یعني د وکیل] قسم دی وَالْبَائِعُ بَعْدَ اسْتِيْفَاءِ الثَّمَنِ أَجْنَبِيٌّ عَنْهُمَا او اصل بائع تر قسم اخیستلو وروسته له [مؤکل او وکیل] دواړو څخه اجنبي دی وَقَبْلَهُ أَجْنَبِيٌّ عَنِ الْمُوَكِّلِ او تر ثمن اخیستلو مخکي له مؤکل څخه اجنبي دی إِذْ لَمْ يَجْرِ بَيْنَهُمَا بَيْعٌ ځکه چي د مؤکل او بائع تر مینځ بیع نه ده واقع سوې فَلَا يُصَدَّقُ عَلَيْهِ لهذا د مؤکل په خلاف به د هغه د قول تصدیق نه کیږي فَبَقِيَ الْخِلَافُ نو اختلاف باقي پاته سو [نو ځکه له دواړو څخه به قسم اخیستل کیږي] وَهٰذَا قَوْلُ الْإِمَامِ أَبِي مَنْصُوْرٍ او دا د امام ابو منصور ماتریدي رَحِمَهُ الله قول دی وَهُوَ أَظْهَرُ او همدا زیات ظاهر دی.

**اللغات:** ﴿لم يسم﴾ د تفعیل له بابه د حجد صیغه ده: نومول، ذکر کول، مُتعیّن کول (ټاکل)، ﴿صدّق﴾ د تفعیل ماضي ده: تصدیق کول، ﴿ارتفع﴾ د افتعال ماضي ده: پورته کېدل، لیري کېدل، ختمېدل، ﴿مُعْظَم﴾ د افعال د باب مفعول دی: غټ، لوی، ستر (عظیم)، غټ ګڼل سوی، أَعْظَمَ يُعْظِمُ إِعْظَامًا: غټېدل، غټول، غټ ګڼل (مصباح اللغات)، ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: اخیستل، ترلاسه کول، حاصلول.

* القول الراجح: هو هٰذا القول، وهذا قول الإمام أبي منصور رَحِمَهُ الله، كذا ذكر في مجمع الأنهر (ج:٣، ص:٣٢٣)، وفي البحر الرائق (ج:٧، ص:١٦٥). [القول الراجح ج:٢، ص:١٥٨]

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی که مؤکل ځېل وکیل ته د معیّن غلام د رانیولو حکم وکړي لېکن مؤکل د غلام ثمن بیان نه کړي چې په دومره قیمت یې رانیسه!. بیا وکیل هغه غلام رانیسي، او له رانیولو څخه وروسته د وکیل او مؤکل تر مینځ اختلاف راسي، یعني مؤکل وایي چې "تا دا غلام په پنځه سوه درهمه رانیولی دی" او وکیل وایي چې "ما په زر درهمه رانیولی دی". او بائع حاضر وي او هغه هم د وکیل تصدیق وکړي چې "هو! هغه زما څخه دا غلام په زر درهمه رانیولی دی". نو په دې صورت کې د وکیل (مامور) قول د قسم سره معتبر دی، او د تېر عبارت د مسئلې په څېر به دلته له وکیل او مؤکل دواړو څخه قسم نه اخیستل کیږي، دا د فقیه ابو جعفر هندواني رَحِمَهُ الله قول دی.

د دې قول دلیل دا دی چې په دغه مسئله کې بائع حاضر او موجود دی او هغه د وکیل تصدیق هم کړی دی، لهذا د هغه په تصدیق سره د وکیل قول ته نور تقویت حاصل سو، نو ځکه هغه به راجح وي او د هغه اعتبار به کیږي، د دې په خلاف د تېر عبارت په مسئله کې چې څرنګه بائع هم حاضر نه دی او د وکیل په دعویٰ کې د بائع تصدیق هم شامل نه دی، نو ځکه هلته د وکیل او مؤکل په مینځ کې د اختلاف ثابتېدلو په وجه تحالف (د دواړو قسم اخیستل) واجب سوي دي.

وقيل يتحالفان إلخ : فرمايي چې د شیخ ابو منصور ما تریدي رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې د مخکنۍ مسئلې په څېر دلته هم تحالف واجب دی او مؤکل او وکیل به د مشتري او بائع په درجه ګرځول کیږي او له هغو څخه به قسم اخیستل کیږي، او تر قسم اخیستلو وروسته چې څرنګه په مخکنۍ مسئله کې عقد فسخ ګرځول سوی دی، همداسې به دلته هم هغه فسخ ګرځول کیږي.

وقد ذكر معظم يمين إلخ : دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چې په متن کې امام محمد رَحِمَهُ الله ويلي دي "فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمَأْمُوْرِ مَعَ يَمِيْنِهِ" یعني هغه فقط له وکیل څخه د قسم اخیستلو یادونه کړې ده، حال دا چې ابو منصور ما تریدي رَحِمَهُ الله تحالف واجب کړی دی او د تحالف په صورت کې له وکیل او مؤکل دواړو څخه قسم اخیستل کیږي، نو ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله په متن او د شیخ ابو منصور ماتریدي رَحِمَهُ الله په قول کې تعارض او اختلاف راغلی، حال دا چې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د امام منصور ماتریدي رَحِمَهُ الله قول ته "اظهر" ويلي دي؟

د دغه سوال جواب دی چې وکیل او مؤکل د بائع او مشتري په درجه کې دي او د بائع او مشتري په قسمونو کې د بائع قسم زيات اهم (مهم) وي؛ ځکه چې د ثمن د مقدار په اختلاف کې بائع د ثمن د زياتوب مدعي وي او مشتري له زياتوب څخه منکر وي (یعني بائع د زيات ثمن مدعي وي او مشتري د زيات ثمن منکر وي)، او پر مدعي فقط د تحالف په صورت کې قسم واجبیږي. حال دا چې پر منکر هر وخت قسم واجب وي (یعني د تحالف په صورت کې هم او له تحالف څخه بغير هم، لکه څرنګه چې همدا قاعده ده چې "واليمين على من أنكر")، نو په دې حواله سره په پورتنۍ مسئله کې چې کوم بائع دی یعني وکیل، د هغه قسم اهم او معظم دی، نو ځکه امام

محمد رَحِمَهُ الله فقط د وکيل د قسم يادونه کړې ده. او د هغه سره د مؤکل قسم هم تړلی دی (يعني کله چي له وکيل څخه د قسم اخيستلو يادونه وسوه نو د دې په ضمن کي دا خبره هم راغله چي له مؤکل څخه به قسم اخيستل کيږي)، ځکه کله چي پر وکيل "کوم چي مدعي" دی پر هغه قسم واجب دی. نو پر مؤکل به په درجه اولیٰ قسم واجب وي. ځکه چي هغه منکر دی.

لنډه دا چي امام محمد رَحِمَهُ الله که څه هم فقط د وکيل قسم ذکر کړی دی، لېکن مراد يې د مؤکل قسم هم دی (ځکه کله چي پر مدعي قسم واجب دی نو پر منکر به په درجه اولیٰ واجب وي)، لهذا کله چي د دواړو قسم مراد دی، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په متن او د شيخ ابو منصور ماتريدي رَحِمَهُ الله په قول کي به هيڅ تعارض نه وي.

والبائع بعد استيفاء الثمن إلخ: په دې سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د شيخ ابو منصور ماتريدي رَحِمَهُ الله له طرفه د فقيه ابو جعفر رَحِمَهُ الله د قول د دليل "لأنه ارتفع الخلاف بتصديق البائع" جواب ورکړی دی. حاصل يې دا دی چي کله په دې مسئله د غلام بائع له وکيل څه ثمن واخيستی نو هغه له وکيل او مؤکل دواړو څخه اجنبي سو، او تر ثمن اخيستلو مخکي له مؤکل څخه اجنبي وو؛ ځکه چي د بائع او مؤکل په مينځ کي هيڅ عقد نه دی سوی. لنډه دا چي بائع په دواړو صورتونو کي له مؤکل څخه اجنبي دی، او کله چي بائع له مؤکل څخه اجنبي دی، نو ځکه د مؤکل په خلاف به د هغه د قول تصديق نه کيږي يعني د مؤکل په خلاف به د بائع قول معتبر نه وي او نه به د بائع په تصديق سره د وکيل قول راجح کيږي، او کله چي د هغه قول او تصديق معتبر نه سو، نو د ثمن په مقدار کي به د وکيل او مؤکل اختلاف باقي پاته وي، او کله چي اختلاف باقي پاته دی، نو پر دوی به تحالف هم واجب وي (يعني دواړه به قسم اخلي)، او له تحالف څخه وروسته به د دوی په مينځ کي واقع سوی حکمي عقد (بيع) فسخ کول کيږي او غلام به پر وکيل لازم وي، لکه څرنګه چي همدا د امام ابو منصور رَحِمَهُ الله قول دی، او همدا زيات ظاهر او غوره دی. والله أعلم وعلمهٗ أتم



# فَصْلٌ فِي التَّوْكِيْلِ بِشِرَاءِ نَفْسِ الْعَبْدِ

## (دا) فصل د نفسِ غلام د رانيولو د وکيل جوړولو په بيان کي دی

**تشريح**: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په دغه فصل کي د دې مسئلي تفصيلي بيان کوي چي غلام يو بل څوک له مالک څخه د خپل ځان رانيولو وکيل جوړ کړي، يعني غلام يو چا ته ووايي چي "ته زما له مالک څخه ما رانيسه!"، او څرنګه چي له خپل مالک څخه ځان رانيول هم يو ډول بيع وشراء ده او د هغه سره جلا احکام متعلق دي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله له "بَابُ الوكالة بالبيع والشراء" څخه وروسته اوس هغه په عليحده فصل کي بيانوي.

### که غلام د خپل ځان د رانيولو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا قَالَ الْعَبْدُ لِرَجُلٍ: اِشْتَرِلِيْ نَفْسِيْ مِنَ الْمَوْلٰى بِأَلْفٍ فرمايي: او که چيري غلام يو سړي ته ووايي: چي ته ما زما له مالک څخه د زرو درهمو په عوض کي رانيسه! وَدَفَعَهَا إِلَيْهِ او غلام هغه سړي ته زر درهمه ورکړي فَإِنْ قَالَ الرَّجُلُ لِلْمَوْلٰى: اشْتَرَيْتُه لِنَفْسِهِ نو که هغه سړي [وکيل] مالک ته ووايي: چي ما [ستا] غلام د هغه د ځان لپاره رانيولی دی [يعني که وکيل د غلام مالک ته ووايي چي "زه ستا غلام د هغه د خپل ځان لپاره رانيسم"، مطلب دا چي "ته ستا د غلام ځان (ذات) پر هغه خرڅ کړه"] فَبَاعَهُ عَلٰى هٰذَا او مالک پر همدې شرط پر غلام د هغه خپل ځان خرڅ کړي فَهُوَ حُرٌّ نو هغه آزاد دی وَالْوَلَاءُ لِلْمَوْلٰى او [د هغه] ولاء د مالک لپاره ده لِأَنَّ بَيْعَ نَفْسِ الْعَبْدِ مِنْهُ إِعْتَاقٌ ځکه چي پر غلام د هغه ځان خرڅول [د هغه] آزادول دي وَشِرَاءُ الْعَبْدِ نَفْسَهُ قَبُوْلُ الْإِعْتَاقِ بِبَدَلٍ او د غلام لپاره خپل ځان رانيول د مال په بدله کي د آزادۍ قبلول دي وَالْمَأْمُوْرُ سَفِيْرٌ عَنْهُ او وکيل د غلام له طرفه سفير [استازی] دی [يعني فقط د غلام خبره نقلونکی دی] إِذْ لَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ الْحُقُوْقُ ځکه چي پر داسي وکيل [د عقد] حقوق نه راجع کيږي فَصَارَ كَأَنَّهُ اشْتَرٰى بِنَفْسِهِ نو دا داسي سوه لکه غلام چي په خپله [خپل ځان] رانيولی وي وَإِذَا كَانَ إِعْتَاقًا او کله چي دا آزادول دي أَعْقَبَ الْوَلَاءَ نو تر هغه وروسته به ولاء ثابتيږي.

**اللغات**: ﴿ولاء﴾ مراد ځني دآزاد سوي غلام ميراث دی، يعني کله چي آزاد شُده غلام مړ سي نو د هغه پاته سوی ميراث د هغه دآزادونکي مالک حق کيږي، همدې ته ولاء وايي، ﴿إعتاق﴾ دافعال د باب مصدر دی: آزادول. ﴿أعقب﴾ دافعال د باب ماضي ده: وروسته راوړل، تر ځان وروسته ثابتول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که غلام يو سړي ته زر درهمه ورکړه او هغه ته يې وويل چي "ته د دې زرو درهمو په عوض کي زما له مالک څخه ما رانيسه!"، بيا هغه سړی (وکيل) د غلام د مالک سره په دې باره کي خبره وکړه او مالک ته يې وويل چي "زه ستا غلام په زر درهمه د هغه د خپل ځان لپاره رانيسم"، او مالک وويل چي "صحيح ده! زر درهمه راکړه! ما د غلام ځان (نفس) پر هغه خرڅ کړی"، نو هغه غلام آزاديږي او د هغه ولاء به همدې (خرڅونکي) مالک ته حاصليږي؛ دليل دا دی چي د غلام ځان پر غلام خرڅول د مالک له طرفه اعتاق علیٰ مال دی، يعني د مال په بدله کي د هغه آزادول دي، او خپل ځان له مالک څخه رانيول د غلام له طرفه اعتاق علیٰ مال قبلول دي، او ښکاره خبره ده چي کله يو مالک خپل غلام د مال په بدله کي آزاد کړي او غلام هغه قبول کړي، نو غلام آزاديږي، نو ځکه په دې مسئله کي به هم غلام (مؤکل) آزاديږي، ځکه چي هغه هم اعتاق علیٰ مال قبول کړی دی.

پاته سو د غلام وکيل، نو څرنګه چي هغه دا عقد د مؤکل يعني د غلام وطرف ته منسوب کړی دی، نو ځکه هغه فقط سفير (خبره نقلونکی) دی او د عقد حقوق د هغه وطرف ته راجع نه دي، بلکي د هغه د مؤکل يعني د غلام وطرف ته راجع دي، او دا داسي ده لکه غلام چي په خپله (بلا واسطه) خپل ځان له مالک څخه رانيسي، او تاسو ته به معلومه وي چي که غلام په خپله خپل ځان له مالک څخه رانيسي نو دا اعتاق دی (يعني ګواکي مالک هغه آزاد کړی)، نو ځکه د وکيل په ذريعه رانيول به هم اعتاق وي، او کله چي دا اعتاق دی، نو ځکه تر دې وروسته به د هغه ولاء د مُعْتِق (ازادونکي) يعني د مالک لپاره ثابتيږي (ځکه چي ولاء د اعتاق د لوازمو څخه ده. لهذا کله چي اعتاق ثابت سو، نو د هغه لوازم به هم ثابتيږي).

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

| |
|---|
| وَإِنْ لَمْ يُعَيِّنْ لِلْمَوْلَى او که د غلام وکيل مالک ته [د رانيولو] وضاحت نه کړي [چي زه د چا لپاره غلام رانيسم. او مالک هغه پر خرڅ کړي] فَهُوَ عَبْدٌ لِلْمُشْتَرِي نو هغه د مشتري [وکيل] غلام دی [يعني په دې صورت کي هغه د وکيل غلام ګرځي] لِأَنَّ اللَّفْظَ حَقِيقَةٌ لِلْمُعَاوَضَةِ ځکه چي [د اشتريتُ] لفظ د معاوضې لپاره حقيقت دی وَأَمْكَنَ الْعَمَلُ بِهَا إِذَا لَمْ يُبَيِّنْ او پر حقيقت عمل کول ممکن [هم] دي کله چي |

وکيل [د رانيولو] وضاحت نه کړي فَيُحَافِظَ عَلَيْهَا نو ځکه د معاوضې [د معنیٰ] محفاظت به کيږي بِخِلَافِ شِرَاءِ الْعَبْدِ نَفْسَهُ په خلاف د هغه صورت چې غلام خپل ځان رانيسي لِأَنَّ الْمَجَازَ فِيهِ مُتَعَيِّنٌ ځکه چې په هغه صورت کې مجاز مُتعيّن دی وَإِذَا كَانَ مُعَاوَضَةً او کله چې دا رانيول [شراء] معاوضه ده [مطلب دا چې کله د اشتريتُ لفظ د معاوضې په معنیٰ سره دی] يَثْبُتُ الْمِلْكُ لَهُ نو ځکه د مشتري [وکيل] لپاره به ملکيت ثابتيږي وَالْأَلْفُ لِلْمَوْلَى او هغه زر درهمه [کوم چې غلام خپل وکيل ته ورکړي دي] د مالک لپاره دی لِأَنَّهُ كَسْبُ عَبْدِهِ ځکه چې هغه د ده د خپل غلام ګټه ده وَعَلَى الْمُشْتَرِيْ أَلْفٌ مِثْلُهُ ثَمَنًا لِلْعَبْدِ او پر مشتري [وکيل] زر درهمه د هغه د مثل غلام ثمن لازم دي فَإِنَّهُ فِي ذِمَّتِهِ ځکه چې ثمن د مشتري پر ذمه پاته دي حَيْثُ لَمْ يَصِحَّ الْأَدَاءُ ځکه [د مشتري] اداء کول صحيح نه سوه بِخِلَافِ الْوَكِيلِ بِشِرَاءِ الْعَبْدِ مِنْ غَيْرِهِ په خلاف د هغه وکيل کوم چې د بل چا له طرفه د غلام رانيولو وکيل وي [نه د غلام له طرفه] حَيْثُ لَا يُشْتَرَطُ بَيَانُهُ نو [په هغه صورت کي] د وکيل وضاحت شرط نه دي لِأَنَّ الْعَقْدَيْنِ هُنَاكَ عَلَى نَمَطٍ وَاحِدٍ ځکه چې هلته دواړه عقدونه پر يوه طرز دي وَفِي الْحَالَيْنِ الْمُطَالَبَةُ تَتَوَجَّهُ نَحْوَ الْعَاقِدِ او په دواړو صورتونو کې مطالبه سته کوم چې د عاقد [وکيل] وطرف ته متوجه ده أَمَّا هٰهُنَا فَأَحَدُهُمَا إِعْتَاقٌ مُعَقِّبٌ لِلْوَلَاءِ او پاته سو دلته نو [دلته] يو عقد آزادول دي کوم چې [تر ځان وروسته] د ولاء ثابتونکی دی وَلَا مُطَالَبَةَ عَلَى الْوَكِيلِ او پر وکيل هيڅ مطالبه نسته وَالْمَوْلَى عَسَاهُ لَا يَرْضَاهُ وَيَرْغَبُ فِي الْمُعَارَضَةِ الْمَحْضَةِ او [ځيني وخت] کېدای سي چې مالک په دې [آزادولو] راضي نه وي او په صرف معاوضه [عقد بيع] کي رغبت کونکی وي [په بله وينا دا چې ځيني وخت مالک په ولاء راضي نه وي او له وکيل څخه د بدله (ثمن) په اخيستلو په راضي وي] فَلَا بُدَّ مِنَ الْبَيَانِ نو ځکه وضاحت کول ضروري دي.

**اللغات**: ﴿لـم يبـيّن﴾ د تفعيـل لـه بابـه د جحـد صـيغه ده: بيـانول، ښـکاره کـول، وضـاحت کـول.

﴿اللفظ﴾ مراد ځني د "إِشْتَرَيْتُ" لفظ دی کوم چې په حقيقت کي د معاوضې (بدلې) او رانيولو لپاره استعماليږي، او کله چې پر دې معنیٰ عمل کول مشکل او ناممکن وي نو بيا د مجازي معنیٰ

"اعتاق علیٰ مال" لپاره استعمالیږي، د "اعتاق علیٰ مال" معنیٰ ده: د مال په بدله کې آزادول. ﴿شِرٰی﴾ رانیول (خرید)، ﴿کسب﴾ ګټه. ګټل سوی مال، ﴿عساه﴾ ممکنه ده، کېدای سي. (احسن الهدایه)

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی که د غلام وکیل هغه غلام له خپل مالک څخه رانیسي، لېکن دا خبره نه وکړي چي زه غلام د هغه د خپل ځان لپاره رانیسم، بلکي فقط داسي ووايي چي "زه په زره درهمه ستا غلام رانیسم" او مالک پر هغه غلام خرڅ کړي، نو دا رانیول په خپله د مشتري یعني د وکیل لپاره واقع کیږي او همدا وکیل د غلام مالک کیږي او زر درهمه علیحده پر وکیل لازمیږي؛ ځکه په دې صورت کي چي وکیل د رانیولو لپاره کوم لفظ ذکر کړی دی مثلاً "اِشْتَرَيْتُ عَبْدَكَ بِأَلْفٍ" (زه په زر درهمه ستا غلام رانیسم)، دا لفظ د "اشتریتُ" د معاوضې د معنیٰ لپاره حقیقت دی (یعني د دې حقیقي معنیٰ ده "رانیول"، نه "د مال په بدله کي آزادول")، او څرنګه چي دلته وکیل (مشتري) د دې خبري هیڅ وضاحت نه دی کړی چي زه دا غلام د هغه د ځان لپاره رانیسم، نو ځکه د معاوضې پر حقیقي معنیٰ عمل کول ممکن هم دي، او قاعده دا ده چي تر څو پر حقیقت عمل کول ممکن وي، تر هغه وخته به د مجاز وطرف ته رجوع نه کیږي، نو ځکه په دې مسئله کي به د مجاز یعني د "اعتاق علیٰ مال" وطرف ته رجوع نه کیږي، او د دې غلام رانیول (شراء) به پر حقیقي معنیٰ یعني پر معاوضه حمل کیږي او غلام به د مشتري) یعني د وکیل مملوک (غلام) وي، او وکیل چي مالک ته کوم ثمن (زر درهمه) ورکړي دي، څرنګه چي هغه د غلام له طرفه وکیل ته ورکول سوی دی او تاسو ته معلومه ده چي غلام او د هغه مال ټوله د مالک په ملکیت کي داخلیږي (او غلام پر خپل ځان هم ملکیت نه لري)، نو ځکه هغه زر درهمه خو به د مالک وي او هغه به د غلام ثمن نه وګرځول کیږي، او څرنګه چي وکیل (مشتري) د غلام مالک سو، نو ځکه پر مشتري د هغه په مثل نور زر درهمه د ثمن په توګه واجب وي.

بخلاف شِرٰی العبد نفسه إلخ: فرمایي په کوم صورت کي چي غلام خپل ځان له مالک څخه رانیسي، نو په هغه صورت کي پر حقیقت عمل کول ناممکن دي؛ ځکه چي نه غلام د خپل ځان مالک وي او نه د مال. لهٰذا د هغه له طرفه چي کوم رانیول (شراء) سوې دي، هغه معاوضه ګرځول ممکن نه دي، نو ځکه هلته به خامخا د مجاز یعني د "اعتاق علیٰ مال" وطرف ته رجوع کیږي، لېکن څرنګه چي په دغه پورتنۍ مسئله کي د بیع پر حقیقي معنیٰ یعني پر معاوضه عمل کول ممکن دي، نو ځکه دلته به د مجاز وطرف ته رجوع نه کیږي.

**بخلاف الوكيل بشراء العبد إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که له غلام څخه بغیر یو بل سړی د غلام رانیولو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړي، مثلاً خالد زید وکیل جوړ کړي او هغه ته ووايي چي "ته زما لپاره د ادریس غلام رانیسه!"، نو اوس پر زید (وکیل) د دې خبري وضاحت کول ضروري نه دي چي "زه ستا (ادریس) غلام د خالد (مؤکل) لپاره رانیسم"، ځکه که وکیل دا خبره وکړي، که نه، په هر صورت کي عقد (بیع) د مؤکل یعني د خالد لپاره واقع کیږي، یعني برابره ده که وکیل ووايي چي زه د مؤکل لپاره غلام رانیسم او که ووايي چي زه يې رانیسم، دا دواړه عقدونه د مؤکل لپاره او دواړه پر یوه طرز واقع کیږي یعني دواړه بیع واقع کیږي، نه اعتاق علیٰ مال، او په دې دواړو صورتونو کي به د عقد د حقوقو ذمه وار عاقد یعني وکیل وي؛ ځکه چي په بیع کي حقوق د عاقد وطرف ته راجع کیږي او له عاقد څخه د هغه مطالبه هم کیږي (نو ځکه له وکیل څخه به د ثمن (زر درهمو) مطالبه کیږي).

**أما ههنا إلخ:** د پورتني صورت په خلاف که غلام د خپل ځان د رانیولو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړي، نو په دې صورت کي ځکه پر وکیل دا وضاحت کول ضروري دي چي "زه غلام د هغه د ځان (نفس) لپاره رانیسم"، د دې یوه وجه او دلیل دا دی چي دلته د بائع یعني د مالک په حق کي د دې عقد دوه جلا حیثیتونه دي، یا په بله وینا دا چي دلته دوه جلا عقدونه دي؛ ځکه که وکیل دا عقد د غلام وطرف ته منسوب کړي، نو دا به "اعتاق علیٰ مال" (د مال په بدله کي آزادول) وي او وکیل به محض سفیر وي چي د ثمن مطالبه به له هغه څخه نه کیږي او په دې صورت کي به د غلام تر مرګ وروسته مالک ته فقط د غلام ولاء حاصلیږي (ځکه په دې صورت کي که څه هم مالک ته زر درهمه حاصلیږي خو هغه په حقیقت کي داسي دي لکه د مالک خپل زر درهمه. ځکه چي د غلام مال ټوله د مالک په ملکیت کي داخل وي، نو په یوه توګه دا صورت داسي دی لکه مالک چي هغه بغیر له مال څخه (مفت) آزاد کړی وي. نو داسي سو لکه مالک ته چي په دې صورت کي فقط ولاء حاصلیږي)، او که چیري وکیل دا عقد د خپل مؤکل (غلام) وطرف ته منسوب نه کړي یعني دا وضاحت نه وکړي چي "زه غلام د هغه د ځان (نفس) لپاره رانیسم"، نو په دې صورت کي به دا عقد معاوضه وي او وکیل (عاقد) به د خپل ځان لپاره د غلام رانیونکی وي او هم له هغه څخه به د ثمن (زر درهمو) مطالبه کیږي (نه له غلام څخه) نو مالک ته به علیحده زر درهمه حاصل سي. لنډه دا چي کله د دې عقد دوه جلا حیثیتونه دي، نو ځکه پر وکیل وضاحت کول ضروري دي (چي زه د غلام د ځان یا د خپل ځان لپاره هغه رانیسم).

او بل دلیل دا دی چي ځیني وخت داسي وي چي مالک اعتاق علیٰ مال (د مال په بدله کي آزادول) نه خوښوي؛ ځکه چي د غلام ولاء ډېره لږ وي (ځکه څه مخکي ذکر سوه چي په یوه توګه د اعتاق علیٰ مال په صورت کي مالک ته فقط د غلام ولاء حاصلیږي. او ځیني وخت داسي وي چي ولاء ډېره لږ وي. نو ځکه مالک اعتاق

علىٰ مال نه خوښنوي)، بلکې هغه محض معاوضه يعني پر مشتري (وکيل) د غلام خرڅول خوښوي (ځکه چې په دې صورت کې به د ثمن مطالبه له وکيل څخه وي او مالک ته به د وکيل له طرفه عليحده ثمن حاصل سي)، نو په دې وجه هم پر وکيل وضاحت کول ضروري دي. (اثمار الهدايه)

## غلام وکيل جوړول (حکم او تفصيل)

وَمَنْ قَالَ لِعَبْدٍ: اِشْتَرِلِيْ نَفْسَكَ مِنْ مَوْلَاكَ او که يو سړي يو غلام ته وويل: چې ته ستا له مالک څخه زما لپاره خپل ځان رانيسه! فَقَالَ لِمَوْلَاهُ: بِعْنِيْ نَفْسِيْ لِفُلَانٍ بِكَذَا نو غلام خپل مالک ته وويل: چې ته زما ځان [ذات] پر ما د فلانکي لپاره په دومره قيمت خرڅ کړه! فَفَعَلَ او مالک [همداسي] وکړه فَهُوَلِلْآمِرِ نو دا غلام د امر دی لِأَنَّ الْعَبْدَ يَصْلُحُ وَكِيْلًا عَنْ غَيْرِهٖ فِيْ شِرَاءِ نَفْسِهٖ ځکه چې غلام د ځان په رانيولو کې د بل چا له طرفه د وکيل جوړېدلو صلاحيت لري لِأَنَّهٗ أَجْنَبِيٌّ عَنْ مَالِيَّتِهٖ ځکه چې هغه له خپل ماليت څخه اجنبي دی وَالْبَيْعُ يَرِدُ عَلَيْهِ مِنْ حَيْثُ أَنَّهٗ مَالٌ او پر غلام د مال کېدلو په حيثيت سره بيع واردېږي إِلَّا أَنَّ مَالِيَّتَهٗ فِيْ يَدِهٖ لېکن د غلام ماليت د هغه په قبضه کې دی حَتّٰى لَا يَمْلِكَ الْبَائِعُ الْحَبْسَ بَعْدَ الْبَيْعِ لِاسْتِيْفَاءِ الثَّمَنِ همدا وجه ده چې بائع [مالک] له بيع څخه وروسته د ثمن اخيستلو لپاره [د غلام] د راګرځولو ملکيت نه لري اځيني شارحينو په بعضي ځايو کې د حتىٰ اصطلاحي ترجمه په "همدا وجه ده" سره کړې ده (دا خبره په يادلرئ!)] فَإِذَا أَضَافَهٗ إِلَى الْآمِرِ او کله چې غلام دا عقد د مؤکل وطرف ته منسوب کړي صَلُحَ فِعْلُهٗ امْتِثَالًا نو د هغه فعل به [د مؤکل د حکم] پر ځای کولو صلاحيت لري فَيَقَعُ الْعَقْدُ لِلْآمِرِ نو ځکه دا عقد به د مؤکل لپاره واقع کيږي.

**اللغات**: ﴿يصلح﴾ د کَرُم د باب مضارع ده: صلاحيت لرل، وړتيا لرل. ﴿يَرِدُ﴾ د ضرب مضارع ده: واردېدل، واقع کېدل. ﴿حبس﴾ د ضرب مصدر دی: راګرځول، منع کول. ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: اخيستل، ترلاسه کول. ﴿أضاف﴾ د افعال د باب ماضي ده: نسبت کول، منسوب کول. ﴿امتثال﴾ د افتعال مصدر دی: اطاعت کول (حکم منل)، حکم پر ځای کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړي يو غلام ته وويل چې "ستا له مالک څخه زما لپاره خپل ځان رانيسه!"، نو غلام په دې باره کې د خپل مالک سره خبره وکړه او هغه ته يې وويل چې "ته زما ځان (ذات) د فلانکي لپاره پر ما خرڅ کړه!"، او مالک هغه خرڅ کړي، نو دا بيع صحيح ده او دا

غلام د مؤکل (امر) غلام ګرځي؛ دليل دا دی چي د خپل ځان د رانيولو لپاره د غلام وکيل کېدل صحيح دي؛ ځکه چي د غلام دوه حيثيتونه دي: ① يو دا چي هغه مال دی، ② دويم دا چي هغه انسان دی، او د مالک حق فقط په ماليت (مال والي) کي ستن لېکن په انسانيت (انسان والي) کي نسته، او غلام له خپل ماليت څخه اجنبي دی لېکن هغه په انسانيت (آدميت) کي اجنبي نه دی، او د وکالت تعلق د انسانيت سره دی، نه د ماليت سره، نو ځکه د بل چا له طرفه د غلام وکيل کېدل صحيح دي، او څرنګه چي دلته غلام دا عقد د خپل مؤکل وطرف ته منسوب کړی دی (چي د فلانکي لپاره زما ځان (ذات) پر ما خرڅ کړه!) او د غلام له طرفه داسي نسبت کول صحيح هم دي، نو ځکه دا عقد (يعني د غلام د خپل ځان رانيول) به د مؤکل لپاره واقع کيږي او مؤکل به د غلام مالک کيږي. همدا خبره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د "فَإِذا أَضافَهُ..." څخه تر آخره پوري بيان کړې ده او په مينځ کي يې په "والبيع يرد عليه..." سره فصل راوستی دی، لېکن موږ ستاسو د اسانتيا لپاره عبارت سره متصل کړی دی او "والبيع يرد عليه" په آخر کي ذکر کوو.

والبيع يرد عليه إلخ: په دې سره د غلام دويم حيثيت يعني د هغه ماليت (مال والي) بيان سوی دی، حاصل يې دا دی چي په يوه حيثيت سره غلام مال هم دی، نو د دې حيثيت په اعتبار کولو سره د هغه خرڅول او رانيول (بيع وشراء) کيږي او د انسان کېدلو په وجه د هغه خرڅول او رانيول نه کيږي، لهذا د غلام دوه جلا حيثيتونه دي چي په هغوی کي د يوه حيثيت په اعتبار سره غلام وکيل جوړېدای سي او د دويم حيثيت په اعتبار سره د هغه بيع وشراء کېدای سي، لېکن د غلام ماليت د هغه په خپل قبضه کي وي، همدا وجه ده کله چي هغه له مالک څخه ځان رانيسي او مالک هغه خرڅ کړي او پر ثمن قبضه نه وکړي، نو د ثمن اخيستلو (ترلاسه کولو) په خاطر مالک هغه د ځان سره نه سي راګرځولای، ځکه غلام که څه هم د مالک په ملکيت کي وي لېکن داسي غلام مأذون لهٔ فی التجارة وي او د هغه ماليت د هغه په خپل قبضه کي وي، نه د مالک، او کله چي د هغه ماليت د مالک په قبضه کي نه دی، نو ښکاره خبره ده چي تر بيع وروسته به مالک لره د هغه د راګرځولو حق هم نه وي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

| |
|---|
| وَإِنْ عَقَدَ لِنَفْسِهِ او که غلام د خپل ځان لپاره عقد وکړي فَهُوَ حُرٌّ نو هغه آزاد دی لِأَنَّهُ إِعْتَاقٌ ځکه چي دا اعتاق [آزادول] دي وَقَدْ رَضِيَ بِهِ الْمَوْلَى دُونَ الْمُعَاوَضَةِ او مالک په همدې اعتاق راضي دی [او] په معاوضه راضي نه دی وَالْعَبْدُ وَإِنْ كَانَ وَكِيلًا بِشِرَاءِ مُعَيَّنٍ او دا غلام که څه هم د مُعيّن ذات [يعني د |

خپل ځان] د رانيولو وکيل دی وَلٰكِنَّهُ أَتٰى بِجِنْسِ تَصَرُّفٍ آخَرَ لیکن هغه د بل تصرف په جنس سره راتګ کړی دی [یعني د بل انداز تصرف یې کړی دی، یعني خپل ذات یې د ځان لپاره رانیولی دی] وَفِي مِثْلِهِ يَنْفُذُ عَلَى الْوَكِيْلِ او په داسي صورت کي تصرف [عقد] پر وکيل نافذيږي.

**اللغات**: ﴿عَقَدَ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: عقد کول، معامله کول. ﴿إعتاق﴾ د افعال د باب مصدر دی: آزادول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړي یو غلام وکيل جوړ کړی او هغه ته یې وویل چي "ستا له مالک څخه زما لپاره خپل ځان رانيسه!"، لیکن غلام د مؤکل لپاره د رانيولو پر ځای د خپل ځان لپاره بیع وکړه (یعني هغه له مالک څخه خپل ځان (ذات) د ځان لپاره رانيوی) او د مؤکل واسطه یې ختم کړه، نو په دې صورت کي غلام آزاديږي؛ دلیل دا دی چي د غلام ځان پر غلام خرڅول د مالک له طرفه اعتاق علیٰ مال (د مال په بدله کي آزادول) دي، او له مالک څخه خپل ځان رانيول د غلام له طرفه د اعتاق قبلول دي، او بل دا چي کله دغه غلام د خپل مؤکل وطرف ته عقد منسوب نه کړی، نو ګواکي هغه مالک ته د اعتاق علیٰ مال خبر ورکړی (چي ما د مال په بدله کي آزاد کړه!) او ګواکي مالک دا عقد د اعتاق علیٰ مال په نیت وکړی، نو ځکه دا عقد (رانيول) به پر غلام واقع کيږي او نافذيږي او هغه به آزاديږي. (ځکه کله چي غلام خپل ځان رانيسي او مالک هغه پر خرڅ کړي، نو د دې معنیٰ "د مال په بدله کي آزادول" دي، کوم چي د "شراء" مجازي معنیٰ ده).

والعبد وإن كان وكيلا إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي دلته مؤکل دا غلام د يو مُعيّن غلام يعني د خپل ځان (ذات) د رانيولو وکيل جوړ کړی دی، او مخکي تاسو ته معلومه سوه چي که يو سړی بل څوک د مُعيّن شي د رانيولو وکيل جوړ کړي، نو وکيل لره دا جائز نه دي چي هغه شی د ځان لپاره رانيسي، نو ځکه په دې مسئله کي وکيل يعني غلام لره هم د ځان لپاره د خپل ذات رانيول جائز نه دي.

د دې جواب دا دی چي دلته وکيل (غلام) د مؤکل د حکم مخالفت کړی دی، په دې توګه چي مؤکل دا غلام د خپل ځان لپاره د هغه د رانيولو وکيل جوړ کړی وو (چي زما لپاره ستا ځان [ذات] رانيسه!) لیکن هغه د ځان لپاره رانيوی او د مؤکل د حکم مخالفت یې وکړی، او مخکي ذکر سوه چي که وکيل د مؤکل د حکم مخالفت وکړي، نو په دې صورت کي عقد پر وکيل نافذيږي، نه پر مؤکل، نو ځکه دا رنيول به پر وکيل نافذيږي او په دې سره به هغه آزاديږي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَكَذَا لَوْقَالَ: بِعْنِيْ نَفْسِيْ او همدارنګه که غلام [مالک ته] ووايي: چې پر ما خپل ځان [ذات] خرڅ کړه! وَلَمْ يَقُلْ: لِفُلَانٍ او داسي نه ووايي: چې د فلانکي لپاره [پر ما خپل ځان [ذات] خرڅ کړه!] فَهُوَحُرٌّ نو [هم] هغه آزاد دی لِأَنَّ الْمُطْلَقَ يَحْتَمِلُ الْوَجْهَيْنِ ځکه چې [د هغه] مطلق کلام د دواړو صورتونو احتمال لري فَلَا يَقَعُ امْتِثَالًا بِالشَّكِّ لهذا د شک په وجه به دا [د مؤكل] د حکم پر ځای کول نه واقع کيږي [يعني کله چې د غلام مطلق کلام د دواړو صورتونو احتمال لري نو ګواکي هغه د خپل مؤکل حکم پر ځای نه کړی] فَيَبْقَى التَّصَرُّفُ وَاقِعًا لِنَفْسِهِ نو ځکه دا تصرف [عقد] به د غلام د خپل ځان لپاره واقع پاته سي.

**اللغات**: ﴿امتثال﴾ د افتعال د باب مصدر دی: اطاعت کول (حکم منل)، حکم پر ځای کول.

**تشريح**: فرمايي کوم غلام چې د ځان رانيولو وکيل جوړ سوی وي، که چيري هغه عقد مطلق وکړي او فقط داسي ووايي چې "زما ځان (ذات) پر ما خرڅ کړه!" او د مؤکل وطرف ته د عقد نسبت نه کړي، نو دا عقد (رانيول) هم اعتاق علىٰ مال دي او په دې سره غلام آزاديږي؛ ځکه چې هغه مطلق "بِعْنِيْ نَفْسِيْ" ويلي دي او په دې کي دوه احتماله دي: ① هغه به د مؤکل لپاره ځان رانيولی وي، ② د خپل ځان لپاره به يې رانيولی وي، لېکن د مؤکل وطرف ته د نسبت نه کولو په وجه د مؤکل لپاره په رانيولو کي شک دی، او د شک په وجه د غلام (وکيل) دا فعل د مؤکل د حکم منل او پر ځای کول نه سي شمارل کېدای، نو ځکه دلته اول احتمال ختم سو او دويم احتمال مُتعيّن سو چې غلام د ځان لپاره خپل ذات رانيولی دی، او بل دا چې د غلام د رقيت (غلام والي) په خاطر همدا احتمال زيات قوي دی، ځکه کېدای سي چې هغه به د خپل فايدې يعني د خپل آزادۍ په نيت د ځان لپاره بيع کړې وي چې زه آزاد سم.



# فَصۡلٌ فِي الۡبَيۡعِ

(دا) فصل په بيع کې (د وکيل جوړولو په بيان کې) دی

**تشريح:** د توکيل بالشراء له بيان څخه وروسته اوس صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د توکيل بالبيع احکام او مسائل بيانوي، ځکه چې په شراء (رانيولو) کې د اثبات معنیٰ ښته او په بيع کې د ازاله (زائلولو) معنیٰ ښته يعني رانيول په مبيع کې د مشتري لپاره ملکيت ثابتوي او بيع (خرڅول) د بائع له ملکيت څخه مبيع زائلوي، او ښکاره خبره ده چې د وجود په اعتبار سره اثبات له ازالې څخه مخکې وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په بيان کې هم اثبات له ازالې څخه مخکې کړی دی.

## وکيل بالبيع والشراء د کومو کسانو سره معامله نه سي کولای؟

قَالَ: وَالۡوَكِيۡلُ بِالۡبَيۡعِ وَالشِّرَاءِ لَا يَجُوۡزُ لَهُ أَنۡ يَعۡقِدَ مَعَ أَبِيۡهِ وَجَدِّهِ وَمَنۡ لَا تُقۡبَلُ شَهَادَتُهُ لَهُ فرمايي: او د بيع وشراء [د خرڅولو او رانيولو] وکيل لره جائز نه دي چې د خپل پلار او نيکه سره عقد [معامله وکړي يا يې د هغه کس سره وکړي چې ګواهي يې د ده په حق کې نه قبلول کيږي عِنۡدَ أَبِيۡ حَنِيۡفَةَ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَا[❁]: يَجُوۡزُ بَيۡعُهُ مِنۡهُمۡ بِمِثۡلِ الۡقِيۡمَةِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې پر مثلي قيمت د دې کسانو سره د وکيل بيع کول جائز دي إِلَّا مِنۡ عَبۡدِهِ أَوۡ مُكَاتَبِهِ مګر د خپل غلام او مکاتب سره لِأَنَّ التَّوۡكِيۡلَ مُطۡلَقٌ ځکه چې توکيل مطلق دی وَلَا تُهۡمَةَ او تهمت نسته إِذِ الۡأَمۡلَاكُ مُتَبَايِنَةٌ وَالۡمَنَافِعُ مُنۡقَطِعَةٌ ځکه [د دوی] ملکيتونه سره جلا دي او منافع يې منقطع [او عليحده] دي بِخِلَافِ الۡعَبۡدِ په خلاف د غلام لِأَنَّهُ بَيۡعٌ مِنۡ نَفۡسِهِ ځکه چې دا [يعني "د غلام سره بيع کول" داسي دي لکه] د خپل ځان سره بيع کول [يعني پر غلام يو شی خرڅول داسي دي لکه پر خپل ځان خرڅول] لِأَنَّ مَا فِيۡ يَدِ الۡعَبۡدِ لِلۡمَوۡلٰى ځکه کوم څه چې د غلام په قبضه کې دي هغه د مالک دي وَكَذَا لِلۡمَوۡلٰى حَقٌّ فِيۡ كَسۡبِ الۡمُكَاتَبِ همدارنګه د مکاتب په ګټه کې د مالک حق ښته وَيَنۡقَلِبُ حَقِيۡقَةً بِالۡعَجۡزِ

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن قوله قول المتون، كذا ذكر في شرح عقود رسم المفتي (ص:٣٣)، وفي ملتقى الأبحر (ج:٣، ص:٣٢٤). [القول الراجح ج:٢، ص: ١٥٩]

او هغه حق [له بدلِ کتابت ځنځه د مکاتب] د عاجزه کېدلو په وجه په حقیقي ملکیت سره بدلیږي [یعني که مکاتب د "بدلِ کتابت" له اداء کولو ځنځه عاجزه سي نو هغه بیرته په حقیقت کي غلام ګرځي] وَلَهُ: أَنَّ مَوَاضِعَ التُّهْمَةِ مُسْتَثْنَاةٌ عَنِ الْوَكَالَاتِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي د تهمت ځایونه له وکالتونو ځنځه مستثنیٰ دي وَهٰذَا مَوْضِعُ التُّهْمَةِ او دا [هم] د تهمت ځای دی بِدَلِيلِ عَدَمِ قَبُولِ الشَّهَادَةِ په دې دلیل سره چي د دې کسانو ګواهي [د وکیل په حق کي] مقبوله نه ده وَلِأَنَّ الْمَنَافِعَ بَيْنَهُمْ مُتَّصِلَةٌ او ځکه چي د دوی په مینځ کي منافع متصل دي فَصَارَ بَيْعًا مِنْ نَفْسِهِ مِنْ وَجْهٍ نو ځکه دا په یوه اعتبار د خپل ځان سره بیع کول دي وَالْإِجَارَةُ وَالصَّرْفُ عَلَىٰ هٰذَا الْخِلَافِ او اجاره او بیع صَرف پر همدغه اختلاف دي.

**اللغات:** ﴿وکیل بالبیع﴾ د یو شي د خرڅولو وکیل، وکیل بالشراء: د یو شي د رانیولو وکیل، ﴿مثل القیمة﴾ په بازار کي چي د یو شي ځومره قیمت وي، هغه ته مثل قیمت (مثلي قیمت) وایي (اثمار الهدایه)، ﴿متباینة﴾ د تفاعل له بابه د مؤنث فاعل صیغه ده: یو له بل ځنځه جلا، سره جلا، ﴿منقطعة﴾ د انفعال له بابه مخکني صیغه ده: پرې سوی او شکېدلی، یو له بل ځنځه جلا سوی، ﴿کسب﴾ ګټه، ګټل سوی مال، ﴿ینقلب﴾ د انفعال مضارع ده: اوښتل، بدلېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی بل ځوک د یو شي د بیع وشراء (خرڅولو او رنیولو) مطلق وکیل جوړ کړي، یعني یو سړی مطلقاً بل چا ته داسي ووایي چي "ته! دا شی خرڅ کړه! یا یې رانیسه!" او داسي نه ورته وایي چي "پر فلانکي او فلانکي یې مه خرڅوه! یا له فلانکي او فلانکي ځنځه یې مه رانیسه!"، یا مثلاً داسي ورته ووایي "چي ستا خوښه وي پر هغه چا یې خرڅ کړه!"، یعني مؤکل په دې وکالت کي هیڅ قید نه ولګوي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دې وکیل لپاره نه د خپل پلار او نیکه سره بیع وشراء کول جائز دي او نه د خپل هغه قریبانو سره جائز دي چي د هغو ګواهي د ده په حق کي نه قبلول کیږي، مثلاً ځوی، لمسی، ښځه او داسي نور، صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي له خپل غلام او مکاتب ځنځه بغیر د وکیل لپاره نور د ټولو خلکو سره پر مثلي قیمت بیع وشراء کول جائز دي، برابره ده هغه د ده پلار وي یا یو بل قریب وي.

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي دلته توکیل مطلق دی، او کله چي توکیل مطلق دی او په هغه کي دا قید نسته چي د "فلانکي او فلانکي سره بیع وشراء مه کوه!"، نو ښکاره خبره ده چي د

وکيل لپاره به د هر چا سره د بيع وشراء کولو اجازت وي، برابره ده هغه د پلار او نيکه سره معامله وکړي يا د بل چا سره معامله وکړي، په هر صورت کي به د هغه دا معامله جائز او صحيح وي او په داسي کولو سره به د هغه وطرف ته هيڅ تهمت نه راجع کيږي؛ ځکه چي د ځوی او پلار، نيکه او لمسي ملکيتونه يو له بل څخه جلا وي او د هغو منافع هم جلا وي، نو ځکه د دې کسانو سره په بيع وشراء کولو کي پر وکيل دا تهمت نه سي کېدای چي هغه به د خپل نفع او فايدې په خاطر د هغو سره بيع وشراء کړې وي او په دې توګه به يې د مؤکل سره خيانت کړی وي (ځکه کله چي ملکيتونه او منافع سره جلا وي نو بيا به وکيل ته د هغو په بيع و شراء سره څه نفع ورسيږي او د مؤکل سره به څه خيانت وکړي)، نو بېله شکه به د هغه بيع او شراء هم جائز وي. (لېکن دا په هغه وخت کي کله چي په حقيقت کي هم د دوی منافع سره جلا وي، خو موږ وينو چي عموماً د ځوی او پلار، نيکه او لمسي منافع سره متحد وي، لکه څرنګه چي همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دی).

لېکن د خپل غلام او مکاتب سره د وکيل بيع وشراء کول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هم جائز نه دي؛ ځکه چي غلام خو د هيڅ شي مالک نه وي او کوم څه چي د غلام سره وي هغه ټول له د غلام د مالک (مولیٰ) وي، همدارنګه د مکاتب په ګټه (ګټل سوي مال) کي هم د هغه د مالک حق او حصه وي او که چيري هغه د بدل کتابت له اداء کولو څخه عاجز سي نو بيا هغه په پوره توګه د مالک په ملکيت کي داخل سي او د هغه غلام وګرځي او څرنګه چي د غلام هر څه د مالک لپاره وي، همداسي د دې مکاتب هر څه هم د مالک لپاره وګرځي، لهذا د غلام او مکاتب سره عقد کول داسي دي لکه د خپل ځان سره عقد کول، او د وکيل لپاره دا جائز نه دي چي د خپل ځان سره عقد وکړي، نو ځکه د خپل غلام او مکاتب سره هم عقد کول جائز نه دي.

وله أن مواضع إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي دلته که څه هم توکيل مطلق دی لېکن له وکالت څخه د تهمت ځايونه مستثنیٰ دي، يعني د وکيل جوړولو مطلب دا دی چي د کومو کسانو سره په بيع وشراء کي د خيانت تهمت وي د هغو سره دي بيع او شراء نه کيږي (يعني د مؤکل مطلب دا وي چي وکيل دي د هغه خلکو سره بيع وشراء نه کوي چي په هغو کي دا تهمت موجود وي چي که وکيل بيع ورسره وکړي نو وکيل به د هغو سره د ښه کولو او نفع حاصلولو په خاطر د خپل مؤکل سره خيانت وکړي)، او د خپل پلار يا نيکه سره يا د داسي قريبانو سره چي د وکيل په حق کي د هغو ګواهي نه قبلول کيږي (د هغو سره) په بيع وشراء کولو کي دا تهمت سته؛ او بل دا چي عموماً د پلار او ځوی، نيکه او لمسي او داسي نورو منافع يو د بل سره متصل وي او دوی په آزاده توګه يو د بل له مال څخه نفع حاصلوي، نو په يوه اعتبار د دې کسانو سره د وکيل بيع وشراء کول داسي دي لکه د خپل ځان سره بيع وشراء کول، لهذا کله چي دا د

تهمت ځای هم دی او وکیل ته د خپل ځان سره بیع او شراء کول هم جائز نه دي، نو ځکه د دې کسانو سره به هم د هغه بیع وشراء کول جائز نه وي.

**والاجارة إلخ:** فرمايي که یو سړی د عقد اجاره او بیع صَرف لپاره یو څوک وکیل جوړ کړي، نو په دې صورت کي هم وکیل ته د خپل پلار، نیکه یا داسي نورو قریبانو سره معامله کول د امام صاحب رَحِمَهُ الله په جائز نه دي، لېکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغو سره پر مثلي قیمت معامله کول جائز دي.

## که وکیل بالبیع په غبنِ فاحش (زیات تاوان) سره بیع وکړي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَالْوَكِيْلُ بِالْبَيْعِ يَجُوْزُ بَيْعُهُ بِالْقَلِيْلِ وَالْكَثِيْرِ وَالْعَرَضِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ فرمايي: او د وکیل بالبیع لپاره د کم ثمن او زیات ثمن او سامان په عوض کي بیع کول [خرڅول] جائز دي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَقَالَا[●]: لَا يَجُوْزُ بَيْعُهُ بِنُقْصَانٍ لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيْهِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په داسي نقصان [او کم ثمن سره] د هغه بیع کول جائز نه دي چي په هغه کي عام خلک دوکه نه خوري وَلَا يَجُوْزُ إِلَّا بِالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيْرِ او [همدارنګه] له دراهم او دنانیرو څخه بغیر د بل شي په عوض کي د هغه بیع کول [هم] جائز نه دي لِأَنَّ مُطْلَقَ الْأَمْرِ يَتَقَيَّدُ بِالْمُتَعَارَفِ ځکه چي مطلق حکم په متعارف [عرفي حکم] سره مقید کېږي لِأَنَّ التَّصَرُّفَاتِ لِدَفْعِ الْحَاجَاتِ ځکه چي تصرفات د ضروریاتو د لیري کولو لپاره وي فَيَتَقَيَّدُ بِمَوَاقِعِهَا نو ځکه مطلق حکم به د ضروریاتو په مواقعو [ځایو] سره مقید کېږي وَالْمُتَعَارَفُ الْبَيْعُ بِثَمَنِ الْمِثْلِ وَبِالنُّقُوْدِ او متعارف په مثلي ثمن او نقودو سره بیع کول دي وَلِهٰذَا يَتَقَيَّدُ التَّوْكِيْلُ بِشِرَاءِ الْفَحْمِ وَالْجَمَدِ وَالْأُضْحِيَّةِ بِزَمَانِ الْحَاجَةِ او په همدې وجه د سکرو او یخي او د قرباني د څاروي رانیولو وکیل جوړول د ضرورت په موسم سره مقید کېږي وَلِأَنَّ الْبَيْعَ بِغَبْنٍ فَاحِشٍ بَيْعٌ مِنْ وَجْهٍ وَهِبَةٌ مِنْ وَجْهٍ او ځکه چي په غبنِ فاحش سره بیع کول [خرڅول] په یوه اعتبار بیع ده او په یوه اعتبار هبه ده وَكَذَا الْمُقَايَضَةُ بَيْعٌ مِنْ وَجْهٍ وَشِرَاءٌ مِنْ وَجْهٍ او همدارنګه د سامان په عوض کي د سامان بیع په یوه اعتبار بیع ده او په یوه اعتبار شراء

---

● القول الراجح: قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۴۵۳)، وكذا في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۳۲۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۵۹]

ارانيول] دي فَلَا يَتَنَاوَلُهُ مُطْلَقُ اسْمِ الْبَيْعِ نو ځکه د بيع مطلق لفظ به هغه لره نه شامليږي وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُهُ الْأَبُ وَالْوَصِيُّ او په همدې وجه پلار او وصي په غبنِ فاحش سره د بيع کولو ملکيت [اختيار] نه لري وَلَهُ: أَنَّ التَّوْكِيلَ بِالْبَيْعِ مُطْلَقٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې [دلته] توکيل بالبيع مطلق دی فَيَجْرِي عَلَى إِطْلَاقِهِ فِي غَيْرِ مَوْضِعِ التُّهْمَةِ نو ځکه د تهمت له ځايه بغير په بل ځای کي به پر خپل اطلاق جاري کيږي وَالْبَيْعُ بِالْغَبْنِ أَوْ بِالْعَيْنِ مُتَعَارَفٌ عِنْدَ شِدَّةِ الْحَاجَةِ إِلَى الثَّمَنِ وَالتَّبَرُّمِ مِنَ الْعَيْنِ او په غبنِ فاحش سره بيع کول يا د سامان په عوض کي بيع کول هغه وخت متعارف دي کله چي [د انسان] ثمن ته سخت ضرورت وي او له سامان څخه نفس تنګه وي وَالْمَسَائِلُ مَمْنُوعَةٌ عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ او [د صاحبينو له طرفه پېش کړل سوي] مسئلې د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول ممنوع دي [يعني مونږ ته تسليم نه دي، مطلب دا چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغو حکم داسي نه دی لکه څرنګه چي صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي] عَلَى مَا هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْهُ لکه څرنګه چي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی وَأَنَّهُ بَيْعٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ او په غبنِ فاحش سره بيع کول په هره توګه [يعني په پوره توګه] بيع ده حَتَّى أَنَّ مَنْ حَلَفَ لَا يَبِيعُ همد وجه ده که يو څوک قسم واخلي چي بيع به نه کوي يَحْنَثُ بِهِ نو هغه د غبنِ فاحش په بيع سره حانث کيږي غَيْرُ أَنَّ الْأَبَ وَالْوَصِيَّ لَا يَمْلِكَانِهِ خو پلار او وصي [ځکه] د هغه ملکيت نه لري مَعَ أَنَّهُ بَيْعٌ سره د دې چي هغه [من کل وجه] بيع ده لِأَنَّ وِلَايَتَهُمَا نَظَرِيَّةٌ ځکه چي د دوی ولايت پر شفقت [او مصلحت] مبني دی وَلَا نَظَرَ فِيهِ او په غبنِ فاحش سره په بيع کولو کي هيڅ شفقت [او مصلحت] نسته وَالْمُقَايَضَةُ شِرَاءٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ وَبَيْعٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ او د سامان په عوض کي د سامان بيع په هره توګه شراء هم ده او په هره توګه بيع هم ده لِوُجُودِ حَدِّ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ځکه چي [په هغه کي] له دې دواړو څخه د هر يوه تعريف موجود دی.

**اللغات**: ﴿وكيل بالبيع﴾ د يو شي د خرڅولو وکيل، ﴿عرض﴾ سامان، له ثمن او نقودو څخه بغير نور شيان، ﴿لا يتغابن﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده: تاواني کېدل، دوکه خوړل (دوکه کېدل)، ﴿متعارف﴾ د تفاعل د باب مفعول دی: په عرف کي مشهوره او پېژندل سوی، په عرف کي رواج،

﴿ثمن﴾ قيمت، رېټ، ﴿مقايضه﴾ يو شی د سامان په عوض کي خرڅول. يعني د سامان بيع د سامان په عوض کي، مثلاً يو طرف ته لوښي وي او بل طرف ته هم لوښي وي. يا مثلاً يو طرف ته غنم وي او بل طرف ته هم غنم يا اوربشي يا وريجي وي، او په يوه طرف کي هم دراهم ودنانير نه وي، نو ته دې "بيع مقايضه" وايي (اثمار الهدايه). ﴿فحم﴾ سکاره، مشهوره شی دی کوم چي د لرګي او داسي نورو له جزئي سوځېدلو څخه وروسته پاتېږي، مړه سوي سکروټي (معجم وسيط). اردو شارحينو د "فَحم" معنیٰ په "کُوله" سره کړې ده، کُوله هم مشهوره شی ده لکه ډبرين سکاره. او دا شيان عموماً په ژمي کي استعمالېږي، خصوصاً په تېره زمانه کي چي هيڅ وسايل نه وو. ﴿التبرّم﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: نفس تنګي (نفس تنګيا)، تنګېدل، ستومانه کېدل. ﴿من کل وجه﴾ په هر اعتبار سره، په هره توګه. ﴿شراء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: رانيول.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که يو څوک د خپل شي د خرڅولو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه وکيل ته په هره توګه د دې شي د خرڅولو حق او اختيار سته، يعني برابره ده وکيل دا په زيات ثمن سره خرڅ کړي يا په کم ثمن (غبنِ فاحش) سره، او برابره ده هغه دا په دراهم او دنانيرو سره خرڅ کړي يا يې د يو سامان په عوض کي خرڅ کړي. په هر صورت کي د هغه بيع (خرڅول) جائز او صحيح دي.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د هغه دا بيع په دوو صورتونو کي جائز نه ده: په غبنِ فاحش (کم ثمن) سره خرڅول او د سامان په عوض کي خرڅول (يعني بيع مقايضه کول). او له دې څخه بغير په پاته صورتونو کي جائز ده. د غبنِ فاحش مطلب دا دی چي وکيل دا شی په دومره کم ثمن (قيت) سره خرڅ کړي چي عام خلک په هغه کي دوکه نه خوري، په بله وينا دا چي په دومره کم ثمن سره يې خرڅ کړي کوم چي په خلکو کي رواج نه وي، يعني خلک په دومره کم قيمت سره بالکل داسي شی نه خرڅوي بلکي له هغه څخه يې په زيات قيمت خرڅوي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي دلته د مؤکل له طرفه وکيل ته د خرڅولو مطلق حکم سوی دی، او د مطلق حکم قاعده دا ده چي هغه په متعارف (او مروج) حکم سره مقيد کيږي؛ ځکه چي (د وکيل) تصرف د ضرورت ليري کولو لپاره مشروع سوی (جائز ګرځول سوی) دي، نو ځکه هغه به د ضرورت په موقع سره مقيد وي. او دا موقع په عرف او رواج سره معلومول کيږي. او په عرف کي هر شی په مثلي ثمن او په نقودو يعني په دراهم و دنانيرو سره خرڅول کيږي. نو ځکه دلته په دې مسئله کي به دغه مطلق توکيل او مطلق حکم په عرف سره مقيد کيږي (يعني په دې مطلق حکم سره د مؤکل مطلب دا دی

چې د خلکو په عُرف کې د دې شي څومره قيمت دی په هغومره قيمت يې خرڅ کړه!. او په دومره کم قيمت يې مه خرڅوه کوم چې په عُرف کې رواج نه دی. همدارنګه د هغه مطلب دا دی چې په هغه نقودو سره يې خرڅ کړه کوم چې په دې ښار کې رواج دي (چې هغه زموږ په ښارو کې کلداري او افغانۍ دي او د مصنف رَحِمَهُ الله په ښار کې دراهم او دنانير وه)، لهذا که وکيل په مثلي ثمن او په نقودو سره د وکالت شی خرڅ کړي، نو د هغه بيع به جائز وي، او که په غبنِ فاحش يا د يو سامان په عوض کې يې خرڅ کړي، نو د هغه بيع به جائز نه وي.

ولهذا يتقيّد إلخ: څرنګه چې صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په خپل دليل کې وفرمايل چې مطلق حکم په متعارف حکم سره مقيد کيږي، نو د هغو له طرفه د دې خبرې مثال دا دی چې که يو څوک د سکرو د رانيولو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي (يعني يو چا ته ووايي چې زما لپاره سکاره، يا مثلاً کُوله يا ګوټکې رانيسه! لېکن دا نه ورته ووايي چې په ژمي کې يې رانيسه!)، نو په دې صورت کې د سکرو رانيول (شراء) د هغه کال د ژمي په موسم سره مقيد کيږي، لهذا که وکيل د ګرمۍ په موسم کې سکاره (يا مثلاً کُوله يا ګوټکې) رانيسي او مؤکل ته يې راوړي نو هغه پر مؤکل نه لازميږي، ځکه چې د کولې د ضرورت موقع ژمی دی، نه ګرمي، لهذا وکيل د مؤکل د حکم مخالفت وکړی، نو ځکه پر مؤکل به هغه نه لازميږي، يا مثلاً يو سړی د يخي يا د قربانۍ د څاروي رانيولو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي، نو د يخي رانيول (شراء) د هغه کال د دوبي په موسم سره مقيد کيږي، او د قربانۍ د څاروي رانيول د هغه کال د لوی اختر په ورځو سره مقيد کيږي (يعني وکيل به د لوی اختر تر ورځي مخکې يا د هغه په ورځو کې د قربانۍ څاروی رانيسي)؛ ځکه که څه هم دلته امر بالشراء مطلق دی، لېکن هغه د ضرورت په موقع سره مقيد دی، همداسې دلته (د عبارت په مسئله کې) که څه هم امر البيع مطلق دی، لېکن هغه د ضرورت په موقع او عرف سره مقيد دی.

ولأن البيع بغبن فاحش إلخ: د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دويم دليل دا دی چې په غبنِ فاحش سره خرڅول من وَجه بيع ده او من وَجه هبه ده؛ ځکه که يو سړی د پنځه سوه روپو شی په دوه نيم سوه روپۍ خرڅ کړي نو ښکاره خبره ده چې دوه نيم سوه تاوان د هغه له طرفه داسې دی لکه هبه (مفت ورکول)، يعني هغه په دوه نيم سوه دا شی خرڅ کړی او دوه نيم سوه يې مشتري (رانيونکي) ته هبه کړي، حال دا چې مؤکل هغه فقط د بيع وکيل جوړ کړی دی، نه د هبې. همدارنګه د سامان په عوض کې خرڅول من وجه بيع ده چې وکيل د مؤکل شی پر مشتري خرڅ کړی دی او من وَجه شراء ده چې وکيل د مشتري سامان رانيولی دی. حال دا چې مؤکل هغه فقط د بيع وکيل جوړ کړی دی، نه د شراء. لهذا د غبن فاحش او د بيع مقايضه په صورتونو کې د مؤکل د حکم مخالفت شته. او وکيل لره د مؤکل د حکم مخالفت کول جائز نه دي. نو ځکه په غبنِ فاحش او په بيع مقايضه سره به وکيل لره خرڅول هم جائز نه وي؛ ځکه چې د بيع (خرڅولو) مطلق لفظ دغه صورتونو لره شامل نه دی.

**ولهذا لايملكه الأب إلخ:** څرنګه چي په غبن فاحش سره د خرڅولو په صورت کي من وَجه هبه کول لازميږي، نو په همدې وجه د نابالغه بچي پلار او وصي لره دا اختيار نسته چي د هغه شی په غبن فاحش سره خرڅ کړي؛ ځکه چي په دې صورت کي هم هبه کول لازميږي، او پلار يا وصي لره دا حق او اختيار نسته چي د نابالغه بچي يو شی او مال هبه کړي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي دلته توکيل مطلق دی، او د مطلق توکيل حکم دا دی چي هغه د تهمت له ځايو څخه بغير په بل ځای کي مطلق پاتيږي، او څرنګه چي دا هم د تهمت ځای نه دی (يعني په پورتنۍ مسئله کي دا تهمت نسته چي وکيل د خپل فايدې لپاره په غبن فاحش او په بيع مقايضه سره شی خرڅ کړی دی)، نو ځکه دا توکيل به مطلق پاته وي او په هر هغه صورت کي به بيع جائز وي چي په هغه کي د بيع معنیٰ موجوده وي، او څرنګه چي په غبنِ فاحش او په بيع مقايضه سره د خرڅولو په صورت کي هم د بيع معنیٰ موجوده ده، نو ځکه په دې دوو صورتونو کي به هم بيع جائز وي.

**والبيع بالغبن إلخ:** په دې سره د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د دليل جواب ورکول سوی دی، حاصل يې دا دی چي د بيع تعارف (او مروّج کېدل) په مثلي ثمن او نقودو سره مقيد کول صحيح نه دي؛ ځکه چي ځيني وخت انسان سخت مجبوره او مفلسه وي يا له يو شي څخه هغه ډېر نفس تنګه او ستومانه وي، نو په دې صورت کي هغه په غبنِ فاحش سره هم دا شی خرڅوي او د سامان په عوض کي يې هم خرڅوي، يعني په خلګو کي د دې عرف او عادت سته چي ځيني وخت د نفس تنګۍ په وجه انسان داسي کوي، لهذا داسي کول هم د عرف او رواج حصه ده او په دې کي هيڅ حرج نسته.

**والمسائل ممنوعة إلخ:** په دې سره د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د مثال جواب ورکول سوی دی، حاصل يې دا دی چي د يخي، سکرو او د قرباني د څاروي رانيول (شراء) د ضرورت په موقع سره مقيد کول د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول ممنوع او تسليم نه دي. ځکه له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دا روايت نقل سوی دی چي (د هغه په نېز) په دې ټولو صورتونو کي اطلاق معتبر دی، يعني د هغه په نېز د دې شيانو رانيول د موسم سره مقيد نه دي، بلکي که وکيل له موسم څخه بغير هم دا شيان رانيسي نو هم هغه پر مؤکل لازميږي، ځکه چي دا توکيل مطلق دی يعني مؤکل د هيڅ وخت او موسم قيد نه دی لګولی.

لهذا دا مسئلې د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول موږ ته تسليم نه دي. نو ځکه په دې مسئلو سره د صاحبينو لپاره د امام صاحب په خلاف دليل نيول صحيح نه دي.

**وأنه بيع من كل وجه إلخ:** په دې سره د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د دويم دليل جواب ورکول سوی دی حاصل يې دا دی چي موږ دا خبره هم نه تسليموو چي د غبنِ فاحش بيع من وَجه بيع او من وَجه هبه ده، بلکي

هغه من کُل وجه بيع ده، همدا وجه ده که يو سړی قسم واخلي چي "په الله قسم! بيع به نه کوم" (وَاللهِ لَا أَبِيْعُ)، او بيا هغه په غبنِ فاحش سره يو شی خرڅ کړي، نو هم هغه په خپل قسم کي حانث کيږي، حال دا چي که دا بيع من کُلِ وجه بيع نه وای نو قسم اخيستونکی سړی به نه حانث کېدای، لهذا د هغه حانث کېدل د دې خبري ښکاره دليل دی چي دا بيع مِن کُلِ وجه بيع ده او دې ته مِن وجه بيع ويل صحيح نه دي.

پاته سو دا سوال چي پلار او وصي لره د نابالغه بچي د مال خرڅولو اختيار ولي نسته، نو د هغه جواب دا دی چي پلار او وصي ولايت پر شفقت و مصلحت مبني دی، او په غبنِ فاحش سره په خرڅولو کي هيڅ شفقت و مصلحت نسته، بلکي ښکاره ظلم و نا انصافي ده. نو ځکه پلار يا وصي لره په غبنِ فاحش سره د نابالغه بچي د مال خرڅولو اجازت نسته.

همدارنګه بيع مقايضه ته هم مِن وَجه بيع ويل موږ نه تسليموو؛ ځکه چي په بيع مقايضه کي مِن کُلِ وجه د بيع معنیٰ هم سته او مِن کلِ وجه د شراء معنیٰ هم پکښي سته او پر هغه د بيع او شراء دواړه تعريفونه صادقيږي، لهذا هغه به په پوره توګه په دواړو سره متصف کيږي، نو ځکه مِن کلِ وجه بيع او شراء به ور ته ويل کيږي او مِن وَجه بيع او مِن وَجه شراء ويل به غلط وي.

## د وکيل بالشراء د اختيار حدود

قَالَ: وَالْوَكِيْلُ بِالشِّرَاءِ يَجُوْزُ عَقْدُهُ بِمِثْلِ الْقِيْمَةِ فرمايي: او په مثلي قيمت سره د وکيل بالشراء عقد [معامله] کول جائز دي وَزِيَادَةٍ يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيْ مِثْلِهَا [همدرانګه] په دومره زياتوب سره [د وکيل بالشراء عقد کول جائز دي] چي په هغه کي خلک دوکه خوري [مطلب دا چي په دومره زائد ثمن سره هم د هغه معامله کول جائز دي چي عموماً خلک داسي شی په هغومره ثمن رانيسي] وَلَا يَجُوْزُ بِمَا لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيْ مِثْلِهِ او په دومره زياتوب [زائد ثمن] سره جائز نه دي چي په هغه کي خلک دوکه نه خوري [يعني په غبنِ فاحش سره رانيول جائز نه دي] لِأَنَّ التُّهْمَةَ فِيهِ مُتَحَقِّقَةٌ ځکه چي په دې کي [يعني په غبنِ فاحش سره په رانيولو کي] تهمت موجود دی فَلَعَلَّهُ اشْتَرَاهُ لِنَفْسِهِ ځکه کېدای سي چي وکيل به هغه د خپل ځان لپاره رانيولی وي فَإِذَا لَمْ يُوَافِقْهُ لېکن کله چي دا عقد [او رانيول سوی] د هغه موافق نه سو [يعني خوښ يې نسو. يا يې تاوان پکښي وليدی] أَلْحَقَهُ بِغَيْرِهِ نو هغه دا د بل چا [يعني د مؤکل] سره يې ولګوی [يعني دلته دا تهمت سته چي وکيل به اول د خپل ځان لپاره شی رانيولی وي او د نه موافق کېدلو او تاوان

لېدلو په وجه به يې هغه شی د مؤکل پر غاړه اچولی وي] عَلٰى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سو حَتّٰى لَوْكَانَ وَكِيلًا بِشِرَاءِ شَيْءٍ بِعَيْنِهِ همدا وجه ده که هغه د يو مُعيّن شي د رانيولو وکيل وي قَالُوا: يَنْفُذُ عَلَى الْآمِرِ نو مشايخو فرمايلي دي: چي [په غبنِ فاحش سره هم] عقد پر مؤکل نافذيږي لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ شِرَاءَهُ لِنَفْسِهِ ځکه چي دا وکيل د خپل ځان لپاره د هغه د رانيولو ملکيت نه لري وَكَذَا الْوَكِيلُ بِالنِّكَاحِ إِذَا زَوَّجَهُ امْرَأَةً بِأَكْثَرَ مِنْ مَهْرِ مِثْلِهَا او همداسي وکيل بالنکاح دی کله چي هغه له مهرِ مثل څخه د زيات مهر په عوض کي د خپل مؤکل سره د يو ښځي نکاح وکړي جَازَ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْإِضَافَةِ إِلَى الْمُوَكِّلِ فِي الْعَقْدِ ځکه چي په عقد نکاح کي د مؤکل وطرف ته نسبت کول ضروري دي فَلَا تَتَمَكَّنُ هٰذِهِ التُّهْمَةُ نو ځکه په هغه کي به دا تهمت ځای نه نيسي وَلَا كَذٰلِكَ الْوَكِيلُ بِالشِّرَاءِ [لېکن] وکيل بالشراء داسي نه دی لِأَنَّهُ يُطْلِقُ الْعَقْدُ ځکه چي هغه عقد مطلق کوي [يعني د مؤکل وطرف ته د عقد نسبت نه کوي، او نه پر هغه دا ضروري دي].

**اللغات**: ﴿ألحقه﴾ د افعال د باب ماضي ده: يو شی د بل شی سره يو ځای کول، لګول. ﴿لا تتمكن﴾ د تفعّل له بابه د نفي صيغه ده: ځای نيول، قرار نيول.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که مؤکل د يو شي د رانيولو لپاره يو څوک وکيل جوړ کړي لېکن مؤکل هغه شی مُتعيّن نه کړي، نو د وکيل لپاره په مثلي ثمن سره رانيول هم جائز دي او په غبنِ يسير سره رانيول هم جائز دي، لنډه دا چي په دواړو صورتونو کي رانيول پر مؤکل لازميږي، مثلاً که هغه شی (موکل بهٖ) د پنځه سوه روپو شی وي او وکيل هغه په پنځه نيم سوه رانيسي، نو دا غبنِ يسير دی او جائز دي او دا رانيول (رانيول سوی شی) پر مؤکل نافذ او لازم دی. لېکن که وکيل هغه شی په غبنِ فاحش سره رانيسي يعني په دومره قيمت يې رانيسي چي عموماً خلک هغه په دومره قيمت نه رانيسي، مثلاً په اووه سوه روپې يې رانيسي، نو دا رانيول پر وکيل نافذيږي او لازميږي، نه پر مؤکل؛ ځکه چي په دې صورت کي د وکيل په هکله دا تهمت سته چي وکيل به هغه شی اول د ځان لپاره رانيولی وي او کله چي يې په هغه کي د ځان لپاره تاوان محسوس کړی وي نو هغه به يې پر مؤکل لازم کړی وي (چي دا ما ستا لپاره رانيولی دی)، لکه ډېر مخکي چي هم داسي يو صورت تېر سو، او په داسي صورت کي عقد پر وکيل نافذيږي، نه پر مؤکل، نو ځکه په غبنِ فاحش سره د رانيولو په صورت کي به هم عقد (رانيول) پر وکيل نافذيږي، نه پر مؤکل.

لېکن که يو سړی د مُعيّن شي د رانيولو وکيل وي، بيا وکيل هغه شی په غبنِ فاحش سره رانيسي، نو هم دا رانيول پر مؤکل نافذيږي، نه پر وکيل؛ ځکه چي په دې صورت کي توکيل د مُعين شي د رانيولو دی، او تاسو ته معلومه ده چي د شي د مُتعيّن کېدلو په صورت کي وکيل لره دا جائز نه دي چي هغه د ځان لپاره رانيسي، نو ځکه په دې صورت کي به دا تهمت نه وي چي وکيل د ځان لپاره هغه شی رانيولی دی (ځکه د وکيل لپاره دا جائز نه دي)، او کله چي دلته تهمت نسته او وکيل په خپل فعل کي متهم نه دی، نو ځکه دا رانيول به پر مؤکل نافذيږي که څه هم وکيل په غبنِ فاحش سره هغه شی رانيولی وي.

همدارنګه که يو سړی بل څوک د خپل نکاح کولو (نکاح تړلو) وکيل جوړ کړي، او وکيل د يو ښځي سره د هغه نکاح وکړي لېکن په مهر کي د هغې له مهرِ مثل څخه زيات مهر وټاکي (يعني په غبنِ فاحش سره يې مهر وټاکي)، نو دا نکاح هم پر مؤکل (خاوند) نافذيږي؛ ځکه په دې کي د مؤکل وطرف ته د نکاح نسبت سوی دی او د نکاح په عقد کي داسي کول ضروري هم دي، نو ځکه دا نه سي ويل کېدای چي وکيل اول د ځان لپاره نکاح کړې وه او بيا چي کله هغه په ښځه کي يو نقصان وليدی نو د هغې نکاح يې د مؤکل سره وکړه، او کله چي دلته هيڅ تهمت نسته، نو ښکاره خبره ده چي دا نکاح به د مؤکل لپاره وي، نه د وکيل لپاره.

د دې په خلاف وکيل بالشراء (د رانيولو وکيل) عقد مطلق کوي او د خپل مؤکل وطرف ته د هغه نسبت نه کوي، او په شراء (رانيولو) کي دا ضروري هم نه ده، نو ځکه په شراء کي دا تهمت کېدای سي چي وکيل به اول د خپل ځان لپاره شی رانيولی وي او بيا په شي کي د نقصان ليدلو په وجه به يې هغه د مؤکل پر ذمه لازم کړی وي. او په همدې اعتبار سره د وکالت بالنکاح او وکالت بالشراء په مينځ کي فرق سوی دی او په وکالت بالنکاح کي له مهرِ مثل څخه پر زائد مهر هم نکاح جائز ګرځول سوې ده، لېکن د شراء (رانيولو) په صورت کي د غبنِ فاحش والا رانيول د وکيل پر ذمه لازم سوي دي او د مؤکل په حق کي هغه جائز نه دي ګرځول سوي.

## د غبنِ فاحش او غبنِ يسير تعريف

قَالَ: وَالَّذِي لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ مَا لَا يَدْخُلُ تَحْتَ تَقْوِيمِ الْمُقَوِّمِينَ فرمايي: او هغه نقصان [تاوان] چي خلک يې نه زغمي [هغه] دا دی کوم چي د اندازه کونکو تر اندازې لاندي نه داخليږي [په بله وينا: هغه قيمت چي عموماً خلک دوکه نه پکښي خوري. هغه دی کوم چي د قيمت لګونکو تر قيمت لاندي نه داخليږي] وَقِيلَ: فِي الْعُرُوضِ "دَه نيم" او ويل سوي دي: چي په سامان کي "لسو" والا شی په "لس نيمه" [يعني د لسو درهمو يا لسو روپو والا شی په لس نيمه رانيول] وَفِي الْحَيَوَانَاتِ "دَه يازده" او په حيوانانو کي د

"لسو" والا حیوان په "یوولس" [یعني لسو درهمو والا حیوان په یوولس درهمه رانیول] وَفِي الْعَقَارَاتِ "دوه دوازده" او په جایدادو کي د "لسو" والا په "دوولس" لِأَنَّ التَّصَرُّفَ يَكْثُرُ وُجُودُهُ فِي الْأَوَّلِ ځکه چي د تصرف وجود په اول [یعني په سامان] کي زیات وي [یعني د سامان عقد او د هغه رانیول زیات کیږي] وَيَقِلُّ فِي الْأَخِيرِ او په آخري [جایداد] کي د تصرف وجود ډېر کم وي وَيَتَوَسَّطُ فِي الْأَوْسَطِ او په مینځوي [حیوانانو] کي درمیانه وي وَكَثْرَةُ الْغَبْنِ لِقِلَّةِ التَّصَرُّفِ او د نقصان زیاتوب د تصرف د کموالي په وجه وي.

**اللغات**: ﴿لا يتغابن﴾ د تفاعل له بابه د نفي صیغه ده، تَغَابَنَ يَتَغَابَنُ تَغَابُنًا: د دې باب خپله معنیٰ ده: يو بل ته نقصان رسول، يو بل ته دوکه ورکول، لیکن شارحینو یې دا معناوي هم ذکر کړي دي: دوکه خوړل (دوکه کېدل)، نقصان برداشت کول (تاوان زغمل)، ﴿تقويم﴾ د تفعیل د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي وي او د صلې په بدلون سره یې معنیٰ هم بدلیږي: قیمت ټاکل، رېتې لګول، د یو شي اندازه بیانول (مثلا تقويمُ البلدان: د ښار طول او عرض بیانول)، ﴿العقارات﴾ جمع د عَقَارٌ ده: جایداد، هر غیرِ منقول شی (کوم چي له یوه ځایه بل ځای ته نسي نقلول کېدای. لکه ځمکه. کور. درخته او داسي نور)، ﴿عروض﴾ جمع د عَرَضٌ ده: سامان، له دراهم او دنانیرو (نقودو) څخه بغیر نور شیان، او د عَرَضٌ جمع أَعْرَاض راځي: سامان (معجم لغة الفقهاء)، ﴿غبن﴾ نقصان (تاوان)، دوکه ورکول.

**تشريح**: په دې عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله د "لَا يَتَغَابَنُ النَّاس" تشریح او تعریف بیانوي او په "لَا يَتَغَابَنُ النَّاس" سره د مصنف رَحِمَهُ الله مراد غبنِ فاحش دی او د هغه له تعریف څخه د غبنِ یسیر تعریف په خپله معلومیږي. د غبنِ فاحش تعریف دا دی چي هغه تاوان او خساره کوم چي د ماهره تاجرانو (کاروباري حضراتو) تر اندازې لاندي نه داخلیږي، نو داسي تاوان او خساره غبنِ فاحش دی، یعني کوم خلک چي د کاروبار او تجارت مالکان دي، هغوی د دومره قیمت په عوض کي اندازه نه کوي.

نو معلومه سوه چي کومه تاوان او خساره چي د ماهره تجارانو تر اندازې لاندي راځي. هغه غبنِ یسیر دی.

**په بله وینا**: صاحب د اثمار الهدایې د دغه عبارت واضح او آسانه مطلب داسي بیان کړی دی: چي کوم خلک د شیانو د قیمت ټاکلو او لګولو ماهرین دي، له هغو څخه دوه خلک چي د یو شي کوم

قيمت ولګوي نو دا قيمت "غبن يسير" (ما يتغابن الناس) دى او له هغه څخه لوړ قيمت "غبن فاحش" (لايتغابن الناس) دى، ځکه چي عموماً خلک په داسي لوړ قيمت کي دوکه نه خوري.

وقيل في العروض إلخ: له دې عبارت څخه په ښکاره دا معلوميږي چي دا د غبنِ فاحش بل تعريف او تشريح ده، لېکن صحيح خبره دا ده چي په دې سره د غبنِ يسير تشريح او تعريف بيان سوى دى، لکه څرنګه چي صاحب د فتح القدير او داسي نور شارحين وايي چي جمهورو فقهاؤ او عامو مشايخو همداسي ذکر کړي دي. (فتح القدير. نهايه. بنايه)

د دې عبارت حاصل دا دى چي که وکيل د لسو درهمو سامان په لس نيمه درهمه رانيسي، نو دا غبنِ يسير دى، همدارنګه که د لسو درهمو حيوان مثلاً پسه په يوولس درهمه رانيول سي، نو دا هم غبنِ يسير دى، او که د لس درهمو جايداد په دوولس درهمه رانيول سي، نو دا هم غبنِ يسير دى، او غبنِ يسير معاف دى، او که وکيل له دې څخه په زيات قيمت هغه رانيسي مثلاً د لس درهمو پسه په دوولس درهمه رانيسي، نو دا غبنِ فاحش دى چي وکيل ته د هغه اجازه نسته (د فيصد په اعتبار سره د دې حساب داسي دى: چي که په سامان کي پنځه فيصده زيات وي، نو دا غبنِ يسير دى، همدارنګه که په حيوان کي لس فيصده زيات وي، يا په جايداد کي شل فيصده زيات وي، نو دا غبنِ يسير دى، او که له دې څخه هم زيات وي، نو دا غبنِ فاحش دى (اثمار الهدايه))

لأن التصرف يکثر إلخ: دا د پورتني خبري دليل دى، يعني اوس چي دا خبره ذکر سوه چي مذکوره مقدار (يعني په سامان کي لس نيم درهمه او داسي نور) غبنِ يسير دى او له دې څخه زيات غبنِ فاحش دى، د هغه دليل دا دى چي د سامان تصرف (کاروبار) زيات پيښيږي، مطلب دا چي د جايداد او حيوانانو په نسبت سامان زيات رانيول کيږي، نو ځکه په هغه کي د انسان تجربه زياته وي او ډېره دوکه نه پکښي خوري (ښکاره دې وي چي د دغه دليل مدار پر تجربه دى، لهذا کله چي د سامان تجربه او معلومه انسان ته زيات وي، نو ځکه په هغه کي به لږ تاوان برداشت کيږي)، نو په دې وجه که د لسو درهمو والا سامان په لس نيمه دراهمه رانيسي (يعني نيم درهم دوکه وخوري [په بله وينا دا چي فقط په پنځه فيصده تاوان يې رانيسي])، نو دا غبنِ يسير دى او له دې څخه زيات غبنِ فاحش دى. او تر سامان وروسته دويم نمبر د حيوانانو بيع او کاروبار زيات وي، لهذا په هغه کي د انسان تجربه او معلومات درميانه وي، نو ځکه په هغه کي د سامان دوچنده مقدار يعني يو درهم (لس فيصده) غبنِ يسير ګرځول سوى دى او له دې څخه زيات غبنِ فاحش دى. او د سامان او حيوان په نسبت د جايداد بيع او کاروبار ډېر کم پيښيږي (ځکه چي عام انسانان په ټوله ژوند کي فقط يو ځل او دوه ځله کور. ځمکه او داسي نور رانيسي)، لهذا په هغه کي د انسان تجربه او معلومات ډېر کم وي. نو ځکه په هغه کي د حيوان دوچنده مقدار يعني ديوه درهم پر ځاى دوه درهمه غبنِ يسير

گرځول سوي دي، چي په جايداد کي دوه درهمه (شل فيصده) غبنِ يسير دی او له دې څخه زيات غبنِ فاحش دی.

## که د غلام په بيع کي وکيل نيم غلام خرڅ کړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا وَكَّلَهُ بِبَيْعِ عَبْدِهِ فرمايي: او که هغه د غلام خرڅولو وکيل جوړ کړي [يعني که يو سړی د خپل غلام خرڅولو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي] فَبَاعَ نِصْفَهُ او وکيل د غلام نيمه حصه خرڅه کړي جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز دی لِأَنَّ اللَّفْظَ مُطْلَقٌ عَنْ قَيْدِ الِافْتِرَاقِ وَالِاجْتِمَاعِ ځکه چي [د خرڅولو] لفظ د افتراق او اجتماع له قيد څخه مطلق دی [يعني مؤکل مطلق د غلام خرڅولو حکم کړی دی او دا قيد يې نه دی لګولی چي هغه نيم، نيم خرڅ کړه يا يې يو ځای خرڅ کړه!] أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ بَاعَ الْكُلَّ بِثَمَنِ النِّصْفِ آيا ته نه ګورې! چي که وکيل په نيم ثمن [قيمت] سره پوره غلام خرڅ کړي يَجُوزُ عِنْدَهُ نو [هم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي فَإِذَا بَاعَ النِّصْفَ بِهِ لهذا کله چي هغه په نيم ثمن سره نيم غلام خرڅ کړي أَوْلَى نو دا به په درجه اولیٰ جائز وي وَقَالَا ❀: لَا يَجُوزُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي نيم غلام خرڅول جائز نه دي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَارَفٍ ځکه چي دا متعارف [په عرف کي رواج] نه دي [حال دا چي مطلق حکم د متعارف وطرف ته راجع کيږي، نه د غيرِ متعارف وطرف ته] لِمَا فِيهِ مِنْ ضَرَرِ الشَّرِكَةِ ځکه چي په دې کي د شرکت [شراکت] ضرر سته إِلَّا أَنْ يَبِيعَ النِّصْفَ الْآخَرَ قَبْلَ أَنْ يَخْتَصِمَا مګر دا چي وکيل بله نيمه حصه [پاته نيم غلام] هم خرڅ کړي مخکي تر دې چي هغه او مؤکل خصومت [او دعویٰ] سره وکړي لِأَنَّ بَيْعَ النِّصْفِ قَدْ يَقَعُ وَسِيلَةً إِلَى الِامْتِثَالِ ځکه چي د نصف غلام خرڅول ځيني وخت د مؤکل د حکم پر ځای کولو [يعني د پوره غلام خرڅولو] ذريعه واقع کيږي بِأَنْ لَا يَجِدَ مَنْ يَشْتَرِيهِ جُمْلَةً په دې توګه چي وکيل داسي څوک پيدا نه کړي کوم چي پوره غلام [پريوه ځای] رانيسي فَيَحْتَاجُ إِلَى أَنْ يُفَرِّقَ نو ځکه هغه دې ته محتاج وي چي جلا، جلا يې خرڅ کړي [يعني دې ته مجبوره وي چي نصف غلام پريوه سړي خرڅ کړي او د هغه پاته نصف حصه پر بل چا خرڅه کړي، نو په داسي صورت کي چي کله هغه پاته نصف حصه خرڅه کړي نو د اول نصف بيع [خرڅول] د پاته نصف د خرڅولو ذريعه واقع سي او په دې توګه د مؤکل حکم پر ځای سي (يعني تولله

❀ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال صاحب الدر المختار: ...وظاهره ترجيح قولهما إلخ. [القول الراجح ج:۲، ص:۱۶۰]

غلام خرڅ سي)] فَإِذَا بَاعَ الْبَاقِيَ قَبْلَ نَقْضِ الْبَيْعِ الْأَوَّلِ نو كله چي وكيل د اول نصف له بيع ماتېدلو څخه مخكې [يعني تر خصومت كولو مخكې] پاته نصف خرڅ كړي تَبَيَّنَ أَنَّهُ وَقَعَ وَسِيلَةً نو واضحه به سي چي د اول نصف بيع [د پاته نصف د خرڅولو او د مؤكل د حكم پر ځاى كولو] ذريعه واقع سوه وَإِذَا لَمْ يَبِعْ او كله چي يې خرڅ نه كړي ظَهَرَ أَنَّهُ لَمْ يَقَعْ وَسِيلَةً نو ښكاره به سي چي هغه وسيله واقع نه سوه فَلَا يَجُوزُ نو ځكه به هغه جائز نه وي وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ عِنْدَهُمَا او دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز استحسان دی.

**اللغات:** ﴿افتراق﴾ د افتعال مصدر دی: جلا كېدل (بېلېدل). ﴿الكُل﴾ ټوله، پوره (بشپړ غلام). ﴿يختصما﴾ د افتعال له بابه د تثنيه مذكر غائب مضارع صيغه ده: جنګ كول، دعوىٰ كول (د قاضي دربار ته تلل او هلته دعوىٰ كول). ﴿امتثال﴾ د افتعال مصدر دی: اطاعت كول، حكم پر ځاى كول، حكم پوره كول. ﴿نقض﴾ د نصر مصدر دی: ماتول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه يو سړی د خپل غلام خرڅولو لپاره بل څوك وكيل جوړ كړي او هغه ته داسي نه وواېي چي نيم يا پوره غلام خرڅ كړه! (يعني د نيم يا پوره غلام خرڅولو هيڅ قيد نه ولګوي)، او وكيل نيم غلام خرڅ كړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا بيع (خرڅول) جائز دي او پر مؤكل لازم دي، لېكن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د نيم غلام بيع د مؤكل په حق كي جائز نه ده او پر هغه به نه لازميږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي دلته مؤكل وكيل ته مطلق د غلام خرڅولو حكم كړی دی او هغه د نيم يا پوره غلام هيڅ قيد نه دی لګولی، لهذا څرنګه چي د پوره غلام خرڅول د وكيل لپاره جائز دي، همداسي به د نيم غلام خرڅول هم د وكيل لپاره جائز وي او هغه به پر مؤكل نافذ او لازم وي.

او بل دا چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز كه وكيل پوره غلام په نيم ثمن سره خرڅ كړي، نو هم جائز دی، لهذا كله چي وكيل نيم غلام په نيم ثمن سره خرڅ كړي، نو دا به په درجه اولىٰ جائز وي؛ ځكه چي په دې كي د مؤكل نفع ده او په نيم ثمن سره د پوره غلام په خرڅولو كي د مؤكل نقصان دی. لهذا كله چي د نقصان والا صورت جائز دی، نو د نفع والا صورت خو به په درجه اولىٰ جائز او صحيح وي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي مطلق د متعارف وطرف ته راجع كيږي (لكه مخكي چي ذكر سوه)، نو ځكه دا مطلق حكم به د متعارف وطرف ته راجع كيږي، او متعارف د پوره غلام خرڅول دي، نه د نيم غلام (يعني په عُرف كي كه يو څوک بل چا ته ووايي چي زما غلام خرڅ كړه!، نو د هغه مطلب دا وي چي پوره غلام خرڅ كړه!، نيم غلام مه خرڅوه!)، لهذا نيم غلام خرڅول د مؤكل د حكم مخالفت كول دي، او مخكي تاسو ته معلومه سوه چي كه وكيل د مؤكل د حكم مخالفت وكړي نو عقد پر هغه لازميږي او نافذيږي، نه پر مؤكل، نو ځكه په دې مسئله كي د نيم غلام خرڅول به پر وكيل لازم وي، نه پر وكيل، او د مؤكل په حق كي به دا بيع جائز نه وي.

• ولما فيه من ضرر إلخ: دويم دليل يې دا دی چي د نيم غلام د خرڅولو په صورت كي غلام د مؤكل او مشتري په مينځ كي مشترک ګرځي، او په شركت كي ښكاره نقصان دی، او وكيل ته د داسي كار اجازت نسته چي په هغه كي د مؤكل نقصان وي، نو ځكه په دې حواله سرهم د نيم غلام بيع د مؤكل په حق كي جائز نه ده.

لېكن كه وكيل نيم غلام خرڅ كړي او بيا مخكي تر دې چي د وكيل او مؤكل په مينځ كي دعوىٰ واقع سي، وكيل هغه پاته نصف غلام هم خرڅ كړي، نو په دې صورت كي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د اول نصف بيع (خرڅول) جائز دي او د اول نصف بيع به د پاته نصف د بيع لپاره وسيله او ذريعه ګرځول كيږي، او كه هغه پاته نصف غلام خرڅ نه كړي، نو د اول نصف بيع جائز نه ده (ځكه كه اول نصف غلام خرڅ كړي نو دا ويل كېداى سي چي د دغه نصف بيع [خرڅول] د پاته نصف د خرڅولو وسيله ده، نو ځكه د اول نصف بيع[خرڅول] به جائز وي، لېكن كه پاته نصف غلام خرڅ نه كړي، نو معلومه سوه چي د اول نصف بيع د پاته نصف د خرڅولو لپاره وسيله نه ده. نو ځكه د اول نصف بيع به جائز نه وي)، ځكه چي ځيني وخت داسي څوک نه پيدا كيږي چي ټوله غلام له وكيل څخه رانيسي او وكيل دې ته مجبوره وي چي هغه په نصف، نصف سره خرڅ كړي، لهذا اوس كه د اول نصف تر خرڅولو وروسته او د مؤكل تر دعوىٰ كولو مخكي وكيل پاته نصف هم خرڅ كړي، نو د اول نصف بيع به د پاته (دويم) نصف د بيع لپاره وسيله او ذريعه ګڼل كيږي او د غلام بيع به جائز وي، او كه چيري وكيل دويم نصف خرڅ نه كړي نو د اول نصف بيع به د پاته نصف د بيع وسيله نه ګڼل كيږي، نو ځكه په دې صورت كي به د اول نصف بيع جائز نه وي (ځكه چي په دې صورت كي د مؤكل او مشتري تر مينځ شركت واقع كيږي).

وهذا استحسان إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي له دعوىٰ (خصومت) څخه مخكي د پاته نصف غلام د خرڅولو په صورت كي د اول نصف د بيع جائز كېدل د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د استحسان پر بناء دي، كنې د قياس له رويه د اول نصف بيع هم جائز نه ده.

## د نيم غلام رانيولو حکم

وَإِنْ وَكَّلَهُ بِشِرَاءِ عَبْدٍ او که مؤکل هغه د غلام رانيولو وکيل جوړ کړي فَاشْتَرَى نِصْفَهُ او وکيل د غلام نيمه حصه رانيسي فَالشِّرَاءُ نو [په دې صورت کې] رانيول موقوف پاتېږي فَإِنِ اشْتَرَى بَاقِيَهُ نو که [تر دې وروسته] وکيل د غلام پاته حصه [هم] رانيسي لَزِمَ الْمُوَكِّلَ نو رانيول [شراء] پر مؤکل لازمېږي لِأَنَّ شِرَاءَ الْبَعْضِ قَدْ يَقَعُ وَسِيلَةً إِلَى الِامْتِثَالِ ځکه چې [د غلام] د بعضې حصې رانيول ځينې وخت د مؤکل د حکم پر ځای کولو [يعني د پوره غلام رانيولو] ذريعه واقع کيږي بِأَنْ كَانَ مَوْرُوثًا بَيْنَ جَمَاعَةٍ په دې توګه چې غلام د جماعت [څو خلکو] په مينځ کې په ميراث پرېښول سوی وي فَيَحْتَاجُ إِلَى شِرَائِهِ شِقْصًا شِقْصًا نو [په داسې صورت کې] وکيل په حصه، حصه سره د هغه رانيولو ته محتاج دی فَإِذَا اشْتَرَى الْبَاقِيَ قَبْلَ رَدِّ الْآمِرِ الْبَيْعَ نو ځکه کله چې د مؤکل له طرفه د بيع له ردولو [ماتولو] څخه مخکې وکيل پاته حصه رانيوله تَبَيَّنَ أَنَّهُ وَقَعَ وَسِيلَةً نو ښکاره سوه چې [د اولې حصې] رانيول وسيله واقع سوه فَيَنْفُذُ عَلَى الْآمِرِ نو ځکه دا رانيول [شراء] به پر مؤکل نافذيږي وَهٰذَا بِالِاتِّفَاقِ او دا په اتفاق سره دي [يعني دا حکم د امام صاحب او صاحبينو په مينځ کې متفق عليه دی] وَالْفَرْقُ لِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ فِي الشِّرَاءِ تَتَحَقَّقُ التُّهْمَةُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول فرق دا دی چې په رانيولو کې تهمت موجود وي عَلَى مَا مَرَّ لکه مخکې چې تېر سو وَآخَرُ أَنَّ الْأَمْرَ بِالْبَيْعِ يُصَادِفُ مِلْكَهُ او بل فرق دا دی چې د خرڅولو حکم د مؤکل په ملکيت کې واقع کيږي فَيَصِحُّ نو هغه به صحيح وي فَيُعْتَبَرُ فِيهِ إِطْلَاقُهُ نو ځکه په هغه کې به د حکم مطلق والی معتبر وي وَالْأَمْرُ بِالشِّرَاءِ صَادَفَ مِلْكَ الْغَيْرِ او د رانيولو حکم د بل چا په ملکيت کې واقع سوی وي فَلَمْ يَصِحَّ نو هغه به صحيح نه وي فَلَا يُعْتَبَرُ فِيهِ التَّقْيِيدُ وَالْإِطْلَاقُ نو ځکه په هغه کې به تقييد او اطلاق معتبر نه وي.

**اللغات**: ﴿وكّله﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: وکيل جوړول، وکيل کول. ﴿شقص﴾ يوه ټوکره، يوه حصه. ﴿يصادف﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: متصل کېدل، (ملاقي کېدل، واقع کېدل)، پيدا کول. ﴿ردّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: واپس کول، ردول.

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی که يو سړی بل څوک د غلام رانيولو وکيل جوړ کړي، او وکيل نيم غلام رانيسي، نو د امام صاحب او صاحبينو ټولو په نېز دغه شراء (رانيول) موقوف پاتيږي، لهذا که تر دې وروسته وکيل پاته نصف هم رانيسي، نو د غلام بيع جائز ګرځي او پر مؤکل نافذيږي او لازميږي؛ **دليل** : د اول نصف رانيول ځکه موقوف پاتيږي چې ځيني وخت د نصف غلام رانيول د پاته نصف د رانيولو لپاره وسيله واقع کيږي، يعني ځيني وخت دې ته ضرورت پيښيږي چې غلام په نصف، نصف او په حصه، حصه سره رانيول سي، مثلاً يو غلام څو وارثانو ته په ميراث کي حاصل سي، نو ښکاره خبره ده چې د داسي غلام د رانيولو لپاره به له هر وراث څخه جلا د هغه حصه رانيول کيږي، نو په دې صورت کي جلا، جلا رانيول يو د بل لپاره وسيله ده (يعني يوه حصه رانيول د بلي حصې د رانيولو وسيله ده، په دې شرط کله چې وکيل د مؤکل تر دعوې او بيع ماتولو مخکي بله حصې رانيسي)، لنډه دا چې کله وکيل "مخکي تر دې چې مؤکل بيع ردّ کړي او دعوىٰ وکړي" د غلام پاته حصه هم رانيوله، نو معلومه سوه چې د اول نصف شراء د پاته حصې د شراء لپاره وسيله وګرځېده، نو ځکه په داسي صورت کي به د پوره غلام شراء (رانيول) د مؤکل په حق کي جائز او پر هغه به نافذ او لازم وي.

وهذا بالاتفاق إلخ : صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دې صورت کي د نصف غلام شراء د امام صاحب او صاحبينو په اتفاق سره موقوف کيږي، د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز خو توقّف (موقوف کېدل) صحيح ښکاري، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا صحيح نه ښکاري؛ ځکه امام صاحب رَحِمَهُ الله د نصف غلام بيع (خرڅول) نه دي موقوف کړي (لکه په تېر عبارت کي چې ذکر سوه چې د هغه په نېز د نصف غلام بيع [بغير له توقف] جائز ده)، لېکن د نصف غلام شراء يې موقوف کړې ده، نو د دې څه وجه ده؟، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د "والفرقُ لأبي حنيفة إلخ" په عبارت سره د بيع د نه موقوف کېدلو او د شراء د موقوف کېدلو په هکله دوه فرقونه بيان کړي دي: ① اول فرق دا دی چې د شراء په صورت کي د وکيل په حق کي دا تهمت کېدای سي چې هغه به نصف غلام اول د ځان لپاره رانيولی وي بيا به يې د تاوان ليدلو او نه خوښېدلو په وجه د هغه شراء پر مؤکل لازم کړې وي (چې ما دا نصف غلام ستا لپاره رانيولی دی)، نو ځکه د دې تهمت په خاطر امام صاحب رَحِمَهُ الله د نصف غلام رانيول موقوف کړي دي. او څرنګه چې د نصف غلام په بيع (خرڅولو) کي د ځان لپاره د خرڅولو تهمت نه سي کېدای، نو ځکه هغه امام صاحب رَحِمَهُ الله نه ده موقوف کړې بلکي بغير له توقّف يې جائز کړې ده.

و آخر أن الأمر إلخ : ② دويم فرق دا دی چې د توکيل بالبيع په صورت کي د مؤکل حکم د هغه په خپل ملکيت کي واقع کيږي؛ ځکه ښکاره خبره ده چې مبيع يعني غلام د مؤکل ملکيت دی، نو ځکه د

مؤکل له طرفه د بيع (خرڅولو) حکم کول صحيح دي، او کله چې د بيع حکم صحيح دی، نو ځکه په هغه کې به اطلاق معتبر وي (يعني په هغه کې به توکيل مطلق لرل معتبر وي)، لهذا کله چې توکيل مطلق دی، نو ځکه وکيل ته به هم د نصف غلام د خرڅولو اجازت وي او هم د پوره غلام. او څرنګه چې د پوره غلام بيع بغير له توقف جائز ده، همداسې به د نصف غلام بيع هم بغير له توقف جائز وي. ددې په خلاف د توکيل بالشراء په صورت کې د مؤکل حکم د بل چا په ملکيت کې واقع کيږي؛ ځکه ښکاره خبره ده چې خپل ملکيت نه رانيول کيږي، او د بل چا د ملکيت د رانيولو حکم کول صحيح نه دي، محض د ضرورت په خاطر صحيح ګرځول سوي دي، او کله چې د رانيولو حکم (امر بالشراء) صحيح نه دی، نو ځکه په هغه کې به اطلاق يا تقييد (مطلق کول يا مقيد کول) معتبر نه وي، بلکې د عرف اعتبار به کيږي، او څرنګه چې عرف او رواج دا دی چې پوره غلام رانيول کيږي، او دلته وکيل نصف غلام رانيولی دی، نو ځکه امام صاحب رَحِمَهُ الله د نصف غلام رانيول (شراء) موقوف کړې ده او پر مؤکل يې نه ده لازم کړې.

(دويم فرق په آسانه او مختصره توګه داسې هم ويل کېدای سي چې کله مؤکل وکيل ته د خپل غلام د خرڅولو حکم وکړی نو دا خو د هغه خپل ملکيت دی. نو ځکه مطلق کول معتبر دي [يعني که وکيل نيم غلام خرڅ کړي يا پوره، په دواړو به مؤکل راضي وي، او د دواړو بيع به پر مؤکل لازم وي]. ليکن کله چې مؤکل وکيل ته له بل چا څخه د غلام د رانيولو حکم وکړی نو ښکاره خبره ده چې دا حکم د بل چا د ملکيت سره متصل دی. نو ځکه په دې صورت کې مؤکل د خپل ځان له طرفه د مطلق يا مقيد قيد نه سي لګولای، بلکې د خلکو د عُرف اعتبار به کيږي، او په عُرف کې پوره غلام رانيول کيږي، نو ځکه که وکيل پوره غلام رانيسي نو هغه به پر مؤکل لازميږي، او که نيم رانيسي نو هغه به نه پر لازميږي، بلکې موقوف به پاتيږي).

## د يو عيب په وجه وکيل بالبيع ته د مبيع واپس کېدلو حکم او تفصيل

قَالَ: وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا بِبَيْعِ عَبْدِهِ فرمايي: او که څوک يو سړي [وکيل] ته د خپل غلام خرڅولو حکم وکړي فَبَاعَهُ او هغه غلام خرڅ کړي وَقَبَضَ الثَّمَنَ أَوْ لَمْ يَقْبِضْ او پر ثمن قبضه وکړي يا يې نه وکړي فَرَدَّهُ الْمُشْتَرِيْ عَلَيْهِ بِعَيْبٍ لَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ بيا مشتري د داسې عيب په وجه هغه غلام وکيل [بائع] ته واپس کړی چې [د مشتري په قبضه کې] هغسې عيب نه سي پيدا کېدای بِقَضَاءِ الْقَاضِيْ د قاضي په فيصله سره [يعني د قاضي په فيصله سره يې هغه ته واپس کړي] بِبَيِّنَةٍ أَوْ بِإِبَاءِ يَمِيْنٍ أَوْ بِإِقْرَارٍ [او د قاضي دا فيصله] د بينې په وجه وي يا له قسم څخه [د وکيل] د انکار کولو په وجه وي يا [د وکيل] د اقرار کولو په وجه وي فَإِنَّهُ يَرُدُّهُ عَلَى الْآمِرِ نو [په دې صورت کې] وکيل هغه غلام مؤکل ته واپس

کولای سي لِأَنَّ الْقَاضِيَ تَيَقَّنَ بِحُدُوْثِ الْعَيْبِ فِي يَدِ الْبَائِعِ ځکه چې [په دې صورت کې] قاضي ته د بائع په قبضه کې د عيب پيدا کېدلو يقين دی فَلَمْ يَكُنْ قَضَاؤُهُ مُسْتَنِدًا إِلَى هٰذِهِ الْحُجَجِ نو ځکه د هغه فيصله به د دغه حجتونو وطرف ته منسوب نه وي وَتَأْوِيلُ اشْتِرَاطِهَا فِي الْكِتَابِ أَنَّ الْقَاضِيَ يَعْلَمُ أَنَّهُ لَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ فِي مُدَّةِ شَهْرٍ مَثَلًا او په کتاب [متن] کې د دې حجتونو د شرط کېدلو تأويل دا دی چې قاضي په دې خبر دی چې داسي عيب مثلاً په يوه مياشت کې نه سي پيدا کېدای لٰكِنَّهُ اشْتَبَهَ عَلَيْهِ تَارِيخُ الْبَيْعِ لېکن پر قاضي د بيع تاريخ مشتبه دی فَيَحْتَاجُ إِلَى هٰذِهِ الْحُجَجِ لِظُهُورِ التَّارِيخِ نو ځکه د تاريخ ښکاره کېدلو [متعين کېدلو] لپاره به قاضي دغه حجتونو ته محتاج وي أَوْ كَانَ عَيْبًا لَا يَعْرِفُهُ إِلَّا النِّسَاءُ أَوِ الْأَطِبَّاءُ يا هغه يو داسي عيب وي چې فقط ښځي يا طبيبان په هغه خبرېدای سي وَقَوْلُهُنَّ وَقَوْلُ الطَّبِيبِ حُجَّةٌ فِي تَوَجُّهِ الْخُصُومَةِ لَا فِي الرَّدِّ او د ښځو قول او د طبيب قول [نقط] د خصومت په متوجه کېدلو [او شروع کېدلو] کې حجت دی، نه په واپس کولو [يعني د بائع وطرف ته د غلام واپس کولو په هکله حجت نه دی] فَيَفْتَقِرُ إِلَيْهَا فِي الرَّدِّ نو ځکه هغه به په واپس کولو کې دغه حجتونو ته محتاج وي حَتّٰى لَوْ كَانَ الْقَاضِي عَايَنَ الْبَيْعَ همدا وجه ده که قاضي په خپله بيع ووريني وَالْعَيْبُ ظَاهِرٌ او عيب ښکاره وي لَا يَحْتَاجُ إِلَى شَيْءٍ مِنْهَا نو هغه له دغه حجتونو څخه يوه حجت ته هم نه محتاج کيږي وَهُوَ رَدٌّ عَلَى الْمُوَكِّلِ او همدا [يعني د دې عيب په وجه واپس کول] مؤکل ته واپس کول دي فَلَا يَحْتَاجُ الْوَكِيلُ إِلَى رَدٍّ وَخُصُومَةٍ نو ځکه وکيل به واپس کولو او خصومت [دعویٰ] کولو ته محتاج نه وي.

**اللغات**: ﴿ثمن﴾ قيمت، بيه، ﴿ردّه﴾ د ضرب ماضي ده: واپس کول. ﴿لا يحدث﴾ د نصر له بابه د نفي صيغه ده: پيدا کېدل، پېښېدل. ﴿إباء﴾ د فتح مصدر دی: انکار کول. ﴿يتيقّن﴾ د تفعّل مضارع ده: يقين کول. ﴿أطباء﴾ جمع د طَبِيْبٌ ده: ډاکټر، طبيب. ﴿خصومة﴾ جنګ، دعویٰ، مقدمه. (خصومت په اصل کې دې ته وايي چې يو سړی پر بل چا د حق دعویٰ کوي او دا بل څوک له هغه څخه انکار کوي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی بل څوک د خپل غلام خرڅولو وکيل جوړ کړي او وکيل هغه خرڅ کړي او مشتري ته يې وسپاري او وکيل پر ثمن قبضه وکړي يا يې نه وکړي، نو که

تر دې وروسته مشتري د يو داسي عيب په وجه هغه غلام وكيل (بائع) ته واپس كړي كوم چي د مشتري په قبضه كي نه سي پيدا كېداى، مثلاً د غلام د لاس يا پښې په ګوتو كي يوه ګوته زياته وي (يعني توله شپږ ګوتي وي)، يا يو بل داسي عيب وي كوم چي د بيع كولو او د غلام واپس كولو په دوران كي نه سي پيدا كېداى، او دغه واپس كول د قاضي په حكم او فيصله سره وي (يعني مشتري د قاضي په دربار كي د عيب دعوىٰ وكړي او قاضي د غلام واپس كولو فيصله وكړي)، برابره ده د قاضي فيصله د بيّنه يا انكار يا اقرار پر بناء وي، يعني برابره ده مشتري پر دې خبره بيّنه (ګواهي) پېش كړي چي دا عيب زما په قبضه كي نه دى پيدا سوى، يا د مشتري سره بيّنه نه وي او له وكيل (بائع) څخه د قسم اخيستلو نوبت راسي لېكن وكيل له قسم څخه انكار وكړي، يا وكيل د عيب اقرار وكړي (چي هو! دا عيب زما [يعني د مؤكل) په قبضه كي پيدا سوى دى)، نو په دې ټولو صورتونو كي وكيل دغه معيوب غلام له خصومت (دعوې) او د قاضي له فيصلې څخه بغير مؤكل ته واپس كولاى سي، يعني دې ته ضرورت نسته چي وكيل جلا د قاضي دربار ته ولاړ سي او هلته دعوىٰ پېش كړي چي "دا خو زما د مؤكل غلام دى، لهذا قاضي صاحب! ته دا فيصله هم وكړه چي زه يې مؤكل ته واپس كړم"؛ دليل دا دى چي دلته د يو داسي عيب په وجه غلام وكيل ته واپس سوى دى كوم چي د مشتري په قبضه كي نه سي پيدا كېداى، نو ځكه (د مشتري لپاره د فيصله كولو په وخت كي) قاضي ته دا يقين دى چي دا عيب د بائع په قبضه كي موجود وو، او كله چي قاضي ته د بائع (او مؤكل) په قبضه كي د مذكوره عيب پيدا كېدلو يقين دى (يعني هغه په دې يقيني خبر دى)، نو بيا جلا فيصله كولو ته څه ضرورت سته، ځكه قاضي د خپل يقين په رڼا كي د بائع (وكيل) وطرف ته د دغه معيوب غلام د واپس كولو فيصله كولاى سي، او ښكاره خبره ده چي كله د بائع يعني د وكيل وطرف ته غلام واپس كړى سي نو دا واپسي د مؤكل وطرف ته هم ده؛ ځكه چي عيب د مؤكل له طرفه راغلى دى.

فلم يكن قضاؤه إلخ: دا د يو اعتراض جواب دى، اعتراض دا دى چي كله مذكوره عيب د مشتري په قبضه كي نه سي پيدا كېداى، نو بيا ولي د قاضي فيصله پر مذكوره حجتونو يعني پر بيّنه او داسي نورو موقوف كړل سوې ده، قاضي خو د خپل يقين (يقيني خبرېدلو) په وجه له دغه حجتونو څخه بغير هم فيصله كولاى سي.

نو صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په جواب كي فرمايي چي د قاضي فيصله (يعني د غلام واپس كولو فيصله) پر مذكوره حجتونو موقوف نه ده. لېكن اوس كه دا اعتراض وسي چي كله د قاضي فيصله پر دغه حجتونو موقوف نه ده او قاضي ته خپله د دې يقيني خبر سته چي دا عيب د بائع په قبضه كي موجود وو، نو بيا په متن (كتاب) كي د دې حجتونو د شرط لګولو او ذكر كولو څه فايده ده؟.

د جواب حاصل دا دی چي قاضي ته دا خبره معلومه ده چي داسي عيب مثلاً په يوه مياشت کي نه سي پيدا کېدای، لېکن پر قاضي د بيع تاريخ مشتبه دی چي بيع کله سوې ده، ځکه که بيع دوې، درې مياشتي مخکي سوې وي، نو کېدای سي چي دا عيب به د مشتري په قبضه کي پيدا سوی وي او د دې عيب په وجه به مشتري ته د غلام واپس کولو اجازت نه وي، او که د بيع يوه مياشت هم نه کيږي، نو معلومه خبره ده چي دا عيب به د بائع (او مؤکل) په قبضه کي پيدا سوی وي او مشتري ته به د دې عيب په وجه د غلام واپس کولو اجازت وي، نو ځکه د بيع د تاريخ د مُتعيّن کېدلو او ښکاره کېدلو لپاره به له مذکوره دريو حجتونو څخه يوه حجت ته ضرورت وي (يعني بيّنه، انکار يا اقرار، او د دې حجتونو په ضمن کي د بيع د تاريخ پته لګيږي)، لهذا کله چي د بيع د تاريخ ښکاره کېدلو لپاره دغه حجتونو ته ضرورت پرېوځي، نو ځکه په متن کي دا حجتونه شرط کړل سوي دي.

أو كان عيبًا لا يعرفه إلخ: دويم جواب دا دی چي د کوم عيب په وجه چي مشتري مبيع واپس کوي، هغه ځيني وخت داسي عيب وي چي فقط ښځي په خبرېدای سي (مثلا مبيع مينځه وي او د هغې په فرج کي يو مرض وي)، يا داسي عيب وي چي فقط ډاکټر (طبيب) په خبرېداسی سي (مثلا غلام په کينسر مبتلا وي)، او تاسو ته به معلومه وي چي د ښځو او ډاکټر دا قول فقط په دې باره کي حجت جوړېدای سي چي مشتري د بائع سره دعویٰ (خصومت) شروع کړي، لېکن د ښځو او ډاکټر د دې قول په وجه مبيع د بائع طرف ته نه سي واپس کول کېدای، لهذا د مبيع واپس کولو لپاره به مذکوره حجتونو ضروت وي، نو په دې وجه په متن (کتاب) د مذکوره حجتونو شرط لګول سوی دی.

همدا وجه ده که قاضي بيع په خپله وويني، يعني بائع او مشتري د هغه مخته معامله سره وکړي او قاضي ته د هغه تاريخ هم معلوم وي او عيب بالکل ښکاره وي (يعني دا ښکاره وي چي هغه د وکيل (بائع) په قبضه کي پيدا سوی دی)، نو په دې صورت کي بالکل مذکوره حجتونو ته ضرورت نسته، بلکي قاضي به له حجت څخه بغير د غلام واپس کولو فيصله صادروي (چي وکيل [بائع] ته غلام واپس کړه!)، او د قاضي د دغه فيصلې په وجه به وکيل ته د غلام واپس کول د مؤکل وطرف ته واپس کول وي (يعني دا به داسي شمارل کيږي چي مشتري هغه د مؤکل وطرف ته واپس کړی، ځکه چي عيب اصلاً د مؤکل په قبضه کي پيدا سوی دی)، نو ځکه دې ته به ضرورت نه وي چي وکيل د قاضي په دربار کي جلا دعویٰ وکړي او د قاضي په فيصله سره مؤکل ته غلام واپس کړي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: وَكَذٰلِكَ إِنْ رَدَّهُ عَلَيْهِ بِعَيْبٍ يَحْدُثُ مِثْلُهُ فرمايي: او همدارنګه که مشتري د داسي عيب په وجه وکيل ته غلام واپس کړي چي [د مشتري په قبضه کي] هغسي عيب پيدا کېداى سي بِبَيِّنَةٍ أَوْ بِإِبَاءِ يَمِيْنٍ د ګواهۍ په ذريعه يا له قسم څخه د انکار کولو په ذريعه لِأَنَّ الْبَيِّنَةَ حُجَّةٌ مُطْلَقَةٌ ځکه چي بيّنه [ګواهي] کامل حجت دی وَالْوَكِيْلُ مُضْطَرٌّ فِي النُّكُوْلِ او وکيل [له قسم څخه] په انکار کولو کي مجبوره دی لِبُعْدِ الْعَيْبِ عَنْ عِلْمِهِ ځکه چي عيب د هغه له علم [او خبر] څخه ليري دی بِاعْتِبَارِ عَدَمِ مُمَارَسَتِهِ الْمَبِيْعَ د مبيع سره د هغه د عدم ممارست [يعني د تعلق نه لرلو] په اعتبار کولو سره [يعني د مبيع (غلام) سره د وکيل هيڅ تعلق او واسطه نه ده راغلې] فَلَزِمَ الْآمِرَ نو ځکه پر مؤکل به غلام لازم وي.

**اللغات**: ﴿بُعْد﴾ ليري والى، ﴿ممارسة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي: ځان په يو کار اخته کول (او تعلق ور سره پېدا کول)، مشق او محنت کول، همېشتوب کول، مهارت او تجربه ترلاسه کول. (مصباح اللغات)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مشتري د قاضي په فيصله سره د يو داسي عيب په وجه غلام وکيل (بائع) ته واپس کړي کوم چي د مشتري په قبضه کي پيدا کېداى سي، او د قاضي فيصله د بيّنه (ګواهۍ) پر بناء وي يا له قسم څخه د انکار پر بناء وي، نو په دې صورت کي هم د وکيل وطرف ته واپس کول د مؤکل وطرف ته واپس کول دي، نو ځکه دې ته ضرورت نسته چي وکيل جلا دعوىٰ وکړي او د قاضي فيصلې ته انتظار سي؛ ځکه کله چي مشتري د کامل حجت يعني د بيّنه (ګواهۍ) په ذريعه وکيل ته غلام واپس کړی او دا يې ثابته کړه چي عيب د وکيل (بائع) په قبضه کي موجود وو، نو په دې سره دا هم ثابته سوه چي دا عيب د مؤکل په قبضه کي هم موجود وو، نو ځکه جلا دعوې او فيصلې ته به ضرورت نه وي.

همدارنګه که وکيل له قسم څخه انکار وکړي او مشتري هغه ته غلام واپس کړي، نو دا هم د مؤکل وطرف ته واپس کول دي؛ ځکه چي وکيل له قسم څخه په انکار کولو کي مجبوره دی، ځکه غلام (مبيع) د مؤکل سره وو، او د غلام سره د وکيل واسطه او تعلق نه وو، لهذا وکيل ته د غلام د عيب هيڅ خبر نسته، نو هغه به خامخا له قسم څخه انکار کوي، او د دې انکار په وجه چي څرنګه هغه ته غلام واپس کيږي، همداسي د هغه د مؤکل وطرف ته هم واپس کيږي (لنډه دا چي د بيّنه او انکار په

دوارو صورتونو کې غلام د اصل مالک [مؤکل] وطرف ته واپس کېږي)، او وکیل ته د جلا دعوې او فیصلې هیڅ ضرورت نسته.

## د وکیل د اقرار په وجه هغه ته د مبیع واپس کېدلو حکم

قَالَ: وَإِنْ كَانَ ذٰلِكَ بِإِقْرَارِهِ فرمايي: او که چیرې د غلام واپس کول د وکیل د اقرار په وجه وي [یعني د وکیل د اقرار په وجه مشتري هغه ته غلام واپس کړی وي] لَزِمَ الْمَأْمُوْرَ نو غلام پر وکیل لازمیږي لِأَنَّ الْإِقْرَارَ حُجَّةٌ قَاصِرَةٌ ځکه چې اقرار حجت قاصره دی وَهُوَ غَيْرُ مُضْطَرٍّ إِلَيْهِ او وکیل اقرار کولو ته مجبوره هم نه دی لِإِمْكَانِهِ السُّكُوتَ وَالنُّكُولَ ځکه چې هغه لره چپ پاتېدل او [له قسم ځخه] انکار کول ممکن دي إِلَّا أَنَّ لَهُ أَنْ يُخَاصِمَ الْمُوَكِّلَ فَيُلْزِمَهُ بِبَيِّنَةٍ أَوْ بِنُكُوْلِهِ لیکن هغه ته دا حق سته چې د وکیل سره مخاصمه [او دعویٰ] وکړي او بیا هغه د بینې یا [له قسم ځخه] د انکار کولو په ذریعه غلام پر مؤکل لازم کړي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الرَّدُّ بِغَيْرِ قَضَاءٍ بِإِقْرَارٍ وَالْعَيْبُ يَحْدُثُ مِثْلُهُ په خلاف د هغه صورت کله چې [د غلام] واپس کول د قاضي له فیصلې ځخه بغیر [د وکیل] د اقرار کولو په وجه وي او هغسې عیب [د مشتري په قبضه کې] پیدا کېدای سي حَيْثُ لَا يَكُونُ لَهُ أَنْ يُخَاصِمَ بَائِعَهُ نو [په دې صورت کې] وکیل لره دا حق نسته چې د خپل بائع [یعني د مؤکل] سره مخاصمه وکړي لِأَنَّهُ بَيْعٌ جَدِيدٌ فِي حَقِّ ثَالِثٍ ځکه چې دا دریم کس په حق کې نوې بیع ده وَالْبَائِعُ ثَالِثُهُمَا او بائع [یعني مؤکل] د دوی دریم دی [نو دا چې دا د مؤکل په حق کې نوې بیع ده] وَالرَّدُّ بِالْقَضَاءِ فَسْخٌ او د قاضي په فیصله سره واپس کول فسخ ده [یعني کله چې د قاضي په حکم سره غلام واپس کړی سي نو په دې سره د مشتري او مؤکل تر مینځ بیع فسخ کېږي (ماتیږي)] لِعُمُوْمِ وِلَايَةِ الْقَاضِيْ ځکه چې د قاضي ولایت عام دی غَيْرَ أَنَّ الْحُجَّةَ قَاصِرَةٌ وَهِيَ الْإِقْرَارُ مګر حجت قاصره دی یعني اقرار فَمِنْ حَيْثُ الْفَسْخُ كَانَ لَهُ أَنْ يُخَاصِمَهُ نو د فسخ په حیثیت سره وکیل لره دا حق سته چې د مؤکل سره مخاصمه وکړي وَمِنْ حَيْثُ الْقُصُورُ لَا يَلْزَمُ الْمُوَكِّلَ إِلَّا بِحُجَّةٍ [لیکن] د حجت د قاصره کېدلو په وجه له بل حجت [یعني له بینه او نُکول] ځخه بغیر دا واپسي [یعني د غلام واپس کول] پر مؤکل نه لازمیږي وَلَوْ كَانَ الْعَيْبُ لَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ وَالرَّدُّ بِغَيْرِ قَضَاءٍ بِإِقْرَارِهِ او که چیرې هغه داسې عیب وي چې [د مشتري په قبضه کې]

هغسي عيب نه سي پيدا کېدای او واپسي [د غلام واپس کول] د قاضي له فيصلې څخه بغير [يعني] د اقرار په وجه وي يَلْزَمُ الْمُوَكِّلَ مِنْ غَيْرِ خُصُومَةٍ فِي رِوَايَةٍ نو [د مبسوط] په يوه روايت کي دا واپسي له خصومت [دعوې] څخه بغير پر مؤکل لازميږي لِأَنَّ الرَّدَّ مُتَعَيِّنٌ ځکه چي واپس کول مُتعيّن دي وَفِي عَامَّةِ الرِّوَايَاتِ لَيْسَ لَهُ أَنْ يُخَاصِمَهُ او [د مبسوط] په عام رواياتو کي [ذکر سوي] دي چي وکيل لره دا حق نسته چي د مؤکل سره مخاصمه وکړي [بلکي واپسي پر مؤکل لازميږي] لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَالْحَقُّ فِي وَصْفِ السَّلَامَةِ ثُمَّ يَنْتَقِلُ إِلَى الرَّدِّ ثُمَّ إِلَى الرُّجُوعِ بِالنُّقْصَانِ او [د مشتري] حق [د مبيع] د سلامتيا په وصف کي دی بيا هغه د واپس کولو وطرف ته منتقل کيږي او بيا د رجوع بالنقصان وطرف ته منتقل کيږي فَلَمْ يَتَعَيَّنْ الرَّدُّ نو ځکه واپس کول مُتعيّن نه سوه [لهذا داسي ويل صحيح نه دي چي "واپس کول مُتعيّن دي"] وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي الْكِفَايَةِ بِأَطْوَلَ مِنْ هٰذَا او موږ دا [يعني د دغه مسئلو حکم] په کفاية المنتهي کي له دې څخه هم په زيات تفصيل سره بيان کړی دی.

**اللغات**: ﴿قاصرة﴾ د نصر د باب مؤنث فاعل دی: غيرِ کامل (نابشپړ)، کمزوري. ﴿نکول﴾ د نصر د باب مصدر دی: له قسم څخه انکار کول. ﴿يخاصم﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: جنګ او خصومت کول، دعوىٰ کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که وکيل (بائع) دا اقرار وکړي چي "هو! غلام زما په قبضه کي عيبداره وو او په هغه کي عيب موجود وو"، او د هغه دا اقرار په وجه قاضي د غلام واپس کولو حکم او فيصله وکړي چي مشتري دي وکيل (بائع) ته غلام واپس کړي، نو دغه د واپس کولو حکم (امر بالرد) فقط پر وکيل واقع کيږي يعني د دې حکم په وجه صرف مشتري ته د غلام واپس کولو حق سته لېکن وکيل ته دا حق او اجازت نسته چي خپل مؤکل ته غلام واپس کړي؛ دليل دا دی چي د واپس کولو حکم (امر بالرد) د وکيل په اقرار سره ثابت سوی دی، او قاعده دا ده چي د مُقر اقرار او په هغه سره ثابتېدونکی حکم فقط د هغه په حق کي خاص وي او د بل چا وطرف ته نه متعدي کيږي، نو ځکه په دې مسئله کي چي د واپس کولو کوم حکم دی هغه به د وکيل (بائع) سره خاص وي او صرف مشتري به وکيل ته د غلام واپس کولو حقدار وي، ځکه چي صرف مشتري د غلام عيبداره کېدلو مُقر (اقرار کونکی) دی، او څرنګه چي مؤکل د دغه اقرار مُقِر نه دی، نو ځکه وکيل به خپل مؤکل ته د غلام واپس کولو حقدار نه وي.

لېکن وکيل ته دا حق سته چي هغه د خپل مؤکل سره په دې باره کي خصومت او دعویٰ وکړي، نو که چيري وکيل په بيّنه (ګواهی) سره دا ثابته کړي چي غلام د مؤکل په قبضه کي عيبداره سوی دی، يا د وکيل سره بيّنه نه وي او له مؤکل څخه د قسم اخيستلو غوښتنه وسي (چي ته قسم واخله! چي "دا غلام زما په قبضه کي نه دی عيبدار سوی") لېکن مؤکل له قسم څخه انکار وکړي، نو څرنګه چي په دغه صورتونو کي دا ثابته سوه چي غلام د مؤکل په قبضه کي عيبداره سوی دی، نو ځکه اوس به وکيل ته دا حق وي چي هغه ته غلام واپس کړي.

بخلاف ما إذا كان الردّ بغير قضاء إلخ: د دې حاصل دا دی چي که وکيل (بائع) په خپله قبضه کي د غلام عيبداره کېدلو اقرار وکړي او د دې اقرار په وجه مشتري د قاضي له حکم څخه بغير هغه غلام وکيل ته واپس کړي او په دې باره کي مشتري له قاضي څخه د حکم او فيصله کولو غوښتنه نه وکړي، او عيب هم داسي وي چي د وکيل يا مشتري په قبضه کي هغسي عيب پيدا کېدای سي، نو په دې صورت کي وکيل لره د خپل مؤکل سره د خصومت (دعویٰ) کولو حق نسته؛ ځکه کله چي د قاضي له حکم او فيصلې څخه بغير صرف د وکيل په اقرار په سره غلام واپس کړی سوی دی، نو دا واپسي صرف د وکيل او مشتري تر مينځ فسخُ البيع (د بيع ماتول) دي لېکن د وکيل د مؤکل (بائعُ البائع) په حق کي دا واپسي بيع جديد (نوې بيع) ده او دا واپسي داسي ده لکه مشتري چي پر وکيل غلام خرڅ کړی، او ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي به وکيل مشتري وي، نو ځکه هغه ته به دا حق نه وي چي مؤکل ته غلام واپس کړي او نه به هغه ته د مؤکل سره د خصومت کولو حق وي.

ها! که چيري دا واپسي د قاضي په حکم سره سوې وای، نو په دې صورت کي به وکيل ته د خپل مؤکل سره د خصومت کولو حق وای؛ ځکه چي د قاضي ولايت عام دی او هر چا لره شامل دی، خو څرنګه چي دلته صرف په اقرار سره واپسي سوې ده، نو ځکه دا واپسي به صرف د اقرار کونکي يعني د وکيل په حق کي ثابتېږي؛ ځکه چي اقرار حجت قاصره دی. لېکن که چيري وکيل په بيّنه سره دا ثابته کړي چي غلام د مؤکل په قبضه کي هم عيبدار وو، نو په دې صورت کي له نوي سره وکيل ته د خپل مؤکل سره د خصومت کولو حق او اختيار سته. (احسن الهدايه)

ولوكان العيب إلخ: فرمايي که په غلام (مبيع) کي داسي عيب وي چي د مشتري په قبضه کي هغسي عيب نه سي پيدا کېدای او د غلام واپسي د قاضي له حکم او فيصلې څخه بغير صرف د وکيل د اقرار په ذريعه سوې وي، نو د مبسوط د کتابُ البيوع په روايت کي ذکر سوي دي چي دا واپسي پر مؤکل هم لازمېږي او دې ته ضرورت نسته چي وکيل مؤکل ته د غلام واپس کولو لپاره بيّنه او دليل پېش کړي؛ ځکه کله چي عيب داسي دی چي د مشتري په قبضه کي نه سي پيدا کېدای نو دا خبره ثابته

سوه چي غلام د مؤکل په قبضه کي عيبداره وو، او د مؤکل په قبضه کي د غلام عيبداره کېدلو په صورت کي واپسي پر مؤکل مُتعيّن کيږي (يعني په داسي صورت کي چي وکيل ته غلام واپس کړی سي نو هغه مؤکل ته واپس کيږي او دا واپسي داسي شمارل کيږي لکه مؤکل ته واپس کول)، برابره ده واپسي د قاضي په حکم سره وي يا د قاضي له حکم څخه بغير وي؛ نو ځکه کله چي په دې صورت کي د وکيل په اقرار سره هغه ته غلام واپس کړی سي نو دا به پر مؤکل لازميږي، او وکيل ته به د بيّنه او دليل پېښولو ضرورت نه وي.

او د مبسوط په عامو رواياتو کي ذکر سوي دي چي په دې صورت کي هم صرف مُقِر يعني وکيل ته غلام واپس کيږي او پر مؤکل دا واپسي نه لازميږي؛ ځکه کله چي د وکيل د اقرار په وجه واپسي سوې ده نو دا واپسي د مؤکل په حق کي بيع جديد ده. لکه څه مخکي چي د دې تفصيل بيان سو.

والحق في وصف السلامة إلخ: په دې سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د مبسوط د كتابُ البيوع والا د روايت ضعف او کمزوري ثابتوي، نو فرمايي چي په پورتني صورت کي د غلام واپسي مُتعيّن ګرځول صحيح نه دي؛ ځکه چي د مشتري حق تر ټولو مخکي د سلامتيا په وصف کي ثابت دی، يعني د بيع تقاضا دا ده چي مشتري ته صحيح سالم مبيع (غلام) ورکول سي، لېکن که چيري مبيع عيبداره ري نو د هغه دا حق د "رد" يعني د واپسۍ وطرف ته منتقل کيږي (يعني بيا هغه ته د مبيع واپس کولو حق حاصليږي)، او که چيري د مشتري په قبضه کي بل عيب په دې عيبداره مبيع کي پيدا سي نو په دې صورت کي د هغه حقُ الردّ (د واپس کولو حق) د "رجوع بنقصان الثمن" وطرف ته منتقل کيږي (يعني په دې صورت کي مشتري ته دا اختيار حاصليږي چي له بائع څخه د عيب تاوان واخلي) او د هغه حقُ الردّ ختميږي. لهذا د مبيع عيبداره کېدلو په صورت کي فقط "رد" (واپسي) مُتعيّن کول صحيح نه دي. او د دغه مسئلو پوره وضاحت او تفصيل په كفايةُ المنتهي کي ذکر سوی دی.

## په نقد (نغد) او قرض کي د وکيل او مؤکل اختلاف

قَالَ: وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ: أَمَرْتُكَ بِبَيْعِ عَبْدِيْ بِنَقْدٍ فرمايي: او که يو څوک بل چا [وکيل] ته ووايي: چي ما تا ته په نغدو سره د غلام خرڅولو حکم کړی وو فَبِعْتَهُ بِنَسِيْئَةٍ او تا هغه په قرض خرڅ کړی دی وَقَالَ: الْمَأْمُورُ أَمَرْتَنِي بِبَيْعِهِ وَلَمْ تَقُلْ شَيْئًا او وکيل ووايي: چي تا ما ته [مطلق] د خرڅولو حکم کړی وو او د نغد او قرض په باره کي تا هيڅ ويلي نه وه فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْآمِرِ نو قول د مؤکل معتبر دی لِأَنَّ الْأَمْرَ يُسْتَفَادُ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي حکم د هغه له طرفه مستفاد [او صادر سوی] دی وَلَا دَلَالَةَ

عَلَى الْإِطْلَاقِ او پر اطلاق [مطلق والي] هيڅ دلالت نسته.

**اللغات**: ﴿نسيئة﴾ تاخير، قرض، پور، ﴿يُستفاد﴾ د استفعال د باب مضارع مجهوله ده: حاصلېدل، ترلاسه کېدل، اخيستل، ﴿إطلاق﴾ د افعال د باب مصدر دی: مطلق کېدل، مطلق والی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که وکيل او مؤکل د عقد په نغد والي او قرض والي کي اختلاف وکړي، يعني مؤکل ووايي چي "ما تا ته د نغد ثمن په عوض کي د غلام خرڅولو حکم کړی وو (چي زما غلام په نغدو پيسو خرڅ کړه!، په پوريې مه خرڅوه!)" او وکيل ووايي چي "تا ما ته د مطلق خرڅولو حکم کړی وو او د نغد ثمن يا قرض هيڅ خبره دي نه وه کړې"، نو په دې صورت کي د مؤکل قول معتبر دی؛ ځکه چي د خرڅولو حکم د مؤکل له طرفه صادر سوی دی، نو د حکم د تفصيل او تشريح په هکله به صرف د هغه خبره او دعویٰ معتبره وي، او څرنګه چي په دې مسئله کي د حکم پر اطلاق هيڅ دليل او علامت هم نسته (يعني د وکيل پر دې قول هيڅ دليل هم نسته چي مؤکل ما ته د مطلق خرڅولو حکم کړی دی)، نو ځکه دلته به د مؤکل حکم پر اطلاق نه حمل کيږي بلکي مؤکل چي د کوم قيد دعویٰ کوي (يعني په نغدو سره د خرڅولو حکم کول) صرف هغه دعویٰ به معتبره وي.

## په نغد او قرض کي د مضارب او ربُ المال اختلاف

قَالَ: وَإِنْ اخْتَلَفَ فِي ذٰلِكَ الْمُضَارِبُ وَرَبُّ الْمَالِ فرمايي: او که په دې باره کي مضارب او ربُ المال اختلاف وکړي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُضَارِبِ نو قول د مضارب معتبر دی لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الْمُضَارَبَةِ الْعُمُوْمُ ځکه چي اصل په مضاربت کي عموم [او اطلاق] دی أَلَا تَرٰى أَنَّهُ يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ بِذِكْرِ لَفْظَةِ الْمُضَارَبَةِ آيا ته نه ګورې! چي [فقط] د مضاربت د لفظ په ذکرلو کولو سره مضارب د تصرف مالک کيږي فَقَامَتْ دَلَالَةُ الْإِطْلَاقِ نو ځکه [دلته] پر اطلاق دلالت موجود سو بِخِلَافِ مَا إِذَا ادَّعٰى رَبُّ الْمَالِ الْمُضَارَبَةَ فِي نَوْعٍ وَالْمُضَارِبُ فِي نَوْعٍ آخَرَ په خلاف د هغه صورت کله چي ربُ المال په يو قسم کي د مضاربت دعویٰ وکړي او مضارب په بل قسم کي د هغه دعویٰ وکړي حَيْثُ يَكُوْنُ الْقَوْلُ لِرَبِّ الْمَالِ نو [په داسي صورت کي] د ربُ المال قول معتبر دی لِأَنَّهُ سَقَطَ الْإِطْلَاقُ فِيْهِ بِتَصَادُقِهِمَا ځکه په دې صورت کي د دوی دواړو په اتفاق سره د مضاربت اطلاق ساقط سو فَنَزَلَ إِلَى الْوَكَالَةِ الْمَحْضَةِ نو ځکه هغه د خالص وکالت و درجې ته شوه سو [په بله وينا: نو ځکه د وکالت په څېر به ګرځول کيږي (احسن

(الهدایه) ثُمَّ مُطْلَقُ الْأَمْرِ بِالْبَيْعِ يَنْتَظِمُهُ نَقْدًا وَنَسِيئَةً، بيا د خرڅولو مطلق حکم کول نغد او قرض دواړو لره شامليږي إِلَى أَيِّ أَجَلٍ كَانَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ برابره ده قرض که تر هر مودته پورې وي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [يعني د وکالت په صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د قرض لپاره ميعاد (مياد) تاکل شرط نه دي] وَعِنْدَهُمَا يَتَقَيَّدُ بِأَجَلٍ مُتَعَارَفٍ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هغه په متعارف مودت سره مقيد کيږي وَالْوَجْهُ قَدْ تَقَدَّمَ او [د دې] دليل مخکې تېر سو.

**اللغات:** ﴿مضاربة﴾ که مال د يوه سړي وي او په هغه سره کاروبار بل سړی کوي، نو دې ته مضاربت وايي، په دې کې چې مال د کوم سړي وي هغه ته "ربُ المال" وايي، او کاروبار او محنت چې کوم سړی کوي هغه ته "مُضارب" وايي، او دې مال ته "مال مضاربت" وايي، ﴿أجل﴾ ميعاد، مودت، ټاکل سوی وخت، ﴿تصادُق﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو د بل تصديق کول، د يو شي په باره کې د دوو خلکو اقرار کول او پر هغه اتفاق کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مضارب او ربُ المال د عقد مضاربت په نغد والي او قرض والي کې اختلاف وکړي، يعني ربُ المال ووايي چې "ما تا ته په نغد ثمن سره د خرڅولو حکم کړی وو (چې زما مال په نغدو پيسو خرڅ کړه! او د چا سره پور مه کوه!)" او مضارب ووايي چې "تا ما ته مطلق د مضاربت لپاره مال راکړی وو، نور دې هيڅ قيد نه وو لګولی"، نو په دې صورت کې د مضارب قول معتبر دی؛ ځکه چې دلته د مضارب پر قول يعني د مضاربت پر مطلق والي دليل او علامت سته، او هغه دا دی چې په مضاربت کې عام والی (مطلق والی) اصل دی، همدا وجه ده که ربُ المال فقط داسې ووايي چې "ما فلانکي ته د مضاربت لپاره مال ورکړی دی"، نو صرف په دغه خبره سره هم مضاربت شروع کيږي او مضارب ته د تصرف حق حاصليږي، له دې څخه معلومه سوه چې په مضاربت کې عموم اصل دی، او څرنګه چې مضارب د دغه اصل مدعي دی (يعني هغه د عموم او مطلق والي دعویٰ کوي)، نو ځکه د هغه قول به معتبر وي.

د دې په خلاف که ربُ المال د کپړې په يو قسم مثلاً د وړينمو په کپړه کې د مضاربت دعویٰ وکړي (يعني ووايي چې "ما تا ته د وړينمي کپړې د کاروبار کولو حکم کړی وو")، او مضارب د کپړې په بل قسم مثلاً په کاتڼ (يا اريش) کپړه کې د مضاربت دعویٰ وکړي، نو په دې صورت کې د ربُ المال قول معتبر دی: ځکه دلته مضارب او ربُ المال دواړه پر دې خبره متفق دي چې مضاربت مطلق نه دی بلکې د کپړې په يو قسم سره مقيد دی (يعني مضارب د اصل مدعي نه دی)، نو ځکه دلته به عقد مضاربت

دوکالت په درجه ګرځول کيږي او مضارب به وکيل او ربُ المال به مؤکل وي، او مخکې دا خبره ذکر سوه چې که وکيل او مؤکل د وکالت په نوعيت او قسم کې اختلاف وکړي، نو د مؤکل قول معتبر دی، لهذا په دې مسئله کې هم مؤکل کوم چې د ربُ المال په درجه کې دی، د هغه قول به معتبر وي.

ثم مطلق الأمر بالبيع إلخ: د دې حاصل دا دی چې د وکالت په صورت کې د مطلق بيع (خرڅولو) حکم کول نغد خرڅولو او قرضاً خرڅولو دواړو لره شامليږي، يعني که مؤکل د نغد يا قرض صراحت نه وکړي بلکې مطلق د يو شي د خرڅولو حکم وکړي، نو وکيل هغه شی په نغدو هم خرڅولای سي او په قرض يې هم خرڅولای سي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د قرضاً خرڅولو لپاره متعارف ميعاد شرط نه دی (يعني د امام صاحب په نيز دا ضروري نه ده چې وکيل به د معلوم او ټاکلي وخت لپاره هغه شی په قرض ورکوي، بلکې که وخت نه وټاکي، نو هم پروا نه لري)، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د قرضاً خرڅولو لپاره متعارف ميعاد شرط او ضروري دی، او د دې اختلاف دليل څه مخکې تېر سو، يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وکيل بالبيع ته دا اختيار سته چې په لږ او ډېر ثمن سره يا د سامان په عوض کې مبيع خرڅه کړي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز مطلق حکم په متعارف سره مقيد دی يعني د وکيل اختيار په عرف سره مقيد دی (او تاسو ته معلومه ده چې په عُرف کې د قرض لپاره وخت ټاکل کيږي).

## که وکيل بالبيع د ثمن په عوض کې رهن قبول کړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا بِبَيْعِ عَبْدِهِ فرمايي: او که څوک يو سړي ته د خپل غلام خرڅولو حکم وکړي فَبَاعَهُ وَأَخَذَ بِالثَّمَنِ رَهْنًا نو هغه سړی [وکيل] غلام خرڅ کړي او د ثمن په عوض کې [له مشتري څخه] رهن واخلي فَضَاعَ فِي يَدِهِ بيا رهن [مرهون شی] د هغه په قبضه کې ضايع سي أَوْ أَخَذَ بِهِ كَفِيلًا يا وکيل د ثمن لپاره [له مشتري څخه] کفيل واخلي فَتَوِيَ الْمَالُ عَلَيْهِ بيا پر کفيل مال هلاک سي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو پر وکيل ضمان واجب نه دی لِأَنَّ الْوَكِيلَ أَصِيلٌ فِي الْحُقُوقِ ځکه چې وکيل د عقد په حقوقو کې [په خپله] اصيل دی [او په دې باره کې هغه د مؤکل نائب نه دی] وَقَبْضُ الثَّمَنِ مِنْهَا او پر ثمن قبضه کول [ثمن اخيستل] د عقد له حقوقو څخه يو حق دی وَالْكَفَالَةُ تَوَثُّقٌ بِهِ او کفيل اخيستل په ثمن سره مضبوطي ده وَالِارْتِهَانُ وَثِيقَةٌ لِجَانِبِ الِاسْتِيفَاءِ او رهن اخيستل [هم] د ثمن اخيستلو جانب لره مضبوطونکې دي فَيَمْلِكُهُمَا نو ځکه وکيل به د دې دواړو ملکيت [اختيار] لري بِخِلَافِ

الْوَكِيلِ بِقَبْضِ الدَّيْنِ په خلاف پر قرض د قبضه کولو وکيل لِأَنَّهُ يَفْعَلُ نِيَابَةً ځکه چي هغه د نائب په توګه کار کوي وَقَدْ أَنَابَهُ فِي قَبْضِ الدَّيْنِ دُونَ الْكَفَالَةِ وَأَخْذِ الرَّهْنِ او مؤکل هغه پر قرض د قبضه کولو وکيل جوړ کړی دی، نه د کفيل او رهن اخيستلو وَالْوَكِيلُ بِالْبَيْعِ يَقْبِضُ أَصَالَةً [لېکن] وکيل بالبيع د اصيل په توګه قبضه کوي وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ الْمُوَكِّلُ حَجْرَهُ عَنْهُ او په همدې وجه مؤکل او په همدې مؤکل د دې ملکيت [اختيار] نه لري چي پر ثمن له قبضه کولو څخه وکيل منع کړي.

**اللغات**: ﴿فَتَوِيَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: هلاکېدل، ضايع کېدل، بربادېدل، ﴿توثّق﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مضبوطېدل، ټينګېدل، ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: اخيستل، ترلاسه کول، ﴿وثيقه﴾ هغه څه چي د هغه په ذريعه معامله مضبوطه کړی سي، سند، تړون ليک (او رهن هم داسي دی، يعنی يو سړی چي له بل چا څخه د ثمن او قرض په عوض کي رهن واخلي نو په دې سره د هغه لپاره خپل ثمن او قرض اخيستل يقيني او مضبوط وګرځي)، ﴿أنابه﴾ د افعال د باب ماضي ده: نائب جوړول، قائم مقام جوړول، ﴿حَجْر﴾ د نصر د باب مصدر دی: منع کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که يو سړی بل څوک د خپل غلام خرڅولو وکيل جوړ کړي، او وکيل غلام خرڅ کړي لېکن مشتري هغه ته ثمن نه ورکړي ① بلکي د ثمن په عوض کي په رهن (په ګرو) يو شی ورکړي او وکيل هغه واخلي (لنډه دا چي وکيل په رهن سره غلام خرڅ کړي)، بيا هغه مرهون شی د وکيل په قبضه کي هلاک سي، ② يا وکيل د ثمن په عوض کي له مشتري څخه يو کفيل واخلي، لېکن بيا پر کفيل مال هلاک سي، يعني کفيل او مشتري دواړه مفلسه (ډېوالي) سي او په همدې حالت کي مړه سي يا غائب سي، نو بنکاره خبره ده چي اوس د ثمن اخيستل ناممکن سوه، لېکن بيا هم په دې صورتونو کي پر وکيل ضمان (تاوان) نه واجبيږي؛ ځکه چي د عقد (بيع) حقوق د وکيل وطرف ته راجع کيږي او وکيل په دې باره کي اصيل دی، او پر ثمن قبضه کول هم د بيع له حقوقو څخه يو حق دی، او د ثمن په عوض کي رهن اخيستل يا کفيل اخيستل دا دواړه د ثمن اخيستلو سند او وثيقه ده (يعني په دې دواړو سره د ثمن اخيستل مضبوط او يقيني ګرځي)، نو ځکه څرنګه چي پر ثمن قبضه کول د عقد له حقوقو څخه يو حق دی همداسي د ثمن اخيستلو لپاره رهن يا کفيل اخيستل به هم د عقد له حقوقو څخه يو حق وي، او د عقد حقوق د وکيل وطرف ته راجع

کيږي، لهذا د وکيل له طرفه د رهن يا کفيل اخيستل به داسي وي لکه پر ثمن قبضه کول، او تاسو ته په معلومه وي چې که وکيل پر ثمن قبضه وکړي بيا دا ثمن د هغه په قبضه کي هلاک سي، نو پر هغه هيڅ ضمان نه واجبيږي، ځکه چي پر ثمن د وکيل قبضه "دامانت قبضه" وي، او د امانت قبضه نه مضمون کيږي (مطلب دا چي که دامانت شی د امانت ساتونکي [أمين] په قبضه کي هلاک سي، نو پر هغه ضمان نه لازميږي)، نو ځکه په دې مسئله کي به هم پر وکيل هيڅ ضمان لازم نه وي.

د دې په خلاف که يو څوک د خپل قرض اخيستلو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي (چي "ته له فلانکي مقروض څخه زما قرض واخله!)، نو په دې صورت کي وکيل لره دا صحيح نه دي چي د هغه قرض په عوض کي له مقروض څخه رهن يا کفيل واخلي، لېکن که وکيل د قرض په عوض کي رهن يا کفيل واخلي او بيا مرهون شی د وکيل په قبضه کي هلاک سي يا کفيل او مقروض دواړه د مفلسوالي په حالت کي غائب يا مړه سي، نو په دې صورتونو کي پر وکيل د قرض ضمان واجبيږي؛ ځکه چي مؤکل هغه د قرض اخيستلو وکيل جوړ کړی دی، نه د قرض په عوض کي د رهن يا کفيل اخيستلو، او بل دا چي وکيل د خپل اصيل او مؤکل نائب وي، نو ځکه د دې وکيل (وکيل بقبض الدَين) لپاره د قرض په عوض کي رهن يا کفيل اخيستل صحيح نه دي.

د دې په خلاف د عبارت مسئله د بيع سره متعلق ده، او وکيل بالبيع د ثمن په اخيستلو کي اصيل وي، نائب نه وي، نو ځکه د هغه لپاره د ثمن په عوض کي د رهن يا کفيل اخيستلو همدارنګه د هر هغه کار کولو اجازت سته چي په هغه سره د ثمن اخيستل مضبوط او يقيني سي. د وکيل بالبيع د اصيل کېدلو يو دليل دا هم دی چي که مؤکل وغواړي چي دا وکيل (وکيل بالبيع) پر ثمن له قبضه کولو څخه منع کړي چي (چي "ته پر ثمن قبضه مه کوه!" [يعني ثمن مه اخله!])، نو هغه يې نه سي منع کولای، لېکن د قرض اخيستلو وکيل (وکيل بقبض الدَين) چي هر کله مؤکل وغواړي، هغه منع کولای سي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# فَصْلٌ (فِيْ تَوْكِيْلِ الرَّجُلَيْنِ)

(دا) فصل (د دوو خلکو د وکيل جوړولو په بيان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د يوه سړي د وکيل جوړېدلو احکام او مسائل بيان کړل. اوس له دې ځايه د دوو کسانو د وکيل جوړېدلو احکام او مسائل بيانوي. او دا ښکاره خبره ده چي "الواحد يتقدّمُ على الإثنين".

## د يو کار لپاره دوه کسان وکيلان جوړول (حکم او تفصيل)

وَإِذَا وَكَّلَ وَكِيْلَيْنِ او کله چي يو څوک دوه [کسان] وکيلان جوړ کړي فَلَيْسَ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَتَصَرَّفَ فِيمَا وُكِّلَا بِهِ دُونَ الْآخَرِ نو په هغو کي يوه ته دا اختيار نسته چي له بل يوه څخه بغير په هغه کار کي تصرف وکړي د کوم کار لپاره چي هغوی وکيلان جوړ سوي دي وَهٰذَا فِي تَصَرُّفٍ يَحْتَاجُ فِيهِ إِلَى الرَّأْيِ او دا [حکم] په هغه تصرف کي دی چي په هغه کي رايي [او مشورې] ته ضرورت وي كَالْبَيْعِ وَالْخُلْعِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ لکه بيع، خلع او داسي نور لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ رَضِيَ بِرَأْيِهِمَا لَا بِرَأْيِ أَحَدِهِمَا ځکه چي مؤکل د دواړو په رايه راضي سوی دی، نه د يوه په رايه [يعني په دې راضي نه دی چي صرف يو وکيل په خپل رايه سره دا تصرف او کار وکړي] وَالْبَدَلُ وَإِنْ كَانَ مُقَدَّرًا او عوض څه هم مُتعيّن [تاکل سوی] وي وَلٰكِنَّ التَّقْدِيرَ لَا يَمْنَعُ اسْتِعْمَالَ الرَّأْيِ فِي الزِّيَادَةِ وَاخْتِيَارِ الْمُشْتَرِيْ لېکن مُتعيّن کول په زياتوب کولو او د مشتري په اختيار کي د رايي له استعمال څخه مانع نه دی.

**اللغات**: ﴿وُكِّلَا﴾ د تفعيل له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: وکيل جوړول. ﴿مقدّر﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: اندازه کړی سوی، مُتعيّن، ټاکل سوی. ﴿تقدير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: اندازه کول. ټاکل او مُتعيّن کول. (احسن الهدايه)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک د يو داسي کار لپاره دوه خلک وکيلان جوړ کړي چي په هغه کي رايي او مشورې ته ضرورت وي لکه خرڅول او رانيول. خلع کول او داسي نور، نو په دې صورت کي د يوه وکيل له رايي او مشورې څخه بغير بل وکيل ته په هغه کار کي د تصرف کولو

اختيار نسته (يعني داسي كار به دواړه وكيلان په خپل مشتركه رايه او مشوره سره كوي)؛ ځكه كله چې مؤكل صرف ديوه كار لپاره دوه خلك وكيلان جوړ كړي دي، نو د دې مطلب دا دى چې هغه په داسي تصرف راضي دى كوم چې د دواړو په رايه او مشوره تر سره سي، نه ديوه په رايه (كنې هغه دوه وكيلان څه كوي)، او فقط ديوه په رايي سره تصرف كېدل هغه ته خوښ نه دي، نو ځكه ديوه وكيل له رايي او مشورې څخه بغير د بل وكيل لپاره تصرف كول داسي دي لكه د مؤكل د رضا او خوښې په خلاف كار كول، او هيڅ وكيل لره د مؤكل د رضا په خلاف تصرف كول صحيح نه دي.

والبدل وإن كان مقدرا إلخ: دا ديو مقدر سوال جواب دى، سوال دا دى چې كله مؤكل عوض او بدل مُتعيّن كړي، مثلاً وكيلانو ته داسي ووايي چې "تاسو دا غلام په زر درهمه خرڅ كړئ!"، يا "تاسو په پنځه سوه درهمه خلع وكړئ"، نو په دې صورت كي د دواړو وكيلانو رايي ته هيڅ ضرورت نسته (ځكه چې عوض مُتعين سو)، او كله چې په داسي صورت كي رايي ته ضرورت نسته، نو بيا په دې صورت كي ديوه وكيل له رايي څخه بغير د بل وكيل لپاره تصرف صحيح كېدل پكار دي، لېكن تاسو مطلق په هر صورت كي د دواړو وكيلانو رايه ضروري ګرځولې ده.

د جواب حاصل دا دى چې د عوض د مُتعيّن كېدلو په صورت كي كه څه هم په هغه (عوض) كي كمي كول ممكن نه دي، لېكن په هغه كي زياتوب كول ممكن دي، يعني د عوض تعيين كه څه هم د كمي كولو لپاره مانع نه دى لېكن د زياتوب كولو (زيات ثمن ترلاسه كولو) په باره كي د دواړو وكيلانو له رايي استعمالولو څخه مانع نه دى، ځكه كله داسي وي چې يو وكيل ډېر تجربه كار او ښه معلومات لرونكى وي او هغه ته زيات ثمن والا او ښه مشتري معلومېږي (كوم چې په زيات ثمن سره شي رانيسي او د ثمن په اداء كولو كي ټال مټول او جنجال نه كوي)، لنډه دا چې د عوض د مُتعيّن كېدلو په صورت كي هم د زيات ثمن ترلاسه كولو او د ښه مشتري په اختيارولو كي د دواړو وكيلانو رايي او مشورې ته ضرورت سته، او كله چې د دواړو رايي ته ضرورت سته، نو ځكه ديوه وكيل له رايي څخه بغير د بل وكيل لپاره تصرف كول صحيح نه دي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: إِلَّا أَنْ يُوَكِّلَهُمَا بِالْخُصُوْمَةِ مګر دا چې يو سړى دوه خلك د خصومت [دعوىٰ پېشولو] وكيلان جوړ كړي لِأَنَّ الِاجْتِمَاعَ فِيْهَا مُتَعَذِّرٌ ځكه په خصومت كي د دواړو جمع كېدل مشكل دي لِلْإِفْضَاءِ إِلَى الشَّغْبِ فِي مَجْلِسِ الْقَضَاءِ ځكه چې دا د قاضي په مجلس كي د شور [او اضطراب] سبب جوړېږي وَالرَّأْيُ يَحْتَاجُ إِلَيْهِ سَابِقًا او رايي ته [له دعوې پېشولو څخه] مخكي ضرورت وي لِتَقْوِيْمِ الْخُصُوْمَةِ د

دعوې د سمولو [او مضبوطولو] لپاره. [يعني د دې لپاره چې د دعوې مضمون نسره سم او آماده کړی سي].

**اللغات**: ﴿خصومة﴾ جنګ او نزاع، دعویٰ او مقدمه (خصومة په اصل کي دې ته وايي چې يو سړی پر بل چا د حق دعویٰ کوي او هغه له حق څخه انکار کوي)، ﴿إفضاء﴾ د افعال د باب مصدر دئ: رسول، رسېدل، سبب جوړېدل، ﴿شغب﴾ شور او ځوږ (غالمغال)، اضطراب، ﴿سابق﴾ د ضرب د باب فاعل دئ: مخکنی، ﴿تقويم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چې د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدلېږي: سمول او سيده کول (کږوالي لېري کول)، اندازه بيانول، قيمت ټاکل، دلته اوله معنیٰ مراد ده.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک د خصومت او دعویٰ پېشولو لپاره دوه خلک وکيلان جوړ کړي (يعني دوو خلکو ته ووايي چې تاسو د قاضي دربار ته ولاړ سئ! او هلته [مثلاً] دا دعویٰ او مقدمه پېش کړئ! چې زما پر فلانکي سړي دومره حق [قرض] باندي دی او بيا دا دعویٰ ثابته کړئ!)، نو که په داسې صورت کي يو وکيل د قاضي مجلس ته ولاړ سي او هلته دعویٰ او مقدمه پېش کړي، نو دا جائز دي؛ ځکه چې دعویٰ د قاضي په مجلس کي پېشول کېږي، او ښکاره خبره ده که د قاضي په مجلس کي دوه خلک په مشترکه توګه دعویٰ او رايه پېش کړي، نو په مجلس کي به شور او بې نظمي جوړه سي (کوم چې د مجلس له آدابو څخه خلاف کار دی) او په دې توګه به د مؤکل مقصد "يعني حق ښکاره کول او ثابتول" حاصل نه سي، او څرنګه چې دا مقصد په يوه وکيل سره حاصلېږي، نو ځکه دلالتاً به ګواکي مؤکل د يوه وکيل په تصرف راضي وي، او کله چې داسې ده، نو ځکه د يوه تصرف به صحيح وي.

والرأي يحتاج إليه سابقاً: په دې سره د امام زفر رَحِمَهُ الله د قول جواب ورکوي، هغه فرمايي چې صرف د يوه وکيل دعویٰ پېشول جائز نه دي، ځکه چې د دعوې پېشولو په صورت کي دې ته ضرورت سته چې هغه په رايي او مشوره سره سمه او مضبوطه پېش کړی سي، او مؤکل هم د دواړو په رايه راضي سوی دی، لهذا صرف د يوه وکيل په رايه اکتفاء کول به صحيح نه وي بلکي د دواړو د رايي جمع کېدل به ضروري وي.

نو د دې په جواب کي صاحب د رَحِمَهُ الله فرمايي چې د دواړو رايه جمع کېدل له دعوې پېشولو څخه مخکي ضروري دي، او کله چې داسې ده نو دواړه وکيلان دي د قاضي مجلس ته تر تللو مخکي

د دعوې پېشولو په باره کې مشوره سره وکړي او په خپل مشترکه رايه دې د دعوې مضمون سره سم او تيار کړي، بيا دې د قاضي مجلس ته يو وکيل ولاړ سي او دعوىٰ دې پېش کړي، لنډه دا چې ثابته سوه چې د رايې جمع کېدلو ته له دعوې پېشولو څخه مخکې ضرورت سته او پاته سو د دعوې پېشول نو د هغه لپاره صرف يو وکيل کافي دی، د دواړو جمع کېدل ضروري نه دي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

قَالَ: أَوْ بِطَلَاقِ زَوْجَتِهِ بِغَيْرِ عِوَضٍ فرمايي: يا [يو سړی] بغير له عوضه خپلې ښځې ته د طلاق ورکولو [لپاره دوه خلک وکيلان جوړ کړي] أَوْ بِعِتْقِ عَبْدِهِ بِغَيْرِ عِوَضٍ يا بغير له عوضه د خپل غلام آزادولو [وکيلان يې جوړ کړي] أَوْ بِرَدِّ وَدِيعَةٍ عِنْدَهُ يا د هغه امانت د واپس کولو [وکيلان يې جوړ کړي] کوم چې د ده [مؤکل] سره وي أَوْ قَضَاءِ دَيْنٍ عَلَيْهِ يا د هغه قرض د اداء کولو [وکيلان يې جوړ کړي] کوم چې پر ده باندې وي لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ لَا يُحْتَاجُ فِيهَا إِلَى الرَّأْيِ ځکه چې په دې شيانو کې رايې [او مشورې] ته ضرورت نسته بَلْ هُوَ تَعْبِيرٌ مَحْضٌ بلکې هغه محض [د مؤکل] خبره نقلول [او بيانول] دي وَعِبَارَةُ الْمَثْنٰى وَالْوَاحِدِ سَوَاءٌ او د دوو خلکو او د يوه سړي بيانول سره برابر دي وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لَهُمَا: طَلِّقَاهَا إِنْ شِئْتُمَا او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چې مؤکل دوو خلکو ته [داسې] ووايي: که تاسې وغواړئ! [که ستاسو خوښه وي] نو زما ښځې ته طلاق ورکړئ! أَوْ قَالَ: أَمْرُهَا بِأَيْدِيكُمَا يا هغه [دوو خلکو ته] ووايي: چې د هغې معامله ستاسو په لاس کې ده لِأَنَّهُ تَفْوِيضٌ إِلَى رَأْيِهِمَا ځکه چې دا د دواړو رايې ته سپارل دي أَلَا تَرَى أَنَّهُ تَمْلِيكٌ مُقْتَصِرٌ عَلَى الْمَجْلِسِ آيا ته نه ګورې! چې دا تمليک پر مجلس منحصر دی [يعني دا د طلاق مالک کول دي، نو ځکه دواړه وکيلان به په مجلس کې دننه طلاق ورکوي] وَلِأَنَّهُ عَلَّقَ الطَّلَاقَ بِفِعْلِهِمَا او ځکه چې مؤکل د دواړو پر فعل طلاق معلق کړی دی فَاعْتَبِرْهُ بِدُخُولِهِمَا نو ته هغه د دواړو پر دخول قياس کړه! [يعني دا داسې ده لکه يو سړی چې د دوو خلکو پر داخلېدلو د ښځې طلاق معلق کړي، مثال به يې د تشريح په آخر کې ذکر سي.]

**اللغات**: ﴿وديعة﴾ امانت، ﴿العبارة﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغه څخه يو معنیٰ "بيانول" دي، لکه څرنګه چې ويل کيږي "فُلَانٌ حَسَنُ الْعِبَارَةِ" (فلانکی ښه بيانونکی دی)، ﴿تمليك﴾ د يو

شي مالک جوړول، مالک کول. ﴿مقتصر﴾ د استفعال د باب مفعول دی: منحصر، موقوف. ﴿فاعتَبِرُوا﴾ د افتعال له بابه د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده. د دې باب څو معناوي وي چي له هغه څخه یوه معنیٰ "قیاسول" دي.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی دوه خلک وکیلان جوړ کړي او هغو ته ووایي چي "تاسو بېله عوضه زما ښځي ته طلاق ورکړئ!"، یا "تاسو بېله عوضه زما غلام آزاد کړئ!"، یا د مؤکل سره د یو سړي سامان امانتاً پروت وي او بیا مؤکل دوه خلک د هغه د واپس کولو او اداء کولو وکیلان جوړ کړي، یا پر مؤکل د یو چا قرض باندي وي او هغه د دې قرض اداء کولو لپاره دوه خلک وکیلان جوړ کړي، نو په دې ټولو صورتونو کي دا جائز دي چي یو وکیل د بل وکیل له رایې او مشورې څخه بغیر کار وکړي؛ ځکه چي په دې ټولو صورتونو کي د وکیلانو فریضه دا ده چي هغوی صرف د مؤکل کلام نقل کړي او په خپله ژبه سره هغه بیان کړي، او د کلام نقل کولو او بیانولو لپاره عدد یعني دوه وکیلان شرط نه دی، بلکي یو وکیل هم کافي دی.

د دې په خلاف که یو څوک دوو خلکو ته ووایي چي "که تاسو وغواړئ! نو زما ښځي ته طلاق ورکړئ!"، یا ووایي چي "زما د ښځي د طلاق معامله ستاسو په لاس کي ده"، نو په دې صورتونو کي یوازي د یوه وکیل لپاره د مؤکل ښځي ته طلاق ورکول صحیح نه دي؛ ځکه چي مؤکل د دواړو رایې ته طلاق سپارلی دی، لهذا تر څو چي د دواړو رایه جمع نه سي، تر هغه وخته د یوه لپاره د طلاق ورکولو تصرف کول صحیح نه دي.

او بل دا چي د هغو دا تصرف فقط په مجلس کي دننه صحیح دی؛ ځکه چي مؤکل د "طَلِّقَاهَا إِنْ شِئْتُمَا" او "أَمْرُهَا بِأَيْدِيكُمَا" په ذریعه دوی د طلاق مالکان جوړ کړي دي، او تملیک پر مجلس موقوف او منحصر وي، نو ځکه د مذکوره دوو خلکو د طلاق ورکولو تصرف به هم د تملیک پر مجلس منحصر او موقوف وي او فقط په مجلس کي دننه به هغو ته د طلاق ورکولو اختیار وي.

ولأنه علّق الطلاق إلخ: دویم دلیل دا دی چي مؤکل دا طلاق د دواړو وکیلانو پر فعل معلق کړی دی، لهذا کله چي د دواړو فعل صادر سي په هغه وخت کي به طلاق واقع کیږي، او یوازي د یوه په فعل (طلاق ورکولو) سره به طلاق نه واقع کیږي. د دې مثال داسي دی لکه یو سړی چي دوه خلک مخاطب کړي او هغو ته ووایي "إِنْ دَخَلْتُمَا الدَّارَ فَزَوْجِيْ طَالِقٌ" (که چیري تاسي دوه خلک دغه کور ته داخل سئ، نو زما ښځه طلاقه ده)، نو په دې صورت کي ښکاره خبره ده چي تر څو دا دواړه خلک هغه کور ته داخل نه سي، تر

هغه وخته د دې سرې ښځه نه طلاقيږي، همداسې به په دې مسئله کې هم چې تر څو دواړه وکيلان تصرف نه وکړي، تر هغه وخته به د مؤکل ښځه نه طلاقيږي.

## د وکيل لپاره د بل چا د وکيل جوړولو حکم

قَالَ: وَلَيْسَ لِلْوَكِيلِ أَنْ يُوَكِّلَ فِيمَا وُكِّلَ بِهِ فرمايي: او وکيل لره دا جائز نه دي چې په هغه کار کې يو څوک وکيل جوړ کړي د کوم کار په باره کې چې هغه وکيل جوړ سوی دی لِأَنَّهُ فُوِّضَ إِلَيْهِ التَّصَرُّفُ دُونَ التَّوْكِيلِ بِهِ ځکه چې هغه ته [فقط] تصرف سپارل سوی دی، نه وکيل جوړول [يعني هغه ته فقط د تصرف کولو (خرڅولو) اختيار ورکول سوی دی. نه د وکيل جوړولو] وَهٰذَا لِأَنَّهُ رَضِيَ بِرَأْيِهِ او دا ځکه چې مؤکل [فقط] د هغه په رايه راضي سوی دی وَالنَّاسُ مُتَفَاوِتُونَ فِي الْآرَاءِ او خلک په رايو کې يو له بل څخه جلا وي [يعني د هر کس جلا جلا رايه وي] قَالَ: إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ الْمُوَكِّلُ مګر دا چې مؤکل هغه ته اجازت ورکړي لِوُجُودِ الرِّضَا ځکه چې [د هغه] رضا موجوده سوه أَوْ يَقُولَ لَهُ: اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ يا دا چې مؤکل هغه ته ووايي: ته د خپل رايي مطابق عمل وکړه! لِإِطْلَاقِ التَّفْوِيضِ إِلَى رَأْيِهِ د وکيل رايي ته د مطلقاً ورسپارلو په وجه [يعني ځکه چې په دې صورت کې د هغه رايي ته ورسپارل مطلق دي] وَإِذَا جَازَ فِي هٰذَا الْوَجْهِ او کله چې په دې صورت کې توکيل [وکيل جوړول] جائز دي يَكُونُ الثَّانِي وَكِيلًا عَنِ الْمُوَكِّلِ نو دويم وکيل به د مؤکل له طرفه وکيل وي [نه د اول وکيل له طرفه] حَتّٰى لَا يَمْلِكَ الْأَوَّلُ عَزْلَهُ همدا وجه ده چې اول وکيل د هغه د معزوله کولو [برطرفه کولو] مالک نه دی وَلَا يَنْعَزِلُ بِمَوْتِهِ او [همدا وجه ده چې] د هغه په مرګ سره دويم وکيل نه معزوله کيږي وَيَنْعَزِلَانِ بِمَوْتِ الْأَوَّلِ [لېکن] د مؤکل په مرګ سره دواړه وکيلان معزوله کيږي وَقَدْ مَرَّ نَظِيرُهُ فِي أَدَبِ الْقَاضِي او په "کتاب ادب القاضي" کې د دې مثال تېر سو.

**اللغات:** ﴿متفاوتون﴾ د تفاعل له بابه د جمع مذکر اسم فاعل صيغه ده: يو له بل څخه جلا (بېلابېل)، مختلف. ﴿عزل﴾ د ضرب د باب مصدر دی: معزوله کول، برطرفه کول (له منصبه لېرې کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د خپل غلام خرڅولو لپاره يو څوک وکيل جوړ کړي، نو وکيل لره دا جائز نه دي چې بل څوک د هغه غلام خرڅولو وکيل جوړ کړي؛ ځکه چې مؤکل (يعني د غلام مالک) وکيل ته فقط د غلام خرڅولو تصرف سپارلی دی، نه د وکيل جوړولو تصرف،

يعني مالک هغه ته صرف داسي ويلي دي چي "ته غلام خرڅ کړه!"، نه دا چي "ته بل څوک د دې وکيل جوړ کړه!"، نو ځکه وکيل لره خو دا جائز دي چي په خپله د خرڅولو تصرف وکړي لېکن دا جائز نه دي چي هغه بل څوک د دې وکيل جوړ کړي.

دويم دليل دا دی چي مؤکل فقط د خپل وکيل په رايه راضي سوی دی او له وکيل څخه بغير د بل چا په رايه هغه راضي نه دی، ځکه د هر کس رايه جلا جلا او يو له بل څخه مخالفه وي، او د وکالت په باب کي څو ځله دا خبره ذکر سوې ده چي د وکيل لپاره د مؤکل د رضا په خلاف کار کول صحيح نه دي، لېکن که مؤکل وکيل ته د دې اجازت ورکړي، يا هغه ته په مطلق توګه معامله وسپاري او داسي ووايي "اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ" (ته په خپل رايه عمل وکړه! [يعني ستا چي څه خوښه وي هغسي وکړه!])، نو په دې صورت کي چي څرنګه په خپله وکيل لره بيع کول جائز دي، همداسي هغه ته دا هم جائز دي چي بل څوک د دې وکيل جوړ کړي؛ ځکه چي دلته مؤکل خپل وکيل ته د هر تصرف اجازت ورکړی دی او د هغه په هر تصرف راضي دی، او کله چي په دې صورت کي وکيل جوړول صحيح دي، نو دا په ياد لرئ! چي دويم وکيل د اصل مؤکل يعني د مالک له طرفه وکيل کيږي، همدا وجه ده چي اول وکيل نه د هغه د معزوله کولو مالک دی او نه د اول وکيل په مرګ سره هغه معزوله کيږي؛ ځکه چي هغه د اصل مؤکل له طرفه وکيل دی، نه د اول وکيل (دويم مؤکل) له طرفه. هو! که چيري اصل مؤکل مړ سي، نو دواړه وکيلان معزوله کيږي، ځکه دواړه د هغه وکيلان دي، لکه څرنګه چي په "کتاب أدب القاضي" کي د دې په څېر بحث ذکر سو.

## د پورتني مسئلې تفريع

قَالَ: فَإِنْ وَكَّلَ بِغَيْرِ إِذْنِ مُوَكِّلِهِ فرمايي: او که چيري اول وکيل د خپل مؤکل له اجازت څخه بغير [دويم کس] وکيل جوړ کړي فَعَقَدَ وَكِيلُهُ بِحَضْرَتِهِ او هغه [دويم وکيل] د اول وکيل په حضور [موجوديت] کي عقد وکړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ حُضُورُ رَأْيِ الْأَوَّلِ ځکه چي [د مؤکل] مقصود د اول وکيل د رايي موجودېدل [او شاملېدل] دي وَقَدْ حَضَرَ او هغه [دلته] موجوده ده وَتَكَلَّمُوا فِي حُقُوقِهِ او مشايخو د دې عقد په حقوقو کي کلام کړی دی [يعني په دې باره کي د علماؤ دوې رايي دي] وَإِنْ عَقَدَ فِي حَالِ غَيْبَتِهِ او که چيري دويم وکيل د اول وکيل په نا موجوديت کي عقد وکړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي لِأَنَّهُ فَاتَ رَأْيُهُ ځکه چي [په دې صورت کي] د اول وکيل رايه فوت سوه إِلَّا أَنْ يَبْلُغَهُ فَيُجِيزَهُ مګر دا چي اول وکيل ته خبر ورسيږي او هغه د عقد اجازت ورکړي وَكَذَا لَوْ بَاعَ غَيْرُ الْوَكِيلِ

او همدارنگه که له دویم وکیل څخه بغیر بل څوک خرڅول وکړي فَبَلَغَهُ فَأَجَازَهُ بیا اول وکیل ته خبر ورسیږي او هغه د عقد اجازت ورکړي لِأَنَّهُ حَضَرَ رَأْيُهُ ځکه چي [په دې صورت کي هم] د هغه رایه موجوده سوه وَلَوْ قَدَّرَ الْأَوَّلُ الثَّمَنَ لِلثَّانِيْ او که چیري اول وکیل د دویم وکیل لپاره ثمن مُتعین کړي فَعَقَدَ بِغَيْبَتِهِ بیا دویم وکیل د هغه په نا موجودیت کي عقد وکړي يَجُوْزُ نو [هم] جائز دي لِأَنَّ الرَّأْيَ يُحْتَاجُ إِلَيْهِ فِيْهِ لِتَقْدِيْرِ الثَّمَنِ ظَاهِرًا ځکه چي په ښکاره د ثمن د مُتعیّن کولو لپاره په عقد کي رایي ته ضرورت وي وَقَدْ حَصَلَ او رایه حاصله سوه وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا وَكَّلَ وَكِيْلَيْنِ وَقَدَّرَ الثَّمَنَ او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چي مؤکل دوه وکیلان جوړ کړي او ثمن مُتعیّن کړي لِأَنَّهُ لَمَّا فَوَّضَ إِلَيْهِمَا مَعَ تَقْدِيْرِ الثَّمَنِ ځکه کله چي مؤکل د ثمن مُتعیّن کولو سره دواړو وکیلانو ته عقد وسپاری ظَهَرَ أَنَّ غَرَضَهُ اجْتِمَاعُ رَأْيِهِمَا فِي الزِّيَادَةِ وَاخْتِيَارِ الْمُشْتَرِيْ نو ښکاره سوه چي د مؤکل مقصد دا دی چي د ثمن په زیاتولو او د مشتري په اختیارلو کي د دواړو رایه جمع سي عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکي] چي موږ د دې بیان وکړی أَمَّا إِذَا لَمْ يُقَدِّرْ الثَّمَنَ وَفَوَّضَ إِلَى الْأَوَّلِ لیکن کله چي مؤکل ثمن مُتعیّن نه کړي او عقد اول وکیل ته وسپاري كَانَ غَرَضُهُ رَأْيَهُ فِي مُعْظَمِ الْأَمْرِ وَهُوَ التَّقْدِيْرُ فِي الثَّمَنِ نو د هغه مقصد دا وي چي په اهم شي یعني د ثمن په مُتعیّن کولو کي د اول وکیل رایه شامله سي.

**اللغات:** ﴿حضرة﴾ حضور، موجودیت (موجودګي)، ﴿غیبة﴾ غائب والی، نا موجودیت، ﴿یجیزه﴾ د افعال د باب مضارع ده؛ اجازت ورکول، نافذول، ﴿تقدیر﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: اندازه کول، مُتعیّن کول، ټاکل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که خالد زید ته ووایي چي زما پُسه خرڅ کړه! یعني د پُسه خرڅولو وکیل یې جوړ کړي او زید د مؤکل یعني د خالد له پوښتني او اجازت څخه بغیر ادریس (د پُسه خرڅولو) وکیل جوړ کړي، نو که په داسي صورت کي دویم وکیل (ادریس) د اول وکیل (زید) په موجودیت کي هغه پُسه خرڅ کړي، نو دا خرڅول جائز دي؛ ځکه چي د مؤکل (خالد) مقصد دا دی چي د دې پُسه په خرڅولو کي دي د اول وکیل (زید) رایه شامله سي، او څرنګه چي دلته هغه په خپله حاضر دی او د هغه په حضور کي پُسه خرڅ کړی سوی دی، نو ښکاره خبره ده چي په دې خرڅولو

کي د هغه رايه شامله سوه، نو ځکه دا عقد به جائز وي او پر مؤکل به نافذ وي؛ ځکه چي د هغه مقصد حاصل سو.

پاته سوه دا مسئله چي د دې عقد حقوق د کوم وکيل وطرف ته راجع کيږي، نو په دې باره کي د مشايخو اختلاف دی، د ځيني حضراتو قول دا دی چي د عقد حقوق د اول وکيل وطرف ته راجع کيږي؛ ځکه مؤکل صرف د هغه په رايه راضي سوی دی، او ځيني حضرات وايي چي د عقد حقوق د دويم وکيل وطرف ته راجع کيږي؛ ځکه دا د بيع عقد دی، او په بيع کي ټوله حقوق د عاقد وطرف ته راجع کيږي.

وإن عقد في حال غيبة إلخ: فرمايي که چيري دويم وکيل د اول وکيل په ناموجوديت کي هغه پُسه خرڅ کړي، نو دا عقد پر مؤکل نه نافذيږي (يعني د هغه لپاره نه واقع کيږي)؛ ځکه چي په دې عقد کي د اول وکيل رايه شامله نه سوه او د مؤکل مقصد فوت سو، ها! که دويم وکيل د اول وکيل په ناموجوديت کي عقد وکړي او بيا چي اول وکيل ته د دې خبر ورسيږي نو هغه د عقد اجازت ورکړي او نافذ يې کړي، نو په دې صورت کي عقد پر مؤکل نافذيږي؛ ځکه چي د مؤکل مقصد يعني د اول وکيل رايه په دې عقد کي شامله سوه. همدارنګه که له دويم وکيل څخه بغير يو بل سړی د اول وکيل په نا موجوديت کي هغه پُسه خرڅ کړي، بيا اول وکيل ته د دې خبر ورسيږي او هغه دا نافذ کړي، نو په دې صورت کي هم عقد جائز کيږي او پر مؤکل نافذيږي.

ولو قدر إلخ: د دې حاصل دا دی چي که اول وکيل د دويم وکيل لپاره د مبيع ثمن مُتعيّن کړي، مثلاً هغه ته داسي ووايي چي "دا پُسه په زر درهمه خرڅ کړه!"، او بيا دويم وکيل په هغومره ثمن سره پُسه خرڅ کړي، نو دا عقد هم جائز دی، برابره ده اول وکيل حاضر وي او که نه وي؛ ځکه چي د اول وکيل رايه ظاهراً د ثمن مُتعيّن کولو لپاره پکار وي (لنډه دا چي په ښکاره د مؤکل مطلب دا وي چي اول وکيل د خپل رايي مطابق په مناسب ثمن سره شی خرڅ کړي. ځکه همدا په بيع کي اهم شی دی)، او څرنګه چي دلته اول وکيل ثمن مُتعيّن کړی دی، نو ځکه په عقد کي د هغه رايه شامله سوه، لهذا برابره ده هغه د عقد په وخت کي حاضر وي او که نه وي، په هر صورت کي به عقد جائز او صحيح وي.

وهذا بخلاف إلخ: فرمايي که يو سړی د يو شي د خرڅولو لپاره دوه خلک وکيلان جوړ کړي او هغه د مبيع ثمن هم مُتعيّن کړي، نو په دې صورت کي يوازي يوه وکيل ته دا حق نسته چي د بل وکيل په ناموجوديت کي يا د هغه له رايي څخه بغير عقد وکړي؛ ځکه کله چي مؤکل د مبيع ثمن مُتعيّن کړي او دوو خلکو ته يې د عقد ذمه واري وسپارله. نو ښکاره سوه چي د هغه مقصد د ثمن په زياتوب کولو (زيات ثمن ترلاسه کولو) او د ښه مشتري په انتخابولو کي د دواړو وکيلانو رايه جمع کېدل دي، نو

ځکه دا عقد به هغه وخت جائز وي کله چي د دواړو وکيلانو رايه په هغه کي شامله سي او يوازي د يوه وکيل لپاره به عقد کول صحيح نه وي.

او که مؤکل د ثمن له مُتعيّن کولو څخه بغير عقد اول وکيل ته سپارلی وي، نو په دې صورت کي د مؤکل مقصد دا وي چي د بيع په اهم شي يعني د ثمن په مُتعيّن کولو کي دي د اول وکيل رايه شامله سي، او دا مقصد هغه وخت حاصليږي کله چي اول وکيل ثمن مُتعيّن کړي، نو ځکه کله چي اول وکيل ثمن مُتعيّن کړي او بل څوک د عقد کولو وکيل جوړ کړي او بيا دا دويم وکيل عقد وکړي، نو دا عقد جائز او صحيح دی. برابره ده اول وکيل د عقد په وخت کي حاضر وي او که نه وي.

## پر خپل کوچني بچي د مکاتب، غلام او ذمي د ولايت حکم

قَالَ: وَإِذَا زَوَّجَ الْمُكَاتَبُ أَوِ الْعَبْدُ أَوِ الذِّمِّيُّ ابْنَتَهُ وَهِيَ صَغِيرَةٌ حُرَّةٌ مُسْلِمَةٌ فرمايي: او کله چي مکاتب يا غلام يا ذمي د خپل کوچني لور نکاح [ديو چا سره] وکړي حال دا چي هغه آزاده او مسلمانه وي أَوْ بَاعَ أَوِ اشْتَرَى لَهَا يا د هغې لپاره رانيول او خرڅول وکړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي مَعْنَاهُ التَّصَرُّفُ فِي مَالِهَا د دې مطلب د هغې په مال کي تصرف کول دي لِأَنَّ الرِّقَّ وَالْكُفْرَ يَقْطَعَانِ الْوِلَايَةَ ځکه چي غلامتوب او کفر ولايت ختموي أَلَا يَرَى أَنَّ الْمَرْقُوقَ لَا يَمْلِكُ إِنْكَاحَ نَفْسِهِ آيا نه ګوري چي غلام د خپل ځان د نکاح کولو مالک نه دی [يعني د دې ملکيت [اختيار] نه لري چي پر خپل سر ديو ښځي سره نکاح وکړي] فَكَيْفَ يَمْلِكُ إِنْكَاحَ غَيْرِهِ نو هغه به څنګه د بل چا د نکاح کولو مالک وي وَكَذَا الْكَافِرُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَى الْمُسْلِمِ او همدارنګه کافر لره پر مسلمان هيڅ ولايت نسته حَتَّى لَا تُقْبَلَ شَهَادَتُهُ عَلَيْهِ همدا وجه ده چي د مسلمان په خلاف د کافر ګواهي نه قبلول کيږي وَلِأَنَّ هٰذِهِ وِلَايَةٌ نَظَرِيَّةٌ او ځکه چي دا ولايت پر مصلحت [او شفقت] مبني دی فَلَا بُدَّ مِنَ التَّفْوِيضِ إِلَى الْقَادِرِ الْمُشْفِقِ نو ځکه هغه قادر او شفقت لرونکي کس ته ورسپارل ضروري دي لِيَتَحَقَّقَ مَعْنَى النَّظَرِ د دې لپاره چي د مصلحت [او شفقت] معنیٰ ثابته سي وَالرِّقُّ يُزِيلُ الْقُدْرَةَ او غلامتوب قدرت زائلوي وَالْكُفْرُ يَقْطَعُ الشَّفَقَةَ عَلَى الْمُسْلِمِ او کفر پر مسلمان شفقت ختموي فَلَا تُفَوَّضُ إِلَيْهِمَا نو ځکه دا ولايت به دې دواړو ته نه سپارل کيږي.

**اللغات**: ﴿زوّج﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: د بل چا نکاح کول، نکاح ورتړل. ﴿رقّ﴾ غلامتوب، غلام والی. ﴿إنکاح﴾ د افعال د باب مصدر دی: د بل چا نکاح کول. ﴿النظر﴾ شارحينو د دې لفظ دوې

معناوي ذکر کړي دي: مصلحت، شفقت (ښېګڼه)، ﴿نظریة﴾ پر مصلحت مبني، پر شفقت مبني،

﴿تفویض﴾د تفعیل د باب مصدر دی: ورسپارل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي مکاتب، غلام او ذمي لره پر خپل آزاد او مسلمان بچي ولایت نسته. نو څکه دې کسانو (مکاتب، غلام او ذمي) لره نه دا جائز دي چي د خپلې کوچنۍ آزادي او مسلماني لور په ذات کي تصرف وکړي یعني د هغې نکاح وکړي او نه دا جائز دي چي د هغې په مال کي تصرف وکړي یعني د هغې لپاره بیع وشراء وکړي؛ څکه چي مذکوره تصرفات د ولایت له قبیلې څخه دي، او په دې کسانو کي یو ته هم پر خپل آزاده، مسلمانه کوچنۍ لور ولایت حاصل نه دی؛ څکه چي غلامتوب او کفر ولایت ختموي، همدا وجه ده چي غلام د خپل ځان لپاره پر نکاح کولو قدرت نه لري، او کوم کس چي د خپل ځان لپاره د نکاح کولو قدرت او ملکیت نه لري، نو هغه به پر بل چا څنګه دنکاح کولو قدرت او ملکیت لري! ، همدارنګه کافر ته پر مسلمان هیڅ ولایت حاصل نه دی او نه د مسلمان په خلاف د هغه ګواهي مقبوله ده، څکه په قرآن کریم کي په ښکاره لفظو سره دا اعلان سوی دی ﴿وَلَن يَجۡعَلَ اللهُ لِلۡكَافِرِينَ عَلَى الۡمُؤۡمِنِينَ سَبِيلًا﴾ [سورة النساء: ۱۴۱]، لنډه دا چي کله مکاتب، غلام او ذمي ته پر خپل ځان هیڅ ولایت حاصل نه دی، نو پر بل چا به هم هغو ته ولایت حاصل نه وي او د صغیره حره مسلمه په حق کي به هغو لره هیڅ تصرف کول جائز نه وي.

ولأن هذه إلخ: دویم دلیل دا دی چي پر خپل بچي او لور چي انسان ته کوم ولایت حاصل دی، هغه پر مصلحت او شفقت مبنی دی، نو څکه دا ولایت هغه انسان ته سپارل کیږي چي په هغه دا کار پوره وي یعني هغه پر تصرف کولو او د ولایت په پوره کولو قادر او مشفق (شفقت لرونکی) وي، حال دا چي مکاتب او غلام خو یوه ذره قدرت هم نه لري، څکه چي په غلامتوب سره قدرت او ولایت ختمیږي، او په کفر سره شفقت ختمیږي یعني کافر پر مسلمان شفقت نه لري، نو په دې حواله سره به هم دغه کسانو ته پر خپل صغیر او صغیره هیڅ ولایت حاصل نه وي او نه به دا ولایت هغو ته سپارل کیږي.

## د مرتد او حربي د ولایت حکم

قَالَ أَبُوْيُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: وَالْمُرْتَدُّ إِذَا قُتِلَ عَلَى رِدَّتِهِ وَالْحَرْبِيُّ كَذٰلِكَ صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: او مرتد چي کله پر خپل ارتداد قتل کړی سي او حربي [دوی دواړه] هم دارنګه دي [یعني دوی هم پر خپل مسلمان بچي ولایت نه لري] لِأَنَّ الْحَرْبِيَّ أَبْعَدُ مِنَ الذِّمِّيِّ څکه چي حربي له ذمي څخه بدتر [ډېر بد] وي فَأَوْلَى بِسَلْبِ الْوِلَايَةِ نو څکه د هغه ولایت به په درجه اولیٰ سلبول کیږي وَأَمَّا الْمُرْتَدُّ فَتَصَرُّفُهُ فِي مَالِهِ وَإِنْ كَانَ نَافِذًا عِنْدَهُمَا او پاته سو مرتد نو که څه هم د هغه تصرف په خپل مال کي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز نافذ دی لٰكِنَّهُ مَوْقُوْفٌ عَلَى وَلَدِهِ وَمَالِ وَلَدِهِ بِالْإِجْمَاعِ لېکن د هغه د بچي او د بچي د مال په باره کي په اجماع سره د هغه تصرف

موقوف دی لِأَنَّهَا وِلَايَةٌ نَظَرِيَّةٌ ځکه چي دا ولايت پر مصلحت مبني دی وَذٰلِكَ بِاتِّفَاقِ الْمِلَّةِ او مصلحت د دين په اتحاد سره وي [يعني مصلحت او شفقت هغه وخت ثابتيږي کله چي د پلار او بچي دواړو مذهب سره يو وي] وَهِيَ مُتَرَدِّدَةٌ حال دا چي د مرتد دين شکمن [مشکوک] دی ثُمَّ تَسْتَقِرُّ جِهَةُ الْاِنْقِطَاعِ إِذَا قُتِلَ عَلَى الرِّدَّةِ [يعني] بيا چي کله هغه پر خپل ارتداد قتل کړی سي نو د هغه د ولايت منقطع کېدلو [او کافر کېدلو] طرف مضبوطيږي [ثابتيږي] فَيَبْطُلُ نو ځکه د هغه تصرف به باطل وي. وَبِالْإِسْلَامِ يُجْعَلُ كَأَنَّهُ لَمْ يَزَلْ مُسْلِمًا او د اسلام راوړلو په وجه به داسي ګڼل کيږي لکه هغه چي له همېشه څخه مسلمان وو [مطلب دا چي کله مرتد دويم وار اسلام راوړي، نو په دې سره هغه د خپل ارتداد په زمانه کي هم مسلمان شمارل کيږي] فَيَصِحُّ نو ځکه [په دې صورت کي] به د هغه تصرف صحيح وي.

**اللغات:** ﴿ردة﴾ ارتداد، مرتد کېدل، ﴿الأبعد﴾ د دې لفظ خپله معنیٰ ده: زيات لېري، لېکن د مذمت په وخت کي د اسم معنیٰ ورکوي يعني "بدتر" او داسي نور (معجم وسيط)، ﴿نظرية﴾ په تېر عبارت کي د دې لفظ معنیٰ ذکر سوه، ﴿تستقر﴾ د استفعال د باب مصدر دی: مضبوطېدل، ثابتېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مسلمان (العياذ بالله) مرتد سي او د ارتداد په حالت کي قتل کړی سي نو هغه او حربي کافر دواړه پر خپل مسلمان بچي د ولايت او تصرف اهل نه دي؛ ځکه حربي کافر خو له ذمي کافر څخه هم بدتره دی، او مخکي ذکر سوه چي ذمي ته پر خپل مسلمان اولاد او د هغو په مال کي د ولايت او تصرف حق نسته، نو ځکه حربي ته خو به په درجه دا حق نه وي. او پاته سو مرتد، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز که څه هم په خپل مال کي د هغه تصرف نافذ دی، لېکن د هغه په اولاد او د اولاد په مال کي د هغه تصرف د صاحبينو په نيز موقوف دی، نو که تر تصرف کولو وروسته هغه د ارتداد په حالت کي مړ سي، نو ښکاره خبره ده چي د هغه تصرف به نه نافذيږي، ځکه پر خپل ارتداد د ټينګېدلو په وجه د هغه ولايت ختم سو. هاں! که چيري مرتد دويم وار اسلام راوړي، نو بيا د هغه تصرف صحيح کيږي او نافذيږي؛ ځکه د دې حديث "الْإِسْلَامُ يَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهُ" په وجه په اسلام راوړلو سره مرتد په تېر وخت کي هم مسلمان شمارل کيږي، لېکن له اسلام راوړلو څخه مخکي د مرتد حالت او مذهب دواړو طرفونو ته متردّد او مشکوک دی (يعني که هغه دويم وار اسلام راوړي، نو هغه د ارتداد په زمانه کي هم مسلمان شمارل کيږي، او که وروسته د کفر په حالت کي مړ سي، نو معلومه خبره ده چي هغه به د خپل ارتداد په زمانه کي کافر وي)، حال دا چي مذکوره تصرفات د ولايت له قبيلې څخه دي او د ولايت لپاره د مذهب (ملت) اتحاد شرط دی، او هغه دلته نسته، نو ځکه مرتد ته به هم پر خپل مسلمان اولاد هيڅ د ولايت او تصرف حق نه وي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ الْوَكَالَةِ بِالْخُصُومَةِ وَالْقَبْضِ

(دا) باب د خصومت او قبضې د وکیل جوړولو (په بیان کې) دی

**تشریح**: صاحب د بنایې رَحِمَهُ الله لیکلي دي چې خصومت مهجور او متروک دی، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله هغه له "بَابُ الوکالة بالبیع والشراء" څخه وروسته بیان کړی دی، ځکه چې دا مهجور نه دی، او ښکاره خبره ده چې غیر مهجور پر مهجور مخکې وي. (بنایه ج:۸، ص:۳۵۴)

## وکیل بالخصومت وکیل بالقبض هم دی، که نه؟

قَالَ: الْوَكِيْلُ بِالْخُصُومَةِ وَكِيْلٌ بِالْقَبْضِ عِنْدَنَا فرمایي: زموږ په نیز د خصومت [دعوىٰ] کولو وکیل د قبضه کولو وکیل هم دی خِلَافًا لِزُفَرَ ❁ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله هُوَ يَقُولُ: رَضِيَ بِخُصُومَتِهِ هغه فرمایي چې مؤکل [صرف] په خصومت کولو راضي سوی دی وَالْقَبْضُ غَيْرُ الْخُصُومَةِ او قبضه له خصومت څخه جلا ده وَلَمْ يَرْضَ بِهِ او مؤکل په قبضه کولو نه دی راضي سوی وَلَنَا: أَنَّ مَنْ مَلَكَ شَيْئًا زموږ دلیل دا دی: چې کوم څوک د یو کار مالک سي مَلَكَ إِتْمَامَهُ نو هغه د دې کار د پوره کولو هم مالک کیږي وَإِتْمَامُ الْخُصُومَةِ وَانْتِهَاؤُهَا بِالْقَبْضِ او خصومت پوره کول او هغه انتهاء رسېدل په قبضې سره کیږي وَالْفَتْوَى الْيَوْمَ عَلَى قَوْلِ زُفَرَ [لېکن] نن سبا د امام زفر رَحِمَهُ الله پر قول فتوىٰ ده لِظُهُورِ الْخِيَانَةِ فِي الْوُكَلَاءِ ځکه چې په وکیلانو کي خیانت ښکاره سوی دی وَقَدْ يُؤْتَمَنُ عَلَى الْخُصُومَةِ مَنْ لَا يُؤْتَمَنُ عَلَى الْمَالِ او ځیني وخت د هغه کس پر خصومت اطمینان [او اعتماد] کیږي چې پر هغه د مال په باره کي [یعني پر مال د قبضه کولو کولو په باره] اطمینان نه کیږي وَنَظِيرُهُ الْوَكِيلُ بِالتَّقَاضِيْ او د دې مثل د قرض د تقاضا [مطالبه] کولو وکیل دی يَمْلِكُ الْقَبْضَ عَلَى أَصْلِ الرِّوَايَةِ چې

❁ القول الراجح: قول زفر رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة قاضي زاده آفندي رَحِمَهُ الله: والفتوى اليوم على قول زفر... ومشائخ بلخ افتوا بقول زفر رَحِمَهُ الله ...(نتائج الافكار ج:۷، ص:۱۰۰)، وكذا في المختار (ج:۴، ص:۴۵۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۶۱]

هغه د اصل روايت مطابق د قبضه کولو ملکيت [اختيار] هم لري لِأَنَّهُ فِي مَعْنَاهُ وَضْعًا ځکه چي د وضع په اعتبار سره "تقاضا کول" د قبضه کولو په معنیٰ سره دي إِلَّا أَنَّ الْعُرْفَ بِخِلَافِهِ لېکن عرف د دې په خلاف دی وَهُوَ قَاضٍ عَلَى الْوَضْعِ او عرف پر وضع غالب وي [مطلب دا چي عرفي معنیٰ پر وضعي معنیٰ راجح وي] فَالْفَتْوَى عَلَى أَنْ لَا يَمْلِكَ نو ځکه فتویٰ پر دې ده چي وکيل بالتقاضي [د قبضه کولو] ملکيت نه لري.

**اللغات**: ﴿خصومة﴾ جنګ، دعویٰ، مقدمه، (خصومت دې ته وايي چي يو سړی پر بل چا د حق دعویٰ کوي او دا بل څوک له هغه څخه منکر وي)، ﴿إتمام﴾ د افعال د باب مصدر دی: پوره کول، بشپړ کول، ﴿انتهاء﴾ انتهاء ته رسېدل، پوره کېدل، ﴿وضعًا﴾ د وضع په اعتبار سره، لغت جوړونکو چي يو لفظ د کومي معنیٰ لپاره جوړ کړی وي، هغه ته "وضعي معنیٰ" وايي، لېکن په عرف کي چي لفظ د کومي معنیٰ لپاره استعمالېږي، هغه ته "عرفي معنیٰ" وايي.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که يو څوک د بل سړي له طرفه د قرض يا د اسي بل حق په هکله د خصومت (دعوې) پېشولو وکيل وي، نو هغه زموږ په نېز د قبضه کولو وکيل هم دی، يعني که چيري د هغه په دعویٰ سره قرض ثابت سي، نو هغه زموږ په نېز پر قرض د قبضه کولو وکيل او حقدار هم دی، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز وکيل بالخصومت پر قرض د قبضه کولو وکيل او حقدار نه دی.

**د امام زفر دليل**: دا دی چي مؤکل د خصومت (دعوې) پېشولو لپاره څيرک او چالاکه انسان وکيل جوړوي، حال دا چي پر قرض د قبضه کولو لپاره عام او ساده کس وکيل جوړول کېږي، نو ځکه که مؤکل د يو چا په وکيل بالخصومت کېدلو راضي وي، نو د دې مطلب دا نه دی چي مؤکل د هغه په وکيل بالقبض کېدلو هم راضي دی؛ ځکه چي په خصومت او قبضه کي فرق دی، ځکه خصومت (دعویٰ) قولي شی دی يعني دعویٰ په ژبه سره پېشول کېږي، حال دا چي قبضه کول فعل دی، او په قول او فعل کي ښکاره فرق او تضاد سته، نو ځکه وکيل بالخصومت وکيل بالقبض نه سي کېدای.
(احسن الهدايه)

**زموږ دليل**: دا دی چي کوم څوک د يو کار مالک جوړ کړی سي يعني چا ته چي د يو کار ملکيت او اختيار ورکول سي. نو هغه د دې کار د پوره کولو مالک هم وي يعني هغه ته دا اختيار هم وي چي هغه کار سر ته ورسوي. لهذا وکيل بالخصومت چي څرنګه (د مؤکل له طرفه) د قرض د دعویٰ کولو مالک جوړ سوی دی، همداسي به هغه پر دې قرض د قبضه کولو مالک هم وي؛ ځکه چي د قرض خصومت

(دعوىٰ) هغه وخت پوره کیږي او انتهاء ته رسیږي کله چي پر قرض قبضه وسي، نو ځکه هغه به پر قرض د قبضه کولو مالک او حقدار هم وي.

والفتوىٰ إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي فتوىٰ د امام زفر رَحِمَهُ الله پر قول ده چي وكيل بالقبض وكيل بالخصومت نه دی؛ ځکه نن سبا په وكيلانو كي رشوت خوري او خيانت غالب سوی دی، چي د هغه په وجه: كيل جوړونكي خلک صرف د خصومت كولو لپاره پر وكيل اعتماد كوي لېكن د مال او قرض اخيستلو لپاره پر هغه اعتماد نه كوي، ځکه دا تېنګه خطره سته چي هغه به خيانت وكړي، نو ځکه د اوسني حالاتو په اعتبار كولو سره به وكيل بالخصومت ته فقط د خصومت كولو اختيار حاصل وي او هغه به د قبضي وكيل نه وي.

د دې مسئلې مثال دا دی لکه يو سړی چي بل شوک د قرض د تقاضا (مطالبه كولو) وكيل جوړ كړي، يعني يو چا ته ووايي چي "ته له فلانكي (مثلاً له خالد) څخه زما د قرض مطالبه وكړه!، نو د مبسوط د روايت مطابق هغه وكيل بالقبض هم كيږي، يعني كله چي د وكيل بالتقاضي پر مطالبه مقروض (خالد) قرض اداء كړي نو هغه ته دا اختيار هم حاصليږي چي پر قرض قبضه وكړي؛ ځکه چي د تقاضا كولو وضعي معنىٰ قبضه كول هم دي، نو ځکه د وضعي معنىٰ په اعتبار سره به وكيل بالتقاضي وكيل بالقبض هم وي، لېكن په عرف عام كي تقاضا كول صرف د مطالبه كولو په معنىٰ سره استعماليږي، او عرفي معنىٰ پر وضعي معنىٰ غالب او راجح وي، نو ځکه فتوىٰ پر همدې ده چي وكيل بالتقاضي وكيل بالقبض نه دی، يعني د عرفي معنىٰ په اعتبار كولو سره به د تقاضا كولو وكيل د قبضه كولو وكيل نه وي، لکه څرنګه چي په اصل مسئله كي پر دې فتوىٰ وركول سوې ده چي وكيل بالخصومت وكيل بالقبض نه دی.

## د قبضه كولو په صورت كي د دواړو وكيلانو قبضه كول ضروري دي

قَالَ: فَإِنْ كَانَا وَكِيلَيْنِ بِالْخُصُومَةِ فرمايي: او كه چيري دوه خلک د خصومت كولو وكيلان وي لَا يَقْبِضَانِ إِلَّا مَعًا نو هغوی دواړه به يو ځاى قبضه كوي [يوازي يو وكيل ته د قبضه كولو اجازت نسته] لِأَنَّهُ رَضِيَ بِأَمَانَتِهِمَا لَا بِأَمَانَةِ أَحَدِهِمَا ځکه چي مؤكل د دواړو په امانت راضي سوي دی او [فقط] د يوه په امانت نه دی راضي سوی وَاجْتِمَاعُهُمَا مُمْكِنٌ او د دواړو جمع كېدل ممكن [هم] دي بِخِلَافِ الْخُصُومَةِ په خلاف د خصومت كولو [دعوىٰ پېشولو] عَلَىٰ مَا مَرَّ لكه مخكي چي تېر سو.

**اللغات**: ﴿لا يقبضان﴾ د ضرب له بابه د تثنيه مذكر غائب نفي صيغه ده: پر يو شي قبضه كول، يعني اخيستل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی دوه خلک د خصومت کولو وکیلان جوړ کړي (چې تاسو د قاضي په مجلس کې زما د قرض دعوی او مقدمه پېش کړئ!) نو که څه هم په دې صورت کې دواړه وکیلان یو ځای خصومت (دعوی) نه سي پېشولای لېکن که پر قرض د قبضه کولو نوبت راسي نو پر هغه به دواړه یو ځای قبضه کوي، او یوازې د یوه وکیل لپاره د قبضه کولو اجازت نسته؛ ځکه چې مؤکل د دواړو په امانت راضي سوی دی (یعني هغه په دې راضي دی چې دواړه یو ځای قبضه پر وکړي) او د یوه په امانت راضي نه دی، نو ځکه د یوه قبضه کول به صحیح نه وي. او بل دا چې په قبضه کولو کې د دواړو وکیلانو جمع کېدل هم ممکن دي او په دې کې هیڅ بدي او ممانعت نسته، نو ځکه په دې حواله سره هم د دواړو وکیلانو قبضه کول ضروري دي.

د دې په خلاف څرنګه چې د خصومت (دعوی) پېشولو لپاره د قاضي په مجلس کې د دواړو وکیلانو جمع کېدل مشکل دي، ځکه چې هغه د مجلس د آدابو خلاف کار دی چې د هغه په وجه د قاضي په مجلس کې شور (غالمغال) او بې نظمي جوړېږي، نو ځکه هلته دواړه خصومت نه سي کولای بلکې د دې لپاره یوازې یو وکیل هم کافي دی.

## وكيل بالقبض ضمنًا وكيل بالخصومت كېدل (حكم او تفصيل)

قَالَ: وَالْوَكِيْلُ بِقَبْضِ الدَّيْنِ يَكُوْنُ وَكِيلًا بِالْخُصُومَةِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ فرمایي: او [پر قرض] د قبضه کولو وکیل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د خصومت کولو وکیل هم ګرځي حَتَّى لَوْ أُقِيمَتْ عَلَيْهِ الْبَيِّنَةُ عَلَى اسْتِيفَاءِ الْمُوَكِّلِ أَوْ إِبْرَائِهِ تر دې که د هغه په خلاف دا بیّنه پېش کړی سي چې مؤکل [خپل قرض] اخیستی دی یا مؤکل مقروض [له خپل قرض څخه] بري کړی دی تُقْبَلُ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز به د هغه بیّنه قبلول کیږي وَقَالَا[*]: لَا يَكُوْنُ خَصْمًا او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې د قبضه کولو وکیل خصم نه ګرځي وَهُوَ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زیاد رحمه الله روایت دی لِأَنَّ الْقَبْضَ غَيْرُ الْخُصُومَةِ ځکه چې قبضه له خصومت څخه جلا ده وَلَيْسَ كُلُّ مَنْ يُؤْتَمَنُ عَلَى الْمَالِ يَهْتَدِيْ فِي الْخُصُومَاتِ او هر هغه کس چې پر هغه د مال په باره کې اعتماد کیږي هغه په خصوماتو [دعوو] کې تجربه نه لري [یعني دا ضروري نه ده چې کوم څوک پر مال د قبضه کولو په باره کې امین (امانت ساتونکی) وي نو هغه دي د خصومت او دعوې په

---

[*] القول الراجح: قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله، وعليه المتون، كما ذكر في متن كنز الدقائق (ص:۲۷۳)، و ملتقى الأبحر (۲، ص:۲۲۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۶۲]

پیشولو کي هم ماهر وي] فَلَمْ يَكُنِ الرِّضَاءُ بِالْقَبْضِ رِضَاءً بِهَا نو ځکه په قبضې راضي کېدل به په خصومت راضي کېدل نه وي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ وَكَّلَهُ بِالتَّمَلُّكِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مؤکل دا وکيل د مالک جوړېدلو وکيل جوړ کړی دی لِأَنَّ الدُّيُونَ تُقْضٰى بِأَمْثَالِهَا ځکه چي قرضونه په خپل مثل سره اداء کيږي [يعني کله چي يو څوک قرض اداء کوي نو خاص هغه قرض نه ورکوي کوم چي ده اخيستی وي بلکي د هغه مثل ورکوي] إِذْ قَبْضُ الدَّيْنِ نَفْسِهِ لَا يُتَصَوَّرُ ځکه چي پر خودي قرض د قبضه کولو تصور نه سي کېدای [يعني پر اصل قرض قبضه کول ممکن نه دي] إِلَّا أَنَّهُ جُعِلَ اسْتِيفَاءً لِعَيْنِ حَقِّهِ مِنْ وَجْهٍ مګر هغه په يوه اعتبار سره د عَين حق [اصل قرض] اخيستل ګرځول سوي دي [يعني د قرض پر مثل قبضه کول په يوه اعتبار سره داسي دي لکه پر اصل قرض قبضه کول] فَأَشْبَهَ الْوَكِيلَ بِأَخْذِ الشُّفْعَةِ وَالرُّجُوعِ فِي الْهِبَةِ نو [پر قرض] د قبضه کولو وکيل د هغه وکيل سره مشابه سو کوم چي د شفعي د اخيستلو او په هبه کي د رجوع کولو وکيل وي وَالْوَكِيلَ بِالشِّرَاءِ وَالْقِسْمَةِ وَالرَّدِّ بِالْعَيْبِ او د هغه وکيل سره [مشابه سو] کوم چي د رانيولو او تقسيم کولو او د عيب په وجه د مبيع واپس کولو وکيل وي وَهٰذِهِ أَشْبَهُ بِأَخْذِ الشُّفْعَةِ او دغه وکالت [يعني پر قرض د قبضه کولو وکيل کېدل] د شفعي د اخيستلو د وکالت سره زيات مشابه دی حَتّٰى يَكُونَ خَصْمًا قَبْلَ الْقَبْضِ كَمَا يَكُونُ خَصْمًا قَبْلَ الْأَخْذِ هُنَالِكَ ځکه چي [پر قرض] د قبضه کولو وکيل له قبضه کولو څخه مخکي خصم ګرځي لکه څرنګه چي هلته [يعني د شفعي په اخيستلو کي] وکيل له اخيستلو څخه مخکي خصم ګرځي وَالْوَكِيلُ بِالشِّرَاءِ لَا يَكُونُ خَصْمًا قَبْلَ مُبَاشَرَةِ الشِّرَاءِ او د رانيولو وکيل له رانيولو څخه مخکي خصم نه ګرځي وَهٰذَا لِأَنَّ الْمُبَادَلَةَ تَقْتَضِي حُقُوقًا او دا [حکم] ځکه دی چي مبادله د حقوقو تقاضا کوي وَهُوَ أَصِيلٌ فِيهَا او وکيل د حقوقو په باره کي اصيل وي فَيَكُونُ خَصْمًا فِيهَا نو ځکه هغه به د حقوقو په باره کي خصم [هم] ګرځي.

**اللغات**: ﴿أقيمت﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صيغه ده: قائمول، پېشول، ﴿بيّنة﴾ ګواهي. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: اخيستل، ترلاسه کول. ﴿إبراء﴾ د افعال

د باب مصدر دی: بري كول، معافول (بخښل)، ﴿مباشرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو كار كول، قبل مباشرة الاداء: مخكي تر دې چي رانيول وكړي، يعني له رانيولو څخه مخكي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی كه يو سړی پر خپل قرض د قبضه كولو لپاره بل څوک وكيل جوړ كړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا وكيل (وكيل بقبض الدَين) وكيل بالخصومت هم ګرځي، لېكن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هغه وكيل بالخصومت نه ګرځي، ثمره د اختلاف په دې صورت كي ښكاره كيږي چي كه مقروض د وكيل په خلاف پر دې خبره بيّنه (ګواهي) پېش كړي چي مؤكل خپل قرض مخكي لا اخيستی دی يا هغه ما ته قرض بخښلی دی او زه يې له قرض څخه بري كړی يم، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به د دې مقروض بيّنه قبلول كيږي، لېكن څرنګه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا وكيل خصم يعني مدعیٰ عليه نه دی، نو ځكه د هغه په خلاف به د مقروض بيّنه نه قبلول كيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي قبضه او خصومت يو له بل څخه جلا دي او په دواړو كي فرق او تغاير سته، نو ځكه پر قرض د قبضه كولو وكيل به وكيل بالخصومت نه ګرځي. دويمه خبره دا چي ضروري نه ده كه يو سړی په قبضه كولو كي امين (امانت ساتونكی) وي، نو هغه به خامخا په خصومت كولو كي هم ماهر وي (ځكه عام خلک په اُصولي توګه خصومت [دعویٰ] نه سي پېشولای، لېكن پر قرض د قبضه كولو په باره كي عام خلک د امانت خيال ساتي او هغه په صحيح توګه مؤكل ته رسوي)، لهذا كله چي داسي ده، نو دا هم ضروري نه ده چي كه مؤكل د يو چا پر "وكيل بالخصومت" كېدلو راضي وي، نو مؤكل به د هغه پر "وكيل بالقبض" كېدلو هم راضي وي (يعني كه مؤكل پر خپل قرض د قبضه كولو لپاره يو څوک وكيل جوړ كړي، نو دا ضروري نه ده چي مؤكل دي د هغه پر خصومت كولو [دعویٰ پېشولو] هم راضي وي)، نو ځكه صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي وكيل بقبض الدين به وكيل بالخصومت نه ګرځي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي كه مؤكل يو څوک پر قرض د قبضه كولو وكيل جوړ كړي، نو مؤكل هغه په حقيقت كي د هغه قرض د مالک جوړېدلو وكيل جوړ كړي؛ ځكه چي قرضونه پر ذمه ثابتيږي او د هغو ادا ينه د مثل په ذريعه كيږي، نه د عَين په ذريعه، يعني كه مثلاً خالد زيد ته قرض وركړي، او زيد هغه مصرف كړي، نو ښكاره خبره ده چي كله زيد خالد ته خپل قرض وركوي (اداء كوي)، نو بعينهٖ هغه قرض نه وركوي كوم چي خالد زيد ته وركړی وو، بلكي زيد د هغه قرض مثل وركوي او دا په يوه اعتبار سره د عَين قرض اداء كول شمارل كيږي ځكه چي د قرض مثل د عَين قرض سره برابر وي (يعني څومره چي اصل قرض وي، هغومره د قرض مِثل هم وي)، او ښكاره خبره ده چي

کله وکیل د قرض پر مثل قبضه کوي، نو یقیناً به هغه د تملک (مالک جوړېدلو) په توګه د هغه د قبضه کولو مالک وي، او څرنګه چې مالک خصم یعني مدعیٰ علیه هم وي، نو ځکه وکیل به هم مدعیٰ علیه وي او د مقروض بیّنه به د هغه په خلاف قبول کیږي.

فأشبه الوکیل بأخذ الشفعة إلخ: فرمایي چې وکیل بقبض الدین د خصم کېدلو (مدعیٰ علیه کېدلو) په حواله سره د شفعې اخیستلو د وکیل په څېر دی، یعني که یو سړی د شفعې په توګه د کور اخیستلو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړي نو هغه د مشتري په مقابله کې خصم ګرځي، لهذا که مشتري پر دې خبره ګواهي پېش کړي چې مؤکل زه له شفعې څخه بري کړی یم نو د وکیل په خلاف د هغه (مشتري) ګواهي قبول کیږي، نو څرنګه چې د شفعې اخیستلو وکیل خصم ګرځي، همداسې به وکیل بقبض الدین هم خصم (وکیل بالخصومت) ګرځي، همدارنګه که یو سړی د هبه کړی سوي شي د واپس اخیستلو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړي نو دا وکیل هم د موهوب لهٗ په مقابله کې خصم ګرځي او د واهب و طرف ته د هبې واپس کولو په باره کې د دغه وکیل په خلاف د موهوب لهٗ بیّنه قبلول کیږي. همدارنګه وکیل بالشراء هم د بائع په مقابله کې خصم ګرځي. او د مشترک شي د تقسیمولو وکیل هم د مؤکل د شریک په مقابله کې خصم ګرځي، لهذا که د مؤکل شریک ووایي چې مؤکل خپله حصه مخکې لا اخیستې ده او پر دې بیّنه پېش کړي نو د هغه بیّنه قبلول کیږي. همدارنګه که مشتري د یو عیب په وجه د مبیع واپس کولو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړي، نو دا وکیل هم خصم ګرځي، لهذا که بائع ووایي چې مؤکل (مشتري) په دې عیب راضي سوی وو، او هغه پر دې بیّنه پېش کړي نو د هغه دا بیّنه قبلول کیږي، لنډه دا چې څرنګه په دې صورتونو کې وکیل خصم یعني مدعیٰ علیه ګرځي، همداسې به په پورتنۍ مسئله (وکالت بالقبض) کې هم وکیل خصم ګرځي.

وهذه أشبه إلخ: صاحب د هدایې فرمایي چې د وکالت بقبض الدین مسئله د وکالت بالشراء په مقابله کې د وکالت باخذ الشفعه سره زیاته مشابه ده؛ ځکه چې وکیل بقبض الدین پر قرض له قبضه کولو څخه مخکې د مقروض خصم ګرځي لکه څرنګه چې وکیل باخذ الشفعه له شفعې اخیستلو څخه مخکې د مشتري خصم ګرځي. لېکن وکیل بالشراء له رانیولو څخه مخکې د بائع خصم نه ګرځي بلکې له رانیولو څخه وروسته د هغه خصم ګرځي، لهذا ښکاره خبره ده چې په کوم صورت کې وکیل مخکې خصم ګرځي. هغه به د پورتنۍ مسئلې سره زیات مشابه وي.

وهذا لأن المبادلة إلخ: د دې عبارت تعلق د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل سره دى، حاصل يې دا دى چې كله مقروض د قرض بدل او مثل ورکړي وكيل بقبض الدين پر هغه قبضه وکړي. نو دا مبادله سوه، او مبادله د ځينې حقوقو تقاضا کوي يعني د تسليم او تسلم (ورسپارلو او اخيستلو) تقاضا کوي. او د مبادلې وكيل د مبادلې په حقوقو کې اصيل وي، يعني د مبادلې حقوق د هغه وطرف ته راجع كيږي، او ښکاره خبره ده چې كوم شوک د حقوقو په باره کې اصيل وي هغه د حقوقو په باره کې خصم (مدعیٰ عليه) هم گرځي، نو ځکه په دې حواله سره هم دا ثابته سوه چې پر قرض د قبضه کولو وكيل خصم (مدعیٰ عليه) گرځي يعني هغه د خصومت وكيل گرځي.

## د پورتنی مسئلې بل صورت

قَالَ: وَالْوَكِيْلُ بِقَبْضِ الْعَيْنِ لَا يَكُوْنُ وَكِيْلًا بِالْخُصُوْمَةِ بِالْاِتِّفَاقِ فرمايي: او پر عين شي د قبضه کولو وكيل د خصومت کولو [او دعوىٰ پېشولو] وكيل نه گرځي لِأَنَّهٗ أَمِيْنٌ مَحْضٌ ځکه چې هغه محض امين دى وَالْقَبْضُ لَيْسَ بِمُبَادَلَةٍ او قبضه مبادله نه ده [په بله وينا دا چې دلته وكيل پر كوم شي قبضه کوي هغه بدل نه دى بلكي عين شى دى] فَأَشْبَهَ الرَّسُوْلَ نو هغه د قاصد مشابه سو حَتّٰى أَنَّ مَنْ وَكَّلَ وَكِيْلًا بِقَبْضِ عَبْدٍ لَهٗ تر دې که يو شوک پر غلام د قبضه کولو لپاره بل شوک وكيل جوړ کړي فَأَقَامَ الَّذِيْ هُوَ فِيْ يَدِهِ الْبَيِّنَةَ أَنَّ الْمُوَكِّلَ بَاعَهٗ إِيَّاهُ بيا چې د كوم چا په قبضه کې غلام وي [يعني قابض] هغه پر دې خبره بيّنه پېش کړي چې مؤكل دا غلام پر هغه [يعني پر ما] خرڅ کړى دى وَقَفَ الْأَمْرُ نو دا معامله موقوف پاتيږي حَتّٰى يَحْضُرَ الْغَائِبُ تر دې چې غائب [مؤكل] حاضر سي فِيْ هٰذَا اسْتِحْسَانٌ [دا] په دې کې استحسان دى وَالْقِيَاسُ أَنْ يُدْفَعَ إِلَى الْوَكِيْلِ او قياس دا دى چې غلام به وكيل ته ورکول کيږي لِأَنَّ الْبَيِّنَةَ قَامَتْ لَا عَلٰى خَصْمٍ ځکه چې بيّنه پر خصم نه ده پېش کړل سوې فَلَمْ تُعْتَبَرْ نو ځکه هغه به معتبره نه وي وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ أَنَّهٗ خَصْمٌ فِيْ قَصْرِ يَدِهٖ د استحسان دليل دا دى چې وكيل د خپل قبضې په ناقص والي [ناقصولو] کې خصم دى لِقِيَامِهٖ مَقَامَ الْمُوَكِّلِ فِي الْقَبْضِ ځکه چې هغه په قبضه کولو کې د مؤكل قائم مقام دى فَيَقْتَصِرُ يَدُهٗ نو ځکه د هغه قبضه به ناقصه وي [په بله وينا: نو ځکه هغه به له قبضې څخه منع کيږي] حَتّٰى لَوْ حَضَرَ الْبَائِعُ تر دې چې که غائب [مؤكل] حاضر سي

تُعَادُ الْبَيِّنَةُ عَلَى الْبَيْعِ نو پر بيع به بيّنه راګرځول كيږي [يعني پر بيع به دويم وار بينه پېشول كيږي] فَصَارَ كَمَا إِذَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَى أَنَّ الْمُوَكِّلَ عَزَلَهُ عَنْ ذٰلِكَ نو دا داسي سو لكه قابض چي پر دې خبره بيّنه پېش كړي چي مؤكل هغه له قبضې څخه معزوله كړى دى فَإِنَّهَا تُقْبَلُ فِي قَصْرِ يَدِهِ نو [په دې صورت كي] بيّنه د هغه د قبضې د ناقص والي په باره كي قبلول كيږي كَذَا هُنَا همداسي به دلته هم وي.

**اللغات**: ﴿عَين﴾ مُتعيّن شى، ﴿رسول﴾ استول سوى كس، پيغام رسونكى، قاصد، ﴿أقام﴾ قائمول، درول، پېشول، ﴿بيِّنة﴾ ګواهي، ﴿قَصْر﴾ د نصر مصدر دى: كوتاه كېدل، ناقص كېدل (كم كېدل، كوچنى كېدل)، صاحب د اثمار الهدايې داسي معنىٰ كړې ده: لاس له قبضې څخه منع كېدل، يقتصرُ له قَصْرٌ څخه مشتق دى او همدغه معنىٰ يې ده.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه يو سړى بل څوک پر عَين مال او عَين شي د قبضه كولو وكيل جوړ كړي، نو دا وكيل بالقبض وكيل بالخصومت نه ګرځي؛ ځكه چي هغه محض (صرف) وكيل دى، او داسي وكيل امين وي، او د امين قبضه مبادله نه وي، نو ځكه دا وكيل به وكيل بالخصومت نه ګرځي، د دې مثال د قاصد (پيغام رسونكى) په شېر دى، او څرنګه چي قاصد وكيل بالخصومت نه ګرځي، همداسي به دا وكيل هم وكيل بالخصومت نه ګرځي، همدا وجه ده كه يو سړى پر خپل غلام د قبضه كولو لپاره بل څوک وكيل جوړ كړي، لېكن قابض يعني د كوم سړي په قبضه كي چي غلام دى هغه پر دې خبره بيّنه پېش كړي چي مؤكل دا غلام پر ما خرڅ كړى دى، او مؤكل غائب وي، نو د مؤكل تر حاضرېدلو پوري به دا معامله موقوف پرېښوول كيږي او د غلام په باره كي به هيڅ فيصله نه كيږي.

دا حكم استحساناً دى، لېكن د قياس تقاضا دا ده چي غلام وكيل ته وركول سي او قابض چي كومه بيّنه پېش كړې ده، هغه ردّ كړل سي، ځكه كله چي دا وكيل خصم او مدعىٰ عليه نه دى، نو ښكاره خبره ده چي د هغه به خلاف به د قابض پېش كړل سوې بيّنه هم نه قبلول كيږي او هغه ته به غلام وركول كيږي.

وجه الاستحسان إلخ: د استحسان دليل دا دى چي د غلام رانيولو په حق كي خو د قابض بيّنه نه قبلول كيږي لېكن د دې بيّنې په وجه د وكيل قبضه ناقصه او كمزورې ګرځي او هغه د قبضه كولو مستحق نه پاتيږي. او تر دې وروسته ټوله مدار پر غائب مؤكل دى، لهذا كه هغه حاضر سي نو قابض به پر دې خبره دويم وار بيّنه پېشوي چي مؤكل هغه پر ما خرڅ كړى دى، بيا كه مؤكل د هغه تصديق وكړي نو

ښکاره ده چې د وکیل بالقبض د قبضې حق ختمیږي، لیکن که مؤکل له دې څخه انکار وکړي، نو بیا دهغه د قبضې حق مضبوطیږي. د دې مثال داسې دی لکه قابض چې پر دې خبره بیّنه پیش کړي چې مؤکل دا وکیل پر غلام له قبضه کولو څخه مخکې معزوله کړی دی، نو دا بیّنه صرف د قبضې د ناقصولو په هکله د وکیل په خلاف قبلول کیږي، لیکن په دې بیّنه سره وکیل نه معزوله کیږي، همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم د غلام رانیولو په هکله خود قابض بیّنه نه قبلول کیږي، لیکن د وکیل د قبضې د ناقصولو او له قبضې څخه د وکیل د منع کولو په هکله به دا بیّنه قبلول کیږي.

## د پورتنۍ مسئلې یو بل صورت

قَالَ: وَكَذٰلِكَ الْعَتَاقُ وَالطَّلَاقُ وَغَيْرُ ذٰلِكَ فرمايي: او همدا حکم د طلاق، عتاق او داسې نورو هم دی وَمَعْنَاهُ إِذَا أَقَامَتِ الْمَرْأَةُ الْبَيِّنَةَ عَلَى الطَّلَاقِ او د دې مطلب دا دی چې کله ښځه پر طلاق بیّنه پیش کړي وَالْعَبْدُ وَالْأَمَةُ عَلَى الْعَتَاقِ او غلام او مینځه پر آزادۍ بیّنه پیش کړي عَلَى الْوَكِيلِ بِنَقْلِهِمْ د هغه وکیل په خلاف کوم چې د دوی د بېولو [وکیل] وي [یعنې کله چې دوی د هغه وکیل په خلاف بیّنه پیش کړي کوم چې مؤکل د دوی د راوستلو لپاره وکیل جوړ کړی وي] تُقْبَلُ فِي قَصْرِ يَدِهِ نو دا بیّنه به د وکیل د قبضې د ناقص والي په باره کې قبلول کیږي حَتّٰى يَحْضُرَ الْغَائِبُ تر دې چې غائب [مؤکل] حاضر سي اسْتِحْسَانًا د استحسان په توګه [یعنې دا حکم استحساناً دی] دُوْنَ الْعِتْقِ وَالطَّلَاقِ نه په آزادۍ او طلاق کې [یعنې د آزادېولو او طلاقېدلو په باره کې به دا بیّنه نه قبلول کیږي].

**اللغات**: ﴿عتاق﴾ آزادي، آزادول. ﴿أقامت﴾ قائمول، درول، پیشول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی د خپلې ښځې د راوستلو یا د خپل غلام یا مینځې د راوستلو لپاره بل څوک وکیل جوړ کړي، لیکن کله چې وکیل د ښځې یا نورو د راوستلو لپاره ولاړ سي نو ښځه د وکیل په خلاف دا بیّنه پیش کړي چې زما خاوند (مؤکل) ما ته طلاق راکړی دی، یا غلام او مینځه دا بیّنه پیش کړي چې مؤکل موږ آزاد کړي یو، نو په دې صورت کې به هم د طلاقېدلو او آزادېدلو په هکله بیّنه نه قبلول کیږي بلکې د مؤکل تر حاضرېدلو پورې به د مذکوره کسانو حکم موقوف پرېښوول کیږي. لیکن د دې بیّنې په وجه به د وکیل د قبضې حق ناقص او کمزوري ګرځي لو هغه به د مذکوره کسانو د بېولو حقدار نه وي. او کله چې مؤکل حاضر سي، نو دا دعویٰ او مقدمه به له نوي سره شروع کیږي.

## د مؤكل په خلاف د وكيل اقرار كول (حكم اوتفصيل)

قَالَ: وَإِذَا أَقَرَّ الْوَكِيْلُ بِالْخُصُوْمَةِ عَلٰى مُوَكِّلِهِ عِنْدَ الْقَاضِيْ فرمايي: او كله چي وكيل بالخصومت د قاضي مخته د خپل مؤكل په خلاف اقرار وكړي جَازَ إِقْرَارُهُ عَلَيْهِ نو د مؤكل په خلاف د هغه اقرار جائز دى وَلَا يَجُوْزُ عِنْدَ غَيْرِ الْقَاضِيْ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ اسْتِحْسَانًا او له قاضي شخه بغير د بل چا مخته [د مؤكل په خلاف اقرار كول] د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز استحساناً جائز نه دي إِلَّا أَنَّهُ يَخْرُجُ عَنِ الْوِكَالَةِ ليكن [په دې سره] وكيل له وكالت شخه وځي وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ*: يَجُوْزُ إِقْرَارُهُ عَلَيْهِ وَإِنْ أَقَرَّ فِيْ غَيْرِ مَجْلِسِ الْقَضَاءِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مؤكل په خلاف د وكيل اقرار جائز دى كه شه هم د قاضي له مجلس شخه بغير بل ځاى هغه اقرار وكړي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوْزُ فِي الْوَجْهَيْنِ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په دواړو صورتونو كي جائز نه دى وَهُوَ قَوْلُ أَبِيْ يُوْسُفَ أَوَّلًا او همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول دى وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قياس دى لِأَنَّهُ مَأْمُوْرٌ بِالْخُصُوْمَةِ ځكه چي وكيل ته د خصومت حكم سوى دى وَهِيَ مُنَازَعَةٌ او خصومت جنګ [او دعوىٰ پېشول] دي [يعني "خصومت" د يو حق په باره كي دعوىٰ پېشولو او جنګ وجنجال كولو ته وايي] وَالْإِقْرَارُ يُضَادُّهُ او اقرار كول د دې ضد دى لِأَنَّهُ مُسَالَمَةٌ ځكه چي اقرار صلح ده وَالْأَمْرُ بِالشَّيْءِ لَا يَتَنَاوَلُ ضِدَّهُ او د يو شي حكم د هغه ضد لره نه شامليږي وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ الصُّلْحَ وَالْإِبْرَاءَ او په همدې وجه وكيل د صلح كولو او بري كولو نه مالك كيږي وَيَصِحُّ إِذَا اسْتَثْنَى الْإِقْرَارَ او كله چي مؤكل د اقرار استثناء وكړي نو دا [هم] صحيح دى [يعني په دې صورت كي هم توكيل صحيح دى] وَكَذَا لَوْ وَكَّلَهُ بِالْجَوَابِ مُطْلَقًا او همدارنګه كه مؤكل يو شوک د مطلق جواب وركولو وكيل جوړ كړي يَتَقَيَّدُ بِجَوَابٍ هُوَ خُصُوْمَةٌ نو دا توكيل [وكيل جوړول] په جواب سره يعني په خصومت سره مقيد كيږي [يعني په دې صورت كي وكيل صرف خصومت كولاى سي ليكن د مؤكل په خلاف اقرار نه سي كولاى] لِجَرَيَانِ

---

* القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، اذ هو الاستحسان كما لا يخفى، وكذا ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۴۵۹)، ومجمع الأنهر (ج:۳، ص:۳۳۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۶۳]

الْعَادَةِ بِذٰلِكَ ځکه په همدې باره کې عادت جاري دی وَلِهٰذَا يُخْتَارُ فِيهَا الْأَهْدٰى فَالْأَهْدٰى او له همدې وجهې په خصومت کې هغه کس اختیارول کیږي کوم چې [په خصومت] پوه [او ماهر] وي او بیا چې تر هغه پوه وي [یعني په همدې وجه د خصومت کولو او دعوی پېشولو لپاره هغه کس اختیارول کیږي کوم چې په دې باره کې زیات پوه او ماهر وي] وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ التَّوْكِيلَ صَحِيحٌ قَطْعًا د استحسان دلیل دا دی چې توکیل بالکل صحیح دی وَصِحَّتُهُ يَتَنَاوَلُهُ مَا يَمْلِكُهُ قَطْعًا او د دې صحیح والی هغه شي لره شاملیږي چې مؤکل یقیناً د هغه مالک وي وَذٰلِكَ مُطْلَقُ الْجَوَابِ او هغه مطلق جواب ورکول دي [یعني اقرار هم او انکار هم] دُونَ أَحَدِهِمَا عَيْنًا نه له دوی څخه یو په مُتعیّنه توګه وَطَرِيقُ الْمَجَازِ مَوْجُودٌ او [دلته] د مجاز طریقه موجود ده عَلٰى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى چې هغه به موږ انشاء الله [وروسته] بیان کړو فَيُصْرَفُ إِلَيْهِ نو ځکه توکیل به د مجاز [یعني د مطلق جواب] وطرف ته ګرځول کیږي تَحَرِّيًا لِلصِّحَّةِ قَطْعًا په یقیني توګه د صحیح والي د طلب کولو لپاره [یعني د دې لپارهٔ چې د مؤکل کلام او د هغه توکیل په یقیني توګه صحیح وګرځي].

**اللغات**: ﴿يُضَادّه﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: یو شی د بل شي ضد کېدل، مخالف کېدل. ﴿لا يتناول﴾ د تفاعل د باب نفي صیغه ده: شاملېدل. ﴿أهدىٰ﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: هدایت یافته، لاره موندونکی، مراد ځني هغه کس دی چې د خصومت او دعوی پېشولو په ترتیب ښه پوهیږي او په دې باره کې زیات ماهر وي، ﴿تحرّي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: طلب کول ("تحرّي" په اصل کې "طلبُ الأحرىٰ" ته وایي یعني د زیات مناسب او غوره شي طلب کول).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که وکیل بالخصومت د قاضي مخته د خپل مؤکل په خلاف پر مال د قبضه کولو اقرار وکړي (مثلاً هغه داسې ووایي: مؤکل چې زه د کوم قرض د ثابتولو او دعوی پېشولو وکیل جوړ کړی یم، پر هغه قرض مؤکل مخکې لا قبضه کړې ده)، نو د هغه دا إقرار جائز او صحیح دی، لېکن که وکیل له قاضي څخه بغیر د بل چا مخته داسې اقرار وکړي، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز استحساناً دا جائز نه دی، خو بیا هم د دې اقرار په وجه وکیل له وکالت څخه وځي او تر دې وروسته هغه د مدعي یعني د مؤکل له طرفه پر مال د قبضه کولو حقدار نه پاتېږي.

د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې د مؤکل په خلاف د وکیل اقرار جائز دی، برابره ده هغه د قاضي مخته اقرار وکړي یا له قاضي څخه بغیر د بل چا مخته اقرار وکړي، په هر صورت کې د هغه اقرار جائز او صحیح دی.

دامام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي دمؤکل په خلاف دوکيل اقرار هيڅکله هم جائز نه دی، برابره ده هغه د قاضي مخته اقرار وکړي، يا بل ځای اقرار وکړي، او همدا د قياس تقاضا هم ده.

**دليـــل**: د قيـاس (کـوم چـي دامام شـافعي او امام زفـر رَحِمَهُمَـا الله قـول دی) دليـل دا دی چـي وکيـل بالخصومت د جنګ او دعوې پېشولو وکيل وي، حال دا چي داقرار مطلب صلح کول (او تسليمول) دي، او قاعده دا ده چي د هيڅ شي حکم د هغه ضد لره نه شامليږي، نو ځکه دلته به وکيل بالخصومت ته د خصومت د ضد يعني داقرار کولو حق نه وي او که هغه د خپل مؤکل په خلاف اقرار کړي نو د هغه اقرار به جائز نه وي، برابره ده هغه د قاضي مخته اقرار وکړي يا بل ځای اقرار وکړي. او څرنګه چي اقرار د خصومت ضد دی، همداسي صلح کول او مدعیٰ عليه بري کول هم د خصومت ضد دی، لهذا وکيل چي څرنګه د مؤکل په خلاف داقرار کولو ملکيت (اختيار) نه لري، همداسي د مدعیٰ عليه سره د صلح کولو او له قرض څخه د هغه د بري کولو ملکيت هم نه لري.

ويصح إذا استثنى الإقرار إلخ: په دې عبارت سره هم د دې خبري دليل بيان سوی دی چي د مؤکل په خلاف د وکيل اقرار جائز نه دی، حاصل يې دا دی چي که مؤکل له توکيل بالخصومت څخه داقرار استثناء وکړي، يعني وکيل ته داسي ووايي: ''زه پر دې شرط تا وکيل بالخصومت جوړوم چي ته به زما په خلاف د هيڅ شي اقرار نه کوې''، نو د دې استثناء باوجود هم دا توکيل (توکيل بالخصومت) صحيح دی، لهذا د توکيل صحيح کېدل د دې خبري ښکاره دليل دی چي اقرار د توکيل بالخصومت د لوازماتو څخه نه دی او توکيل بالخصومت هغه لره شامل نه دی.

د دې تائيد په دغه مسئله سره هم کيږي چي که يو سړی بل څوک مطلقاً د جواب ورکولو وکيل جوړ کړي نو دا توکيل په خصومت يعني په انکار سره مقيد کيږي او د عرف او عادت پر بناء دغه وکيل ته دانکار حق هم سته، لېکن داقرار حق هغه ته نسته، ځکه په عرف کي د مطلق جواب ورکولو توکيل خو په انکار سره مقيد وي، لېکن په اقرار سره مقيد نه وي، په همدې وجه د جواب ورکولو او خصومت لپاره داسي کس اختيارول کيږي کوم چي په دې باره کي ښه ماهر وي او پر بحث ومباحثه قادر وي.

وجه الاستحسان إلخ: داستحسان (کوم چي د طرفينو قول دی) دليل دا دی چي توکيل بالخصومت خو په يقيني او قطعي توګه صحيح دی او د هغه صحيح والی هغه شي لره شامل دی چي مؤکل د هغه ملکيت (اختيار) لري، او مؤکل د مطلق جواب ملکيت لري چي په هغه کي اقرار هم شامل دی او انکار هم شامل دی. او دا معلومه خبره ده چي وکيل د مؤکل نائب وي، لهذا کله چي مؤکل داقرار او نکار

دواړو مالک دی نو د هغه نائب به هم د دواړو مالک وي، او کله چي مؤکل په مُتعينه توګه ديوه شي يعني د انکار يا اقرار مالک نه وي، نو د هغه وکيل به هم په مُتعينه توګه د انکار يا اقرار مالک نه وي. او له توکيل بالخصومت څخه مطلقاً جواب مرادول مجاز دی او د خصومت او مطلق جواب په مينځ کي د مجاز طريقه هم موجود ده او هغه په دې توګه چي خصومت (دعوىٰ کول) د جواب ورکولو سبب دي او جواب ورکول مسبب دي، او تاسو ته به معلومه وي چي سبب ذکر کول او له هغه څخه مسبب مرادول د مجاز له طريقو څخه يو ښکاره طريقه ده، نو ځکه توکيل بالخصومت به مجازاً د مطلق جواب ورکولو وطرف ته ګرځول کيږي، د دې لپاره چي د مؤکل کلام په قطعي توګه صحيح وګرځي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَلَوِ اسْتَثْنَى الْإِقْرَارَ او که چيري مؤکل د اقرار استثناء وکړي فَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَا يَصِحُّ نو له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي دا استثناء صحيح نه ده لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُهُ ځکه چي مؤکل د استثناء کولو مالک نه دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يَصِحُّ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي استثناء کول صحيح دي لِأَنَّ لِلتَّنْصِيصِ زِيَادَةَ دَلَالَةٍ عَلَى مِلْكِهِ إِيَّاهُ ځکه چي صراحت کول [يعني په صراحت سره استثناء کول] پر دې خبره زيات [ښکاره] دلالت کوي چي مؤکل د انکار مالک دی وَعِنْدَ الْإِطْلَاقِ يُحْمَلُ عَلَى الْأَوْلَى او د مطلقوالي [مطلق توکيل] په وخت کي به پر اولىٰ حمل کيږي وَعَنْهُ أَنَّهُ فَصَلَ بَيْنَ الطَّالِبِ وَالْمَطْلُوبِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دا روايت [هم] سوی دی چي هغه د مدعي او مدعىٰ عليه په مينځ کي فرق کړی دی وَلَمْ يُصَحِّحْهُ فِي الثَّانِي او په دويم [يعني په مدعىٰ عليه] کي هغه استثناء صحيح نه ده ګرځولې لِكَوْنِهِ مَجْبُورًا عَلَيْهِ ځکه چي مدعىٰ عليه د انکار پر پرېښوولو مجبوره وي وَيُخَيَّرُ الطَّالِبُ فِيهِ او مدعي ته په دې باره کي اختيار وي فَبَعْدَ ذٰلِكَ يَقُولُ أَبُو يُوسُفَ: إِنَّ الْوَكِيلَ قَائِمٌ مَقَامَ الْمُوَكِّلِ بيا امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي وکيل د مؤکل قائم مقام دی وَإِقْرَارُهُ لَا يَخْتَصُّ بِمَجْلِسِ الْقَضَاءِ او د مؤکل اقرار د قاضي د مجلس سره خاص نه وي فَكَذَا إِقْرَارُ نَائِبِهِ نو همداسي به د هغه د نائب [يعني د وکيل] اقرار هم د قاضي د مجلس سره خاص نه وي وَهُمَا يَقُولَانِ: إِنَّ التَّوْكِيلَ يَتَنَاوَلُ جَوَابًا يُسَمَّى خُصُومَةً حَقِيقَةً أَوْ مَجَازًا او طرفين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي توکيل بالخصومت [د خصومت وکيل جوړول] داسي جواب لره شامليږي کوم چي په حقيقت

کي خصومت دی یا مجازاً خصومت دی وَالْإِقْرَارُ فِي مَجْلِسِ الْقَضَاءِ خُصُومَةٌ مَجَازًا او د قاضي په مجلس کي اقرار کول مجازاً خصومت دی إِمَّا لِأَنَّهُ خَرَجَ فِي مُقَابَلَةِ الْخُصُومَةِ یا خو په دې وجه چي دا اقرار د خصومت په مقابله کي واقع سوی دی أَوْ لِأَنَّهُ سَبَبٌ لَهُ یا په دې وجه چي خصومت د اقرار سبب دی لِأَنَّ الظَّاهِرَ إِتْيَانُهُ بِالْمُسْتَحَقِّ عِنْدَ طَلَبِ الْمُسْتَحَقِّ ځکه ښکاره همدا ده چي د مستحق [حقدار کس] د مطالبې په وخت کي به په مستحق سره جواب ورکول کیږي [په بله وینا: ځکه ښکاره همدا ده چي په مستحق سره به راتګ کوي (یعني اقرار به کوي) د مستحق د طلب کولو په وخت کي (یعني د خپل حق غوښتلو په وخت کي)] وَهُوَ الْجَوَابُ فِي مَجْلِسِ الْقَضَاءِ او مستحق د قاضي په مجلس کي جواب ورکول دي فَيَخْتَصُّ بِهِ نو ځکه جواب ورکول [یعني اقرار کول] به د قاضي د مجلس سره خاص وي لَكِنْ إِذَا أُقِيمَتِ الْبَيِّنَةُ عَلَى إِقْرَارِهِ فِي غَيْرِ مَجْلِسِ الْقَضَاءِ لیکن کله چي د قاضي له مجلس څخه بغیر بل ځای د وکیل پر اقرار کولو بیّنه پېش کړی سي يَخْرُجُ مِنَ الْوِكَالَةِ نو [په دې صورت کي] وکیل له وکالت څخه وځي حَتَّى لَا يُؤْمَرَ بِدَفْعِ الْمَالِ إِلَيْهِ حتی چي [په دې وجه] هغه ته به د مال ورکولو حکم نه کیږي لِأَنَّهُ صَارَ مُنَاقِضًا ځکه چي هغه مناقض [تناقض کونکی] وګرځیدی وَصَارَ كَالْأَبِ أَوِ الْوَصِيِّ إِذَا أَقَرَّ فِي مَجْلِسِ الْقَضَاءِ او داسي سو لکه پلار یا وصي چي د قاضي په مجلس کي اقرار وکړي لَا يَصِحُّ وَلَا يُدْفَعُ الْمَالُ إِلَيْهِ نو [په داسي صورت کي هم] اقرار نه صحیح کیږي او هغه [یعني پلار یا وصي] ته به مال نه ورکول کیږي.

**اللغات**: ﴿تنصیص﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: صراحت کول، په ښکاره توګه ذکر کول، په ښکاره لفظو کي ذکر کول. ﴿طالب﴾ مراد ځني مدعي دی، ځکه چي هغه مطالبه کوي. ﴿مطلوب﴾ مراد ځني مدعیٰ علیه دی، ځکه چي مطالبه له هغه څخه کیږي. ﴿یخیر﴾ د تفعیل د باب مضارع مجهوله ده: اختیار کول. ﴿إتیان﴾ د ضرب د باب مصدر دی: راتلل، په یو شي سره راتګ کول، یو کار کول. (معجم وسیط)

**تشریح**: دا عبارت د مخکني عبارت تتمه ده، او د دې تعلق د مخکني عبارت د "وَيَصِحُّ إِذَا اسْتَثْنَى الإِقْرَارَ إلخ" سره دی، حاصل یې دا دی چي امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله چي له توکیل

بالخصومت څخه د اقرار استثناء کړې ده، دا موږ نه تسليموو لکه څرنګه چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز دا صحيح نه دي؛ ځکه چې مؤکل د هغه مالک نه دی، ځکه که مؤکل د اقرار د استثناء کولو مالک وګرځول سي نو له دې څخه به دا خبره لازمه سي چې مؤکل دي فقط د انکار مالک وي او پر هره موقع دي هغه انکار کوي برابره ده هغه پر حق وي او که پر ناحقه، حال دا چې شرعاً دا صحيح نه دي.

له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې د مؤکل له طرفه د اقرار استثناء کول صحيح دي؛ ځکه د اقرار د استثناء صراحت کول د دې خبري ښکاره دليل دی چې مؤکل د انکار مالک دی، او کله چې هغه د انکار مالک دی نو ښکاره خبره ده چې هغه ته به دا حق هم وي چې بل څوک د انکار مالک جوړ کړي. لېکن که توکيل بالخصومت مطلق وي او په دې کي د اقرار او انکار هيڅ تفصيل نه وي، نو دا توکيل به پر اولیٰ او اعلیٰ توکيل حمل کيږي، او اولیٰ توکيل دا دی چې هغه پر مطلق جواب حمل کړی سي کوم چې انکار او اقرار دواړو لره شامل دی.

**وعنه إلخ:** او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دا روايت هم سوی دی چې هغه د مدعي او مدعیٰ عليه په مينځ کي فرق کړی دی، په دې توګه چې که د توکيل بالخصومت وکيل د مدعي له طرفه وي نو د مدعي لپاره د اقرار استثناء کول صحيح دي، لېکن که دا وکيل د مدعیٰ عليه له طرفه وي نو د مدعیٰ عليه لپاره د اقرار استثناء کول صحيح نه دي؛ ځکه چې مدعي ته په اصل خصومت کي د انکار او اقرار دواړو اختيار وي، لېکن مدعیٰ عليه په انکار کولو کي مجبوره وي، او د مجبوره کس فعل معتبر نه دی، نو ځکه د مدعیٰ عليه اقرار به هم معتبره نه وي.

**فبعد ذلك إلخ:** له دې ځايه د اختلاف وطرف ته رجوع کوي، حاصل يې دا دی چې کله دا خبره ثابته سوه چې له توکيل بالخصومت څخه مطلق جواب مراد دی، نو بيا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د وکيل بالخصومت لپاره د قاضي مخته هم د مؤکل په خلاف اقرار کول صحيح دي او بل ځای هم صحيح دي؛ ځکه چې وکيل د مؤکل نائب وي او مؤکل چې د کوم کار مالک وي، وکيل هم د هغه کار مالک وي (يعني مؤکل چې د کوم کار ملکيت [اختيار] لري. وکيل هم د هغه کار ملکيت لري)، او مؤکل هر ځای د اقرار کولو مالک دی (يعني د قاضي په مجلس کي هم اقرار کولای سي او بل ځای هم)، نو ځکه د هغه نائب يعني وکيل به هم هر ځای د دې مالک وي.

لېکن څرنګه چې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا صحيح نه دي چې وکيل د قاضي له مجلس څخه بغير بل ځای د مؤکل په خلاف اقرار وکړي؛ ځکه توکيل بالخصومت هغه جواب لره شامليږي کوم چې حقيقتاً خصومت دی يعني انکار او هغه جواب لره هم شامليږي کوم چې مجازاً خصومت

دی یعني اقرار، نو ځکه وکیل بالخصومت اقرار هم کولای سي او انکار هم کولای سي، مګر اقرار کوم چي مجازاً خصومت دی هغه صرف د قاضي په مجلس کي خصومت ګرځي، او د قاضي له مجلس څخه بغير بل ځای هغه هيڅ ډول خصومت نه ګرځي، نو په همدې وجه د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د قاضي له مجلس څخه بغير بل ځای د مؤکل په خلاف د وکيل اقرار معتبر نه دی.

پاته سو دا سوال چي اقرار د قاضي په مجلس کي څنګه مجازاً خصومت ګرځي، نو د هغه جواب دا دی چي یا خو په دې وجه د قاضي په مجلس کي اقرار مجازاً خصومت ګرځي چي هغه د خصومت په مقابله کي واقع سوی دی، او څرنګه چي د خصومت او اقرار په مينځ کي تقابل سته، نو ځکه له دې دواړو (متقابلينو) څخه د يوه اطلاق پر بل جائز او صحيح دی.

او یا په دې وجه چي خصومت د اقرار سبب دی او اقرار يې مسبب دی، نو ځکه مسبب يعني اقرار د سبب په نامه سره نومول سوی دی او هغه ته يې نسبت سوی دی. لېکن دا اقرار د قاضي د مجلس سره خاص دی، ځکه کله چي حقدار کس د خپل حق طلب او غوښتنه وکړي نو داسي جواب به ورکول کيږي چي دئ د هغه مستحق دی، او مستحق هماغه جواب دی کوم چي د قاضي د مجلس سره خاص وي (په بله وينا دا چي وکيل صرف د قاضي په مجلس کي د مؤکل د حق مطالبه او غوښته کړې ده نو ځکه صرف د قاضي په مجلس کي به جواب ورکوي [يعني اقرار به کوي])، نو ځکه موږ (طرفين) وايو چي د وکيل دا اقرار صرف د قاضي په مجلس کي صحيح او معتبر دی.

همدا وجه ده که مؤکل پر دې خبره بيّنه پېش کړي چي وکيل د قاضي له مجلس څخه بغير بل ځای اقرار کړی دی، نو د هغه اقرار نه معتبر کيږي او وکيل له وکالت څخه وځي نو ځکه د مؤکل مال به هغه ته نه ورکول کيږي؛ ځکه چي اوس د هغه اقرار غير معتبر وګرځېدی. لهذا که موږ اوس هغه وکيل بالانکار وشمېرو، نو د هغه په کلام کي به تناقض وي چي اول هغه اقرار کړی دی او اوس انکار کوي، او که هغه وکيل بالاقرار وشمېرو، نو هغه به د مطلق جواب وکيل نه وي بلکي د مقيد جواب وکيل به وي، حال دا چي مؤکل هغه د مطلق جواب وکيل جوړ کړی دی، لهذا اوس د هغه د وکيا پاته‌کېدلو هيڅ صورت پاته نه سو، نو ځکه هغه به له وکالت څخه وځي.

د دې مثال داسي دی لکه د صغير پلار يا وصي چي پر مدعیٰ عليه د مال نه واجبېدلو اقرار وکړي (مثلاً پلار داسي ووايي چي پر مدعیٰ عليه زما د کوچني ځوی يا زما د کوچنۍ لور هيڅ قرض نسته)، يا مدعیٰ عليه له مال واجبېدلو څخه انکار وکړي او د صغير پلار يا وصي د هغه تصديق وکړي، نو د پلار يا د وصي دا تصديق او اقرار د صغير په خلاف صحيح نه دی، همدا وجه ده که وروسته په يو طريقه سره د صغير لپاره پر مدعیٰ عليه مال ثابت او واجب سي، نو بيا پلار يا وصي لره د هغه مال د

اخیستلو حق نسته؛ ځکه چې دوی یو ځل له هغه مال څخه انکار کړی دی. لهذا وروسته به د دوی لپاره د هغه اقرار کول څنګه صحیح وي!؟ (ځکه ښکاره خبره ده چې دا صحیح نه دي چې یو ځل انسان د یو شي انکار وکړي او بیا یې اقرار وکړي)، همداسې په پورتنۍ مسئله کې هم چې کله وکیل یو ځل د مؤکل په خلاف اقرار وکړی، نو وروسته به د دې مؤکل په حق کې د هغه انکار څنګه صحیح او معتبر وي!؟.

## کفیل د قرض اخیستلو وکیل جوړول

قَالَ: وَمَنْ كَفَلَ بِمَالٍ عَنْ رَجُلٍ فرمایي: او که څوک د یو سړي له طرفه د مال کفیل سي فَوَكَّلَهُ صَاحِبُ الْمَالِ بِقَبْضِهِ عَنِ الْغَرِيمِ بیا د مال خاوند له مقروض څخه د مال قبضه کولو [اخیستلو] لپاره هغه [کفیل] وکیل جوړ کړي لَمْ يَكُنْ وَكِيلًا فِي ذَلِكَ أَبَدًا نو کفیل په دې باره کې هیڅکله هم وکیل نه ګرځي لِأَنَّ الْوَكِيلَ مَنْ يَعْمَلُ لِغَيْرِهِ ځکه وکیل هغه کس ته وایي کوم چې د بل چا لپاره کار کوي وَلَوْ صَحَّحْنَاهَا او که موږ دا وکالت صحیح وګرځوو صَارَ عَامِلًا لِنَفْسِهِ فِي إِبْرَاءِ ذِمَّتِهِ نو هغه به د خپل ذمې [خپل ځان] په بري کولو کې د ځان لپاره کونکی وګرځي فَانْعَدَمَ الرُّكْنُ نو [د وکالت] رکن به موجود نه سي وَلِأَنَّ قَبُولَ قَوْلِهِ مُلَازِمٌ لِلْوَكَالَةِ او ځکه چې د وکیل د قول مقبول کېدل [معتبر کېدل] د وکالت لپاره لازم دي لِكَوْنِهِ أَمِينًا ځکه چې وکیل امین وي وَلَوْ صَحَّحْنَاهَا او که موږ وکالت صحیح وګرځوو لَا يُقْبَلُ نو د هغه قول به مقبول [معتبر] نه وي لِكَوْنِهِ مُبَرِّئًا نَفْسَهُ ځکه چې [په دې صورت کې] هغه به د خپل ځان بري کونکی وي فَيَنْعَدِمُ بِانْعِدَامِ لَازِمِهِ نو ځکه د خپل لازم د معدوم کېدلو [نه موجودېدلو] په وجه به توکیل [هم] معدوم کیږي وَهُوَ نَظِيرُ عَبْدٍ مَدْيُونٍ أَعْتَقَهُ مَوْلَاهُ او دا د هغه مقروض غلام په څېر دي کوم چې یې خپل مالک آزاد کړي حَتَّى ضَمِنَ قِيمَتَهُ لِلْغُرَمَاءِ تر دې چې مالک د قرضخواهانو لپاره د هغه د قیمت ضامن سي [مطلب دا چې په دې صورت کې د قرض غوښتونکو لپاره پر مالک د غلام د قیمت ضمان (تاوان) واجبیږي] وَيُطَالِبُ الْعَبْدَ بِجَمِيعِ الدَّيْنِ او مالک به [بیا] له غلام څخه د ټوله قرض مطالبه کوي فَلَوْ وَكَّلَهُ الطَّالِبُ بِقَبْضِ الْمَالِ عَنِ الْعَبْدِ نو که [په داسې صورت کې] قرضخواه له غلام څخه د مال قبضه کولو [اخیستلو] لپاره هغه غلام وکیل جوړ کړي كَانَ بَاطِلًا نو دا توکیل به باطل وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړی.

**اللغات**: ﴿الغريم﴾ دا لفظ له اضدادو څخه دی، مقروض (پور وړي) ته هم وايي، او قرضخواه ته هم وايي، قرضخواه د قرض مالک (قرض ورکونکي) ته وايي کوم چې وروسته د خپل قرض غوښتنه کوي، دلته اوله معنیٰ مراد ده يعني مقروض، ﴿إبراء﴾ د افعال د باب مصدر دی: بري کول، خلاصول، ﴿ينعدم﴾ د انفعال د باب مضارع ده: نيستي کېدل، نه موجودېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که پر يو سړي (مثلا پر خالد) د خلکو قرضونه باندي وي او د هغه له طرفه بل سړی کفيل بالمال سي يعني بل سړی د هغه خلکو (قرضخواهانو) د قرض اداء کولو کفالت او ذمه واري واخلي، بيا صاحب المال يعني له قرضخواهانو څخه يو قرضخواه دغه کفيل له مقروض (خالد) څخه د قرض اخيستلو وکيل جوړ کړي، نو دا وکالت صحيح نه دی او دا کفيل هيڅکله هم وکيل نه ګرځي، يعني برابره ده هغه په کفالت کي پاته وي يا له کفالت څخه بري کړی سي، لنډه دا چي کله کفيل د قرض اخيستلو وکيل جوړ کړی سي نو هغه هيڅکله هم وکيل نه ګرځي بلکي پر خپل کفالت باقي پاتيږي، دليل دا دی چي وکيل هغه کس ته وايي کوم چي د بل چا لپاره کار کوي، او که چيري کفيل وکيل وګرځول سي، نو هغه به د خپل ځان لپاره کار کونکی وي او له دې وکالت څخه به هغه خپل ځان بري کړي او د وکالت چي کوم رکن دی يعني د بل چا لپاره کار کول هغه به موجود نه سي، نو ځکه دا توکيل صحيح نه دی.

د دې توکيل د نه صحيح کېدلو دويم دليل دا دی چي وکيل امين وي، او د اختلاف پر موقع د امين قول معتبر وي، نو ځکه د وکالت د صحيح والي لپاره د وکيل د قول مقبول والی (معتبر والی) شرط دی، او په داسي مسئله کي که د کفيل توکيل صحيح وګرځول سي (يعني د هغه وکيل جوړېدل صحيح ومنل سي)، نو د خپل ځان په بري کولو کي به د کفيل قول معتبر وګرځي، حال دا چي د خپل ځان د بري کولو په باره کي هغه په خپل قول کي متهم دی، نو ځکه د هغه قول به معتبر او مقبول نه وي، او کله چي د هغه قول معتبر نه دی نو توکيل به هم صحيح نه وي، ځکه چي د توکيل د صحت لپاره د وکيل د قول معتبر کېدل او مقبول کېدل شرط دي، او کله چي شرط نسته نو مشروط يعني د توکيل صحت (صحيح والي) به هم معدوم کيږي او توکيل به نه صحيح کيږي.

د دې مثال داسي دی لکه يو مالک چي خپل غلام ته د تجارت او کاروبار اجازه ورکړې وي او بيا پر دې غلام د خلکو قرضونه باندي سي او مالک هغه آزاد کړي، نو مالک د دې غلام د قيمت په اندازه د هغه خلکو (قرضخواهانو) لپاره ضامن کيږي (يعني د غلام چي څومره قيمت دی هغومره قرض به اداء کوي) او وروسته به مالک له غلام څخه د ټوله قرض مطالبه کوي، لېکن که قرضخواهان دا مالک له غلام څخه د خپل قرض اخيستلو وکيل جوړ کړي، نو دا توکيل باطل دی؛ ځکه چي د غلام د قيمت په اندازه

مالک د قرضخواهانو لپاره ضامن دی، اوس که دا توکیل صحیح وګرځول سي (یعني د مالک وکیل جوړېدل صحیح ومنل سي)، نو مالک به په هغه مقدار کي له ضمان څخه د خپل ځان بري کونکي وګرځي او د مالک دا عمل به د خپل ځان لپاره وګرځي، حال دا چي د وکالت رکن د بل چا لپاره کار کول دي او هغه دلته موجود نه دی، نو ځکه په دې صورت کي هم توکیل باطل دی لکه څرنګه چي په پورتنۍ مسئله کي باطل دی. (احسن الهدایه)

## د غائب له طرفه د وکیل کېدلو دعویٰ کول

قَالَ: وَمَنِ ادَّعٰى أَنَّهُ وَكِيْلُ الْغَائِبِ فِيْ قَبْضِ دَيْنِهٖ فرمايي: او که څوک دعویٰ وکړي چي زه د فلانکي غائب له طرفه د هغه پر قرض د قبضه کولو [قرض اخیستلو] وکیل یم فَصَدَّقَهُ الْغَرِيْمُ او مقروض [پور وړي] د هغه تصدیق وکړي أُمِرَ بِتَسْلِيْمِ الدَّيْنِ إِلَيْهِ نو مقروض به هغه ته په قرض ورکولو سره امر کیږي [یعني مقروض ته به دا حکم کیږي چي مدعي ته قرض وسپاره!] لِأَنَّهُ إِقْرَارٌ عَلٰى نَفْسِهٖ ځکه چي دا پر خپل ځان [د خپل ځان په خلاف] اقرار کول دي لِأَنَّ مَا يَقْضِيْهِ خَالِصُ مَالِهٖ ځکه مقروض چي کوم مال [په قرض کي] اداء کوي هغه خالص د ده مال دی فَإِنْ حَضَرَ الْغَائِبُ فَصَدَّقَهُ بیا که غائب مؤکل حاضر سي او هغه د وکیل تصدیق وکړي [نو صحیح ده] وَإِلَّا دَفَعَ إِلَيْهِ الْغَرِيْمُ الدَّيْنَ ثَانِيًا کنې مقروض به مؤکل ته دویم وار قرض ورکوي [یعني که مؤکل د وکالت انکار وکړي، نو مقروض به هغه ته دوباره قرض ورکوي] لِأَنَّهُ لَمْ يَثْبُتِ الْاِسْتِيْفَاءُ حَيْثُ أَنْكَرَ الْوَكَالَةَ ځکه چي [د قرض] اخیستل ثابت نه سوه، ځکه مؤکل له وکالت څخه انکار وکړی [یعني کله چي مؤکل له وکالت څخه انکار وکړی، نو استیفاء ثابته نه سوه] وَالْقَوْلُ فِيْ ذٰلِكَ قَوْلُهٗ مَعَ يَمِيْنِهٖ او په دې سلسله کي د قسم سره د مؤکل قول معتبر دی فَيَفْسُدُ الْأَدَاءُ نو ځکه [د مقروض] اداء کول به فاسد وي [یعني کوم مال چي مقروض وکیل ته ورکړی وي، هغه به صحیح نه وي] وَيَرْجِعُ بِهٖ عَلَى الْوَكِيْلِ إِنْ كَانَ بَاقِيًا فِيْ يَدِهٖ او که د وکیل په قبضه کي هغه مال موجود وي [کوم چي مقروض وکیل ته ورکړی وي] نو مقروض به پر هغه د دې رجوع کوي [یعني مقروض به له وکیل څخه هغه مال واپس اخلي] لِأَنَّ غَرَضَهٗ مِنَ الدَّفْعِ بَرَاءَةُ ذِمَّتِهٖ ځکه چي د مقروض مقصد [وکیل ته] په مال ورکولو سره دا وو چي د مقرض ذمه بري سي [یعني مقروض په دې غرض سره وکیل ته مال ورکړی وو چي زه له قرض څخه بري سم او زما غاړي خلاصي سي] وَلَمْ تَحْصُلْ حالانکي د هغه دا مقصد

حاصل نه سو فَلَهُ أَنْ يَنْقُضَ قَبْضَهُ نو ځکه مقروض ته به دا حق وي چي د وکيل قبضه ماته کړي [يعني له هغه شخصه خپل مال واخلي] وَإِنْ كَانَ ضَاعَ فِي يَدِهِ او که هغه مال د وکيل په قبضه کي ضايع سوی وي لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهِ نو مقروض به پر هغه رجوع نه کوي لِأَنَّهُ بِتَصْدِيقِهِ اعْتَرَفَ أَنَّهُ مُحِقٌّ فِي الْقَبْضِ ځکه چي مقروض د وکيل په تصديق کولو سره دا اقرار وکړی چي وکيل [پر مال] په قبضه کولو کي پر حق دی [يعني کله چي مقروض د وکيل تصديق وکړی نو ګواکي هغه دا اقرار وکړی...] وَهُوَ مَظْلُومٌ فِي هَذَا الْأَخْذِ او مقروض په دې کي [يعني قرضخواه ته د دوباره قرض ورکولو په وجه] مظلوم دی وَالْمَظْلُومُ لَا يَظْلِمُ غَيْرَهُ او مظلوم پر بل چا ظلم نه کوي.

**اللغات**: ﴿دَين﴾ قرض، قرضه، پور، ﴿غريم﴾ مراد ځني مقروض دی، کوم ته چي قرضدار او پور وړی هم ويل کيږي، ﴿حضر﴾ د نصر ماضي ده: حاضرېدل، موجودېدل، ﴿صدّقه﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: تصديق کول، رښتونی ګڼل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی مثلاً ادريس دا دعویٰ وکړي چي پر زيد د خالد کوم قرض باندي دی زه د خالد له طرفه د هغه قرض د اخيستلو (قبضه کولو) وکيل يم او خالد په دې وخت کي حاضر نه وي او مقروض يعني زيد د ادريس د قول او دعویٰ تصديق هم وکړي، نو په دې صورت کي به مقروض (زيد) ته حکم کيږي چي د قرض په اندازه مال (پيسې) مدعي يعني ادريس ته ورکړي؛ ځکه قرضونه بامثالها اداء کيږي، لهذا مقروض چي مدعي ته کوم مال ورکوي، دا به خالص د هغه ذاتي مال وي، او څرنګه چي هغه د مدعي لپاره د دې مال اقرار او تصديق هم کړی دی، نو ځکه هغه به دا مال مدعي ته ورکوي، بيا چي کله قرضخواه (خالد) حاضر سي او د مدعي (ادريس) دعویٰ او وکالت صحيح وګرځوي، نو مقروض (زيد) له قرض څخه بري کيږي، لېکن که قرضخواه د وکالت انکار وکړي يعني داسي ووايي چي "ما ادريس د قرض اخيستلو وکيل نه دی جوړ کړی"، نو په دې صورت کي مقروض (زيد) له قرض څخه نه بري کيږي او هغه به قرضخواه (خالد) ته دوباره قرض ورکوي؛ ځکه کله چي قرضخواه د وکالت انکار وکړی نو د هغه له طرفه د قرض اخيستل ثابت نه سوه (يعني ګواکي وکيل [ادريس] د هغه لپاره قرض نه واخيستی)، او څرنګه چي له وکالت څخه په انکار کولو کي د قرضخواه (مؤکل) قول مع اليمين معتبر وي، نو ځکه په دې صورت کي به هم د هغه قول معتبر وي او مقروض چي وکيل ته کوم مال ورکړی وي هغه به فاسد وي او پر مقروض به دا لازم وي چي قرضخواه ته دوباره د قرض مال ورکړي.

او پاته سو دا مال کوم چي مقروض وکيل ته ورکړی دی، که چيري هغه دوکيل سره موجود وي نو مقروض به هغه له وکيل څخه واپس اخلي؛ ځکه مقروض د دې مقصد لپاره وکيل ته دا مال ورکړی وو چي له قرض څخه بري سي، لېکن هغه له قرض څخه بري نه سو، لهذا د هغه مقصد هم حاصل نه سو، نو ځکه هغه ته به دا حق وي چي له وکيل څخه خپل مال واپس واخلي. ها! که چيري هغه مال دوکيل سره موجود نه وي بلکي وکيل هغه مصرف کړی (ضايع کړی) وي، نو په دې صورت کي مقروض ته دا حق نسته چي له وکيل څخه مال واپس واخلي. ځکه د مال ورکولو په وخت کي هغه دوکيل د وکالت تصديق وکړی او د وکيل اخيستل او قبضه کول يې پرحق ومنل، او دا تسليم سوې خبره ده چي کوم کس په قبضه کولو او د مال په اخيستلو کي پر حق وي، له هغه څخه مقبوضه مال واپس نه اخيستل کيږي، نو ځکه په پورتني صورت کي به هم مقروض ته دا حق او اختيار نه وي چي له وکيل څخه هغه د قرض مال واپس واخلي. پاته سو دا اعتراض چي په دې صورت کي خو مقروض مظلوم وګرځېدی او دوباره د قرض اداء کولو په وجه هغه تاواني سو، نو د دې جواب دا دی چي که څه هم دلته مقروض تاواني سوی دی لېکن څرنګه چي دا تاوان د هغه د خپل عمل يعني د وکيل د تصديق کولو په وجه هغه ته پېښ سوی دی، نو ځکه که مال د وکيل سره موجود وي نو مقروض ته به له وکيل څخه د هغه مال د واپس اخيستلو حق او اختيار نه وي، او که مال د وکيل سره موجود نه وي او مقروض مظلوم وګرځي، نو هغه ته به پر بل چا د ظلم کولو اختيار نه وي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

قَالَ: إِلَّا أَنْ يَكُونَ ضَمَّنَهُ عِنْدَ الدَّفْعِ فرمايي: مګر دا چي مقروض د مال ورکولو په وخت کي وکيل ضامن [ذمه وار] ګرځولی وي لِأَنَّ الْمَأْخُوذَ ثَانِيًا مَضْمُونٌ عَلَيْهِ فِي زَعْمِهِمَا ځکه له مقروض څخه چي کوم مال دوباره اخيستل سوی دی هغه د [وکيل او مقروض] دواړو په ګومان کي پر قرضخواه مضمون دی [يعني د دواړو په ګومان کي پر قرضخواه د هغه ضمان (تاوان) لازم دی] وَهٰذِهِ كَفَالَةٌ أُضِيفَتْ إِلَى حَالَةِ الْقَبْضِ او دا داسي کفالت [کفيل کېدل] دي کوم چي د قبضې د حالت وطرف ته منسوب کړی سوي دي فَتَصِحُّ نو ځکه هغه صحيح دي بِمَنْزِلَةِ الْكَفَالَةِ بِمَا ذَابَ لَهُ عَلَى فُلَانٍ [او] دا د "ما ذاب له على فلان" د کفالت په درجه کي دي [يعني لکه څرنګه چي داسي ويل صحيح دي: "پر فلانکي چي د چا قرض واجب سي زه د هغه کفيل يم". همداسي دا کفالت هم صحيح دی] وَلَوْ كَانَ الْغَرِيمُ لَمْ يُصَدِّقْهُ عَلَى الْوِكَالَةِ وَدَفَعَهُ إِلَيْهِ عَلَى ادِّعَائِهِ او که چيري مقروض پر وکالت د وکيل تصديق نه وکړي او [فقط] د وکيل د

دعوې كولو په وجه هغه ته مال وركړي فَإِنْ رَجَعَ صَاحِبُ الْمَالِ عَلَى الْغَرِيمِ نو كه [په دې صورت كي] قرضخواه پر مقروض [دوباره] رجوع وكړي رَجَعَ الْغَرِيمُ عَلَى الْوَكِيلِ نو مقروض به پر وكيل رجوع كوي لِأَنَّهُ لَمْ يُصَدِّقْهُ عَلَى الْوَكَالَةِ وَإِنَّمَا دَفَعَهُ إِلَيْهِ عَلَى رَجَاءِ الْإِجَازَةِ ځكه چي مقروض د وكالت په هكله د وكيل تصديق نه وو كړى بلكي صرف د اجازت په اُميد يې هغه ته مال وركړى وو [يعني په دې وجه يې وكيل ته د قرض مال وركړى وو چي شايد قرضخواه به هغه ته د قرض اخيستلو اجازت وركړى وي او هغه به يې د دې وكيل جوړ كړى وي] فَإِذَا انْقَطَعَ رَجَاؤُهُ لهذا كله چي د هغه اُميد ختم سو رَجَعَ عَلَيْهِ نو هغه به پر وكيل رجوع كوي وَكَذَا إِذَا دَفَعَهُ إِلَيْهِ عَلَى تَكْذِيبِهِ إِيَّاهُ فِي الْوَكَالَةِ او همدارنګه كله چي مقروض په وكالت كي د وكيل د تكذيب كولو په صورت كي هغه ته مال وركړي وَهٰذَا أَظْهَرُ او دا صورت زيات ښكاره دى لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه كوم چي مونږ ذكر كړى وَفِي الْوُجُوهِ كُلِّهَا لَيْسَ لَهُ أَنْ يَسْتَرِدَّ الْمَدْفُوعَ حَتّٰى يَحْضُرَ الْغَائِبُ او په دې ټولو صورتونو كي د غائب مؤكل له حاضرېدلو څخه مخكي مقروض ته دا اختيار نسته چي خپل وركول سوى مال [له وكيل څخه] واخلي لِأَنَّ الْمُؤَدّٰى صَارَ حَقًّا لِلْغَائِبِ ځكه چي اداء كړى سوى [وركول سوى] مال د غائب مؤكل حق ګرځېدلى دى إِمَّا ظَاهِرًا يا خو په ظاهري توګه [د هغه حق ګرځېدلى دى] أَوْ مُحْتَمَلًا يا په احتمالي توګه [يعني ياد دې احتمال سته چي دا د هغه ګرځېدلى دى] فَصَارَ كَمَا إِذَا دَفَعَهُ إِلَى فُضُولِيٍّ عَلَى رَجَاءِ الْإِجَازَةِ نو دا داسي سو لكه مقروض چي د اجازت په اُميد يو فضولي كس ته مال وركړي لَمْ يَمْلِكِ الِاسْتِرْدَادَ لِاحْتِمَالِ الْإِجَازَةِ نو [په دې صورت كي] د اجازت د احتمال په وجه مقروض د واپس اخيستلو ملكيت [اختيار] نه لري وَلِأَنَّ مَنْ بَاشَرَ التَّصَرُّفَ لِغَرَضٍ او ځكه چي كوم څوک د يو مقصد لپاره يو تصرف وكړي لَيْسَ لَهُ أَنْ يَنْقُضَهُ مَا لَمْ يَقَعِ الْيَأْسُ عَنْ غَرَضِهِ نو د هغه لپاره دا صحيح نه دي چي دا تصرف مات كړي تر څو چي هغه له خپل مقصد څخه نا اميده نه سي [يعني تر څو چي هغه له خپل غرض او مقصد څخه نا اُميده نه سي، تر هغه وخته هغه تصرّف نه سي ختمولاى].

**اللغات**: ﴿ضمنه﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: ضامن او ذمه وار ګرځول، (ضمان پر لازمول)، ﴿ادعاء﴾ دعوىٰ، دعوه، ﴿تكذيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: درواغجن ګڼل، درواغجن ګرځول، ﴿ذاب﴾ د

نصر د باب ماضي ده، کله چي د دې باب په صله کي يو حق (مثلا قرض) ذکر سي، نو د "ثابتېدلو" او "واجبېدلو" معنیٰ ورکوي، ﴿رجاء﴾ اميد، ﴿يأس﴾ نا اميدي.

**تشريح**: مخکي دا مسئله ذکره سوه چي که مؤکل د وکالت انکار وکړي (چي ما مدعي وکيل نه دی جوړ کړی) او مقروض چي کوم د قرض مال وکيل ته ورکړی وي هغه ضايع سوی وي، نو په دې صورت کي مقروض ته دا حق نسته چي له وکيل څخه هغه واپس واخلي، اوس په دې عبارت کي دا مسئله ذکر کوي چي که مقروض د مال ورکولو په وخت کي له وکيل څخه ضمانت اخيستی وي يعني وکيل دا اقرار کړی وي چي که مؤکل ستا څخه دوباره مال واخلي نو زه ستا لپاره د هغه مال ضامن يم (يعني د هغه ضمان [تاوان] زه درکوم)، نو که په داسي صورت کي مؤکل د وکالت انکار وکړي او له مقروض څخه دوباره مال واخلي، نو مقروض به له وکيل څخه هغه مال واپس اخلي، برابره ده هغه مال د وکيل سره موجود وي او که نه وي؛ ځکه دغه مقروض خو يو وار وکيل ته مال ورکړی دی، اوس ښکاره خبره ده چي کله قرضخواه دوباره له هغه څخه مال واخلي نو د وکيل او مقروض په ګومان کي هغه مال مضمون دی، نو ځکه قرضخواه مضمون عليه دی او وکيل د هغه ذمه واري او ضمانت اخيستی دی، نو وکيل چي د مقروض لپاره د کوم ضمانت اقرار کړی دی هغه په حقيقت کي د وکيل له طرفه کفالت (کفيل کېدل) دي، يعني ګواکي وکيل مقروض ته داسي ويلي دي چي "که قرضخواه دوباره ستا څخه مال واخلي نو زه د هغه کفيل يم"، او داسي کفالت صحيح دی، مثلاً که يو څوک ووايي "پر فلاني کس چي د چا قرض واجب سي زه د هغه کفيل يم"، نو دا کفالت صحيح دی، لهذا په پورتنۍ مسئله کي به هم کفالت صحيح وي.

**ولو كان الغريم إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که مقروض د وکيل د قول تصديق نه وکړي بلکي په دې باره کي سکوت اختيار کړي او فقط د وکيل د دعوې پر بناء هغه ته د قرض مال ورکړي او وروسته قرضخواه دوباره له مقروض څخه د قرض مال واخلي، نو په دې صورت کي هم مقروض ته دا حق سته چي له وکيل څخه هغه مال واپس واخلي؛ ځکه مقروض په دې اُميد او په دې مقصد وکيل ته د قرض مال ورکړی وو چي شايد قرضخواه به هغه د قرض اخيستلو وکيل جوړ کړی وي، لېکن کله چي قرضخواه د وکالت انکار وکړی او له مقروض څخه يې دوباره د قرض مال واخيستی نو د مقروض دغه اُميد او مقصد ختم سو، نو ځکه اوس به هغه ته دا حق او اختيار وي چي له وکيل څخه هغه د قرض مال واپس واخلي. همدارنګه که مقروض د وکيل تکذيب وکړي يعني مقروض هغه په خپل دعویٰ کي دروا‌غجن وګڼي او د هغه د وکالت انکار وکړي (چي ته قرضخواه د قرض اخيستلو وکيل نه يې جوړ کړی!) او بيا هغه ته د قرض مال ورکړي، نو په دې صورت کي هم مقروض ته دا حق سته چي له

وكيل څخه هغه مال واپس واخلي؛ ځکه چي په دې صورت کي هم د هغه اُميد ختم سو. او دا د تکذيب صورت له مخکنيو صورتونو څخه ښکاره دی (يعني د تکذيب په صورت کي مال واپس اخيستل د تصديق مع التضمين او سکوت په صورتونو کي له مال واپس اخيستلو څخه زيات ښکاره دي)، ځکه د تکذيب په صورت کي د صراحت او دلالت دواړو په اعتبار سره د وکيل د تصديق احتمال ختم سو (ځکه ښکاره خبره ده چي کله مقروض يو وار د هغه تکذيب وکړی نو بيا بالکل د هغه تصديق نه سي کولای)، نو ځکه په دې صورت کي به په درجه اولیٰ مقروض ته له وکيل څخه د مال واپس اخيستلو حق وي.

وفي الوجوه كلها إلخ: په کومو صورتونو کي چي مقروض ته د مال واپس اخيستلو حق ورکول سوی دی، په هغه ټولو صورتونو کي د غائب مؤکل له حاضرېدلو څخه مخکي مقروض ته د واپس اخيستلو حق نسته؛ ځکه مقروض چي وکيل ته کوم مال ورکړی دی هغه د غائب مؤکل حق ګرځېدلی دی، همدارنګه کله چي مقروض سکوت اختيار کړي يا هغه د وکيل تکذيب وکړي او وکيل ته مال ورکړي نو په دې صورت کي د دې احتمال سته چي هغه د غائب حق ګرځېدلی دی، لهذا کله چي هغه د غائب حق دی، نو ښکاره خبره ده چي د غائب له حاضرېدلو څخه مخکي به د هغه مال په باره کي نه يو فيصله کيږي او نه به مقروض ته دا اختيار وي چي له وکيل څخه هغه واپس واخلي. د دې مثال داسي دی لکه مقروض چي يو فضولي کس (پردي سړي) ته په دې اُميد د قرض مال ورکړي چي شايد قرضخواه به هغه ته (د قرض اخيستلو) اجازت ورکړي وي او قرضخواه به له هغه څخه قرض واخلي، نو په دې صورت کي چي تر څو قرضخواه حاضر نه سي او له فضولي څخه د اخيستلو انکار نه وکړي (چي ته څوک يې!، زه ستا د لاس څخه قرض نه اخلم بلکي زه يې له مقروض څخه غواړم)، نو تر هغه وخته مقروض ته دا اختيار نسته چي له فضولي څخه د قرض مال واپس واخلي، همداسي په پورتني صورتونو کي هم چي تر څو مؤکل حاضر نه سي، تر هغه وخته مقروض ته دا اختيار نسته چي له وکيل څخه مال واپس واخلي.

دويم دليل دا دی چي کله يو سړي د يو غرض او مقصد لپاره کار کړی وي، نو تر څو چي هغه د خپل غرض له پوره کېدلو څخه نا اميده نه سي، تر هغه وخته ده ته د خپل کار د ختمولو او تصرف ماتولو اختيار نسته. او څرنګه چي په پورتني مسئله کي مقروض په دې غرض او په دې اُميد وکيل ته مال ورکړی دی چي زه له قرض څخه بري سم او زما غاړي خلاصي سي، لهذا تر څو چي هغه د دې غرض او مقصد له پوره کېدلو څخه نا اميده نه سي، تر هغه وخته ده ته د خپل تصرف ماتولو (يعني له وکيل څخه د مال واپس اخيستلو) اختيار نسته. او د غرض پوره کېدل او نه پوره کېدل هغه وخت معلومېږي کله چي قرضخواه حاضر سي، نو لنډه دا چي تر څو قرضخواه حاضر نه سي، تر هغه وخته مقروض ته دا اختيار نسته چي له وکيل څخه مال واپس واخلي.

## د امانت (وديعت) واپس اخيستلو د وكالت دعوىٰ

وَمَنْ قَالَ إِنِّي وَكِيلٌ بِقَبْضِ الْوَدِيعَةِ او كه څوک ووايي: چي زه [د دې] امانت د قبضه كولو وكيل يم فَصَدَّقَهُ الْمُودَعُ او مُودَع [امانت ساتونكى] د هغه تصديق وكړي لَمْ يُؤْمَرْ بِالتَّسْلِيمِ إِلَيْهِ نو مُودَع به هغه ته د امانت په ورسپارلو سره نه امر كيږي ايعني په دې صورت كي به مُودَع ته دا حكم نه كيږي چي مدعي ته امانت وسپاره!] لِأَنَّهُ إِقْرَارٌ بِمَالِ الْغَيْرِ ځكه چي دا د بل چا پر مال اقرار كول دي بِخِلَافِ الدَّيْنِ په خلاف د قرض وَلَوِ ادَّعَىٰ أَنَّهُ مَاتَ أَبُوهُ وَتَرَكَ الْوَدِيعَةَ مِيرَاثًا لَهُ او كه څوک دا دعوىٰ وكړي چي زما پلار مړ سو او هغه [دا] امانت زما لپاره په ميراث كي پرېښوو وَلَا وَارِثَ لَهُ غَيْرُهُ حال دا چي له مدعي [څخه] بغير د هغه [ميّت] بل هيڅ وارث نه وي وَصَدَّقَهُ الْمُودَعُ او مُودَع د هغه تصديق وكړي أُمِرَ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ نو مُودَع به هغه ته د امانت په وركولو سره امر كيږي لِأَنَّهُ لَا يَبْقَىٰ مَالُهُ بَعْدَ مَوْتِهِ ځكه چي دا امانت د مودِع [ميّت] تر مرګ وروسته د هغه مال پاته نه سو [يعني كله چي مودِع (امانت ايښونكى) مړ سو نو امانت مال د هغه له ملكيت څخه ووتى او د وارث (ځوى) وملكيت ته منتقل سو] فَقَدِ اتَّفَقَا عَلَىٰ أَنَّهُ مَالُ الْوَارِثِ نو مُودَع او مدعي دواړو پر دې اتفاق وكړى چي هغه د وارث مال دى وَلَوِ ادَّعَىٰ أَنَّهُ اشْتَرَى الْوَدِيعَةَ مِنْ صَاحِبِهَا او كه څوک دعوىٰ وكړي چي ما د امانت له خاوند [مودِع] څخه [دا] امانت رانيولى دى فَصَدَّقَهُ الْمُودَعُ او مُودَع د هغه تصديق وكړى لَمْ يُؤْمَرْ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ نو مودَع به مدعي ته په مال وركولو سره نه امر كيږي [يعني هغه ته به دا حكم نه كيږي چي مدعي ته مال وركړه!] لِأَنَّهُ مَا دَامَ حَيًّا كَانَ إِقْرَارًا بِمِلْكِ الْغَيْرِ ځكه تر څو چي مودِع ژوندى وي، دا به د بل چا د ملكيت اقرار كول وي لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِهِ ځكه چي مودِع د ملكيت اهل دى [يعني تر څو چي مودِع ژوندى وي، هغه د ملكيت دى اهل دى] فَلَا يُصَدَّقَانِ فِي دَعْوَى الْبَيْعِ عَلَيْهِ نو ځكه د مودِع په خلاف د بيع په دعوىٰ كولو كي به د [مدعي او مودَع] دواړو تصديق نه كيږي.

**اللغات:** ﴿وديعة﴾ امانت، امانت مال. ﴿مودَع﴾ كوم چا ته چي امانت ايښوول سوى وي، هغه ته "مُودَع" وايي چي هغه ته په بله وينا "امانت ساتونكى (امين)" هم وايي. او چا چي امانت ور ته ايښى وي يعني د امانت مالك، هغه ته "مُودِع" (بكسر الدال)" وايي. ﴿لم يؤمر﴾ د نصر له بابه د جحد صيغه ده: امر كول، حكم كول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د زید سره د خالد مال د امانت په توګه پروت وي، او ادريس دا دعوئ وکړي چې زه د خالد له طرفه پر دې امانت مال د قبضه کولو وکيل يم او مُودَع يعني زيد په دې باره کې د مدعي (ادريس) تصديق هم وکړي، نو د دغه تصديق باوجود به مودَع (زيد) ته دا حکم نه کيږي چې د امانت مال مدعي ته وسپاره! ؛ ځکه چې د دې مال مالک مودِع (امانت اېښونکی) يعني خالد دی، لهذا د مودَع له طرفه د مدعي د قبضې تصديق کول په حقيقت کې داسې دي لکه د بل چا پر مال د قبضې اقرار کول، او بل چا پر مال د قبضې اقرار کول صحيح نه دي، او کله چې اقرار کول صحيح نه دي، نو ځکه دا حکم به هم نه کيږي چې مدعي ته امانت امال وسپارل سي.

د دې په خلاف که پر يو سړي قرض باندي وي، مثلاً د خالد پر زيد قرض باندي وي، بيا يو څوک دا دعوئ وکړي چې زه د قرضخواه (خالد) له طرفه پر دې قرض د قبضه کولو وکيل يم او مقروض (زيد) د هغه تصديق وکړي، نو په دې صورت کې به قاضي و مقروض ته حکم کوي چې قرض مدعي ته وسپاره! ؛ ځکه چې قرضونه بامثالها اداء کيږي، لهذا د مقروض له طرفه د مدعي د دعوې او قبضې تصديق کول داسې دي لکه پر خپل ځان اقرار کول، او د خپل ځان په خلاف د انسان اقرار کول صحيح دي، نو ځکه په دې صورت کې به دا حکم کيږي چې قرض مدعي ته وسپارل سي.

ومن ادعى أنه إلخ: د دې حاصل دا دی که يو څوک دعوئ وکړي چې زما پلار (مثلا خالد) مړ سو او د فلانکي سړي سره د هغه مال امانتاً پروت دی او هغه دا مال زما لپاره په ميراث کې پرې اېښی دی، او له دغه مدعي څخه بغير د مړي (خالد) بل هيڅ څوی او وارث نه وي، او مودَع د هغه د دعوې تصديق وکړي، نو په دې صورت کې به مودَع ته حکم کيږي چې دا امانت مال مدعي ته وسپاره! ؛ ځکه د مودِع (خالد) له مرګ څخه وروسته دا مال د هغه له ملکيت څخه ووتی او د هغه د وارث ملکيت ته منتقل سو، او څرنګه چې له مدعي څوی څخه بغير د هغه بل هيڅ وارث نسته او مدعي او مودَع دواړه وارث (مدعي) ته د مال په ورکولو متفق او راضي سوي دي، نو ځکه مودَع ته به حکم کيږي چې د امانت مال مدعي ته حواله کړي.

ولو ادعى أنه اشترى إلخ: د دې حاصل دا دی که د يو سړي (مثلا د خالد) مال د يو چا سره امانتاً پروت وي، او بيا يو څوک دعوئ وکړي چې ما له مودِع (خالد) څخه دا مال رانيولی دی او مودَع د هغه تصديق وکړي، نو په دې صورت کې به هم مودَع ته دا حکم نه کيږي چې مدعي ته امانت مال وسپاره! ؛ ځکه تر څو چې مودِع ژوندی وي، هغه د دې مال مالک دی، لهذا د مودَع له طرفه د مدعي د قول تصديق کول داسې دي لکه د بل چا پر مال اقرار کول، او دا صحيح نه دي، نو ځکه د مودِع په خلاف به د مودَع او مدعي د قول

تصديق نه کيږي او بيع به نه ثابتيږي، او ښکاره خبره ده چي کله بيع ثابته نه سوه، نو مودَع ته به دا حکم هم نه کيږي چي امانت امال مدعي ته وسپاري. (احسن الهدايه)

## د مقروض له طرفه د قرض اخيستلو دعوىٰ

قَالَ: فَإِنْ وَكَّلَ وَكِيْلًا بِقَبْضِ مَالِهِ فرمايي: که يو سړی بل څوک پر خپل مال د قبضه کولو وکيل جوړ کړي [چي له فلانکي مقروض شخه ته زما مال (قرض) واخله!] فَادَّعَى الْغَرِيمُ أَنَّ صَاحِبَ الْمَالِ قَدِ اسْتَوْفَاهُ بيا مقروض دا دعوىٰ وکړي چي د مال خاوند [قرضخواه] خو خپل مال اخيستى دى فَإِنَّهُ يَدْفَعُ الْمَالَ إِلَيْهِ نو [په دې صورت کي] به مقروض وکيل ته مال ورکوي لِأَنَّ الْوَكَالَةَ قَدْ ثَبَتَتْ بِالتَّصَادُقِ ځکه چي وکالت د دواړو په اتفاق سره ثابت سو وَالِاسْتِيفَاءُ لَمْ يَثْبُتْ بِمُجَرَّدِ دَعْوَاهُ او [د مال] اخيستل محض د مقروض په دعوىٰ سره ثابت نه سوه فَلَا يُؤَخَّرُ الْحَقُّ نو ځکه حق به نه ځنډول کيږي قَالَ: وَيَتْبَعُ رَبُّ الْمَالِ فرمايي: او مقروض به په قرضخواه پسي کيږي فَيَسْتَحْلِفُهُ او له هغه شخه به قسم اخلي رِعَايَةً لِجَانِبِهِ د دې لپاره چي د مقروض د طرف رعايت وسي وَلَا يَسْتَحْلِفُ الْوَكِيْلُ او له وکيل شخه به قسم نه اخلي لِأَنَّهُ نَائِبُهُ ځکه چي هغه د خپل مؤکل نائب دى.

**اللغات**: ﴿استوفاه﴾ د استفعال د باب ماضي ده، إِسْتَوْفَى يَسْتَوْفِيْ إِسْتِيْفَاءً: حق اخيستل، ترلاسه کول. ﴿تصادق﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو د بل تصديق کول، پر يو خبره اتفاق کول. ﴿مجرد﴾ محض، صرف. ﴿يتبع﴾ له سمع او افتعال دواړو شخه ويل کېدای سي: په چا پسي تلل، په پسي کول، تابع کېدل. ﴿يستحلفه﴾ د استفعال د باب مضارع ده: د قسم اخيستلو مطالبه کول، له يو چا شخه قسم اخيستل.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که يو قرضخواه د خپل قرض د اخيستلو (ترلاسه کولو) لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي (چي ته ورسه! له فلانکي مقروض شخه زما قرض واخله!)، او وکيل چي کله له مقروض شخه د قرض مطالبه وکړه، نو مقروض وويل چي "قرضخواه خو مخکي لا زما شخه خپل قرض اخيستى دی او پر هغه يې قبضه کړې ده"، نو په دې صورت کي اخيستل (استيفاء) نه ثابتيږي او صرف په دغه دعوىٰ سره مقروض نه بري کيږي بلکي هغه به وکيل ته د قرض مال ورکوي؛ ځکه

چي دلته د مقروض او وکيل دواړو په اتفاق سره وکالت ثابت سوی دی (يعني مقروض د وکيل سره پر دې خبره متفق دی چي هغه وکيل دی)، لېکن مقروض چي کوم د اخيستلو دعوی کړې ده، هغه له دليل څخه خالي ده، نو ځکه اخيستل (استيفاء) به نه ثابتيږي، لهذا د وکيل چي کوم حق دی يعني له مقروض څخه قرض اخيستل، هغه حق به ده ته فوراً ورکول کيږي او مقروض ته به حکم کيږي چي د قرض مال وکيل ته وسپاري.

قال ويتبع إلخ: څرنګه چي په پورتني صورت کي د مقروض هيڅ رعايت نه دی سوی او په ظاهره د هغه سره زياتوب سوی دی، نو ځکه د مقروض د لحاظ ساتلو او رعايت کولو په خاطر به هغه ته دا اختيار وي چي وکيل ته له قرض ورکولو څخه وروسته سمدستي په قرضخواه پسې سي او تر څو چي له هغه څخه قسم نه واخلي، تر هغه وخته دي يې نه پرېږدي، نو که چيري قرضخواه قسم واخلي چي "ما له مقروض څخه قرض نه دی اخيستی"، نو د وکيل له طرفه اخيستل سوی مال به قرض شمارل کيږي يعني په هغه سره قرض اداء کيږي او مقروض بري کيږي. او که قرضخواه له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، يا داسي ووايي چي "ما له مقروض څخه مخکي لا خپل قرض اخيستی دی"، نو بيا به مقروض وکيل تر ګرېوان نيسي او له هغه څخه به خپل مال واپس اخلي، لېکن له وکيل څخه به قسم نه اخيستل کيږي (يعني وکيل ته به داسي نه ويل کيږي چي ته مثلاً دا قسم واخله! چي "زه په دې خبره نه يم چي قرضخواه خپل قرض اخيستی دی")؛ ځکه چي وکيل د قرضخواه نائب دی او په قسم کي نيابت نه چليږي، نو ځکه د قسم اخيستلو کار به قرضخواه کوي، نه وکيل.

## د عيب په وجه د مبيع واپس کولو لپاره وکيل جوړول

قَالَ: وَمَنْ وَكَّلَهُ بِعَيْبٍ فِيْ جَارِيَةٍ فرمايي: او که يو سړی بل څوک د عيب په وجه د مينځي واپس کولو وکيل جوړ کړي فَادَّعَى الْبَائِعُ رِضَا الْمُشْتَرِيْ او بائع د مشتري د رضا کېدلو دعوی وکړي [چي مشتري په دې عيب راضي سوی دی] لَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتّٰى يَحْلِفَ الْمُشْتَرِيْ نو وکيل هغه مينځه بائع ته نه سي واپس کولای تر دې چي مشتري قسم واخلي بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الدَّيْنِ په خلاف د قرض د مسئلې لِأَنَّ التَّدَارُكَ مُمْكِنٌ هُنَالِكَ ځکه چي هلته [د غلطۍ] تدارک ممکن دی بِاسْتِرْدَادِ مَا قَبَضَهُ الْوَكِيلُ إِذَا ظَهَرَ الْخَطَأُ عِنْدَ نُكُولِهِ په واپس اخيستلو سره د هغه مال کوم چي وکيل قبضه کړی دی کله چي [له قسم څخه] د قرضخواه د انکار کولو په وخت کي غلطي ښکاره سي [يعني هلته په دې توګه د غلطۍ تدارک ممکن دی چي کله له قسم څخه د قرضخواه د انکار کولو په وخت کي غلطي ښکاره سي نو وکيل چي (له

مقروض شخه) کوم مال اخيستی وي هغه دي له وکيل شخه واپس واخيستل سي] وَهٰهُنَا غَيْرُ مُمْكِنٍ او دلته [د مينځي په مسئله کي] تدارک ممکن نه دی لِأَنَّ الْقَضَاءَ بِالْفَسْخِ مَاضٍ عَلَى الصِّحَّةِ وَإِنْ ظَهَرَ الْخَطَأُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ ځکه چي د بيع د فسخ کېدلو [ماتېدلو] فيصله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د بيع پر صحت نافذيږي، که څه هم غلطي ښکاره سي كَمَا هُوَ مَذْهَبُهُ لکه څرنګه چي همدا د هغه مذهب دی وَلَا يُسْتَحْلَفُ الْمُشْتَرِيْ عِنْدَهُ بَعْدَ ذٰلِكَ او تر دې وروسته به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له مشتري څخه قسم نه اخيستل کيږي لِأَنَّهُ لَا يُفِيدُ ځکه چي د دې هيڅ فايده نسته وَأَمَّا عِنْدَهُمَا❀ قَالُوا: يَجِبُ أَنْ يَتَّحِدَ الْجَوَابُ عَلٰى هٰذَا فِي الْفَصْلَيْنِ وَلَا يُؤَخَّرُ او پاته سو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز نو مشايخو ويلي دي: چي [د هغو په نېز] په دواړو صورتونو [دواړو مسئلو] کي حکم يو کېدل پکار دي او [هغه دا چي په دواړو مسئلو کي] فيصله به نه ځنډول کيږي لِأَنَّ التَّدَارُكَ مُمْكِنٌ عِنْدَهُمَا لِبُطْلَانِ الْقَضَاءِ ځکه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د فيصلې په باطلولو [ماتولو] سره تدارک ممکن دی وَقِيْلَ: الْأَصَحُّ عِنْدَ أَبِي يُوْسُفَ أَنْ يُؤَخَّرَ فِي الْفَصْلَيْنِ او ويل سوي دي: چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز صحيح دا ده چي په دواړو صورتونو کي به فيصله ځنډول کيږي لِأَنَّهُ يَعْتَبِرُ النَّظَرَ ځکه چي هغه [د مقروض او بائع] د مصلحت اعتبار کوي حَتّٰى يُسْتَحْلَفَ الْمُشْتَرِيْ لَوْ كَانَ حَاضِرًا مِنْ غَيْرِ دَعْوَى الْبَائِعِ تر دې چي که مشتري حاضر وي نو د بائع له دعوی څخه بغير به له هغه څخه قسم اخيستل کيږي [يعني همدا وجه ده چي که مشتري حاضر وي او د هغه وکيل د عيب په وجه مينځه بائع ته واپس کړي، نو که څه هم په دې صورت کي بائع د راضي کېدلو دعوی نه وکړي، بيا به هم له مشتري څخه قسم اخيستل کيږي او د هغه تر قسم پوري به انتظار کيږي] فَيُنْتَظَرُ لِلنَّظَرِ نو ځکه د مصلحت لپاره به [دلته هم] انتظار کيږي.

**اللغات**: ﴿لم يردّ﴾ د نصر له بابه د جحد صيغه ده: واپس کول. ﴿يؤخر﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: مؤخر کول، ځنډول، وروسته کول. ﴿فصلين﴾ تثنيه د فَصْلٌ ده چي د هغه يو معنیٰ ده: صورت. ﴿النظر﴾ مصلحت (ښېګڼه)، شفقت.

❀ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۴۶۱)، وملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۳۳۷).[القول الراجح ج:۲، ص:۱۶۴]

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړي مینځه خرڅه کړه او بیا مشتري په مینځه کي یو عیب ولیدی، او د هغه عیب په وجه مشتري بل څوک د مینځي د واپس کولو وکیل جوړ کړی (چي ته! دا مینځه بائع ته واپس کړه!)، او کله چي وکیل د مینځي د واپس کولو لپاره بائع ته ولاړی، نو بائع وویل چي "مشتري خو په دې عیب راضي سوی دی، لهذا زه مینځه نه غواړم"، نو د بائع دا قول معتبر دی او تر څو چي مشتري په دې باره کي قسم نه واخلي، تر هغه وخته به دا حکم او فیصله نه کیږي چي وکیل هغه مینځه بائع ته واپس کړي، خلاصه دا چي په دې صورت کي به قاضي د مشتري تر قسم اخیستلو مخکي د بائع وطرف ته د مینځي د واپس کولو فیصله نه کوي.

د دې په خلاف د قرض والا په صورت کي به د قرضخواه له قسم اخیستلو څخه بغیر مقروض ته دا حکم کیږي چي د قرض مال وکیل ته ورکړي (لکه مخکي چي ذکر سوه)، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي په دې دواړو مسئلو کي فرق دا دی چي که د قرض والا په مسئله کي د مقروض له طرفه وکیل ته مال ورکول غلط ثابت سي (یعني دا ثابته سي چي قرضخواه خو مخکي لا خپل قرض اخیستی دی، لهذا اوس له مقروض څخه دوباره د هغه اخیستل غلط دي)، نو د دې غلطۍ تدارک ممکن دی په دې توګه چي مقروض وکیل ته کوم مال ورکړی دی، هغه دي له وکیل څخه واپس واخلي، لېکن د مینځي والا مسئله کوم چي دلته بیان سوې ده، که په دې مسئله کي د مینځي واپس کول غلط ثابت سي، نو د هغه تدارک ممکن نه دی؛ ځکه کله چي بائع ته مینځه واپس کړی سي نو ښکاره خبره ده چي بیع فسخ سوه، او وروسته که څه هم دا ثابته سي چي وکیل په غلطه او ناحقه توګه بائع ته مینځه واپس کړې ده، نو بیا هم دا فسخ سوی بیع بیرته نه بحاله کیږي بلکي هغسي فسخ پاتیږي، ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز په عقود او فسوخ کي د قاضي فیصله ظاهراً هم نافذیږي او باطناً هم نافذیږي، او څرنګه چي دلته د قاضي په فیصله سره مبیع (مینځه) د بائع وطرف ته واپس کیږي، نو ځکه وروسته به هغه نه مشتري ته واپس کېدای سي، او نه به له مشتري څخه قسم اخیستل کېدای سي، ځکه اوس له مشتري څخه قسم اخیستل هیڅ فایده نه کوي، ځکه چي اوس د مشتري وطرف ته مبیع واپس کول ممکن نه دي، که څه هم هغه په عیب راضي سي، نو ځکه وویل سوه چي د مشتري تر قسم اخیستلو مخکي به د واپس کولو حکم او فیصله نه کیږي.

**أما عندهما إلخ**: د دې حاصل دا دی چي په مذکوره دواړو مسئلو کي چي کوم فرق دی، هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دی، کنې د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د قرض او د مینځي دواړو صورتونو حکم یو دی، یعني څرنګه چي د قرض والا په مسئله کي د قرضخواه له قسم اخیستلو څخه بغیر مقروض ته د مال ورکولو حکم کیږي (چي ته وکیل ته د قرض مال ورکړه!)، همداسي به د مینځي والا په

مسئله کي هم د مشتري له قسم اخيستلو څخه بغير د مينځي د واپس کولو حکم او فيصله کيږي؛ ځکه چي د صاحبينو په نېز د قاضي فيصله صرف ظاهراً نافذيږي، نه باطناً. نو ځکه د قرض والا مسئلې په څېر دلته هم تدارک ممکن دی په دې توګه چي د قاضي فيصله ماته کړی سي او له بائع څخه مينځه واخيستل سي او بيرته مشتري ته واپس کړی سي، نو ځکه د هغو په نېز به د مشتري قسم ته انتظار نه کيږي بلکي د هغه تر قسم اخيستلو مخکي به د مينځي د واپس کولو حکم او فيصله کيږي.

**قيل الأصح إلخ**: فرمايي: د ځيني مشايخو قول دا دی چي د صحيح قول مطابق د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د قرض او مينځي والا په دواړو مسئلو کي به د قرضخواه او مشتري تر قسم اخيستلو پوري فيصله ځنډول کيږي (يعني په دواړو مسئلو کي به تر قسم اخيستلو مخکي حکم او فيصله نه کيږي، بلکي انتظار به کيږي)؛ ځکه چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د مقروض او بائع دواړو په حق کي د مصلحت و شفقت رعايت کوي، او مصلحت و شفقت هغه وخت ثابتيږي کله چي د قرض والا په مسئله کي د قرضخواه تر قسم اخيستلو مخکي مقروض ته د قرض ورکولو حکم او فيصله نه وسي (چي ته وکيل ته د قرض مال ورکړه!) او د مينځي په مسئله کي د مشتري تر قسم اخيستلو مخکي هغه ته د واپس کولو حکم او فيصله نه وسي (چي ته بائع ته مينځه واپس کړه!)، نو په دې توګه به د مقروض او بائع په حق کي مصلحت او شفقت هم ثابت سي او د قاضي فيصله به له بطلان څخه هم خوندي سي، همدا وجه ده که مشتري موجود وای نو د بائع له دعوې څخه بغير به اول له هغه څخه قسم اخيستل کېدای او بيا به فيصله کېدای، نو ځکه د مشتري د غائب والي په صورت کي (يعني د مينځي په مسئله کي) به هم د هغه تر قسم اخيستلو پوري د مبيع د واپس کولو فيصله ځنډول کيږي.

## د نفقه رانيولو د وکالت په صورت کي له خپل طرفه د ثمن اداء کولو حکم او تفصيل

قَالَ: وَمَنْ دَفَعَ إِلَىٰ رَجُلٍ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ لِيُنْفِقَهَا عَلَىٰ أَهْلِهِ فرمايي: او که څوک يو سړي ته لس درهمه ورکړي د دې لپاره چي هغه دا لس درهمه د هغه پر اهل وعيال خرچ کړي [يعني په دې سره هغو ته نفقه او خوراکه رانيسي] فَأَنْفَقَ عَلَيْهِمْ عَشَرَةً مِنْ عِنْدِهِ بيا هغه سړی له خپل طرفه پر هو لس درهمه خرچ کړي فَالْعَشَرَةُ بِالْعَشَرَةِ نو دا لس درهمه د هغه لس درهمو عوض ګرځي [مطلب دا چي دا سړی به د خپل

لس درهمو په بدله کي هغه لس درهمه اخلي] لِأَنَّ الْوَكِيلَ بِالْإِنْفَاقِ وَكِيلٌ بِالشِّرَاءِ ځکه چي د خرچ کولو وکيل د رانيولو [وکيل] هم وي وَالْحُكْمُ فِيهِ مَا ذَكَرْنَاهُ او د رانيولو [شراء] په باره کي هغه حکم دی کوم چي [مخکي] موږ ذکر کړی دی وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ او هغه موږ ثابت کړی [هم] دی فَهٰذَا كَذٰلِكَ نو ځکه د دې به هم هغه حکم وي وَقِيْلَ: هٰذَا اسْتِحْسَانٌ او ويل سوي دي: چي دا استحسان دی وَفِي الْقِيَاسِ لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ او په قياس کي هغه ته د دې حق نسته [چي د خپل لس درهمو په عوض کي هغه لس درهمه واخلي] وَيَصِيْرُ مُتَبَرِّعًا او هغه متبرّع ګرځي وَقِيْلَ: الْقِيَاسُ وَالِاسْتِحْسَانُ فِي قَضَاءِ الدَّيْنِ ۞ او ويل سوي دي: چي قياس او استحسان د قرض په اداء کولو کي دي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِشِرَاءٍ ځکه چي هغه رانيول نه دي [يعني په قرض اداء کولو کي د رانيولو معامله نسته] فَأَمَّا الْإِنْفَاقُ يَتَضَمَّنُ الشِّرَاءَ او کوم چي خرچ کول [نفقه رانيول] دي نو هغه رانيولو لره شامل دي فَلَا يَدْخُلَانِهِ نو ځکه په هغه کي به قياس او استحسان نه داخليږي.

**اللغات**: ﴿يُنفقها﴾ د افعال د باب مضارع ده: خرچول، خرچ کول، نفقه کول. ﴿يتضمن﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: ضمناً شاملېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی يل څوک وکيل جوړ کړي او هغه ته لس درهمه ورکړي او حکم وکړي چي "ته په دې دراهمو سره زما داهل وعيال لپاره نفقه رانيسه!"، لېکن وکيل د خپل جيب په لسو درهمو سره نفقه رانيسي، نو د وکيل دا لس درهمه د هغه لس درهمو عوض ګرځي کوم چي هغه سړي (مؤکل) وکيل ته ورکړي دي، او دا وکيل به په انفاق (خرچ کولو) يعني په نفقه رانيولو کي متبرّع نه شمارل کيږي (يعني دا حکم به نه کيږي چي وکيل د مؤکل داهل وعيال سره داحسان

۞ القول الراجح: هو الاستحسان، قال العلامة قاضي زاده آفندي رَحِمَهُ الله: قالو في شروح الجامع الصغير أيضًا: مِن المشائخ مَن قال: ليس في قضاء الدين معنى الشراء، فورد فيه القياس والاستحسان الذان ذكرهما محمد في الأصل، أما الإنفاق ففيه شراء، فلم يختلف فيه وجه القياس والاستحسان، بل صح ذلك قياساً واستحساناً، حتى رجع الوكيل على الموكل بما أنفق قياساً واستحساناً، وتمامه في نتائج الأفكار تكملة فتح القدير (ج:۷، ص:۱۲۷). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۶۵]

او تبرع کولو لپاره لس درهمه له خپل جیب څخه ورکړي دي نو ځکه هغه لس درهمه به د مؤکل د لس درهمو عوض نه ګرځي. بلکي هغه عوض ګرځي یعني وکیل به د خپل لس درهمو په عوض کي د مؤکل لس درهمه اخلي)؛ ځکه چي وکیل بالانفاق وکیل بالشراء وي (مطلب دا چي څوک د خرڅ کولو او نفقه راوړلو وکیل وي، نفقه هغه رانیسي)، او تاسو ته معلومه ده چي کله د رانیولو وکیل (وکیل بالشراء) له خپل طرفه ثمن اداء کړي، نو هغه ته دا حق سته چي له مؤکل څخه خپل ثمن اخلي. نو ځکه د انفاق وکیل ته به هم دا حق او اجازه وي چي خپل خرڅ کړل سوی ثمن له مؤکل څخه واخلي.

وقیل هذا استحسان إلخ: فرمایي: د ځیني مشایخو په نیز پورتنی حکم پر استحسان مبني دی، کنې د قیاس تقاضا دا ده چي وکیل بالانفاق به په خپل خرڅ کړل سوي دراهمو کي متبرّع شمارل کیږي او هغه ته به دا حق نه وي چي د خپل دراهمو په عوض کي د مؤکل دراهم واخلي.

وقیل إلخ: لیکن د ځیني مشایخو رایه دا ده چي د قیاس او استحسان تعلق د دې مسئلې سره نسته، بلکي هغه دواړه د قرض اداء کولو د وکالت سره متعلق دي، مثلاً که یو سړی وکیل ته زر درهمه ورکړي او هغه ته ووایي چي "په دې سره زما قرض اداء کړه!"، او بیا وکیل په خپل مال سره د هغه سړي (مؤکل) قرض اداء کړي، نو استحساناً د هغه لپاره دا جائز دي چي د مؤکل مال (زر درهمه) واخلي، لیکن قیاساً د هغه لپاره دا صحیح نه دي او د قرض په اداء کولو کي قیاساً هغه متبرّع شمارل کیږي؛ ځکه چي قرض اداء کول شراء (رانیول) نه دي، نو ځکه که وکیل د مؤکل په مال سره قرض اداء کړي، نو دا خو صحیح دي، لیکن که هغه په خپل مال سره قرض اداء کړي، نو هغه به متبرّع وي او پر هغه به دا لازم وي چي د مؤکل مال (زر درهمه) هغه ته واپس کړي.

د دې په خلاف وکیل بالانفاق د شراء یعني د رانیولو وکیل دی او انفاق شراء (رانیولو) لره متضمن او شامل دي، نو ځکه په هغه کي به استحسان او قیاس نه جاري کیږي. او څرنګه چي وکیل بالشراء که له خپل طرفه ثمن اداء کړي، نو هغه ته له مؤکل څخه د ثمن اخیستلو حق حاصلیږي، همداسي که وکیل بالانفاق له خپل طرفه ثمن اداء کړي، نو هغه ته به هم دا حق حاصل وي.



# بَابُ عَزْلِ الْوَكِيْلِ

(دا) باب د وکيل معزوله کولو (په بيان کې) دی

**تشريح:** څرنګه چې وکيل جوړول (وکيل مقرر کول) د هغه له معزوله کولو څخه مخکې وي، يعني اول يو څوک وکيل جوړول کيږي او تر هغه وروسته له وکالت څخه معزولول کيږي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د ترتيب په رعايت کولو سره اول د وکيل جوړولو يعني د وکالت او توکيل ابواب بيان کړل، اوس تر هغه وروسته د وکيل معزوله کولو باب بيانوي.

## د عزل اختيار او د هغه عقلي دليل

قَالَ: وَلِلْمُوَكِّلِ أَنْ يَعْزِلَ الْوَكِيلَ عَنِ الْوَكَالَةِ فرمايي: او مؤکل ته دا اختيار سته چې خپل وکيل له وکالت څخه معزوله کړي لِأَنَّ الْوَكَالَةَ حَقُّهُ ځکه چې وکالت دمؤکل حق دی فَلَهُ أَنْ يُبْطِلَهُ نو ځکه هغه ته به د دې اختيار وي چې خپل حق باطل کړي إِلَّا إِذَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْغَيْرِ مګر دا چې د وکالت سره د بل چا متعلق وي بِأَنْ كَانَ وَكِيلًا بِالْخُصُومَةِ بِطَلَبٍ مِنْ جِهَةِ الطَّالِبِ په دې توګه چې يو څوک د مدعي په غوښتنه [مطالبه] سره وکيل بالخصومت وي لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّ الْغَيْرِ ځکه چې په دې صورت کې د بل چا د حق باطلول سته وَصَارَ كَالْوَكَالَةِ الَّتِي تَضَمَّنَهَا عَقْدُ الرَّهْنِ او دا د هغه وکالت په شان سو چې هغه لره عقد رهن متضمن وي.

**اللغات:** ﴿يعزل﴾ د ضرب مضارع ده: معزوله کول، برطرفه کول، ګوښه کول (له منصبه ليري کول)، ﴿خصومت﴾ جنګ، دعویٰ کول، دعویٰ پېشول، تفصيلي معنیٰ يې مخکې تېره سوې ده، ﴿تضمّن﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: ضمناً شاملېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې مؤکل هر وخت وغواړي، خپل وکيل له وکالت څخه معزوله کولای سي؛ ځکه چې وکالت صرف د هغه حق دی، او صاحب الحق (د حق خاوند) ته د دې پوره اختيار سته چې خپل حق باطل کړي. ها! که د وکالت سره د بل چا حق متعلق وي، نو په دې صورت کې مؤکل د صاحب الحق له رضا څخه بغير وکيل نه سي معزوله کولای، مثلاً مدعي د قاضي په مجلس کې دا غوښتنه وکړي چې د مدعیٰ عليه له طرفه دې يو څوک د خصومت وکيل مقرر کړی

سي (د دې لپاره چې زه د هغه سره خصومت وکړم)، او قاضي د مدعیٰ علیه له طرفه يو څوک وکيل مقرر کړي، نو اوس که د دې وکيل مؤکل يعني مدعیٰ علیه د ده معزوله کول وغواړي، نو د صاحب الحق يعني د مدعي له رضا څخه بغيرېې نه سي معزوله کولای؛ ځکه چې د دغه وکالت سره د صاحب الحق (مدعي) حق متعلق سوی دی. لهذا که د هغه له رضا څخه بغير وکيل معزوله کړی سي نو د هغه حق به باطل سي، کوم چې صحيح نه دي. او دا د هغه وکالت په څېر دی کوم چې عقد رهن لره شامل وي، مثلاً زيد له خالد څخه څه مال په قرض واخلي او خالد ته خپل يو شی په رهن کښېږدي، بيا د مرتهن (خالد) په غوښتنه سره راهن (زيد) يو څوک د دې وکيل جوړ کړي چې که راهن په دوو مياشتو کي دننه مرتهن ته خپل قرض نه ورکړي نو وکيل به د راهن (زيد) شی خرڅوي او په هغه سره به د مرتهن قرض اداء کوي. نو په دې صورت کي راهن د مرتهن له اجازت څخه بغير مذکوره وکيل نه سي معزوله کولای، ځکه چې دا وکالت عقد رهن لره شامل دی او د دې سره د مرتهن حق متعلق سوی دی، نو په دې وجه راهن ته دا اختيار نسته چې د مرتهن له اجازت څخه بغير هغه وکيل معزوله کړي، همدغه ډول په پورتني صورت کي هم د وکالت سره د مدعي حق متعلق سوی دی، نو ځکه مدعیٰ عليه ته به دا اختيار نه وي چې د مدعي له رضا څخه بغير وکيل بالخصومت معزوله کړي.

## وکيل تر کومه وخته پر خپل وکالت پاتيږي؟

قَالَ: فَإِنْ لَمْ يَبْلُغْهُ الْعَزْلُ فرمايي: که چېرو وکيل ته د معزوله کولو خبر نه ورسيږي فَهُوَ عَلَىٰ وَكَالَتِهِ نو هغه پر خپل وکالت باقي پاتيږي وَتَصَرُّفُهُ جَائِزٌ او د هغه تصرف جائز دی حَتَّىٰ يَعْلَمَ تر دې چې [په معزوله کېدلو] خبر سي لِأَنَّ فِي الْعَزْلِ إِضْرَارًا بِهِ مِنْ حَيْثُ إِبْطَالُ وِلَايَتِهِ ځکه چې په معزوله کولو کي د وکيل ضرر دی، په دې اعتبار سره چې د هغه ولايت باطلول کيږي أَوْ مِنْ حَيْثُ رُجُوعُ الْحُقُوقِ إِلَيْهِ يا په دې اعتبار سره چې حقوق د وکيل وطرف ته راجع دي فَيَنْقُدُ مِنْ مَالِ الْمُوَكِّلِ وَيُسَلِّمُ الْمَبِيعَ [لهذا که هغه وکيل بالشراء وي] نو هغه به د مؤکل له مال څخه ثمن اداء کوي او [که وکيل بالبيع وي نو] مبيع به ورسپاري فَيَضْمَنُهُ فَيَتَضَرَّرُ بِهِ نو ځکه د دې ضامن به وګرځي او په دې سره به هغه ته ضرر ورسيږي وَيَسْتَوِي الْوَكِيلُ بِالنِّكَاحِ وَغَيْرُهُ او وکيل بالنکاح او داسي نور [په دې کي] برابر دي لِلْوَجْهِ الْأَوَّلِ داولي وجهي پر بناء وَقَدْ ذَكَرْنَا اشْتِرَاطَ الْعَدَدِ أَوِ الْعَدَالَةِ فِي الْمُخْبِرِ او د خبر ورکونکي کس په باره کي د عدد يا عدالت مشروط کېدل موږ [مخکي] ذکر کړي دي فَلَا نُعِيدُهُ لهذا موږ هغه نه راګرځوو.

**اللغات**: ﴿عـزل﴾ د ضـرب د باب مصدر دی: معزولـه کـول، برطرفه کـول. ﴿إضـرار﴾ د افعال د باب مصدر دی: نقصان رسول. ﴿اشتراط﴾ د افتعال د باب مصدر دی: شرط لګول، شرط کېدل، مشروط کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مؤکل خپل وکيل معزوله کړي لېکن وکيل په هغه خبر نه سي، نو تر څو چي وکيل ته د خپل عزل (معزولتيا) خبر نه ورسيږي، تر هغه وخته دا وکيل پر خپل وکالت باقي پاتيږي او د هغه هر تصرف صحيح او جائز ګرځي. ها! کله چي هغه په خپل عزل خبر سي، نو د هغه وکالت باطليږي او تر دې وروسته د هغه هيڅ تصرف نه صحيح کيږي.

داولي مسئلې دليل دا دی چي د وکيل په معزوله کولو کي په دوو وجهو سره د هغه ضرر سته: ① اول ضرر خو په دې وجه دی چي مؤکل په معزوله کولو سره د وکيل ولايت سلبوي، اوس که وکيل په عزل خبر نه وي، نو هغه به د خپل وکالت پر بنياد يو کار وکړي، او مؤکل به د عزل په وجه د هغه تکذيب وکړي، او ښکاره خبره ده چي د يو چا تکذيب کول هغه ته ضرر او تکليف رسول دي، نو ځکه تر څو چي وکيل په خپل عزل خبر نه وي، تر هغه وخته به وکيل پر خپل وکالت باقي پاته وي. ② دويم ضرر په دې وجه وکيل ته رسيږي چي هغه عاقد دی، او د عاقد کېدلو په وجه د عقد حقوق د هغه وطرف ته راجع دي، لهذا که هغه وکيل بالشراء وي (يعني د يو شي د رانيولو وکيل وي) نو د مؤکل له مال څخه به ثمن اداء کوي، او که وکيل بالبيع (د خرڅولو وکيل) وي نو د مؤکل مبيع به مشتري ته سپاري، اوس ښکاره خبره ده چي که مؤکل له خبر ور کولو څخه بغير هغه معزوله کړي او د هغه معزولتيا مور معتبر ومنو، نو وکيل به د ثمن يا مبيع ضامن وګرځي يعني پر هغه به د ثمن يا مبيع ضمان (تاوان) واجب سي، او د ضمان د وجوب په وجه به هغه ته ضرر ورسيږي، لهذا په دې حواله سره هم چي تر څو وکيل په عزل خبر نه وي، تر هغه وخته به د هغه تصرف معتبر ګڼل کيږي.

ويستوي الوکيل بالنکاح إلخ: د دې حاصل دا دی چي داولي وجهي يعني د ولايت سلبولو او تکذيب په حواله سره بيان سوی ضرر عام او تام دی او په هغه کي نکاح، طلاق، بيع او شراء ټوله تصرفات داخل دي او په دې ټولو کي وکيل په عزل له خبرېدلو څخه مخکي نه معزوله کيږي. او دويمه وجه يعني د ضمان ضرر صرف د هغه تصرفاتو سره خاص دی چي په هغه کي د عقد حقوق د وکيل وطرف ته راجع کيږي لکه بيع او شراء.

وقد ذکرنا إلخ: فرمايي چي په خبر ورکولو کي د عدد او عدالت شرط کېدل مخکي ذکر سوه، د عدد مطلب دا چي خبر ورکونکي به دوه مستور الحاله خلگ وي او د عدالت مطلب دا چي يا هغه به يو عادل سړی وي، لهذا کله چي وکيل ته دا خبر ورکول سي چي "ستا مؤکل ته معزوله کړی يې"، نو دا شرط دي چي خبر ورکونکی به دوه خلگ وي يا يو عادل سړی به وي، او د دې پوره تفصيل په "کتاب ادب القاضي" کي تېر سو، لهذا دلته د هغه بيا راګرځولو ته څه ضرورت نسته.

## د مؤکل په کومو عوارضو سره وکالت باطلېږي؟

قال: وَيَبْطُلُ الْوَكَالَةُ بِمَوْتِ الْمُوَكِّلِ وَجُنُونِهِ جُنُونًا مُطْبِقًا فرمايي: او وکالت باطلېږي د مؤکل په مړه کېدلو سره او د هغه په دائمي توګه مجنون کېدلو سره وَلَحَاقِهِ بِدَارِ الْحَرْبِ مُرْتَدًّا او د مرتد والي په حالت کي دارُ الحرب ته د هغه په تللو سره لِأَنَّ التَّوْكِيلَ تَصَرُّفٌ غَيْرُ لَازِمٍ ځکه چي وکيل جوړول يو غير لازم تصرف دی [يعني د وکيل جوړولو تصرف همېشه لازم نه دی] فَيَكُونُ لِدَوَامِهِ حُكْمُ ابْتِدَائِهِ نو ځکه د دې تصرف بقاء لره به د هغه د ابتداء حکم حاصل وي [مطلب دا چي د وکيل جوړولو په شروع کي چي کوم څه شرط دي هغه (د وکالت باقي پاتېدلو لپاره) همېشه موجودېدل ضروري دي. کنې وکالت باقي نه پاتيږي] فَلَا بُدَّ مِنْ قِيَامِ الْأَمْرِ نو ځکه [د مؤکل] د حکم موجودېدل ضروري دي وَقَدْ بَطَلَ بِهَذِهِ الْعَوَارِضِ حال دا چي د دې عوارضو په وجه [د مؤکل] حکم باطل سو وَشَرَطَ أَنْ يَكُونَ الْجُنُونُ مُطْبِقًا او دا شرط يې [ځکه] لګولی دی چي جنون به دائمي وي لِأَنَّ قَلِيلَهُ بِمَنْزِلَةِ الْإِغْمَاءِ ځکه چي لږ لېونتوب د بې هوښۍ په درجه کي دی وَحَدُّ الْمُطْبِقِ شَهْرٌ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ او د مطبق جنون حد [اندازه] د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز يوه مياشت ده اِعْتِبَارًا بِمَا يَسْقُطُ بِهِ الصَّوْمُ پر هغه شي په قياس کولو سره چي په هغه سره روژه ساقطېږي وَعَنْهُ أَكْثَرُ مِنْ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي [د مطبق جنون حد] له يوې ورځي او يوې شپې څخه زيات مودت دی لِأَنَّهُ تَسْقُطُ بِهِ الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ ځکه چي په دې سره [ټوله] پنځه لمونځونه ساقطېږي فَصَارَ كَالْمَيِّتِ نو ځکه هغه د مړي په څېر سو وَقَالَ مُحَمَّدٌ[*]: حَوْلٌ كَامِلٌ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي:

---

[*] القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في نتائج الأفكار (ج:۷، ص:۱۳۳)، وفي مجمع الأنهر (ج:۳، ص:۳۳۹). [القول الراجح، ج:۲، ص:۱۶۵]

چي اد مطبق جنون حد] پوره يو كال دى لِأَنَّهُ يَسْقُطُ بِهِ جَمِيعُ الْعِبَادَاتِ ځكه چي په دې سره ټوله عبادات ساقطيږي فَقُدِّرَ بِهِ إِحْتِيَاطًا نو ځكه د احتياط لپاره به هغه په يوه كال سره اندازه كول كيږي قَالُوا: الْحُكْمُ الْمَذْكُورُ فِي اللَّحَاقِ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چي دارُ الحرب ته د تللو په هكله چي كوم حكم ذكر سوى دى هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دى لِأَنَّ تَصَرُّفَاتِ الْمُرْتَدِّ مَوْقُوفَةٌ عِنْدَهُ ځكه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د مرتد تصرفات موقوف پاتيږي فَكَذَا وَكَالَتُهُ نو ځكه همداسي به د هغه وكالت هم موقوف پاتيږي فَإِنْ أَسْلَمَ بيا كه هغه اسلام راوړي نَفَذَ نو د هغه تصرف به نافذيږي وَإِنْ قُتِلَ أَوْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ او كه هغه قتل كړى سي يا دارُ الحرب ته ولاړ سي بَطَلَتِ الْوَكَالَةُ نو وكالت به باطليږي فَأَمَّا عِنْدَهُمَا● تَصَرُّفَاتُهُ نَافِذَةٌ ليكن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د مرتد تصرفات نافذيږي [موقوف نه پاتيږي] فَلَا تَبْطُلُ وَكَالَتُهُ إِلَّا أَنْ يَمُوتَ نو ځكه د هغه وكالت به نه باطليږي مگر دا چي هغه مړ سي أَوْ يُقْتَلَ عَلَى رِدَّتِهِ أَوْ يُحْكَمَ بِلَحَاقِهِ يا پر خپل ارتداد قتل كړى سي يا دارُ الحرب ته د هغه د تللو فيصله وسي وَقَدْ مَرَّ فِي السِّيَرِ او دا اختلاف په ''كتاب السير'' كي ذكر سوى دى وَإِنْ كَانَ الْمُوَكِّلُ إِمْرَأَةً او كه چيري مؤكل يو ښځه وي فَارْتَدَّتْ بيا هغه مرتده سي فَالْوَكِيلُ عَلَى وَكَالَتِهِ نو [په دې صورت كي] وكيل پر خپل وكالت باقي پاتيږي حَتَّى تَمُوتَ أَوْ تَلْحَقَ بِدَارِ الْحَرْبِ تر دې چي مؤكله ښځه مړه سي يا دارُ الحرب ته ولاړه سي لِأَنَّ رِدَّتَهَا لَا تُؤَثِّرُ فِي عُقُودِهَا ځكه چي د ښځي مرتد كېدل د هغې په معاملاتو كي اثر نه كوي عَلَى مَا عُرِفَ لكه څرنگه چي [په كتاب السير كي] معلوم سوي دي.

**اللغات:** ﴿جنون﴾ د نصرب د باب مصدر دى: لېونتوب، لېونى كېدل، مجنون كېدل. ﴿لحق﴾ د سمع د باب ماضي ده: متصل كېدل (ملاوېدل)، مراد ځني دارُ الحرب ته تلل دي (د حربيانو سره ملاوېدل). ﴿مطبق﴾ د افعال د باب اسم فاعل دى: دائمي (تر ډېر وخته پاتېدونكى)، لكه څرنگه چي ويل كيږي: مطرٌ مُطبِقٌ: دائمي باران كوم چي تر ډېر وخته اوريږي، او صاحب د اثمار الهدايې د ''جنون

● القول الراجح. قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله، كما يعلم من عامة المتون ترجيحه، وكذا ذكر في ملتقى الأبحر مع المجمع (ج:۳، ص:۳۳۹)، ونتائج الأفكار (ج:۷، ص:۱۳۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۶۶]

مُطبق" تعريف داسي كړی دی: عقل پټونكی جنون، يعني كامل او بشپړ لېونتوب كوم چي تر ډېره وخته نه ليرې كيږي (ځكه د يوه ساعت يا دوو ساعتو په لېونتوب سره وكالت نه باطليږي. او د مطبق جنون د حدّاو اندازې پوره تفصيل به په تشريح كي بيان سي)، ﴿إغماء﴾ د افعال د باب مصدر دی: بې هوښه كېدل، بې هوښي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی كه چيري مؤكل مړ سي يا په دائمي توګه لېونی سي يا مرتد وګرځي او دارُ الحرب ته ولاړ سي. نو په دې ټولو صورتونو كي وكالت (توكيل) باطليږي او د وكيل د تصرف كولو اختيار ختميږي: ځكه چي وكالت (توكيل) يو غير لازم تصرف دی، همدا وجه ده چي مؤكل هم وكالت ختمولای سي او وكيل يې هم ختمولای سي. او د غير لازم تصرف د بقاء او دوام لپاره هغه ټوله اُمور شرط او ضروري دي كوم چي د هغه د ابتداء لپاره شرط دي. او ښكاره خبره ده چي د وكالت د ابتداء لپاره د مؤكل د حكم قيام (موجودېدل) شرط دي (يعني يو شوك هغه وخت وكيل ګرځي كله چي مؤكل هغه ته حكم وكړي او هغه خپل وكيل جوړ كړي) نو ځكه د وكالت د بقاء لپاره به هم د مؤكل د حكم قيام ضروري وي. حال دا چي د مؤكل د مړه كېدلو يا مجنون كېدلو يا مرتد كېدلو او دارُ الحرب ته د تللو په وجه د هغه حكم باطل او معدوم سي. نو ځكه په دې ټولو صورتونو كي به وكالت هم باطليږي او ختميږي.

**وشرط أن يكون إلخ**: فرمايي: د وكالت باطلېدلو لپاره د دائمي (مطبق) جنون شرط او قيد احترازي قيد دی او په دغه قيد سره عارضي جنون خارجول مقصود دي. ځكه عارضي جنون يعني هغه لېونتوب كوم چي ځيني وخت وي او ځيني وخت نه وي. هغه د بې هوښۍ (اغماء) په درجه كي دی. او د مؤكل په بې هوښه كېدلو سره وكالت نه باطليږي. نو ځكه په عارضي جنون سره به هم وكالت نه باطليږي.

**وحد المطبق إلخ**: د دې حاصل دا دی چي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله شخه د مطبق جنون د حد او اندازې په باره كي دوه قوله نقل سوي دي: ① اول قول دا دی چي د مطبق جنون حد د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز يوه مياشت ده. او دا اندازه د رمضان د مياشتي پر جنون قياس كړی سوې ده. يعني كه يو سړی د رمضان په ټوله مياشت كي لېونی وي. نو د هغه له ذمې شخه د رمضان روژې ساقطيږي: ځكه كله چي يو شوك په الهي عباداتو سره مكلف نه وي. نو هغه د دنياوي تصرفاتو او معاملاتو اهل هم نه شمارل كيږي. او كله چي د هغه اهليت ختم سو. نو ځكه وكالت به يې هم باطل وي. ② دويم قول دا دی چي كه يو شوك له يوې ورځي او يوې شپې شخه زيات وخت مجنون پاته سي، نو د هغه وكالت باطل دی: ځكه چي د دومره وخت په جنون سره د يوې ورځي فرائض يعني پنځه سره

لمونځونه ساقطيږي او تر دومره وخته مجنون پاتېدونکی سړی د مړي په څېر دی. او مړی د وکالت اهل نه دی. لهذا داسې مجنون به هم د وکالت اهل نه وي او د هغه وکالت به باطل وي.

وقال محمد إلخ: فرمايي چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د مطبق جنون حد پوره يو کال دی. ځکه چې ديوه کال په جنون سره هر ډول عبادات ساقطيږي. لهذا د دومره مودت په جنون سره به هر ډول تصرفات او معاملات هم ختميږي او ساقطيږي. نو ځکه د احتياط پر بناء به يو کال د مطبق جنون حد ګرځول کيږي.

قالوا الحکم المذکور إلخ: د دې حاصل دا دی چې مذکوره حکم يعني د مؤکل په مرتد کېدلو او دارُ الحرب ته په تللو سره د وکالت باطلېدل، دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي: ځکه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مرتد تصرفات موقوف پاتيږي. او څرنګه چې وکالت (توکيل) هم يو تصرف دی. نو ځکه د مرتد وکالت به هم موقوف پاته وي. که چيرې هغه اسلام راوړي. نو د هغه وکالت به نافذيږي، او که د ارتداد په حالت کې قتل کړی سي يا دارُ الحرب ته ولاړ سي، نو د هغه وکالت به باطليږي.

د دې په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د مرتد ټوله تصرفات نافذيږي. نو ځکه محض په مرتد کېدلو سره به د مؤکل وکالت نه باطليږي، ها! که چيرې هغه د ارتداد په حالت کې مړ سي يا قتل کړی سي يا دارُ الحرب ته ولاړ سي او قاضي د هغه د تللو فيصله وکړي، نو بيا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه وکالت باطليږي.

وإن کان المؤکل إلخ: فرمايي که مؤکل ښځه وي او هغه مرتده سي. نو د هغې وکالت نه باطليږي: ځکه ښځه د مرتد کېدلو په وجه نه قتلول کيږي. نو ځکه د ښځې ارتداد د هغې په معاملاتو او تصرفاتو کې نه مؤثر کيږي. او کله چې د ښځې ارتداد په معاملاتو او تصرفاتو کې نه مؤثر کيږي. نو ښکاره خبره ده چې د هغې وکالت به هم نه باطليږي. ها! که چيرې داسې ښځه تر مرتد کېدلو وروسته مړه سي يا دارُ الحرب ته ولاړه سي. نو په دې صورتونو کې د هغې وکالت باطليږي.

## د مؤکل د غلام کېدلو په صورت کې وکالت باطلېدل

| قَالَ: وَإِذَا وَكَّلَ الْمُكَاتَبُ ثُمَّ عَجَزَ فرمايي: او کله چې مکاتب اېل څوک او وکيل جوړ کړي بيا مکاتب عاجز سي أَوِ الْمَأْذُونَ لَهُ ثُمَّ حُجِرَ عَلَيْهِ يا مأذون لهٗ في التجارة غلام اېل څوک او وکيل جوړ کړي بيا هغه اله تجارت څخه امنع کړی سي ايعني د هغه مالک د تجارت اجازت (إذن) ختم کړي أَوِ الشَّرِيكَانِ فَافْتَرَقَا يا دوه شريکان وکيل جوړ کړي بيا هغوی دواړه سره جلا سي ايعني شرکت ختم کړي فَهَذِهِ الْوُجُوهُ |
| --- |

تُبْطِلُ الْوَكَالَةَ عَلَى الْوَكِيْلِ نو دغه اسباب [عوارض] پر وکيل وکالت باطلوي عَلِمَ أَوْلَمْ يَعْلَمْ برابره ده وکيل خبر سي او که خبر نه سي لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ بَقَاءَ الْوَكَالَةِ يَعْتَمِدُ قِيَامَ الْأَمْرِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی چي د وکالت باقي پاتېدل [د مؤکل] د حکم پر موجودېدلو موقوف دي وَقَدْ بَطَلَ بِالْحَجْرِ وَالْعَجْزِ وَالْافْتِرَاقِ او [دلته] د منع کېدلو، عاجزه کېدلو او سره جلا کېدلو په وجه [د مؤکل] حکم باطل سو وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْعِلْمِ وَعَدَمِهِ او [د وکيل] د خبرېدلو او نه خبرېدلو په مينځ کي هيڅ فرق نسته لِأَنَّ هَذَا عَزْلٌ حُكْمِيٌّ ځکه چي دا حکمي عزل دی فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى الْعِلْمِ نو ځکه هغه به [د وکيل] پر خبرېدلو موقوف نه وي كَالْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ إِذَا بَاعَهُ الْمُوَكِّلُ لکه [د يو شي] د خرڅولو وکيل چي کله مؤکل هغه خرڅ کړي.

**اللغات:** ﴿مأذون لهٔ﴾ هغه غلام چي مالک د تجارت او کاروبار کولو اجازت ورکړی وي، ﴿حُجِرَ عليه﴾ د نصر د باب ماضي مجهوله ده: منع کول، بنديز پر لګول (پابندي پر لګول). ﴿حَجْر﴾ د مخکني باب مصدر دی، ﴿عزل﴾ د ضرب د باب مصدر دی: معزوله کول، برطرفه کول.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که مکاتب غلام بل څوک خپل وکيل جوړ کړي او بيا هغه د بدل کتابت له اداء کولو څخه عاجزه سي او دوباره خالص غلام وګرځي، يا مأذون فی التجاره غلام يو څوک خپل وکيل جوړ کړي او بيا هغه له تجارت څخه منع کړی سي. يا دوه خلک د شرکت په معامله کي يو څوک وکيل جوړ کړي او بيا دوی د شرکت معامله ختمه کړي، نو له دغه صورتونو څخه په هر صورت کي وکالت باطليږي. برابره ده وکيل په دې عوارضو خبر سي او که خبر نه سي؛ ځکه مخکي دا خبره تېره سوه چي د وکالت د بقاء (باقي پاتېدلو) مدار د مؤکل د حکم پر بقاء او قيام (موجودېدلو) دی، او د مؤکل په عاجزه کېدلو يا منع کېدلو يا معدوم الشرکت کېدلو سره د مؤکل حکم (امر) باطليږي، او ښکاره خبره ده چي کله د مؤکل حکم باطل او ختم سو، نو وکالت به هم باطليږي.

**ولا فرق بين العلم إلخ:** فرمايي په پورتني صورتونو کي د وکالت باطلېدلو لپاره په مذکوره عوارضو د وکيل خبرېدل (علم) شرط نه دی؛ ځکه چي په دې صورتونو کي د وکالت باطلېدل "عزل حکمي" دی، او د وکيل خبرېدل په "عزل قصدي (عزل اختياري)" کي شرط دي، نه په "عزل حکمي" کي. نو ځکه په دغه عزل کي به د وکالت باطلېدل د وکيل پر خبرېدلو (علم) موقوف نه وي. لهذا کله چي هم له مذکوره دريو عوارضو څخه يو عارض موجود سي نو وکالت به باطليږي. برابره ده وکيل په هغه

عارض خبر سي، که نه. د دې مثال داسي دی لکه يو سړی چي بل څوک د يو شي د خرڅولو وکيل جوړ کړي او بيا مؤکل په خپله هغه خرڅ کړي، نو دلته هم په "عزل حکمي" سره د وکيل وکالت ختميږي او د دې وکيل لپاره د مؤکل په خرڅولو خبرېدل شرط نه دي، خاص همدغه ډول د پورتنۍ مسئلې په دريو سره صورتونو کي هم د عزل حکمي پر بنياد وکيل معزوله کيږي او د معزولتيا په سبب د وکيل خبرېدل شرط نه دي.

## د وکيل په کومو عوارضو سره وکالت باطليږي؟

قَالَ: وَإِذَا مَاتَ الْوَكِيْلُ أَوْ جُنَّ جُنُوْنًا مُّطْبِقًا فرمايي: او کله چي وکيل مړ سي يا په دائمي توګه لېونی سي بَطَلَتِ الْوَكَالَةُ نو وکالت باطليږي لِأَنَّهُ لَا يَصِحُّ أَمْرُهُ بَعْدَ جُنُوْنِهِ وَمَوْتِهِ ځکه چي د وکيل تر لېونتوب او مرګ وروسته د هغه مامور کېدل نه صحيح کيږي [په بله وينا داسي هم ويل کېدای سي چي تر لېونتوب او مړه کېدلو وروسته وکيل هيڅ نه سي کولای] وَإِنْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ مُرْتَدًّا او که وکيل د مرتد والي په حالت کي دارُ الحرب ته ولاړ سي لَمْ يَجُزْ لَهُ التَّصَرُّفُ إِلَّا أَنْ يَعُوْدَ مُسْلِمًا نو د هغه لپاره تصرف کول جائز نه دي، مګر دا چي هغه د مسلمان والي په حالت کي [دارُ الاسلام] ته واپس راسي قَالَ: وَهٰذَا عِنْدَ مُحَمَّدٍ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: دا حکم د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دی فَأَمَّا عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ❁ لَا يَعُوْدُ الْوَكَالَةُ لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز [د هغه] وکالت واپس نه راګرځي لِمُحَمَّدٍ: أَنَّ الْوَكَالَةَ إِطْلَاقٌ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي وکالت خو اطلاق [د تصرّف اجازت] دی [يعني وکالت د تصرّف اطلاق او اجازت ته وايي] لِأَنَّهُ رَفْعُ الْمَانِعِ ځکه چي هغه د مانع ليري کول دي [يعني ځکه چي په وکالت سره د تصرف کولو ممانعت (او عدمِ جواز) ختميږي] أَمَّا الْوَكِيْلُ يَتَصَرَّفُ بِمَعَانٍ قَائِمَةٍ بِهِ او کوم چي وکيل دی نو هغه په داسي معانيو [صلاحيتونو] سره تصرف کوي کوم چي په هغه سره قائم دي [يعني د داسي صلاحيتونو په وجه تصرف کوي کوم چي د هغه په ذات کي موجود دي (چي هغه عاقل کېدل، بالغ کېدل او آزاد کېدل دي)] وَإِنَّمَا عَجَزَ بِعَارِضِ اللَّحَاقِ او هغه صرف دارُ الحرب ته د تللو په وجه [له تصرّف څخه] عاجز سوی دی لِتَبَايُنِ الدَّارَيْنِ ځکه چي دواړه دارونه

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في نتائج الأفكار (ج:۷، ص:۱۳۸)، ورد المختار (ج:۴، ص:۲۶۲).[القول الراجح ج:۲، ص:۱۶۷]

[يعني دارُ الاسلام او دارُ الحرب] يو له بل څخه جلا دي فَإِذَا زَالَ الْعَجْزُ وَالْإِطْلَاقُ بَاقٍ لهذا كله چي [د وكيل] عاجزي زائله سوه او اطلاق [د تصرّف اجازت] هم باقي دی عَادَ وَكِيلًا نو ځکه وکيل به دوباره وكيل ګرځي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ إِثْبَاتُ وِلَايَةِ التَّنْفِيذِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي وكالت [په اصل کي] د نافذولو ولايت ثابتول دي لِأَنَّ وِلَايَةَ أَصْلِ التَّصَرُّفِ بِأَهْلِيَّتِهِ ځکه چي د اصل تصرف کولو ولايت خو د وکيل د اهليت په وجه [هغه ته حاصل] دی وَوِلَايَةُ التَّنْفِيذِ بِالْمِلْكِ او د نافذولو ولايت د ملکيت په وجه دی [يعني د تصرّف نافذولو ولايت د ملکيت (مالک جوړېدلو) په وجه هغه ته حاصلېږي] وَبِاللَّحَاقِ لَحِقَ بِالْأَمْوَاتِ وَبَطَلَتِ الْوِلَايَةُ لېکن دارُ الحرب ته د تللو په وجه وکيل د مړو سره لاحق سو [يعني ګواکي هغه مړ سو] او وکالت باطل سو فَلَا تَعُودُ نو ځکه هغه به واپس نه راګرځي كَمِلْكِهِ فِي أُمِّ الْوَلَدِ وَالْمُدَبَّرِ لکه په اُم ولد او مُدبر کي چي د هغه ملکيت واپس نه راګرځي وَلَوْ عَادَ الْمُوَكِّلُ مُسْلِمًا وَقَدْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ مُرْتَدًّا او که چيري مؤکل د مسلمان والي په حالت کي [دارُ الاسلام ته] واپس راسي حال دا چي [مخکي] هغه د مرتد والي په حالت کي دارُ الحرب ته تللی وي لَا تَعُودُ الْوَكَالَةُ فِي الظَّاهِرِ نو په ظاهر روايت کي د هغه وکالت واپس نه راګرځي وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهَا تَعُودُ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي واپس راګرځي كَمَا قَالَ فِي الْوَكِيلِ لکه څرنګه چي د وکيل په باره کي هغه [همداسي] فرمايلي دي وَالْفَرْقُ لَهُ عَلَى الظَّاهِرِ أَنَّ مَبْنَى الْوَكَالَةِ فِي حَقِّ الْمُوَكِّلِ عَلَى الْمِلْكِ او د ظاهر روايت مطابق د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول فرق دا دی چي د مؤکل په حق کي د وکالت بنياد پر ملکيت دی وَقَدْ زَالَ او ملکيت زائل سوی دی وَفِي حَقِّ الْوَكِيلِ عَلَى مَعْنًى قَائِمٍ بِهِ او د وکيل په حق کي [د وکالت بنياد] پر داسي معنیٰ دی کوم چي په هغه سره قائم ده [يعني د وکيل په حق کي د وکالت دار ومدار د هغه پر صلاحيت او اهليت (عاقل وبالغ کېدلو...) دی] وَلَمْ يَزُلْ بِاللَّحَاقِ او دارُ الحرب ته د تللو په وجه دا معنیٰ [له هغه څخه] زائله نه سوه.

**اللغات**: ﴿جُنّ﴾ د نصر د باب ماضي مجهوله ده: لېونی کېدل، مجنون کېدل. ﴿مطبق﴾ د افعال د باب فاعل دی. تفصيلي معنیٰ يې له تېر عبارت څخه د مخکي عبارت په لغاتو کي ذکر سوه. ﴿يعود﴾ د نصر د باب مضارع ده: راګرځېدل. واپس کېدل (بيرته راګرځېدل)، واپس راتلل. ﴿إثبات﴾ د افعال د باب مصدر دی: ثابتول.

**تشریح**: مخکې تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله هغه عوارض بیان کړل کوم چې مؤکل ته لاحق کیږي او په هغه سره وکالت (توکیل) باطلیږي، اوس په دې عبارت کې هغه عوارض بیانوي کوم چې وکیل ته لاحق کیږي او په هغه سره وکالت باطلیږي. نو فرمایي که چیرې وکیل مړ سي یا هغه ته دائمي جنون لاحق سي، نو د هغه وکالت باطلیږي، ځکه چې د مړه کېدلو یا په دائمي توګه د مجنون کېدلو په صورت کې د مؤکل له طرفه د وکیل مامور کېدل نه صحیح کیږي (یعني په داسې صورت کې وکیل ته د مؤکل امر او حکم کول نه صحیح کیږي)، حال دا چې د وکالت صحیح کېدلو لپاره د وکیل مامور کېدل ضروري دي. لهذا کله چې د وکیل مامور کېدل صحیح نه دي، نو ښکاره خبره ده چې د هغه وکالت به هم صحیح نه وي.

وإن لحق إلخ: د دې حاصل دا دی چې که وکیل مرتد سي او دارُ الحرب ته ولاړ سي او بیا دوباره مسلمان سي او دارُ الاسلام ته راسي، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز د مخکښي (سابق) وکالت په حکم سره د هغه تصرف جائز کیږي، لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز د هغه تصرف نه جائز کیږي، یعني د مرتد کېدلو په وجه باطل سوی مخکښی (سابق) وکالت واپس نه راګرځي.

**د امام محمد دلیل**: دا دی چې وکالت د تصرف اطلاق او اجازت ته وایي، ځکه د وکالت له وخت څخه مخکې د وکیل لپاره د مؤکل په معاملاتو کې تصرف کول شرعاً ممنوع وي لېکن له وکالت څخه وروسته دا ممانعت ختم سي او د وکیل لپاره د مؤکل په معاملاتو کې تصرف جائز وګرځي. او وکیل د آزاد کېدلو او عاقل و بالغ کېدلو په وجه د دې تصرف اهل هم دی. نو ځکه د هغه لپاره تصرف کول جائز دي، مګر د مرتد کېدلو او دارُ الحرب ته د تللو په وجه وکیل د یو عارض په وجه خپل د تصرف اهلیت فوت کړی، ځکه په دارُ الاسلام او دارُ الحرب کې تباین او توپیر سته (او د حکم په اعتبار سره دواړه علیحده ځایونه دي)، لهذا تر څو چې دغه عارض باقي پاته وي، تر هغه وخته به د وکیل لپاره تصرف کول ناجائز وي. لېکن کله چې هم هغه دوباره مسلمان سي او دارُ الاسلام ته واپس راسي. نو سمدستي به د هغه عارض ختم سي، او څرنګه چې د مؤکل له طرفه د توکیل حکم (امر) هم قائم او موجود دی. نو ځکه د فقهي قاعدې "إِذَا زَالَ الْمَانِعُ عَادَ الْمَمْنُوعُ" پر بناء به د هغه تصرف جائز او صحیح وي او د مخکې په څېر به هغه د خپل مؤکل وکیل وي.

**د امام ابو یوسف دلیل**: دا دی چې وکالت په اصل کې "ولایت تنفیذ" (د تصرف نافذولو ولایت) ته وایي. او تصرف ته نه وایي: ځکه د عاقل و بالغ کېدلو او آزاد کېدلو په وجه خو وکیل بالکل د تصرف

اهل دی، لېکن د مؤکل په مال کې د هغه تصرف په وکالت (وکیل جوړېدلو) سره نافذېږي، نو ځکه وکالت به له "ولایت تنفیذ" څخه عبارت وي، او "ولایت تنفیذ" وکیل ته هغه وخت حاصلیږي کله چې مؤکل هغه د "ولایت تنفیذ" مالک جوړ کړي (مطلب دا چې مؤکل هغه خپل وکیل جوړ کړي)، او څرنګه چې مؤکل له مرتد کېدلو څخه مخکې هغه د "ولایت تنفیذ" مالک جوړ کړی وو، لېکن د مرتد کېدلو په وجه وکیل د مړو په حکم کې داخل سو او د هغه دا ولایت ختم او ساقط سو. او قاعده دا ده چې "السَّاقِطُ لَا يَعُوْدُ" (ساقط سوی شی واپس نه راګرځي)، نو ځکه د وکیل په دوباره مسلمان کېدلو او دارُ الاسلام ته په راتللو سره به د هغه مخکنی وکالت او "ولایت تنفیذ" واپس نه راګرځي او د مخکني وکالت په توګه به د هغه هیڅ تصرف هم جائز نه وي.

همدا وجه ده که له مرتد کېدلو او دارُ الحرب ته له تللو څخه مخکې د وکیل په ملکیت کې اُم ولد یا مُدبر غلام وي، نو د وکیل په مرتد کېدلو او دارُ الحرب ته په نقل کېدلو سره هغه اُم ولد او مُدبر غلام آزادیږي او له هغو څخه د وکیل ملکیت ساقطیږي، او د وکیل په دوباره مسلمان کېدلو او دارُ الاسلام ته په راتللو سره په هغو کې د وکیل ملکیت واپس نه راګرځي. لهذا کله چې د مرتد کېدلو او دارُ الحرب ته د تللو په وجه د هغه خپل ملکیت هم واپس نه راګرځي، نو ښکاره خبره ده چې د بل چا له طرفه ورکول سوی ملکیت (یعني وکالت) به په درجه اولیٰ بیرته نه راګرځي او هغه به باطلیږي.

ولوعاد المؤکل إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د وکیل پر ځای مؤکل مرتد سي او دارُ الحرب ته ولاړ سي او بیا دوباره مسلمان سي او دارُ الاسلام ته راسي، نو د ظاهر روایت مطابق د هیچا په نېز د هغه مخکنی وکالت واپس نه راګرځي (یعني زموږ په امامانو کې د یوه امام په نېز هم د هغه توکیل واپس جائز نه ګرځي)، لېکن په نوادر کې له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چې د دوباره مسلمان کېدلو او دارُ الاسلام ته په را تللو سره د وکیل په څېر د مؤکل وکالت هم واپس راګرځي. یعني د دې روایت مطابق د وکیل او مؤکل د وکالت راګرځېدلو په هکله هیڅ فرق نسته. لېکن په ظاهر روایت کې فرق سته او هغه دا چې د مؤکل په حق کې د وکالت (توکیل) بنیاد او مدار پر ملکیت دی یعني د مؤکل لپاره هغه وخت یو څوک د یو شي وکیل جوړول جائز دي کله چې هغه شی د مؤکل ملکیت وي (یعني مؤکل یې مالک وي)، او څرنګه چې د مرتد کېدلو او دارُ الحرب ته د تللو په وجه د مؤکل هر ملکیت ختم او زائل سو، نو ځکه د دوباره مسلمان کېدلو او دارُ الاسلام ته په راتللو سره چې څرنګه د مؤکل نور ملکیتونه نه ثابتیږي، همداسې به د هغه د وکالت (توکیل) ملکیت هم نه ثابتیږي، او کله چې د مؤکل ملکیت نه ثابتیږي، نو د مؤکل وکالت به هم واپس نه راګرځي یعني هغه به جائز او صحیح نه ګرځي. ځکه چې پر همدې ملکیت د وکالت صحیح والی موقوف دی.

د دې په خلاف د وکيل په حق کې د وکالت بنياد او مدار پر داسې معنیٰ يعني پر داسې صلاحيتونو دی کوم چې په وکيل سره قائم او په هغه کې موجود دي، يعني د هغه عاقل و بالغ کېدل او آزاد کېدل، او دارُ الحرب ته د تللو په وجه دا معنیٰ نه زائليږي، نو ځکه د دوباره مسلمان کېدلو او دارُ الاسلام ته له راتللو څخه وروسته به هم هغه د تصرف اهل پاتې وي او د مرتد کېدلو او د دارُ الحرب د تللو وجه او مانع به هم زائل سي، نو ځکه اوس به دوباره د هغه وکالت هم واپس راګرځي او د هغه تصرف به هم جائز ګرځي.

## د وکالت باطلېدلو يو بل صورت

قَالَ: وَمَنْ وَكَّلَ آخَرَ بِشَيْءٍ ثُمَّ تَصَرَّفَ بِنَفْسِهِ فِيمَا وَكَّلَ بِهِ فرمايي: او که يو سړی بل څوک د يو شي وکيل جوړ کړي بيا مؤکل په خپله په هغه څه کي تصرف وکړي چي د هغه په باره کي يې وکيل جوړ کړی وي بَطَلَتِ الْوَكَالَةُ نو وکالت باطليږي وَهٰذَا اللَّفْظُ يَنْتَظِمُ وُجُوهًا او دا عبارت څو صورتونو [مسئلو] لره شامل دی مِثْلَ أَنْ يُوَكِّلَهُ بِإِعْتَاقِ عَبْدِهِ أَوْ بِكِتَابَتِهِ مثلاً يو سړی بل څوک د خپل غلام آزادولو يا د هغه د مکاتب جوړولو وکيل جوړ کړي فَأَعْتَقَهُ أَوْ كَاتَبَهُ الْمُوَكِّلُ بِنَفْسِهِ بيا مؤکل په خپله هغه آزاد کړي يا يې مکاتب جوړ کړي أَوْ يُوَكِّلَهُ بِتَزْوِيجِ امْرَأَةٍ أَوْ بِشِرَاءِ شَيْءٍ يا هغه يو څوک د يو ښځي سره د نکاح کولو يا د يو شي د رانيولو وکيل جوړ کړي فَفَعَلَهُ بِنَفْسِهِ بيا هغه خپله دا کار وکړي أَوْ يُوَكِّلَهُ بِطَلَاقِ امْرَأَتِهِ يا خاوند يو څوک خپلي ښځي ته د طلاق ورکولو وکيل جوړ کړي فَطَلَّقَهَا الزَّوْجُ ثَلَاثًا أَوْ وَاحِدَةً بيا خاوند [په خپله] هغې ته درې طلاقه يا يو طلاق ورکړي وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا او د هغې عدت پوره سو أَوْ بِالْخُلْعِ يا [خاوند څوک د خپلي ښځي سره] د خلع کولو وکيل جوړ کړي فَخَالَعَهَا بِنَفْسِهِ بيا په خپله د هغې سره خلع وکړي [نو په دې ټولو صورتونو کي وکالت باطليږي] لِأَنَّهُ لَمَّا تَصَرَّفَ بِنَفْسِهِ ځکه کله چي مؤکل په خپله تصرف وکړی تَعَذَّرَ عَلَى الْوَكِيلِ التَّصَرُّفُ نو د وکيل لپاره تصرف کول نا ممکن سو فَبَطَلَتِ الْوَكَالَةُ نو ځکه وکالت به باطليږي حَتَّىٰ لَوْ تَزَوَّجَهَا بِنَفْسِهِ وَأَبَانَهَا همدا وجه ده که مؤکل په خپله د هغه ښځي سره نکاح وکړي بيا هغې ته طلاق بائن ورکړي لَمْ يَكُنْ لِلْوَكِيلِ أَنْ يُزَوِّجَهَا مِنْهُ نو وکيل ته دا جائز نه دي چي د مؤکل سره د هغه ښځي نکاح

وکړي لِأَنَّ الْحَاجَةَ قَدِ انْقَضَتْ ځکه چي [د مؤكل] ضرورت پوره سو بِخِلَافِ مَا إِذَا تَزَوَّجَهَا الْوَكِيلُ وَأَبَانَهَا په خلاف د هغه صورت کله چي وکيل د هغې سره نکاح وکړي بيا طلاق بائن ورکړي لَهُ أَنْ يُزَوِّجَ الْمُوَكِّلَ نو [په دې صورت کې] هغه ته دا جائز دي چي د مؤكل سره [د هغې] نکاح وکړي لِبَقَاءِ الْحَاجَةِ ځکه چي [د مؤكل] ضرورت [اوس هم] باقي پاته دی وَكَذَا لَوْ وَكَّلَهُ بِبَيْعِ عَبْدِهِ فَبَاعَهُ بِنَفْسِهِ او همدارنګه که يو سړی بل څوک د خپل غلام خرڅولو وکيل جوړ کړي بيا په خپله هغه خرڅ کړي فَلَوْ رُدَّ عَلَيْهِ بِعَيْبٍ بِقَضَاءِ قَاضٍ نو که [تر دې وروسته] هغه غلام د يو عيب په وجه د قاضي په فيصله سره مؤكل ته واپس کړی سي فَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَيْسَ لِلْوَكِيلِ أَنْ يَبِيعَهُ مَرَّةً أُخْرَى نو له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي [په دې صورت کې] وکيل ته دا جائز نه دي چي هغه غلام بل وار [دوباره] خرڅ کړي لِأَنَّ بَيْعَهُ بِنَفْسِهِ مَنْعٌ لَهُ مِنَ التَّصَرُّفِ ځکه چي په خپله د مؤكل خرڅول وکيل له تصرف څخه منع کول دي [يعني کله چي مؤكل په خپله غلام خرڅ کړی نو هغه وکيل له تصرف کولو څخه منع کړی] فَصَارَ كَالْعَزْلِ نو دا د معزوله کولو په څېر سو [يعني ګواکي هغه وکيل معزوله کړی] وَقَالَ مُحَمَّدٌ*: لَهُ أَنْ يَبِيعَهُ مَرَّةً أُخْرَى او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي وکيل ته دا جائز دي چي هغه غلام بل وار [دوباره] خرڅ کړي لِأَنَّ الْوَكَالَةَ بَاقِيَةٌ ځکه چي وکالت [اوس هم] باقي پاته دی لِأَنَّهُ إِطْلَاقٌ ځکه چي وکالت اطلاق دی وَالْعَجْزُ قَدْ زَالَ او عاجزي [هم] زائله سوه بِخِلَافِ مَا إِذَا وَكَّلَهُ بِالْهِبَةِ په خلاف د هغه صورت کله چي يو سړی بل څوک [د يو شي] د هبه کولو وکيل جوړ کړي فَوَهَبَ بِنَفْسِهِ بيا مؤكل په خپله هغه هبه کړي ثُمَّ رَجَعَ او بيا [له هبې څخه] رجوع وکړي [يعني هبه کړی سوی شی واپس واخلي] لَمْ يَكُنْ لِلْوَكِيلِ أَنْ يَهَبَ ثَانِيًا نو [په دې صورت کې] وکيل ته دا جائز نه دي چي هغه دوباره هبه کړي لِأَنَّهُ مُخْتَارٌ فِي الرُّجُوعِ ځکه چي مؤكل په رجوع کولو کې اختيار من دی [مطلب دا چي هغه ته د هبه کړی سوي شي د واپس اخيستلو اختيار سته] فَكَانَ ذَٰلِكَ دَلِيلُ

---

* القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۴۶۵)، وفتح القدير (ج:۷، ص:۱۴۱، ۱۴۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۶۸]

مَ مِ الْحَاجَةِ نو ځکه دا به د نه ضرورت دليل وي ايعني دا د دې خبري دليل دی چي اوس د هغه شيْ هبه کولو ته د مؤکل ضرورت نسته ا أَمَّا الرَّدُّ بِقَضَاءٍ بِغَيْرِ اخْتِيَارِهِ فَلَمْ يَكُنْ دَلِيلُ زَوَالِ الْحَاجَةِ لېکن د مؤکل له اختيار څخه بغير د قاضي په فيصله سره غلام واپس کېدل د ضرورت زائلېدلو دليل نه دی فَإِذَا عَادَ إِلَيْهِ قَدِيمُ مِلْكِهِ لهذا کله چي مؤکل ته خپل مخکنی ملکيت واپس را وګرځي [يعني کله چي د مؤکل د مخکني ملکيت پر بناء هغه غلام دوباره د مؤکل وطرف ته واپس راسي] كَانَ لَهُ أَنْ يَبِيعَهُ نو وکيل ته به دا جائز وي چي هغه خرڅ کړي.

**اللغات**: ﴿ينتظم﴾ د افتعال مضارع ده: شاملېدل، مشتمل کېدل. ﴿تزويج﴾ د تفعيل مصدر دی: نکاح ورکول. نکاح تړل. ﴿أبان﴾ د افعال د باب ماضي ده: بائنه کول. طلاق بائن ورکول. ﴿انقضت﴾ د انفعال ماضي ده: تېرېدل. ختمېدل. پوره کېدل. ﴿يهب﴾ د فتح د باب مضارع ده: هبه کول. هديه کول. بلا عوضه ورکول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی بل څوک د يو کار وکيل جوړ کړي (چي ته زما لپاره فلانکی کار وکړه!) او بيا مؤکل په خپله هغه کار وکړي، نو وکالت باطلېږي. ښکاره دي وي چي د دې حکم ډېر قسمونه او صورتونه دي چي له هغه څخه دلته شپږ صورتونه ذکر سوي دي:

① مؤکل د خپل غلام آزادولو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي، او بيا مؤکل په خپله هغه آزاد کړي. ② مؤکل د خپل غلام د مکاتب جوړولو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي، او بيا مؤکل په خپله هغه مکاتب جوړ کړي. ③ مؤکل يو څوک د دې وکيل جوړ کړي چي د فلانۍ ښځي سره زما نکاح وکړه!. لېکن بيا مؤکل په خپله د هغې سره نکاح وکړي. ④ مؤکل د يو شي د رانيولو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي. او بيا مؤکل په خپله هغه شی رانيسي. ⑤ مؤکل خپلي ښځي ته د طلاق ورکولو لپاره يو څوک وکيل جوړ کړي، او بيا مؤکل په خپله هغې ته يو يا درې طلاقه ورکړي. ⑥ مؤکل د خپلي ښځي سره د خلع کولو لپاره وکيل جوړ کړي. او بيا په خپله خلع ور سره وکړي، نو په دې ټولو صورتونو کي وکالت باطلېږي او د وکيل د تصرف کولو اختيار ساقطېږي؛ ځکه چي د وکالت صحت (صحيح والی) پر حاجت او ضرورت موقوف دی (يعني وکالت د ضرورت پر بناء مشروع دی)، لېکن کله چي مؤکل په خپله تصرف وکړی نو وکالت ته ضرورت پاته نه سو او د مؤکل تر تصرف کولو وروسته د وکيل لپاره تصرف کول ناممکن سو. او څرنګه چي د وکيل کار فقط تصرف کول دي او هغه دلته ناممکن سو. نو ځکه وکالت به باطلېږي. همدا وجه ده که مؤکل په خپله د هغه ښځي سره

نکاح وکړي چې مؤکل د هغې سره د نکاح کولو لپاره بل څوک وکیل جوړ کړی وي او تر نکاح وروسته مؤکل هغې ته طلاق بائن کړي، نو په دې صورت کې د وکیل لپاره دا صحیح نه دي چې د هغې سره د مؤکل نکاح وکړي؛ ځکه چې مؤکل د ضرورت په وجه د هغه ښځې سره د نکاح کولو لپاره بل څوک وکیل جوړ کړی وو، او څرنګه چې د هغه په خپل فعل سره دا ضرورت پوره سو، نو ځکه اوس به د وکیل لپاره د هغې سره د مؤکل نکاح کول جائز نه وي.

ها! که چیري وکیل د هغه ښځې نکاح اول د ځان سره وکړي، بیا هغې ته طلاق بائن ورکړي او بیا د مؤکل سره د هغې نکاح وکړي، نو دا صحیح دي؛ ځکه چې په دې صورت کې اوس هم د مؤکل په حق کې د هغه ښځې سره د نکاح کولو ضرورت باقي پاته دی، او وکالت د ضرورت پر بناء مشروع دی، نو ګواکې وکالت هم باقي پاته دی، او کله چې وکالت باقي پاته دی، نو ځکه وکیل ته به دا جائز وي چې د هغه ښځې سره د مؤکل نکاح وکړي.

وکذا الوردّه إلخ: د دې حاصل دا دی چې که ادریس (مثلاً) د خپل غلام خرڅولو لپاره زید وکیل جوړ کړي، لېکن بیا مؤکل یعني ادریس په خپله هغه خرڅ کړي، او بیا مشتري دا غلام د یو عیب په وجه د قاضي په فیصله سره مؤکل (ادریس) ته واپس کړي، نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز وکیل ته دا جائز نه دي چې هغه دا غلام دوباره خرڅ کړي، ځکه کله چې مؤکل په خپله دا غلام خرڅ کړی، نو هغه وکیل له تصرف کولو څخه منع کړی، او د مؤکل دا فعل د وکیل د معزوله کولو په څېر دی، او ښکاره خبره ده چې که مؤکل صراحتاً وکیل معزوله کړي، نو د هغه د تصرف کولو حق ختمیږي، لهذا کله چې مؤکل په خپله غلام خرڅ کړي (او د وکالت کار په خپله وکړي)، نو په دې صورت کې به هم د وکیل د تصرف حق ختمیږي.

د دې په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې په پورتني صورت کې وکیل لره د مذکوره غلام خرڅول جائز دي؛ ځکه د مؤکل له طرفه چې وکیل ته کوم وکالت پېش کړی سوی دی هغه مطلق دی او په هغه کې هیڅ قید یا شرط نسته، لېکن په خپله د مؤکل د خرڅولو په وجه د وکیل په حق کې تصرف کول ناممکن وګرځېدی، مګر کله چې هغه غلام دوباره د مؤکل وطرف ته واپس کړي سو، نو اوس د وکیل په حق کې تصرف کول ناممکن پاته نه سو او د تصرف په حواله سره د هغه عجز ختم سو، نو ځکه اوس به وکیل ته د دې پوره اجازت وي چې مذکوره غلام خرڅ کړي.

د دې په خلاف که مؤکل ديو شي د هبه کولو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي چي "ته زما دا شی (مثلاً) خالد ته هبه کړه!"، او بيا مؤکل په خپله هغه شی خالد ته هبه کړي، لېکن بيا مؤکل هغه شی بیر ته له خالد (موهوب لهٗ) څخه واپس واخلي، نو په دې صورت کي وکيل ته دا جائز نه دي چي هغه دا شی دوباره هبه کړي؛ ځکه چي مؤکل د شي په هبه کولو او بيا د هغه په واپس اخيستلو کي خود مختاره (اختيار من) دی، او د مؤکل له طرفه د موهوب شي واپس اخيستل د دې خبري ښکاره دليل دی چي اوس د هغه شي هبه کولو ته د مؤکل ضرورت نسته (په بله وينا دا چي مؤکل اوس د هغه هبه کول نه غواړي)، لهذا کله چي د هغه شي هبه کولو ته ضرورت او حاجت نسته، نو ځکه اوس به وکيل ته دوباره د هغه هبه کول جائز نه وي.

او کوم چي په پورتني صورت کي د مؤکل وطرف ته د غلام واپس کېدل دي، نو دا واپسي د مؤکل په قصد او اختيار سره نه ده سوې، بلکي مؤکل د هغه غلام په واپس اخيستلو کي مجبوره دی، نو ځکه دا واپسي به د نه ضرورت (عدمِ حاجت) دليل نه وي بلکي د هغه غلام د خرڅولو په حواله سره به اوس هم د مؤکل ضرورت باقي پاته وي (يعني اوس هم هغه دا غواړي چي غلام خرڅ کړی سي)، نو ځکه کله چي هم د مؤکل د مخکني ملکيت پر بناء غلام د هغه وطرف ته واپس کړی سي، نو وکيل ته به د دې پوره اجازت وي چي هغه غلام خرڅ کړي. او همدا فرق دی د هبه کولو او خرڅولو په صورت کي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# كِتَابُ الدَّعْوىٰ

(دا) کتاب د دعوې (د احکامو په بیان کې) دی

**تشريح**: د وکالت له بابونو څخه تر ټولو زيات مشهوره د وکالت بالخصومت باب دی کوم چې مخکې د "باب الوكالة بالخصومة" په عنوان سره بيان سو. او څرنګه چې وکالت بالخصومت (يعني د خصومت او دعوې وکيل کېدل) د دعوې سبب دی او دعوىٰ د خصومت مسبب دی، او تاسو ته معلومه ده چې مسبب تر سبب وروسته وي، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله. کتاب الدعوىٰ د وکالت له بيان څخه وروسته بيان کړی دی.

**د دعوى لغوي او اصطلاحي معنى**: د "دعوىٰ" لغوي معنىٰ ده: "قَوْلٌ يُقْصَدُ بِهِ إِيْجَابُ حَقٍّ عَلَى الْغَيْرِ" (يعني داسې قول او خبره چې د هغه په ذريعه پر بل چا ديو حق ثابتولو اراده وکړی سي).

او د شريعت په اصطلاح کې د "دعوىٰ" معنىٰ ده: "مُطَالَبَةُ حَقٍّ فِيْ مَجْلِسِ مَنْ لَهُ الْخَلَاصُ عِنْدَ ثُبُوْتِهٖ" (يعني د داسې کس په مجلس کې د حق مطالبه کول کوم چې د حق ثابتېدلو په وخت کې د حق پر ورکولو قادر وي). په لنډه توګه چې د "دعوىٰ" اصطلاحي معنىٰ ده: د قاضي په مجلس کې د خپل حق مطالبه کول.

**د مدعي او مدعیٰ عليه تعريفونه**

| |
|---|
| قَالَ: اَلْمُدَّعِيْ مَنْ لَا يُجْبَرُ عَلَى الْخُصُوْمَةِ إِذَا تَرَكَهَا فرمايي: مدعي هغه کس دی چې کله هغه خصومت [دعویٰ کول] پرېږدي نو هغه پر خصومت نه مجبورول کيږي وَالْمُدَّعٰى عَلَيْهِ مَنْ يُجْبَرُ عَلَى الْخُصُوْمَةِ او مدعیٰ عليه هغه کس دی کوم چې پر خصومت مجبورول کيږي وَمَعْرِفَةُ الْفَرْقِ بَيْنَهُمَا مِنْ أَهَمِّ مَا يُبْتَنٰى عَلَيْهِ مَسَائِلُ الدَّعْوٰى او پر کومو اُمورو چې د دعوى مسائل مبني دي له هغوی ټولو څخه زيات اهم د مدعي او مدعیٰ عليه په مېنځ کې د فرق پېژندل دي اچې د هغو په مېنځ کې فرق څه دی؟ او د هغو تعريف څه دی؟] وَقَدِ اخْتَلَفَتْ عِبَارَاتُ الْمَشَايِخِ فِيْهِ او په دې باره کې د مشايخو رَحِمَهُمُ الله اقوال |

مختلف دي فَمِنْهَا مَا قَالَ فِي الْكِتَابِ او له هغه اقوالو څخه يو قول هغه دی کوم چي امام قدوري رَحِمَهُ الله په قدوري کي ذکر کړی دی [کوم چي د هدايې متن دی] وَهُوَ حَدٌّ عَامٌّ صَحِيحٌ او هغه عام او صحيح تعريف دی وَقِيلَ: الْمُدَّعِي مَنْ لَا يَسْتَحِقُّ إِلَّا بِحُجَّةٍ او ويل سوي دي: چي مدعي هغه کس دی کوم چي صرف په حجت [دليل] سره مستحق ګرځي كَالْخَارِجِ لکه بهرنی [غير قابض] کس [يعني لکه هغه کس کوم چي د بل چا په قبضه کي د موجود شي مدعي وي] وَالْمُدَّعَى عَلَيْهِ مَنْ يَكُونُ مُسْتَحِقًّا بِقَوْلِهِ مِنْ غَيْرِ حُجَّةٍ او مدعیٰ عليه هغه کس دی کوم چي له حجت څخه بغير صرف په خپل قول سره مستحق ګرځي كَذِي الْيَدِ لکه قابض وَقِيلَ: الْمُدَّعِي مَنْ يَتَمَسَّكُ بِغَيْرِ الظَّاهِرِ او ويل سوي دي: چي مدعي هغه کس دی کوم چي د ظاهري حالت په خلاف سره دليل نيسي وَالْمُدَّعَى عَلَيْهِ مَنْ يَتَمَسَّكُ بِالظَّاهِرِ او مدعیٰ عليه هغه کس دی کوم چي په ظاهري حالت سره دليل نيسي وَقَالَ مُحَمَّدٌ فِي الْأَصْلِ: الْمُدَّعَى عَلَيْهِ هُوَ الْمُنْكِرُ او امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي فرمايلي دي: چي مدعیٰ عليه هغه کس دی کوم چي منکر [انکار کوونکی] وي وَهٰذَا صَحِيحٌ او دا قول [که څه هم] صحيح دی لَكِنَّ الشَّأْنَ فِي مَعْرِفَتِهِ لېکن خبره د هغه د پېژندلو په باره کي ده وَالتَّرْجِيحُ بِالْفِقْهِ عِنْدَ الْحُذَّاقِ مِنْ أَصْحَابِنَا او د فقهي په ذريعه [يعني د معنیٰ په ذريعه] د ترجيح ورکولو حق زموږ ماهرينو علماؤ ته حاصل دی لِأَنَّ الِاعْتِبَارَ لِلْمَعَانِي دُونَ الصُّوَرِ ځکه چي اعتبار معانيو لره دی، نه صورتونو لره فَإِنَّ الْمُودَعَ إِذَا قَالَ: رَدَدْتُ الْوَدِيعَةَ همدا وجه چي کله مودَع ووايي: ما [مودِع ته] امانت واپس کړی دی فَالْقَوْلُ لَهُ مَعَ الْيَمِينِ نو د هغه قول د قسم سره معتبر دی [ځکه دلته د معنیٰ په اعتبار سره هغه د ضمان منکر دی، او د منکر قول د قسم سره معتبر وي] وَإِنْ كَانَ مُدَّعِيًا لِلرَّدِّ صُورَةً که څه هم د صورت په اعتبار سره هغه د واپس کولو مدعي دی لِأَنَّهُ يُنْكِرُ الضَّمَانَ مَعْنًى ځکه چي د معنیٰ په اعتبار سره هغه د ضمان منکر دی.

**اللغات**: ﴿مُدَّعِي﴾ د افتعال د باب فاعل دی، لفظي معنیٰ يې ده: دعویٰ کوونکی کس (دعوه کوونکی).

﴿مُدَّعَىٰ عَلَيه﴾ د مخکني باب مفعول دی، لفظي معنیٰ يې ده: هغه کس چي پر هغه د يو شي دعویٰ

وسي، (يعني چي مدعي پر هغه ديو شي يا ديو حق دعوىٰ وکړي)، ﴿خصومة﴾ جنګ او جنجال، دعوىٰ کول (په اصل کي هغه دعوىٰ ته وايي چي بل يو له هغه څخه منکر وي، يعني چي يو سړی پر بل چا ديو شي دعوىٰ وکړي او دابل څوک له هغه څخه انکار کوي)، ﴿يبتني﴾ د افتعال د باب مضارع ده: مبني کېدل، مدار کېدل، ﴿حدّ﴾ تعريف، ﴿يتمسّك﴾ د تفعّل د باب مضارع ده، مراد: استدلال کول، دليل نيول، ﴿حذاق﴾ جمع د حَاذِقٌ ده: ډېر ماهر، ﴿مودَع﴾ کوم چا ته چي امانت شی ايښوول سوی وي، هغه ته ''مُوْدَع'' وايي، چي هغه ته په بله وينا ''امانت ساتونکی (امين)'' هم وايي، او چا چي امانت ورته ايښی وي يعني د امانت مالک، هغه ته ''مُوْدِع''(بکسر الدال)'' وايي.

**تشريح**: د کتاب الدعوىٰ د زياتره مسئلو تعلق د مدعي او مدعىٰ عليه سره دی، نو ځکه د دوی دواړو پېژندل او په دوی کي فرق کول د کتاب الدعوىٰ له اهمو مباحثو څخه دي او د مشايخو په مينځ کي مختلف فيه هم دي، نو ځکه تر ټولو مخکي د دوی تعريف بيان سوی دی، ① نو د امام قدوري رَحِمَهُ الله په نېز د هغو تعريف دا دی چي مدعي هغه کس ته ووايي کوم چي پر خصومت (دعوىٰ کولو) نه مجبوروول کيږي يعني که له دعوىٰ کولو څخه وروسته هغه خپل دعوىٰ پرېږدي نو هغه بير ته پر دعوىٰ کولو نه مجبوروول کيږي، اومدعىٰ عليه هغه کس ته وايي کوم چي پر خصومت مجبوروول کيږي، يعني د مدعي له دعوی کولو څخه وروسته هغه د جواب پر ورکولو مجبوروول کيږي او هغه ته له خصومت څخه د ځان کښلو اجازت نه وي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا تعريف صحيح هم دی او عام هم دی، صحيح خو ځکه دی چي دا تعريف خپل ټولو افرادو لره جامع دی، او عام ځکه دی چي د مدعي او مدعىٰ عليه په باره کي چي څومره تعريفونه سوي دي، دا تعريف هغه ټولو لره شامل دی. (بنايه:۸)

وقيل المدعي: ② دويم تعريف دا دی چي مدعي هغه کس ته وايي کوم چي له حجت او دليل څخه بغير د هغه شي نه مستحق کيږي د کوم شي په باره کي چي هغه دعوىٰ کوي (په لنډه توګه دا چي مدعي هغه کس دی کوم له حجت څخه بغير د مُدعىٰ به نه مستحق کيږي) بلکي صرف په حجت سره د هغه مستحق کيږي، د حجت مطلب دا چي هغه به يا ګواهي (بيّنه) پېشوي يا مدعىٰ عليه به اقرار کوي او يا مدعىٰ عليه به له قسم اخيستلو څخه انکار کوي، مثلاً هغه کس کوم چي د داسي شي دعوىٰ وکړي چي هغه د بل چا په قبضه کي وي، نو په دې صورت کي مدعي هغه وخت د دې شي مستحق کيږي کله چي

شرعي حجت موجود وي (يعني ګواهي [بينه] يا اقرار يا انکار). او مدعیٰ عليه هغه کس ته وايي کوم چي فقط په خپل قول سره د مقبوضه شي مستحق کيږي. مثلاً هغه کس کوم چي پر يو شي قابض وي (يعني شی د هغه په خپل قبضه کي وي)، نو که هغه داسي ووايي چي "دا شی زما ملکيت دی". نو فقط په دومره وينا سره د هغه حق ثابتيږي او هغه ته د هيڅ حجت او دليل ضرورت نسته. تر دې چي مدعي خپل استحقاق ثابت نه کړي.

③ درېيم تعريف دا دی چي مدعي هغه کس ته وايي کوم چي په خلاف ظاهر (د ښکاره حالت په خلاف) سره دليل ونيسي يعني د هغه قول د ظاهر (ظاهري حالت) خلاف وي. او مدعیٰ عليه هغه کس ته وايي چي د هغه قول د ظاهر موافق وي.

④ څلورم تعريف کوم چي امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي ذکر کړی دی، دا دی چي مدعیٰ عليه منکر ته وايي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله وايي چي دا تعريف صحيح دي، ځکه چي دې ته د حديث تائيد حاصل دی. ځکه په يوه حديث کي ذکر سوي دي: "البَيِّنَةُ عَلَى المُدَّعِيْ" او په بل حديث کي ذکر سوي دي: "وَاليَمِيْنُ عَلٰى مَنْ أَنْكَرَ"، نو د دواړو په جمع کولو سره دا معلوميږي چي کوم يو منکر (انکار کونکی) وي هغه مدعیٰ عليه دی.

لکن الشأن في معرفته إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په دې قول سره هم خبره پوره نه ښکاره کيږي، ځکه زموږ خبره د همدې منکر د پېژندلو په باره کي ده چي له فريقينو څخه منکر (مدعیٰ عليه) کوم يو دی او مدعي کوم يو دی، ځکه د دوی په مينځ کي د فرق پېژندلو په حواله سره معامله ستونزمنه ده، ځکه چي ځيني وخت يو څوک صورتاً مدعي معلوميږي او معناً منکر معلوميږي. او ځيني وخت يو څوک صورتاً منکر معلوميږي او معناً مدعي معلوميږي، يعني ځيني وخت په يوه کس کي په يوه جهت سره دعویٰ او په يوه جهت سره انکار جمع سي، او کله چي په يوه کس کي دعویٰ او انکار دواړه جمع سي. نو د دې پېژندل به ضروري وي چي دا کس مدعي دی او که منکر (مدعیٰ عليه) دی.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي زموږ ماهرين علماء او مشايخ د معنیٰ په ذريعه ترجيح ورکوي او د معنیٰ په ذريعه د مدعي او مدعیٰ عليه په مينځ کي فرق کوي. مطلب دا چي کله د دعویٰ جهت او د انکار جهت سره متعارض سي، نو د معنیٰ په ذريعه به يې فرق کيږي او د معنیٰ جهت ته به ترجيح ورکول کيږي، يعني که د معنیٰ په اعتبار سره يو څوک مدعي وي نو هغه به مدعي ګرځول

کيږي او که د معنیٰ په اعتبار سره منکر وي نو هغه به مدعیٰ عليه ګرځول کيږي، ځکه چي اعتبار معانيو لره دی يعني په حقيقت کي د معنیٰ اعتبار کيږي او د ظاهري صورت او لفظ اعتبار نه کيږي، همدا وجه ده که مودَع (امانت ساتونکی) دعویٰ وکړي چي ما مخکي لا مودع ته امانت واپس کړی دی، نو څرنګه چي دلته مودَع صورتاً (د ظاهري صورت په اعتبار سره) د واپس کولو مدعي دی لېکن معناً هغه د ضمان له وجوب څخه منکر دی، يعني په حقيقت کي د هغه د قول مطلب دا دی چي پر ما د امانت ضمان (تاوان) واجب نه دی، څرنګه چي په دغه کس (مودَع) کي د صورت او معنیٰ دواړه جهتونه سره متعارض سول، نو ځکه د معنیٰ جهت ته به ترجيح ورکول کيږي او د هغه مطابق به فيصله کيږي. او دلته د معنیٰ په اعتبار سره مودَع منکر دی، نو ځکه د قسم (يمين) سره به د هغه قول معتبر وي.

## دعویٰ به کله قبلول کيږي؟

قَالَ: وَلَا يُقْبَلُ الدَّعْوٰى حَتّٰى يَذْكُرَ شَيْئًا مَعْلُومًا فِي جِنْسِهِ وَقَدْرِهِ فرمايي: او دعویٰ به نه قبلول کيږي تر دې چي مدعي داسي شی ذکر کړي چي د هغه جنس او مقدار معلوم وي لِأَنَّ فَائِدَةَ الدَّعْوٰى الْإِلْزَامُ بِوَاسِطَةِ إِقَامَةِ الْحُجَّةِ ځکه چي د دعویٰ فايده د حجت قائمولو [بينه پېشولو] په ذريعه [پر مدعیٰ عليه د مُدعیٰ به] لازمول دي وَالْإِلْزَامُ فِي الْمَجْهُولِ لَا يَتَحَقَّقُ او په مجهول شي کي لازمول ممکن نه دي فَإِنْ كَانَ عَيْنًا فِي يَدِ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ بيا که [مُدعیٰ به] عَين شی وي [او] د مدعیٰ عليه په قبضه کي وي كُلِّفَ إِحْضَارَهَا نو مدعیٰ عليه به د هغه شي په حاضرولو مکلف کيږي [يعني قاضي به مدعیٰ عليه ته د هغه شي د حاضرولو حکم کوي] لِيُشِيرَ إِلَيْهَا بِالدَّعْوٰى د دې لپاره چي په دعویٰ کولو کي د هغه وطرف ته اشاره وکړی سي وَكَذَا فِي الشَّهَادَةِ وَالْاِسْتِحْلَافِ او همدارنګه په ګواهي اداء کولو او قسم اخيستلو کي [به مدعیٰ عليه د هغه په حاضرولو سره مکلف کيږي، د دې لپاره چي د هغه وطرف ته اشاره وکړی سي] لِأَنَّ الْإِعْلَامَ بِأَقْصٰى مَا يُمْكِنُ شَرْطٌ ځکه چي حتی الامکان خبر ورکول شرط دي وَذٰلِكَ بِالْإِشَارَةِ فِي الْمَنْقُولِ او داسي خبر ورکول په منقول شي کي په اشاره سره کيږي لِأَنَّ النَّقْلَ مُمْكِنٌ ځکه چي [د منقول شي] نقل کول ممکن دي وَالْإِشَارَةُ أَبْلَغُ فِي التَّعْرِيفِ او اشاره په تعريف کولو [او ور پېژندلو] کي ابلغ ده وَيَتَعَلَّقُ بِالدَّعْوٰى وُجُوبُ الْحُضُورِ او د صحيح دعویٰ سره [يو څو اُمور] متعلق کيږي [چي

له هغوی څخه يو] پر مدعیٰ علیه د حاضرېدلو واجبېدل دي وَعَلَىٰ هَٰذَا الْقُضَاةُ مِنْ آخِرِهِمْ فِي كُلِّ عَصْرٍ او پر همدې [طريقه] په هره زمانه کې له اول څخه تر آخره پورې قاضيان [عمل کونکي] دي وَوُجُوبُ الْجَوَابِ إِذَا حَضَرَ [۲] او پر مدعیٰ علیه د جواب واجبېدل کله چې هغه حاضر سي لِيُفِيدَ حُضُورُهُ د دې لپاره چې د هغه حاضرېدل فايده ورکړي وَلُزُومُ إِحْضَارِ الْعَيْنِ الْمُدَّعَاةِ [۳] او پر مدعیٰ علیه د هغه [منقول] شي د حاضرولو لازمېدل چې د هغه په باره کې دعویٰ سوې وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَالْيَمِينِ إِذَا أَنْكَرَهُ [۴] او پر مدعیٰ علیه د قسم لازمېدل کله چې هغه له دعوی څخه انکار وکړي وَسَنَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَىٰ او دا به موږ انشاء الله ژر ذکر کړو قَالَ: وَإِنْ لَمْ تَكُنْ حَاضِرَةً فرمايي: که چيرې هغه منقول شی حاضر نه وي ذَكَرَ قِيمَتَهَا نو د هغه قيمت به ذکر کوي لِيَصِيرَ الْمُدَّعَىٰ مَعْلُومًا د دې لپاره چې مدعیٰ به [يعني د کوم شي په باره کې چې دعویٰ سوې وي، هغه] معلوم وګرځي لِأَنَّ الْعَيْنَ لَا تُعْرَفُ بِالْوَصْفِ ځکه چې عَين شی د وصف په ذريعه نه معلومېږي وَالْقِيمَةُ تُعْرَفُ بِهِ او د قيمت په ذريعه معلومېږي وَقَدْ تَعَذَّرَ مُشَاهَدَةُ الْعَيْنِ حال دا چې [دلته] د عَين شي ليدل ناممکن دي وَقَالَ الْفَقِيهُ أَبُو اللَّيْثِ: يُشْتَرَطُ مَعَ بَيَانِ الْقِيمَةِ ذِكْرُ الذُّكُورَةِ وَالْأُنُوثَةِ او فقيه ابو الليث رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د قيمت بيانولو سره د مذکر والي او مؤنث والي ذکر کول هم شرط دي.

**اللغات**: ﴿إِلزام﴾ د افعال د باب مصدر دی: لازمول. ﴿عَين﴾ مُتعيّن شی. ﴿منقول﴾ نقل کېدونکی شی، کوم چې له يو ځايه بل ځای ته نقل کېدای سي. ﴿كُلِّف﴾ د تفعيل د باب ماضي مجهوله ده: مکلف کول (مکلف جوړول)، حکم کول. ﴿إعلام﴾ د افعال د باب مصدر دی: خبرول، خبر ورکول (اطلاع ورکول). ﴿مُدَّعىٰ﴾ او مُدَّعىٰ بِهٖ: د کوم شي په باره کې چې دعویٰ سوې وي، يعني مدعي چې د کوم شي دعویٰ کړې وي، هغه شي ته مُدَّعىٰ بِهٖ وايي.

**تشريح**: صورت د مسئلې ډېر واضح او آسانه دی. حاصل يې دا دی چې د دعوې د صحيح کېدلو او قبلېدلو لپاره دا ضروري دي چې مدعي د مدعیٰ به جنس او مقدار هم ذکر کړي، يعني هغه چې د کوم شي دعویٰ کوي، د هغه جنس او مقدار به هم بيانوي، کنې د هغه دعویٰ به نه قبلول کيږي، مثلاً داسي

به وايي چي "پر فلانکي زما پنځه سوه روپۍ باندي دي يا زما پر هغه مثلاً پنځوس سېره غنم باندي دي"؛ ځکه چي د دعوی کولو فايده دا ده چي د حجت او بيني په ذريعه پر مدعیٰ عليه د مدعي حق لازم او واجب کړی سي، اوس که چيري مدعیٰ بهٖ مجهول وي نو ښکاره خبره ده چي د هغه لازمول به ممکن نه وي، نو ځکه د مدعیٰ بهٖ جنس او مقدار بيانول ضروري دي.

فإن كان عيناً إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مدعیٰ بهٖ عَين او منقول شی وي او د مدعیٰ عليه په قبضه کي موجود وي، نو مدعیٰ عليه به په دې سره مکلف کيږي چي هغه شی د قاضي مجلس (عدالت) ته حاضر کړي، د دې لپاره چي مدعي د خپل دعویٰ پېشولو په وخت کي يا د مدعي ګواهان د ګواهي ورکولو په وخت کي د هغه وطرف ته اشاره وکړی سي؛ ځکه د مدعیٰ بهٖ په باره کي حتی الامکان خبر ورکول شرط دي، او د منقول شي په باره کي حتی الامکان او پوره خبر ورکول په اشاره سره کيږي، او د قاضي مجلس ته د منقول شي نقل کول (وړل) ممکن هم دي، او په اشاره سره د يو شي پوره او کامل تعريف کيږي، ځکه اشاره کول داسي دي لکه پر شي لاس ايښوول، او تر لاس ايښوولو وروسته د شي په پېژندنه کي هيڅ شبهه نه پاتيږي، نو ځکه کله چي مدعیٰ بهٖ منقول شي وي، نو د قاضي مجلس ته د هغه حاضرول ضروري دي.

ويتعلق بالدعوى إلخ: فرمايي که چيري د مدعي دعویٰ صحيح وي، نو د هغه سره يو څو اُمور متعلق کيږي:

①... پر مدعیٰ عليه د قاضي په مجلس کي حاضرېدل واجبيږي، ځکه د نبي کريم ﷺ له زمانې څخه واخله! تر نن ورځي پوري همدا سلسله جاري ده، او د هري زماني قاضيان پر همدې طريقه عمل کوي.

②... کله چي مدعیٰ عليه حاضر سي، نو پر هغه (په "نعم" يا "لا" سره) جواب ورکول واجبيږي، د دې لپاره چي د هغه حاضرېدل فايده ورکړي او مفيد ثابت سي؛ ځکه د مدعیٰ عليه د حاضرېدلو مقصد همدا جواب ورکول دي.

③... که مدعیٰ بهٖ منقول شی وي، نو د هغه وطرف ته د اشاره کولو لپاره د هغه حاضرول هم لازميږي؛ لکه څه مخکي چي د دې دليل تېر سو.

④... که مدعیٰ علیه د مدعي له دعوې څخه انکار وکړي او بیا مدعي له ګواهۍ پېشولو څخه عاجزه سي، نو پر مدعیٰ علیه قسم اخیستل لازمیږي، د قسم لازمېدلو بیان به انشاء الله د دې باب په آخر کي راسي.

قال وإن لم تكن حاضرة إلخ: فرمایي مدعي چي د کوم منقول شي دعویٰ کوي، که چیري هغه د مدعي علیه په قبضه کي موجود نه وي بلکي له هغه څخه ضایع سوی وي، نو په دې صورت کي پر مدعي د هغه شي قیمت بیانول ضروري دي، د دې لپاره چي د هغه دعویٰ صحیح سي، او په دې صورت کي فقط د شي وصف بیانول کافي نه دي؛ ځکه چي د وصف په ذریعه عَین شی نه پېژندل کیږي؛ ځکه ځیني وخت یو وصف د ډېرو شیانو په مینځ کي مشترک وي، نو د مشترک والي په وجه د هغه وصف په ذریعه د شي پېژندنه نه سي کېدلای، او پاته سو قیمت، نو د هغه په ذریعه شی پېژندل کېدای سي، او څرنګه چي د هغه ضایع سوي شي مشاهده کول (لیدل) ناممکن دي نو ځکه صرف د قیمت ذکر کول به مفید وي، ځکه چي په داسي صورت کي د خبر ورکولو آخري امکاني درجه صرف قیمت ذکر کول دي.

فقیه ابو اللیث رَحِمَهُ الله فرمایي چي که مدعیٰ بهٖ د حیوان له قبیلې څخه وي، نو پر مدعي لازم دي چي د قیمت بیانولو سره، سره به دا هم ذکر کوي چي هغه مذکر دی یا مؤنث دی.

## د غیرِ منقول شي (جایداد) په باره کي د دعوې کولو شرطونه

| |
|---|
| قَالَ: فَإِنِ ادَّعَى عَقَارًا فرمایي: که مدعي د غیرِ منقول شي [جایداد] دعویٰ وکړي حَدَّدَهُ نو مدعي به د هغه حدود ذکر کوي وَذَكَرَ أَنَّهُ فِي يَدِ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ وَأَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِهِ او دا به [هم] ذکر کوي چي هغه شی د مدعیٰ علیه په قبضه کي دی او دا [به هم ذکر کوي] چي زه له مدعیٰ علیه څخه د هغه مطالبه کوم لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ التَّعْرِيفُ بِالْإِشَارَةِ لِتَعَذُّرِ النَّقْلِ ځکه چي د نقل کولو د ناممکن والي په وجه [د غیرِ منقول شي] تعریف د اشارې په ذریعه کول ناممکن دي فَيُصَارُ إِلَى التَّحْدِيدِ نو ځکه د حدودو د ذکرلو وطرف ته به رجوع کیږي فَإِنَّ الْعَقَارَ يُعْرَفُ بِهِ ځکه چي جایداد د حدودو په ذکر کولو سره معلومیږي وَيَذْكُرُ الْحُدُودَ الْأَرْبَعَةَ وَيَذْكُرُ أَسْمَاءَ أَصْحَابِ الْحُدُودِ وَأَنْسَابَهُمْ او مدعي به څلور سره حدود ذکر کوي او د حدودو د مالکانو نومونه او نسبونه به [هم] ذکر کوي وَلَا بُدَّ مِنْ ذِكْرِ الْجَدِّ او د نیکه ذکر کول [هم] ضروري دي لِأَنَّ تَمَامَ التَّعْرِيفِ بِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ |

الله په نېز تعريف د نيکه په ذکر کولو سره پوره کيږي عَلٰى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي معلوم سوي دي هُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح ده وَلَوْ كَانَ الرَّجُلُ مَشْهُورًا او که چيري سړی [يعني د يوه حدّ مالک] مشهوره وي يُكْتَفٰى بِذِكْرِهِ نو [صرف] د هغه په ذکر کولو سره [هم] اکتفاء کېداى سي فَإِنْ ذَكَرَ ثَلَاثَةً مِنَ الْحُدُودِ او که چيري مدعي درې حدود ذکر کړي يُكْتَفٰى بِهَا عِنْدَنَا نو زموږ په نېز په دې اکتفاء کېداى سي خِلَافًا لِزُفَرَ ۞ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله لِوُجُودِ الْأَكْثَرِ ځکه چي اکثره حدود موجود سوه بِخِلَافِ مَا إِذَا غَلِطَ فِي الرَّابِعَةِ په خلاف د هغه صورت کله چي مدعي د څلورم حد په ذکر کولو کي غلطي وکړي لِأَنَّهُ يُخْتَلَفُ بِهِ الْمُدَّعٰى ځکه چي په دې سره دعوىٰ مختلف کيږي وَلَا كَذٰلِكَ بِتَرْكِهَا او د هغه په پرېښوولو کي دا خبره نسته وَكَمَا يُشْتَرَطُ التَّحْدِيدُ فِي الدَّعْوٰى يُشْتَرَطُ فِي الشَّهَادَةِ او څرنګه چي په دعوىٰ کي د حدودو ذکر کول شرط دي همداسي په ګواهي کي هم هغه شرط دي وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ ''وَذَكَرَ أَنَّهُ فِي يَدِ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ'' لَا بُدَّ مِنْهُ او په قدوري [متن] کي د امام رَحِمَهُ الله دا قول ''وَذَكَرَ أنهُ فِيْ يَدِ المُدعٰى عَلَيْه'' [ځکه] ضروري دي [يعني پر مدعي د دې خبري ذکر کول (چي هغه شی [عقار] د مدعىٰ عليه په قبضه کي دی) ځکه شرط او ضروري دي] لِأَنَّهُ إِنَّمَا يَنْتَصِبُ خَصْمًا إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ ځکه چي مدعىٰ عليه [صرف] په هغه وخت کي مدعىٰ عليه ګرځي کله چي مدعىٰ بِهٖ [عقار] د هغه په قبضه کي وي وَفِي الْعَقَارِ لَا يُكْتَفٰى بِذِكْرِ الْمُدَّعِي وَتَصْدِيقِ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ أَنَّهُ فِي يَدِهِ او په عقار [جايداد] کي محض د مدعي پر ذکر کولو [دعوىٰ کولو] او د مدعىٰ عليه پر داسي تصديق کولو ''چي دا عقار زما په قبضه کي دی'' په اکتفاء نه کيږي بَلْ لَا تَثْبُتُ الْيَدُ فِيهِ إِلَّا بِالْبَيِّنَةِ أَوْ عِلْمِ الْقَاضِي بلکي په عقار کي قبضه نه ثابتيږي مګر په ګواهي سره يا د قاضي په خبرېدلو [او معلومات حاصلولو] سره هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده نَفْيًا لِتُهْمَةِ الْمُوَاضَعَةِ د دې لپاره چي د موافقت کولو [او سازش کولو] تهمت نفي سي [يعني چي دا تهمت ختم سي چي شايد مدعي او مدعىٰ عليه د عقار (جايداد) پر لاندي کولو موافقت کړی وي او سازش به يې جوړ کړی وي] إِذِ الْعَقَارُ عَسَاهُ فِي يَدِ غَيْرِهِمَا ځکه کېداى سي چي عقار

---

۞ القول الراجح: قول الجمهور، كما قال فخر الدين قاضي خان رَحِمَهُ الله: ولو ذكر الحدود الثلاثة وسكت عن الرابع، لا يضر (الخانية ج:۳، ص:۶۴)، وفي الدر المختار: ويكتفى بذكر ثلاثة، فلو ترك الرابع، صح. (ج:۳، ص:۴۶۹). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۶۹]

[جایداد] له دوی دواړو څخه بغیر د بل چا په قبضه کي وي بِخِلَافِ الْمَنْقُولِ په خلاف د منقول شي [کوم چي له یوه ځایه بل ځای ته نقل کېدای سي] لِأَنَّ الْيَدَ فِيهِ مُشَاهَدَةٌ ځکه چي په هغه کي قبضه [په سترګو] لیدل کېدونکې وي وَقَوْلُهُ وَأَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِهِ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "وأَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِهِ" [ځکه شرط او ضروري دي] لِأَنَّ الْمُطَالَبَةَ حَقُّهُ ځکه چي مطالبه د مدعي حق ده فَلَا بُدَّ مِنْ طَلَبِهِ نو ځکه د مدعي مطالبه کول ضروري دي وَلِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ مَرْهُونًا فِي يَدِهِ أَوْ مَحْبُوسًا بِالثَّمَنِ فِي يَدِهِ او ځکه چي دا احتمال سته چي عقار د مدعیٰ علیه په قبضه کي د رهن په توګه وي یا د هغه په قبضه کي د ثمن په خاطر محبوس وي [یعني یا مدعیٰ علیه به هغه د ثمن په بدله کي راګرځولی وي] وَبِالْمُطَالَبَةِ يَزُولُ هَذَا الِاحْتِمَالُ او په مطالبه کولو سره دا احتمال ختمیږي وَعَنْ هٰذَا قَالُوا: فِي الْمَنْقُولِ يَجِبُ أَنْ يَقُولَ: فِي يَدِهِ بِغَيْرِ حَقٍّ او له همدې کبله مشایخو ویلي دي: چي په منقول شي کي د مدعي لپاره دا ویل ضروري دي: چي هغه د مدعیٰ علیه په قبضه کي په ناحقه توګه دی [یعني مدعیٰ علیه په ناحقه (ظلماً) پر هغه قبضه کړې ده] قَالَ: وَإِنْ كَانَ حَقًّا فِي الذِّمَّةِ فرمايي: او که مدعیٰ به په ذمه کي یو حق [دَین] وي [عَین شی نه وي] ذَكَرَ أَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِهِ نو [هم] به مدعي دا ذکر کوي چي زه له مدعیٰ علیه څخه د هغه مطالبه کوم لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَهٰذَا لِأَنَّ صَاحِبَ الذِّمَّةِ قَدْ حَضَرَ او دا ځکه چي صاحب الذمه [مدعیٰ علیه] خو حاضر سوی دی فَلَمْ يَبْقَ إِلَّا الْمُطَالَبَةُ نو ځکه [د مدعي] له مطالبې څخه بغیر بل هیڅ شی پاته نه دی لَكِنْ لَا بُدَّ مِنْ تَعْرِيفِهِ بِالْوَصْفِ لیکن په وصف بیانولو سره د هغه حق [دَین] تعریف کول ضروري دي لِأَنَّهُ يُعْرَفُ بِهِ ځکه چي هغه حق [دَین] په وصف سره معلومیږي.

**اللغات:** ﴿عقار﴾ جایداد، غیرِ منقول (ثابت) شی کوم چي له یوه ځایه بل ځای ته نه سي نقل کېدای، لکه ځمکه، کور، لویه درخته او داسي نور، ﴿حدّده﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: حدود بیانول، حد بندي کول، ﴿ید﴾ لاس، مراد ځني قبضه ده، ﴿مواضعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چي له هغه څخه یوه معنیٰ ده: پر یو شي موافقت کول، مراد ځني سازش کول او پلان جوړول دي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مدعي ديو غيرِ منقول شي مثلاً د ځمکي دعویٰ وکړي، نو د هغه دعوی د صحيح کېدلو او قبلېدلو لپاره درې شيان شرط او ضروري دي: ① مدعي به د مدعیٰ بهٖ (ځمکي) څلور سره حدود ذکر کوي (چي مثلاً د ځمکي د مشرق وطرف ته د فلانکي سړي ځمکه ده او د شمال وطرف ته يې د فلانکي ځمکه ده او د مغرب وطرف ته...)، ② او مدعي به دا خبره هم کوي چي مدعیٰ بهٖ د مدعیٰ عليه په قبضه کي موجود دی، ③ او دا به هم وايي چي ما له مدعیٰ عليه څخه د مدعیٰ بهٖ مطالبه کړې ده.

د څلور سره حدودو د ذکر کولو دليل دا دی چي دلته مدعیٰ بهٖ د غيرِ منقول شيانو له قبيلې څخه دی (يعني مُدعیٰ بهٖ ځمکه ده)، او د قاضي مجلس ته د هغه نقل کول او حاضرول ناممکن دي، نو ځکه په اشاره سره د هغه پېژندنه او تعريف نه سي کېدای، او په کومو شيانو کي چي په اشاره سره تعريف او پېژندنه ناممکن وي، د هغوی پېژندنه د حدود اربعه په ذکر کولو سره کيږي، نو ځکه په پورتني صورت کي به مدعي حدود اربعه ذکر کوي او د هر حد د مالک نوم او نسب به هم ذکر کوي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به د هر مالک د نيکه نوم هم ذکر کوي، مثلاً داسي به وايي چي د ځمکي د مغرب وطرف ته د خالد بن ادريس بن عمر ځمکه ده (يا مثلاً داسي به وايي مغربي حدّ د خالد بن ادريس بن عمر دی)؛ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تعريف د نيکه په ذکر کولو سره پوره کيږي، او همدا صحيح ده لکه څرنګه چي په نورو ځايو کي هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول داسي دی.

ولوكان الرجل إلخ: فرمايي که له حدود اربعه وو څخه د يوه حد مالک ډېر مشهوره وي او مدعي فقط د هغه پر نوم اکتفاء وکړي او د هغه نسب ذکر نه کړي، نو هم صحيح دي، همدارنګه که مدعي له حدود اربعه وو څخه درې حدود بيان کړي او د څلورم حد تذکره نه وکړي، نو هم زموږ په نېز په دې سره تعريف او پېژندنه پوره کيږي؛ ځکه چي درې د څلورو اکثر دي او د "لِلأَكْثَرِ حُكْمُ الكُلِّ" د قاعدې په وجه درې حدود بيانول داسي دي لکه څلور سره حدود بيانول. لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز درې حدود بيانول کافي نه دي، د هغه دليل قياس دی او هغه دا چي کله مدعي ديوه حد په ذکر کولو کي غلطي وکړي نو د هغه دعویٰ باطليږي، لهذا کله چي هغه ديوه حد ذکر او بيان پرېږدي (ترک کړي) نو هم به د هغه دعویٰ باطليږي.

زموږ له طرفه امام زفر رَحِمَهُ الله ته جواب دا دی چې غلطي کول له پرېښوولو (ترک کولو) څخه جلا شی دي، ځکه چې په غلطي کولو سره د مدعي دعویٰ مختلف کيږي او د هغه په قول کې تعارض راځي، حالانکې په پرېښوولو سره نه دعویٰ مختلف کيږي او نه په قول کې تعارض راځي، نو ځکه يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

وکما يشترط التحديد إلخ: د دې حاصل دا دی چې څرنګه د دعویٰ کولو په صورت کې د غيرِ منقول شي (ځمکې) حدود اربعه بيانول شرط دي، همداسې د ګواهۍ اداء کولو په صورت کې هم د هغه حدود اربعه بيانول شرط دي، د دې لپاره چې ګواهي مِن کُلّ وجه (په هر اعتبار) د دعوې سره موافقه او مطابقه سي.

وقوله في الكتاب إلخ: فرمايي په قدوري (متن) کې چې پر مدعي کوم دويم شرط لګول سوی دی چې مدعي به دا خبره هم کوي چې مدعیٰ بِهٖ (ځمکه) د مدعیٰ عليه په قبضه کې موجوده ده، د هغه شرط دليل دا دی چې مدعیٰ عليه هغه وخت خصم (مدعیٰ عليه) ګرځي کله چې مدعیٰ بِهٖ د هغه سره موجود وي، او دا موجود والی به په حجت او بيّنه سره ثابتول کيږي، همدا وجه ده که مدعي ووايي چې فلانی ځمکه د مدعیٰ عليه په قبضه کې ده او مدعیٰ عليه د هغه تصديق وکړي چې "هو! هغه ځمکه زما په قبضه کې ده"، نو محض د مدعي په دعویٰ او د مدعیٰ عليه په تصديق سره به دا دعویٰ نه قبلول کيږي، بلکې د دې د صحت او مقبوليت لپاره به بيّنه (ګواهي) پېشول کيږي، يا قاضي به په دې باره کې معلومات او خبر حاصلوي چې مدعیٰ بِهٖ (ځمکه) د مدعیٰ عليه په قبضه کې موجوده ده، ځکه چې په داسې کولو سره به دا تهمت ختم سي چې مدعي او مدعیٰ عليه هسې پلان او سازش جوړوي او د درواغو په دعویٰ سره هغه ځمکه لاندې کوي، ځکه کوم شی چې په بيّنه سره ثابت سي يا قاضي ته معلوم سي، نو په هغه کې د تهمت شبهه نه پاتيږي.

د دې په خلاف که مدعیٰ بِهٖ منقول شی وي، نو پر هغه شي د مدعیٰ عليه د قبضې ثابتولو لپاره بينې پېشولو ته ضرورت نسته؛ ځکه په منقول شي کې قبضه مشاهده وي (يعني په سترګو سره ليدل کيږي چې هغه شی د مدعیٰ عليه قبضه کې دی، ځکه هغه د قاضي مجلس ته حاضرول کېدای سي)، او همدا قبضه د ملکيت دليل ده، نو ځکه په منقول شي کې به د قبضې ثابتولو لپاره عليحده دليل ته ضرورت نه وي.

وقوله وأنه يطالبه إلخ: فرمايي په قدوري (متن) کې چې پر مدعي کوم درېيم شرط لګول سوی دی چې هغه به د مدعیٰ بِهٖ د مطالبه کولو خبره هم کوي، د هغه وجه دا ده چې کله د مدعي په نيز مدعیٰ بِهٖ

(ځمکه) د هغه حق دی، نو ښکاره خبره ده چي د هغه مطالبه کول به هم د مدعي حق وي او له مطالبه کولو څخه بغير به هغه شی ده ته نه ورکول کيږي. او بل دا چي دلته دا احتمال هم سته چي کېدای سي مدعي به له مدعیٰ عليه څخه قرض اخيستی وي او هغه ته به يې ځمکه د رهن په توګه ورکړې وي يا مدعي به هغه ځمکه له مدعیٰ عليه څخه رانيولی وي لېکن ثمن به نه لري او د ثمن نه ورکولو په خاطر به مدعیٰ عليه هغه راګرځولې وي، او دا احتمال هغه وخت ختميږي کله چي مدعي د قاضي په مجلس کي د مدعیٰ عليه مخته د هغه ځمکي مطالبه وکړي (چي زه خپل ځمکه له مدعیٰ عليه څخه غواړم)، ځکه په مطالبه کولو سره به دا خبره ښکاره سي چي مدعي هغه ځمکه نه په رهن کي ورکړې ده او نه د ثمن په بدله کي مدعیٰ عليه له هغه څخه راګرځولې ده. لهذا د دغه احتمال د ختمولو لپاره پر مدعي د مدعیٰ بهٖ (ځمکي) مطالبه کول شرط دي.

او په همدې خاطر مشايخو دا خبره کړې ده چي که دعویٰ د منقول شي په باره کي وي، نو پر مدعي لازم دي چي د مطالبه کولو په وخت کي به دا خبره هم کوي چي مدعیٰ عليه په ناحقه پر هغه شي قبضه کړې ده، ځکه چي په دې خبري سره دا احتمال ختميږي چي هغه به مرهون شی وي يا مدعیٰ عليه به هغه د ثمن په بدله کي راګرځولی وي.

قال وإن كان حقًا في الذمة إلخ: فرمايي که مدعیٰ بهٖ عَين شی نه وي، بلکي د مدعیٰ عليه پر ذمه (غاړه) واجب سوی حق وي (په لنډه توګه دا چي که مُدعیٰ بهٖ معلوم شی نه وي، بلکي يو دَين [قرض] وي)، نو په دې کي صورت هم پر مدعي د هغه (دَين) مطالبه کول ضروري دي، يعني داسي به وايي چي زه له مدعیٰ عليه څخه د هغه حق (دَين) مطالبه کوم، دليل مخکي تېر سو چي مطالبه د مدعی حق ده. لهذا د هغه لپاره مطالبه کول ضَروري دي، او دا ځکه چي کله صاحب الذمه (من عليه الحق) يعني مدعیٰ عليه د قاضي په مجلس کي حاضر وي، نو ښکاره خبره ده چي اوس د مدعي له مطالبه کولو څخه بغير بل شی پاته نه دی، نو ځکه مدعي ته پکار دي چي په خپل کار شروع وکړي يعني د حق مطالبه وکړي.

او څرنګه چي په پورتني صورت کي مدعیٰ بهٖ عَين شی نه دی بلکي دَين (قرض) دی او د هغه وطرف ته اشاره کول ممکن نه دي، نو ځکه پر مدعي لازم دي چي په وصف سره به هم د هغه تعريف، کوي يعني د هغه وصف به بيانوي (مطلب دا چي د هغه کَرَه والی، کوټه والی او داسي نور به هم بيانوي)، مثلاً داسي به وايي چي "زه له مدعیٰ عليه څخه د خپل پنځه سوه کَرَه دراهمو مطالبه کوم". د دې لپاره چي هيڅ دول ستونزه او شبهه پيدا نه سي.

## له دعوىٰ صحيح كېدلو او ثابتېدلو څخه وروسته د قاضي ذمه واري

قَالَ: وَإِذَا صَحَّتِ الدَّعْوٰى فرمايي: او كله چي دعوىٰ صحيح سي سَأَلَ الْقَاضِيْ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ عَنْهَا لِيَنْكَشِفَ لَهُ وَجْهُ الْحُكْمِ نو قاضي دي [اول] له مدعىٰ عليه څخه د هغه دعوې په باره كي پوښتنه وكړي، د دې لپاره چي د حكم جهت واضح سي فَإِنِ اعْتَرَفَ نو كه چيري مدعىٰ عليه [د دعوې] اقرار وكړي قَضٰى عَلَيْهِ بِهَا نو قاضي دي د هغه دعوې مطابق پر مدعىٰ عليه فيصله وكړي لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مُوجِبٌ بِنَفْسِهِ ځكه چي اقرار بذاتِ خود واجبونكى دى فَيَأْمُرُهُ بِالْخُرُوجِ عَنْهُ نو ځكه قاضي به مدعىٰ عليه ته د دې اقرار له ذمه واري څخه د وتلو حكم كوي وَإِنْ أَنْكَرَ او كه چيري مدعىٰ عليه [د دعوې] انكار وكړي سَأَلَ الْمُدَّعِيَ الْبَيِّنَةَ نو قاضي دي له مدعي څخه د بينې مطالبه وكړي لِقَوْلِهِ الْعَلِيْلًا [1] : « أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟ د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه: "آيا ستا سره بيّنه سته؟ فَقَالَ: لَا نو هغه [مدعي] وويل: چي نه! فَقَالَ: لَكَ يَمِينُهُ » بيا نبي ﷺ وفرمايل: ستا لپاره د هغه [مدعىٰ عليه] قسم دى سَأَلَ وَرَتَّبَ الْيَمِينَ عَلَى فَقْدِ الْبَيِّنَةِ [په دې حديث كي] نبي كريم ﷺ له مدعي څخه د بينې مطالبه كړې ده او د بينې پر نشتوالي يې قسم مُرتّب كړى دى [مطلب دا چي قاضي به اول له مدعي څخه د بيّنې (يعني د گواهان) مطالبه كوي، او كه د مدعي سره بيّنه (يعني گواهان) نه وي نو بيا به له مدعىٰ عليه څخه قسم اخلي] فَلَا بُدَّ مِنَ السُّؤَالِ لِيُمْكِنَهُ الِاسْتِحْلَافُ نو ځكه [قاضي لره] مطالبه كول ضروري دي، د دې لپاره چي د هغه لپاره [له مدعىٰ عليه څخه] قسم اخيستل ممكن سي قَالَ: فَإِنْ أَحْضَرَهَا فرمايي: نو كه مدعي بيّنه پېش كړي [يعني گواهان پېش كړي] قُضِيَ بِهَا نو قاضي به د بينې مطابق فيصله كوي لِانْتِفَاءِ التُّهْمَةِ عَنْهَا ځكه چي له دعوې څخه تهمت ليري سو وَإِنْ عَجَزَ عَنْ ذٰلِكَ وَطَلَبَ يَمِينَ خَصْمِهِ او كه چيري مدعي له بيّنه پېشولو څخه عاجز سي او د خپل خصم [مدعىٰ عليه] څخه د قسم مطالبه وكړي اسْتَحْلَفَهُ عَلَيْهَا نو قاضي به پر هغه دعوې له مدعى څخه قسم اخلي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه كوم چي مورِ روايت دى وَلَا بُدَّ مِنْ طَلَبِهِ او د مدعي مطالبه كول ضروري دي [يعني د

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الأيمان، باب وعيد من اقتطع حق المسلم، حديث رقم: ٢٣٤.

مدعي لپاره دا ضروري دي چې له مدعیٰ علیه څخه د قسم اخيستلو مطالبه به کوي] لِأَنَّ الْيَمِينَ حَقُّهُ ځکه چي قسم د مدعي حق دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ كَيْفَ أُضِيفَ إِلَيْهِ بِحَرْفِ اللَّامِ آيا ته نه ګورې! چي څنګه [په حديث کي] د مدعي وطرف ته په حرفِ لام سره د قسم اضافت [نسبت] سوی دی فَلَا بُدَّ مِنْ طَلَبِهِ نو ځکه د هغه مطالبه کول ضروري دي.

**اللغات**: ﴿لينكشف﴾ د انفعال د باب مضارع ده: واضح کېدل، ښکاره کېدل، ﴿موجب﴾ د افعال د باب فاعل دی: واجبونکی، ثابتونکی، ﴿بيّنة﴾ ګواهي، شواهد، ﴿يمين﴾ قسم، ﴿استحلاف﴾ د استفعال د باب مصدر دی: له بل چا څخه د قسم اخيستلو مطالبه کول، قسم ځني اخيستل، ﴿أضيف﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: نسبت کول، منسوب کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله د دعوې ټوله شرطونه پوره سي او دعویٰ صحيح سي، نو بيا به قاضي خپل کاروايي شروع کوي او تر ټولو مخکي به له مدعیٰ علیه څخه دا پوښتنه کوي چي "ته په دې دعویٰ کي څه وايې!، آيا ته د هغه اقرار کوې، که انکار؟"، که چيري مدعیٰ علیه د هغه دعوې اقرار وکړی چي "هو! زه منم، د مدعي دعویٰ صحيح ده"، نو قاضي به پر مدعیٰ علیه د هغه مطابق فيصله کوي؛ ځکه چي د مدعي علیه په اقرار سره په پوره توګه د دعوی صحت ښکاره سو، او څرنګه چي اقرار هم يو حجت دی او بذات خود پر مُقِر د هغه شي واجبونکي دی د کوم شي چي هغه اقرار کوي، نو ځکه له خپل ذمه واری څخه د مدعیٰ علیه د وتلو او بري کولو لپاره به قاضي پر هغه د دعوې مطابق فيصله کوي.

او که چيري مدعیٰ علیه له هغه دعوې څخه انکار وکړي چي "چي دا دعویٰ غلطه ده"، نو بيا به قاضي له مدعي څخه د بينې (ګواهۍ) مطالبه کوي چي "ته پر خپل دعویٰ ګواهان پېش کړه!"؛ ځکه چي په بخاري او مسلم کي د وائل بن حجر په حديث کي ذکر سوي ده چي نبي کريم ﷺ ته دوه خلک راغلل چي په هغو کي يو د "حضر موت" وو، او بل د "کنده" وو، حضرمي وويل: اې د الله رسول (ﷺ) دغه کندي سړي زما پر ځمکه په ناحقه قبضه کړې ده، کندي وويل: اې د الله رسول (ﷺ) هغه زما ځمکه ده او زما په قبضه کي ده، مطلب دا چي کندي سړي (يعني مدعیٰ علیه) د حضرمي (مدعي) له دعوې څخه انکار وکړی، نو نبي کريم ﷺ له حضرمي (مدعي) څخه پوښتنه وکړه "أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟" (آيا ستا سره بيّنه سته)، نو هغه وويل چي نسته، بيا نبي کريم وفرمايل "لَكَ يَمِينُهُ" (ستا لپاره د هغه قسم دی، يعني اوس ستا دعویٰ د مدعیٰ علیه پر قسم موقوف ده، هغه به قسم

اخلي)، نو په دې حديث كې نبي كريم ﷺ د مدعیٰ عليه دانكار كولو په صورت كې له مدعي څخه د بينې مطالبه كړې ده او بيا يې قسم د بينې پر نشتوالي مُرتّب كړی دی (يعني كه د مدعي سره بيّنه نه وي، نو بيا به له مدعیٰ عليه څخه قسم اخيستل كيږي)، لهذا كله چې قسم د بينې پر نشتوالي (ناموجودوالي) مُرتّب دی، نو ځكه قاضي به اول له مدعي څخه د بينې مطالبه كوي، او كه د هغه سره بيّنه نه وي نو آخر به قاضي له مدعیٰ عليه څخه قسم اخلي.

نو كله چې قاضي له مدعي څخه د بينې مطالبه وكړي، او مدعي بيّنه پېش كړي، نو قاضي به د هغه دعوې مطابق پر مدعیٰ عليه فيصله كوي، ځكه چې د بينې په وجه دا احتمال ختم سو چې د مدعي دعویٰ به غلطه او درواغجنه وي. او كه چيري مدعي له بيّنه پېشلو څخه عاجزه سي او له مدعیٰ عليه څخه د قسم اخيستلو مطالبه وكړي، نو د پورتني حديث پر بناء به قاضي له مدعیٰ عليه څخه قسم اخلي، كه چيري هغه قسم واخلي نو دعویٰ به ختمول كيږي او كه له قسم څخه انكار وكړي نو د مدعي په حق كې به فيصله كيږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې له مدعیٰ عليه څخه د قسم اخيستلو لپاره د مدعي مطالبه كول ضروري دي (يعني مدعي به له قاضي څخه دا مطالبه كوي چې "ته له مدعیٰ عليه څخه قسم واخله!")؛ ځكه چې دا قسم د مدعي حق دی، ځكه په پورتني حديث كې ذكر سوه "لَكَ يَمِيْنُه" (ستا لپاره د هغه قسم دی) يعني يمين د حرفِ لام په ذريعه د مدعي وطرف ته منسوب سوی دی، له دې څخه معلومه سوه چې د مدعیٰ عليه قسم د مدعي حق دی، او ښكاره خبره ده چې د حق مالک ته خپل حق هغه وخت وركول كيږي كله چې هغه د خپل حق مطالبه وكړي، نو ځكه كله چې مدعي د خپل حق يعني د قسم اخيستلو مطالبه وكړي، نو بيا به قاضي له مدعیٰ عليه څخه قسم اخلي، او د مدعي له مطالبې څخه مخكې به قسم نه ځني اخلي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ الْيَمِيْنِ

(دا) باب د قسم (په بيان کي) دی

**تشريح**: څرنګه چي د مخکني باب په آخر کي د قسم مسئله بيان سوې ده، نو په همدې مناسبت صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله تر هغه وروسته اوس "بَابُ الْيَمِيْن" بيانوي.

## له مدعیٰ عليه څخه به کله قسم اخيستل کيږي؟

وَإِذَا قَالَ الْمُدَّعِي: لِيْ بَيِّنَةٌ حَاضِرَةٌ او کله چي مدعي ووايي: زما سره بيّنه موجوده ده وَطَلَبَ الْيَمِيْنَ او هغه له مدعیٰ عله څخه د قسم غوښتنه وکړي لَمْ يُسْتَحْلَفْ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو له هغه څخه به قسم نه اخيستل کيږي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مَعْنَاهُ حَاضِرَةٌ فِي الْمِصْرِ د دې معنیٰ دا ده چي [زما سره] په ښار کي بيّنه موجوده ده وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ*: يُسْتَحْلَفُ او امام ابويوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي له هغه څخه به قسم اخيستل کيږي لِأَنَّ الْيَمِيْنَ حَقُّهُ بِالْحَدِيْثِ الْمَعْرُوْفِ څکه د حديث مشهور پر بناء قسم د مدعي حق دی فَإِذَا طَالَبَهُ بِهِ لهذا کله چي مدعی له مدعیٰ عليه څخه د دې حق [قسم] مطالبه وکړي يُجِيْبُهُ نو مدعیٰ عليه به هغه قبلوي [او پوره کوي] وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ: أَنَّ ثُبُوْتَ الْحَقِّ فِي الْيَمِيْنِ مُرَتَّبٌ عَلَى الْعَجْزِ عَنْ إِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي په قسم کي [د مدعي] د حق ثابتېدل له بيني څخه [د مدعي] پر عاجز والي مرتب دي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی فَلَا يَكُوْنُ حَقُّهُ دُوْنَهُ نو څکه له هغه څخه بغير به قسم د مدعي حق نه کيږي كَمَا إِذَا كَانَتِ الْبَيِّنَةُ حَاضِرَةً فِي الْمَجْلِسِ لکه په هغه وخت کي چي [د هغه حق نه کيږي] کله چي بيّنه په مجلس کي موجوده وي وَمُحَمَّدٌ مَعَ أَبِيْ يُوْسُفَ فِيْمَا ذَكَرَهُ الْخَصَّافُ او امام محمد رَحِمَهُ الله د

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في تنوير الأبصار (ج:۴، ص:۴۷۴)، ومجمع الأنهر (ج:۳، ص:۳۵۳). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۷۰]

امام خصاف رَحِمَهُ الله د ذکر سوي قول مطابق د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله سره دی وَمَعَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ فِيْمَا ذَكَرَهُ الطَّحَاوِيُّ او د امام طحاوي رَحِمَهُ الله د ذکر سوي قول مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی.

**اللغات**: ﴿يمين﴾ قسم، ﴿يستحلف﴾ د استفعال د باب مضارع مجهوله ده: له یو چا څخه د قسم اخیستلو مطالبه کول، قسم ځني اخیستل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مدعي د قاضي په مجلس کي داسي ووايي چي "زما سره پر خپله دعوىٰ په ښار کي ګواهان موجود دي (یا زه په بل ځای کي پر خپله دعوىٰ ګواهان لرم)" او بیا مدعي له مدعىٰ علیه څخه د قسم اخیستلو غوښتنه او مطالبه وکړي، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي قاضي به له مدعىٰ علیه څخه قسم نه اخلي، لېکن امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي له هغه څخه به قسم اخلي.

**د امام ابو یوسف دلیل**: دا دی چي په مشهور حدیث "اَلْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلٰى مَنْ أَنْكَرَ" یا په مخکني حدیث کي په دې جمله "لَكَ يَمِيْنُهُ" سره دا خبره ثابته ده چي قسم د مدعي حق دی، لهذا کله چي صاحب الحق یعني مدعي له مدعىٰ علیه څخه د خپل دغه حق مطالبه وکړي، نو مدعىٰ علیه به هغه قبلوي یعني قسم به اخلي، یا معنىٰ دا چي قاضي به هغه قبلوي یعني مدعىٰ علیه ته به د قسم اخیستلو حکم کوي.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چي مخکني حدیث کوم چي د حضرمي او کندي د دعوی په هکله وو یعني "أَلَكَ بَيِّنَةٌ، فَقَالَ: لَا. فَقَالَ: لَكَ يَمِيْنُه"، په دې حدیث سره دا خبره ثابته ده چي قسم هغه وخت د مدعي حق ګرځي کله چي مدعي د بينې (ګواهی) له پېشولو څخه عاجزه سي، او څرنګه چي دلته د مدعي سره په ښار کي بيّنه سته او مدعي د هغه پر حاضرولو قادر دی، او عاجزه نه دی، نو ځکه څرنګه چي د قاضي په مجلس کي د بينې د حاضر والي په صورت کي قسم د مدعي حق نه دی، همداسي به په ښار کي د بينې د موجود والي په صورت کي هم قسم د مدعي حق نه وي، او ښکاره خبره ده چي کله په ښار کي د بينې د موجود والي په صورت کي قسم د مدعي حق نه دی، نو هغه ته به دا اختيار هم نه وي چي له مدعىٰ علیه څخه د قسم مطالبه وکړي.

ومحمد إلخ: فرمايي چي د امام خصاف د قول مطابق امام محمد رَحِمَهُ الله د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله سره دی، لېکن د امام طحاوي رَحِمَهُ الله د قول مطابق هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی. والله أعلم بحقيقة الحال

## له مدعي څخه د قسم نه اخيستلو بيان

قَالَ: وَلَا تُرَدُّ الْيَمِينُ عَلَى الْمُدَّعِيْ فرمايي: او پر مدعي به قسم نه واپس کيږي لِقَوْلِهِ عليه السلام: «الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلٰى مَنْ أَنْكَرَ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي بيّنه پر مدعي ده او قسم پر منکر [مدعیٰ عليه] ده قَسَمَ [په دې حديث کي] نبي کريم ﷺ تقسيم کړی دی وَالْقِسْمَةُ تُنَافِي الشَّرِكَةَ او تقسيم د شرکت منافي دی وَجَعَلَ جِنْسَ الْأَيْمَانِ عَلَى الْمُنْكِرِيْنَ او نبي ﷺ جنس د قسمونو پر منکرينو [مدعیٰ عليهم] مقرر کړی دی وَلَيْسَ وَرَاءَ الْجِنْسِ شَيْءٌ او له جنس څخه وروسته بل شی نسته وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی.

**اللغات**: ﴿لا ترد﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: واپس کول. ﴿بينة﴾ ګواهي. ﴿تنافي﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: منافي کېدل، مخالف کېدل. ﴿وراء﴾ وروسته، مخکي (خَلْف، أَمَام). (مصباح منير)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي زموږ په نېز په هيڅ صورت کي هم له مدعي څخه قسم نه اخيستل کيږي، لهذا کله چي مدعي د بينې (ګواهي) له پېشولو څخه عاجزه سي او مدعیٰ عليه له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، نو داسي به نه کيږي چي له مدعي څخه قسم واخيستل سي او د هغه په حق کي فيصله وکړی سي؛ ځکه نبي کريم ﷺ د "الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلٰى مَنْ أَنْكَرَ" په فرمان سره د مدعي او مدعیٰ عليه په مينځ کي د دوو شيانو تقسيم کړی دی، يعني پر مدعي يې بيّنه لازم کړې ده او پر مدعیٰ عليه (منکر) يې قسم لازم کړی دی، او تقسيم د شرکت منافي دی، نو ځکه نه مدعیٰ عليه په هيڅ صورت کي بيّنه پېشولای سي او نه به له مدعي څخه په هيڅ صورت کي قسم اخيستل کيږي. او دويمه خبره دا ده چي نبي کريم ﷺ د "الْيَمِين" لفظ په الف لام جنسي سره ذکر کړی دی، نو مطلب دا چي د يمين (قسم) ټوله جنس يې د مدعیٰ عليهم (منکرينو) لپاره خاص کړی دی، او له جنس يمين څخه وروسته د يمين بل هيڅ جزء نه پاتيږي چي د هغه پر بناء د مدعي لپاره د قسم اخيستلو لاره خلاصه سي، نو په دې حواله سره به په هيڅ صورت کي هم له مدعي څخه قسم نه اخيستل کيږي.

**وفيه خلاف الشافعي إلخ**: فرمايي چي په پورتني حکم کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی، يعني کله چي مدعي له بيّنه پېشولو څخه عاجزه سي او مدعیٰ عليه له قسم څخه انکار وکړي، نو امام

شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې صورت کي به له مدعي څخه قسم اخيستل کيږي او کله چي هغه قسم واخلي نو د هغه په حق کي به فيصله کيږي، لېکن زموږ له طرفه پېش کړی سوی حديث او په هغه کي بيان سوی تقسيم د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت او دليل دی.

## د مطلق ملکيت په دعوىٰ کي به د قابض بيـّــنه قبلول کيـږي او که د غير قابض؟

قَالَ: وَلَا تُقْبَلُ بَيِّنَةُ صَاحِبِ الْيَدِ فِي الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ فرمايي: چي په مطلق ملکيت کي به د قابض بيّنه نه قبلول کيږي وَبَيِّنَةُ الْخَارِجِ أَوْلَىٰ او د غيرِ قابض بيّنه غوره [او معتبره] ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُقْضَى بِبَيِّنَةِ ذِي الْيَدِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د قابض پر بيّنه به فيصله کيږي لِاعْتِضَادِهَا بِالْيَدِ ځکه چي هغه د قبضې په وجه قوي ده فَيَتَقَوَّى الظُّهُورُ نو ځکه ظهور [او ثبوت] به هم قوي وي وَصَارَ كَالنِّتَاجِ وَالنِّكَاحِ او دا د نکاح او نتاج په څېر سو وَدَعْوَى الْمِلْكِ مَعَ الْإِعْتَاقِ وَالِاسْتِيلَادِ وَالتَّدْبِيرِ او د اعتاق، استيلاد او تدبير سره د ملکيت د دعوې [په څير سو] وَلَنَا: أَنَّ بَيِّنَةَ الْخَارِجِ أَكْثَرُ إِثْبَاتًا أَوْ إِظْهَارًا او زموږ دليل دا دی: چي د غيرِ قابض بيّنه زياته ثابتونکې يا زياته ښکاره کونکې ده لِأَنَّ قَدْرَ مَا أَثْبَتَهُ الْيَدُ لَا يُثْبِتُهُ بَيِّنَةُ ذِي الْيَدِ ځکه څومره قدر چي قبضه ثابتوي، د قابض بيّنه هغه نه ثابتوي إِذِ الْيَدُ دَلِيلُ مُطْلَقِ الْمِلْكِ ځکه چي قبضه د مطلق ملکيت دليل دی بِخِلَافِ النِّتَاجِ په خلاف د نتاج لِأَنَّ الْيَدَ لَا تَدُلُّ عَلَيْهِ ځکه چي قبضه پر نتاج دلالت نه کوي وَكَذَا عَلَى الْإِعْتَاقِ وَأُخْتَيْهِ وَعَلَى الْوَلَاءِ الثَّابِتِ بِهَا او همدارنگه قبضه پر اعتاق، استيلاد، تدبير او د دوی په ذريعه پر ثابتېدونکي ولاء هم دلالت نه کوي.

**اللغات:** ﴿يد﴾ قبضه، ﴿اعتضاد﴾ د افتعال د باب مصدر دی: قوي کېدل، مضبوطېدل، ﴿نتاج﴾ د څاروي بچی، د څاروي بچی پيدا کېدل (احسن الهدايه)، ﴿استيلاد﴾ د استفعال د باب مصدر دی: أُم ولد جوړول، ﴿تدبير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مُدبر جوړول، د خپل غلام آزادي پر خپل مرگ معلق کول (يعني خپل غلام ته ويل چي "زما تر مرگ وروسته ته آزاد يې!").

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی (مثلا) پر پُسه قابض وي يعني د هغه په قبضه کي يو پُسه وي او بل څوک مطلق دعوىٰ وکړي چي دا پُسه زما ملکيت دی او زه يې مالک يم، او د ملکيت

سبب يعني رانيول، په ميراث يا هبه کي حاصلول او داسي نور ذکر نه کړي (يعني داسي نه وايي چي ما رانيولى دى يا ما ته يو چا هبه کړى دى او داسي نور...بلکي هسي مطلق وايي چي زه ددې پُسه مالک يم)، او قابض د خپل مالک کېدلو دعوىٰ وکړي (چي زه ددې پُسه مالک يم)، او هر يو پر خپله دعوىٰ بيّنه هم پېش کړي، نو زموږ په نېز د غيرِ قابض بيّنه معتبره ده يعني صرف د هغه بيّنه به قبلول کيږي او د هغه په حق کي به د پُسه فيصله کيږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د قابض بيّنه معتبر ده او فيصله به د قابض په حق کي کيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دى چي پُسه د قابض په قبضه کي دى، نو د قبضې په وجه د هغه ګواهي (بيّنه) قوي او مضبوطه ده، لهذا کله چي د قابض ګواهي قوي ده، نو په هغه سره به د حق ظهور هم قوي وي، او په کومه ګواهۍ سره چي د حق ظهور (ثبوت) زيات قوي او واضح وي، نو صرف هغه ګواهي معتبره او مقبوله ده او پر هغه فيصله کول واجب دي، نو ځکه صرف د قابض ګواهي به قبلول کيږي او د هغه په حق کي به فيصله کيږي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله د خپل قول په تائيد کي پنځه مثالونه پېش کړي دي:

①... هغه فرمايي چي پورتنۍ صورت د نتاج په څېر دى، يعني که د يو سړي په قبضه کي مثلاً د بزې بچى (سېرلى) وي او هغه دعوىٰ وکړي چي دا سېرلى زما ملکيت دى او دا زما له بزې (وزې) څخه پيدا سوى دى، او بل څوک هم دعوىٰ وکړي چي دا سېرلى زما دى او زما له بزې څخه پيدا سوى دى، او دواړه بيّنه پېش کړي، نو په دې صورت کي د قابض بيّنه معتبره ده او هغه به قبلول کيږي.

②... همدارنګه که د يو ښځي په باره کي دوه خلک د نکاح دعوىٰ وکړي يعني هر يو وايي چي ما د هغې سره نکاح کړې ده او هغه زما ښځه ده، او دواړه پر خپله دعوىٰ بيّنه پېش کړي، نو په دې صورت کي هم د قابض بيّنه معتبره ده، يعني د هغه کس بيّنه به قبلول کيږي چي ښځه د هغه په قبضه کي وي.

③... همدارنګه که د يو غلام په بار کي دوه خلک اختلاف وکړي او هر يو دا دعوىٰ وکړي چي هغه ما آزاد کړى دى (لهذا د هغه ولاء زما ده)، او هر يو پر خپل دعوىٰ بيّنه پېش کړي، نو په دې صورت کي هم د قابض بيّنه معتبره ده.

④... همدارنګه که يو مينځه ديو چا په قبضه کي وي او بل څوک دا دعویٰ وکړي چي ما هغه اُم ولد جوړه کړې ده (لهذا د هغې ولاء زما ده) او قابض ووايي چي ما هغه اُم ولد جوړه کړې ده، او هر يو پر خپله دعویٰ پېش کړي، نو په دې صورت کي هم د قابض بيّنه معتبره ده.

⑤... همدارنګه که ديو غلام په مدبر جوړولو کي دوه خلک اختلاف وکړي، او هر يو دا دعویٰ وکړي چي ما هغه مدبر جوړ کړی دی (لهذا د هغه ولاء زما ده)، او دواړه پر خپله دعویٰ بيّنه پېش کړي، نو په دې صورت کي هم د قابض بيّنه معتبره ده، لنډه دا چي څرنګه په دې پنځه مسئلو کي د قابض بيّنه معتبره او مقبوله ده، همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم د قابض بيّنه معتبره او مقبوله وي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د غيرِ قابض (خارج) بيّنه د هغه لپاره ملکيت ثابتوي؛ ځکه چي پُسه (مُدعیٰ بهٖ) د هغه په قبضه کي نه دی، او د قابض بيّنه د هغه لپاره ملکيت نه ثابتوي بلکي دا بيّنه د قابض هغه ملکيت مؤکد کوي (مضبوطوي) کوم چي د قبضې پر بناء هغه لره حاصل دی، ځکه چي پُسه د هغه په قبضه کي دی او د هغه لپاره ملکيت په دې قبضه سره ثابت سوی دی، نو ځکه د قابض بيّنه د هغه ملکيت مؤکد کوي، لهذا کله چي دغيرِ قابض بيّنه د هغه لپاره اصل ملکيت ثابتوي او د قابض بيّنه د هغه لپاره ملکيت مؤکد کوي، نو په دې اعتبار د غيرِ قابض په بيّنه سره د ملکيت اثبات يا اظهار زيات دی (يعني د قابض په مقابله کي د غيرِ قابض بيّنه د ملکيت لپاره زياته مُثبِته او مُظهِره ده)، نو ځکه د غيرِ قابض بيّنه ته به ترجيح ورکول کيږي او د هغه مطابق به فيصله کيږي.

**بخلاف إلخ:** د دې په خلاف پر نتاج چي کومه قبضه کيږي، هغه پر نتاج دلالت نه کوي (يعني په هغه سره نتاج نه ثابتيږي)، همدارنګه پر اعتاق، استيلاد، تدبير (او د دوی په ذريعه ثابتېدونکی ولاء) باندي هم قبضه دلالت نه کوي، بلکي په قبضه سره صرف ملکيت ثابتيږي، او نتاج، اعتاق او داسي نور په قبضه سره نه ثابتيږي (بلکي په بيّنه سره ثابتيږي)، لنډه دا چي دلته د قابض او غيرِ قابض دواړو په بيّنه سره نتاج، اعتاق او داسي نور ثابتيږي، لهذا اوس ترجيح ته ضرورت پېښ سو، او د قبضې په وجه ترجيح د قابض بيني لره ده، نو په دې وجه د نتاج، اعتاق او داسي نورو په مسئلو کي د قابض بيّنه قبلول کيږي.

(صاحب د أحسن الهدايې په مختصره توګه آخري عبارت "بخلاف إلخ" داسي تشريح کړی دی: د دې په خلاف د نتاج، نکاح، استيلاد او تدبير مسئلې دي، نو په دې مسئلو کي چي کومه قبضه کيږي هغه پر ملکيت دلالت نه کوي، نو ځکه د قابض او غير قابض دواړو بيّنه به د ملکيت ثابتونکې وي، او څرنګه چي د قبضې په وجه د قابض بينې لره ترجيح حاصله ده، نو ځکه په دې مسئلو کي د قابض بيّنه معتبره ګرځول سوې ده، ليکن پورتنۍ مسئله داسي نه ده، نو ځکه په هغه کي د غير قابض بيّنه معتبره ګرځول سوې ده).

## له قسم څخه د مدعیٰ علیه انکار کول

قَالَ: وَإِذَا نَكَلَ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ عَنِ الْيَمِيْنِ فرمايي: او كله چې مدعیٰ علیه له قسم څخه انكار وكړي قَضٰى عَلَيْهِ بِالنُّكُوْلِ وَأَلْزَمَهُ مَا ادَّعٰى عَلَيْهِ نو د انكار كولو په وجه به قاضي د هغه په خلاف فيصله كوي او مدعي چې پر هغه د كوم شي دعوىٰ كړې وي هغه به پر لازموي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَقْضِيْ بِهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د انكار كولو په وجه به قاضي [د مدعیٰ علیه په خلاف] فيصله نه كوي بَلْ يَرُدُّ الْيَمِيْنَ عَلَى الْمُدَّعِيْ بلكې قسم به پر مدعي واپس كوي [پېشوي] فَإِذَا حَلَفَ نو كله چې هغه قسم واخلي يَقْضِيْ بِهِ نو قاضي به د هغه په حق كې فيصله كوي لِأَنَّ النُّكُوْلَ يَحْتَمِلُ التَّوَرُّعَ عَنِ الْيَمِيْنِ الْكَاذِبَةِ وَالتَّرَفُّعَ عَنِ الصَّادِقَةِ ځكه چې له قسم څخه [د مدعیٰ علیه] انكار كول د دې احتمال لري چې هغه د دروغو له قسم څخه ځان ساتي يا له رښتوني قسم څخه احتياط كوي وَاشْتِبَاهَ الْحَالِ [لنډه دا چې د مدعیٰ علیه انكار] د حالت مشتبه كېدلو احتمال لري فَلَا يَنْتَصِبُ حُجَّةً مَعَ الِاحْتِمَالِ نو ځكه د دې احتمال سره به [د هغه] انكار حجت نه ګرځي وَيَمِيْنُ الْمُدَّعِيْ دَلِيْلُ الظُّهُوْرِ او د مدعي قسم د حق ښكاره كېدلو علامت دى فَيُصَارُ إِلَيْهِ نو ځكه د هغه وطرف ته به رجوع كيږي وَلَنَا: أَنَّ النُّكُوْلَ دَلَّ عَلٰى كَوْنِهٖ بَاذِلًا أَوْ مُقِرًّا او زموږ دليل دا دى: چې انكار پر دې دلالت كوي چې مدعیٰ علیه [پر مدعي د مُدعیٰ بِهٖ] خرچ كونكى يا اقرار كونكى دى [يعني هغه پر دې دلالت كوي او د دې احتمال لري چې مدعیٰ علیه مدعي ته په پراخ زړه سره مُدعیٰ بِهٖ شي وركوي يا پر دې دلالت كوي چې مدعیٰ علیه د مدعي د دعوى اقرار كوي] إِذْ لَوْلَا ذٰلِكَ ځكه كه دا [احتمالونه] نه واى لَأَقْدَمَ عَلَى الْيَمِيْنِ إِقَامَةً لِلْوَاجِبِ وَدَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْ نَفْسِهٖ نو له خپل ځان څخه د ضرر لیري كولو او [د شريعت] د واجب سوي حق د اداء كولو لپاره به مدعیٰ علیه [خامخا] پر قسم اقدام كولاى فَتَرَجَّحَ هٰذَا الْجَانِبُ نو ځكه دا اړخ راجح سو وَلَا وَجْهَ لِرَدِّ الْيَمِيْنِ عَلَى الْمُدَّعِيْ او پر مدعي د قسم واپس كولو [پېشولو] هيڅ وجه نسته لِمَا قَدَّمْنَاهُ د هغه دليل په وجه كوم چې مخكې موږ ذكر كړى.

**اللغات:** ﴿نكل﴾ د نصر د باب ماضي ده: له قسم څخه انكار كول. ﴿تورع﴾ د تفعل د باب مصدر دى: پرهېز كول، ځان ساتل. ﴿ترفع﴾ مخكنى صيغه ده: پورته كېدل، كله چې د دې باب په صله

کې "عَنْ" راسي لکه دلته چې راغلی دی، نو د احتياط کولو او ځان ساتلو معنیٰ ورکوي (معجم وسيط)،
﴿حجة﴾ دليل، ﴿باذل﴾ د نصر د باب فاعل دی: خرڅ کونکی (خرڅوونکی، مصرفونکی)، ﴿أقدم﴾ د افعال د باب ماضي ده: اقدام کول، وړانديتوب کول (په يو کار شروع کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مدعي پر خپله دعویٰ بيّنه پېش نه کړی سي او بيا هغه له مدعیٰ عليه شخصه د قسم مطالبه وکړي لېکن مدعیٰ عليه له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، نو په دې صورت کې زموږ په نيز حکم دا دی چې قاضي به د مدعیٰ عليه په خلاف فيصله کوي او د مدعي دعویٰ به قبلوي او هغه به پر مدعیٰ عليه لازموي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چې قاضي به قسم پر مدعي واپس کوي (پېښوي) يعني له هغه شخصه به قسم اخلي، که چيري مدعي قسم واخلي، نو قاضي به د هغه په حق کې فيصله کوي او که مدعي هم له قسم څخه انکار وکړي، نو بيا به قاضي دعویٰ او مقدمه ختموي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې له قسم څخه د مدعیٰ عليه د انکار کولو په صورت کې دا احتمال هم سته چې هغه د دروغو له قسم څخه ځان ساتي، او دا احتمال هم سته چې هغه د احتياط او احترام په توګه له رښتوئي قسم څخه ځان ساتي، لنډه دا چې د انکار کولو په وجه د هغه حال مشتبه سو، او د اشتباه حال په وجه د مدعیٰ عليه انکار د مدعي په حق کې حجت او دليل نه سي ګرځېدای، خو کله چې مدعي قسم واخلي، نو په دې سره به د مدعي بر حق والی ښکاره سي (چې هغه بر حق دی)، نو ځکه له مدعي څخه به قسم اخيستل کيږي او د هغه د قسم مطابق به قاضي فيصله کوي.

**زموږ دليل:** دا دی چې له قسم څخه د مدعیٰ عليه انکار کول پر دې خبره دلالت کوي چې هغه مدعي ته (په پراخه زړه سره) د مدعیٰ بِهٖ ورکول غواړي، او که څه هم هغه د مدعي دعویٰ دروغجنه ګڼي خو بيا هم د خپل ځان او عزت د ساتلو په خاطر داسې کوي، او دا احتمال هم سته چې هغه د مدعیٰ دعویٰ قبلوي او د دروغو له قسم څخه ځان ساتي. او له قسم څخه د مدعیٰ عليه په انکار کولو کې همدغه دوه احتماله اهم حيثيت لري، ځکه که له دې څخه يو احتمال نه وای، نو هغه به خامخا قسم اخيستلای د دې لپاره چې په قسم اخيستلو سره د شريعت واجب سوی حق يعني "قسم اخيستل" اداء کړي او له خپل ځان څخه ضرر ليري کړي، لېکن له قسم څخه د هغه انکار کول يا د دې خبري دليل دی چې هغه په پراخه زړه سره مدعي ته مدعیٰ بِهٖ ورکوي، يا د دې دليل دی چې هغه د مدعي د دعویٰ اقرار کوي او هغه قبلوي. نو ځکه له دغه دوو احتمالونو څخه به يو احتمال راجح وي او د مدعي

په حق کي به د مدعیٰ پهٔ فيصله کيږي. او له مدعي څخه به خو په هيڅ حال کي هم قسم نه اخيستل کيږي، لکه څرنګه چي مخکي د حديث "البَيِّنَةُ عَلَى المُدَّعِيْ وَاليَمِيْنُ عَلَى مَنْ أَنْكَرَ" په ضمن کي د دې پوره وضاحت تېر سو.

## پر مدعیٰ عليه د قسم پېشولو طريقه

قَالَ: وَيَنْبَغِيْ لِلْقَاضِيْ أَنْ يَقُوْلَ لَهُ: إِنِّيْ أَعْرِضُ عَلَيْكَ الْيَمِيْنَ ثَلَاثًا فرمايي: او قاضي ته پکار دي چي مدعیٰ عليه ته داسي ووايي: چي زه پر تا درې واره قسم پېشوم فَإِنْ حَلَفْتَ که چيري ته قسم واخلې! [نو صحيح ده] وَإِلَّا قَضَيْتُ عَلَيْكَ بِمَا ادَّعَاهُ کنې زه ستا په خلاف د هغه شي فيصله کووم چي مدعي د هغه دعویٰ کوي وَهٰذَا الْإِنْذَارُ لِإِعْلَامِهِ بِالْحُكْمِ او دا بېرول په حکم سره د هغه د خبرولو لپاره دي [يعني د دې لپاره دي چي مدعیٰ عليه له قسم څخه د انکار کولو په حکم خبر کړی سي] إِذْ هُوَ مَوْضِعُ الْخَفَاءِ ځکه چي دا پوشيدګۍ مقام دی قَالَ: فَإِذَا كَرَّرَ الْعَرْضَ عَلَيْهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فرمايي: کلهٔ چي قاضي پر مدعیٰ عليه د قسم پېشول درې واره مکرر کړي [او مدعیٰ عليه درېڅمره واره انکار وکړي] قَضٰى عَلَيْهِ بِالنُّكُوْلِ نو د انکار په وجه به قاضي د هغه په خلاف فيصله کوي وَهٰذَا التَّكْرَارُ ذَكَرَهُ الْخَصَّافُ او دا تکرار [مکرر کول] امام خصاف رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي لِزِيَادَةِ الِاحْتِيَاطِ وَالْمُبَالَغَةِ فِيْ إِبْلَاءِ الْعُذْرِ ځکه چي [په دې کي] احتياط [هم] زيات دی او د عذر په ښکاره کولو کي مبالغه [هم] ده فَأَمَّا الْمَذْهَبُ أَنَّهُ لَوْ قَضٰى بِالنُّكُوْلِ بَعْدَ الْعَرْضِ مَرَّةً او کوم چي مذهب دی نو هغه دا دی چي که تر يوه وار پېشولو وروسته د انکار کولو په وجه قاضي فيصله وکړي جَازَ نو [هم] جائز دي لِمَا قَدَّمْنَاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ مخکي ذکر کړی هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده وَالْأَوَّلُ أَوْلٰى [لېکن] اول صورت غوره دی ثُمَّ النُّكُوْلُ قَدْ يَكُوْنُ حَقِيْقِيًّا بيا انکار کله حقيقي وي كَقَوْلِهِ: لَا أَحْلِفُ لکه د مدعیٰ عليه دا قول: زه قسم نه اخلم وَقَدْ يَكُوْنُ حُكْمِيًّا او کله حکمي وي بِأَنْ يَسْكُتَ په دې توګه چي مدعیٰ عليه خاموش پاته سي وَحُكْمُهُ حُكْمُ الْأَوَّلِ او د حکمي انکار حکم [هم] د اول [حقيقي انکار] د حکم په څېر دی إِذَا عَلِمَ أَنَّهُ لَا آفَةَ بِهِ مِنْ طَرَشٍ أَوْ خَرَسٍ په دې شرط کله چي دا خبره معلومه

سي چې مدعیٰ علیه د ګونګ والي یا کوڼ والي په آفت مبتلا نه دی هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحیح ده.

**اللغات**: ﴿ينبغي﴾ د انفعال د باب مضارع ده: مناسب دي، پکار دي (پکار ده). ﴿أعرِضُ﴾ د ضرب له بابه د واحد متکلم مضارع صیغه ده: پېشول، وړاندي کول، وړښکاره کول. ﴿نکول﴾ د نصر د باب مصدر دی: له قسم څخه انکار کول. ﴿خفاء﴾ پټوالی، پوشیدګي. ﴿يسکت﴾ د ضرب د باب مضارع ده: چپېدل، خاموش کېدل، چپ پاتېدل. ﴿طَرَش﴾ (د راء په فتحه سره): ګونګ والی، ګونګی والی، ګونګی کېدل. ﴿خَرَس﴾ (د راء په فتحه سره): کوڼ والی، کڼېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې کله قاضي له مدعیٰ علیه څخه قسم اخلي، نو هغه ته پکار دي چې مدعیٰ علیه ته داسې ووايي: "زه پر تا درې واره قسم پېشوم، که ته قسم واخلې! نو صحیح ده، او که ته له قسم څخه انکار وکړې! نو زه ستا په خلاف فیصله کووم او مدعي چې د کوم شي دعویٰ کړې ده (یعني مُدعیٰ بِهٖ) هغه پر تا لازموم".

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د قاضي دا ببرول (دمکي ورکول) یعني مدعیٰ علیه ته ویل "چې له قسم څخه د انکار په صورت کې زه ستا په خلاف فیصله کوم" په دې غرض سره دي چې هغه له قسم څخه د انکار کولو په حکم خبر سي، ځکه چې دا د خفاء (پوشیدګی) مقام دی یعني ممکنه ده چې له هغه څخه دا خبره پټه وي او صرف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په مذهب خبر وي چې له قسم څخه د انکار کولو په صورت کې قسم پر مدعي پېشول کیږي، نو ځکه قاضي به هغه په خپل مذهب خبروي (چې له قسم څخه د انکار په صورت کې ستا په خلاف فیصله کوم)، د دې لپاره چې پر مدعیٰ علیه دا خبره مخفي پاته نه سي.

**قال فإذا كرّر إلخ**: فرمايي کله چې قاضي پر مدعیٰ علیه درې واره قسم پېش کړي او هغه انکار وکړي، نو بیا به قاضي د مدعي په حق کې فیصله کوي. او درې واره قسم پېشول د امام خصاف رَحِمَهُ الله قول دی کوم چې د احتیاط پر بناء اختیار کړی سوی دی، او بل دا چې په درې واره قسم اخیستلو کې د عذر په اظهار کې مبالغه راځي (لکه څرنګه چې مرتد ته درې ورځې مهلت ورکول کیږي). لنډه دا چې درې واره قسم پېشول د احتیاط په وجه دي، کنې د مفتیٰ به مذهب حکم دا دی چې که مدعیٰ علیه صرف یو وار له قسم څخه انکار وکړي، نو هم قاضي ته دا جائز دي چې د مدعیٰ علیه په خلاف فیصله وکړي، او همدا صحیح قول دی، لکه څرنګه چې په مخکنۍ په مسئله کې دلیل بیان سو چې

له قسم څخه د مدعیٰ علیه انکار کول پر دې خبره دلالت کوي چې هغه په پراخه زړه سره مدعي ته مدعیٰ بهٖ ورکوي یا د مدعي د دعوی اقرار کوي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چې اول صورت اولیٰ (غوره) دی، یعني تریوه واره انکار کولو وروسته که څه هم فیصله کول جائز دي، لیکن غوره دا ده چې تر درې واره قسم پېشولو وروسته قاضي فیصله وکړي.

ثم النكول إلخ: د دې حاصل دا دی چې له قسم څخه د مدعیٰ علیه انکار کول ځیني وخت حقیقي وي، مثلاً هغه په ښکاره لفظو سره داسي ووايي چې "زه قسم نه اخلم" (لَا أَحْلِفُ)، او ځيني وخت حکمي وي، مثلاً هغه د قسم اخيستلو په وخت کي خاموش پاته سي او هيڅ نه ووايي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د حکمي انکار هغه حکم دی کوم چې د حقیقي انکار دی، یعني په دواړو صورتونو کي به قاضي د مدعیٰ علیه په خلاف فیصله کوي، په دې شرط چې د حکمي انکار کولو (خاموش پاتېدلو) په صورت کي دا خبره ثابته سي چې مدعیٰ علیه کوڼ یا ګونګی نه دی، ځکه که هغه کوڼ یا ګونګی وي نو د هغه خاموش پاتېدل انکار نه شمارل کیږي.

## په کومو صورتونو کي به له مدعیٰ علیه څخه قسم نه اخيستل کيږي؟

قَالَ: وَإِنْ كَانَتِ الدَّعْوٰى نِكَاحًا فرمايي: او که چیري دعوی د نکاح کولو وي لَمْ يُسْتَحْلَفِ الْمُنْكِرُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز به له منکر [مدعیٰ علیه] څخه قسم نه اخیستل کیږي وَلَا يُسْتَحْلَفُ عِنْدَهُ فِي النِّكَاحِ وَالرَّجْعَةِ وَالْفَيْءِ فِي الْإِيْلَاءِ وَالرِّقِّ وَالْاِسْتِيْلَادِ وَالنَّسَبِ وَالْوَلَاءِ وَالْحُدُوْدِ وَاللِّعَانِ [همدارنګه] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز به په نکاح، رجعت، له ایلاء څخه په رجوع کولو، غلامتوب، استیلاد، نسب، ولاء، حدود او لعان کي به له منکر څخه قسم نه اخیستل کیږي وَقَالَا[*]: يُسْتَحْلَفُ فِيْ ذٰلِكَ كُلِّهٖ إِلَّا فِي الْحُدُوْدِ وَاللِّعَانِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې په دې ټولو کي به له هغه څخه قسم اخیستل کیږي مګر په حدود او لعان کي وَصُوْرَةُ الْاِسْتِيْلَادِ أَنْ تَقُوْلَ الْجَارِيَةُ أَنَا أُمُّ وَلَدٍ لِمَوْلَايَ وَهٰذَا ابْنِيْ مِنْهُ او د استیلاد صورت دا دی چې مینځه داسي ووايي: زه د خپل [دغه] مالک اُم ولد يم

[*] القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَاالله، كما ذكر في نتائج الأفكار:... والفتوىٰ على قولهما (ج:۷، ص:۱۶۹)، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۴۷۳)، ومجمع الأنهر (ج:۳، ص:۳۵۱). [القول الراجح ج:۲، ص: ۱۷۰]

او دغه زما څوی له هغه شخه [يعني د هغه له نطفې څخه] دی وَأَنْكَرَ الْمَوْلٰى او مالک انکار وکړي لِأَنَّهُ لَوِ ادَّعَى الْمَوْلٰى ځکه که چيرې مالک [د استيلاد] دعوىٰ وکړي ثَبَتَ الِاسْتِيلَادُ بِإِقْرَارِهِ وَلَا يُلْتَفَتُ إِلٰى إِنْكَارِهَا نو [په خپله] د هغه په اقرار سره استيلاد ثابتيږي او د مينځې د انکار وطرف ته به توجه نه کيږي لَهُمَا: أَنَّ النُّكُولَ إِقْرَارٌ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې له قسم څخه انکار کول اقرار دی لِأَنَّهُ يَدُلُّ عَلٰى كَوْنِهِ كَاذِبًا فِي الْإِنْكَارِ ځکه چې د قسم انکار پر دې خبره دلالت کوي چې مدعىٰ عليه [د مدعي] د دعوى په انکار کولو کې درواغجن دی عَلٰى مَا قَدَّمْنَاهُ لکه مخکې چې موږ ذکر کړه فَكَانَ إِقْرَارًا أَوْ بَدَلًا عَنْهُ لهذا له قسم څخه انکار کول به يا اقرار وي يا به د اقرار بدل وي وَالْإِقْرَارُ يَجْرِي فِي هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ او په دې شيانو [نکاح، رجعت او داسې نورو] کې اقرار جاري کيږي لٰكِنَّهُ إِقْرَارٌ فِيهِ شُبْهَةٌ لېکن هغه داسې اقرار دی چې په هغه کې شبهه ده وَالْحُدُودُ تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ او په شبهاتو سره حدود ساقطيږي وَاللِّعَانُ فِي مَعْنَى الْحَدِّ او لعان [هم] د حد په معنىٰ سره دی وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ بَذْلٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې له قسم څخه انکار کول خرچ کول [په پراخ زړه سره مدعي ته د مُدعىٰ بِهٖ ورکول] دي لِأَنَّ مَعَهُ لَا تَبْقَى الْيَمِينُ وَاجِبَةً ځکه چې د بذل سره قسم واجب نه پاتيږي لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ د مقصود حاصلېدلو په وجه وَإِنْزَالُهُ بَاذِلًا أَوْلٰى كَيْلَا يَصِيرَ كَاذِبًا فِي الْإِنْكَارِ -او مدعىٰ عليه د بازل په درجه کې شوه کول [يعني بازل ګرځول او د هغه انکار پر بذل حمل کول] غوره دي، د دې لپاره چې هغه په انکار کې درواغجن نه وګرځي وَالْبَذْلُ لَا يَجْرِي فِي هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ او په دې شيانو کې بذل نه جاري کيږي وَفَائِدَةُ الِاسْتِحْلَافِ الْقَضَاءُ بِالنُّكُولِ او د قسم اخيستلو فايده دا ده چې پر انکار فيصله وکړی سي فَلَا يُسْتَحْلَفُ نو ځکه [له مدعىٰ عليه څخه] به قسم نه اخيستل کيږي إِلَّا أَنَّ هٰذَا بَذْلٌ لِدَفْعِ الْخُصُومَةِ لېکن دا بذل د خصومت [دعوى او جنګ] دفع کولو لپاره دی فَيَمْلِكُهُ الْمُكَاتَبُ وَالْعَبْدُ الْمَأْذُونُ نو ځکه مکاتب او مأذون لهٗ غلام [هم] د هغه مالک کيږي [يعني د هغه ملکيت او اختيار لري] بِمَنْزِلَةِ الضِّيَافَةِ الْيَسِيرَةِ د سپک مېلمستون په څېر [يعني لکه څرنګه چې مکاتب او عبد مأذون لهٗ د دې ملکيت او اختيار لري چې د مشتري او داسې نورو سپکه مېلمستيا وکړي] وَصِحَّتُهُ فِي

| |
|---|
| الدَّيْنِ بِنَاءً عَلٰى زَعْمِ الْمُدَّعِيْ او په قرض کې د هغه صحيح کېدل د مدعي د ګومان پر بناء دي وَهُوَ يَقْبِضُهُ حَقًّا لِنَفْسِهِ او هغه د خپل ذاتي حق په توګه پر هغه قبضه کوي وَالْبَذْلُ مَعْنَاهُ هٰهُنَا "تَرْكُ الْمَنْعِ" او دلته [يعني په قرض کې] د بذل معنیٰ ده: "د منع پرېښوول" وَأَمْرُ الْمَالِ هَيِّنٌ او د مال معامله آسانه [سپکه] ده. |

**اللغات**: ﴿فيء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: رجوع کول، ﴿ايلاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: دا قسم اخيستل چې "زه به (څلور مياشتې) ښځې ته نه نژدې کېږم"، ﴿رِقّ﴾ غلامتوب، غلام والی، ﴿استيلاد﴾ اُم ولد جوړول، ﴿ولاء﴾ د آزاد سوي غلام ميراث ته وايي، او دا ميراث د هغه کس حق کيږي چا چې هغه آزاد کړی وي، يعني د آزادونکي مالک حق کيږي، ﴿تندرئ﴾ د انفعال د باب مضارع ده: ليرې کېدل، دفع کېدل، ساقطېدل، ﴿بـاذل﴾ د نصر د باب فاعل دی: خرچ کونکی (خرچونکی، په رضا سره خپل حق ورکولو ته آماده، په پراخ زړه [پراخ نيت] سره د خپل شي ورکونکی)، ﴿هيّن﴾ آسانه، سپک.

**تشريح**: مخکي دا خبره ذکر سوه چې که مدعیٰ عليه بيّنه پېش نه کړی سي (يعني له بينه پېشولو څخه عاجزه سي)، نو له هغه څخه به قسم اخيستل کيږي، ليکن نهه (۹) مسئلې داسي دي چې په هغه کي به له مدعیٰ عليه څخه قسم نه اخيستل کيږي: ① نکاح، ② رجعت، ③ د ايلاء رجعت، ④ رقيت (غلامتوب)، ⑤ استيلاد، ⑥ نسب، ⑦ ولاء، ⑧ حدود، ⑨ لعان.

① نو که له سړي او ښځې څخه يو د نکاح دعویٰ وکړي او بل د هغه انکار وکړي، ② يا په طلاقِ رجعي کي له خاوند او ښځې څخه يو د رجعت دعویٰ وکړي او بل د هغه انکار وکړي، ③ يا د ايلاء له مودت تېرېدلو څخه وروسته خاوند دعویٰ وکړي چې ما رجعت کړی دی او ښځه د هغه انکار وکړي، ④ يا يو څوک د مجهولُ النسب کس په باره کي دعویٰ وکړي چې "دا زما غلام دی"، او مجهولُ النسب کس انکار وکړي (چې زه ستا غلام نه يم)، ⑤ يا يو مينځه دعویٰ وکړي چې "زه خپل مالک اُم ولد جوړه کړې يم، يعني ما د مالک له نطفې څخه بچی زېږولی دی"، او مالک له دې څخه انکار وکړي، ⑥ يا يو څوک د يو مجهولُ النسب کس په باره کي دعویٰ وکړي چې "دا زما څوی دی"، او مجهولُ النسب کس انکار وکړي (چې زه ستا څوی نه يم)، ⑦ يا يو څوک د مجهولُ النسب کس په باره کي دعویٰ وکړي چې "ما هغه آزاد کړی دی او زه د هغه مالک يم لهذا د هغه ولاء زما ده"،

لېکن مجهولُ النسب کس انکار وکړي (چي ته زما آزادونکی مالک نه یې لهذا زما ولاء ستا نه ده)، ⑧ یا یو څوک پر یو سړي د داسي جرم دعویٰ وکړي کوم چي حد واجبوي، مثلاً د زنا یا غلا دعویٰ وکړي (چي تا زنا کړې ده، یا تا غلا کړې ده)، لېکن هغه سړی انکار وکړي، ⑨ یا یو ښځه پر خپل خاوند دعویٰ وکړي چي هغه پر ما داسي تهمت لګولی دی کوم چي لعان واجبوي (یا مثلاً داسي ووایي چي پر ما د تهمت لګولو په وجه زما پر خاوند لعان واجب دی)، لېکن خاوند انکار وکړي.

نو په دغو ټولو مسئلو کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي د انکار باوجود به له مدعیٰ علیه څخه قسم نه اخیستل کیږي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چي له حدود او لعان څخه بغیر په نورو مسئلو کي به له مدعیٰ علیه څخه قسم اخیستل کیږي.

وصورة الاستیلاد إلخ: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله صرف د "استیلاد" صورت ځکه بیان کړی دی، چي په هغه کي عکس نه جاري کیږي، یعني که د مینځي پر ځای مالک دعویٰ وکړي چي ما خپل دغه مینځه اُم ولد جوړه کړې ده، نو په دې صورت کي په خپله د مالک د اقرار په وجه استیلاد ثابتیږي او د مینځي انکار لره هیڅ اعتبار نسته، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله خاص د استیلاد د مسئلې صورت بیان کړی دی، لېکن څرنګه چي له دې څخه بغیر په نورو مسئلو کي عکس نه جاري کیږي، نو ځکه یې د هغوی صورتونه نه دي بیان کړي، لېکن موږ ستاسو د اسانتیا لپاره هغه هم بیان کړل.

**د صاحبینو دلیل**: په مختلف فیه مسئلو کي د صاحبینو دلیل دا دی چي له قسم څخه د مدعیٰ علیه (منکر) انکار کول داسي دي لکه د مدعي د دعوې اقرار کول. ځکه چي له قسم څخه انکار کول د دې خبري دلیل دی چي مدعیٰ علیه د دعوې په انکار کولو کي بالکل دروغجن دی؛ ځکه که مدعیٰ علیه د دعوې په انکار کولو کي دروغجن نه وای نو هغه به خامخا قسم اخیستلای؛ ځکه په قسم اخیستلو کي درې فایدې دي، یو دا چي هغه (مدعیٰ علیه) به د شریعت د واجب سوي حق یعني د قسم اداء کونکی سي (یعني د شریعت حق به اداء کړي)، دویم دا چي له هغه څخه به د کذب تهمت لیري سي، درېیم دا چي مدعیٰ بهٖ شی به د هغه په ملکیت کي پاته سي، لنډه دا چي که مدعیٰ علیه په خپل قسم کي دروغجن نه وای، نو هغه به دغه فایدې هیڅکله نه پرېښوولای، لېکن د دغو فایدو باوجود له قسم څخه انکار کول د دې خبري ښکاره دلیل دی چي مدعیٰ علیه د مدعي د دعوې په انکار کولو کي بالکل دروغجن دی او هغه د مدعي دعویٰ قبلوي (یعني ګواکي د دې خبري دلیل دی چي هغه د مدعي دعویٰ تسلیموي او مدعي په خپل دعویٰ کي رښتوني ګڼي)، لهذا له قسم څخه د هغه انکار کول به اقرار وي یا به د

اقرار بدل وي، او اقرار په مذکوره ټولو مسئلو کي جاري کيږي، نو ځکه انکار به هم پکښي جاري کيږي، او تاسو ته معلومه ده چي د انکار په صورت کي له مدعیٰ علیه څخه قسم اخيستل کيږي، نو ځکه په دغو مسئلو کي به هم له مدعیٰ علیه څخه قسم اخيستل کيږي. مگر د حدود او لعان په مسئله کي به په دې وجه قسم نه ځني اخيستل کيږي؛ ځکه چي له قسم څخه د مدعیٰ علیه انکار کول که څه هم اقرار دی، خو هغه داسي اقرار دی چي څه شبهه پکښي سته. ځکه چي له قسم څخه انکار کول داسي دي لکه د دعوې په باره کي چپ پاتېدل، او چپ پاتېدل (سکوت) که څه هم اقرار دی خو په هغه کي شبهه سته. او تاسو ته ښه معلومه چي حدود په شبهاتو سره ساقطيږي، نو ځکه په دغه مشتبه اقرار سره به پر مدعیٰ علیه حد نه واجبيږي، او کله چي دا اقرار په حد کي مفيد نه دی نو انکار به هم په حد کي نه جاري کيږي او داسي به نه کيږي چي په حد کي مدعیٰ علیه منکر و گڼل سي او له هغه څخه قسم واخيستل سي، او پاته سو لعان نو هغه هم د حد په معنیٰ سره دی، لهذا کله چي په حد کي له مدعیٰ علیه څخه قسم نه اخيستل کيږي، نو په لعان کي به هم له هغه څخه قسم نه اخيستل کيږي، لېکن له دې دوو څخه بغير په نورو مسئلو کي به قسم ځني اخيستل کيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي له قسم څخه د مدعیٰ علیه انکار کول "بذل" دی يعني د مدعیٰ علیه انکار کول داسي دي لکه مدعي ته په پراخ زړه (په رضا) سره د مدعیٰ به ور کولو اراده کول، او څرنگه چي له قسم اخيستلو څخه وروسته دعویٰ او جنگ ختميږي، همداسي له "بذل" څخه وروسته هم هغه ختميږي، او مقصود همدا دي (چي دعویٰ، جنگ او جنجال ختم سي)، نو ځکه د "بذل" سره به قسم نه واجبيږي، او په پورتني ټولو مسئلو کي د مدعیٰ علیه انکار پر "بذل" حمل کول پر اقرار له حمل کولو څخه ډېر غوره دي؛ ځکه چي پر اقرار د حمل کولو په صورت کي هغه د مدعي د دعوې په انکار کولو کي درواغجن گرځي، حال دا چي د "بذل" په صورت کي هغه درواغجن نه گرځي، او يو مسلمان د کذب له تهمت څخه ساتل غوره کار دی، نو ځکه په دې حواله سره به د مدعیٰ علیه انکار پر "بذل" حمل کيږي، لېکن په پورتني مسئلو کي "بذل" (يعني له قسم څخه انکار کول) نه جاري کيږي، ځکه که مثلاً د نکاح په مسئله کي مدعیٰ عليها ښځه د نکاح انکار وکړي يعني مدعي سړي ته ووايي چي زما او ستا په مينځ کي هيڅ نکاح نه ده سوې لېکن زه په پراخ زړه سره تا ته خپل ځان درکوم (بذل کوم)، نو ښکاره خبره ده چي دا بذل صحيح نه دی، لنډه دا چي په پورتني مسئلو کي بذل جاري نه دی، او کله چي بذل جاري نه دی، نو د مدعیٰ علیه د انکار يعني د بذل په صورت کي به د

قاضي فيصله کول هم نه متصور کيږي، حال دا چي د قسم اخيستلو فايده دا ده چي له قسم څخه د انکار کولو په صورت کي قاضي د مدعىٰ عليه په خلاف فيصله وکړي، او په مذکوره مسئلو کي د هغه تصور نه سي کېدای، او کله چي په دغو مسئلو کي له قسم څخه دانکار کولو په صورت کي د قاضي فيصله نه متصور کيږي، نو ځکه د قسم د بې فايده کېدلو (مفيد نه کېدلو) په وجه به په مذکوره مسئلو کي له مدعىٰ عليه څخه قسم نه اخيستل کيږي.

إلا أن هذا بذل إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي که چيري انکار عن المين (له قسم څخه انکار کول) "بذل" وي لکه څرنګه چي امام صاحب رَحِمَهُ الله وايي، نو بيا مکاتب او عبد مأذون لهٗ ته د انکار عن اليمين اجازت حاصلېدل پکار نه دي؛ ځکه چي په "بذل" کي د تبرّع معنىٰ سته، او دا کسان د تبرّع اهل نه دي، حال دا چي هغو ته د "بذل" (يعني له قسم څخه دانکار کولو) اجازت سته.

د دې جواب دا دی چي مکاتب او عبد مأذون لهٗ تجارت او کاروبار کوي، او د تجارت لپاره چي کوم شيان ضروري دي، دوی دواړه د هغه ملکيت او اختيار لري، مثلاً دوی ته دا اختيار حاصل دی چي د مشتري سپکه مېلمستيا (ضيافتِ يسيره) وکړي، لهذا څرنګه چي دوی ته د ضيافت يسره اختيار حاصل دی، همداسي به د "بذل" اختيار او اجازت هم ورته حاصل وي.

وصحته في بناءً: دا هم د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي که چيري انکار عن اليمين "بذل" وي لکه څرنګه چي امام صاحب رَحِمَهُ الله وايي، نو په قرضونو کي هغه جاري کېدل پکار نه دي؛ ځکه چي د "بذل" محل اعيان (عَين شيان) دي، نه قرضونه (دُيون)، ځکه چي قرض وصف ته يعني پر ذمه واجب سوي حق ته وايي، او تاسو ته به معلومه وي چي بذل او عطاء په اوصافو کي نه جاري کيږي، لهذا په قرضونو کي هم بذل جاري کېدل پکار نه دي، حال دا چي ستاسو په نېز په قرضونو کي هم بذل جاري کيږي.

نو د دې جواب دا دی چي په قرضونو کي د بذل صحيح کېدل او جاري کېدل د مدعي د ګومان پر بناء دي، په دې توګه چي په قرض کي بذل د ترکُ المنع (دمنع د پرېښوولو) په معنىٰ سره دي، يعني دلته د بذل مطلب دا دی چي مدعىٰ عليه د قرض پر مال له قبضه کولو څخه (د مدعي) منع کول پرېښوول او د قبضه کولو اجازت يې ورکړی، اوس ګواکي مدعي د خپل ګومان مطابق پر هغه مال د خپل ذاتي حق په توګه قبضه کوي او د مدعي لپاره پر هغه مال له قبضه کولو څخه هيڅ شی مانع دی، او ترک المنع (منع پرېښوول) چي څرنګه په اعيانو کي جائز او جاري کيږي، همداسي په مالونو او قرضونو

کي هم جائز او جاري کيږي؛ او بل دا چي د مالونو معامله زياته آسانه او سپکه ده. نو ځکه په مالونو کي به په درجه اولیٰ هغه جاري کيږي.

## له قسم څخه د غله انکار کول

قَالَ: وَيُسْتَحْلَفُ السَّارِقُ فرمايي: او له غله څخه به قسم اخيستل کيږي فَإِنْ نَكَلَ او که هغه انکار وکړي ضَمِنَ نو هغه ضامن کيږي [يعني پر هغه د غلا سوي شي ضمان (تاوان) واجبيږي] وَلَمْ يُقْطَعْ او د هغه لاس به نه پرېکول کيږي لِأَنَّ الْمَنُوْطَ بِفِعْلِهِ شَيْئَانِ: الضَّمَانُ ځکه چي د غله د فعل سره دوه شيان متعلق دي: ① يو د ضمان واجبېدل وَيَعْمَلُ فِيهِ النُّكُوْلُ او په دې کي انکار عمل [اثر] کوي وَالْقَطْعُ ② او بل د لاس پرېکول وَلَا يَثْبُتُ بِهِ او هغه په انکار سره نه ثابتيږي فَصَارَ كَمَا إِذَا شَهِدَ عَلَيْهَا رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ نو دا داسي سو لکه د غله په خلاف چي يو سړی او دوې ښځي گواهي ورکړي.

**اللغات**: ﴿سارق﴾ د نصر د باب اسم فاعل دی: غل، ﴿منوط﴾ د نصر د باب اسم مفعول دی: معلق، متعلق.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک پر يو سړي د غلا دعویٰ وکړي (چي [مثلاً] زما پَسه تا غلا کړی دی) او بيا مدعي له بيّنه پېشولو څخه عاجزه سي او مدعیٰ عليه (غل) له قسم څخه انکار وکړي، نو هغه د غلا سوي شي (پَسه) ضامن او د هغه لاس به نه پرېکول کيږي؛ ځکه چي د غله د فعل سره دوه شيان متعلق دي: ① د غلا سوي شي ضمان (تاوان)، ② قطع اليد (لاس پرېکول)، او د قسم په انکار سره صرف ضمان واجبيږي، قطع اليد نه ثابتيږي؛ ځکه چي قطع اليد حد دی، او د حد لپاره واضح ثبوت او دليل ضروري دی، نه انکار عن اليمين. د دې مثال داسي دی لکه يو سړی او دوې ښځي چي د يو سړي په خلاف د غلا گواهي ورکړي، نو په دې گواهی سره پر هغه سړي صرف مال واجبيږي لېکن په دې سره قطع اليد نه ثابتيږي يعني د هغه لاس نه پرېکول کيږي، همداسي په انکار عن اليمين سره به هم پر منکر صرف مال واجبيږي لېکن د هغه لاس به نه پرېکول کيږي.

## د طلاق نه ورکولو له قسم څخه انکار کول
## (او د دې په ضمن کې څو نورې مسئلې)

قَالَ: وَإِذَا ادَّعَتِ الْمَرْأَةُ طَلَاقًا قَبْلَ الدُّخُوْلِ فرمايي: او کله چې ښځه د طلاق قبل الدخول دعوىٰ وکړي أُسْتُحْلِفَ الزَّوْجُ نو له خاوند څخه به قسم اخيستل کيږي فَإِنْ نَكَلَ او که خاوند له قسم څخه انکار وکړي ضَمِنَ نِصْفَ الْمَهْرِفِيْ قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو هغه د ټولو امامانو په نيز د نيم مهر ضامن کيږي لِأَنَّ الِاسْتِحْلَافَ يَجْرِي فِي الطَّلَاقِ عِنْدَهُمْ ځکه چې د ټولو په نيز په طلاق کې قسم اخيستل جاري کيږي لَا سِيَّمَا إِذَا كَانَ الْمَقْصُودُ هُوَ الْمَالُ خصوصاً په هغه صورت کله چې مقصود مال وي وَكَذَا فِي النِّكَاحِ إِذَا ادَّعَتْ هِيَ الصَّدَاقَ او همدارنګه په نکاح کې کله چې ښځې د مهر دعوىٰ کړې وي لِأَنَّ ذٰلِكَ دَعْوَى الْمَالِ ځکه چې دا د مال دعوىٰ ده ثُمَّ يَثْبُتُ الْمَالُ بِنُكُولِهِ وَلَا يَثْبُتُ النِّكَاحُ بيا د خاوند په انکار سره مال خو ثابتيږي لېکن نکاح نه ثابتيږي وَكَذَا فِي النَّسَبِ إِذَا ادَّعٰى حَقًّا كَالْإِرْثِ وَالْحِجْرِفِي اللَّقِيطِ وَالنَّفَقَةِ وَامْتِنَاعِ الرُّجُوعِ فِي الْهِبَةِ او همدا حکم په نسب کې هم دی کله چې هغه د يو حق دعوىٰ وکړي لکه د ميراث دعوىٰ او په لقيط کوچني کې د پالنې دعوىٰ او د نفقې دعوىٰ او په هبه کې د رجوع ممتنع کېدلو دعوىٰ لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هٰذِهِ الْحُقُوقُ ځکه چې مقصود همدا حقوق دي وَإِنَّمَا يُسْتَحْلَفُ فِي النَّسَبِ الْمُجَرَّدِ عِنْدَهُمَا إِذَا كَانَ يَثْبُتُ بِإِقْرَارِهِ او په محض نسب [خالي نسب] کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به هغه وخت له مدعىٰ عليه څخه قسم اخيستل کيږي کله چې نسب د هغه په اقرار سره ثابتيږي كَالْأَبِ وَالِابْنِ فِي حَقِّ الرَّجُلِ وَالْأَبِ فِي حَقِّ الْمَرْأَةِ لکه د سړي په حق کې د پلار او ځوی اقرار او د ښځې په حق کې د پلار اقرار [نه د ځوی اقرار] لِأَنَّ فِي دَعْوَاهَا الِابْنَ تَحْمِيلَ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ ځکه چې د ښځې د ځوی په دعوىٰ کې پر بل چا د نسب بار اچول کيږي [يعني که ښځه د يو سړي د ځوی والي دعوىٰ او اقرار وکړي نو په دې سره پر بل چا (يعني د هغې پر خاوند) د هغه کس نسب لازمول کيږي او د خاوند سره د هغه نسب تړل کيږي] وَالْمَوْلٰى وَالزَّوْجِ فِي حَقِّهِمَا او [لکه] د مالک او خاوند اقرار د سړي او ښځې په حق کې.

**اللغات**: ﴿استحلاف﴾ د استفعال د باب مصدر دی: له يو چا څخه د قسم مطالبه کول، قسم ځني اخيستل، ﴿لا سيّما﴾ خصوصاً، په ځانګړې توګه، ﴿حجر﴾ غېږه، پالنه (پرورش او تربيه کول)، ﴿لقيط﴾ هغه کوچنی کوم چي په عامه لار کي پروت وي او يو څوک هغه راپورته کړي، ﴿تحميل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: د يو چا پر ذمه د يو شي بار او بوج اچول، بارول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو ښځه د خپل خاوند په خلاف د طلاق قبل الدخول دعویٰ وکړي او خاوند له دې څخه انکار وکړي (چي ما تا ته قبل الدخول طلاق نه دی درکړی)، بيا له خاوند څخه د قسم اخيستلو مطالبه وسي او خاوند له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، نو په دې صورت کي پر ښځي طلاق واقع کيږي، او د ټولو امامانو په نيز په دې صورت کي پر خاوند د نيم مهر ضمان (تاوان) واجبيږي؛ ځکه چي د ټولو امامانو په نيز په طلاق کي استحلاف جاري کيږي، نو څرنګه چي د استحلاف په نورو ځايو کي له مدعیٰ عليه (منکر) څخه قسم اخيستل کيږي، همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم له مدعیٰ عليه يعني له خاوند څخه قسم اخيستل کيږي.

**وکذا في النکاح إلخ**: فرمايي که يو ښځه دا دعویٰ وکړي چي "زما نکاح د فلاني سړي سره سوې ده، لهذا هغه ته دي حکم وسي چي ما ته خپل مهر راکړي"، نو په دې صورت کي هم که خاوند انکار وکړي، نو پر هغه مهر لازميږي لېکن نکاح نه ثابتيږي؛ ځکه چي نکاح په بيّنه سره ثابتيږي، نه په انکار عن اليمين سره.

**وکذا في النسب إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که يو سړی د نسب پر بناء د يو حق مثلاً د ميراث يا داسي بل حق دعویٰ وکړي، مثلاً زيد پر خالد دا دعویٰ وکړي چي "هغه زما حقيقي ورور دی او زموږ پلار مړ سوی دی او د پلار ټوله ميراث د خالد سره دی، لهذا له هغه څخه دي ما ته خپل حق راکول سي"، لېکن کله چي مدعیٰ عليه (خالد) دغه دعویٰ واوري نو هغه انکار وکړي، نو اوس په دې صورت که مدعي (زيد) بيّنه پېش نه کړی سي، نو له مدعیٰ عليه څخه به قسم اخيستل کيږي، که هغه قسم واخلي، نو د مدعي دعویٰ ختميږي او باطليږي، او که هغه له قسم څخه انکار وکړي، نو د مدعي دعویٰ ثابتيږي او د مدعي لپاره د وراثت مال ثابتيږي لېکن نسب نه ثابتيږي؛ ځکه چي په انکار عن اليمين سره نسب نه ثابتيږي.

**والحجر في اللقيط والنفقة إلخ**: فرمايي که يو سړی په لاره کي يو کوچنی پيدا کړي او راپورته يې کړي، بيا يو ښځه دعویٰ وکړي چي "دا زما ورور دی او د دې د پالني او تربيت حق ما ته حاصل دی"، او

راپورته کونکی سړی (مُلتقِط) انکار وکړي، نو په دې صورت کې به هم له ملتقط څخه قسم اخيستل کيږي، که ملتقط له قسم څخه انکار وکړي، نو هغه بچی به مدعيه ښځې ته ورکول کيږي لېکن نسب نه ثابتيږي يعني د هغه بچي نسب او رشته د دې ښځې سره نه ثابتيږي.

همدارنګه که يو څوک د يو سړي په باره کې دا دعوىٰ وکړي چې "هغه زما پلار دی او زه د هغه معذوره ځوی يم، لهذا زما نفقه پر هغه واجب ده"، لېکن کله چې مدعىٰ عليه دا دعوىٰ واوري نو هغه انکار وکړي (چې زه بالکل د ده پلار نه يم)، او مدعي پر خپله دعوىٰ بيّنه پېش نه کړی سي، نو دلته به هم له مدعىٰ عليه څخه قسم اخيستل کيږي، او که هغه له قسم څخه انکار وکړي، نو پر هغه د مدعي نفقه واجبيږي لېکن نسب نه ثابتيږي.

همدارنګه که خالد ادريس ته يو شی هبه کړي، بيا واهب يعني خالد هغه شی له موهوب لهٗ (ادريس) څخه واپس اخيستل وغواړي، لېکن موهوب لهٗ (ادريس) دا دعوىٰ وکړي چې "ته زما ورور يې!، لهذا ته زما څخه موهوب شی واپس نه سې اخيستلای"، او واهب (خالد) انکار وکړي، نو دلته هم که مدعي يعني موهوب لهٗ (ادريس) پر خپله دعوىٰ بيّنه پېش نه کړی سي، نو له مدعىٰ عليه يعني له واهب (خالد) څخه به قسم اخيستل کيږي، او که هغه له قسم څخه انکار وکړي، نو پر هغه رجوع في الهبه (يعني د موهوب شي واپس اخيستل) ممنوع ګرځي لېکن نسب يعني د اخوت رشته نه ثابتيږي.

لأن المقصود هذه الحقوق: د پورتنی ټولو مسئلو مجموعي دليل دا دی چې په دې مسئلو کې نسب مقصود نه دی بلکې مالي حقوق مقصود دي، او په مالي حقوقو کې استحلاف جاري کيږي، نو ځکه په دې مسئلو کې به هم استحلاف جاري کيږي.

وإنما يستحلف في النسب إلخ: د دې حاصل دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د محض نسب (خالي نسب) په دعوىٰ کولو کې استحلاف نه جاري کيږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د نسب محض په دعوىٰ کولو کې استحلاف جاري کيږي په دې شرط چې هغه نسب د مدعىٰ عليه په اقرار سره ثابتېدای سي. د دې مثال داسي دی لکي يو څوک چې د يو سړي په باره کې دا دعوىٰ وکړي چې "هغه زما پلار يا زما ځوی دي"، يا يو څوک د يو ښځې په باره کې دا دعوىٰ وکړي چې "زه د هغې پلار يم"، لېکن مدعىٰ عليه له دې څخه انکار وکړي، او مدعي بيّنه پېش نه کړی سي، او بيا له مدعىٰ عليه څخه قسم واخيستل سي او هغه له قسم څخه انکار وکړي، نو په دې صورت کې په انکار عن اليمين سره نسب ثابتيږي، ځکه که چيري مدعىٰ عليه دعوىٰ تسليم کړې وای او اقرار يې

کړي واى نو د هغه په اقرار سره به هم نسب ثابتېداى، او څرنګه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز انکار عن اليمين اقرار دى، نو ځکه په هغه سره به هم نسب ثابتيږي.

د دې په خلاف که يو سړى دعوىٰ وکړي چي "زه د فلانکۍ ښځي ځوى يم"، لېکن هغه ښځه (مدعىٰ عليها) له دې څخه انکار وکړي، او مدعي بيّنه پېش نه کړى سي، نو له مدعىٰ عليها ښځي څخه به قسم نه اخيستل کيږي؛ ځکه که هغه ښځه د مدعي د دعوى اقرار وکړي نو هم د هغې په اقرار سره مدعي د هغې ځوى نه ګرځي؛ ځکه که مدعي د هغې ځوى وګرځول سي نو دا خبره لازميږي چي مدعي د هغې د خاوند هم ځوى دى، لهذا په دې کي پر بل چا (يعني پر خاوند) نسب لازمول کيږي او د هغه سره د مدعي نسب تړل کيږي، او حکم دا دى چي په کوم صورت کي پر بل چا نسب لازمول کيږي، هلته په صريح اقرار سره نسب نه ثابتيږي، نو ځکه په انکار اليمين سره خو به په درجه اولىٰ نسب نه ثابتيږي.

والمولى والزوج إلخ: د دې حاصل دا دى چي که يو څوک د يو سړي په باره کي دا دعوىٰ وکړي چي "هغه زما مالک (مولىٰ) دى" يا ښځه د يو سړي په باره کي دا دعوىٰ وکړي چي "هغه زما خاوند دى"، او مدعىٰ عليه (يعني مالک يا خاوند) انکار وکړي او مدعي بيّنه پېش نه کړى سي، بيا له مدعىٰ عليه څخه د قسم مطالبه وسي او هغه له قسم څخه انکار وکړي، نو د دغه انکار په وجه د مدعىٰ عليه مالک کېدل او خاوند کېدل ثابتيږي (يعني په اول صورت کي له قسم څخه د انکار کولو په وجه مدعىٰ عليه (مالک) د غلام مالک ګرځي او په دوېم صورت کي مدعىٰ عليه (خاوند) د ښځي خاوند ګرځي)؛ ځکه که چيري مدعىٰ عليه د انکار پر ځاى اقرار کړي واى، نو په دې سره به هم د هغه مالک کېدل يا خاوند کېدل ثابتېداى، او څرنګه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز انکار عن اليمين اقرار دى، نو ځکه په هغه سره به هم مالک کېدل يا خاوند کېدل ثابتيږي.

## د قتل نه کولو له قسم څخه انکار کول

قَالَ: وَمَنِ ادَّعٰى قِصَاصًا عَلٰى غَيْرِهٖ فرمايي: او که يو سړى پر بل چا د قصاص دعوىٰ وکړي فَجَحَدَهٗ او دا بل څوک [مدعىٰ عليه] له دې څخه انکار وکړي اُسْتُحْلِفَ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق به له هغه [مدعىٰ عليه] څخه قسم اخيستل کيږي ثُمَّ إِنْ نَكَلَ عَنِ الْيَمِيْنِ فِيْمَا دُوْنَ النَّفْسِ بيا که مدعىٰ عليه له نفس څخه په کم کي له قسم څخه انکار وکړي يَلْزَمُهُ الْقِصَاصُ نو پر هغه قصاص لازميږي وَإِنْ نَكَلَ فِي

النَّفْسِ او که هغه په نفس کي له قسم څخه انکار وکړي حُبِسَ حَتَّى يَحْلِفَ أَوْ يُقِرَّ نو هغه به قيدول کيږي تر دې چي قسم واخلي يا اقرار وکړي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا*: لَزِمَهُ الْأَرْشُ فِيهِمَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په دواړو صورتونو کي پر مدعیٰ عليه ديت لازميږي لِأَنَّ النُّكُولَ إِقْرَارٌ فِيهِ شُبْهَةٌ عِنْدَهُمَا ځکه چي د صاحبينو په نېز له قسم څخه انکار کول داسي اقرار دی چي په هغه کي شبهه ده فَلَا يَثْبُتُ بِهِ الْقِصَاصُ نو ځکه په دې انکار سره به قصاص نه ثابتيږي وَيَجِبُ بِهِ الْمَالُ او په دې انکار سره مال واجبداى سي خُصُوصًا إِذَا كَانَ امْتِنَاعُ الْقِصَاصِ لِمَعْنًى مِنْ جِهَةِ مَنْ عَلَيْهِ خصوصاً [په هغه صورت کي] کله چي د قصاص ممتنع کېدل د داسي معنیٰ په وجه وي کوم چي د من عليه القصاص له طرفه وي [يعني د هغه کس له طرفه وي پر کوم چي قصاص واجب وي [په لنډه توګه دا چي د قاتل له طرفه وي] كَمَا إِذَا أَقَرَّ بِالْخَطَأِ وَالْوَلِيُّ يَدَّعِي الْعَمْدَ لکه کله چي قاتل د قتلِ خطاء اقرار وکړي او [د مقتول] ولي د قتلِ عمد دعویٰ کوي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْأَطْرَافَ يُسْلَكُ بِهَا مَسْلَكَ الْأَمْوَالِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي په اطرافو کي د مالونو په څېر معامله کيږي فَيَجْرِي فِيهَا الْبَذْلُ نو ځکه په اطرافو کي به "بذل" جاري کيږي بِخِلَافِ الْأَنْفُسِ به خلاف د نفوسو فَإِنَّهُ لَوْ قَالَ: اِقْطَعْ يَدِيْ [همدا وجه ده] که يو څوک [بل چا ته] ووايي: چي زما لاس پرېکړه! فَقَطَعَهَا او هغه يې پرېکړي لَا يَجِبُ الضَّمَانُ نو ضمان نه واجبيږي وَهٰذَا إِعْمَالٌ لِلْبَذْلِ او دا د بذل اثر دی إِلَّا أَنَّهُ لَا يُبَاحُ لِعَدَمِ الْفَائِدَةِ مګر دا چي د فايدې د نشتوالي په وجه مباح نه دی وَهٰذَا الْبَذْلُ مُفِيدٌ او دا بذل فايده من دی لِانْدِفَاعِ الْخُصُومَةِ بِهِ ځکه چي په هغه سره خصومت [دعویٰ او جنګ] ختميږي فَصَارَ كَقَطْعِ الْيَدِ لِلْآكِلَةِ وَقَلْعِ السِّنِّ لِلْوَجَعِ نو دا داسي سو لکه د خوړونکي زخم په وجه لاس پرېکول او د درد په وجه غاښ کښل وَإِذَا امْتَنَعَ الْقِصَاصُ فِي النَّفْسِ وَالْيَمِينُ حَقٌّ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ [حاصل دا چي] کله په نفس کي قصاص ممتنع سو او قسم پر

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ظهر من داب المصنف رَحِمَهُ الله، وأيضا قوله قول المتون، وكذا ذكر قوله في تنوير الأبصار (ج:۴، ص:۲۷۴)، وملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۳۵۳)، و هكذا في الهندية (ج:۴، ص:۱۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۷۱]

مدعیٰ عليه يو واجب سوی حق دی يُحْبَسُ بِهِ نو د دې حق په وجه به مدعیٰ عليه قيدول کيږي كَمَا فِي الْقَسَامَةِ لکه څرنګه چي په قسامت کي کيږي.

**اللغات**: ﴿جحد﴾ د فتح د باب ماضي ده: انکار کول، ﴿حُبِس﴾ د ضرب د باب ماضي مجهوله ده: بندي کول، قيدول (بنديخانې ته اچول)، ﴿أَرْش﴾ ديت، جرمانه، هغه مال کوم چي له ما دون النفس څخه په کم جنايت کي واجبيږي (معجم لغة الفقهاء)، ﴿أطراف﴾ جمع د طرفٌ ده: اعضاء، اندامونه، لاسونه او پښې، ﴿آكلة﴾ هغه ژور زخم او هغه مرض کوم چي په ټوله اندام کي غوړيږي او ټوله اندام خوري او هغه وروست او بېکاره کوي، د خارښت مرض (کوم چي د وينې د خرابوالي له امله پيدا کيږي) (مصباح لغات، مصباح منير)، ﴿قسامة﴾ صاحب د معجم د دې لفظ څو معناوي ذکر کړي دي چي له هغه څخه يو معنیٰ دا ده: "أيمان يحلفها أهل المحلة المتهمون بالقتل" (يعني هغه قسمونه کوم چي يې د مقتول په قتل سره متهمه محلې والا خلک اخلي)، صورت به يې په تشريح کي ذکر سي. (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی پر بل چا د نفس د قصاص يا له نفس څخه د کم (ما دون النفس) د قصاص دعویٰ وکړي، يعني داسي دعویٰ وکړي چي "هغه مثلاً زما ورور عمداً (قصداً) په ناحقه قتل کړی دی، يا هغه زما د ورور لاس پرېکړی دی، لهذا پر هغه قصاص لازم دي"، لېکن مدعیٰ عليه له دې څخه انکار وکړي او مدعي پر خپله دعویٰ بيّنه پېش نه کړی سي (يعني له بيّنه پېشولو څخه عاجزه سي)، نو په دې صورت کي بالاتفاق د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به له مدعیٰ عليه څخه قسم اخيستل کيږي، که هغه قسم واخلي، نو له قصاص څخه بري کيږي، او که هغه له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، نو دلته دوه صورتونه دي: ① يو دا چي له نفس څخه په کم (يعني د اندام [لاس] پرېکولو په صورت) کي له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، ② دويم صورت دا چي د نفس په قصاص کي له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په اول صورت کي پر هغه قصاص واجبيږي او په دويم صورت کي به هغه قيدول کيږي تر دې چي قسم واخلي يا د قصاص النفس اقرار وکړي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز برابره ده مدعیٰ عليه په نفس کي له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي يا په ما دون النفس کي له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، په دواړو صورتونو کي (د صاحبينو په نېز) پر هغه ديت لازميږي او په يوه صورت کي هم قصاص نه لازميږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې انکار عن اليمين داسې اقرار دی چې په هغه کې شبهه ده (يعني هغه مشتبه اقرار دی) او قصاص يو حد دی، نو ځکه د شبهې سره به قصاص نه ثابتيږي، ځکه دا ښکاره خبره ده چې په شبهې سره حد ساقطيږي لکه څرنګه چې مخکې څو ځله ذکرې سوې دي "اَلْحُدُوْدُ تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ"، لېکن د شبهې سره مال ثابتېدای سي او خصوصاً کله چې د قصاص عدم وجوب په يو داسې سبب سره وي کوم چې په خپله د من عليه القصاص يعني د قاتل (مدعیٰ عليه) له طرفه پيدا سوی وي، مثلاً هغه د قتلِ خطاء اقرار وکړي او د مقتول ولي د قتلِ عمد دعویٰ کوي، نو په دې صورت کې پر قاتل (مدعیٰ عليه) ديت واجبيږي، قصاص نه پر واجبيږي، نو همداسې به دلته د مدعیٰ عليه د انکار عن اليمين په وجه هم پر هغه ديت واجبيږي، قصاص به نه پر واجبيږي.

**د امام صاحب دليل:** دليل دا دی چې د انسان په اعضاؤ او اندامونو کې د مال په څېر سلوک او معامله کېږي؛ ځکه څرنګه چې په مال سره د نفس حفاظت کېږي، همداسې په اعضاؤ سره هم د نفس حفاظت کېږي، (او مخکې ذکر سوه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز انکار عن اليمين "بذل" دی)، او دا معلومه خبره ده چې په مالونو کې "بذل" جاري دی، لهذا په اعضاؤ کې به هم هغه جاري وي نو که چېرې مدعیٰ عليه د يو اندام د پرېکولو له دعویٰ څخه انکار وکړي او مدعي بيّنه پېش نه کړی سي نو په دې صورت کې به له مدعیٰ عليه څخه قسم اخيستل کېږي، او که مدعیٰ عليه له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، نو له هغه څخه به د مذکوره اندام قصاص اخيستل کېږي.

د دې په خلاف که يو سړی د نفس قتلولو دعویٰ وکړي، نو په هغه کې بذل نه جاري کېږي.

همدا وجه ده که يو څوک بل چا ته ووايي چې "ته زما لاس پرېکړه!"، او دا بل څوک د هغه لاس پرېکړي، نو پر قاطع (پرېکونکي) ضمان نه واجبيږي، نو په اعضاؤ او اطرافو کې ضمان نه واجبېدل د بذل اثر دی، يعني دا ضمان نه واجبېدل د دې خبرې علامت دی چې په اعضاؤ او اطرافو کې بذل جاري کېږي، ځکه که په هغوی کې بذل نه جاري کېدای نو ضمان به واجبېدای. د دې په خلاف که يو څوک بل چا ته ووايي چې "ته ما قتل کړه!" او دا بل څوک هغه قتل کړي، نو پر قاتل قصاص واجبيږي يا د يوه روايت مطابق ديت پر واجبيږي، نو د قصاص يا ديت واجبېدل د دې خبرې علامت دی چې په نفوسو کې بذل نه جاري کېږي، خو په اعضاؤ او اطرافو کې بذل جاري کېږي، لېکن بلا وجه د عضواو طرف په قطع (پرېکولو) کې هيڅ فايده نسته نو ځکه د هغه قطع مباح نه ده، خو بيا هم په هغه کې د بذل فايده سته او هغه دا چې په هغه سره (د مدعي او مدعیٰ عليه په مينځ کې) خصومت او جنګ ختميږي، نو د دې فايدې په خاطر امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د اطرافو (اعضاؤ) والا له دعوې

څخه د انکار کولو په صورت کې پر مدعیٰ علیه قصاص واجب سوی دی، د دې مثال داسې دی لکه د يو چا په لاس کې چې خطرناک او سرايت کونکی زخم پيدا سي او د هغه په وجه ډاکټر د هغه لاس پرې کړي، يا د درد په وجه ډاکټر د يو چا غاښ وکاږي، نو څرنگه چې د دې فايدو په وجه د ډاکټر لپاره د لاس پرې کول او د غاښ کښل مباح (روا) دي، همداسې د خصومت دفع کولو او ختمولو لپاره هم په اطرافو کې قصاص واجب او مباح کړی سوی دی. (احسن الهدايه)

لېکن څرنگه چې په نفس کې بذل نه جاري کيږي، نو ځکه په هغه کې له انکار عن اليمين څخه وروسته قصاص ممتنع سوی دی، خو بيا هم څرنگه چې قسم اخيستل پر مدعیٰ عليه يو واجب شُده حق دی، نو ځکه د دې حق په وجه به مدعیٰ عليه قيدول کيږي تر دې چې هغه قسم واخلي يا د مدعي د دعوی اقرار وکړي، لکه څرنگه چې په قسامت کې هم داسې کيږي، يعنې که په يو محله او کلي کې وژل سوی کس (مقتول) وموندل سي او قاتل معلوم نه وي، نو د مقتول وليان به د هغه محلې له پنځوسو خلکو څخه قسم اخلي، که چيرې هغوی له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، نو هغوی به قيدول کيږي تر دې چې قسم واخلي يا د قاتل معلومات ورکړي؛ ځکه چې د مدعیٰ عليه په څېر پر هغو هم قسم واجب شُده حق دی، لهذا څرنگه چې هغوی د انکار عن اليمين په وجه قيدول کيږي، همداسې به مدعیٰ عليه هم قيدول کيږي. (احسن الهدايه)

## له خصم (مدعیٰ عليه) څخه د ضمانت طلب کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا قَالَ الْمُدَّعِيْ: لِيْ بَيِّنَةٌ حَاضِرَةٌ فرمايي: او کله چې مدعي ووايي: زما سره په ښار کې بيّنه [گواهان] موجود دي قِيْلَ لِخَصْمِهِ: أَعْطِهِ كَفِيْلًا بِنَفْسِكَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ نو د هغه خصم [مدعیٰ عليه] ته به ويل کيږي: چې ته د دريو ورځو لپاره ده [مدعي] ته کفيل بالنفس ورکړه! كَيْ لَا يَغِيْبَ نَفْسُهُ فَيَضِيْعَ حَقُّهُ د دې لپاره چې هغه [مدعیٰ عليه] غائب نه سي نو د مدعي حق به ضايع سي وَالْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ جَائِزَةٌ عِنْدَنَا او کفيل بالنفس اخيستل زموږ په نېز جائز دي وَقَدْ مَرَّمِنْ قَبْلُ او دا مخکې تېر سو وَأَخْذُ الْكَفِيْلِ بِمُجَرَّدِ الدَّعْوٰى اِسْتِحْسَانٌ عِنْدَنَا او محض [د مدعي] د دعوی پر بناء [له مدعیٰ عليه څخه] کفيل اخيستل زموږ په نېز استحسان دی لِأَنَّ فِيْهِ نَظَرًا لِلْمُدَّعِيْ ځکه چې په دې کې د مدعي لپاره مصلحت [ښېگڼه] سته وَلَيْسَ فِيْهِ كَثِيْرُ ضَرَرٍ بِالْمُدَّعٰى عَلَيْهِ او په دې کې د مدعیٰ عليه زيات ضرر نسته وَهٰذَا لِأَنَّ الْحُضُوْرَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ بِمُجَرَّدِ الدَّعْوٰى او دا ځکه چې محض [د مدعي] په دعویٰ سره

پر مدعیٰ علیه حاضر بدل واجب دي حَتّٰى يُعَدّٰى عَلَيْهِ وَيُحَالُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَشْغَالِهِ همدا وجه ده [كه مدعیٰ علیه حاضر نه سي نو] د هغه پر حاضرولو له قاضي [او حاكم] څخه مرسته غوښتل كيږي او د هغه او د هغه د خپل كارونو په مينځ كي جدايي راوستل كيږي فَصَحَّ التَّكْفِيلُ بِإِحْضَارِهِ نو ځكه د مدعیٰ عليه پر حاضرولو كفيل اخيستل صحيح دي وَالتَّقْدِيرُ بِثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مَرْوِيٌّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او په دريو ورځو سره اندازه كول له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوي دي وَهُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح دي وَلَا فَرْقَ فِي الظَّاهِرِ بَيْنَ الْخَامِلِ وَالْوَجِيهِ او په ظاهر روايت كي د بې قدره او قدرمن [مدعیٰ علیه] په مينځ كي هيڅ فرق نسته وَالْحَقِيرِ مِنَ الْمَالِ وَالْخَطِيرِ [همدارنګه] د كم مال او د زيات مال په مينځ كي هيڅ فرق نسته ثُمَّ لَا بُدَّ مِنْ قَوْلِهِ: لِي بَيِّنَةٌ حَاضِرَةٌ لِلتَّكْفِيلِ بيا [له مدعیٰ علیه څخه] د كفيل اخيستلو لپاره د مدعي [له طرفه] دا ويل "لي بيّنة حاضرة" ضروري دي وَمَعْنَاهُ فِي الْمِصْرِ او د دې معنیٰ ده په ښار كي [بيّنه موجوده ده] حَتّٰى لَوْ قَالَ الْمُدَّعِي: لَا بَيِّنَةَ لِي أَوْ شُهُودِي غُيَّبٌ همدا وجه ده كه مدعي داسي ووايي: چي زما سره بيّنه نسته يا زما ګواهان غائب دي لَا يُكَفَّلُ نو [له مدعیٰ عليه څخه] به كفيل نه اخيستل كيږي لِعَدَمِ الْفَائِدَةِ ځكه چي [اوس په كفيل اخيستلو كي] فايده نسته قَالَ: فَإِنْ فَعَلَ وَإِلَّا أُمِرَ بِمُلَازَمَتِهِ فرمايي: بيا كه مدعیٰ عليه دا كار وكړي [يعني مدعي ته كفيل وركړي، نو صحيح ده] كنې مدعي ته به دا حكم كيږي چي د مدعیٰ عليه سره لازم اووسه! [او له هغه څخه مه جلا كيږه!] كَيْلَا يَذْهَبَ حَقُّهُ د دې لپاره چي د مدعي حق ضايع نه سي إِلَّا أَنْ يَكُونَ غَرِيبًا مګر دا چي مدعیٰ عليه پرديس [مسافر] وي فَيُلَازِمَ مِقْدَارَ مَجْلِسِ الْقَاضِي نو [په دې صورت كي] به مدعي د قاضي د مجلس په اندازه د هغه سره لازم اووسي وَكَذَا لَا يُكَفَّلُ إِلَّا إِلَى آخِرِ الْمَجْلِسِ او همدارنګه له دغه مسافر مدعیٰ عليه څخه به صرف د مجلس تر آخره پوري كفيل اخيستل كيږي فَالِاسْتِثْنَاءُ مُنْصَرِفٌ إِلَيْهِمَا نو استثناء د دواړو وطرف ته راجع ده لِأَنَّ فِي أَخْذِ الْكَفِيلِ وَالْمُلَازَمَةِ زِيَادَةً عَلَى ذٰلِكَ إِضْرَارًا بِهِ يَمْنَعُهُ عَنِ السَّفَرِ ځكه چي له دې مقدار څخه د زيات وخت لپاره په كفيل اخيستلو او د مدعیٰ عليه سره په لازم اوسېدلو كي مدعیٰ عليه ته داسي ضرر رسول كيږي كوم چي هغه له سفر څخه منع كوي [په وينا دا چي: له دې څخه د زيات وخت لپاره كفيل اخيستل او په مدعیٰ عليه لازم پسې ګرځېدل داسي ضرر دی كوم

چي هغه له سفر څخه منع کوي] وَلَا ضَرَرَ فِي هٰذَا الْمِقْدَارِ ظَاهِرًا او په دې مقدار کې په ښکاره هيڅ ضرر نشته وَكَيْفِيَّةُ الْمُلَازَمَةِ نَذْكُرُهَا فِي كِتَابِ الْحَجْرِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالىٰ او د لازم اوسېدلو [په مدعیٰ عليه د لازم پسې کېدلو] کيفيت به موږ انشاء الله په کتاب الحجر کي ذکر کړو.

**اللغات**: ﴿كفيل﴾ ضامن، ذمه وار. ﴿يُعدىٰ عليه﴾ د افعال د باب ماضي ده. د دې باب څو معناوي دي چي له هغه څخه يو پ معنیٰ ده: مرسته او مدد کول. او د مجهول په صيغه سره د مرسته غوښتلو معنیٰ ورکوي، لکه څرنګه چي په حاشيه کي دې ته اشاره سوې ده. همدارنګه ابن فارس ويلي دي: العدوى: طَلَبُكَ إِلىٰ والٍ ليُعْديك على من ظلمك أي (يُعِينك و) ينتقم منه (يعني "عدوىٰ" دې ته وايي چي ته له يو حاکم او قاضي څخه د دې غوښتنه وکړې! چي کوم کس پر تا ظلم کړی دی د هغه کس په خلاف ستا مرسته وکړي او له هغه څخه انتقام واخلي) (مصباح منير). ﴿يحال﴾ د دې باب هم څو معناوي دي چي له هغه څخه يو معنیٰ ده: د دوه شيانو په مينځ کي حائل کېدل. يعني د دعوىٰ په مينځ کي جدايي راوستل. ﴿إحضار﴾ د افعال د باب مصدر دی: حاضرول، پېشول. ﴿خامل﴾ بې قدره (د خلکو له نظره لوېدلی)، ګمنامه. ﴿وجيه﴾ مخور، قدرمن، مشهور. ﴿خطير﴾ د قدر وړ (قابلِ قدر) مراد ځني ګران او زيات مال دی، او له حقير څخه کم قيمت والا او لږ (معمولي) مال مراد دی. ﴿تكفيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی. د دې باب دوې معناوي دي: کفيل جوړول. له يو چا څخه کفيل اخيستل (مصباح اللغات). ﴿ملازمة﴾ د افعال د باب مصدر دی: د يو شي سره لازم او متصل اوسېدل. په يو چا لازم (تينګ) پسې کېدل. ﴿إضرار﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضرر رسول، نقصان رسول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله مدعي د قاضي مجلس (عدالت) ته راسي او داسي ووايي "زما ګواهان په ښار کي دي او ما ته دې د دعوىٰ د حاضرولو موقع راکول سي"، نو په دې صورت کي به قاضي مدعیٰ عليه ته ووايي چي "ته مدعي ته د دريو ورځو لپاره کفيل بالنفس ورکړه! يعني ته د دريو ورځو لپاره يو څوک د دې ضامن (ذمه وار) جوړ کړه! چي هغه به تا د قاضي مجلس ته حاضروي"، څکه که داسي نه وسي، نو کېدای سي چي مدعیٰ عليه يو خوا ته غائب سي او د مدعي حق نه ورکړي، نو څکه د مدعي د حق خوندي کولو لپاره به له مدعیٰ عليه څخه کفيل بالنفس

اخيستل کيږي، او زموږ په نيز کفاله بالنفس (کفيل بالنفس اخيستل) جائز دي، لکه څرنګه چي مخکي د دې تفصيل تېر سو.

وأخذ الكفيل إلخ: فرمايي که مدعي پر خپله دعوىٰ بيّنه پېش نه کړی سي، نو صرف د دعوى پر بنياد له مدعىٰ عليه څخه د کفيل اخيستلو جواز د استحسان پر بناء دی؛ ځکه چي په کفيل اخيستلو کي د مدعي لپاره مصلحت او پر هغه شفقت سته، ځکه د کفيل په وجه مدعىٰ عليه غائب کېدای نه سي نو په دې توګه به د مدعي حق خوندي پاته وي، او بل دا چي په دې کي د مدعىٰ عليه نقصان هم نسته؛ ځکه پر هغه خو صرف د مدعي د دعوىٰ په وجه د قاضي مجلس ته حاضرېدل واجب ګرځي، همدا وجه ده که هغه په دې باره کي کوتاهي او ټال مټول کوي، نو له حاکم او قاضي څخه د هغه پر حاضرولو مرسته غوښتل کيږي او هغه له خپل ذاتي او ضروري کارونو څخه منع کول کيږي او په هر حالت کي د قاضي مجلس ته حاضرول کيږي، او کله چي داسي ده، نو د هغه د حاضرولو لپاره به کفيل اخيستل هم صحيح وي.

او د کفيل اخيستلو په هکله چي کوم درې ورځي مودت ټاکل سوی دی، هغه له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی، او همدا صحيح هم دي.

د ''هو الصحيح'' په قيد سره صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله له هغه قول څخه احتراز کړی دی چي له مدعىٰ عليه څخه به د قاضي تر بل (رأ روان) مجلس پوري کفيل اخيستل کيږي، نه درې ورځي. (يعني هغه د دې مودت صرف د قاضي تر بل مجلسه پوري ټاکلی دی).

ولا فرق إلخ: د دې حاصل دا دی چي په ظاهر روايت کي د مدعىٰ عليه د وجيه کېدلو او غير وجيه کېدلو او د مدعىٰ بِهٖ مال د کمېدلو يا زياتېدلو په مينځ کي هيڅ فرق نسته، يعني برابره ده مدعىٰ عليه وجيه (قدرمن او مشهوره) وي، که نه وي، او برابره ده مدعىٰ بِهٖ مال کم وي، که زيات وي، په هر صورت کي به له هغه څخه کفيل اخيستل کيږي او په دې باره کي به د هغه هيڅ رعايت نه کيږي.

ثم لا بد من قوله إلخ: فرمايي چي له مدعىٰ عليه څخه د کفيل اخيستلو لپاره دا ضروري دي چي مدعي به دا خبره کړې وي ''زما ګواهان په ښار کي دي''، د دې لپاره چي کفاله (کفيل اخيستل) فايده ورکړي، همدا وجه که مدعي داسي ووايي چي ''زما سره ګواهان نسته''، يا ''زما ګواهان غائب دي''، نو په دې صورت کي به له مدعىٰ عليه څخه کفيل نه اخيستل کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي

کفیل اخیستل هیڅ فایده نه کوي، ځکه کله چې ګرسره ګواهان نسته، نو کفیل به پر کوم بنیاد مدعیٰ علیه حاضروي.

قال فإن فعل إلخ: د دې حاصل دا دی چې که چیرې مدعیٰ علیه د قاضي خبره ومني او یو څوک د ځان حاضرولو کفیل جوړ کړي او مدعي ته کفیل بالنفس ورکړي، نو صحیح ده. کنې قاضي به مدعي ته وایي چې ''وروره! په مدعیٰ علیه پسې څرک اووسه! او په هغه لازم پسې سه! چې یو خوا ته غائب نه سي، کنې ستا حق به ضایع سي''، لېکن که چیرې مدعیٰ علیه پردېسه او مسافر وي، نو بیا به مدعي ته تهوله وخت په مدعیٰ علیه د پسې کېدلو اجازت نه ورکول کیږي، بلکې صرف دْ مجلس قاضي تر ختمېدلو پوري به هغه ته دا حق وي چې د مدعیٰ علیه سره لازم او متصل اووسي، او کله چې د قاضي له مجلس څخه د ولاړېدلو او د مجلس ختمیدلو وخت راسي نو قاضي به له هغه څخه قسم اخلي او خپله فیصله به کوي.

همدارنګه که له دغه مسافر مدعیٰ علیه څخه کفیل واخیستل سي، نو دا کفاله به هم د قاضي د مجلس تر ختمېدلو پوري باقي پاتیږي او تر مجلس وروسته به باطلیږي. او په دغه اعتبار په ''إلّا أن یکون غریبًا إلخ'' سره چې کومه استثناء سوې ده، دا استثناء له مدعیٰ علیه څخه د کفیل اخیستلو او په هغه د پسې کېدلو دواړو وطرف ته راجع کیږي، ځکه چې د قاضي تر مجلس وروسته (د زیات وخت لپاره) له مسافر مدعیٰ علیه څخه د کفیل اخیستلو او په هغه د لازم پسې کېدلو اجازت ورکول داسي ضرر دی کوم چې مدعیٰ علیه له سفر څخه منع کوي، لېکن صرف د قاضي تر مجلسه پوري د دې شیانو په اجازت ورکولو کې له سفر څخه منع کونکی ضرر نسته.

صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په آخر کې فرمایي چې د ملازمت کیفیت یعني په مدعیٰ علیه د لازم پسې کېدلو طریقه او تفصیل به انشاء الله موږ په کتاب الحجر کې بیان کړو.



# فَصْلٌ فِيْ كَيْفِيَّةِ الْيَمِيْنِ وَالْاِسْتِحْلَافِ

## دا فصل د قسم کولو او (له بل چا څخه) د قسم اخیستلو د کیفیت په بیان کي دی

## د قسم د الفاظو بیان

قَالَ: وَالْيَمِيْنُ بِاللّٰهِ دُوْنَ غَيْرِهٖ فرمايي: او قسم به په الله سره وي [يعني صرف د هغه په نامه سره به قسم اخيستل کيږي] نه په بل چا سره لِقَوْلِهِ عليه السلام: «مَنْ كَانَ مِنْكُمْ حَالِفًا فَلْيَحْلِفْ بِاللّٰهِ أَوْ لِيَذَرْ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "که په تاسو کي څوک قسم اخلي نو هغه دي په الله سره قسم واخلي، يا دي قسم پريږدي" وَقَالَ عليه السلام: «مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللّٰهِ فَقَدْ أَشْرَكَ» [همدارنګه] نبي ﷺ فرمايلي دي: "څوک چي له الله څخه بغير په بل چا سره قسم واخلي، نو هغه شرک وکړی" وَقَدْ تُؤَكَّدُ بِذِكْرِ أَوْصَافِهٖ او قسم به د الله په صفتونو سره مؤکد کيږي وَهُوَ التَّغْلِيْظُ او صفتونو ذکر کول د سختی لپاره دي [چي قسم سخت او مضبوط سي] وَذٰلِكَ مِثْلُ قَوْلِهٖ: قُلْ: وَاللّٰهِ الَّذِيْ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ او دا لکه [مدعیٰ عليه ته] د قاضي دا قول: ووايه!: په هغه الله سره قسم! چي له هغه څخه بغير بل هيڅ معبود نسته، هغه په پټو او ښکاره وو خبر دی الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ الَّذِيْ يَعْلَمُ مِنَ السِّرِّ وَالْخَفَاءِ مَا يَعْلَمُ مِنَ الْعَلَانِيَةِ مَا لِفُلَانٍ هٰذَا عَلَيْكَ وَلَا قِبَلَكَ هٰذَا الْمَالُ الَّذِيْ ادَّعَاهُ وَهُوَ كَذَا وَكَذَا وَلَا شَيْءَ مِنْهُ [هغه] زيات مهربانه او ډير رحم والا دی کوم چي پټ او باطن د ظاهر په څېر پېژني [او وايه! په دغه الله سره زما قسم!] چي پر تا د فلانکي [مدعي] دا حق نسته يا ستا سره دغه مال نسته د کوم چي هغه دعوىٰ کوي چي هغه دومره دی او نه د هغه مال هيڅ حصه در سره سته وَلَهٗ أَنْ يَزِيْدَ فِي التَّغْلِيْظِ عَلٰى هٰذَا او قاضي ته دا اختيار سته چي په تغليظ کي له دې څخه زيات توب وکړي وَلَهٗ أَنْ يَنْقُصَ مِنْهُ او هغه ته دا اختيار هم سته چي له دې څخه کمي وکړي إِلَّا أَنَّهٗ يَحْتَاطُ فِيْهِ كَيْلَا يَتَكَرَّرَ عَلَيْهِ الْيَمِيْنُ مکر

دا چي هغه به په دې باره کي احتياط کوي د دې لپاره چي پر مدعىٰ عليه قسم مکرر نه سي لِأَنَّ الْمُسْتَحَقَّ يَمِينٌ وَاحِدَةٌ ځکه چي [پر هغه] صرف يو قسم واجب دی وَالْقَاضِي بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ غَلَّظَ او قاضي ته اختيار دی که وغواړي نو تغليظ دي کوي وَإِنْ شَاءَ لَمْ يُغَلِّظْ فَيَقُولُ: قُلْ بِاللهِ أَوْ وَاللهِ او که وغواړي نو تغليظ دي نه کوي او [صرف] داسي دي وايي: ووايه!: بِاللهِ يا وَاللهِ (قسم په الله) وَقِيْلَ: لَا يُغَلِّظُ عَلَى الْمَعْرُوفِ بِالصَّلَاحِ او ويل سوي دي: چي کوم څوک په صلاح او تقوى سره پېژندل سوی وي پر هغه به تغليظ نه کوي وَيُغَلِّظُ عَلَىٰ غَيْرِهِ او له هغه څخه بغير پر بل چا به تغيلظ کوي وَقِيْلَ: يُغَلِّظُ فِي الْخَطِيْرِ مِنَ الْمَالِ دُونَ الْحَقِيْرِ او ويل سوي دي: چي په زيات مال کي به تغليظ کوي او په کم مال کي به تغليظ نه کوي.

**اللغات**: ﴿يمين﴾ قسم، ﴿يـذر﴾ د فتح د باب مضارع ده: پرېښوول، ﴿تغليظ﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سختول، مضبوطه کول، مؤکد کول، پخول، ټينګول، يعني قسم د الله په صفتونو سره مؤکد کول و مضبوطول، ﴿قِبَلَكَ﴾ د "قِبَل" يوه معنىٰ ده "طرف" او بله معنىٰ به يې په دې مثال کي تاسو ته ښکاره سي، عرب وايي "لِيْ قِبَلَ فُلَانٍ دَيْنٌ" (زما د فلانکي سره قرض دی [ما پر هغه قرض باندي دی])، دلته د "سره" په معنىٰ سره دی، او د طرف د معنىٰ مثال دا دی "أَتَانِيْ مِنْ قِبَلِه" (د هغه له طرفه [د هغه له خوا] ما ته راغلی) (مصباح اللغات)، ﴿المعروف﴾ د ضرب د باب مفعول دی: پېژندل سوی، مشهوره، ﴿صلاح﴾ نېکي، ﴿خطير﴾ قابلِ قدر، مراد ځني ګران او زيات مال دی، او له حقير څخه معمولي مال مراد دی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله يو سړی په يو معامله کي قسم اخيستلو ته مجبوره سي (يا مثلاً کله چي قاضي له مدعىٰ عليه څخه د قسم اخيستلو مطالبه وکړي)، نو هغه به په الله تعالىٰ سره قسم واخلي، او له الله څخه بغير په بل شي سره به قسم نه اخلي؛ ځکه په حديث کي ذکر سوي دي چي کوم څوک قسم اخلي، هغه دي په الله سره قسم واخلي، کنې قسم دي نه اخلي، او په يو بل حديث کي ذکر سوي دي چي کوم څوک له الله څخه بغير په بل شي سره قسم واخلي، هغه مشرک ګرځي، نو ځکه په غير الله سره قسم اخيستل صحيح نه دي، او که يو څوک په غير الله سره قسم واخلي، نو د هغه قسم نه منعقد کيږي.

**وقد يؤكد إلخ**: د دې حاصل دا دی چې د الله په صفتونو سره به په قسم کې تاکيد او تغليظ کيږي يعني د هغه په صفتونو سره به قسم مؤکد کيږي، مثلاً د تاکيد لپاره به قاضي (له مدعیٰ عليه څخه) په دې الفاظو سره قسم اخلي: "وَاللهِ الذی لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ...إلخ".

او په کتاب (هدايه) کې چې کوم الفاظ ذکر سوي دي (يعني "وَاللهِ الذی لا إِلٰهَ إِلّا هو عالم...إلخ")، خاص په دغه الفاظو سره تاکيد کول ضروري نه دي، بلکې د تاکيد معامله د قاضي پر رايه موقوف ده او د موقع وحالت په اعتبار سره قاضي په دې الفاظو کې کمي وزياتوب کولای سي؛ ځکه چې (له مدعیٰ عليه څخه) د قسم اخيستلو مقصد دا دی چې حق او باطل ښکاره سي او د مدعي او مدعیٰ عليه په مينځ کې پيدا سوی خصومت ختم سي، نو ځکه قاضي به د مدعیٰ عليه د حالت و شخصيت مطابق له هغه څخه قسم اخلي (که هغه متقي او پرهېزګاره معلوميږي، نو تأکيد ته ضرورت نسته، کنې په تأکيد سره به قسم ځني اخلي). او په قسم کې د تغليظ او تاکيد کولو په صورت کې به د الله په نومونو او صفتونو کې د "واو" لفظ زياتوي، يعني داسي به نه وايي "الرحمٰن الرحيم"، ځکه چې په دې سره په قسم کې تکرار راځي، حال دا چې پر مدعیٰ عليه صرف يو قسم واجب دی، نه ډېر قسمونه، نو ځکه قاضي به په داسي طريقه له مدعیٰ عليه څخه قسم اخلي چې په قسم کې تکرار پيدا نه سي.

**والقاضي بالخيار إلخ**: د دې حاصل دا دی چې په تغليظ کولو او نه کولو کې هم قاضي ته اختيار دی، يعني د هغه خوښه ده په تاکيد سره له مدعیٰ عليه څخه قسم اخلي او که صرف په "والله يا بالله" سره اکتفاء کوي او د الهي اوصافو او اسماؤ په تاکيد سره قسم نه ځني اخلي.

**وقيل إلخ**: ځيني حضرات وايي چې که مدعي د خپل صلاح، نيکي او تقویٰ په اعتبار سره په خلکو کې مشهوره وي، نو قاضي به پر هغه تغليظ نه کوي، او پر نورو به تغليظ کوي.

او ځيني حضرات وايي چې که دعویٰ د ډېر مال په باره کې وي، نو قاضي به پر مدعیٰ عليه تغليظ کوي، برابره ده مدعیٰ عليه نېک وي او که بد وي، او که د لږ مال په باره کې وي، نو قاضي به پر مدعیٰ عليه تغليظ نه کوي.

## په طلاق يا عتاق سره قسم اخيستل

قَالَ: وَلَا يُسْتَحْلِفُ بِالطَّلَاقِ وَلَا بِالْعَتَاقِ فرمايي: او په طلاق او عتاق سره به قسم نه [څني] اخيستل کيږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَقِيلَ: فِي زَمَانِنَا إِذَا أَلَحَّ الْخَصْمُ او ويل سوي دي: چي زموږ په زمانه کي چي کله مدعیٰ عليه زياته مبالغه کوي سَاغَ لِلْقَاضِي أَنْ يُحَلِّفَ بِذَلِكَ نو قاضي لره دا ګنجايش سته چي هغه ته په طلاق او عتاق سره قسم ورکړي لِقِلَّةِ الْمُبَالَاةِ بِالْيَمِينِ بِاللهِ وَكَثْرَةِ الِامْتِنَاعِ بِسَبَبِ الْحَلِفِ بِالطَّلَاقِ د الله په قسم سره د کم پروايي په وجه او د طلاق د قسم په سبب سره د زيات منع کېدلو په وجه [يعني ځکه چي داسي مبالغه کونکي خلک د الله په قسم سره زيات پروا نه کوي (او د درواغو قسم اخلي) او په طلاق سره د قسم اخيستلو په سبب زيات (له دروغو شخه) منع کيږي.

**اللغات**: ﴿أَلَحَّ﴾ د افتعال د باب ماضي ده: ډېر ټينګار کول، اصرار کول. ﴿ساغ﴾ د نصر ماضي ده: ګنجايش کېدل، جائز کېدل. ﴿يُحَلِّف﴾ د تفعيل د باب مضارع ده. حَلَّفَ يُحَلِّفُ تَحْلِيْفًا: بل څوک په قسم سره مکلف کول، قسم ورکول (مراد څني قسم اخيستل دي). ﴿مبالاة﴾ پروا، خيال، باک.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي له مدعیٰ عليه شخه به په طلاق او عتاق سره قسم نه اخيستل کيږي او هغه ته به داسي نه ويل کيږي چي (مثلاً) ته داسي قسم واخله! "که مدعي په خپل دعویٰ کي رښتونی او صحيح وي، نو پر ما ښځه طلاق ده، يا زما غلام آزاد دی" (يا "ما د خپل ښځي په طلاق سره قسم دی چي د مدعي دعویٰ غلطه ده") او داسي نور، دا شرعاً صحيح نه دي؛ ځکه د مخکني احاديثو پر بناء په غير الله سره قسم اخيستل بالکل ناجائز او شرک دي، نو ځکه په طلاق او عتاق سره قسم اخيستل هم ناجائز دي.

د ځيني حضراتو رايه دا ده چي زموږ په زمانه کي فسق وفجور عام سوی دی او د قسم اخيستلو بيره له زړونو شخه وتلې ده، خلک په عامه توګه د دروغو قسمونه اخلي، لهذا که مدعیٰ عليه زيات بې شرمه او بې باکه وي، نو قاضي له هغه شخه په طلاق يا عتاق سره قسم اخيستلای سي، ځکه خلک له طلاق واقع کېدلو او له مال (غلام) ضايع کېدلو شخه زيات بيرېږي او په داسي قسم کي ډېر احتياط کوي او له دروغو شخه ځان ساتي، نو ځکه د اوسني وخت د حالاتو په خاطر په طلاق او عتاق سره قسم اخيستل کېدای سي، خو بيا هم حتی الامکان په دې باره کي احتياط کول پکار دي.

## له يهودي او نصراني (عيسايي) څخه به څنګه قسم اخيستل کيږي؟

قَالَ: وَيُسْتَحْلِفُ الْيَهُودِيُّ بِاللّٰهِ الَّذِيْ أَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلٰى مُوْسٰى عليه السلام فرمايي: او له يهودي څخه به [داسي] قسم اخيستل کيږي چي په هغه الله سره قسم! کوم چي پر حضرت موسیٰ عليه السلام تورات نازل کړی دی وَالنَّصْرَانِيُّ بِاللّٰهِ الَّذِيْ أَنْزَلَ الْإِنْجِيْلَ عَلٰى عِيْسٰى عليه السلام او له نصراني څخه به [داسي] قسم اخيستل کيږي چي په هغه الله سره قسم! کوم چي پر حضرت عيسی عليه السلام انجيل نازل کړی دی لِقَوْلِهِ عليه السلام لِابْنِ صُوْرِيَا الْأَعْوَرِ: «أَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ الَّذِيْ أَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلٰى مُوْسٰى أَنَّ حُكْمَ الزِّنَا فِيْ كِتَابِكُمْ هٰذَا» ځکه نبي کريم ﷺ ابن صوريا اعور ته فرمايلي وه: "زه په هغه الله سره تا ته قسم درکووم چي هغه پر حضرت موسیٰ عليه السلام تورات نازل کړی دی چي ستاسو په کتاب کي د زنا همدغه حکم دی" وَلِأَنَّ الْيَهُوْدِيَّ يَعْتَقِدُ نُبُوَّةَ مُوْسٰى وَالنَّصْرَانِيَّ نُبُوَّةَ عِيْسٰى عَلَيْهِمَا السَّلَامُ او ځکه چي يهودي د حضرت موسیٰ عليه السلام د نبوت [نبي والي] او نصراني د حضرت عيسیٰ عليه السلام د نبوت عقيده لري فَيُغَلَّظُ عَلٰى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِذِكْرِ الْمُنَزَّلِ عَلٰى نَبِيِّهِ نو ځکه قاضي به له دوی څخه پر هر يوه د هغه کتاب په ذکر کولو سره تغليظ کوي کوم چي د هغه پر نبي نازل سوی دی.

**اللغات**: ﴿أَنْشُدُكَ﴾ د واحد متکلم مضارع صيغه ده، د نصر له باب څخه، نه د افعال له باب څخه، کله چي د دې باب په صله کي "الله" ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: په الله سره قسم ورکول، په الله سره د قسم اخيستلو غوښتنه کول. (مصباح لغات، مصباح منير)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که په يو معامله کي له يهودي يا نصراني څخه قسم اخيستلو ته ضرورت پېښ سي، نو قاضي ته پکار دي چي له يهودي څخه په تورات قسم واخلي او له نصراني څخه په انجيل قسم واخلي (يعني يهودي ته به وايي چي "ته په توارت سره قسم واخله! چي دغه خبره داسي ده يا داسي نه ده...)؛ دليل دا دی چي نبي ﷺ په زمانه کي يوه يهودي زناء وکړه او يهوديانو په سزا کي د هغه مخ تور کړی (يعني هغه ته يې صرف د مخ تورولو سزا ورکړه)، نو نبي کريم ﷺ له هغو څه پوښتنه وکړه چي آيا ستاسو په کتاب "تورات" کي د زنا سزا همدغه ده؟، نو هغو ورېل چي هو! د زنا همدا سزا ده، بيا نبي کريم ﷺ يوه يهودي عالم "عبد الله بن صوريا أعور" ته ورېل چي "زه تا ته په هغه الله سره قسم درکووم، کوم چي پر حضرت موسیٰ عليه السلام "تورات" نازل کړی دی آيا ستاسو په کتاب "تورات" کي د زنا سزا همدغه ده؟، نو هغه يهودي عالم ورېل چي "که تا ما ته په تورات سره قسم راکړي نه وای، نو ما به رښتيا ويلي نه وای، خو څرنګه چي اوس تا ما د تورات په حواله سره قسم راکړئ! نو رښتيا خبره دا ده چي زموږ په کتاب کي د زنا سزا

رجم دی، خو موږ هغه پرې ایښې دی"، له دې واقعې څخه معلومه سوه چې له يهودي او نصراني څخه په تورات او انجيل سره قسم اخيستل کېدای سي.

دويمه خبره دا ده چې يهود د حضرت موسیٰ علیه السلام او نصاریٰ د حضرت عیسیٰ علیه السلام په نبوت ایمان او یقین لري، لهذا پر حضرت موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام چې کوم کتابونه نازل سوي دي. د همغه کتابونو په حواله سره به له یهودو او نصاریٰ وو څخه قسم اخیستل کیږي.

## له مجوسي (آتش پرست) او بُت پرست څخه به څنګه قسم اخيستل کيږي؟

وَيُحَلَّفُ الْمَجُوسِيُّ بِاللّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَ النَّارَ او مجوسي ته به [داسي] قسم ورکول کيږي په هغه الله سره قسم! چي هغه اُور پيدا کړی دی وَهٰكَذَا ذَكَرَ مُحَمَّدٌ فِي الْأَصْلِ او همداسي امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي ذکر کړي دي وَيُرْوٰى عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ* أَنَّهُ لَا يَسْتَحْلِفُ أَحَدًا إِلَّا بِاللّٰهِ خَالِصًا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چي قاضي به له هیڅا څخه قسم نه اخلي مګر صرف په الله سره وَذَكَرَ الْخَصَّافُ أَنَّهُ لَا يَسْتَحْلِفُ غَيْرَ الْيَهُوْدِيِّ وَالنَّصْرَانِيِّ إِلَّا بِاللّٰهِ او امام خصام رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چي هغه به له یهودي او نصراني څخه بغیر له بل چا څخه په غیر الله سره قسم نه اخلي وَهُوَ اخْتِيَارُ بَعْضِ مَشَايِخِنَا او همدا زموږ د ځيني مشايکو اختيار سوی [قول] دی لِأَنَّ فِيْ ذِكْرِ النَّارِ مَعَ اسْمِ اللّٰهِ تَعَالٰى تَعْظِيْمًا ځکه چي د الله د نامه سره د اُور په ذکر کولو کي د اُور تعظيم سته وَمَا يَنْبَغِيْ أَنْ تُعَظَّمَ حال دا چي د هغه تعظيم کول پکار نه دي بِخِلَافِ الْكِتَابَيْنِ په خلاف د دوو کتابونو [انجیل او تورات] لِأَنَّ كُتُبَ اللّٰهِ مُعَظَّمَةٌ ځکه چي د الله تعالیٰ [تړوله] کتابونه د تعظيم قابل دي وَالْوَثَنِيُّ لَا يُحَلَّفُ إِلَّا بِاللّٰهِ او بت پرست ته به صرف په الله سره قسم ورکول کيږي لِأَنَّ الْكَفَرَةَ بِأَسْرِهِمْ يَعْتَقِدُوْنَ اللّٰهَ تَعَالٰى ځکه چي تمام کافران د الله تعالیٰ اعتقاد لري قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى: ﴿وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ﴾ الله تعالیٰ فرمایلي دي: او که چیري ته له هغو [بُت پرستانو] څخه پوښتنه وکړي چي آسمانونه او ځمکه چا پیدا کړي دي نو هغوی به ضرور ووایي

---

* القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، لأن قوله ظاهر الرواية، وأيضاً هو قول أبي حنيفة، وأكثر المتون نقلوا قول محمد رَحِمَهُ الله بلا خلاف سوى الهداية...إلخ، مجمع الأنهر (ج:٣، ص:٣٥٦)، كنـز (ص:٢٧٨)، تنوير الأبصار (ج:٤، ص:٤٧٦)، بدائع الصنائع (ج:٦، ص:٢٢٨). [القول الراجح ج:٢، ص:١٧٢]

چي الله [پيدا کړي دي] قَالَ: وَلَا يُحَلَّفُوْنَ فِي بُيُوْتِ عِبَادَاتِهِمْ فرمايي: او له بت پرستانو څخه د هغو په عبادت خانو کي قسم قسم نه اخيستل کيږي لِأَنَّ الْقَاضِيَ لَا يَحْضُرُهَا ځکه چي قاضي هلته نه حاضريږي بَلْ هُوَ مَمْنُوْعٌ عَنْ ذٰلِكَ بلکي هغه له دې څخه منع سوی دی.

**اللغات:** ﴿يحلّف﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: قسم ورکول، په قسم سره مکلف کول (مراد ځني قسم اخيستل دي)، ﴿مجوسي﴾ د اُور عبادت کونکی (اُور لمانځونکی)، ﴿معظمة﴾ د تعظيم قابل (د تعظيم لايق)، تعظيم والا، ﴿وثني﴾ بت پرست، د بت عبادت کونکی (بت لمانځونکی)، ﴿بأسرهم﴾ هغوی ټوله.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله قاضي له يو مجوسي څخه قسم اخلي نو هغه ته به وايي چي داسي قسم واخله! "زه په هغه الله سره قسم اخلم (ياما په هغه الله سره قسم دی) چي هغه اُور پيدا کړی دی"، دا امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي ذکر کړي دي، او دليل يې دا ليکلی دی چي مجوسي د اُور د حرمت او عظمت عقيده لري، نو ځکه د اُور د عظمت او تعظيم په خيال کولو سره به له دراغجن قسم څخه ځان ساتي. لېکن له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي خالص په الله تعالیٰ سره قسم اخيستل صحيح دي او د الله د نامه سره به يو ځای د اُور يا داسي بل شي ذکر نه کيږي، ځکه په دې کي د الله سره د شريک نيولو احتمال سته، کوم چي په هيڅ حال کي هم صحيح نه دي.

**وذكر الخصاف إلخ:** فرمايي: د امام خصاف رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي صرف يهودي او نصراني لره دا صحيح دي چي د الله د نامه سره تورات او انجيل يو ځای کړي او قسم واخلي، لېکن له هغو څخه بغير مجوسيانو او داسي نورو لره دا صحيح نه دي چي د الله د نامه سره اُور يا د اُور تخليق يو ځای کړي او قسم واخلي؛ ځکه په داسي کولو کي د شرک احتمال هم سته او د اُور تعظيم هم سته، حال دا چي اُور په هيڅ حال کي هم د تعظيم قابل نه دی، نو ځکه هغه په قسم کي شاملول صحيح نه دي، د دې په خلاف انجيل او تورات د الله له طرفه نازل شُده کتابونه ده، او ښکاره خبره ده چي الهي کتابونه ټوله د تعظيم قابل دي، نو ځکه په هغوی سره په قسم اخيستلو کي هيڅ حرج نسته.

**والوثني لايحلف إلا بالله إلخ:** فرمايي: له بت پرست څخه به صرف د الله په نامه سره قسم اخيستل کيږي؛ ځکه ټول بت پرستان د الله پاک عقيده او په دې باور لري، لکه څرنګه چي قرآني آيت ﴿وَلَئِنْ

سَأَلْتَهُمْ . . . إلخ﴾ [سورة اللقمان، ۲۵] پر دې گواه دی، نو ځکه د الله په نامه سره د قسم اخیستلو په وجه به هغه له دروا غو څخه ځان ساتي، او د قسم اخیستلو مقصد همدا دی چې په خبره کې درواغ نه وویل سي.

او له بت پرسته خلګو څخه به د هغو په عبادت خانو کې قسم نه اخیستل کیږي (کله چې دې ته ضرورت پېښ سي)، ځکه قاضي هلته نسي تللای او هغه له دې څخه منع سوی دی، نو ځکه له عبادت خانو څخه بغیر بل ځای به قسم ځني اخیستل کیږي.

## د ځای یا وخت په تأکید سره قسم اخیستل

| قَالَ: وَلَا يَجِبُ تَغْلِيظُ الْيَمِيْنِ عَلَى الْمُسْلِمِ بِزَمَانٍ وَلَا مَكَانٍ فرمايي: چې پر مسلمان په زمان او مکان سره قسم مؤکد کول واجب نه دي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ تَعْظِيمُ الْمُقْسَمِ بِهِ ځکه [په قسم اخیستلو سره] د هغه چا تعظیم مقصود وي په چا سره چې قسم اخیستل سوی وي وَهُوَ حَاصِلٌ بِدُوْنِ ذٰلِكَ او هغه له دې [تغلیظ] څخه بغیر هم حاصل دی وَفِي إِيجَابِ ذٰلِكَ حَرَجٌ عَلَى الْقَاضِي او د دې په واجبولو کې پر قاضي حرج دی حَيْثُ يُكَلَّفُ حُضُورَهَا په دې توګه چې قاضي هلته په حاضرېدلو سره مکلف کیږي وَهُوَ مَدْفُوعٌ حال دا چې حرج [په شریعت کې] لیري کړی سوی دی. |
|---|

**اللغات**: ﴿تغلیظ﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: سختول، مضبوطول، ټینګول، مؤکد کول، ﴿تغلیظ الیمین بزمان﴾ قسم په زمانه سره مؤکد کول، یعني په یو ځانګړي (مبارک) وخت کې قسم ځني اخیستل، مثلاً تر لمانځه وروسته قسم ځني اخیستل او داسې نور، **تغلیظ بالمکان**: مثلاً په کعبه کې یا په یو خاص ځای کې قسم ځني اخیستل (معجم لغة الفقهاء)، ﴿مُقسم به﴾ د افعال د باب مفعول دی: په چا سره چې قسم اخیستل سوی وي (د چا په نامه چې قسم واخیستل سي) چې هغه د مسلمان په حق کې الله تعالیٰ دی، ﴿إیجاب﴾ د افعال د باب مصدر دی: واجبول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د مسلمان قسم په زمان یا مکان سره مؤکد کول ضروري نه دي (یعني دا ضروري نه ده چې له هغه څخه په خاص وخت یا خاص ځای کې قسم واخیستل سي)، ځکه په قسم اخیستلو سره د مقسم بهٖ (الله تعالی) تعظیم مقصود وي، او د مقسم بهٖ تعظیم له مؤکد کولو څخه بغیر هم حاصلیږي. یعني که څه هم په زمان یا مکان سره قسم مؤکد نه کړی سي، نو بیا هم د قسم مقصود (تعظیم) حاصلیږي، نو ځکه بلا وجه به په زمان یا مکان سره د قسم تغلیظ او تاکید نه کیږي.

دويمه خبره دا ده چي په زمان يا مکان سره د قسم مؤکد کولو په صورت کي قاضي په حرج او تکليف سره هم مبتلا کيږي، ځکه چي په دې صورت کي به پر قاضي په هغه زمان يا مکان کي حاضرېدل لازم وي، حال دا چي په شريعت کي حرج ليري کړی سوی دی، نو په دې حواله سره به هم په زمان يا مکان سره قسم نه مؤکد کيږي.

## قسم به پر سبب اخيستل کيږي او که پر نتيجه (حاصل معنی)؟

قَالَ: وَمَنِ ادَّعَى أَنَّهُ ابْتَاعَ مِنْ هٰذَا عَبْدَهُ بِأَلْفٍ فرمايي: او که څوک دعوی وکړي چي ما له دغه سړي څخه د هغه غلام په زر درهمه رانيولی دی فَجَحَدَ ليکن هغه سړی [مدعیٰ عليه] انکار وکړي أُسْتُحْلِفَ بِاللّٰهِ مَا بَيْنَكُمَا بَيْعٌ قَائِمٌ فِيهِ نو له هغه څخه به [داسي] قسم اخيستل کيږي چي "په الله قسم! ستاسو دواړو په مينځ کي په دې غلام کي بيع قائم نه ده [يعني مدعیٰ عليه به داسي قسم اخلي "په الله قسم! زما او د مدعي تر مينځ په دغه غلام کي هيڅ بيع موجوده نه ده (بيع نه ده سوې)] وَلَا يُسْتَحْلَفُ بِاللّٰهِ مَا بِعْتُ او داسي قسم به نه ځني اخيستل کيږي چي "په الله قسم! ما [دا غلام] نه دی خرڅ کړی لِأَنَّهُ قَدْ يُبَاعُ الْعَيْنُ ثُمَّ يُقَالُ فِيهِ ځکه چي ځيني وخت يو عَين شی خرڅول کيږي بيا په هغه کي اقاله کيږي [يعني ځيني وخت داسي کيږي چي څوک يو شی خرڅ کړي او بيا پښېمانه سي، بيع ختم کړي او خپل شی واپس واخلي...] وَيُسْتَحْلَفُ فِي الْغَصْبِ بِاللّٰهِ مَا يَسْتَحِقُّ عَلَيْكَ رَدَّهُ او په غصب کي به [داسي] قسم ځني اخيستل کيږي "په الله قسم! هغه پر تا د مغصوب شي د واپسۍ حق نه لري" وَلَا يُحَلَّفُ بِاللّٰهِ مَا غَصَبْتُ او [داسي] قسم به نه ځني اخيستل کيږي چي "ما نه دی غصب کړی" لِأَنَّهُ قَدْ يَغْصِبُ ثُمَّ يَفْسَخُ بِالْهِبَةِ وَالْبَيْعِ ځکه چي انسان ځيني وخت غصب وکړي او بيا د هبې يا د بيع په ذريعه هغه غصب فسخ کړي [ختم کړي] وَفِي النِّكَاحِ بِاللّٰهِ مَا بَيْنَكُمَا نِكَاحٌ قَائِمٌ فِي الْحَالِ او په نکاح کي به [داسي قسم ځني اخيستل کيږي] "په الله قسم! ستاسو دواړو په مينځ کي في الحاله [اوس] نکاح قائم نه ده" لِأَنَّهُ قَدْ يَطْرَأُ عَلَيْهِ الْخُلْعُ ځکه چي ځيني وخت پر نکاح خلع طاري کيږي [واقع کيږي] وَفِي دَعْوَى الطَّلَاقِ بِاللّٰهِ مَا هِيَ بَائِنٌ مِنْكَ السَّاعَةَ بِمَا ذَكَرَتْ او د طلاق په دعویٰ کي به [داسي قسم ځني اخيستل کيږي] "په الله قسم! دا ښځه اوس ګړی په هغه سبب ستا څخه بائنه نه ده کوم چي هغې ذکر کړی دی" وَلَا يَسْتَحْلِفُ بِاللّٰهِ مَا طَلَّقَهَا او له خاوند څخه به [داسي] قسم نه

اخيستل كيږي چي "په الله قسم! ده هغې ته طلاق نه دی ورکړی" لِأَنَّ النِّكَاحَ قَدْ يُجَدَّدُ بَعْدَ الْإِبَانَةِ ځکه چي ځيني وخت له بائنه کولو څخه وروسته د نکاح تجديد کيږي فَيُحَلَّفُ عَلَى الْحَاصِلِ فِي هٰذِهِ الْوُجُوهِ نو ځکه په دې [ټولو] صورتونو کي به [له مدعىٰ عليه څخه] پر حاصلِ مراد [حاصلِ معنىٰ] قسم اخيستل کيږي لِأَنَّهُ لَوْ حُلِّفَ عَلَى السَّبَبِ ځکه که چيري پر سبب قسم ځني واخيستل سي يَتَضَرَّرُ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ نو مدعىٰ عليه ته به ضرر ورسيږي وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دی أَمَّا عَلٰى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ* يُحَلَّفُ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ عَلَى السَّبَبِ او پاته سو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله پر قول نو په دې ټولو صورتونو کي به پر سبب قسم ځني اخيستل کيږي إِلَّا إِذَا عَرَّضَ بِمَا ذَكَرْنَا مګر دا چي کله مدعىٰ عليه په هغه اُمورو سره تعريض وکړي کوم چي موږ ذکر کړل فَحِينَئِذٍ يُحَلَّفُ عَلَى الْحَاصِلِ نو په دې وخت کي به پر حاصلِ مراد قسم ځني اخيستل کيږي وَقِيلَ: يُنْظَرُ إِلٰى إِنْكَارِ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ او ويل سوي دي: چي د مدعىٰ عليه انکار ته به کتل کيږي إِنْ أَنْكَرَ السَّبَبَ که چيري هغه د سبب انکار وکړي يُحَلَّفُ عَلَيْهِ نو پر سبب به قسم ځني اخيستل کيږي وَإِنْ أَنْكَرَ الْحُكْمَ او که هغه د حکم انکار وکړي يُحَلَّفُ عَلَى الْحَاصِلِ نو پر حاصلِ مراد [حاصلِ معنىٰ] به قسم ځني اخيستل کيږي فَالْحَاصِلُ هُوَ الْأَصْلُ عِنْدَهُمَا لهذا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز همدا حاصلِ مراد اصل دی [يعني د هغو په نيز اصل دا دی چي پر حاصلِ معنىٰ قسم ځني واخيستل سي] إِذَا كَانَ سَبَبًا يَرْتَفِعُ بِرَافِعٍ په دې شرط کله چي سبب په يو ليري کونکي شي سره ليري کېدای سي إِلَّا إِذَا كَانَ فِيهِ تَرْكُ النَّظَرِ فِي جَانِبِ الْمُدَّعِيْ مګر دا چي کله په دې کي د مدعي په طرف کي د مصلحت [او رعايت] پرېښوول لازميږي فَحِينَئِذٍ يُحَلَّفُ عَلَى السَّبَبِ بِالْإِجْمَاعِ نو په دې وخت کي [له مدعىٰ عليه څخه] به بالاتفاق پر سبب قسم اخيستل کيږي وَذٰلِكَ مِثْلُ أَنْ تَدَّعِيَ مَبْتُوتَةٌ نَفَقَةَ الْعِدَّةِ او د دې مثال داسي دی لکه يو مطلقهٔ ثلاثه ښځه چي د عدت د نفقې دعوىٰ کوي

---

* القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الهنديه (ج:۴، ص:۱۸)، وشرح المجلة (ج:۵، ص:۴۲۱، المادة:۱۷۴۹). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۷۳]

وَالزَّوْجُ مِمَّنْ لَا يَرَاهَا او [د مغې] خاوند له هغه كسانو څخه وي كوم چي د دې اعتقاد نه لري [مثلا شافعي المسلكه وي] أَوِ ادَّعَى شُفْعَةً بِالْجِوَارِ يا [مثلا] يو سړی د همسايه توب پر بناء د شفعي دعوىٰ وكړي وَالْمُشْتَرِي لَا يَرَاهَا او مشتري د هغه اِعتقاد نه لري لِأَنَّهُ لَوْ حَلَفَ عَلَى الْحَاصِلِ ځكه كه چيري هغه پر حاصلِ معنىٰ قسم واخلي يَصْدُقُ فِي يَمِينِهِ فِي مُعْتَقَدِهِ نو د خپل اعتقاد [عقيدې] مطابق به په خپل قسم كي رښتونی وګرځي فَيَفُوتُ النَّظَرُ فِي حَقِّ الْمُدَّعِي نو د مدعي په حق كي به مصلحت [او رعايت] فوت سي وَإِنْ كَانَ سَبَبًا لَا يَرْتَفِعُ بِرَافِعٍ او كه سبب داسي وي كوم چي په يو ليري كونكي سره ليري كېدای نه سي فَالتَّحْلِيفُ عَلَى السَّبَبِ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق به پر سبب قسم څني اخيستل كيږي كَالْعَبْدِ الْمُسْلِمِ إِذَا ادَّعَى الْعِتْقَ عَلَى مَوْلَاهُ لكه مسلمان غلام چي كله پر خپل مالك د آزادۍ دعوىٰ وكړي [چي زه هغه آزاد كړی يم] بِخِلَافِ الْأَمَةِ وَالْعَبْدِ الْكَافِرِ په خلاف د مينځي او د كافر غلام لِأَنَّهُ يَتَكَرَّرُ الرِّقُّ عَلَيْهِمَا بِالرِّدَّةِ وَاللِّحَاقِ ځكه چي په مرتد كېدلو او دارُ الحرب ته په تللو سره په مينځه كي غلامتوب مكرر كيږي [او هغه دوباره مينځه ګرځي] وَعَلَيْهِ بِنَقْضِ الْعَهْدِ وَاللِّحَاقِ [همدارنګه] د عهد په ماتولو او دارُ الحرب ته په تللو سره پر كافر غلام [هم] غلامتوب مكرر كيږي وَلَا يَتَكَرَّرُ عَلَى الْعَبْدِ الْمُسْلِمِ [لېكن] پر مسلمان غلام هغه نه مكرر كيږي.

**اللغات**: ﴿ابتاع﴾ د افتعال د باب ماضي ده: رانيول، ﴿يُقال﴾ د افعال د باب مضارع مجهول ده: اقاله كول، بيع ختمول. ﴿لا يُحلّف﴾ د تفعيل له بابه د نفي صيغه ده، معنىٰ يې مخكي ذكر سوه، چي له دې څخه هم مراد (له مدعىٰ عليه څخه) قسم اخيستل دي. ﴿يُجدّد﴾ د تفعيل د باب مخكنی صيغه ده: نوي كول، تجديد كول (له نوي سره كول). ﴿يطرأ﴾ د فتح د باب مضارع ده: طاري كېدل، پېښېدل، واقع كېدل. ﴿إبانة﴾ د افعال د باب مصدر دی: بائنه كول، جلا كول، طلاق بائن وركول. ﴿عَرَّض﴾ د تفعيل د باب ماضي ده، عَرَّضَ يُعَرِّضُ تَعْرِيضًا: د دې باب څو معناوي دي چي له هغه څخه يو معنىٰ ده، تعريض كول (يعني يو خبره په تصريح سره نه كول). صاحب د معجم يې داسي تعريف كړی دی: إرادة المتكلم من كلامه معنًى يفهمه السامع من غير تصريح به (يعني بغير له تصريح كولو په خپل كلام سره داسي معنىٰ مرادول چي په هغه سره اورېدونكی [په خپله] پوه سي). مثلاً يو څوک د

بخيل کس مخته داسي ووايي "بخل دېر بد شی دی"، نو په دې سره د ده مراد او مطلب دا دی چي هغه بخيل دی لېکن ده خپل په کلام د دې تصريح نه ده کړې، يعني په صراحت سره يې دا نه دي ويلي چي هغه بخيل دی... (معجم لغة الفقهاء)، ﴿مبتوتة﴾ هغه ښځه چي درې طلاقه ورکول سوي وي چي هغه ته مطلقۀ ثلاثه هم وايي، ﴿نفقة﴾ خرچه (خرڅه)، ﴿العهد﴾ ژمنه، وعده، تړون، مراد ځني ذمي والي تړون دی، ﴿اللحاق﴾ د سمع د باب مصدر دی: لاحق کېدل، ور سره يو ځای کېدل، مراد ځني دارُالحرب ته تلل او د کفارو سره يو ځای کېدل دي.

**تشريح**: په دغه اوږده عبارت کي څو مسئلې ذکر سوي دي، چي هغه به انشاء الله د مصنف رَحِمَهُ الله د بيان مطابق ستاسو په مخکي بيان کړل سي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که يو سړی مثلاً زيد پر خالد دا دعویٰ وکړي چي "ما له خالد څخه د هغه دغه غلام په زر درهمه رانيولی دی"، او خالد انکار وکړي، نو دې ته به کتل کيږي چي د مدعي (زيد) سره بيّنه سته، که نه؟ که چيري د مدعي سره بيّنه وي، نو هغه دي بيّنه پېش کړي، او که د مدعي سره بيّنه نه وي، نو بيا به قاضي له مدعیٰ عليه (خالد) څخه داسي قسم اخلي چي "په الله قسم! زما او د مدعي (زيد) په مينځ کي په دې غلام کي هيڅ بيع موجوده نه ده (بيع نه ده سوې)"، او له هغه څخه به داسي قسم نه اخلي چي "په الله قسم! ما دا غلام نه دی خرڅ کړی"، ځکه چي دا پر سبب قسم اخيستل دي او په اول صورت کي پر حاصلِ مراد قسم اخيستل دي (يعني په اول صورت کي پر حاصلِ معنیٰ او نتيجه باندي قسم اخيستل سوی دی)، او د حاصلِ مراد قسم د سبب له قسم څخه زيات واضح او ښکاره وي، ځکه ځيني وخت داسي کيږي چي يو مُتعيّن مال (عَين شی) خرڅ کړی سي او بيا په هغه کي اقاله وسي، او ښکاره خبره ده چي د حاصل مراد په قسم اخيستلو کي د اقالې صورت هم تر قسم (يمين) لاندي داخليږي او د سبب په قسم اخيستلو کي (يعني په "مابعتُ" سره په قسم اخيستلو کي) د اقالې صورت تر قسم لاندي نه داخليږي او په دې کي د بائع ضرر او تاوان وي، حال دا چي بائع له ضرر څخه ساتل ضروري دي، نو ځکه له بائع څخه د ضرر دفع کولو په خاطر صرف پر حاصلِ مراد قسم اخيستل کيږي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که يو سړی پر بل چا د غصب دعویٰ وکړي (چي تا زما فلانکی شی غصب کړی دی)، او مدعیٰ عليه انکار وکړي، اوس که د مدعي سره بيّنه نه وي، نو له مدعیٰ عليه څخه به په دې الفاظو قسم نه اخيستل کيږي چي "په الله قسم! ما نه دی غصب کړی"، ځکه چي ځيني وخت يو څوک د يو چا شی غصب کړي او بيا مالک (مغصوب منهُ) هغه شی غاصب ته هبه کړي يا يې پر

غاصب خرڅ کړي يا غاصب د هغه شي تاوان ورکړي او په خپله د هغه مالک سي، نو ځکه مدعیٰ ... به په دې الفاظو سره قسم نه اخلي چي "ما نه دی غصب کړی"، بلکي داسي قسم به اخلي چي "مدعي پر ما د هغه شي (مغصوب شي) د واپس اخيستلو حق نه لري"، د دې لپاره چي د هبه کولو، خرڅولو او تاوان ورکولو په ذريعه د مدعیٰ عليه مالک کېدل په قسم کي داخل سي او هغه له ضرر او نقصان څخه محفوظ سي.

(۳)... درېيمه مسئله دا ده که يو سړی پر يو ښځي د نکاح دعویٰ وکړي او ښځه له هغه څخه انکار وکړي، او سړی پر خپله دعویٰ بيّنه پېش نه کړی سي، نو له مدعیٰ عليها ښځي څخه به په دې الفاظو قسم اخيستل کيږي "په الله قسم زموږ د دواړو په مينځ کي في الحاله نکاح موجوده نه ده (نکاح نه ده سوې)"، او له هغې څخه به داسي قسم نه اخيستل کيږي چي "په الله قسم! ما د هغه سره نکاح نه ده کړې"، ځکه په دې کي د قسم اخيستونکی ضرر دی، ځکه چي ځيني وخت تر خلع کولو وروسته نکاح کيږي، او ښکاره خبره دي چي تر خلع وروسته نکاح باقي نه پاتيږي.

(۴)... څلورمه مسئله دا ده که يو ښځه دعویٰ وکړي چي "زما خاوند ما ته طلاق راکړی دی"، لېکن خاوند انکار وکړي او د هغې دعویٰ بالکل ردّ کړي، اوس که د مدعيه ښځي سره بيّنه وي، نو له مدعیٰ عليه (خاوند) څخه به داسي قسم اخيستل کيږي "په الله قسم! دا ښځه په اوس وخت کي په هغه سبب زما څخه بائنه او جلا نه ده، د کوم سبب چي هغه دعویٰ کوي"، او له خاوند څخه به داسي قسم نه اخيستل کيږي چي "په الله قسم! ما هغې ته طلاق نه دی ورکړی"، ځکه په دې کي د قسم اخيستونکی ضرر دی، په دې توګه چي ځيني وخت له طلاق څخه وروسته د نکاح تجديد کيږي، لنډه دا چي په دغه ټولو مسئلو کي به پر حاصلِ مراد قسم اخيستل کيږي، د دې لپاره چي قسم په هره توګه جامع او مانع وګرځي، او پر سبب به قسم نه اخيستل کيږي، د دې لپاره چي مدعیٰ عليه ته ضرر او نقصان نه ورسيږي. دا حکم او تفصيل د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي په پورتني مسئلو کي به پر سبب قسم اخيستل کيږي، نه پر حاصلِ مراد؛ ها! که چيري مدعیٰ عليه په مذکوره شيانو کي تعريض وکړي يعني داسي ووايي چي "قاضي صاحب! ما نه دی خرڅ کړی، لېکن تا ته خو معلومه ده چي په بيع کي ځيني وخته اقاله کيږي"، يا مثلاً د غصب په صورت کي داسي ووايي چي "ځيني وخت غاصب د هبه او تاوان په ذريعه د مغصوب شي مالک کيږي"، نو په دې وخت کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز هم قاضي به له مدعیٰ عليه څخه پر حاصلِ مراد قسم اخلي، پر سبب به قسم نه ځني اخلي.

وقيل ينظر إلخ: د ځيني حضراتو رايه دا ده چي په قسم اخيستلو کي به د مدعیٰ عليه انکار ته کتل کيږي، که چيري هغه د سبب انکار کوي، نو پر سبب به قسم ځني اخيستل کيږي، او که د حکم انکار کوي، نو پر حاصلِ مراد به قسم ځني اخيستل کيږي.

فالحاصل إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې ټولو مسئلو کي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز قاعده او ضابطه دا ده چي که د دعوې سبب داسي وي کوم چي په يو ليري کونکي سبب (رافع) سره ليري کېدای او ختمېدای سي، لکه بيع چي په اقاله سره ختميږي او لکه غصب چي په هبه او بيع سره ختميږي او لکه د طلاق معامله چي د نکاح په تجديد سره ختميږي، نو په دې ټولو صورتونو کي به پر حاصلِ مراد قسم اخيستل کيږي، لېکن که پر حاصل مراد په قسم اخيستلو کي د مدعي رعايت نه کېدی او د هغه سره د زياتوب کولو شبهه موجوده وي، نو په دې صورت کي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هم له مدعیٰ عليه څخه به پر سبب قسم اخيستل کيږي، صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د دې دوه مثالونه ذکر کړي دي: ① که د يو ښځي خاوند شافعي المسلکه وي او هغه خپلي ښځي ته درې طلاقه ورکړي، بيا هغه ښځه پر خپل خاوند د عدت د ورځو د نفقې دعویٰ وکړي (چي ما ته د عدت د ورځو نفقه راکړه!)، حال دا چي شافعي المسلکه خاوند د هغه اعتقاد نه لري، ② که يو سړی د همسايتوب (جَوَار) پر بناء د شفعي دعویٰ وکړي، لېکن مشتري شافعي المسلکه وي او د همسايتوب پر بناء د شفعي اعتقاد نه لري، نو په دې دواړو صورتونو کي به له مدعیٰ عليه يعني په اول صورت کي له خاوند او په دويم صورت کي له مشتري څخه پر سبب قسم اخيستل کيږي، نه پر حاصلِ مراد؛ ځکه که چيري پر حاصلِ مراد قسم واخيستل سي يعني داسي قسم واخلي چي "په الله قسم! په کوم سبب سره چي دا ښځه پر ما د نفقې دعویٰ کوي، په هغه سبب سره پر ما د هغې نفقه نسته"، يا که مشتري داسي قسم واخلي چي "په الله قسم! د همسايتوب پر بناء مدعي ته دا حق نسته چي زما څخه شفعه واخلي"، نو په دواړو صورتونو کي به د مدعي ضرر او نقصان وي او هغه به له خپل حقوقو څخه محروم سي؛ ځکه چي پر حاصلِ مراد په قسم اخيستلو کي به (شافعي المسلکه) مدعیٰ عليه د خپل اعتقاد په اعتبار سره رښتونی وي او هغه به په خپل حق کي قسم اخيستونکی وي او په دې قسم سره به مدعي ته نقصان ورسيږي، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې عبارت "فيفوت النظر في حق المدعي" سره همدا خبره بيان کړې ده.

وإن كان سببا إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د دعوې سبب داسې وي کوم چې په يو ليري کونکي سبب سره نه ليرې کيږي، نو په دې صورت کې به بالاتفاق پر سبب قسم اخيستل کيږي، مثلاً لکه يو مسلمان غلام دا دعوىٰ وکړي چې "زما مالک زه آزاد کړی يم"، او مالک له دې څخه انکار وکړي، نو اوس به له مالک څخه همداسې قسم اخيستل کيږي چې "په الله قسم! ما هغه نه دی آزاد کړی"، ځکه چې آزادول يو داسې سبب دی کوم چې په يو ليري کونکي سبب (رافع) سره نه سي ليرې کېدای، نو ځکه دلته به پر سبب قسم اخيستل کيږي او پر حاصلِ مراد به قسم نه اخيستل کيږي.

د دې په خلاف که يو مينځه پر خپل مالک دآزادولو دعوىٰ وکړي (چې زه خپل مالک آزاده کړې يم) يا کافر غلام دآزادولو دعوىٰ وکړي، او مالک له دې څخه انکار وکړي، نو په دې صورت کې به له مالک څخه پر حاصلِ مراد قسم اخيستل کيږي يعني هغه داسې به وايي "په الله قسم! دا غلام (کافر) يا دا مينځه في الحاله آزاده نه ده"، او په دې صورت کې به له مالک څخه پر سبب قسم نه اخيستل کيږي، ځکه چې دلته سبب په رافع (ليري کونکي سبب) سره ليرې کېدای سي، مثلاً که مينځه مرتده سي او دارُ الحرب ته ولاړه سي يا کافر غلام د ذمي والي عهد (تړون) مات کړي او دارُ الحرب ته ولاړ سي، نو د هغو آزادي ختميږي او پر هغو به دوباره رقيت (غلامتوب) جاري کيږي، معلومه سوه چې په دې صورت کې سبب پوخ او مضبوط نه دی او په رافع سره ختمېدای سي، او څه مخکې ذکر سوه چې که سبب په يو رافع سره ختمېدای سي، نو پر حاصلِ مراد به قسم ځني اخيستل کيږي، نو ځکه په دې صورت کې به هم له مدعىٰ عليه (مالک) څخه پر حاصلِ مراد قسم اخيستل کيږي.

د دې په خلاف د مسلمان غلام د دعوې سبب پوخ او مضبوط وي او که هغه يو وار آزاد سي، نو دوباره پر هغه رقيت نه جاري کيږي، نو ځکه د مسلمان غلام د دعوې کولو په صورت کې به د هغه له مالک څخه پر سبب قسم اخيستل کيږي.

## د ميراث د ملکيت دعوىٰ کول

| |
|---|
| قَالَ: وَمَنْ وَرِثَ عَبْدًا فرمايي: او که څوک د يو غلام وارث سي [يعني په ميراث کې ورته حاصل سي] وَادَّعَاهُ آخَرُ او [بيا] بل څوک په هغه دعوىٰ وکړي يُسْتَحْلَفُ عَلىٰ عِلْمِهِ نو له وارث څخه به د هغه پر علم [خبر] قسم اخيستل کيږي لِأَنَّهُ لَا عِلْمَ لَهُ بِمَا صَنَعَ الْمُوَرِّثُ ځکه کوم څه چې مورث کړي دي وارث ته د هغه علم نسته فَلَا يُحَلَّفُ عَلَى الْبَتَاتِ نو ځکه له هغه څخه به په قطعي [يقيني] توګه قسم نه اخيستل کيږي وَإِنْ وُهِبَ لَهُ أَوِ اشْتَرَاهُ او که چيري هغه ته غلام هبه کړی سوی وي [يعني يو |

چابلا عوضه (مفت) ورکړی وي] یا هغه رانیولی وي يُحَلَّفُ عَلَى الْبَتَاتِ نو په قطعي توګه به قسم ځني اخيستل کيږي لِوُجُودِ الْمُطْلَقِ لِلْيَمِينِ ځکه چي د قسم اجازت ورکونکی سبب [او دليل] موجود سو إِذِ الشِّرَاءُ سَبَبٌ لِثُبُوتِ الْمِلْكِ وَضْعًا ځکه چي رانيول د وضع په اعتبار سره د ملکيت ثابتيدلو سبب دي وَكَذَا الْهِبَةُ او همداسي هبه [هم د ملکيت سبب] ده قَالَ: وَمَنِ ادَّعَى عَلَى آخَرَ مَالًا فرمايي: او که څوک پر بل چا [مثلا پر خالد] د مال دعوىٰ وکړي فَافْتَدَى يَمِينَهُ أَوْ صَالَحَهُ مِنْهَا عَلَى عَشَرَةٍ بيا هغه [خالد] د خپل قسم فديه ورکړي يا پر لس درهمه د مدعي سره صلح وکړي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي وَهُوَ مَأْثُورٌ عَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دا له حضرت عثمان رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي. وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَسْتَحْلِفَهُ عَلَى تِلْكَ الْيَمِينِ أَبَدًا او [تر دې وروسته] مدعي ته هيڅکله هم دا اختيار نسته چي له مدعىٰ عليه څخه هغه قسم واخلي لِأَنَّهُ أَسْقَطَ حَقَّهُ ځکه چي هغه خپل حق ساقط کړی.

**اللغات**: ﴿ورث﴾ د سمع د باب ماضي ده: وارث کېدل، يو شی په ميراث کي حاصلول. ﴿صالحه﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: صلح کول. ﴿فافتدى﴾ د افتعال د باب ماضي ده: فديه ورکول (مراد ځني د خپل قسم اخيستلو په مقابله کي تاکلې قيمت ورکول دي [چي له قسم اخيستو څخه خلاص سي]). ﴿مأثور﴾ د نصر له بابه د مفعول صيغه ده: منقول، نقل سوی.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو سړي ته په ميراث کي غلام حاصل سي، لېکن پر هغه غلام بل څوک د خپل ملکيت دعوىٰ وکړي (چي زه د دې غلام مالک يم)، اوس که د مدعي سره بيّنه نه وي، نو قاضي به له مدعىٰ عليه (وارث) څخه د هغه پر علم (خبر) قسم اخلي يعني مدعىٰ عليه به داسي قسم اخلي" په الله قسم! زه په دې خبر نه يم (ما ته معلومه نه ده) چي مدعي د دغه غلام مالک دی کوم چي ما ته په ميراث کي حاصل سوی دی"، او داسي قسم به نه اخلي چي "په الله قسم! مدعي د دغه غلام مالک نه دی"، ځکه وارث (مدعىٰ عليه) ته دا معلومه نه ده چي د هغه مورث ته دا غلام څنګه حاصل سوی دی (او هغه له چا څخه اخيستی دی)، او ښکاره خبره ده چي کوم شی معلوم نه وي، د هغه په باره کي يقيني او قطعي قسم نه سي اخيستل کېدای.

وإن وهب له إلخ: د دې حاصل دا دی که یو سړي ته (مثلا خالد ته) یو څوک غلام هبه کړي، یا یو سړی (مثلا خالد) له بل چا څخه یو غلام رانیسي او بیا پر هغه غلام بل څوک دعوىٰ وکړي او د مدعي سره بیّنه نه وي، نو په دې صورت کې به مدعىٰ علیه (خالد) په یقیني او قطعي توګه قسم اخلي او داسې به وایي چې "په الله قسم! مدعي د دې غلام مالک نه دی". ځکه چې دلته د مدعىٰ علیه سره د عام او قطعي قسم سبب او دلیل موجود دی، ځکه شراء (رانیول) صرف د ملکیت لپاره وضع سوې ده یعني د شراء (رانیولو) په ذریعه انسان د رانیول سوي شي مالک کیږي، همدارنګه په هبه سره هم بعد القبض موهوب لهٗ د موهوب شي مالک کیږي، لهذا کله چې په دې صورتونو کې د مدعىٰ علیه سره د خپل ملکیت (مالک کېدلو) ښکاره دلیل او علامت موجود دی، نو ځکه د هغه لپاره په قطعي او یقیني قسم اخیستلو کې هیڅ حرج هم نسته.

(۲)... دویمه مسئله دا ده که یو سړی پر بل چا د مال دعوىٰ وکړي (چې زما پر تا مثلاً سل درهمه باندې دي)، لېکن د مدعي سره بیّنه نه وي، او کله چې له مدعىٰ علیه څخه د قسم اخیستلو نوبت راسي، نو هغه مثلاً لس درهمه د خپل قسم فدیه وتاکي (یعني د خپل قسم اخیستلو په عوض کې مدعي ته لس درهمه ورکړي)، یا د مدعي سره پر لس درهمو صلح وکړي، نو دا فدیه ټاکل او صلح کول جائز دي، فدیه ټاکل له حضرت عثمان رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي، او په دې دواړو صورتونو کې مدعىٰ علیه له قسم څخه خلاصیږي او د آینده لپاره به هیڅکله هم له هغه څخه په دغه معامله کې قسم نه اخستل کیږي، ځکه چې په فدیه اخیستلو او صلح کولو سره مدعي خپل د استحلاف (قسم اخیستلو) حق ساقط کړی، او قاعده دا ده چې "الساقطُ لا یعود" (ساقط سوی شی [حق] واپس نه راګرځي)، نو ځکه تر دې وروسته به مدعي ته هیڅکله هم له مدعىٰ علیه څخه د قسم اخیستلو حق او اختیار نه وي.



# بَابُ التَّحَالُفِ

(دا) باب له دواړو فریقینو څخه د قسم اخیستلو (په بیان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله دیوه قسم یعني د مدعیٰ علیه د قسم احکام بیان کړل، اوس د دوو قسمونو یعني له دواړو فریقینو څخه د قسم اخیستلو احکام بیانوي، او تاسو ته معلومه ده چي یو (واحد) له دوو څخه مخکي وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله هم دیوه قسم بیان دوو قسمونو له بیان څخه مخکي کړی دی.

## د بائع او مشتري تر مینځ په ثمن یا مبیع کي د اختلاف بیان

قَالَ: وَإِذَا اخْتَلَفَ الْمُتَبَايِعَانِ فِي الْبَيْعِ فرمايي: او كله چي دواړه بيع كونكي [بائع او مشتري] په بيع كي اختلاف وكړي فَادَّعَى أَحَدُهُمَا ثَمَنًا وَادَّعَى الْبَائِعُ أَكْثَرَ مِنْهُ او له هغو څخه يو د څه ثمن دعوىٰ وكړي او بائع له هغه څخه د زيات ثمن دعوىٰ وكړي أَوِ اعْتَرَفَ الْبَائِعُ بِقَدْرٍ مِنَ الْمَبِيعِ وَادَّعَى الْمُشْتَرِي أَكْثَرَ مِنْهُ يا بائع د مبيع ديوه مقدار اقرار وكړي او مشتري له هغه څخه د زيات مقدار دعوىٰ وكړي وَأَقَامَ أَحَدُهُمَا الْبَيِّنَةَ او له هغو څخه [صرف] يو بيّنه پېش كړي قُضِيَ لَهُ بِهَا نو د هغه لپاره به د بينې مطابق فيصله كيږي لِأَنَّ فِي الْجَانِبِ الْآخَرِ مُجَرَّدَ الدَّعْوَى ځكه چي په دويم طرف كي يوازي دعوىٰ ده وَالْبَيِّنَةُ أَقْوَى مِنْهَا او بيّنه له يوازي دعوىٰ څخه زياته قوي ده وَإِنْ أَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةً او كه له هغو څخه هر يو بيّنه پېش كړي كَانَتِ الْبَيِّنَةُ الْمُثْبِتَةُ لِلزِّيَادَةِ أَوْلَى نو د زياتوب ثابتونكې بيّنه به اولىٰ [او معتبره] وي لِأَنَّ الْبَيِّنَاتِ لِلْإِثْبَاتِ ځكه چي بينې [گواهياني] د ثابتولو لپاره وي وَلَا تَعَارُضَ فِي الزِّيَادَةِ او په زياتوب كي هيڅ تعارض نسته وَلَوْ كَانَ الِاخْتِلَافُ فِي الثَّمَنِ وَالْمَبِيعِ جَمِيعًا او كه اختلاف په ثمن او بيع دواړو كي وي فَبَيِّنَةُ الْبَائِعِ أَوْلَى فِي الثَّمَنِ نو په ثمن كي د بائع بيّنه اولىٰ ده وَبَيِّنَةُ الْمُشْتَرِي أَوْلَى فِي الْمَبِيعِ او په مبيع كي د مشتري بيّنه اولىٰ ده نَظَرًا إِلَى زِيَادَةِ الْإِثْبَاتِ د اثبات د زياتوب وطرف ته په نظر كولو سره وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةٌ او كه چيري

د هر یوه لپاره بیّنه نه وي  قِيْلَ لِلْمُشْتَرِيْ: إِمَّا أَنْ تَرْضٰى بِالثَّمَنِ الَّذِیْ ادَّعَاهُ الْبَائِعُ وَإِلَّا فَسَخْنَا الْبَيْعَ  نو مشتري ته به ویل کیږي چي: یا ته به په هغه ثمن راضي کیږې د کوم چي بائع دعویٰ کوي [یا] کنې موږ بیع فسخ کړو  وَقِيْلَ لِلْبَائِعِ: إِمَّا أَنْ تُسَلِّمَ مَا ادَّعَاهُ الْمُشْتَرِيْ مِنَ الْمَبِيْعِ وَإِلَّا فَسَخْنَا الْبَيْعَ  او بائع ته به ویل کیږي: یا ته به هغه مبیع [مشتري ته] ورسپارې! د کوم چي مشتري دعویٰ کوي [یا] کنې موږ بیع فسخ کوو  لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ قَطْعُ الْمُنَازَعَةِ  ځکه چي مقصود د جنګ [او اختلاف] ختمول دي  وَهٰذِهٖ جِهَةٌ فِيْهِ  او دا هم د جنګ ختمولو یوه طریقه ده  لِأَنَّهٗ رُبَّمَا لَا يَرْضَيَانِ بِالْفَسْخِ  ځکه چي زیاتره وخت بائع او مشتري په فسخ کولو نه راضي کیږي  فَإِذَا عَلِمَا بِهٖ يَتَرَاضَيَانِ  لهذا کله چي هغوی په فسخ کولو خبر سي [چي... قاضي زموږ بیع فسخ کوي] نو بیا به دواړه سره راضي سي.

**اللغات**: ﴿متبایعان﴾ د تفاعل له بابه د تثنیه اسم فاعل صیغه ده: دواړه بیع کونکی (عاقدَین)، خرڅونکي او رانیونکی، بائع او مشتري، ﴿ثمن﴾ قیمت، نرخ (ریټ)، ﴿مجرد﴾ د تفعیل د باب اسم مفعول دی: خالي، محض، یوازې، ﴿منازعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: جنګ، جګړه، (اختلاف او جنجال)، ﴿یتراضیان﴾ د تفاعل له بابه د تثنیه مذکر غائب صیغه ده: یو تربله راضي کېدل، دواړه سره راضي کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلي**: که بائع او مشتري د ثمن په مقدار کي اختلاف وکړي، مشتري ووایي چي ثمن سل روپۍ دی او بائع ووایي چي نه! بلکي یو نیم سل روپۍ دی، یا دواړه د مبیع په مقدار کي اختلاف وکړي، بائع ووایي چي مبیع پنځوس (۵۰) کېلو غنم دي او مشتري ووایي چي اویا کېلو (۷۰) کېلو غنم دي، او په دوی کي صرف یو پر خپله دعویٰ بیّنه پېش کړي او بل مدعي له بیّنه پېشولو څخه عاجز سي، نو کوم یو چي بیّنه پېش کړي، د هغه په حق کي به فیصله کیږي، ځکه چي د بیّنه پېشولو په وجه د هغه دعویٰ مضبوطه سوه او د هغه په مقابله کي دویم طرف ته یوازې (خالي) دعویٰ ده، نو ځکه د بیّنه پېشونکي فریق دعویٰ به له محض دعویٰ کونکي فریق څخه راجح وي.

**وإن أقام كل واحد إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که بائع او مشتري دواړه پر خپله دعویٰ بیّنه پېش کړي، نو د کوم یوه بیّنه چي زیاتوب (زیادت) ثابتونکې وي، د هغه پر بیّنه به فیصله کیږي، ځکه چي بینات د اثبات (ثابتولو) لپاره وضع سوي دي، لهذا کله د کوم یوه بیّنه چي زیاتوب لره مثبته

وي، صرف هغه به معتبره او مقبوله وي، او څرنګه چي دا بيّنه کوم چي زياتوب ثابتوي د هغه بيني معارض هم نه ده کوم چي کمي (کمښت) ثابتوي، نو ځکه په دې حواله سره به هم مُثبِت للزيادة والا بيّنه معتبره وي او صرف هغه به قبلول کيږي.

ولوکان الاختلاف إلخ: فرمايي که چيري بائع او مشتري د ثمن او مبيع دواړو په هکله اختلاف وکړي، بايع ووايي چي ما دا غلام په زر درهمه پر مشتري خرڅ کړی دی او مشتري ووايي چي ما دې غلام سره بله مينځه هم له بائع څخه رانيولې ده او هغه مي هم دواړه صرف په اته سوه ځني رانيولي دي، او هريو پر خپله دعوىٰ بيّنه پېش کړي، نو حکم دا دی چي د ثمن په مقدار کي به د بائع بيّنه قبلول کيږي، ځکه چي هغه په ثمن کي د زياتوب ثابتونکې ده. او د مبيع په مقدار کي به د مشتري بيّنه قبلول کيږي، ځکه چي هغه په مبيع کي زياتوب ثابتونکې ده.

او که صورت حال داسي وي چي د يوه سره هم بيّنه نه وي، نو قاضي به مشتري ته وايي چي "ورروه! يا ته په هغه ثمن راضي سه! کوم چي يې بائع دعوىٰ کوي يا بيا موږ دا بيع فسخ کوو"، او بائع ته به وايي چي "يا ته د مبيع په هغه مقدار راضي سي کوم چي يې مشتري دعوىٰ کوي، يا د بيع فسخ کولو ته تيار سه!"، ځکه مقصود دا دی چي د دواړو په مينځ کي جنګ او ختلاف ختم کړل سي، او د بيع فسخ کولو دمکي ورکول هم د جنګ ختمولو يوه طريقه ده. ځکه چي عاقدين د بيع په فسخ کولو نه راضي کيږي او د قاضي له دمکی. څخه وروسته هغوی دواړه په خپل مينځ کي صلح کولو ته تياريږي او د فسخ له بيري يو دبل سره په صلح کولو راضي کيږي.

### په مخکنی مسئله کي د بيّني د نشتوالي تفصيل

فَإِنْ لَمْ يَتَرَاضَيَا او که چيري دواړه سره راضي نه سي إِسْتَحْلَفَ الْحَاكِمُ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلٰى دَعْوَى الْآخَرِ نو قاضي به په دوی کي له هريوه څخه دبل يوه پر دعوىٰ قسم اخلي وَهٰذَا التَّحَالُفُ قَبْلَ الْقَبْضِ عَلٰى وِفَاقِ الْقِيَاسِ او دا له دواړو څخه قسم اخيستل تر قبضې مخکي د قياس موافق دي لِأَنَّ الْبَائِعَ يَدَّعِيْ زِيَادَةَ الثَّمَنِ وَالْمُشْتَرِيْ يُنْكِرُهُ ځکه چي بائع د ثمن د زياتوالي دعوىٰ کوي او مشتري له دې څخه انکار کوي وَالْمُشْتَرِيْ يَدَّعِيْ وُجُوْبَ تَسْلِيْمِ الْمَبِيْعِ بِمَا نَقَدَ وَالْبَائِعُ يُنْكِرُهُ او مشتري چي کوم ثمن [بائع ته] ورکړی دی د هغه په عوض کي د مبيع سپارلو دعوىٰ کوي او بائع له دې څخه انکار کوي فَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُنْكِرٌ نو له دوی څخه هريو منکر دی فَيُحْلَّفُ نو ځکه له هريوه څخه به

قسم اخيستل کيږي فَأَمَّا بَعْدَ الْقَبْضِ فَمُخَالِفٌ لِلْقِيَاسِ او پاته سو تر قبضې وروسته [له دواړو څخه قسم اخيستل] نو هغه د قياس مخالف دي لِأَنَّ الْمُشْتَرِيَ لَا يَدَّعِيْ شَيْئًا ځکه چي مشتري د هيڅ شي دعوىٰ نه کوي لِأَنَّ الْمَبِيْعَ سَالِمٌ لَهُ ځکه چي د هغه لپاره مبيع صحيح سالم ده فَبَقِيَ دَعْوَى الْبَائِعِ فِي زِيَادَةِ الثَّمَنِ وَالْمُشْتَرِيْ يُنْكِرُهَا نو د بائع دعوىٰ د ثمن په زياتوب کي باقي پاته سوه او مشتري له هغه څخه انکار کوي فَيُكْتَفٰى بِحَلْفِهِ نو ځکه د مشتري پر قسم اخيستلو به اکتفاء کيږي لٰكِنَّا عَرَفْنَاهُ بِالنَّصِّ لېکن له دواړو څخه قسم اخيستل موږ په نص سره پېژندلي دي وَهُوَ قَوْلُهُ عليه السلام: «إِذَا اخْتَلَفَ● الْمُتَبَايِعَانِ وَالسِّلْعَةُ قَائِمَةٌ بِعَيْنِهَا او هغه د نبي ﷺ دا فرمان دی: "کله چي دواړه بيع کونکي اختلاف وکړي او سامان [مبيع] بعينه موجود وي تَحَالَفَا وَتَرَادَّا نو دواړه به قسم اخلي او بيع به رد کوي.

**اللغات:** ﴿وفاق﴾ مواقت، مطابقت. ﴿التحالف﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو له بل څخه (يو تر بله) قسم اخيستل، له دواړو څخه قسم اخيستل. ﴿نَقَدَ﴾ د نصر د باب ماضي ده: اداء کول (نغد ورکول). ﴿سِلْعة﴾ سامان (تجارتي سامان). ﴿ترادًا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو بل ته (يو تر بله) واپس کول، يو تر بله ردول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** که بائع او مشتري دواړه اختلاف سره وکړي، او د يوه سره هم بيّنه نه وي او د قاضي د دمکۍ باوجود دواړه په صلح کولو راضي نه سي، نو بيا به قاضي له بائع او مشتري دواړو څخه يو د بل پر دعوىٰ قسم اخلي او د دواړو تر قسم اخيستلو وروسته به بيع فسخ کوي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي له دواړو څخه د قسم اخيستلو دغه حکم که چيري (پر مبيع) د مشتري له قبضه کولو څخه مخکي وي، نو بيا دا حکم د قياس موافق دی، او که چيري (پر مبيع) د مشتري تر قبضه کولو وروسته وي، نو د قياس مخالف دی؛ تر قبضه کولو مخکي دا حکم په دې وجه د قياس موافق دی، ځکه چي بائع د ثمن د زياتوب دعوىٰ کوي او مشتري له دې څخه انکار کوي، همدارنګه مشتري چي بائع ته کوم ثمن ورکړی دی، مشتري د هغه په عوض کي پر بائع د تسليم المبيع د وجوب دعوىٰ کوي (يعني دا دعوىٰ کوي چي زما دې ثمن په عوض کي پر تا واجب دي چي

● تخريج: أخرجه ابن ماجه، باب البيعان يختلفان، حديث رقم:۲۱۸۶. بمعناه

ما ته مبيع وسپارې!) او بائع له دې څخه انکار کوي، نو په دې اعتبار سره بائع او مشتري دواړه منکر (انکار کونکي) دي، نو ځکه به له دواړو څخه قسم اخيستل کيږي، لکه څرنګه چې په دې حديث "البيّنةُ على المدّعي واليمينُ على مَن أنكر" سره پر منکر د قسم وجوب ثابت دی.

او که چيرې مشتري پر مبيع قبضه کړې وي، نو بيا له دواړو څخه قسم اخيستل په دې وجه د قياس مخالف دي، ځکه کله چې مشتري پر مبيع قبضه وکړه، نو ښکاره خبره ده چې مبيع صحيح سالم د هغه په قبضه کې راغله، او اوس هغه د تسليم المبيع د وجوب مدعي پاتــه نه سو چې بائع له هغه څخه انکار وکړي، بلکې اوس صرف بائع د ثمن د زياتوب مدعي دی او مشتري له هغه څخه منکر دی، نو ځکه د قياس او قاعدې پر بناء خو په دې صورت کې صرف له مشتري څخه قسم اخيستل پکار دي، لېکن مورډ د نص نبوي په وجه په دې صورت کې هم له دواړو څخه د قسم اخيستلو حکم کړی دی، لهذا دا حکم که هر څومره د قياس مخالف وي لېکن بيا به هم مورډ پر نص عمل کوو او له دواړو څخه به قسم اخلو، او نص دا دی "إذا اختلف المتبايعان والسلعة قائمةٌ بعينها تحالفا وترادّا" (يعني کله چې بائع او مشتري اختلاف وکړي او سامان (مبيع) بعينهٖ موجود وي، نو دواړه به قسم اخلي او بيع به ردوي).

## اول به له چا څخه قسم اخيستل کيږي؟

قَالَ: وَيَبْتَدِئُ بِيَمِينِ الْمُشْتَرِيْ فرمايي: او قاضي به د مشتري په قسم سره شروع کوي وَهٰذَا قَوْلُ مُحَمَّدٍ او دا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی وَأَبِي يُوسُفَ آخِرًا او [همدا] د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دی وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت [هم] دی وَهُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح قول دی لِأَنَّ الْمُشْتَرِيَ أَشَدُّهُمَا إِنْكَارًا ځکه چې له دوی دواړو څخه مشتري سخت انکار والا دی [يعني په بائع او مشتري کې د مشتري انکار زيات سخت دی] لِأَنَّهُ يُطَالِبُ أَوَّلًا بِالثَّمَنِ ځکه چې د ثمن مطالبه اول له هغه څخه کيږي أَوْ لِأَنَّهُ يَتَعَجَّلُ فَائِدَةَ النُّكُولِ وَهُوَ إِلْزَامُ الثَّمَنِ يا ځکه چې د انکار فايده يعني ثمن لازمول ژر ښکاره کيږي وَلَوْ بَدَأَ بِيَمِينِ الْبَائِعِ او که چيرې قاضي د بائع په قسم سره شروع کړي تَتَأَخَّرُ الْمُطَالَبَةُ بِتَسْلِيمِ الْمَبِيعِ إِلَى زَمَانِ اسْتِيفَاءِ الثَّمَنِ نو د مبيع سپارلو مطالبه د هغه د ثمن اخيستلو تر زمانې پورې ځنډيږي وَكَانَ أَبُوْ يُوسُفَ يَقُولُ أَوَّلًا: يَبْدَأُ

بِيَمِينِ الْبَائِعِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله به اول فرمايل: چي قاضي به د بائع په قسم سره شروع کوي لِقَوْلِهِ الطَّيْلاً [1]: «إِذَا اخْتَلَفَ الْمُتَبَايِعَانِ فَالْقَوْلُ مَا قَالَهُ الْبَائِعُ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "کله چي بائع او مشتري اختلاف وکړي نو هغه خبره معتبره ده کوم چي يې بائع وايي" خَصَّهُ بِالذِّكْرِ [په دې حديث کې] نبي کريم ﷺ بائع په ذکر سره خاص کړی دی [يعني خاص د بائع ذکر او يادونه يې کړې ده] وَأَقَلُّ فَائِدَتِهِ التَّقْدِيمُ او د تخصيص کمتره فايده مخکي کول دي [يعني د تخصيص کمه فايده دا ده چي بايع مخکي کړی سي].

**اللغات**: ﴿يبتدئ﴾ د افتعال د باب مضارع ده: شروع کول. ﴿نُکُول﴾ د نصر د باب مصدر دی: له قسم څخه انکار کول. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: پوره اخيستل، يو حق (مثلاً ثمن) اخيستل، ترلاسه کول. ﴿تقديم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مخکي کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي په کوم صورت کي له بائع او مشتري دواړو (عاقدَينو) څخه قسم اخيستل کيږي، په هغه صورت کي به قاضي له مشتري څخه د قسم شروع کوي يعني اول به له مشتري څخه قسم اخلي او بيا به يې له بائع څخه اخلي، دا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی او همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دی او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه هم يو روايت داسي نقل سوی دی، او همدا صحيح قول دی؛ ځکه چي د مشتري انکار سخت دی، او سخت ځکه دی چي کله له مشتري څخه د ثمن مطالبه کيږي، نو هغه دوو شيانو انکار کوي: ① يو د اصل ثمن واجبېدلو انکار کوي، ② او دويم د وجوب اداء انکار کوي (يعني دويم د ثمن اداء کولو د واجبېدلو انکار کوي)، او کله چي داسي ده، نو د هغه انکار سخت سو، او بل دا چي اول له مشتري څخه د ثمن مطالبه کيږي، لهذا کله چي اول له مشتري څخه د ثمن مطالبه کيږي، نو د هغه انکار به هم اول او مخکي وي، او د انکار مخکي کېدل د هغه د سخت والي دليل دی، او بل دا چي د مشتري د انکار (نکول) فايده فوراً ښکاره کيږي، يعني کله چي مشتري له قسم څخه انکار وکړي نو پر هغه فوراً ثمن لازميږي، او د بائع د نکول فايده تر يو زماني پوري مؤخره کيږي، فوراً نه ښکاره کيږي، يعني کله چي قاضي اول له بائع څخه قسم واخلي او هغه انکار وکړي، نو د بائع د ثمن اخيستلو تر زماني پوري (يعني کله چي هغه له مشتري څخه ثمن واخلي، تر هغه وخته پوري) له بائع څخه د مبيع سپارلو مطالبه ځنډيږي، نو په دې وجه به هم اول له مشتري څخه قسم اخيستل کيږي.

[1] تخريج: أخرجه البيهقي، باب اختلاف المتبايعين، حديث رقم: ۱۱۱۲۰، بمعناه

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي قسم به اول له بائع څخه اخيستل کيږي؛ ځکه په حديث کي ذکر سوي دي چي "کله عاقدين اختلاف وکړي، نو قول د بائع معتبر دی"، څرنګه چي په دې حديث کي نبي کريم ﷺ خاص بائع ذکر کړی دی، نو ځکه په دې تخصيص سره به کم از کم د تقديم (مخکي کولو) فايده ضرور حاصليږي او د بائع قسم به مخکي کول کيږي، لهذا ثابته سوه چي له بائع څخه به مخکي قسم اخيستل کيږي. لېکن له مشتري څخه په قسم اخيستلو کي هغه فايده ده کوم چي موږ څه مخکي ذکر کړه، نو ځکه د هغه فايدې په خاطر به اول له مشتري څخه قسم اخيستل کيږي (او بل دا چي حقيقي او اصلي منکر مشتري دی، او له منکر څخه قسم اخيستل د دې حديث "واليمين على من أنكر" په روی سره واضح دي، لهذا کله چي له مشتري څخه قسم اخيستل واضح دي، نو د هغه د قسم مقدم کول [مخکي کول] به هم واضح وي).

## د هغه صورتونو بيان چي په هغه کي اول له مشتري څخه قسم نه اخيستل کيږي، بلکي قاضي ته اختيار وي

وَإِنْ كَانَ بَيْعُ عَيْنٍ بِعَيْنٍ أَوْ ثَمَنٍ بِثَمَنٍ او که چيري د عَين شي بيع د عَين شي په عوض کي وي يا د ثمن بيع د ثمن په عوض کي وي بَدَأَ الْقَاضِي بِيَمِينِ أَيِّهِمَا شَاءَ نو قاضي چي د کوم يوه په قسم سره وغواړي شروع دي وکړي لِاسْتِوَائِهِمَا ځکه چي [په دې صورت کي] هغوی دواړه سره برابر دي وَصِفَةُ الْيَمِينِ أَنْ يُحَلَّفَ الْبَائِعُ بِاللهِ مَا بَاعَهُ بِأَلْفٍ وَيُحَلَّفَ الْمُشْتَرِيْ بِاللهِ مَا اشْتَرَاهُ بِأَلْفَيْنِ او د قسم طريقه دا ده چي له بائع څخه [داسي] قسم واخيستل سي "په الله قسم! ما پر مشتري دا شی په زر درهمه نه دی خرڅ کړی او له مشتري څخه [داسي] قسم واخيستل سي "په الله قسم! ما دا شی په دوه زره نه دی رانيولی" وَقَالَ فِي الزِّيَادَاتِ: يُحَلَّفُ بِاللهِ مَا بَاعَهُ بِأَلْفٍ وَلَقَدْ بَاعَهُ بِأَلْفَيْنِ او امام محمد رَحِمَهُ الله په "زيادات" کي فرمايلي دي: چي له بائع څخه به [داسي] قسم اخيستل کيږي "په الله قسم! ما دا شی په زر درهمه نه دی خرڅ کړی بلکي په دوه زره مي خرڅ کړی دی وَيُحَلَّفُ الْمُشْتَرِيْ بِاللهِ مَا اشْتَرَاهُ بِأَلْفَيْنِ وَلَقَدِ اشْتَرَاهُ بِأَلْفٍ او له مشتري څخه به [داسي] قسم اخيستل کيږي "په الله قسم! ما دا شی په دوه زره نه دی رانيولی بلکي په زر مي رانيولی دی يُضَمُّ الْإِثْبَاتُ إِلَى النَّفْيِ تَأْكِيدًا [يعني] د تاکيد لپاره به اثبات د نفي سره يو ځای کول کيږي وَالْأَصَحُّ الِاقْتِصَارُ عَلَى النَّفْيِ [لېکن] زيات صحيح پر نفي اکتفاء کول دي لِأَنَّ الْأَيْمَانَ عَلَى ذٰلِكَ وُضِعَتْ ځکه چي قسمونه پر نفي وضع

سوي دي دَلَّ عَلَيْهِ حَدِيثُ الْقَسَامَةِ «بِاللهِ مَا قَتَلْتُمْ وَلَا عَلِمْتُمْ لَهُ قَاتِلًا» لکه څرنګه چي د قسامت حديث پر همدې دلالت کوي [چي په هغه کي په دې الفاظو سره قسم اخيستل سوی دی] "په الله قسم! نه تاسو [دا کس] قتل کړی دی او نه تاسو د هغه يو قاتل پېژني".

**اللغات**: ﴿عَين﴾ مُتعيّن شی، ﴿يحلف﴾ په دې کي دوه احتماله سته يو دا چي د تفعيل له بابه وي چي د هغه معنیٰ ده: له بل چا څخه قسم اخيستل، او بل دا چي د ضربه له بابه وي (يعني لازمي وي) نو د هغه معنیٰ ده: په خپله قسم اخيستل فأفهم. ﴿يُضم﴾ د نصر له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: ضمول، ور سره يو ځای کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله د يوه شي بيع د بل شي په عوض کي وسي (د ثمن په عوض کي نه وسي)، يا د ثمن بيع د ثمن په عوض کي وسي، او بيا بائع او مشتري اختلاف وکړي، نو په دې صورت کي قاضي ته اختيار دی که له هر يوه څخه اول قسم اخلي، ځکه په دې دواړو عقدونو کي په دعویٰ او د قسم په انکار کي بائع او مشتري دواړه (فريقين) سره برابر دي، نو ځکه په قسم کي به هم دواړه سره برابر وي او له هر يوه څخه به شروع کول برابر وي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: د قسم طريقه دا ده چي قاضي به پر نفي قسم اخلي، يعني له بائع څخه به داسي قسم اخلي "په الله قسم! ما پر مدعي فلانکی شی (مثلا) په سل درهمه نه دی خرڅ کړی" او له مشتري څخه به داسي قسم اخلي "په الله قسم! ما هغه (مثلا) په يو نيم سل درهمه نه دی رانيولی". لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله په "زيادات" کي فرمايلي دي چي په قسم اخيستلو کي د تاکيد پيدا کولو لپاره به د نفي سره اثبات هم يو ځای کول کيږي، يعني له بائع څخه به داسي قسم اخيستل کيږي "په الله قسم! ما هغه په سل درهمه نه دی خرڅ کړی بلکي په يو نيم سل مي خرڅ کړی دی"، او له مشتري څخه به داسي قسم اخيستل کيږي "په الله قسم! ما هغه په يو نيم سل نه دی رانيولی بلکي په سل مي رانيولی دی".

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي اصح او معتمد قول دا دی چي صرف پر نفي به قسم اخيستل کيږي، او د تاکيد لپاره د نفي سره د اثبات يو ځای کولو ته ضرورت نسته؛ ځکه د "قسامة" په حديث کي چي کوم د قسم اخيستلو خبره ذکر سوې ده، په هغه کي صرف نفي سته، تاکيد نسته. د قسامت د حديث حاصل دا دی چي که په يو محله (کلي) کي وژل سوی کس پيدا سي، او قاتل يې معلوم نه سي، نو د وژل سوي کس وليان به له هغه محلې څخه پنځوس خلک انتخابوي او له هغو څخه به داسي قسم اخلي "په الله قسم! نه موږ هغه قتل کړی دی او نه موږ د هغه قاتل

پېژنو "(يعني هريو به دا قسم اخلي، "په الله قسم! ما نه هغه قتل کړی دی او نه زه د هغه قاتل پېژنم")، لنډه دا چي د قسامت په حديث کي صرف پر نفي قسم اخيستل سوی دی، نه پر اثبات، نو له دې څخه معلومه سوه چي صرف پر نفي به قسم اخيستل کيږي.

## د بائع او مشتري دواړو د قسم اخيستلو حکم

قَالَ: فَإِنْ حَلَفَا فرمايي: که دواړه قسم واخلي فَسَخَ الْقَاضِي الْبَيْعَ بَيْنَهُمَا نو قاضي به د هغو په مېنځ کي بيع فسخ کوي وَهٰذَا يَدُلُّ عَلٰى أَنَّهُ لَا يَنْفَسِخُ بِنَفْسِ التَّحَالُفِ او دا پر دې خبره دلالت کوي چي په نفس تحالف سره بيع نه فسخ کيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَثْبُتْ مَا ادَّعَاهُ كُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ځکه له دوی څخه چي هريو د کوم څه دعویٰ کړې وه هغه [په دې صورت کي] ثابته نه سوه فَيَبْقٰى بَيْعٌ مَجْهُولٍ نو ځکه دا به د مجهول شي بيع پاته سي [لنډه دا چي دا بيع مجهوله پاته سوه] فَيَفْسَخُهُ الْقَاضِي قَطْعًا لِلْمُنَازَعَةِ نو ځکه د جنګ [او اختلاف] د ختمولو لپاره به قاضي هغه فسخ کوي أَوْ يُقَالُ: إِذَا لَمْ يَثْبُتِ الْبَدَلُ يا داسي به وېل کيږي: چي کله بدل ثابت نه سي يَبْقٰى بَيْعًا بِلَا بَدَلٍ نو بيع به بلا عوضه پاته سي وَهُوَ فَاسِدٌ او داسي بيع فاسده ده وَلَا بُدَّ مِنَ الْفَسْخِ فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ او د بيع فاسد فسخ کول ضروري دي قَالَ: وَإِنْ نَكَلَ أَحَدُهُمَا عَنِ الْيَمِينِ فرمايي: او که له دواړو عاقدينو [بائع او مشتري] څخه صرف يو له قسم څخه انکار وکړي لَزِمَهُ دَعْوَى الْآخَرِ نو پر هغه [منکر عاقد] د بل عاقد دعویٰ لازميږي لِأَنَّهُ جُعِلَ بَاذِلًا ځکه چي منکر بازل ګرځول سوی دی فَلَمْ يَبْقَ دَعْوَاهُ مُعَارِضًا لِدَعْوَى الْآخَرِ نو ځکه د هغه دعویٰ د بل عاقد د دعوې سره معارض پاته نه سوه فَلَزِمَ الْقَوْلُ بِثُبُوتِهِ لهذا د هغه د ثبوت قائل کېدل لازم سو.

**اللغات:** ﴿منازعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: جنګ، جګړه، اختلاف او جنجال. ﴿باذل﴾ د نصر له بابه اسم فاعل دی: خرڅونکی (مصرفونکی، په رضا سره خپل حق ورکولو ته آماده).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله بائع او مشتري دواړه پر خپله دعویٰ قسم واخلي، نو قاضي به د هغو بيع فسخ کوي. د متن له دغه حکم څخه دا خبره معلومه سوه چي محض د دواړو په قسم اخيستلو سره (په خپله) بيع نه فسخ کيږي، تر څو چي قاضي هغه فسخ نه کړي؛ ځکه کله چي دواړه قسم واخلي يعني هريو د بل يوه دعویٰ نه مني او هغه درواغجن ګڼي، نو د يوه دعویٰ هم ثابته نه

سوه، لهذا بيع (د ثمن يا مبيع يا د دواړو د مجهول کېدلو په وجه) مجهوله سوه، او مجهوله بيع د اختلاف او جنګ سبب جوړيږي، نو ځکه د اختلاف او جنګ ختمولو لپاره به قاضي دا بيع فسخ کوي.

په بله وينا داسي هم ويل کېداى سي چي دلته د بائع او مشتري په اقوالو کي تعارض راغلی او يو هم د بل يوه سره پر بدل (عوض) متفق او راضي نه دی، نو ځکه دا بيع بلا بدل (بېله بدله) پاته سوه، او بيع بلا بدل فاسده بيع ده (مطلب دا چي په کومه بيع کي بدل نه وټاکل سي نو هغه فاسديږي)، او د بيع فاسد فسخ کول واجب دي، لېکن څرنګه چي هغوی دواړو دغه بيع نه ده فسخ کړي، نو ځکه قاضي به د هغوی د قائم مقام په توګه دا بيع فسخ کوي.

قال وإن نكل إلخ: فرمايي که له بائع او مشتري څخه صرف يو له قسم څخه انکار وکړي، نو پر منکر د هغه بل عاقد دعویٰ لازميږي (مثلا که مشتري له قسم څخه انکار وکړي، نو پر هغه د بائع دعویٰ لازميږي)، ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول مطابق منکر باذل دی (يعني په رضا سره د خپل حق ور کولو ته آماده دی)، او کله چي داسي ده، نو د هغه دعویٰ د بل عاقد د دعوې سره معارض پاته نه سوه او د جنګ او اختلاف دروازه بنده سوه، نو ګواکي منکر د بل يوه د دعوې د ثبوت قائل سو، نو ځکه پر منکر به د هغه بل عاقد (فريق ثاني) دعویٰ لازميږي او قاضي به د هغه (بل عاقد) د دعویٰ مطابق فيصله کوي.

## په کومو صورتونو کي به له عاقدينو څخه قسم اخيستل کيږي؟

قَالَ: وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي الْأَجَلِ أَوْ فِي شَرْطِ الْخِيَارِ أَوْ فِي اسْتِيفَاءِ بَعْضِ الثَّمَنِ فرمايي: که چيري بائع او مشتري په ميعاد کي يا په خيار شرط کي يا د څه ثمن په اخيستلو کي اختلاف وکړي فَلَا تَحَالُفَ بَيْنَهُمَا نو د دوی په مينځ کي تحالف نسته لِأَنَّ هَذَا اخْتِلَافٌ فِي غَيْرِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ وَالْمَعْقُودِ بِهِ ځکه چي دا له معقود عليه او معقود به څخه بغير په بل شي کي اختلاف کول دي فَأَشْبَهَ الِاخْتِلَافَ فِي الْحَطِّ وَالْإِبْرَاءِ لهذا دا داسي سو لکه [د ثمن] په کمولو او بري کولو [معافولو] کي اختلاف کول وَهَذَا لِأَنَّ بِانْعِدَامِهِ لَا يَخْتَلُّ مَا بِهِ قِوَامُ الْعَقْدِ او دا ځکه چي د مذکوره شيانو په نشتوالي سره په هغه شي کي خلل نه راځي چي په هغه سره عقد قائم وي بِخِلَافِ الِاخْتِلَافِ فِي وَصْفِ الثَّمَنِ وَجِنْسِهِ په خلاف د ثمن په وصف يا د ثمن په جنس کي د اختلاف کولو حَيْثُ يَكُونُ بِمَنْزِلَةِ الِاخْتِلَافِ فِي الْقَدْرِ فِي جَرَيَانِ التَّحَالُفِ نو دا اختلاف د تحالف جاري کېدلو په اعتبار سره په مقدار کي د اختلاف کولو په څېر

دی لِأَنَّ ذٰلِكَ يَرْجِعُ إِلٰى نَفْسِ الثَّمَنِ ځکه چې دا اختلاف د نفس ثمن وطرف ته راجع کيږي فَإِنَّ الثَّمَنَ دَيْنٌ ځکه چې ثمن دَين [دراهم او دنانير] وي وَهُوَ يُعْرَفُ بِالْوَصْفِ او هغه په وصف سره پېژندل کيږي وَلَا كَذٰلِكَ الْأَجَلُ او ميعاد [مياد] داسې نه دی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِوَصْفٍ ځکه چې هغه وصف نه دی أَلَا تَرٰى أَنَّ الثَّمَنَ مَوْجُوْدٌ بَعْدَ مُضِيِّهِ آيا ته نه ګورې! چې د ميعاد [مياد] له تېرېدلو څخه وروسته هم ثمن باقي پاتېږي قَالَ: وَالْقَوْلُ قَوْلُ مَنْ يُنْكِرُ الْخِيَارَ وَالْأَجَلَ مَعَ يَمِيْنِهِ فرمايي: او قول د هغه عاقد معتبر دی د قسم سره کوم چې د خيار شرط او ميعاد انکار کوي لِأَنَّهُمَا يَثْبُتَانِ بِعَارِضِ الشَّرْطِ ځکه چې خيار شرط او اجل د شرط د عارض په وجه ثابتيږي وَالْقَوْلُ لِمُنْكِرِ الْعَوَارِضِ او قول د هغه کس معتبر وي کوم چې د عوارضو انکار کونکی وي.

**اللغات**: ﴿أجل﴾ ټاکل سوی وخت، ميعاد (مياد)، ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: اخيستل، ترلاسه کول، ﴿تحالف﴾ د تفاعل مصدر دی: يو له بل څخه قسم اخيستل، له دواړو څخه قسم اخيستل، ﴿حطّ﴾ د نصر مصدر دی: کمول (له بيع کولو څخه وروسته ثمن کمول)، ﴿إبراء﴾ د افعال د باب مصدر دی: بري کول، معاف کول (معافول)، ﴿دَين﴾ قرض، د عَين ضد، يعني دراهم او دنانير (نقود، پيسې).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که بائع او مشتري د مبيع يا ثمن تر اخيستلو وروسته په ميعاد کې اختلاف وکړي يا په خيار شرط کې اختلاف وکړي يا د بعضې ثمن اخيستلو په هکله اختلاف وکړي (مثلاً مشتري ووايي چې ما له ثمن څخه څه حصه تا ته درکړې ده او بائع انکار وکړي)، نو په دې ټولو صورتونو کې زموږ په نيز له دواړو څخه به قسم نه اخيستل کيږي، بلکې کوم يو چې د ميعاد يا خيار شرط يا د بعضې ثمن اخيستلو منکر وي، صرف له هغه څخه به قسم اخيستل کيږي، ځکه د ميعاد، خيار شرط او بعضې ثمن اخيستلو چې کوم اختلاف دی هغه د معقود عليه يعني د مبيع او د معقود به يعني د اصل ثمن له اختلاف څخه جلا دی، او د نص په روی سره تحالف (له دواړو څخه قسم اخيستل) د مبيع يا د ثمن په اختلاف کې واجب دی، نه د بل شي په اختلاف کې، نو ځکه په مذکوره شيانو کې به د عاقدَينو په اختلاف سره پر دواړو قسم نه واجبيږي، بلکې صرف پر منکر به واجب وي. او لکه څرنګه چې د ثمن کمولو يا ثمن معافولو په هکله عاقدين (بائع او مشتري) اختلاف وکړي، نو په دې سره تحالف نه واجبيږي، همداسې به په پورتني اختلاف سره هم تحالف نه واجبيږي.

پاتـه سو دا سوال چې د ميعاد، خيـار شرط او داسې نورو اختلاف د معقود عليـه او معقود بهٖ له اختلاف څخه ولې جلا دی؟، نو د هغه جواب دا دی چې د ميعاد، خيار شرط او داسې نورو په نشتوالي (ناموجودوالي) سره په اصل عقد کې هيڅ خرابي نه لازميږي بلکې له دوی څخه بغير هم عقد صحيح او جائز ګرځي، حال دا چې که له معقود عليه او معقود بهٖ څخه يو شی موجود نه وي، نو په دې سره اصل عقد ختميږي، نو ځکه د خيار شرط، ميعاد او داسې نورو اختلاف به د معقود عليه او معقود بهٖ د اختلاف په څېر نه وي او په هغه اختلاف سره به تحالف نه واجبيږي.

بخلاف الاختلاف في وصف إلخ: د دې حاصل دا دی چې که عاقدين د ثمن په وصف يعني د ثمن په ګرَه والي او کوټه والي کې اختلاف وکړي يا د ثمن په جنس يعني د ثمن په دراهم کېدلو يا دنانير کېدلو کې اختلاف وکړي، نو دا اختلاف داسې دی لکه د ثمن په مقدار کې اختلاف کول، او د ثمن د مقدار اختلاف تحالف واجبوي، نو ځکه د ثمن د وصف او د هغه د جنس په اختلاف سره به هم تحالف واجبيږي؛ ځکه چې د ثمن د وصف او جنس اختلاف د اصل ثمن (نفسِ ثمن) و اختلاف ته راجع دی، ځکه چې ثمن دَين وي (يعني ثمن دراهم او دنانير [پيسې] وي، عَين شی نه وي) او د وصف په ذريعه د هغه ګرَه والی او کوټه والی پېژندل کيږي، نو ځکه د وصف اختلاف به د ثمن د اختلاف په څېر وي، او د ثمن اختلاف تحالف واجبوي، نو ځکه د وصف اختلاف به هم تحالف واجبوي.

او د ميعاد حال داسې نه دی، يعني د ميعاد اختلاف نه د ثمن د اختلاف په څېر دی او نه د مقدار ثمن د اختلاف په څېر دی؛ ځکه چې ميعاد د ثمن وصف نه دی، همدا وجه ده چې له ميعاد تېرېدلو څخه وروسته هم ثمن باقي پاتېږي، حال دا چې که ميعاد (ميادۀ) د ثمن وصف وای نو د هغه په تېرېدو سره به خامخا په ثمن کې خلل راتلای، لهذا له ميعاد تېرېدلو څخه وروسته د ثمن بقاء (باقي پاتېدل) دې خبرې ته اشاره کوي چې ميعاد د ثمن وصف نه دی، نو ځکه د ميعاد په اختلاف سره به تحالف نه واجبيږي.

قال والقول إلخ: فرمايي کله چې د ميعاد، خيار شرط او د بعض ثمن اخيستلو په اختلاف سره تحالف نه واجبيږي، نو ځکه کوم عاقد چې په دغه شيانو کې له يو شي څخه منکر (انکار کونکی) وي، نو صرف د هغه قول به مع اليمين معتبر وي (او صرف له هغه څخه به پر خپل قول قسم اخيستل کيږي)، ځکه چې ميعاد، خيار شرط او داسې نور د شرط د عارض په وجه عقد لره شامليږي (يعني کله چې د خيار يا د ميعاد شرط ولګول سي نو بيا دوی موجوديږي، کنې نه موجوديږي)، او کوم څوک چې د عوارضو منکر وي د هغه قول مع اليمين معتبر وي، نو ځکه کوم عاقد چې د مذکوره شيانو منکر وي، نو د هغه قول به هم مع اليمين معتبر وي.

## له مبيع هلاکېدلو څخه وروسته د بائع او مشتري تر مينځ د اختلاف راتللو يو صورت

قَالَ: فَإِنْ هَلَكَ الْمَبِيْعُ ثُمَّ اخْتَلَفَا فرمايي: او که چيرې مبيع هلاکه سي بيا عاقدين اختلاف وکړي لَمْ يَتَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به له دوی دواړو څخه قسم نه اخيستل کيږي وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِيْ او قول به د مشتري معتبر وي وَقَالَ مُحَمَّدٌ*: يَتَحَالَفَانِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې له دواړو څخه به قسم اخيستل کيږي وَيُفْسَخُ الْبَيْعُ عَلَى قِيمَةِ الْهَالِكِ او د هلاک سوي پر قيمت به بيع فسخ کول کيږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول [هم] دی وَعَلَى هَذَا إِذَا خَرَجَ الْمَبِيْعُ عَنْ مِلْكِهِ او پر همدغه اختلاف دی کله چې مبيع د مشتري له ملکيت څخه ووځي أَوْ صَارَ بِحَالٍ لَا يَقْدِرُ عَلَى رَدِّهِ بِالْعَيْبِ يا مبيع په داسي حالت سره سي چې د عيب په وجه مشتري د هغه پر واپس کولو قدرت [او اختيار] نه لري لَهُمَا: أَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَدَّعِي غَيْرَ الْعَقْدِ الَّذِي يَدَّعِيهِ صَاحِبُهُ د امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې په دوی دواړو کي هر يو له هغه عقد څخه بغير [د بل عقد] دعویٰ کوي کوم چې يې د هغه ملګرې دعویٰ کوي وَالْآخَرُ يُنْكِرُهُ او بل عاقد له هغه څخه انکار کوي وَأَنَّهُ يُفِيدُ دَفْعَ زِيَادَةِ الثَّمَنِ او هغه د ثمن د زياتوب دفع کولو [ليرې کولو] فايده ورکوي فَيَتَحَالَفَانِ نو ځکه به له دواړو څخه قسم اخيستل کيږي كَمَا إِذَا اخْتَلَفَا فِي جِنْسِ الثَّمَنِ بَعْدَ هَلَاكِ السِّلْعَةِ لکه په هغه صورت کي [چې له دواړو څخه قسم اخيستل کيږي] کله چې عاقدين د سامان [مبيع] تر هلاکېدلو وروسته د ثمن په جنس کي اختلاف وکړي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ التَّحَالُفَ بَعْدَ الْقَبْضِ عَلَى خِلَافِ الْقِيَاسِ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې تر قبضې وروسته له دواړو څخه قسم اخيستل خلاف القياس دی لِأَنَّهُ سَلَّمَ لِلْمُشْتَرِيْ مَا يَدَّعِيهِ ځکه چې بائع مشتري ته هغه مال ورکړی دی د کوم چې هغه دعویٰ کوي وَقَدْ وَرَدَ الشَّرْعُ بِهِ فِي حَالِ قِيَامِ السِّلْعَةِ [ليکن] شريعت پر دې د سامان [مبيع] د موجود والي په حالت

---

* القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ظهر من داب المصنف رَحِمَهُ الله وأجاب عن قول محمد والشافعي رَحِمَهُمَا الله، وكذا في نتائج الأفكار (ج:۷، ص:۲۰)، والدر المختار (ج:۴،ص:۴۷۹). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۷۵]

کي وارد سوی دی وَالتَّحَالُفُ فِيهِ يُفْضِي إِلَى الْفَسْخِ او په دې کي تحالف [له دوارو څخه قسم اخيستل] د فسخ سبب ګرځي وَلَا كَذٰلِكَ بَعْدَ هَلَاكِهَا او د سامان [مبيع] له هلاکيدلو څخه وروسته داسي نه ده لِارْتِفَاعِ الْعَقْدِ ځکه چي [د مبيع په هلاکيدلو سره] عقد ختم سو فَلَمْ يَكُنْ فِي مَعْنَاهُ نو ځکه [د مبيع] د هلاک والي حالت [د مبيع] د موجود والي د حالت په معنیٰ سره نه دی وَلِأَنَّهُ لَا يُبَالِي بِالِاخْتِلَافِ فِي السَّبَبِ بَعْدَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ او ځکه چي له مقصود حاصليدلو څخه وروسته د سبب په اختلاف سره پروا نه کيږي وَإِنَّمَا يُرَاعٰى مِنَ الْفَائِدَةِ مَا يُوجِبُهُ الْعَقْدُ او فايده هغه ملحوظ [او معتبره] وي کوم چي يې عقد واجبوي [يعني کوم چي د عقد له موجباتو څخه وي] وَفَائِدَةُ دَفْعِ زِيَادَةِ الثَّمَنِ لَيْسَتْ مِنْ مُوجَبَاتِهِ او د ثمن د زياتوب دفع کولو فايده د عقد له مُوجباتو څخه نه ده وَهٰذَا إِذَا كَانَ الثَّمَنُ دَيْنًا او دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي ثمن دَين وي فَإِنْ كَانَ عَيْنًا ليکن که ثمن عَين وي يَتَحَالَفَانِ نو له دوارو څخه به قسم اخيستل کيږي لِأَنَّ الْمَبِيعَ فِي أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ قَائِمٌ ځکه چي په يوه طرف کي مبيع موجوده ده فَيُوَفَّرُ فَائِدَةُ الْفَسْخِ نو ځکه د فسخ فايده به پوره کيږي [ښکاره کيږي] ثُمَّ يَرُدُّ مِثْلَ الْهَالِكِ بيا به د هلاک سوي مثل واپس کيږي إِنْ كَانَ لَهُ مِثْلٌ که چيري د هغه لپاره مثل وي [يعني له ذواتُ الأمثال څخه وي] أَوْ قِيمَتَهُ يا به د هغه قيمت واپس کيږي إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مِثْلٌ که د هغه لپاره مثل نه وي [يعني له ذواتُ القِيَم څخه وي].

**اللغات**: ﴿لم يتحالفا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه مذکر غائب جحد صيغه ده: يو له بل څخه قسم اخيستل، له دوارو څخه قسم اخيستل، يو تر بله قسم کول. ﴿سِلْعَة﴾ سامان، مراد ځني مبيع ده. ﴿يفضي﴾ د افعال د باب مضارع ده: رسول، رسيدل، سبب جوړيدل. ﴿فيوفر﴾ د ضرب له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: پوره کول، پوره کېد، زياتېدل، د افعال له بابه هم راتلای سي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که پر مبيع د مشتري له قبضه کولو څخه وروسته مبيع هلاکه سي او بيا د ثمن په مقدار کي بائع او مشتري اختلاف وکړي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چي له دوارو څخه به قسم نه اخيستل کيږي او د ثمن د مقدار په هکله صرف د مشتري قول معتبر دی. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز له دوارو څخه به قسم اخيستل کيږي، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله

قول هم دی، همدارنګه که مبیع د مشتري له قبضې څخه وتلې وي، یا مبیع داسي ګرځېدلې وي چي د عیب په وجه مشتري (بائع ته) د هغه پر واپس کولو قادر نه وي، یعني په دې صورتونو کي هم د عاقدَینو د اختلاف کولو په وخت کي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قسم سره د مشتري قول معتبر دی، لېکن د امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز تحالف واجب دی (یعني له دواړو څخه به قسم اخیستل کیږي).

**دلیل:** د امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي دلته له عاقدَینو (بائع او مشتري) څخه هر یو د جلا عقد دعویٰ کوي (یعني هر یو د غیر او علیحده بیع دعویٰ کوي)، مثلاً بائع د دوه زره درهمو (یا مثلاً د یو نیم سل درهمو) په عوض کي د بیع کولو دعویٰ کوي او مشتري د زر درهمو (یا مثلاً د سل درهمو) په عوض کي د بیع کولو دعویٰ کوي، او ښکاره خبره ده چي په زر او دوه زرو (یا په سل او یو نیم سلو) کي ښکاره تضاد دی، لېکن بیا هم دلته پر دواړو تحالف واجبول (یعني له دواړو څخه قسم اخیستل) فایده کوي، نو ځکه پر دواړو به تحالف واجب وي، او د تحالف فایده دا ده چي له دې دواړو عاقدَینو څخه چي کوم یو منکر وي، په تحالف سره به پر هغه د بل عاقد دعویٰ لازمه سي، یعني که مشتري انکار کوي نو پر هغه به دوه زره ثمن واجب سي (کوم چي د بائع دعویٰ ده)، او که بائع انکار کوي نو له مشتري څخه به د ثمن زیاتوب دفع سي او پر هغه به زر درهمه ثمن واجب سي، لنډه دا چي کله تحالف فایده کوي نو ځکه له دواړو څخه به قسم اخیستل کیږي، او د دې مثال داسي دی لکه د مبیع تر هلاکېدلو وروسته چي عاقدین د ثمن په جنس کي اختلاف وکړي، مثلاً مشتري بائع ته داسي ووایي: زما او ستا په مینځ کي چي کوم ثمن ټاکل سوي وو هغه دراهم وه، او بائع ووایي چي دنانیر وه، نو په دې صورت کي له دواړو څخه قسم اخیستل کیږي، لهذا همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم له دواړو څخه قسم اخیستل کیږي.

**د شیخینو دلیل:** دا دی چي پر مبیع د مشتري له قبضه کولو څخه وروسته تحالف واجبول خلاف القیاس دی؛ ځکه بائع مشتري ته هغه مال ورکړی دی د کوم چي مشتري دعویٰ کوي، او شریعت په هغه صورت کي تحالف واجب کړی دی کله چي مبیع موجوده وي، لکه څرنګه چي په حدیث کي ذکر سوي دي: "إِذَا اخْتَلَفَ الْمُتَبَايِعَانِ وَالسِّلْعَةُ قَائِمَةٌ بِعَيْنِهَا تَحَالَفَا وَتَرَادَّا"، ځکه د مبیع د موجود والي په صورت کي تحالف د فسخ سبب ګرځي، لېکن د مبیع د هلاک والي په صورت کي تحالف د فسخ سبب نه ګرځي؛ ځکه چي د مبیع په هلاکېدلو سره عقد ختم او لیري سو، نو ځکه تحالف (له

دواړو څخه قسم اخيستل) به هغه وخت واجب وي کله چې مبيع هلاکه سوې وي، لېکن که مبيع موجوده وي نو (د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز) به تحالف واجب نه وي.

ولأنه لا يبالي إلخ: په دې عبارت سره د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دويم دليل بيان سوی دی کوم چې د امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله د دليل جواب هم دی، هغه دا دی چې د مقصود له حاصلېدلو څخه وروسته د سبب د اختلاف اعتبار نه کيږي، او څرنګه چې دلته د بائع له طرفه مشتري ته مبيع سپارل سوې ده، نو ځکه د مشتري مقصود حاصل سوی دی، اوس صرف د دوه زره ثمن (يا مثلاً ديو نيم سل ثمن) په هکله د بائع دعویٰ باقي پاته ده او مشتري له هغه څخه منکر دی، نو ځکه په دې حواله سره به هم صرف پر مشتري قسم واجب وي.

وإنما يراعى إلخ: په دې سره د امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله د دليل جواب ورکوي چې هغو "دفع زيادة الثمن" د تحالف فايده ګرځولې وه، د جواب حاصل دا دی چې هغه فايده معتبره ده کوم چې د عقد له مُوجباتو څخه وي (يعني چې هغه په عقد سره واجبيږي او ثابتيږي)، او د ثمن د زياتوب دفع کولو فايده د عقد له مُوجباتو څخه نه ده، بلکې دا فايده د بائع له طرفه د انکار قسم له مُوجباتو څخه ده (يعني دا فايده د بائع په انکارِ قسم سره ثابتيږي، يعني هغه وخت ثابتيږي کله چې بائع له قسم څخه انکار وکړي)، او قسم د عقد له مُوجباتو څخه نه دی، نو ځکه د بائع انکار قسم به هم د عقد له مُوجباتو څخه نه وي، او کله چې د بائع انکار قسم د عقد له مُوجباتو څخه نه دی، نو د هغه د انکار قسم په وجه به هغه شی نه پرېښوول کيږي کوم چې د عقد له مُوجباتو څخه دی يعني پر مبيع د مشتري ملکيت او پر هغه د مشتري قبضه، او کله چې هغه نه پرېښوول کيږي نو صرف له مشتري څخه به قسم اخيستل کيږي، نه له بائع څخه (يعني پر دواړو به تحالف نه واجبول کيږي بلکې صرف له مشتري څخه به قسم اخيستل کيږي).

وهذا إذا كان إلخ: فرمايي: د شيخينو او د امام محمد رَحِمَهُ الله دغه اختلاف په هغه صورت کې دی کله چې ثمن دَين وي، يعني دراهم او دنانير وي، لېکن که ثمن عَين شی وي او مبيع هم عَين شی وي (مثلاً غنم د اُوربشو په عوض کې خرڅ کړل سوي وي)، بيا يو عوض يعني ثمن يا مبيع هلاکه سي او تر دې وروسته عاقدين اختلاف وکړي، نو بالاتفاق تحالف واجب دی يعني په دې صورت کې د ټولو په اتفاق له دواړو څخه قسم اخيستل کيږي، ځکه چې په دې صورت کې يوه طرف ته مبيع موجوده ده (ځکه په داسې عقد کې دواړه عوضونه مبيع هم وي او ثمن هم وي)، نو ځکه عقد (بيع) ختم نه سو، او کله چې عقد ختم نه سو نو په تحالف سره به د فسخ فايده ښکاره سي، په دې توګه چې کوم عوض باقي پاته وي، هغه به د خپل مالک وطرف ته واپس کيږي، او کوم عوض چې هلاک سوی وي که هغه له ذواتُ

الامثال شخه وي، نو د هغه مثل به مالک ته واپس کیږي، او که هغه له ذوات القیم شخه وي، نو د هغه قیمت به مالک ته واپس کیږي.

## د مبیع د یوې حصې له هلاکېدلو شخه وروسته د بائع او مشتري تر مینځ اختلاف راتلل

قَالَ: وَإِنْ هَلَكَ أَحَدُ الْعَبْدَيْنِ فرمايي: او که چیرې له دوو غلامانو شخه یو غلام هلاک سي ثُمَّ اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ بیا عاقدین په ثمن [قیمت] کې اختلاف وکړي لَمْ يَتَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له دواړو شخه به قسم نه اخیستل کیږي إِلَّا أَنْ يَرْضَى الْبَائِعُ أَنْ يَتْرُكَ حِصَّةَ الْهَالِكِ مګر دا چې بائع د هلاک سوي غلام [د قیمت] د حصې په پرېښوولو راضي سي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: "الْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِيْ مَعَ يَمِينِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او په جامع صغیر کې [ذکر سوي] دي: چې [په دې صورت کې] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مشتري قول د قسم سره معتبر دی إِلَّا أَنْ يَشَاءَ الْبَائِعُ أَنْ يَأْخُذَ الْعَبْدَ الْحَيَّ وَلَا شَيْءَ لَهُ مِنْ قِيمَةِ الْهَالِكِ" مګر دا چې بائع وغواړي چې ژوندی غلام واخلي او [په دې راضي سي چې] د هلاک سوي غلام له قیمت شخه ذ هغه لپاره هیڅ شی نه وي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ*: يَتَحَالَفَانِ فِي الْحَيِّ وَيُفْسَخُ الْعَقْدُ فِي الْحَيِّ وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِيْ فِي قِيمَةِ الْهَالِكِ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په ژوندي غلام کې به له دواړو شخه قسم اخیستل کیږي او په ژوندي غلام کې به بیع فسخ کول کیږي او د هلاک سوي غلام په قیمت کې به د مشتري قول معتبر وي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَتَحَالَفَانِ عَلَيْهِمَا وَيَرُدُّ الْحَيَّ وَقِيمَةَ الْهَالِكِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر ژوندي او هلاک سوي دواړو غلامانو به له عاقدینو شخه قسم اخیستل کیږي او ژوندی غلام او د هلاک سوي غلام قیمت به [بائع ته] واپس کیږي لِأَنَّ هَلَاكَ كُلِّ السِّلْعَةِ لَا يَمْنَعُ التَّحَالُفَ عِنْدَهُ ځکه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د ټوله سامان [پوره مبیع] هلاکېدل تحالف نه منع کوي فَهَلَاكُ الْبَعْضِ أَوْلَى نو د بعضي حصې هلاکېدل به په درجه اولیٰ هغه نه منع کوي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ امْتِنَاعَ

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في مجمع الأنهر (ج:۳، ص:۳۶۳)، والهندية (ج:۴، ص:۳۳). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۷۶]

التَّحَالُفِ لِلْهَلَاكِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د تحالف ممتنع کېدل د مبيع د هلاکېدلو په وجه وي فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهِ نو ځکه دا ممتنع کېدل به د هلاک سوي حصې په اندازه مُتعيّن کيږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ التَّحَالُفَ عَلَى خِلَافِ الْقِيَاسِ فِي حَالِ قِيَامِ السِّلْعَةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د سامان [مبيع] د موجو والي په حالت کي تحالف د قياس په خلاف دی وَهِيَ اسْمٌ لِجَمِيعِ أَجْزَائِهَا او سلعه [مبيع] د خپل ټولو اجزاؤ نوم دی فَلَا تَبْقَى السِّلْعَةُ بِفَوَاتِ بَعْضِهَا نو ځکه د بعضي حصې په فوتېدلو سره به سلعه [مبيع] باقي نه پاتيږي وَلِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ التَّحَالُفُ فِي الْقَائِمِ إِلَّا عَلَى اعْتِبَارِ حِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ او ځکه چي په موجوده مبيع کي تحالف ممکن نه دی مګر د هغه د ثمن د حصې په اعتبار کولو سره فَلَا بُدَّ مِنَ الْقِسْمَةِ عَلَى الْقِيمَةِ نو ځکه د هغه ثمن [د دواړو غلامانو] پر قيمت تقسيمول ضروري دي وَهِيَ تُعْرَفُ بِالْحَزْرِ وَالظَّنِّ او قيمت په اټکل او اندازه سره معلوميږي فَيُؤَدِّي إِلَى التَّحَالُفِ مَعَ الْجَهْلِ نو ځکه دا به د ثمن د مجهول والي باوجود د تحالف سبب وګرځي وَذٰلِكَ لَا يَجُوزُ إِلَّا أَنْ يَرْضَى الْبَائِعُ أَنْ يَتْرُكَ حِصَّةَ الْهَالِكِ أَصْلًا او دا جائز نه دي مګر دا چي بائع د هلاک سوي غلام د حصې په بالکل پرېښوولو راضي سي لِأَنَّهُ حِينَئِذٍ يَكُونُ الثَّمَنُ كُلُّهُ بِمُقَابَلَةِ الْقَائِمِ ځکه چي په دې صورت کي به ټوله ثمن د موجود غلام [ژوندي غلام] په مقابله کي وګرځي وَيَخْرُجُ الْهَالِكُ عَنِ الْعَقْدِ او هلاک سوی غلام به له عقد څخه ووځي فَيَتَحَالَفَانِ نو ځکه به دواړه قسم اخلي [يا: نو ځکه به له دواړو څخه قسم اخيستل کيږي] وَهٰذَا تَخْرِيجُ بَعْضِ الْمَشَايِخِ او دا د بعضي مشايخو تخريج ده وَيُصْرَفُ الِاسْتِثْنَاءُ عِنْدَهُمْ إِلَى التَّحَالُفِ او د هغو په نيز به استثناء د تحالف وطرف ته ګرځول کيږي [مطلب دا چي د هغو په نيز په متن کي ذکر سوې استثناء "إلا أن يرضى البائع...إلخ" د تحالف وطرف ته راجع کيږي] كَمَا ذَكَرْنَا لکه څرنګه چي موږ ذکر کړه وَقَالُوا: إِنَّ الْمُرَادَ مِنْ قَوْلِهِ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ "يَأْخُذُ الْحَيَّ وَلَا شَيْءَ لَهُ" مَعْنَاهُ: لَا يَأْخُذُ مِنْ ثَمَنِ الْهَالِكِ شَيْئًا أَصْلًا او دغه مشايخو ويلي دي: چي په جامع صغير کي د امام محمد رَحِمَهُ الله د دې قول "يأخذ الحيّ ولا شيء له" مراد او مطلب دا دی: چي بائع د هلاک سوي غلام له قيمت څخه بالکل هيڅ شی نه واخلي.

**اللغات**: ﴿الخرز﴾ له ډېر تلاش وروسته مو هم دا لفظ په دغه معنیٰ سره پیدا نه کړی، او ځینې شارحینو دا لفظ په حاء سره "حِرْز" ذکر کړی دی، خو دهغه هم دغه معنیٰ نه ده، ځکه چې د "خرز" خپله معنیٰ ده: کنډل او د "حرز" خپله معنیٰ ده: حفاظت کول، جمع کول، او پاته سوا ټکل او تخمین نو دهغه لپاره په عربي کې یو لفظ خَرْص استعمالیږي، کوم چې د نصر او ضرب له بابه راځي، ﴿یصرف﴾ د ضرب د باب مضارع مجهوله ده: گرځول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی پر مشتري دوه غلامان خرڅ کړي او مشتري پر هغو قبضه وکړي، بیا یو غلام هلاک سي او تر دې وروسته بائع او مشتري د ثمن په مقدار کې اختلاف وکړي، مثلاً بائع ووایي چې "ما پر تا دواړه غلامان په دوه زره درهمه خرڅ کړي دي" او مشتري ووایي چې "نه! بلکې په زر درهمه دې راکړي دي"، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به له دواړو څخه قسم نه اخیستل کیږي، لیکن که بائع د هلاک سوي غلام د ثمن په پرېښوولو راضي سي (چې زه د هلاک سوي غلام زر درهمه نه غواړم)، نو له دواړو څخه به قسم اخیستل کیږي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په جامع صغیر کې دغه حکم داسې ذکر سوی دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مشتري قول د قسم سره معتبر دی، مگر دا چې بائع د ژوندي (مابقي) غلام په اخیستلو او د هلاک سوي غلام له قیمت څخه په هیڅ نه اخیستلو راضي سي (چې زه د هلاک سوي غلام له زر درهمو څخه یو درهم هم نه غواړم)، د جامع صغیر او د قدوري د عبارتونو حاصل یو دی، بس فرق یې دا دی چې په جامع صغیر کې صرف د مشتري قسم ذکر سوی دی او په قدوري کې د عدم تحالف ذکر سوی دی (چې له دواړو څخه به قسم نه اخیستل کیږي)، او ښکاره خبره ده چې کله صرف له مشتري څخه قسم واخیستل سي نو همدا عدم تحالف دی.

**وقال أبویوسف إلخ**: په دې سلسله کې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې په ژوندي (مابقي) غلام کې به له دواړو عاقدَینو څخه قسم اخیستل کیږي او د دوی تر قسم اخیستلو وروسته به په دې غلام کې عقد (بیع) فسخ کول کیږي او د هلاک سوي غلام د ثمن په باره کې به د مشتري قول د قسم سره معتبر وي.

**وقال محمد إلخ**: د امام محمد رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې په مړه او ژوندي دواړو غلامانو کې به له عاقدَینو څخه قسم اخیستل کیږي، او تر قسم اخیستلو وروسته چې کله عقد فسخ کړی سي، نو ژوندی غلام به بائع ته واپس کیږي او د هلاک سوي (مړه) غلام به قیمت به ور کول کیږي. (یعني مشتري به ژوندی غلام هغه ته واپس کوي او د مړه غلام قیمت به ور کوي).

**د امام محمد دليل**: دا دی چي کله د پوره مبيع هلاکېدل له تحالف څخه مانع نه دي (يعني کله چي ټوله مبيع [مثلا دواړه غلامان] هلاک سي نو هم له دواړو عاقدَينو څخه قسم اخيستل کيږي). نو د مبيع يوه حصه (مثلا ديوه غلام) هلاکېدل به په درجه اولیٰ له تحالف څخه مانع نه وي، نو ځکه په مړه او ژوندي دواړو غلامانو کي به له عاقدَينو څخه قسم اخيستل کيږي.

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دی چي تحالف په دې وجه ممتنع دی چي مبيع هلاکه سوې ده (يعني تحالف د مبيع په هلاکېدلو سره ممنوع ګرځي)، لهذا څومره مبيع چي هلاکه سوې وي، هغومره به تحالف ممتنع وي، او څرنګه چي په پورتنۍ مسئله کي د مبيع نصف يعني يو غلام هلاک سوی دی. نو ځکه صرف په دې يوه غلام کي به تحالف ممتنع وي لېکن په ژوندي غلام کي به اوس هم تحالف جاري وي او د هلاک سوي غلام د ثمن په باره کي به د مشتري قول د قسم سره معتبر وي.

**د امام صاحب دليـــل**: دا دی چي پر مبيع د مشتري له قبضه کولو څخه وروسته تحالف خلاف القياس (په دې حديث "والسِّلْعَةُ قَائِمَةٌ بِعَيْنِهاَ...إلخ" سره) په هغه وخت کي ثابت دی کله چي مبيع موجوده وي، او مبيع د خپل ټولو اجزاو (دواړو غلامانو) مجموعې ته وايي، او څرنګه چي دلته د مبيع يو جزء (يو غلام) فوت سوی، نو ځکه مبيع باقي پاته نه سوه، ځکه چي د جزء انتفاء د کل انتفاء لره مستلزم وي، او کله چي مبيع باقي پاته نه سوه، نو ښکاره خبره ده چي په هغه کي به تحالف هم واجب نه وي.

ولأنه لايمكن التحالف إلخ: دويم دليل دا دی چي په ژوندي غلام کي تحالف ممکن نه دی مګر په دې توګه چي له ثمن څخه د هغه د حصې (د هغه د قيمت) اعتبار وکړی سي، او کله چي داسي ده نو د مړه او ژوندي دواړو غلامانو پر قيمت به د ژوندي غلام قيمت تقسيمول کيږي، نو تر تحالف وروسته به ژوندي غلام د بائع وطرف ته واپس کيږي او د مړه (هلاک سوي) غلام په حصه کي چي کوم قيمت راسي هغه به هم بائع ته ورکول کيږي، لېکن تاسو ته معلومه ده چي په داسي صورت کي قيمت په تخمين (اټکل) او اندازه سره معلوميږي، په يقيني توګه نه معلوميږي، نو ځکه د قيمت د تخميني کېدلو په وجه به د هلاک سوي غلام قيمت (ثمن) مجهول وي، او د ثمن د مجهول والي په صورت کي تحالف ناجائز دي، نو ځکه په دې حواله سره هم په پورتنۍ مسئله کي تحالف ناجائز دی.

ها!... که چيري بائع په دې خبره راضي سي چي زه د هلاک سوي غلام له ثمن (زر درهمو) څخه هيڅ شی نه غواړم، نو په دې صورت کي به ټوله ثمن د ژوندي غلام په مقابله کي راسي (يعني ټوله ثمن به د ژوندي غلام عوض وګرځي) نو ګواکي مبيع همدا يو غلام دی، او هلاک سوی غلام به له عقد (بيع)

څخه خارج سي، او څرنګه چي دا يو غلام موجود هم دی او د هغه ثمن هم معلوم دی (ځکه چي اوس ټوله ثمن د هغه په عوض کي دی)، نو ځکه په هغه کي به تحالف واجب وي.

**وهذا تخريج:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دغه کوم څه چي موږ د امام صاحب رَحِمَهُ الله د مذهب او دليل په باره کي ذکر کړل، دا ټوله د بعضي مشايخو د تخريج مطابق دي، او د هغو په نېز د متن دا استثناء "إلّا أن يرضى البائع إلخ" د تحالف وطرف ته راجع ده، يعني په پورتنی مسئله کي به تحالف نه کيږي، مګر په هغه صورت کي تحالف کېدای سي کله چي بائع د هلاک سوي غلام په قيمت پرېښوولو (نه اخيستلو) راضي سي. او دغه بعضي مشايخو دا هم ويلي دي چي په جامع صغير کي چي امام محمد رَحِمَهُ الله کوم دا خبره کړې ده "إلّا إن شاء البائعُ أن يأخذ العبدَ الحيّ ولا شيء له مِن قيمة الهالك"، د دې مطلب دا دی چي بائع د هلاک سوي غلام له ثمن څخه هيڅ نه واخلي يعني د هغه په پرېښوولو راضي سي.

## د "إلَّا أنْ يَرْضَى البَائِعُ" دويم تفسير او د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَقَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ: يَأْخُذُ مِنْ ثَمَنِ الْهَالِكِ بِقَدْرِ مَا أَقَرَّ بِهِ الْمُشْتَرِيْ او ځيني مشايخ فرمايي: چي بائع به د هلاک سوي غلام له ثمن څخه دومره قدر اخلي چي مشتري د هغه اقرار کوي وَإِنَّمَا لَا يَأْخُذُ الزِّيَادَةَ او زيا توب به نه اخلي وَعَلَى قَوْلِ هٰؤُلَاءِ يَنْصَرِفُ الِاسْتِثْنَاءُ إِلَى يَمِيْنِ الْمُشْتَرِيْ لَا إِلَى التَّحَالُفِ او د دغه مشايخو پر قول استثناء د مشتري د قسم وطرف ته راجع کيږي، نه د تحالف وطرف ته لِأَنَّهُ لَمَّا أَخَذَ الْبَائِعُ بِقَوْلِ الْمُشْتَرِيْ ځکه کله چي بائع د مشتري په قول [هغومره قدر ثمن] واخيستی فَقَدْ صَدَّقَهُ نو هغه د مشتري د قول تصديق وکړی فَلَا يُحَلَّفُ الْمُشْتَرِيْ نو ځکه له مشتري څخه به قسم نه اخيستل کيږي ثُمَّ تَفْسِيْرُ التَّحَالُفِ عَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ مَا بَيَّنَّاهُ فِي الْقَائِمِ بيا د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول د تحالف تفسير هغه دی کوم چي موږ د موجود [ژوندي] غلام په باره کي بيان کړی وَإِذَا حَلَفَا وَلَمْ يَتَّفِقَا عَلَى شَيْءٍ او کله چي دواړه عاقدين [بائع او مشتري] قسم واخلي او د ثمن پر مقدار متفق نه سي فَادَّعَى أَحَدُهُمَا الْفَسْخَ أَوْ كِلَاهُمَا او بيا له دوی دواړو څخه يو د فسخ دعویٰ وکړي يا دواړه د فسخ دعویٰ وکړي يُفْسَخُ الْعَقْدُ بَيْنَهُمَا نو د دوی په مينځ کي به عقد فسخ کول کيږي وَيَأْمُرُ الْقَاضِي

الْمُشْتَرِیَ بِرَدِّ الْبَاقِیْ وَقِیمَةِ الْهَالِكِ او قاضي به مشتري ته د باقي [ژوندي] غلام او د هلاک سوي غلام د قيمت واپس کولو حکم کوي وَاخْتَلَفُوا فِي تَفْسِيرِهِ عَلٰی قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله پر قول د تحالف په تفسير کي مشايخو اختلاف کړی دی وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ يُحَلَّفُ الْمُشْتَرِيَ بِاللهِ مَا اشْتَرَيْتُهُمَا بِمَا يَدَّعِيهِ الْبَائِعُ او صحيح دا ده: چي له مشتري څخه به [داسي] قسم اخيستل کيږي "په الله قسم! ما دا دواړه غلامان په هغومره ثمن نه دي رانيولي د کوم چي بائع دعویٰ کوي فَإِنْ نَكَلَ نو که مشتري له قسم څخه انکار وکړي لَزِمَهُ دَعْوَى الْبَائِعِ نو پر هغه به د بائع دعویٰ لازميږي وَإِنْ حَلَفَ او که هغه قسم واخلي [قسم وکړي] يُحَلَّفُ الْبَائِعُ بِاللهِ مَا بِعْتُهُمَا بِالثَّمَنِ الَّذِي يَدَّعِيهِ الْمُشْتَرِيَ نو له بائع څخه به [داسي] قسم اخيستل کيږي په الله قسم! ما دا دواړه غلامان په هغومره ثمن نه دي خرڅ کړي د کوم چي مشتري دعویٰ کوي" فَإِنْ نَكَلَ نو که بائع له قسم څخه انکار وکړي لَزِمَهُ دَعْوَى الْمُشْتَرِيَ نو پر هغه به د مشتري دعویٰ لازميږي وَإِنْ حَلَفَ او که بائع [هم] قسم واخلي [او انکار نه وکړي] يَفْسَخَانِ الْعَقْدَ فِي الْقَائِمِ نو دوی دواړه به په موجود [ژوندي] غلام کي عقد فسخ کوي وَيَسْقُطُ حِصَّتُهُ مِنَ الثَّمَنِ او د موجود غلام د ثمن حصه به [له مشتري څخه] ساقطيږي وَيَلْزَمُ الْمُشْتَرِيَ حِصَّةَ الْهَالِكِ او د هلاک سوي غلام د ثمن حصه به پر مشتري لازميږي وَيُعْتَبَرُ قِيمَتُهُمَا فِي الْانْقِسَامِ يَوْمَ الْقَبْضِ او د منقسم کېدلو [يعني د دواړو غلامانو د حصه را ايستلو او قيمت معلومولو] په باره کي به د دوی قيمت د قبضې د ورځي معتبر وي [يعني په دې باره کي د قبضې د ورځي قيمت معتبر دی] وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي قِيمَةِ الْهَالِكِ يَوْمَ الْقَبْضِ او که عاقدين د هلاک سوي غلام د قبضې د ورځي په قيمت کي اختلاف وکړي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْبَائِعِ نو د بائع قول معتبر دی وَأَيُّهُمَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ او په دوی کي چي کوم يو هم بيّنه پېش کړي تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ د هغه بيّنه به قبلول کيږي وَإِنْ أَقَامَاهَا او که دواړه بيّنه پېش کړي فَبَيِّنَةُ الْبَائِعِ أَوْلٰى نو د بائع بيّنه اولیٰ ده وَهُوَ قِيَاسُ مَا ذُكِرَ فِي بُيُوعِ الْأَصْلِ او دا د مبسوط په کتاب البيوع کي د ذکر سوي مسئلې د قياس مطابق دي اِشْتَرٰى عَبْدَيْنِ وَقَبَضَهُمَا [او هغه دا] چي يو سړی دوه غلامان رانيسي او پر دواړو قبضه وکړي ثُمَّ رَدَّ أَحَدَهُمَا بِالْعَيْبِ وَهَلَكَ الْآخَرُ

عِنْدَهُ بیا د عیب په وجه له هغه دواړو څخه یو غلام واپس کړي او بل غلام د ده [مشتري] سره هلاک سي يَجِبُ عَلَيْهِ ثَمَنُ مَا هَلَكَ عِنْدَهُ نو پر مشتري د هلاک سوي غلام ثمن [قیمت] واجبیږي وَيَسْقُطُ عَنْهُ ثَمَنُ مَا رَدَّهُ او د واپس کړی سوي غلام ثمن له هغه څخه ساقطیږي وَيَنْقَسِمُ الثَّمَنُ عَلَى قِيمَتِهِمَا او ثمن به د هغوی دواړو پر قیمت تقسیمیږي فَإِنْ اخْتَلَفَا فِي قِيمَةِ الْهَالِكِ بیا که عاقدین د هلاک سوي غلام په قیمت کي اختلاف وکړي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْبَائِعِ نو قول د بائع معتبر دی لِأَنَّ الثَّمَنَ قَدْ وَجَبَ بِاتِّفَاقِهِمَا ځکه چي ثمن د دواړو عاقدینو په اتفاق سره واجب سوی وو ثُمَّ الْمُشْتَرِي يَدَّعِي زِيَادَةَ السُّقُوطِ بِنُقْصَانِ قِيمَةِ الْهَالِكِ بیا مشتري د هلاک سوي غلام د قیمت کمولو په وجه د زائد ثمن د ساقطېدلو دعوىٰ کوي وَالْبَائِعُ يُنْكِرُهُ او بائع له دې څخه انکار کوي وَالْقَوْلُ لِلْمُنْكِرِ او قول د منکر معتبر وي وَإِنْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ او که دواړه بیّنه پېش کړي فَبَيِّنَةُ الْبَائِعِ أَوْلَى نو [په دې صورت کي] د بائع بیّنه اولیٰ ده لِأَنَّهَا أَكْثَرُ إِثْبَاتًا ظَاهِرًا ځکه د هغه بیّنه په ظاهره زیاته ثابتونکې ده لِإِثْبَاتِهَا الزِّيَادَةَ فِي قِيمَةِ الْهَالِكِ ځکه چي هغه د هلاک سوي غلام په قیمت کي زیاتوب ثابتوي وَهٰذَا الْفِقْهُ

او دا دیو فقه [او دیو راز] په وجه [یعني څرنګه چي د مبسوط په مذکوره مسئله کي د بیّنې د نشتوالي په صورت کي قسم هم د بائع معتبر دی او د مشتري او بائع دواړو له طرفه د بیّنې پېشولو په صورت کي بیّنه هم د بائع معتبره ده، نو د دې څه وجه ده؟ فرمایي چي په دې کي فقهي خبره یعني راز دا دی چي په قسمونو کي حقیت حال...] وَهُوَ أَنَّ فِي الْأَيْمَانِ تُعْتَبَرُ الْحَقِيقَةُ او هغه دا چي په قسمونو کي حقیقت حال معتبر وي لِأَنَّهَا تَتَوَجَّهُ عَلَى أَحَدِ الْعَاقِدَيْنِ او دا ځکه چي قسمونه د احد العاقدین وطرف ته متوجه کیږي وَهُمَا يَعْرِفَانِ حَقِيقَةَ الْحَالِ او عاقدین حقیقت حال پېژني [یعني هغوی په حقیقت واقف وي] فَبُنِيَ الْأَمْرُ عَلَيْهَا نو ځکه د قسم معامله پر حقیقت حال مبني سوه وَالْبَائِعُ مُنْكِرٌ حَقِيقَةً او بائع د دې حقیقت منکر دی فَلِهٰذَا كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو ځکه به د هغه قول معتبر وي وَفِي الْبَيِّنَاتِ يُعْتَبَرُ الظَّاهِرُ او په بیناتو [ګواهیو] کي د ظاهر حال [ظاهري حالت] اعتبار کیږي لِأَنَّ الشَّاهِدَيْنِ لَا يَعْلَمَانِ حَقِيقَةَ الْحَالِ ځکه چي ګواهان حقیقت حال نه پېژني فَاعْتُبِرَ الظَّاهِرُ فِي حَقِّهِمَا نو ځکه د دوی [دواړو ګواهانو] په حق کي به ظاهر حال

معتبر وي ﴿وَالْبَائِعُ مُدَّعٍ ظَاهِرًا﴾ او په ظاهره کې بائع مدعي دی ﴿فَلِهَذَا تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ أَيْضًا﴾ نو ځکه بیّنه به هم د هغه قبلول کيږي ﴿وَتَتَرَجَّحُ بِالزِّيَادَةِ الظَّاهِرَةِ﴾ او د ظاهري زياتوب په وجه به د بائع بیّنه راجح وي ﴿عَلَى مَا مَرَّ﴾ لکه [مخکې] چې تېر سوه ﴿وَهَذَا يُبَيِّنُ لَكَ مَعْنَى مَا ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ﴾ او دا ستا لپاره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قول هغه معنیٰ څرګندوي [ښکاره کوي] کوم چې موږ ذکر کړه.

**اللغات**: ﴿ثمن﴾ قيمت، ﴿ينصرف﴾ د انفعال د باب مضارع ده: ګرځېدل، راجع کېدل، ﴿يُفسّر﴾ د تفعيل له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: وضاحت کول، تشريح کول، ﴿نكل﴾ د نصر د باب ماضي ده، د ضرب او سمع له بابه هم راځي: له قسم څخه انکار کول (له قسم څخه پر شا کېدل)، ﴿نقصان﴾ د نصر د باب مصدر دی: کمېدل، حق کمول، لږول. (مصباح اللغات)

**تشريح**: مخکې ذکر سوه چې د "إلّا أن يرضى البائع إلخ" استثناء د بعضي مشايخو په نيز د تحالف وطرف ته راجع ده، او س په دې عبارت کې فرمايي چې د نورو بعضي مشايخو په نيز دا استثناء د مشتري د قسم وطرف ته راجع ده او د متن د عبارت مطلب دا دی چې بائع به ژوندی غلام اخلي او د هلاک سوي غلام له قيمت څخه به هغومره مقدار قيمت اخلي، د څومره مقدار چې مشتري اقرار کوي او د مشتري تر اقرار چې کوم مقدار زائد وي، هغه به نه اخلي، او په دې صورت کې به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز له مشتري څخه هم قسم نه اخيستل کيږي؛ ځکه کله چې بائع د هلاک سوي غلام له قيمت څخه د مشتري د اقرار کړه قيمت په اندازه واخلي، نو ګواکې بائع د مشتري تصديق وکړی، او کله چې بائع د مشتري تصديق وکړی، نو بيا دې ته ضرورت نسته چې له مشتري څخه قسم واخيستل سي؛ ځکه له مشتري څخه هغه وخت قسم اخيستل کيږي کله چې هغه د بائع د دعوې منکر وي، حالانکې دلته مشتري د هغه منکر نه دی، نو ځکه قسم به هم نه ځني اخيستل کيږي.

**ثم تفسير التحالف إلخ**: فرمايي: د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د تحالف تفسير هغه دی کوم چې موږ بيان کړی چې که عاقدين د ثمن پر مقدار متفق نه وي، نو له دواړو څخه به قسم اخيستل کيږي، او بائع به داسې قسم اخلي "په الله قسم! ما دا دواړه غلامان (پر مشتري) په زر درهمه نه دي خرڅ کړي" او مشتري به داسې قسم اخلي "په الله قسم! ما هغه په دوه زره نه دي رانيولي"، او تر قسم اخيستلو وروسته که چيري يو عاقد يا دواړه د فسخ دعویٰ وکړي، نو د دوی په مينځ کې به عقد (بيع) فسخ کول کيږي او قاضي به مشتري ته وايي چې "بائع ته خپل ژوندی غلام واپس کړه! او د هلاک سوي غلام قيمت ورکړه!".

واختلفوا إلخ: د دې حاصل دا دی چې دامام ابو یوسف رَحِمَهُ الله پر قول د تحالف په تفسیر کې که څه هم مشایخو اختلاف کړی دی، لېکن اصح او معتمد قول دا دی چې له مشتري څخه به داسې قسم اخیستل کیږي "په الله قسم! ما دا دواړه غلامان په هغومره ثمن نه دي رانیولي د کوم چې د بائع دعوی کوي"، نو که مشتري له قسم څخه انکار وکړي، نو پر هغه به د بائع دعوی لازمیږي، او که هغه قسم واخلي، نو بیا به له بائع څخه داسې قسم اخیستل کیږي "په الله قسم! ما دا دواړه غلامان په هغومره ثمن نه دي خرڅ کړي د کوم چې مشتري دعوی کوي"، نو که بائع له قسم څخه انکار وکړي، نو پر هغه به د مشتري دعوی لازمیږي، او که بائع هم قسم واخلي، نو په ژوندي غلام کې به دواړه عقدونه فسخ کول کیږي او له مشتري څخه به د هغه قیمت ساقطیږي او د هلاک سوي غلام قیمت به پر مشتري لازمیږي.

پاته سوه دا خبره چې د ژوندي او هلاک سوي غلام د حصهٔ ثمن را ایستلو (یعني د هغو د قیمت معلومولو) لپاره به د دواړو غلامانو د کومي ورځې د قیمت اعتبار کیږي، نو صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په دې باره کې د یوم القبض والا د قیمت اعتبار کیږي (یعني مشتري چې په کومه ورځ پر هغو قبضه کړې وي، په دې باره کې د هغه ورځې قیمت معتبر دی)، لېکن که چیري د هلاک سوي غلام د یوم القبض والا په قیمت کې عاقدین اختلاف وکړي او د یوه سره هم بیّنه نه وي، نو د بائع قول د قسم سره معتبر دی؛ ځکه مشتري چې د کوم ثمن اقرار کوي، پر هغه خو دواړه متفق دي لېکن بیا چې مشتري د هلاک سوي غلام قیمت کم ښیي او د کم قیمت اقرار کوي، نو ګواکي هغه دا دعوی کوي چې زما له اقرار کرده قیمت څخه زائد مقدار (زما څخه) ساقط دی، او بائع د دغه دعوې انکار کوي، او تاسو ته معلومه ده چې د منکر قول د قسم سره معتبر وي، نو ځکه په دې صورت کې به هم د منکر یعني د بائع قول د قسم سره معتبر وي.

او که چیري صرف یو عاقد پر خپله دعوی بیّنه پېش کړي، نو د هغه بیّنه اولی او معتبره ده، یعني د هغه بیّنه به قبلول کیږي او د هغه دعوی او قول معتبر دی؛ ځکه چې په بیّنه سره دعوی مضبوطیږي (مستحکم کیږي).

او که چیري دواړه پر خپله دعوی بیّنه پېش کړي، نو د بائع بیّنه اولی او معتبره ده، ځکه چې د بائع بیّنه د زیاتوب ثابتونکې ده (یعني هغه د هلاک سوي غلام قیمت زیات ثابتوي)، او کومه بیّنه چې د زیاتوب ثابتونکې وي، صرف هغه مقبوله او معتبره وي، ځکه چې بینات د اثبات لپاره وضع سوي دي (لکه مخکې چې ذکر سوه).

وهو قياس ما ذكر إلخ: فرمايي: د تحالف د تفسير په هكله د امام أبو يوسف رَحِمَهُ الله قول او د هغه له طرفه مذكوره تفريعات ټوله په مبسوط كې د ذكر سوو تفصيلاتو سره مطابق او موافق دي يعني د مبسوط په كتاب البيوع كې هم دغه ټوله څه بيان سوي دي، كوم چې دلته مذكور دي.

وهذا الفقه إلخ: فرمايي: په مبسوط كې چې كوم دا مسئله بيان سوې ده چې "كه په عاقدينو كې ديوه سره هم بيّنه نه وي نو د بائع قول د قسم سره معتبر دى او كه دواړه بيّنه پېش كړي نو هم د بائع بيّنه اولىٰ او معتبره ده"، په دې سلسله كې راز دا دى چې په قسمونو كې د حقيقت حال اعتبار كيږي؛ ځكه چې قسم د احد العاقدين وطرف ته متوجه كيږي، او عاقدين په حقيقت حال سره واقف وي، نو ځكه د قسم معامله به پر حقيقت مبني وي، او څرنگه چې بائع د ثمن د زياتوب ساقطېدلو منكر دى (يعني هغه وايي چې د مشتري له اقرار كرده قيمت څخه زائد مقدار له هغه څخه ساقط نه دى)، نو ځكه بائع د حقيقت منكر دى، او د منكر قول د قسم سره معتبر وي، نو ځكه بائع كوم چې منكر دى د هغه قول به د قسم سره معتبر وي. او په بيناتو (گواهيو) كې د ظاهر حال اعتبار كيږي او بائع د ظاهر حال يعني د ثمن د زياتوب دعوىٰ كوي، نو ځكه د دې فقهي قاعدې "مَنْ سَاعَدَهُ الظَّاهِرُ فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ" مطابق به هم د بائع قول معتبر وي، او د مخكې ذكر سوي ظاهري زياتوب پر بناء به د بائع بيّنه د مشتري له بيّنې څخه راجح وي.

وهذا يبيّن لك إلخ: فرمايي: په مبسوط كې چې كوم څه ذكر سوي دي، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قول بنياد پر هغه دى، او په هدايه كې ذكر سوې مسئله د همدې مبسوط پر مسئلې قياس كړى سوې ده.

## د اقاله كولو پر مهال د ثمن په مقدار كې د اختلاف كولو حكم

| |
|---|
| قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً وَقَبَضَهَا فرمايي: او كه څوك مينځه رانيسي او پر هغې قبضه وكړي ثُمَّ تَقَايَلَا بيا عاقدين [بائع او مشتري] اقاله وكړي [يعني بيع ماته كړي] ثُمَّ اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ [او] تر دې وروسته په ثمن كې اختلاف وكړي فَإِنَّهُمَا يَتَحَالَفَانِ نو دوى دواړه به قسم اخلي وَيَعُودُ الْبَيْعُ الْأَوَّلُ او اوله [مخكنى] بيع دوباره راگرځي وَنَحْنُ مَا أَثْبَتْنَا التَّحَالُفَ فِيهِ بِالنَّصِّ او په دغه [د اقالې] په صورت كې مورږ تحالف په نص سره نه دى ثابت كړى لِأَنَّهُ وَرَدَ فِي الْبَيْعِ الْمُطْلَقِ ځكه چې نص د بيع مطلق په باره كې وارد سوى دى وَالْإِقَالَةُ فَسْخٌ فِي حَقِّ الْمُتَعَاقِدَيْنِ او اقاله د عاقدينو په حق كې فسخ [د بيع فسخ كول] دي وَإِنَّمَا أَثْبَتْنَاهُ بِالْقِيَاسِ بلكې مورږ [په اقاله كې] تحالف په قياس سره ثابت |

کړی دی لِأَنَّ الْمَسْأَلَةَ مَفْرُوضَةٌ قَبْلَ الْقَبْضِ ځکه چي دا مسئله له قبضې څخه مخکي فرض کړل سوې ده وَالْقِيَاسُ يُوَافِقُهُ او قياس د دې موافق دی عَلىٰ مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سو وَلِهٰذَا نَقِيسُ الْإِجَارَةَ عَلَى الْبَيْعِ قَبْلَ الْقَبْضِ او په همدې وجه موږ اجاره پر قبل القبض بيع اله قبضې څخه مخکي پر بيع] قياسوو وَالْوَارِثَ عَلَى الْعَاقِدِ او وارث پر عاقد قياسوو وَالْقِيمَةَ عَلَى الْعَيْنِ فِيمَا إِذَا اسْتَهْلَكَهُ فِي يَدِ الْبَائِعِ غَيْرُ الْمُشْتَرِيْ او قيمت پر عَين شي قياسوو په هغه صورت کي کله چي مبيع له مشتري څخه بغير بل چا د بائع په قبضه کي ضايع کړې وي قَالَ: وَلَوْ قَبَضَ الْبَائِعُ الْمَبِيْعَ بَعْدَ الْإِقَالَةِ فرمايي: او که چيري تر اقاله کولو وروسته بائع پر مبيع قبضه وکړي فَلَا تَحَالُفَ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ❁ نو [بيا] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز تحالف واجب نه دی خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله لِأَنَّهُ يَرَى النَّصَّ مَعْلُولًا بَعْدَ الْقَبْضِ أَيْضًا ځکه چي امام محمد رَحِمَهُ الله تر قبضې وروسته هم نص معلول ګڼي.

**اللغات**: ﴿تقايلا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: اقاله کول، پښېمانه کېدل، د بائع او مشتري دواړو په خپل رضا سره بيع فسخ کول، ماتول (ختمول). ﴿يعود﴾ د نصر د باب مضارع ده: راګرځېدل (دوباره راګرځېدل)، عود کول، واپس راتلل. ﴿استهلکه﴾ د استفعال د باب ماضي ده: هلاکول، ضايع کول، بربادول. ﴿معلول﴾ د مفعول صيغه ده، له ضرب او نصر څخه راځي: علت والا، د علت خاوند.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی مېنځه رانيسي او پر هغې قبضه وکړي، بيا بائع او مشتري اقاله وکړي او بيع فسخ کړي (ماته کړي)، لېکن پر مبيع (مېنځي) د بائع له قبضه کولو څخه مخکي دواړه د ثمن په مقدار کي ختلاف وکړي، نو په دې صورت کي به له هر يوه څخه قسم اخيستل کيږي او کله چي دواړه قسم واخلي، نو اقاله ختميږي او کوم عقد (بيع) چي د دوی په مينځ کي سوې وه، هغه دوباره راګرځي. او پاته سو دا سوال چي په دې مسئله کي تحالف ولي واجب او ثابت کړی سوی دی، تحالف خو په مطلق بيع کي ثابت دی، نه په اقاله کي؛ ځکه چي اقاله خو د عاقدينو په حق کي فسخ البيع ده، نه بيع؟ (يعني په اقاله کولو سره د دوی بيع فسخ کيږي، او داسي نه ده چي هغه منعقد کيږي؟)، نو د دې سوال جواب دا دی چي دلته په نص نبوي سره تحالف نه دی ثابت کړی

❁ **القول الراجح**: قول الشيخين رَحِمَهُمَاالله، كما ذكر في الهندية (ج:۴، ص:۳۴)، وكذا في المنتقیٰ (ج:۳، ص:۳۶۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۷۶]

سوی، بلکي په قیاس سره ثابت کړی سوی دی، ځکه دا مسئله په هغه صورت کي فرض کړل سوې (وضع کړل سوې) ده چي تر اقاله کولو وروسته بائع پر مبیع قبضه نه ده کړي، او له قبضې څخه مخکي د تحالف ثبوت او وجوب د قیاس مطابق دی، او څرنګه چي په مطلق بیع کي قبل القبض تحالف د قیاس مطابق دی، نو ځکه په اقاله به کي هم قبل القبض تحالف د قیاس مطابق وي. په همدې وجه اجاره قبل القبض پر بیع قیاس کړل سوې ده، مثلاً که خالد و زید ته آس په کرایه ورکړي او بیا دوی د اُجرت په مقدار کي اختلاف وکړي (مثلا زید ووايي چي دا اُجرت مقدار یوه میاشت دی. او خالد ووايي چي نه! بلکي یو نیمه میاشت دی) او مستأجر یعني زید پر معقود علیه (اس) قبضه نه وي کړې، نو په دې صورت کي هم تحالف جاري کیږي (یعني له دواړو څخه به قسم اخیستل کیږي).

همدارنګه وارث پر عاقد قیاس کړی سوی دی، یعني که د بائع او مشتري وارثان د ثمن په مقدار کي اختلاف وکړي، او مشتري یا د هغه وارث پر مبیع قبضه نه وي کړې، نو په دې صورت کي هم (د قیاس په وجه) تحالف جاري کیږي؛ ځکه چي د قبل القبض اختلاف والا صورت دلته هم موجود دی.

همدارنګه قیمت پر عَین قیاس کړی سوی دی، یعني کله چي مبیع د بائع قبضه کي وي او هغه له مشتري څخه بغیر بل سړی ضایع کړي، او بیا ضایع کونکی سړی په ضمان (تاوان) کي د هغه مبیع قیمت ورکړي، نو دا قیمت د ضایع سوي مبیع قائم مقام کیږي، نو اوس که پر دغه قیمت د مشتري له قبضه کولو څخه مخکي بائع او مشتري د ضایع سوي مبیع د ثمن په مقدار کي اختلاف وکړي، نو په دې صورت کي هم تحالف جاري کیږي.

ولوقبض البائع إلخ: د دې حاصل دا دی چي که تر اقاله کولو وروسته بائع پر مبیع قبضه وکړي، نو په دې صورت کي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز تحالف نه جاري کیږي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي هم تحالف جاري کیږي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي په کوم نص سره چي تحالف ثابت سوی دی یعني "اذا اختلف المتبایعان والسلعة قائمة تحالفا وترادّا"، دا نص په انکار سره معلول دی (یعني په دې نص کي د تحالف علت دا ګرځول سوی دی چي هر عاقد د بل عاقد له دعوې څخه انکار وکړي)، او دا علت (یعني د عاقدَینو انکار) په دواړو صورتونو کي موجود دی، یعني برابره ده مشتري پر مبیع قبضه کړې وي، که نه وي (په دواړو صورتونو کي د عاقدَینو انکار موجود دی)، او کله چي علت په دواړو صورتونو کي موجود دی، نو ځکه تحالف به هم په دواړو صورتونو کي جاري کیږي.

او شيخين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې تحالف صرف په قبل القبض والا صورت کې جاري کيږي، لکه څرنګه چې دا حديث "والسلعة قائمة بعينها إلخ" پر دې ګواه دی. لهذا بعد القبض به د تحالف جاري کېدلو حکم کول داسې يې لکه پر دې حديث زياتوب کول، کوم چې په هيڅ حال کې هم صحيح نه دي. (احسن الهدايه)

## د بيع سَلَم په اقاله کې د اختلاف کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ أَسْلَمَ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ فِيْ كُرِّ حِنْطَةٍ فرمايي: او که څوک په يوه کُر غنمو کې لس درهمه د بيع سَلَم په توګه ورکړي ثُمَّ تَقَايَلَا بيا دواړه عاقدين اقاله وکړي ثُمَّ اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ تر دې وروسته دواړه په ثمن کې اختلاف وکړي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُسْلَمِ إِلَيْهِ نو قول د مسلم اليه معتبر دی وَلَا يَعُودُ السَّلَمُ او بيع سَلَم دوباره نه راګرځي لِأَنَّ الْإِقَالَةَ فِي بَابِ السَّلَمِ لَا تَحْتَمِلُ النَّقْضَ ځکه د سَلَم په باب کې اقاله د نقض [ماتېدلو] احتمال نه لري لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ ځکه چې اقاله د اسقاط [ساقطولو] له قبيلې څخه ده فَلَا يَعُودُ السَّلَمُ نو ځکه بيع سَلَم به دوباره نه راګرځي بِخِلَافِ الْإِقَالَةِ فِي الْبَيْعِ په خلاف په مطلق بيع کې د اقاله کولو أَلَا تَرَى أَنَّ رَأْسَ مَالِ السَّلَمِ لَوْ كَانَ عَرَضًا آيا ته نه ګورې! که چيرې د بيع سَلَم رأسُ المال يو سامان وي فَرَدَّهُ بِالْعَيْبِ بيا هغه [سامان] عيب په وجه واپس کړي وَهَلَكَ قَبْلَ التَّسْلِيمِ إِلَى رَبِّ السَّلَمِ او ربُ السَلَم ته له ورکولو څخه مخکې هغه د مسلم اليه په قبضه کې هلاک سي لَا يَعُودُ السَّلَمُ نو بيع سَلَم دوباره نه راګرځي وَلَوْ كَانَ ذٰلِكَ فِي بَيْعِ الْعَيْنِ او که چيرې دا صورت د عَين شي په بيع [مطلق بيع] کې پېښ سي يَعُودُ الْبَيْعُ نو بيع دوباره راګرځي دَلَّ عَلَى الْفَرْقِ بَيْنَهُمَا او همدا د بيع سَلَم او مطلق بيع په مينځ کې پر فرق دلالت کوي.

**اللغات:** ﴿أسلم﴾ د افعال د باب ماضي ده، د دې باب څو معناوي دي چې له هغه څخه يوه معنیٰ ده: بيع سَلَم کول، ﴿بيع سلم﴾ بيع الاجل بالعاجل، يعني ځنډمن شی د نغد شي په عوض کې خرڅول، مثلاً يو سړی (بائع) له يو چا څخه ثمن في الحاله واخلي او ديوې مياشتي پر قرض غنم پر خرڅ کړي چې غنم يوه مياشت وروسته درکوم. په بيع سَلَم کې ثمن ته رأسُ المال وايي، ثمن ورکونکي (مشتري) ته ربُ السَلَم وايي او خرڅونکي "غنم ورکونکي" (بائع) ته مسلم اليه وايي او په کوم شي کې چې بيع سَلَم وسي لکه دلته چې غنم دي، هغه ته "مسلم فيه" وايي، ﴿کُر﴾ دا په

عربو کې د يو غټې پيمانې (لوښي) نوم وو چې په هغه سره به غله پيمانه کېده، او د اوسني وخت په اعتبار سره يو کُر تقريباً (۲۵۴۷) کېلو کيږي. ﴿نقض﴾ د نصر د باب مصدر دی: ماتېدل. ﴿عَرَض﴾ او عَرْض: سامان، له دراهم او دنانيرو څخه بغير بل شی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که (مثلاً) زيد پر خالد د لس درهمو په عوض کې يو کُر غنم د بيع سَلم په توګه خرڅ کړي او ربُ السَلم يعني زيد و مسلم اليه (خالد) ته لس درهمه ورکړي، بيا دواړه اقاله وکړي او بيع سَلم فسخ کړي، تر دې وروسته دواړه د ثمن (رأس المال) په مقدار کې اختلاف وکړي، مثلاً مسلم اليه وايي چې رأسُ المال پنځه درهمه وو، او ربُ السَلم وايي چې لس درهمه وو (يعني ما تا ته لس درهمه درکړي وه)، نو په دې صورت کې د مسلم اليه قول معتبر دی؛ ځکه چې ربُ السَلم د رأسُ المال د زياتوب مدعي دی او مسلم اليه له هغه څخه منکر دی، او د يوه سره هم بيّنه نسته، نو ځکه د مسلم اليه قول به د قسم سره معتبر وي، او بيع سَلم (کوم چې د اقالې په وجه ختم سوه، هغه) دوباره نه راګرځي؛ ځکه د سَلم په باب کې اقاله د نقض (ماتېدلو) احتمال نه لري، ځکه چې د اقالې په ذريعه مسلم فيه ساقطول کيږي، حال دا چې د بيع سَلم د صحيح کېدلو لپاره دا ضروري ده چې مسلم فيه به د مسلم اليه پر ذمه پاته وي، لېکن کله چې په بيع سَلم کې اقاله وکړی سي، نو ښکاره خبره ده چې مسلم فيه به د مسلم اليه له ذمې څخه ساقط سي او بيع سَلم د همېشه لپاره ختم سي، نو ځکه د فقهي قاعدې "الساقطُ لا يعود" مطابق به دا بيع سَلم دوباره نه راګرځي.

د دې په خلاف په مطلق بيع کې چې کوم اقاله کيږي، هغه د نقض او فسخ احتمال لري؛ ځکه چې په مطلق بيع کې مبيع عَين وي (دَين نه وي). لهذا د اقالې په فسخ کولو سره مبيع بېرته د مشتري وطرف ته واپس کېدای سي، او کله چې مبيع د مشتري وطرف ته واپس راسي نو بيع به دوباره را وګرځي، همدا وجه ده که په بيع سَلم کې رأسُ المال سامان وي (دراهم او دنانير نه وي)، او بيا هغه سامان عيبداره وخيږي او د عيب په وجه قاضي د هغه د واپس کولو فيصله وکړي (يعني دا فيصله وکړي چې مسلم إليه دې هغه سامان ربُ السلم ته واپس ورکړي)، لېکن ربُ السَلم ته له ورکولو څخه مخکې هغه سامان د مسلم اليه په قبضه کې هلاک سي، نو دا بيع سَلم دوباره نه راګرځي، حالانکې که په مطلق بيع کې دا صورت پېښ سي، نو بيع دوباره راګرځي، او همدا د بيع سَلم او مطلق بيع په مينځ کې فرق دی.

## د مهر په مقدار کې د اختلاف کولو حکم او تفصيل

قَالَ: وَإِذَا اخْتَلَفَ الزَّوْجَانِ فِي الْمَهْرِ فرمايي: کله چې خاوند او ښځه په مهر کې اختلاف وکړي فَادَّعَى الزَّوْجُ أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا بِأَلْفٍ او خاوند دا دعویٰ وکړي چې ما د هغې سره په زر درهمه نکاح کړې ده وَقَالَتْ: تَزَوَّجْتَنِيْ بِأَلْفَيْنِ او ښځه وايي: چې تا زما سره په دوه زره درهمه نکاح کړې ده فَأَيُّهُمَا أَقَامَ

الْبَيِّنَةَ نو په دوی کي چي کوم يو بيّنه پېش کړي تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ د هغه بيّنه به قبلول کيږي لِأَنَّهُ نَوَّرَ دَعْوَاهُ بِالْحُجَّةِ ځکه چي هغه خپل دعویٰ په دليل سره منوره [او مضبوطه] کړه فَإِنْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ او که خاوند او ښځه دواړه بيّنه پېش کړي فَالْبَيِّنَةُ بَيِّنَةُ الْمَرْأَةِ نو [په دې صورت کي] د ښځي بيّنه معتبره ده لِأَنَّهَا تُثْبِتُ الزِّيَادَةَ ځکه چي د ښځي بيّنه زياتوب ثابتوي مَعْنَاهُ إِذَا كَانَ مَهْرُ مِثْلِهَا أَقَلَّ مِمَّا ادَّعَتْهُ د دې مطلب دا دی چي کله د ښځي مهر مثل د هغې له دعویٰ کړده مهر څخه کم وي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمَا بَيِّنَةٌ او که د دواړو سره بيّنه نه وي تَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به له دواو څخه قسم اخيستل کيږي وَلَا يُفْسَخُ النِّكَاحُ او نکاح به نه فسخ کول کيږي لِأَنَّ أَثَرَ التَّحَالُفِ فِي انْعِدَامِ التَّسْمِيَةِ ځکه چي د تحالف اثر د تسميه [مهر ټاکلو] په معدوم کېدلو کي دی وَأَنَّهُ لَا يُخِلُّ بِصِحَّةِ النِّكَاحِ او هغه د نکاح د صحت [صحيح کېدلو] لپاره مخل نه دي لِأَنَّ الْمَهْرَ تَابِعٌ فِيهِ ځکه چي مهر په نکاح کي تابع وي بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّ عَدَمَ التَّسْمِيَةِ يُفْسِدُهُ ځکه چي عدم تسميه [ثمن نه ټاکل (نه ذکر کول)] بيع فاسدوي عَلَىٰ مَا مَرَّ لکه مخکي چي تېر سو فَيُفْسَخُ نو ځکه بيع به فسخ کول کيږي وَلَٰكِنْ يُحَكَّمُ مَهْرُ الْمِثْلِ لېکن مهر مثل به حَکَم [فيصله کونکی] ګرځول کيږي [يعني فيصله به پر مهر مثل کيږي] فَإِنْ كَانَ مِثْلَ مَا اعْتَرَفَ بِهِ الزَّوْجُ أَوْ أَقَلَّ نو که مهر مثل دومره قدر وي د څومره قدر چي خاوند اقرار کړی وي يا تر هغه کم وي قُضِيَ بِمَا قَالَ الزَّوْجُ نو پر هغه مقدار به فيصله کيږي کوم چي خاوند ذکر کړی وي لِأَنَّ الظَّاهِرَ شَاهِدٌ لَهُ ځکه چي ظاهر حال د هغه لپاره ګواه دی وَإِنْ كَانَ مِثْلَ مَا ادَّعَتْهُ الْمَرْأَةُ أَوْ أَكْثَرَ او که مهر مثل دومره قدر وي د څومره قدر چي ښځي دعویٰ کړې وي يا تر هغه زيات وي قُضِيَ بِمَا ادَّعَتْهُ الْمَرْأَةُ نو پر هغه مقدار به فيصله کيږي د کوم چي ښځي دعویٰ کړې وي [په لنډه توګه دا چي په دې صورت کي به د ښځي پر دعویٰ کړده مقدار فيصله کيږي] وَإِنْ كَانَ مَهْرُ الْمِثْلِ أَكْثَرَ مِمَّا اعْتَرَفَ بِهِ الزَّوْجُ وَأَقَلَّ مِمَّا ادَّعَتْهُ الْمَرْأَةُ او که مهر مثل له هغه مقدار څخه زيات وي د کوم چي خاوند اقرار کړی وي او د ښځي له دعویٰ کړده مهر څخه کم وي قُضِيَ لَهَا بِمَهْرِ الْمِثْلِ نو د ښځي لپاره به د مهر مثل فيصله کيږي لِأَنَّهُمَا لَمَّا تَحَالَفَا ځکه کله چي خاوند او

ښځي قسم واخيستی لَمْ تَثْبُتِ الزِّيَادَةُ عَلٰى مَهْرِ الْمِثْلِ وَلَا الْحَطُّ عَنْهُ نو نه له مهر مثل څخه زائد مقدار ثابت سو او نه له هغه څخه کم قَالَ: ذَكَرَ التَّحَالُفَ أَوَّلًا ثُمَّ التَّحْكِيمَ صاحب د هدايي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي ماتن [امام قدوري رَحِمَهُ الله] اول وار تحالف ذکر کړی دی بيا يې تحکيم ذکر کړی دی وَهٰذَا قَوْلُ الْكَرْخِيِّ او دا د امام کرخي رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ مَهْرَ الْمِثْلِ لَا اعْتِبَارَ لَهُ مَعَ وُجُودِ التَّسْمِيَةِ ځکه چي د مهر مسمیٰ په وجود کي مهرِ مثل لره هيڅ اعتبار نه وي وَسُقُوطِ اعْتِبَارِهَا بِالتَّحَالُفِ او د هغه د اعتبار ساقطيدل په تحالف سره کيږي وَلِهٰذَا يُقَدَّمُ فِي الْوُجُوهِ كُلِّهَا نو په همدې په ټولو صورتونو کي تحالف مخکي کول کيږي وَيُبْدَأُ بِيَمِينِ الزَّوْجِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به [قاضي] د خاوند په قسم سره شروع کوي تَعْجِيلًا لِفَائِدَةِ النُّكُولِ د دې لپاره چي [له قسم څخه] د انکار کولو فايده ژر ښکاره سي كَمَا فِي الْمُشْتَرِي لکه څرنګه چي په مشتري کي [دا حکم] دی وَتَخْرِيجُ الرَّازِيِّ بِخِلَافِهِ او د امام ابو بکر رازي رَحِمَهُ الله تخريج [او تشريح] د دې په خلاف ده وَقَدِ اسْتَقْصَيْنَاهُ فِي النِّكَاحِ او په کتاب النکاح کي موږ دا په پوره تفصيل سره ذکر کړي دي وَذَكَرْنَا خِلَافَ أَبِي يُوسُفَ ❀ او [هلته] موږ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اختلاف هم ذکر کړی دی فَلَا نُعِيدُهُ لهذا اوس موږ دوباره نه راګرځوو وَلَوِ ادَّعَى الزَّوْجُ النِّكَاحَ عَلٰى هٰذَا الْعَبْدِ او که چيري خاوند دعویٰ وکړي چي نکاح پر دې غلام سوې وه وَالْمَرْأَةُ تَدَّعِيهِ عَلٰى هٰذِهِ الْجَارِيَةِ او ښځه دعویٰ وکړي چي پر دغه مينځې سوې وه فَهُوَ كَالْمَسْأَلَةِ الْمُتَقَدِّمَةِ نو دا د مخکنۍ مسئلې په څېر ده إِلَّا أَنَّ قِيمَةَ الْجَارِيَةِ إِذَا كَانَتْ مِثْلَ مَهْرِ الْمِثْلِ مګر دا چي کله د مينځې قيمت د مهرِ مثل سره برابر وي يَكُونُ لَهَا قِيمَتُهَا دُونَ عَيْنِهَا نو [په دې صورت کي] د ښځي لپاره د مينځې قيمت دی [يعني په دې صورت کي به ښځي ته عَين مينځه نه ورکول کيږي بلکي د مينځې قيمت به ورکول کيږي] لِأَنَّ تَمَلُّكَهَا لَا يَكُونُ إِلَّا بِالتَّرَاضِي ځکه چي د مينځې مالک کېدل [مالک جوړېدل] د مشتري او بائع دواړو له رضا څخه بغير نه ثابتيږي وَلَمْ يُوجَدْ او دلته رضا موجوده نه ده فَوَجَبَتِ الْقِيمَةُ نو ځکه به قيمت واجبيږي.

---

❀ القول الراجح: هو قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، وقدمرّ بيانه في كتاب النكاح.

**اللغات**: ﴿تزوجها﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: نکاح کول، واده کول. ﴿أقل﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: کمتر، ډېر کم. ﴿نوّر﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: منور کول، روښانه کول، څرګندول. ﴿تسمية﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: ټاکل، مقرر کول، ذکر کول (بیانول). ﴿یُحکّم﴾ د تفعیل د باب مضارع مجهوله ده: حَکَم جوړول (حَکَم ګرځول، فیصله کونکی (فیصله کُن) ګرځول). ﴿حطّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: کمول. ﴿تحالف﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو تربله قسم اخیستل (یو تربله تسم کول)، له دواړو څخه قسم اخیستل. ﴿تعجیل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: ژر کول، تلوار کول (یو کار په تېزي او تلوار سره کول). ﴿نکول﴾ د نصر د باب مصدر دی، د ضرب او سمع له بابه هم راځي: له قسم څخه انکار کول. ﴿تملّك﴾ د تفعّل د باب مصدر دیٰ: (دیو شي) مالک جوړېدل، مالک کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که خاوند او ښځه د مهر په مقدار کي اختلاف وکړي، مثلاً خاوند ووايي چي "ما زر درهمه مهر ټاکلی دی" او ښځه ووايي چي "تا دوه زره درهمه مهر ټاکلی دی"، نو د داسي اختلاف په صورت کي چي له خاوند او ښځي څخه کوم یو هم بیّنه پېش کړي، د هغه دعویٰ معتبره او مقبوله ده او د هغه په حق کي به فیصله کیږي؛ ځکه په بیّنه سره دعویٰ مضبوطه (مؤکده) او راجح وګرځېده. او که چیري دواړه بیّنه پېش کړي، نو د ښځي بیّنه به قبلول کیږي؛ ځکه د ښځي بیّنه د زیاتوب (زیات مهر) ثابتونکې ده، او بینات د اثبات لپاره وضع سوي دي (لکه مخکي چي ذکر سوه)، لېکن دا په یاد لرئ! چي د ښځي بیّنه به هغه وخت قبلول کیږي کله چي د ښځي مهرِ مثل د هغې له دعویٰ کړده مهر څخه کم وي، او که چیري د ښځي مهر مثل د هغې له دعویٰ کړده مهر سره برابر وي یا تر هغه زیات وي، نو په دې صورت کي به د خاوند بیّنه قبلول کیږي. (بنایه، عنایه)

وإن لم تكن لهما بيّنة إلخ: د دې حاصل دا دی چي که له خاوند او ښځي څخه یو هم بیّنه پېش نه کړی سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي په دې صورت کي به له هر یوه څخه پر خپله دعویٰ قسم اخیستل کیږي، لېکن په دغه تحالف سره نکاح نه فسخ کیږي؛ ځکه چي دا تحالف صرف د خاوند او ښځي د مهر دعویٰ له منځه وړي او د هغو دعویٰ معدوم کوي، او له دغه تحالف څخه وروسته نکاح بغیر له مهره پاتېږي، او د مهر نشتوالي د نکاح د صحت لپاره مانع نه دی (یعني بغیر له مهر ذکر کولو هم نکاح صحیح کیږي)، ځکه چي مهر په نکاح کي تابع وي او د هغه په نشتوالي سره نکاح نه فسخ کیږي، نو ځکه په دغه مسئله کي به نکاح نه فسخ کیږي، د دې په خلاف د بیع معامله ده، ځکه که په بیع کي ثمن ذکر نه کړی سي (نه وټاکل سي)، نو بیع فاسدیږي، لکه څرنګه چي په کتابُ البیوع

کي د دې پوره تفصيل تېر سو، لېکن په نکاح کي که مهر ذکر نه کړی سي (نه وټاکل سي)، نو نکاح نه فاسدېږي. اوس که چيري د ښځي مهرِ مثل د خاوند د بيان کرده مهر سره برابر وي يا تر هغه کم وي، نو خاوند چي کوم مقدار مهر بيانوي، هغه مقدار به واجبېږي؛ ځکه چي ظاهر حال د خاوند په حق کي ګواه دی او ظاهر حال چي د چا په حق کي ګواه وي، صرف د هغه قول معتبر وي (لکه څرنګه چي همدا فقهي قاعده ده: "الأَصْلُ أَنَّ مَنْ سَاعَدَهُ الظَّاهِرُ فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ")، نو ځکه دلته به هم د خاوند قول معتبر وي او هغه چي د څومره مهر اقرار کوي، صرف هغومره مهر به واجب وي.

او که چيري مهرِ مثل د ښځي د دعوىٰ کرده مهر سره برابر وي، يا تر هغه زيات وي، نو په دې صورت کي د ښځي قول معتبر دی او د هغې پر بيان کرده مهر به فيصله کيږي؛ ځکه چي اوس ظاهر حال د ښځي په حق کي ګواه دی.

وإن كان مهر المثل أكثر إلخ: فرمايي: که د ښځي مهرِ مثل د خاوند له اقرار کرده مهر څخه زيات وي لېکن د ښځي له اقرار کرده مهر څخه کم وي، نو په دې صورت کي به د ښځي لپاره د مهرِ مثل فيصله کيږي؛ ځکه کله چي دواړه قسم واخلي، نو بيا معامله معلق سوه، يعني نه له مهرِ مثل څخه زيات مقدار ثابتيږي او نه له هغه څخه کم مقدار ثابتيږي، نو ځکه صرف د مهرِ مثل فيصله به کيږي.

قال ذكر التحالف إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله په متن کي خو اولاً تحالف ذکر کړی دی او بيا يې په "وَلٰكِنْ يُحَكَّمُ مَهْرُ الْمِثْلِ" سره د مهرِ مثل د حَکَم جوړولو خبره کړې ده (يعني بيا يې ويلي دي چي پر مهرِ مثل به فيصله کيږي)، او د هغه دا تصريح د امام کرخي رَحِمَهُ الله د قول مطابق ده، ځکه چي د مهر مسمىٰ (ټاکل سوي مهر) په موجوديت کي مهرِ مثل ته هيڅ اعتبار نه وي، او په تحالف سره د مهر مسمىٰ اعتبار ساقطيږي، نو په دې وجه په ټولو صورتونو کي اول تحالف مخکي کړی سو، او د مهر مسمىٰ اعتبار ساقط کړی سو او بيا مهرِ مثل حَکَم وګرځول سو.

ويبدأ بيمين الزوج إلخ: فرمايي: په مهر کي د اختلاف کولو په صورت کي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز اول به له خاوند څخه قسم اخيستل کيږي، د دې لپاره چي ژر تر ژره د قسم فايده ښکاره سي او فيصله کول آسانه سي، لکه کله چي بائع او مشتري د ثمن په مقدار کي اختلاف وکړي، نو په دې صورت کي هم اول له مشتري څخه قسم اخيستل کيږي، همداسي به دلته هم اول له خاوند څخه قسم اخيستل کيږي.

او امام ابو بکر رازي رَحِمَهُ الله په دې سلسله کې د امام کرخي رَحِمَهُ الله مخالف دی، هغه اول مهرِ مثل حَکَم ګرځولی دی، يعني مهرِ مثل چې د چا په حق کې ګواه وي، د هغه په حق کې به فيصله کيږي، صاحب د هدايې فرمايي چې د امام ابو بکر رازي رَحِمَهُ الله استنباط موږ په کتاب النکاح کې په تفصيل سره بيان کړی دی، لهذا اوس د هغه راګرځولو ته ضرورت نسته.

ولو ادعى الزوج إلخ: فرمايي: که چيرې خاوند داسې ووايي چې "ما په مهر کې فلانکی غلام تاکلی وو" او ښځه ووايي چې "نه! بلکې په مهر کې فلانکۍ مينځه ټاکل سوې وه"، نو دا اختلاف هم د مخکني اختلاف په شان دی. يعني د امام کرخي رَحِمَهُ الله په نيز به په ټولو صورتونو کې تحالف کيږي او بيا به مهرِ مثل حَکَم ګرځول کيږي، او د امام ابو بکر رازي رَحِمَهُ الله په نيز به اول (په شروع، شروع کې) مهرِ مثل حَکَم ګرځول کيږي.

لېکن که چيرې د مينځې قيمت د مهرِ مثل په اندازه وي، نو ښځې ته به د مينځې قيمت ورکول کيږي، عَين مينځه به نه ورکول کيږي، ځکه چې پر عَين مينځه ملکيت حاصلېدل (يعني د هغې مالک جوړېدل) هغه وخت ممکن دي کله چې خاوند او ښځه دواړه په دې راضي وي، او دلته د خاوند رضا موجوده نه ده، نو ځکه به صرف د مينځې قيمت واجب وي، مينځه به واجب نه وي.

## په اجاره کې اختلاف او د قسم موقع

وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي الْإِجَارَةِ قَبْلَ اسْتِيفَاءِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ او که په اجاره کې مؤجر او مستأجر له معقود عليه [منفعت] حاصلولو څخه مخکې اختلاف وکړي تَحَالَفَا وَتَرَادَّا نو دواړه به قسم اخلي او اجاره به ردوي مَعْنَاهُ اخْتَلَفَا فِي الْبَدَلِ أَوْ فِي الْمُبْدَلِ او د دې معنیٰ دا ده چې دوی دواړه په اُجرت کې يا په مبدل [معقود عليه] کې اختلاف وکړي لِأَنَّ التَّحَالُفَ فِي الْبَيْعِ قَبْلَ الْقَبْضِ عَلَى وِفَاقِ الْقِيَاسِ ځکه چې په بيع کې تر قبضې مخکې تحالف [له دواړو څخه قسم اخيستل] د قياس مطابق دي عَلَى مَا مَرَّ لکه [مخکې] چې تېر سو وَالْإِجَارَةُ قَبْلَ قَبْضِ الْمَنْفَعَةِ نَظِيرُ الْبَيْعِ قَبْلَ قَبْضِ الْمَبِيعِ او پر منفعت له قبضه کولو [منفعت حاصلولو] څخه مخکې اجاره داسې ده لکه پر مبيع له قبضه کولو څخه مخکې بيع وَكَلَامُنَا قَبْلَ اسْتِيفَاءِ الْمَنْفَعَةِ او زموږ کلام [هم] له منفعت حاصلولو څخه مخکې دی فَإِنْ وَقَعَ الِاخْتِلَافُ فِي الْأُجْرَةِ نو که اختلاف په اُجرت کې واقع سوی وي يُبْدَأُ بِيَمِينِ الْمُسْتَأْجِرِ نو د مستأجر

په قسم به شروع کوي لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ لِوُجُوبِ الْأُجْرَةِ ځکه چې هغه د اُجرت واجبېدلو منکر دی وَإِنْ وَقَعَ فِي الْمَنْفَعَةِ او که په منفعت کې واقع سوی وي يَبْدَأُ بِيَمِينِ الْمُؤَجِّرِ نو د مؤجر په قسم به شروع کوي وَأَيُّهُمَا نَكَلَ او په دوی دواړو کې چې کوم یو له قسم څخه انکار وکړي لَزِمَهُ دَعْوَى صَاحِبِهِ نو پر هغه د خپل ملګري دعویٰ لازمیږي وَأَيُّهُمَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ او په دوی کې چې کوم یو بیّنه پېش کړي قُبِلَتْ نو د هغه بیّنه به قبلول کیږي وَلَوْ أَقَامَاهَا او که دواړه بیّنه پېش کړي فَبَيِّنَةُ الْمُؤَجِّرِ أَوْلَى إِنْ كَانَ الِاخْتِلَافُ فِي الْأُجْرَةِ نو د مؤجر بیّنه اولیٰ ده، که چیرې اختلاف په اُجرت کې وي وَإِنْ كَانَ فِي الْمَنَافِعِ او که اختلاف په منافعو کې وي فَبَيِّنَةُ الْمُسْتَأْجِرِ أَوْلَى نو د مستأجر بیّنه اولیٰ ده وَإِنْ كَانَ فِيهِمَا او که اختلاف په دواړو کې وي قُبِلَتْ بَيِّنَةُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِيمَا يَدَّعِيهِ مِنَ الْفَضْلِ نو له دوی څخه د هر یوه بیّنه به په هغه زیاتوب [زائد مقدار] کې قبلول کیږي د کوم چې هغه دعویٰ کوي نَحْوُ أَنْ يَدَّعِيَ هَذَا شَهْرًا بِعَشَرَةٍ وَالْمُسْتَأْجِرُ شَهْرَيْنِ بِخَمْسَةٍ مثلاً مؤجر دا دعویٰ وکړي چې ما [مثلاً دغه کور] د یوې میاشتې لپاره په لس درهمه درکړی دی او مستأجر دا دعویٰ وکړي چې د دوو میاشتو لپاره دې په پنځه درهمه راکړی دی [نو په دې صورت کې به د مؤجر بیّنه د لس درهمو په باره کې قبلول کیږي او د مستأجر بیّنه به د دوو میاشتو په باره کې قبلول کیږي] يُقْضَى بِشَهْرَيْنِ بِعَشَرَةٍ نو دوو میاشتو لپاره په لس درهمه [د اجارې] فیصله به کیږي [یعنې دا فیصله به کیږي چې مؤجر دا کور په لس درهمه د دوو میاشتو لپاره ورکړی دی].

**اللغات**: ﴿استیفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ترلاسه کول، اخیستل. ﴿تحالفا﴾ د تفاعل له بابه د تثنیه مذکر غائب صیغه ده: یو له بل څخه (یو تر بله) قسم اخیستل، یو تر بله قسم کول، له دواړو څخه قسم اخیستل. ﴿ترادّا﴾ د تفاعل له بابه مخکنۍ صیغه ده: یو تر بله واپس کول، ردول. ﴿مستأجر﴾ د استفعال د باب فاعل دی: په اُجرت اخیستونکی، په کرایه نیونکی. ﴿مؤجِر﴾ او مؤجِر: په اُجرت ورکونکی، په کرایه ورکونکی. ﴿بیّنة﴾ ګواهي، شواهد. ﴿اجرة﴾ اُجرت، کرایه. ﴿فضل﴾ اضافه، زیاتوب.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که خالد مثلاً یو کور زید ته په اُجرت (کرایه) ورکړي، بیا دوی د اُجرت په مقدار کې اختلاف وکړي یا د معقود علیه یعنې د منفعت (اوسېدلو) په مقدار کې اختلاف

وکړي او دا اختلاف له منفعت حاصلولو څخه مخکې واقع سي (یعني تر اوسه زید پر کور قبضه نه وي کړې او تر اوسه پکښې اوسېدلی نه وي چې په دې دوران کې د خالد او زید تر مینځ اختلاف واقع سي)، نو په دې صورت کې به له دواړو څخه قسم اخیستل کیږي او دا عقد اجاره به فسخ کول کیږي؛ ځکه چې په بیع کې پر مبیع د مشتري له قبضه کولو څخه مخکې د بائع او مشتري تر مینځ د اختلاف راتللو په صورت کې تحالف (له دواړو څخه قسم اخیستل) د قیاس مطابق دی لکه مخکې چې ذکر سوه، او پر منفعت له قبضه کولو څخه مخکې اجاره هم داسې ده لکه دغه بیع یعني بَیعٌ قَبْلَ قَبْضِ الْمَبِیْعِ. ځکه چې دواړه عقد معاوضه دي (یعني بیع او اجاره دواړه د معاوضې عقدونه دي. ځکه څرنګه چې په بیع کې د ثمن په عوض کې مبیع ور کول کیږي همداسې په اجاره کې هم یو شی د ثمن [کرایه] په عوض کې په کرایه ور کول کیږي)، او څرنګه چې زموږ بحث او کلام هم له منفعت حاصلولو څخه د مخکې اجارې په باره کې دی، نو ځکه دا اجاره د بیع قبل قبض المبیع سره مشابه ده، او د بیع قبل قبض المبیع په صورت کې د اختلاف کولو پر مهال تحالف جاري کیږي، نو ځکه په دې مسئله کې به هم تحالف جاري کیږي.

فإن وقع الاختلاف إلخ: فرمایي که د مؤجر (خالد) او مستأجر (زید) اختلاف د اُجرت په مقدار کې وي، نو اول به له مستأجر څخه قسم اخیستل کیږي، او که د دوی اختلاف په منفعت کې وي، نو بیا به اول له مؤجر څخه قسم اخیستل کیږي؛ ځکه چې په اول صورت کې مستأجر د منفعت د زیاتوب منکر دی، او د قسم د فایدې د ژر ښکاره کېدلو لپاره اول له منکر څخه قسم اخیستل کیږي. بیا که په دوی کې یو له قسم څخه انکار وکړي، نو پر هغه د خپل ملګري دعویٰ لازمیږي (مثلاً که مستأجر له قسم څخه انکار وکړي نو پر هغه د مؤجر دعویٰ لازمیږي)، همدارنګه که له دوی څخه یو بیّنه پېش کړي، نو د هغه بیّنه به قبلول کیږي او د بینې په وجه به صرف د هغه دعویٰ راجح او معتبره وي.

او که دواړه بیّنه پېش کړي، نو د اختلاف نوعیت ته به کتل کیږي چې اختلاف په اُجرت کې دی او که په منفعت کې؟، که اختلاف په اُجرت کې وي، نو د مؤجر بیّنه به قبلول کیږي، ځکه چې د هغه بیّنه د اُجرت زیاتوب (زیات اُجرت) ثابتوي، او بینات د اثبات لپاره وضع سوي دي، لهذا د کوم یوه بیّنه چې د زیاتوب (یعني د زیات اُجرت) مثبته وي، صرف هغه به معتبره وي. او که چیري اختلاف په منفعت کې وي، نو د مستأجر بیّنه به قبلول کیږي؛ ځکه چې د هغه بیّنه د منفعت زیاتوب ثابتوي. او که چیري په اُجرت او منفعت دواړو کې اختلاف وي، نو د هر یوه بیّنه به په هغه زیاتوب کې قبلول کیږي د کوم چې هغه دعویٰ کوي، مثلاً که مؤجر ووایي چې "ما دا کور تا ته په لس درهمه د یوې میاشتې لپاره په کرایه درکړی دی" او مستأجر ووایي چې "تا ما ته دا کور په پنځه درهمه د دوو میاشتو لپاره په کرایه راکړی دی"، نو څرنګه چې د مستأجر په دعویٰ کې دوې میاشتې زیاتې

دي او د مؤجر په دعوىٰ کي لس درهمه زيات دي، نو ځکه قاضي به دا فيصله کوي چي مؤضر دا کور په لس درهمه د دوو مياشتو لپاره په کرايه ورکړی دی.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: وَإِنِ اخْتَلَفَا بَعْدَ الِاسْتِيفَاءِ فرمايي: او که له معقود عليه [منفعت] حاصلولو څخه وروسته دواړه اختلاف وکړي لَمْ يَتَحَالَفَا نو دواړه به قسم نه اخلي وَكَانَ الْقَوْلُ قَوْلَ الْمُسْتَأْجِرِ او قول به د مستأجر معتبر وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ظَاهِرٌ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز خو دا ښکاره دي لِأَنَّ هَلَاكَ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ يَمْنَعُ التَّحَالُفَ عِنْدَهُمَا ځکه چي د دوی په نيز د معقود عليه ضايع کېدل [معدوم کېدل] تحالف نه منع کوي وَكَذَا عَلَى أَصْلِ مُحَمَّدٍ او همدارنګه د امام محمد رَحِمَهُ الله پر اصل هم [ښکاره] دي لِأَنَّ الْهَلَاكَ إِنَّمَا لَا يَمْنَعُ عِنْدَهُ فِي الْبَيْعِ لِمَا أَنَّ لَهُ قِيمَةً تَقُومُ مَقَامَهُ ځکه چي [د معقود عليه] هلاکېدل د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز په دې وجه تحالف نه منع کوي چي د مبيع قيمت د مبيع قائم مقام کيږي [په بله وينا دا چي: د معقود عليه په هلاکېدلو سره د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز په بيع کي د تحالف نه ممتنع کېدل په دې وجه دي چي د مبيع قيمت د بيع قائم مقام وي] فَيَتَحَالَفَانِ عَلَيْهَا نو ځکه [په بيع کي] به دوی دواړه پر اُجرت قسم اخلي وَلَوْ جَرَى التَّحَالُفُ هٰهُنَا وَفُسِخَ الْعَقْدُ او که چيري دلته [په اجاره کي] تحالف جاري سي او عقد فسخ کړی سي فَلَا قِيمَةَ نو [منافعو لره] هيڅ قيمت نه پاتيږي [يعني په دې صورت کي منفعت (معقود عليه) بلا قيمته پاتيږي] لِأَنَّ الْمَنَافِعَ لَا تَتَقَوَّمُ بِنَفْسِهَا ځکه چي منافع بذات خود نه قائميږي بَلْ بِالْعَقْدِ بلکي په عقد سره قائميږي وَتَبَيَّنَ أَنَّهُ لَا عَقْدَ او دا به ښکاره سي چي عقد نسته وَإِذَا امْتَنَعَ او کله چي تحالف ممتنع سو فَالْقَوْلُ لِلْمُسْتَأْجِرِ مَعَ يَمِينِهِ نو د مستأجر قول به د قسم سره معتبر وي لِأَنَّهُ هُوَ الْمُسْتَحَقُّ عَلَيْهِ ځکه چي هغه مدعىٰ عليه دی.

**اللغات**: «تبيّن» د تفعّل د باب ماضي ده: څرګندېدل، واضح کېدل، ښکاره کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که په عقد اجاره کي له منفعت حاصلولو څخه وروسته د مؤجر او مستأجر تر مينځ اختلاف واقع سي (مثلاً مستأجر د دوو مياشتو لپاره کور په کرايه نيولی وي، بيا مستأجر په هغه کي پوره دوې مياشتي و اوسيږي او تر دې وروسته د هغه او مؤجر تر مينځ اختلاف راسي)، نو په دې صورت کي به له دواړو څخه قسم نه اخيستل کيږي، بلکي په دې صورت کي د مستأجر قول د قسم سره

معتبر دی (یعني صرف له مستأجر څخه به قسم اخیستل کیږي او کله چي قسم واخلي، نو د هغه قول معتبر او مقبول دی)؛ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي دا د عدم تحالف حکم یعني له دواړو څخه د قسم نه اخیستلو حکم د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز ښکاره دی، ځکه چي د هغو په نېز د معقود علیه په نشتوالي (معدوم کېدلو) سره تحالف ممتنع کیږي، او په دې مسئله کي معقود علیه منفعت دی او منفعت حاصل سوی دی نو ځکه هغه معدوم سو (ختم سو)، لهذا تحالف به هم ممتنع او معدوم ګرځي او له مؤجر او مستأجر دواړو څخه به قسم نه اخیستل کیږي.

او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په څیر د امام محمد رَحِمَهُ الله پر اصل هم د تحالف ممتنع کېدل ښکاره دي؛ ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د تحالف نه ممتنع کېدل په دې وجه دي چي د مبیع قیمت د مبیع قائم مقام کیږي او که چیري مبیع (معقود علیه) معدوم سي نو بیا له دواړو عاقدینو څخه د مبیع پر قیمت قسم اخیستل کیږي، لېکن که په عقد اجاره کي له دواړو عاقدینو څخه قسم واخیستل سي او اجاره فسخ کړی سي، نو ښکاره خبره ده چي منافعو لره به هیڅ قیمت نه وي؛ ځکه چي منافع بذات خود قائم نه وي، بلکي په عقد اجاره سره قائم وي، لهذا کله چي اجاره فسخ کړی سي، نو ښکاره به سي چي عقد اجاره باقي پاته نه سو، او کله چي عقد اجاره ختم سو، نو نه به د اجارې منفعت باقي پاته سي او نه به د هغه قیمت موجود سي، او کله چي منفعت او قیمت دواړه معدوم دي، نو ښکاره خبره ده چي تحالف به هم معدوم ګرځي او اوس به د قسم سره د مستأجر قول معتبر وي؛ ځکه چي همدا مستأجر مدعیٰ علیه دی او صرف پر هغه استحقاق ثابت سوی دی، او دا خبره تسلیم سوې ده چي د اختلاف کولو پر مهال د بیني د نشتوالي په صورت کي د قسم سره د مدعیٰ علیه قول معتبر وي، نو ځکه په پورتنۍ مسئله کي به هم د قسم سره د مدعیٰ علیه یعني د مستأجر قول معتبر وي.

## د پورتنۍ مسئلې یو بل صورت

وَإِنِ اخْتَلَفَا بَعْدَ اسْتِيفَاءِ بَعْضِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ او که له څه معقود علیه [څه منفعت] حاصلولو څخه وروسته دواړه اختلاف وکړي تَحَالَفَا نو دواړه به قسم اخلي وَفُسِخَ الْعَقْدُ فِيمَا بَقِيَ او په باقي حصه کي به عقد اجاره فسخ کول کیږي وَكَانَ الْقَوْلُ فِي الْمَاضِي قَوْلَ الْمُسْتَأْجِرِ او د تېر سوي وخت په باره کي به د مستأجر قول معتبر وي لِأَنَّ الْعَقْدَ يَنْعَقِدُ سَاعَةً فَسَاعَةً ځکه چي عقد اجاره په کراره، کراره [په لږ لږ سره] منعقد کیږي فَيَصِيرُ فِي كُلِّ جُزْءٍ مِنَ الْمَنْفَعَةِ كَأَنَّ ابْتِدَاءَ الْعَقْدِ عَلَيْهَا نو د منفعت په هر جزء کي به عقد داسي وګرځي ګواکي پر هغه [یعني د منفعت پر هر جزء] نوی عقد وارد سوی دی

بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّ الْعَقْدَ فِيهِ دَفْعَةً وَاحِدَةً ځکه چي په بيع کي په يوه ځل عقد منعقد کيږي فَإِذَا تَعَذَّرَ فِي الْبَعْضِ لهذا کله چي په څه حصه کي فسخ ناممکن وګرځي تَعَذَّرَ فِي الْكُلِّ نو په ټوله حصه [ټوله مبيع] کي به ناممکن وګرځي.

**اللغات**: ﴿ساعةً فساعةً﴾ ګړي په ګړي، په کراره، کراره. ﴿دفعة﴾ په يوه ځل، په يوه ګړي، په يوه وار. ﴿تعذر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: ناممکن کېدل، مشکل کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که له څه منفعت حاصلولو څخه وروسته (يعني د منفعت د يوه جزء [څه حصې] تر حاصلولو وروسته) د مؤجر او مستأجر تر مينځ اختلاف واقع سي، نو په دې صورت کي به له دواړو څخه قسم اخيستل کيږي، او تر قسم اخيستلو وروسته به په ما بقي حصه کي (د را روان وخت لپاره) عقد اجاره فسخ کول کيږي، او کوم وخت چي تېر سوی دی، د هغه په باره کي د مستأجر قول معتبر دی؛ ځکه چي عقد اجاره په يوه ځل ټوله نه منعقد کيږي، بلکي په کراره، کراره منعقد کيږي، يعني کله چي هم د منفعت يو، يو جزء او حصه حاصلول کيږي، نو د هغه سره سم عقد اجاره هم ثابتيږي او د منفعت په هر، هر جزء کي نوی عقد واردیږي، نو په دې حواله سره چي کوم اختلاف له څه منفعت حاصلولو څخه وروسته واقع سي، هغه داسي دی لکه تر منفعت حاصلولو مخکي اختلاف واقع کېدل، او تر منفعت حاصلولو مخکي د اختلاف واقع کېدلو په صورت کي تحالف جاري کيږي، نو ځکه په پورتني صورت کي به هم تحالف جاري کيږي يعني له دواړو څخه به قسم اخيستل کيږي او په مابقي حصه کي به عقد اجاره فسخ کول کيږي او کوم منافع چي حاصل سوي دي، د هغه په باره کي به د مستأجر قول د قسم سره معتبر وي.

بخلاف البيع إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي بيع له اجارې څخه جلا ده؛ ځکه په بيع کي په يوه ځل عقد منعقد کيږي، لهذا که په بيع کي مشتري پر څه مبيع (د مبيع پر څه حصه) قبضه وکړي او هغه د مشتري سره هلاکه او ضايع سي، نو ښکاره خبره ده چي په دغه څه مبيع کي د بيع فسخ کول ناممکن سوه، او کله چي په بعض (څه حصه) کي د بيع فسخ ناممکن سوه، نو په کل کي به هم فسخ ناممکن وي؛ ځکه په بيع کي ټوله عقد په يوه ځل منعقد کيږي (په کراره، کراره نه منعقد کيږي)، او کله چي فسخ ناممکن ده، نو تحالف به هم ناممکن وي؛ ځکه چي تحالف د همدې فسخ لپاره واجبيږي.

## په بدلِ کتابت کي د اختلاف کولو پر مهال به قسم له چا څخه اخيستل کيږي؟

قَالَ: وَإِذَا اخْتَلَفَ الْمَوْلَى وَالْمُكَاتَبُ فِي مَالِ الْكِتَابَةِ فرمايي: او کله چي مالک او مکاتب د کتابت په مال [بدلِ کتابت] کي اختلاف وکړي لَمْ يَتَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به دواړه قسم نه اخلي وَقَالَا[●]: يَتَحَالَفَانِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي دواړه به قسم اخلي وَتُفْسَخُ الْكِتَابَةُ او کتابت به فسخ کول کيږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول [هم] دی لِأَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ يَقْبَلُ الْفَسْخَ ځکه چي کتابت داسي عقدِ معاوضه دی کوم چي فسخ قبلوي فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ نو هغه د بيع سره مشابه سو وَالْجَامِعُ أَنَّ الْمَوْلَى يَدَّعِي بَدَلًا زَائِدًا يُنْكِرُهُ الْعَبْدُ او جامع علت دا دی چي مالک د داسي زائد بدل [زيات بدلِ کتابت] دعوىٰ کوي چي غلام د هغه انکار کوي وَالْعَبْدُ يَدَّعِي اسْتِحْقَاقَ الْعِتْقِ عَلَيْهِ عِنْدَ أَدَاءِ الْقَدْرِ الَّذِي يَدَّعِيهِ او غلام پر خپل مالک د آزادۍ د مستحق کېدلو دعوىٰ کوي [چي زه د آزادۍ مستحق يم] د دومره مقدار د اداء کولو پر مهال د کوم چي هغه دعوىٰ کوي وَالْمَوْلَى يُنْكِرُهُ حال دا چي مالک د دې انکار کوي فَيَتَحَالَفَانِ نو ځکه دواړه به قسم اخلي كَمَا إِذَا اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ لکه هغه صورت کي [چي دواړه قسم اخلي] کله چي دواړه په ثمن کي اختلاف وکړي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْبَدَلَ مُقَابَلٌ بِفَكِّ الْحَجْرِ فِي حَقِّ الْيَدِ وَالتَّصَرُّفِ لِلْحَالِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي بدلِ کتابت د قبضې او د في الحاله تصرف په حق کي د ممانعت [بنديز] ليري کولو مقابل دی وَهُوَ سَالِمٌ لِلْعَبْدِ او دا د غلام لپاره سالم دي وَإِنَّمَا يَنْقَلِبُ مُقَابَلًا بِالْعِتْقِ عِنْدَ الْأَدَاءِ او بدل کتابت د اداء کولو په وخت کي د عتق مقابل ګرځي فَقَبْلَهُ لَا مُقَابَلَةَ نو د هغه تر اداء کولو مخکي مقابله نسته ايعني: نو د بدل کتابت تر اداء کولو مخکي هغه د عتق مقابل نه دی] فَبَقِيَ اخْتِلَافًا فِي قَدْرِ الْبَدَلِ لَا غَيْرُ نو ځکه [اوس] صرف د بدل کتابت په مقدار کي اختلاف باقي پاته سو فَلَا يَتَحَالَفَانِ نو ځکه به دواړه قسم نه اخلي.

**اللغات**: ﴿لم يتحالفا﴾ د تفاعل له بابه د جحد صيغه ده: يو له بل څخه قسم اخيستل (يو تر بله قسم کول)، له دواړو څخه قسم اخيستل. ﴿الثمن﴾ قيمت. ﴿ينقلب﴾ د انفعال د باب مضارع ده: اوښتل، ګرځېدل.

---

● القول الراجح: قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله، كما ذكر في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۳۶۶)، ونتائج الأفكار (ج:۷، ص:۲۱۹). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۷۸]

**تشريح : مسئله :** دا ده که مالک (مولیٰ) او د هغه مکاتب غلام د بدل کتابت په مقدار کي اختلاف وکړي، مثلاً مالک ووايي چي "بدل کتابت پنځه سوه درهمه وو" او غلام ووايي چي "درې سوه درهمه وو"، نو په دې اختلاف کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تحالف نسته بلکي د قسم سره د مکاتب قول معتبر دی (يعني صرف له مکاتب څخه به قسم اخيستل کيږي او کله چي قسم واخلي، نو د هغه قول معتبر دی)، ليکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي له مالک او غلام دواړو څخه به قسم اخيستل کيږي او تر قسم اخيستلو وروسته به عقد کتابت فسخ کول کيږي، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول هم دی.

**د صاحبينو دليل :** دا دی چي عقد کتابت يو داسي عقد دی کوم چي فسخ قبلوي، او څرنګه چي عقد بيع هم فسخ قبلوي، نو ځکه عقد کتابت د عقد بيع سره مشابه سو، او که په بيع کي د بائع او مشتري تر مينځ د ثمن په مقدار کي اختلاف راسي، نو له عاقدينو څخه قسم اخيستل کيږي، لهذا که په عقد کتابت کي د مالک او مکاتب تر مينځ د بدل کتابت په مقدار کي اختلاف راسي، نو له دوی څخه به هم قسم اخيستل کيږي؛ ځکه چي مالک د زائد بدل (زيات بدل کتابت) مدعي دی او غلام له دې څخه منکر دی، لهذا اوس د فيصلې يوازيني لاره تحالف دی، نو ځکه به له دواړو څخه قسم اخيستل کيږي.

**د امام صاحب دليل :** دا دی چي بدل کتابت في الحاله د عتق (آزادېدلو) مقابل نه دی بلکي د هغه ممانعت (بنديز) د ليري کولو او ختمولو مقابل دی کوم چي د قبضې او تصرف په سلسله کي مکاتب لره حاصل سوی دی، او د قبضې او تصرف ممانعت د مکاتب په حق کي معدوم دی، ځکه چي د مکاتب مالک هم د هغه په مکاتب کېدلو راضي دی، نو ځکه بدل کتابت في الحاله د همدې شي (يعني د تصرّف د ممانعت ليري کولو) مقابل دی او د عتق مقابل نه دی، ځکه بدل کتابت خو هغه وخت د عتق مقابل ګرځي، کله چي مکاتب بدل کتابت اداء کړي، او مکاتب اوس ګړی بدل کتابت نه اداء کوي، لنډه دا چي کله دا شی يعني د تصرف د ممانعت ليري کېدل د بدل کتابت مقابل دي او هغه مکاتب لره حاصل دی، نو اوس د هغه او د مالک اختلاف صرف د بدل کتابت په مقدار کي سو، او په دې اختلاف کي مالک د زيات بدل کتابت مدعي دی او غلام پر هغه د هيڅ شي مدعي نه دی بلکي هغه د دې زائد مقدار منکر دی، لهذا کله چي يو مدعي دی او بل يو منکر دی، نو تحالف به څنګه واجب سي، تحالف خو په هغه صورت کي واجبيږي، کله چي دواړه منکر (انکار کونکي) وي، نو ځکه دلته به تحالف واجب نه وي، بلکي کوم يو چي منکر دی يعني مکاتب، صرف د هغه قول به د قسم سره معتبر وي.

## د ښځې او خاوند تر مینځ د کورني سامان په هکله د اختلاف واقع کېدلو حکم

قَالَ: وَإِذَا اخْتَلَفَ الزَّوْجَانِ فِي مَتَاعِ الْبَيْتِ فرمايي: کله چي خاوند او ښځه د کور په سامان کي اختلاف وکړي فَمَا يَصْلُحُ لِلرِّجَالِ نو کوم شيان چي د خلکلو لايق [وړ] وي فَهُوَ لِلرَّجُلِ نو د هغه د سړي [خاوند] لپاره دي كَالْعِمَامَةِ لكه لنكوټه لِأَنَّ الظَّاهِرَ شَاهِدٌ لَهُ ځکه چي ظاهر حال د هغه لپاره گواه دی وَمَا يَصْلُحُ لِلنِّسَاءِ او کوم شيان چي د ښځو لايق وي فَهُوَ لِلْمَرْأَةِ نو هغه د ښځي لپاره دي كَالْوِقَايَةِ لکه د پوړني سربند لِشَهَادَةِ الظَّاهِرِ لَهَا ځکه چي ظاهر حال د هغې لپاره گواه دی وَمَا يَصْلُحُ لَهُمَا كَالْآنِيَةِ او کوم شيان چي د دواړو لايق وي لکه لوښي فَهُوَ لِلرَّجُلِ نو هغه د سړي لپاره دي لِأَنَّ الْمَرْأَةَ وَمَا فِي يَدِهَا فِي يَدِ الزَّوْجِ ځکه ښځه او کوم څه چي د هغې په قبضه کي وي هغه ټوله د خاوند په قبضه کي دي وَالْقَوْلُ فِي الدَّعَاوَى لِصَاحِبِ الْيَدِ او په دعواوو [دعوه گانو] کي د قابض قول معتبر وي بِخِلَافِ مَا يَخْتَصُّ بِهَا په خلاف د هغه شيانو کوم چي د ښځو سره مختص وي لِأَنَّهُ يُعَارِضُهُ ظَاهِرٌ أَقْوَى مِنْهُ ځکه چي [په دې صورت کي] د خاوند د قبضې د ظاهر حال سره داسي ظاهر حال معارض دی کوم چي تر هغه زيات قوي دی وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ الِاخْتِلَافُ فِي حَالِ قِيَامِ النِّكَاحِ أَوْ بَعْدَمَا وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ او په دې کي هيڅ فرق نشته چي دا اختلاف د نکاح د بقاء په حالت کي وي يا له فرقت [طلاق] واقع کېدلو څخه وروسته وي.

**اللغات:** ﴿متاع﴾ سامان، ﴿وقاية﴾ د دې لفظ څو معناوي دي: يو دا چي "وقايه" هر هغه شي ته وايي کوم چي د بل شي د حفاظت ذريعه وي، او صاحب د معجم يې داسي تعريف کړی دی: هغه ټوکر کوم چي يې ښځه د نقاب د پاسه اچوي چي د هغه په ذريعه له يخ او گرمۍ څخه ځان وساتي (معجم لغة الفقهاء)، او د هدايې په حاشيه کي يې داسي تعريف سوی دی: هغه څه کوم چي يې ښځه (د پتنۍ په څير) پر خپل سر شاوخوا تړي، او دې ته ځکه "وقايه" وايي چي دا پوړنی له شوه کېدلو څخه ساتي، نو په دې اعتبار سره د "وقايه" مختصره معنیٰ ده "د پوړني سربند"، ﴿آنية﴾ لوښي، ﴿يد﴾ لاس، مراد ځني قبضه ده، ﴿فرقة﴾ جدايي، عليحدگي.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چي که د خاوند او ښځي ترمينځ د کورني سامان په هکله اختلاف راسي او په دوی کي هريو پر هر سامان خپله دعویٰ وکړي (چي دا هر سامان زما دی)، نو

فیصله به داسي کیږي چي کوم شیان د خاوند لایق وي یعني صرف نارینه کس هغه استعمالوي لکه څادر (پټو)، لنګوټه، خولۍ او داسي نور، نو په هغوی کي د خاوند قول معتبر دی، او کوم شیان چي د ښځي لایق وي او صرف ښځه هغه استعمالوي لکه پوړنی (پړونی)، شال، چادري، زېوارت او داسي نور، نو په هغوی کي د ښځي قول معتبر دی؛ ځکه چي په لنګوټه، څادر او داسي نورو کي ظاهر حال د خاوند موافق دی، او په پوړني او داسي نورو کي د ښځي موافق دی، او قاعده دا ده چي ظاهر حال د کوم چا موافق وي، صرف د هغه قول معتبر دی، لهذا په کومو شیانو کي چي ظاهر حال د سړي موافق وي، هغه به د سړي لپاره وي، او په کوم سامان کي چي ظاهر حال د ښځي موافق وي، هغه به د ښځي لپاره وي، او پاته سو هغه شیان کوم چي د دواړو لایق وي او دواړه یې استعمالوي، لکه د خوراک، چښاک لوښي او داسي نور، نو په هغوی کي د سړي (خاوند) قول معتبر دی؛ ځکه چي ښځه او د ښځي مقبوضه شیان ټوله د سړي په قبضه کي دي، یعني ښځه هم د سړي په قبضه کي وي او د ښځي چي کوم څه په قبضه کي وي، هغه هم د سړي په قبضه کي وي، او په دعواوو (دعوه ګانو) کي د قابض قول معتبر وي (یعني په دعویٰ کي د هغه کس قول معتبر وي چي مُدعیٰ بِهٖ شی د هغه په قبضه کي وي)، نو ځکه په دې صورت کي به هم صرف د سړي قول معتبر وي. هـا! کوم شیان چي د ښځي سره مختص وي یعني صرف د ښځي لپاره خاص وي او په هغه کي د سړي هیڅ حصه نه وي، نو د هغوی په هکله صرف د ښځي دعویٰ او قول معتبر دی او هغه به صرف ښځي ته ورکول کیږي؛ ځکه که څه هم د خاوند ظاهري قبضه د هغه په حق کي ګواه ده، لېکن د ښځي اختصاص له هغه څخه هم زیات قوي او مضبوط دی، او ترجیح په هر صورت کي زیات قوي (اقویٰ) لره وي، نو څرنګه دچي دلته هم د ښځي اختصاص د خاوند له ظاهري قبضې څخه اقویٰ دی، نو ځکه صرف هغه به راجح او معتبر وي.

ولا فرق إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي د خاوند او ښځي تر مینځ پورتنی اختلاف که د نکاح د بقاء په حالت کي وي او که د خاوند او ښځي له فرقت څخه وروسته وي، په دواړو صورتونو کي هغه حکم دی کوم چي اوس ذکر سو، د دوی په حکم کي هیڅ فرق نسته. (احسن الهدایه)

## د خاوند یا ښځي تر مرګ وروسته د کورني سامان په هکله د وارثانو د اختلاف کولو حکم

| |
|---|
| فَإِنْ مَاتَ أَحَدُهُمَا وَاخْتَلَفَتْ وَرَثَتُهُ مَعَ الْآخَرِ بیا که چیري له خاوند او ښځي څخه یو مړ سي او د مړي وارثان د هغه بل یوه [ژوندي] سره اختلاف وکړي فَمَا يَصْلُحُ لِلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ نو کوم شیان چي د خلکو او ښځو لایق دي فَهُوَ لِلْبَاقِي مِنْهُمَا هغه [ټوله] په دوی دواړو کي د پاته یوه [ژوندي] لپاره دي لِأَنَّ الْيَدَ لِلْحَيِّ دُونَ الْمَيِّتِ ځکه چي قبضه ژوندي کس لره وي، نه مړي لره [ځکه د مرګ په وجه د مړي |

قبضه ختمه سوه او هغه لره هيڅ ملکيت او قبضه پاته نه سوه] وَهٰذَا الَّذِي ذَكَرْنَاهُ قَوْلُ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا کوم څه چي موږ ذکر کړي دي، دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ*: يُدْفَعُ إِلَى الْمَرْأَةِ مَا يُجَهَّزُ بِهِ مِثْلُهَا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي ښځي ته به هغه سامان ورکول کيږي کوم چي د هغې په څېر ښځي ته په جهيز کي ورکول کيږي [مطلب دا چي کوم ضروري سامان ښځه د پلار له کوره د ځان سره راوړي (کوم ته چي "جهيز" وايي)، هغه به ښځي ته ورکول کيږي] وَالْبَاقِي لِلزَّوْجِ مَعَ يَمِينِهِ او پاته سامان به خاوند ته د هغه د قسم سره ورکول کيږي لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ الْمَرْأَةَ تَأْتِي بِالْجِهَازِ ځکه چي ظاهر حال همدا دی چي جهيز ښځه راوړي وَهٰذَا أَقْوٰى او دا ظاهر حال زيات قوي دی فَيَبْطُلُ بِهِ ظَاهِرُ يَدِ الزَّوْجِ نو ځکه په دې سره به د خاوند ظاهري قبضه باطليږي ثُمَّ فِي الْبَاقِي لَا مُعَارِضَ لِظَاهِرِهِ بيا په پاته سامان کي د خاوند د ظاهر حال هيڅ معارض نسته فَيُعْتَبَرُ نو ځکه هغه به معتبر وي وَالطَّلَاقُ وَالْمَوْتُ سَوَاءٌ او [په دې حکم کي] طلاق او مرګ دواړه سره برابر دي لِقِيَامِ الْوَرَثَةِ مَقَامَ مُوَرِّثِهِمْ ځکه چي وارثان د خپل مورث قائم مقام وي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: مَا كَانَ لِلرِّجَالِ فَهُوَ لِلرَّجُلِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي کوم سامان د خلکو لايق وي نو هغه د سړي [خاوند] لپاره دی وَمَا كَانَ لِلنِّسَاءِ فَهُوَ لِلْمَرْأَةِ او کوم چي د ښځو لايق وي نو هغه د ښځي لپاره دی وَمَا يَكُوْنُ لَهُمَا فَهُوَ لِلرَّجُلِ أَوْ لِوَرَثَتِهِ او کوم چي د دواړو لايق وي نو هغه د سړي يا [د هغه د مړه کېدلو صورت کي] د هغه د وارثانو لپاره دی لِمَا قُلْنَا لِأَبِي حَنِيْفَةَ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ د امام صاحب رَحِمَهُ الله لپاره ذکر کړی وَالطَّلَاقُ وَالْمَوْتُ سَوَاءٌ او طلاق او مرګ سره برابر دي لِقِيَامِ الْوَارِثِ مَقَامَ الْمُوَرِّثِ ځکه چي وارث د خپل مورث قائم مقام وي وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا مَمْلُوْكًا او که له خاوند او ښځي څخه يو مملوک وي فَالْمَتَاعُ لِلْحُرِّ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ نو د ژوند په حالت کي سامان د آزاد لپاره دی لِأَنَّ يَدَ الْحُرِّ أَقْوٰى ځکه چي د آزاد قبضه زياته قوي ده وَلِلْحَيِّ بَعْدَ الْمَمَاتِ او تر مرګ وروسته د ژوندي لپاره دی [برابره ده هغه آزاد وي او که

---

* القول الراجح: قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الخانية (ج:١، ص:١٨٣)، وكذا في شرح المجلة (ج:٥، ص:٥٠٠، المادة:١٧٧١). [القول الراجح ج:٢، ص:١٧٩]

مملوک وي] لِأَنَّهُ لَا يَدَ لِلْمَيِّتِ ځکه چې مړي لره هيڅ قبضه نه وي فَخَلَتْ يَدُ الْحَيِّ عَنِ الْمُعَارِضِ نو ځکه د ژوندي قبضه له معارض څخه خالي سوه وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا: الْعَبْدُ الْمَأْذُونُ لَهُ فِي التِّجَارَةِ وَالْمُكَاتَبُ بِمَنْزِلَةِ الْحُرِّ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې کوم غلام ته [د مالک له طرفه] د تجارت اجازه ورکول سوې وي هغه او مکاتب غلام د آزاد کس په درجه کې دي لِأَنَّ لَهُمَا يَدًا مُعْتَبَرَةً فِي الْخُصُومَاتِ ځکه چې په خصوماتو کې د دوی دواړو قبضه معتبره وي.

**اللغات**: ﴿يد﴾ لاس، مراد ځني قبضه ده. ﴿يُجهز﴾ د تفعيل له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: تيارول، چمتول کول، د ښځي لپاره د جهيز سامان تيارول. ﴿الجهاز﴾ (د جيم په کسره سره): په اصل کې هغه ضروري سامان ته وايي کوم چې يې انسان د ځان سره په سفر او داسي بل وخت کې وړي، او کله چې دا لفظ د ښځي سره ذکر سي يعني "جِهازُ المرأة" نو جهيز ته وايي، يعني هغه ضروري سامان کې چې د پلار له کوره د ښځي سره استول کيږي، او کله چې د مړي (ميّت) سره ذکر سي يعني "جِهازُ الميّت" نو کفن ته وايي، ﴿خلت﴾ د نصر د باب ماضي ده: خالي کېدل. ﴿ورثة﴾ جمع د وارث ده: ميراث خور. ﴿مورث﴾ د فاعل صيغه ده، له افعال او تفعيل دواړو بابونو څخه راځي، ميراث پرېښوونکی، مراد ځني مړی دی کوم چې خپل تر شا ميراث پرېږدي. ﴿مملوك﴾ هغه شی او هغه کس کوم چې د بل چا په ملکيت کې وي، هغه کس کوم چې د يو چا تر غلامۍ لاندې وي (د مذکر او مؤنث دواړه لپاره استعماليږي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که له خاوند او ښځي څخه يو مړ سي او بيا د مړي وارثان او د ژوندي پاته سوی کس تر مينځ د کورني سامان په هکله اختلاف واقع سي (مثلا خاوند مړ سي، بيا د خاوند وارثان او ښځه په کورني سامان کې اختلاف وکړي)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به ټوله سامان ژوندي کس ته ورکول کيږي (چې هغه په پورتني مثال کې ښځه ده)؛ ځکه چې قبضه د ژوندي کس معتبره وي او مړي لره هيڅ قبضه نه وي، نو ځکه سامان به هم ژوندي ته ورکول کيږي او په دې سامان کې به د مړي او د هغه د وارثانو لپاره هيڅ حصه نه وي.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې د پلار له کوره چې ښځه کوم سامان د ځان سره راوړي کوم ته چې "جهيز" وايي، هغه سامان خو به ښځي ته ورکول کيږي، يا که هغه مړه سوې وي نو د

---

القول الراجح: قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله: كما ذكر في الخانية (ج:١، ص:١٨٤)، وكذا في نتائج الأفكار (ج:٧، ص:٢٢٢)، وتنوير الأبصار (ج:٤، ص:٤٨٢)، والدر المنتقى (ج:٣، ص:٣٦٩). [القول الراجح ج:٢، ص:١٨٠]

هغې وارثانو ته به ورکول کيږي؛ ځکه دا ظاهره خبره ده چې "جهيز" ښځه راوړي، نو د ښځې دغه ظاهر حال ته په کتلو سره به د خاوند ظاهري قبضه فوت سي او د ښځې ظاهري حال به پر هغه غالب وګرځي، نو ځکه د "جهيز" د سامان په څېر سامان خو به ښځې ته ورکول کيږي او تر دې وروسته چې کوم سامان پاته سي، څرنګه چې په هغه کي د خاوند د ظاهري قبضې هيڅ معارض نسته، نو ځکه هغه باقي مانده سامان به خاوند ته ورکول کيږي.

او په پورتني حکم کي مرګ او طلاق دواړه سره برابر دي، يعني برابره ده له خاوند او ښځې څخه يو مړ سي يا خاوند ښځې ته طلاق ورکړي، په هر صورت کي هغه حکم دی کوم چې اوس بيان سو؛ ځکه چې وارثان د خپل مورث قائم مقام دي، لهذا کوم حکم چې د مورث دی، هغه حکم به د وارث هم وي.

او په پورتنی مسئله کي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز هغه حکم دی کوم چې په تېر عبارت کي بيان سو، يعني کوم شيان چې د خلکو لايق وي، هغه به خاوند ته ورکول کيږي، او کوم چې صرف د ښځو لايق وي، هغه به ښځې ته ورکول کيږي، او کوم چې د دواړو لايق وي، هغه به هم خاوند ته ورکول کيږي؛ او دليل هغه دی کوم چې په تېر عبارت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله لپاره بيان سو يعني ښځه او د ښځې مقبوضه شيان ټوله د سړي (خاوند) په قبضه کي دي، او قول د قابض معتبر دی، نو ځکه په دې شيانو کي به هم د قابض يعني د سړي (خاوند) قول معتبر وي. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز هم د مرګ او طلاق دواړو حکم سره برابر دی؛ ځکه چې وارث د خپل مورث قائم مقام وی.

وإن كان أحدهما مملوكًا إلخ: د دې حاصل دا دی چې که له خاوند او ښځې څخه يو مملوک وي (يعني خاوند د يو چا غلام وي يا ښځه د يو چا مينځه وي)، نو ټوله سامان به آزاد ته ورکول کيږي؛ ځکه چې د مملوک په نسبت د آزاد کس قبضه زياته قوي ده، ها! که چيري له دوی څخه يو مړ سي، نو بيا به ټوله سامان ژوندي کس ته ورکول کيږي، برابره ده ژوندی کس مملوک وي او که آزاد وي، ځکه چې مړي (ميت) لره هيڅ قبضه نه وي، لهذا د ژوندي کس د قبضې هيڅ معارض پاته نه سو، نو ځکه ټوله سامان به هغه ته ورکول کيږي، دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې مأذون لهٔ فی التجارة غلام او مکاتب دواړه د آزاد کس په درجه کي دي، ځکه چې په خصوماتو (دعوه ګانو) کي د هغو قبضه معتبره ده، نو ځکه کوم حکم چې د آزاد کس دی، هغه حکم به د دوی هم وي. (احسن الهدايه)



# فَصْلٌ فِيْ مَنْ لَا يَكُوْنُ خَصْمًا

## دا فصل د هغه خلکو په بيان کې دی کوم چې خصم نه وي

**تشريح**: مخکې د هغه خلکو بيان وو کوم چې خصم (مدعیٰ عليه) وي، اوس له دې ځايه د هغه خلکو بيان دی کوم چې خصم نه وي، او څرنګه چې د کتاب الدعویٰ په مناسبت سره خصم کېدل (مدعیٰ عليه کېدل) اصل دي، نو ځکه اول د خصم خلکو احکام بيان سوي دي.

### که مدعیٰ عليه دعویٰ وکړي چې دا شی د بل سړي دي (حکم او تفصيل)

وَإِذَا قَالَ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ: هٰذَا الشَّيْءُ أَوْدَعَنِيْهِ فُلَانٌ الْغَائِبُ او کله چې مدعیٰ عليه ووايي: چې دا شی ما ته فلانکي غائب امانتاً راکړی دی أَوْ رَهَنَهُ عِنْدِيْ يا دا هغه ما ته په رهن ايښی دی أَوْ غَصَبْتُهُ مِنْهُ يا دا شی ما له هغه څخه غصب کړی دی وَأَقَامَ بَيِّنَةً عَلٰى ذٰلِكَ او مدعیٰ عليه پر دې بيّنه پېش کړي فَلَا خُصُوْمَةَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمُدَّعِيْ نو د هغه او مدعي ترمينځ هيڅ خصومت نه پاتېږي [يعني د دوی په مينځ کې خصومت دفع کېږي او ختمېږي او هغه د مدعي خصم نه ګرځي] وَكَذَا إِذَا قَالَ: آجَرَنِيْهِ وَأَقَامَ الْبَيِّنَةَ او همدارنګه [خصومت دفع کېږي] کله چې مدعیٰ عليه ووايي: چې فلانکی غائب دا شی ما ته په اجاره راکړی دی او بيّنه پېش کړي لِأَنَّهُ أَثْبَتَ بِبَيِّنَتِهِ أَنَّ يَدَهُ لَيْسَتْ بِيَدِ خُصُوْمَةٍ ځکه چې هغه په بيّنه سره دا ثابته کړه چې د هغه قبضه د خصومت قبضه نه ده وَقَالَ ابْنُ شُبْرُمَةَ: لَا تَنْدَفِعُ الْخُصُوْمَةُ او ابن شبرمه رَحِمَهُ الله فرمايي: چې خصومت نه دفع کېږي لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ إِثْبَاتُ الْمِلْكِ لِلْغَائِبِ لِعَدَمِ الْخَصْمِ عَنْهُ ځکه چې د غائب له طرفه د خصم د نشتوالي په وجه د غائب لپاره د ملکيت ثابتول ناممکن سوه [يعني دلته مدعیٰ عليه د غائب له طرفه خصم نه دی نو په دې وجه هغه د غائب لپاره ملکيت نه سي ثابتولای] وَدَفْعُ الْخُصُوْمَةِ بِنَاءً عَلَيْهِ او د خصومت دفع کېدل پر همدې [يعني د غائب لپاره پر ملکيت ثابتولو] مبني دي قُلْنَا: مُقْتَضَى الْبَيِّنَةِ شَيْئَانِ موږ [په جواب کې] وايو: چې بيّنه د دوو شيانو تقاضا کوي ثُبُوْتُ الْمِلْكِ لِلْغَائِبِ [۱] د غائب لپاره ملکيت ثابتېدل وَلَا خَصْمَ فِيْهِ او په دې کې [د غائب]

هیڅ خصم نسته فَلَمْ يَثْبُتْ نو ځکه د غائب لپاره به ملکیت نه ثابتیږي وَدَفْعُ خُصُومَةِ الْمُدَّعِيْ [۲] او [دویم] د مدعي د خصومت دفع کېدل وَهُوَ خَصْمٌ فِيهِ او هغه په دې کي خصم دی فَيَثْبُتُ نو ځکه دا به ثابتیږي وَهُوَ كَالْوَكِيلِ بِنَقْلِ الْمَرْأَةِ وَإِقَامَتِهَا الْبَيِّنَةَ عَلَى الطَّلَاقِ او دا د ښځي د منتقل کولو د وکیل او پر طلاق د ښځي د بیني پېشولو په څېر دي [یعني دا داسي ده لکه یو شوک چي دیو خاوند له طرفه د هغه د ښځي د راوستلو وکیل وي لېکن کله چي دا وکیل ښځي ته ورسیږي نو ښځه پر دې بینه پېش کړي چي هغه ما ته طلاق راکړی دی] كَمَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ لکه مخکي چي موږ د دې بیان وکړی وَلَا تَنْدَفِعُ بِدُونِ إِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ كَمَا قَالَهُ ابْنُ أَبِي لَيْلَى او له بینه پېشولو څخه بغیر خصومت نه دفع کیږي لکه څرنګه چي ابن ابي لیلیٰ رَحِمَهُ الله ویلي دي لِأَنَّهُ صَارَ خَصْمًا بِظَاهِرِ يَدِهِ ځکه چي مدعیٰ علیه د خپل ظاهري قبضي په وجه خصم ګرځېدلی دی فَهُوَ بِإِقْرَارِهِ يُرِيدُ أَنْ يُحَوِّلَ حَقًّا مُسْتَحَقًّا عَلَى نَفْسِهِ نو هغه په خپل اقرار سره دا غواړي چي د هغه پر ذمه کوم حق واجب سوی دی هغه [د بل چا ذمې ته] منتقل کړي فَلَا يُصَدَّقُ إِلَّا بِحُجَّةٍ نو ځکه له حجت [بینې] څخه بغیر به د هغه تصدیق نه کیږي كَمَا إِذَا ادَّعَى تَحْوِيلَ الدَّيْنِ مِنْ ذِمَّتِهِ إِلَى ذِمَّةِ غَيْرِهِ لکه کله چي یو شوک له خپل ذمې څخه د بل چا ذمې ته د قرض منتقل کولو دعویٰ وکړي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ❁: إِنْ كَانَ الرَّجُلُ صَالِحًا او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: که چیري قابض نېک سړی وي فَالْجَوَابُ كَمَا قُلْنَاهُ نو حکم هغه دی کوم چي موږ بیان کړی وَإِنْ كَانَ مَعْرُوفًا بِالْحِيَلِ لېکن که هغه په حیلو کي مشهوره وي [یعني په خلکو کي هغه مشهوره وي چي حیله باز (چل باز) سړی دی] لَا تَنْدَفِعُ عَنْهُ الْخُصُومَةُ نو له هغه څخه به خصومت نه دفع کیږي لِأَنَّ الْمُحْتَالَ مِنَ النَّاسِ قَدْ يَدْفَعُ مَالَهُ إِلَى مُسَافِرٍ يُودِعُهُ إِيَّاهُ وَيُشْهِدُ عَلَيْهِ الشُّهُودَ ځکه چي په خلکو کي حیله باز سړی ځیني وخت مسافر ته خپل مال ورکوي [د دې لپاره] چي مسافر هغه ده ته په امانت ورکړي او مسافر پر دې [امانت ورکولو] ګواهان پېش کړي فَيَحْتَالُ لِإِبْطَالِ حَقِّ غَيْرِهِ نو [په دې توګه] هغه د بل چا د حق باطلولو لپاره حیله کوي فَإِذَا اتَّهَمَهُ الْقَاضِي بِهِ لهذا کله چي قاضي هغه په

---

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، قال شيخ الاسلام خواهرزاده في مبسوطه: ما ذهب إليه أبو يوسف رَحِمَهُ الله استحسان، ذهب إليه بعد ما ابتلى بالقضاء (نتائج الأفكار ج:۷، ص:۲۲۵)، وكذا في الدر المختار (ج:۴، ص:۴۸۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۸۲]

دي [يعني په حيله کولو] سره متهم وګڼي لَا يَقْبَلُهُ نو قاضي به د هغه حجت [بينه] نه قبلوي وَلَوْ قَالَ الشُّهُودُ: أَوْدَعَهُ رَجُلٌ لَا نَعْرِفُهُ او که ګواهان ووايي: چي دغه قابض ته داسي سړي [هغه شی] په امانت ورکړی دی چي موږ هغه نه پېژنو لَا تَنْدَفِعُ عَنْهُ الْخُصُومَةُ نو په دې سره به خصومت نه دفع کيږي لِاحْتِمَالِ أَنْ يَكُونَ الْمُودِعُ هُوَ هَذَا الْمُدَّعِي د دې احتمال په وجه چي امانت ورکونکی به همدا مدعي وي وَلِأَنَّهُ مَا أَحَالَهُ إِلَى مُعَيَّنٍ يُمْكِنُ لِلْمُدَّعِي اتِّبَاعُهُ او ځکه چي قابض دا مدعي د يو مُعيّن سړي وطرف ته نه دی حواله کړی چي د مدعي لپاره په هغه پسې کېدل ممکن سي فَلَوِ انْدَفَعَتْ نو که چيري خصومت دفع سي لَتَضَرَّرَ بِهِ الْمُدَّعِي نو په دې سره به مدعي ته نقصان ورسيږي وَلَوْ قَالُوا: نَعْرِفُهُ بِوَجْهِهِ وَلَا نَعْرِفُهُ بِاسْمِهِ وَنَسَبِهِ او که ګواهان ووايي: چي موږ هغه سړی [امانت ورکونکی] په شکل سره پېژنو لېکن په نوم او نسب سره يې نه پېژنو فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ نو هم د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز دا حکم دی لِلْوَجْهِ الثَّانِي د دويم دليل په وجه [يعني ځکه چي قابض دا مدعی د مُعيّن سړي وطرف ته...] وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[❁] تَنْدَفِعُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز خصومت دفع کيږي لِأَنَّهُ أَثْبَتَ بِبَيِّنَتِهِ أَنَّ الْعَيْنَ وَصَلَ إِلَيْهِ مِنْ جِهَةِ غَيْرِهِ ځکه چي قابض په خپل بيّنه سره دا ثابته کړه چي دا عَين شی ما ته د بل چا له طرفه رسېدلی دی [نه د مدعي له طرفه] حَيْثُ عَرَفَهُ الشُّهُودُ بِوَجْهِهِ ځکه چي ګواهان هغه [بل شوک] په شکل سره پېژني بِخِلَافِ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت فَلَمْ يَكُنْ يَدُهُ يَدَ خُصُومَةٍ نو ځکه د هغه [مدعیٰ عليه] قبضه د خصومت قبضه نه سوه وَهُوَ الْمَقْصُودُ او همدا مقصود دي وَالْمُدَّعِي هُوَ الَّذِي أَضَرَّ بِنَفْسِهِ او مدعي خپل ځان ته خپله نقصان رسولی دی حَيْثُ نَسِيَ خَصْمَهُ ځکه چي هغه خپل خصم [مدعیٰ عليه] هېر کړی دی أَوْ أَضَرَّهُ شُهُودُهُ يا د مدعیٰ عليه ګواهانو هغه ته نقصان رسولی دی دُوْنَ الْمُدَّعٰى عليه او مدعیٰ عليه [قابض] هغه ته نقصان نه دی رسولی وَهٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ مُخَمَّسَةُ كِتَابِ الدَّعْوٰى او دا مسئله د کتاب الدعویٰ "مخمسه"

---

❁ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۴۸۳)، وكذا في مجمع الأنهر (ج:۳، ص:۳۷۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۸۲]

مسئله ده [مطلب دا چي په كتابُ الدعوىٰ كي دا مسئله په "مخمسه" سره نومول سې ده] وَقَدْ ذَكَرْنَا الْأَقْوَالَ الْخَمْسَةَ او موږ [په دې مسئله کي] پنځه اقوال ذکر کړل.

**اللغات**: ﴿أَوْدَعَ﴾ دافعال د باب ماضي صيغه ده: په امانت ايښوول، په امانت ورکول (امانتاً ورکول)، ﴿خصومة﴾ جنګ (جګړه)، مراد ځني دعوىٰ ده، ﴿خصم﴾ په دعوىٰ کي هر فريق ته خصم وايي، يعني مدعىٰ عليه او مدعي يو د بل خصم دي، ﴿آجَرَ﴾ دافعال د باب ماضي صيغه ده: په اجاره ورکول، په کرايه ورکول، ﴿يد﴾ لاس، مراد ځني قبضه ده، ﴿تندفع﴾ د انفعال د باب مضارع ده: دفع کېدل، ليري کېدل، ختمېدل، ساقطېدل، ﴿يحوّل﴾ د تفعيل د باب مضارع ده، حَوَّلَ يُحَوِّلُ تَحْوِيْلًا: اړول، ګرځول، منتقل کول (نقلول)، بدلول، ﴿يُشهِد﴾ دافعال د باب مضارع ده: ګواه درول، ګواه پېشول، ګواه جوړول، ﴿الشهود﴾ جمع د شَاهِدٌ ده: ګواه، شاهدي اداء کونکی، ﴿مُودِع﴾ دافعال د باب فاعل دی: په امانت ايښوونکی، په امانت ورکونکی (امانتاً ورکونکی).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که د يو سړي (مثلاً د خالد) په قبضه کي يو پُسه وي او بل څوک (مثلاً زيد) په هغه دعوىٰ وکړي چي "دا پُسه زما دی او زه يې مالک يم"، بيا قابض (خالد) داسي ووايي چي "دا پُسه د فلانکي سړی (مثلاً د ادريس) دی کوم چي اوس غائب دی او هغه ما ته امانتاً راکړی دی، يا هغه ما ته درهن په توګه راکړی دی، يا ما دا پُسه له هغه څخه غصب کړی دی، يا هغه ما ته په اجاره (په مزدروي) راکړی دی" او قابض (خالد) پر خپل قول بيّنه هم پېش کړي، نو په دې ټولو صورتونو کي به د قابض بيّنه قبلول کېږي او په دې بيّنه سره د هغه او مدعي (زيد) تر مينځ خصومت دفع کېږي (ختمېږي)، يعني دا قابض د مدعي خصم (مدعىٰ عليه) نه ګرځي يعني قاضي به د هغه په خلاف د مدعي دعوىٰ نه اوري او له مدعي څخه به د بيّنې مطالبه نه کوي؛ د مذکوره ټولو صورتونو دليل دا دی چي قابض (خالد) په بيّنه سره دا ثابته کړه چي زما قبضه د خصومت قبضه نه ده (يعني زما په قبضه کي چي کوم شی دی هغه زما نه دی، لهذا زما سره خصومت او دعوىٰ کول بالکل صحيح نه دي)، او کوم څوک چي دا ثابته کړي چي زما قبضه د خصومت قبضه نه ده، نو هغه د مدعي خصم نه ګرځي، نو ځکه دغه قابض (خالد) به د مدعي (زيد) خصم نه ګرځي او په دې ټولو صورتونو کي به د مدعي قول او دعوىٰ نه اورېدل کېږي.

ابن شبرمه (کوم چي د کوفې قاضي وو) فرمايي چي د قابض له طرفه د بيّنه پېشولو باوجود خصومت نه دفع کېږي بلکي هغه د مدعي خصم (مدعىٰ عليه) ګرځي او قاضي به د مدعي قول او

دعویٰ اوري؛ دليل دا دی چي دلته قابض (خالد) په خپل بيّنه سره د غائب (ادريس) لپاره ملکيت ثابت کړی او دا اقرار يې وکړی چي "دا پُسه د فلانکي غائب (ادريس) دی". حال دا چي غائب کس لپاره د ملکيت ثابتولو په باره کي دا ضروري ده چي قابض به د هغه له طرفه خصم وي (يعني دا ضروري ده چي غائب [ادريس] به هغه ددې وکيل جوړ کړي وي چي "ته زما لپاره ملکيت ثابت کړه!"). لېکن دلته قابض (خالد) د هغه (ادريس) له طرفه خصم نه دی، لهذا کله چي قابض يعني مدعیٰ عليه د غائب له طرفه خصم نه دی، نو د غائب لپاره ملکيت ثابتول ناممکن سوه (ځکه چا ته دا حق نسته چي ديو چا له رضا څخه بغير د هغه لپاره ملکيت ثابت کړي او د هغه په ملکيت کي يو شی داخل کړي). لنډه دا چي ثابته سوه چي دلته د غائب لپاره ملکيت نه ثابتيږي، او څرنګه چي له قابض څخه د خصومت دفع کېدل (او د هغه نه خصم کېدل) د غائب لپاره پر ملکيت ثابتېدلو مبني دي (يعني د هغه نه خصم کېدل پر دې مبني دي چي د غائب لپاره د پُسه ملکيت ثابت سي)، او دلته د غائب لپاره ملکيت ثابتول ممکن نه دي، او پر ناممکن شي چي کوم شی مبني وي هغه هم ناممکن ګرځي، نو ځکه له قابض څخه د خصومت دفع کېدل به هم ناممکن وي او هغه به په هر صورت کي د مدعي خصم ګرځي.

قلنا إلخ: دا زموږ له طرفه د ابن شبرمه رَحِمَهُ الله د دليل جواب دی، زموږ د جواب حاصل دا دی چي قابض (مدعیٰ عليه) چي کومه بيّنه پېش کړې ده: هغه د دوو شيانو تقاضا کوي: ① د غائب کس لپاره ملکيت ثابتېدل، مګر څرنګه چي په دې باره کي د غائب هيڅ خصم نسته، نو ځکه د غائب لپاره خو ملکيت نه ثابتيږي، ② دويم د دې خبري تقاضا کوي چي له قابض څخه خصومت دفع سي (ختم سي) او په دې خبره کي قابض په خپله خصم دی، نو ځکه د قابض په به حق کي به د خصومت دفع کېدل ثابتيږي او هغه به د مدعي خصم نه ګرځي.

د دې مثال دا دی چي د يو خاوند (مثلا د زيد) ښځه د پلار په کور کي وي او بيا يو څوک ووايي چي "زه د خاوند (زيد) له طرفه د دې وکيل جوړ سوی يم چي زه دا ښځه هغه ته منتقل کړم" (يعني هغه ما ته ويلي دي چي "زما ښځه ته راوله!")، لېکن کله چي ښځه د هغه خبره واوري نو ښځه پر دې بيّنه پېش کړي چي هغه (زيد) ما ته طلاق راکړی دی، نو د ښځي په دغه بيّنه سره که څه هم طلاق نه ثابتيږي تر څو چي غائب خاوند (زيد) را نه سي، لېکن په دې بيّنه سره د وکيل حق ختميږي او هغه بالکل ښځه نه سي بېولای، نو همداسي په پورتنۍ مسئله کي که څه هم د قابض (خالد) په بيّنه سره د غائب کس (ادريس) لپاره ملکيت نه ثابتيږي، لېکن په دې سره به خصومت خامخا دفع کيږي او هغه به د مدعي خصم نه ګرځي.

**ولا تندفع... کما قال ابن أبي لیلی إلخ:** قاضي ابن ابي لیلیٰ فرمایي چي محض د قابض په دې اقرار سره چي "دا پُسه د فلانکي غائب دی" خصومت دفع کیږي (یعني محض په دې اقرار سره هغه د مدعي خصم نه ګرځي). که څه هم هغه بیّنه پېش نه کړي. لنډه دا چي زموږ په نېز بغیر له بیّنه پېشولو خصومت نه دفع کیږي لېکن د ابن ابي لیلیٰ په نېز بغیر له بیّنه پېشولو هم خصومت دفع کیږي.

**دلیل:** د ابن ابي لیلیٰ دلیل دا دی چي قابض د غائب کس (ادریس) لپاره د ملکیت اقرار کړی دی او اقرار بذات خود ثابتونکی حجت دی. لهذا د قابض په اقرار سره دا خبره ثابته سوه چي پُسه د غائب کس په ملکیت کي دی او هغه د پُسه مالک دی او د قابض قبضه صرف د حفاظت په توګه ده (یعني هغه فقط د پُسه حفاظت کوي). لهذا کله چي محض په اقرار سره د غائب لپاره ملکیت ثابت سو، نو بیا به بیّنه پېشولو ته هم ضرورت نه وي، بلکي بغیر له بیّنه پېشولو به له قابض څخه خصومت دفع کیږي او هغه به د مدعي خصم نه ګرځي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د هغه په جواب کي فرمایي چي قابض د خپل ظاهري قبضې په وجه خصم ګرځېدلی دی نو څکه هغه په خپل زباني اقرار سره دا غواړي چي له خپل غاړي څخه د مدعي حق ایسته کړي او د غائب پر غاړه یې واچوي، نو څکه هغه به په خپل دغه اقرار کي متهم وي، او بغیر له حجته د متهم کس د قول تصدیق نه کیږي، نو څکه د دې قابض (خالد) د قول تصدیق به هم بغیر له حجته نه کیږي بلکي هغه به پر خپل قول حجت یعني بیّنه پېشوي. د دې مثال داسي دی لکه یو سړی چي له خپل غاړي څخه قرض د بل چا غاړي ته حواله کړي، مثلاً داسي ووایي چي ما د دې قرض مطالبه فلانکي کس ته حواله کړه (لهذا ته له هغه څخه د قرض مطالبه وکړه!). نو د دغه حواله کونکي کس د قول تصدیق بغیر له حجته نه کیږي، همداسي به دلته هم د قابض د قول تصدیق بغیر له حجته نه کیږي.

**وقال أبو یوسف إلخ:** د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دا دی چي که قابض یو صالح او نېک سړی وي، نو د دې حکم هغه دی کوم چي موږ بیان کړی، یعني په بیّنه پېشولو سره به له هغه څخه خصومت دفع کیږي، او که د هغه مکر او چل بازي په خلکو کي مشهوره وي او قاضي په هغه خبر وي چي مکرجن او چل باز سړی دی، نو له هغه څخه به خصومت نه دفع کیږي که څه هغه بیّنه پېش کړي. لکه څرنګه چي ابن شبرمه فرمایلي دي؛ څکه کوم سړی چي چل باز (حیله باز) وي، هغه څیني وخت د بل چا د حق باطلولو لپاره خپل مال یو مسافر (غائبېدونکي کس) ته ورکړي او هغه ته ووایي چي "ته د خلکو په مخکي ما ته دا مال په امانت کښېږده! چي هغوی پر دې ګواهان جوړ سي"، او دا حیله هغه د دې لپاره کوي چي د بل چا یعني د مدعي حق باطل سي او مدعي د بیّنه په

ذريعه هم خپل حق ثابت نه كړى سي، اوس ښكاره خبره ده چې كه قاضي د هغه په مكاري او چل بازي خبر وي نو هغه به په خپل قول كي متهم ګڼي او بالكل به د هغه بيّنه او حجت نه قبلوي.

ستاسو د اسانتيا لپاره به د پورتني خبري صورت ذكر كړو، د هغه صورت دا دى چې مثلاً زيد يو مكرجن او حيله باز سړى دى او پر هغه د نورو خلګو حقونه او قرضونه بانديي دي، او حقداره خلګ دا اراده لري چې د زيد له مال څخه خپل حقونه او قرضونه واخلي، نو زيد د خپل ځان خلاصولو لپاره دا پلان او حيله جوړه كړه چې خپل مال يې په پټه يو مسافر ته وركړى او هغه ته يې وويل چې "ته ګواهان راوغواړه! او د هغو مخته دا مال ما ته امانتاً راكړه، يا يې په رهن كښېږده!"، نو په دې سره به زيد ته دا فايده ورسيږي چې مسافر خو به ولاړ سي لېكن كله چې حقداره خلګ په هغه دعوىٰ وكړي چې موږ ته خپل حقوق او قرضونه راكړه!، نو دا حيله باز (زيد) به هغه ګواهان پېش كړي چې دا زما مال نه دى بلكي فلانكي غائب (مسافر) ما ته امانتاً راكړى دى، نو په دې توګه به هغه د حقداره خلګو له خصومت (دعوىٰ) څخه خلاص سي. نو ځكه امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې كله قابض (مدعىٰ عليه) حيله باز او مكرجن وي نو قاضي به د پورتني تهمت په وجه له هغه څخه خصومت نه دفع كوي كه څه هم هغه بيّنه پېش كړي.

ښكاره دې وي چې مذكوره حكم په هغه صورت كي دى كله چې ګواهانو د مسافر (غائب كس) نوم او نسب بيان كړى وي. او كه ګواهان داسي ووايي چې "دغه قابض ته يو سړي هغه شى (پسه) په امانت وركړى دى لېكن موږ هغه سړى په شكل او صورت سره نه پېژنو او د هغه په نوم او نسب واقف نه يو"، نو په دې صورت كي بالاجماع له قابض څخه خصومت نه دفع كيږي؛ ځكه په دې صورت كي دا ممكنه ده چې امانت وركونكى (مودِع) به همدا مدعي وي لېكن ګواهان به هغه نه پېژني، او بل دا چې قابض دغه مدعي د يو مُعيّن كس وطرف ته هم نه دى حواله كړى چې مدعي هغه تلاش كړي او په هغه پسي سي، لهذا اوس كه په داسي صورت كي له قابض (مدعىٰ عليه) څخه خصومت دفع كړى سي، نو مدعي ته به نقصان ورسيږي، نو ځكه په دې صورت كي به له هغه څخه خصومت نه دفع كيږي بلكي هغه به د مدعي خصم ګرځي.

او كه ګواهان داسي ووايي چې موږ هغه امانت وركونكى (مُودِع) په شكل او صورت سره خو پېژنو لېكن د هغه په نوم او نسب واقف نه يو، نو هم د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز خصومت نه فع كيږي؛ ځكه چې په دې صورت كي هم د مدعي لپاره د هغه تلاش كول او په هغه پسي كېدل ممكن نه دي او په خصومت دفع كولو كي د هغه نقصان دى. لېكن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت كي خصومت دفع كيږي؛ ځكه قابض د ګواهانو په ذريعه دا خبره ثابته كړه چې "امانت

راکونکی مدعي نه دی بلکې ما ته له مدعي څخه بغير بل چا دا شی (پسه) په امانت راکړی دی" او گواهان هغه بل څوک په شکل او صورت سره پېژني هم، نو ځکه په دې صورت کې به خصومت دفع کيږي، د دې په خلاف په اول صورت کې ځکه خصومت نه دفع کيږي چې په هغه صورت کې له مدعي څخه بغير د بل چا له طرفه قابض ته امانت ورکول ثابت نه دي او نه په سغه صورت کې د بل چا پېژندل ممکن دي. لنډه دا چې په دويم صورت کې (يعني کله چې د قابض [مدعیٰ عليه] گواهان داسې ووايي چې موږ امانت ورکونکی په شکل سره پېژنو، په دې صورت کې) د قابض قبضه د خصومت قبضه نه سوه، بلکې د حفاظت قبضه سوه، او د خصومت دفع کولو لپاره همدا مقصود دي. او پاتـه سو د خصومت دفع کولو په وجه چې کوم نقصان مدعي ته ورسيږي، نو د هغه ذمه وار په خپله مدعي دی؛ ځکه هغه په خپله خپل خصم هېر کړی دی او ځان ته يې نقصان رسولی دی، يا د مدعیٰ عليه گواهانو هغه ته نقصان رسولی دی، لنډه دا چې مدعي ته په نقصان رسولو کې د مدعیٰ عليه (قابض) لاس نسته.

وهذه المسألة إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په کتاب الدعوىٰ کې دا مسئله په "مخمسه" سره نومول سوې ده، او په دې مسئله کې پنځه اقوال نقل سوي دي کوم چې موږ ذکر کړل چې هغه دا دي: ① د ابن شبرمه رَحِمَهُ الله قول، ② د ابن ابي ليلیٰ رَحِمَهُ الله قول، ③ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول، ④ د امام محمد رَحِمَهُ الله قول، ⑤ د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول.

## د پورتنی مسئلې بل صورت

وَإِنْ قَالَ: اِبْتَعْتُهُ مِنَ الْغَائِبِ او که [قابض] ووايي: چې ما دا له غائب څخه رانيولی دی فَهُوَ خَصْمٌ نو هغه خصم [مدعیٰ عليه] گرځي لِأَنَّهُ لَمَّا زَعَمَ أَنَّ يَدَهُ يَدُ مِلْكٍ ځکه کله چې هغه دا گومان وکړی زما قبضه د ملکيت قبضه ده اِعْتَرَفَ بِكَوْنِهِ خَصْمًا نو هغه د خپل خصم کېدلو اقرار وکړی وَإِنْ قَالَ الْمُدَّعِيْ: غَصَبْتَهُ مِنِّيْ أَوْ سَرَقْتَهُ مِنِّيْ او که مدعي ووايي: چې تا هغه زما څخه غصب کړی دی يا تا هغه زما څخه غلا کړی دی لَا تَنْدَفِعُ الْخُصُومَةُ نو خصومت نه دفع کيږي وَإِنْ أَقَامَ ذُو الْيَدِ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْوَدِيْعَةِ که څه هم قابضْ پر امانت بيّنه پېش کړي [چې فلانکي غائب هغه ما ته په امانت راکړی دی] لِأَنَّهُ إِنَّمَا صَارَ خَصْمًا بِدَعْوَى الْفِعْلِ عَلَيْهِ لَا بِيَدِهِ ځکه چې قابض د فعل [غصب يا غلا] د دعوې په وجه خصم گرځېدلی دی، نه د خپل قبضې په وجه بِخِلَافِ دَعْوَى الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ په خلاف د ملک مطلق د دعوې لِأَنَّهُ خَصْمٌ فِيهِ بِاعْتِبَارِ يَدِهِ ځکه چې په هغه کې قابض د خپل قبضې په وجه خصم

دی حَتّٰى لَا يَصِحَّ دَعْوَاهُ عَلٰى غَيْرِ ذِي الْيَدِ وَيَصِحُّ دَعْوَى الْفِعْلِ همدا وجه ده چې پر غير قابض د ملک مطلق دعوىٰ صحيح نه ده او [ پر هغه ] د فعل دعوىٰ صحيح ده.

**اللغات**: ﴿ابتعته﴾ د افتعال له بابه د واحد متکلم ماضي صيغه ده: رانيول. ﴿وديعة﴾ امانت (په امانت ورکول سوی شی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که په مخکني مسئله کې قابض (خالد) داسي ووايي چي ''ما دا پُسه له فلانکي غائب (ادريس) څخه رانيولی دی (لهذا د پُسه مالک زه يم)''، نو په دې صورت کي له هغه څخه خصومت نه دفع کيږي يعني هغه خصم (مدعىٰ عليه) ګرځي او قاضي به د هغه په خلاف د مدعي قول او دعوىٰ اوري؛ ځکه کله چي قابض دا اقرار او دا ګومان وکړی چي ''زه په مالکانه توګه پر دې پُسه قابض يم او زه يې مالک يم''، نو ګواکي هغه د خپل ځان د خصم کېدلو اقرار هم وکړی، نو ځکه به هغه خصم ګرځي او له هغه څخه به خصومت نه دفع کيږي.

او که چيرې مدعي قابض ته ووايي چي ''تا دا پُسه زما څخه غصب کړی دی، يا زما څخه دي غلا کړی دی''، نو هم له هغه څخه خصومت نه دفع کيږي؛ او که بيا قابض په بيّنه سره دا ثابته کړي چي ''دا پُسه فلانکي غائب (ادريس) ما ته امانتاً راکړی دی''، نو هم خصومت نه دفع کيږي بلکي هغه خصم ګرځي؛ ځکه چي په دې صورت کي قابض په دې وجه خصم ګرځېدلی دی چي پر هغه د غصب يا د غلا د فعل دعوىٰ سوې ده او هغه دلته د خپل قبضې په وجه خصم نه دی ګرځېدلی. لهذا کله چي هغه د خپل فعل (غصب يا غلا) په وجه خصم دی، نو ښکاره خبره ده چي له هغه څخه به خصومت نه دفع کيږي.

د دې په خلاف د مطلق ملکيت چي کومه دعوىٰ ده، يعني کله چي قابض داسي ووايي چي ''زه د پُسه مالک يم''، نو په دې دعوىٰ کي قابض د خپل قبضې په وجه خصم ګرځېدلی دی، نه د فعل په وجه، همدا وجه ده چي پر غيرِ قابض د مطلق ملکيت دعوىٰ کول صحيح نه دي، لېکن د غصب يا د غلا د فعل دعوىٰ کول پر غيرِ قابض هم صحيح او جائز ده.

## د پورتني مسئلې بل صورت

وَإِنْ قَالَ الْمُدَّعِي: سُرِقَ مِنِّيْ او که مدعي ووايي: چي هغه زما څخه غلا سوی دی وَقَالَ صَاحِبُ الْيَدِ: أَوْدَعَنِيْهِ فُلَانٌ وَأَقَامَ الْبَيِّنَةَ او قابض ووايي: چي هغه ما ته فلانکي کس امانتاً راکړی دی لَمْ تَنْدَفِعِ الْخُصُوْمَةُ نو خصومت نه دفع کيږي وَهٰذَا قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ او دا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله قول

دی وَهُوَ اسْتِحْسَانٌ او همدا استحسان دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞: تَنْدَفِعُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي خصومت دفع كيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَدَّعِ الْفِعْلَ عَلَيْهِ ځکه چي مدعي پر قابض د فعل [غلا] دعویٰ نه ده کړې فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: غُصِبَ مِنِّي عَلَى مَا لَمْ يُسَمَّ فَاعِلُهُ نو دا داسي سو: لکه مدعي چي ووايي: غصب مني په داسي صيغه سره چي د فعل فاعل ذکر نه کړي [يعني داسي سو لکه مدعي چي د مجهول په صيغه سره ووايي: غُصِبَ مِنِّيْ (زما څخه هغه شی غصب سوی دی)] وَلَهُمَا: أَنَّ ذِكْرَ الْفِعْلِ يَسْتَدْعِي الْفَاعِلَ لَا مَحَالَةَ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د فعل ذکر کول د فاعل تقاضا کوي وَالظَّاهِرُ أَنَّهُ هُوَ الَّذِي فِي يَدِهِ او ظاهر حال دا دی چي فاعل [غل] هغه کس دی د کوم په قبضه کي چي [هغه شی] دی إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يُعَيِّنْهُ دَرْءًا لِلْحَدِّ لیکن مدعي ځکه هغه فاعل [غل] نه دی مُتعين کړی چي [له هغه څخه] حد ليري سي شَفَقَةً عَلَيْهِ وَإِقَامَةً لِحِسْبَةِ السَّتْرِ پر هغه د شفقت کولو او د پرده ساتلو د ثواب حاصلولو په خاطر فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: سَرَقْتَ نو دا داسي سو لکه مدعي چي [قابض] ته ويلي وي: تا غلا کړې دی بِخِلَافِ الْغَصْبِ په خلاف د غصب لِأَنَّهُ لَا حَدَّ فِيهِ ځکه چي په غصب کي حد نسته فَلَا يَحْتَرِزُ عَنْ كَشْفِهِ نو ځکه مدعي به د هغه له ښکاره کولو څخه ځان نه ساتي.

**اللغات:** ﴿سُرِق﴾ د نصر له بابه د واحد مذکر غائب مجهولي صيغه ده: غلا کېدل. ﴿صاحب اليد﴾ د قبضې خاوند (قبضې والا)، قابض، د چا په قبضه کي چي شی وي. ﴿درء﴾ د فتح د باب مصدر دی: ليري کول، دفع کول. ﴿حِسبة﴾ اجر او ثواب، داسي کار چي پر هغه د ثواب حاصلېدلو ګومان وي، د نصر د باب مصدر دی: پټول، عيب پټول، پرده ساتل (پرده پوشي). ﴿سَتْر﴾ د نصر د باب مصدر دی: پټول، عيب پټول، پرده ساتل (پرده پوشي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مدعي ووايي چي "دا پُسه کوم چي د قابض (خالد) په قبضه کي دی، زما څخه غلا سوی دی" او داسي نه ووايي "چي تا (قابض) زما څخه غلا کړې دی"، او قابض داسي ووايي چي "دا ما ته فلانکي غائب (ادريس) امانتاً راکړی دی" او هغه پر دې خبره بيّنه هم

۞ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۴۸۵)، وكذا في الهندية (ج:۴، ص:۲۹). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۸۳]

پېش کړي، نو په دې صورت کې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز خصومت نه دفع کيږي بلکې قابض د مدعي خصم ګرځي، او همدا استحسان دی، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز خصوّمت دفع کيږي، او همدا قياس دی.

**د امام محمد دليل**: دا دی چې مدعي د مطلق غلا دعویٰ کړې ده او پر قابض يې د غلا د فعل دعویٰ نه ده کړې (چې تا غلا کړې دی) نو ځکه د هغه دا دعویٰ باطله ده. او کله چې مدعي د قابض په خلاف دعویٰ نه ده کړې، نو ښکاره خبره ده چې قابض به د هغه خصم هم نه ګرځي. او د دې مثال دا دی لکه مدعي چې ووايي: "دا پُسه زما څخه غصب سوی دی" لېکن هغه د غاصب نوم نه واخلي، نو ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې هم قابض خصم نه ګرځي، همداسې به په پورتنی مسئله کې هم قابض خصم نه ګرځي او خصومت به دفع کيږي.

**د شيخينو دليل**: د شيخينو د دليل حاصل دا دی چې کله مدعي د غلا خبره ذکر کړه چې زما څخه غلا سوې ده، نو ښکاره خبره ده چې غلا کونکی خامخا يو شوک دی؛ ځکه چې هيڅ فعل هم له فاعل څخه بغير نه سي کېدای، او په پټو ځايو کې ظاهر حال ګواه او دليل ګرځول کيږي؛ نو څرنګه چې په دې مسئله کې هم فاعل پټ او نا معلوم دی، او د ظاهر حال مطابق هغه کس غل دی چې د چا په قبضه کې غلا سوی شی (پُسه) دی، لهذا د ظاهر حال مطابق به دا قابض (خالد) غل وي، نو ځکه په دې صورت کې به له هغه څخه خصومت نه دفع کيږي بلکې هغه به خصم ګرځول کيږي.

پاته سو دا سوال چې مدعي خو دا قابض غل نه دی مُتعيّن کړی (يعني دا يې نه دي ويلي چې هغه زما څخه غلا کړې دی)؟، نو د دې جواب دا دی چې کېدای سي مدعي به د شفقت پر بناء د غله قابض نوم نه وي اخيستی د دې لپاره چې هغه د غلا له حد او سزا څخه خلاص سي، او د ثواب حاصلولو په نيت به هغه د قابض پرده ساتلې وي او خالي (محض) د غلا دعویٰ به يې کړې وي، نو ځکه د هغه دعویٰ کول به د "سَرَقْتَ" ويلو په درجه کې وي (يعني ګواهي هغه قابض ته ويلي دي چې: "تا پُسه غلا کړی دی")، او د "سَرَقْتَ" ويلو په صورت کې خصومت نه دفع کيږي، نو ځکه په پورتنی مسئله کې به هم خصومت نه دفع کيږي بلکې قابض به خصم ګرځي. د دې په خلاف د غصب معامله ده، ځکه چې په غصب کې هيڅ حد نسته. نو ځکه هلته مذکوره احتمال نه سي کېدای بلکې د غصب په صورت کې به مدعي په ښکاره توګه "غَصَبْتَ" وايي او د غصب د اظهار په باره کې به احتياط نه کوي، لهذا غلا پر غصب قياسول صحيح نه دي لکه څرنګه چې امام محمد رَحِمَهُ الله پر غصب قياس کړې ده. (احسن الهدايه)

## د پورتني مسئلې يو بل صورت

وَإِنْ قَالَ الْمُدَّعِىْ: اِبْتَعْتُهُ مِنْ فُلَانٍ او که مدعي ووايي: چې ما هغه له فلانکي شخصه رانيولی دی وَقَالَ صَاحِبُ الْيَدِ: أَوْدَعَنِيْهِ فُلَانٌ ذٰلِكَ او قابض ووايي: چې هغه ما ته فلانکي امانتاً راکړی دی سَقَطَتِ الْخُصُوْمَةُ بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ نو خصومت بغير له بينې ساقطيږي لِأَنَّهُمَا لَمَّا تَوَافَقَا عَلٰى أَنَّ أَصْلَ الْمِلْكِ فِيْهِ لِغَيْرِهِ ځکه کله چې دواړو پر دې اتفاق وکړی چې په دې شي کي اصل ملکيت د بل چا دی فَيَكُوْنُ وُصُوْلُهَا إِلٰى يَدِ ذِى الْيَدِ مِنْ جِهَتِهِ نو د قابض و قبضې ته به د دې شي رسېدل د هغه [بل چا] له طرفه وي فَلَمْ تَكُنْ يَدُهُ يَدَ خُصُوْمَةٍ نو ځکه د قابض قبضه به د خصومت قبضه نه وي إِلَّا أَنْ يُقِيْمَ الْبَيِّنَةَ أَنَّ فُلَانًا وَكَّلَهُ بِقَبْضِهِ مګر دا چې مدعي پر دې خبره بيّنه پېش کړي چې فلانکي زه پر دې شي د قبضه کولو وکيل جوړ کړی يم لِأَنَّهُ أَثْبَتَ بِبَيِّنَتِهِ كَوْنَهُ أَحَقَّ بِإِمْسَاكِهَا ځکه چې [په دې صورت کي] هغه په خپل بيّنه سره دا ثابته کړه چې هغه د دې دعویٰ کړده شي د ساتلو زيات مستحق دی.

**اللغات**: ﴿يد﴾ لاس، مراد ځني قبضه او ملکيت دی، ﴿صاحب اليد﴾ قابض، د کوم کس په قبضه کي چي شی وي، ﴿خصومة﴾ جنګ (جګړه)، مراد ځني دعویٰ ده، ﴿بيّنة﴾ ګواهي، شواهد، ﴿إمساك﴾ د افعال د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چي له هغه څخه ځيني دا دي: منع کول، راګرځول، ساتل، حفاظت کول.

**تشريح**: صورت د مسئلې بالکل واضح او آسانه دی، مختصره تشريح يې دا ده چي که مثلاً د خالد په قبضه کي يو پسه وي او زيد په هغه دعویٰ وکړي چي "دا پسه زما دی او ما هغه له ادريس څخه رانيولی دی"، او قابض يعني خالد ووايي چي "ادريس دا پسه ما ته امانتاً راکړی دی"، نو په دې صورت کي له بيّنه او حجت څخه بغير خصومت ساقطيږي (ختميږي) يعني دې ته ضرورت نسته چي قابض (خالد) په دې هکله بيّنه پېش کړي چي "ادريس دا پسه ما ته امانتاً راکړی دی" بلکي له دې څخه بغير خصومت دفع کيږي؛ ځکه چي مدعي هم له هغه کس څخه د پسه رانيولو دعویٰ کوي

د کوم کس په باره کې چې قابض د امانت دعوی کوي (چې هغه ادریس دی)، نو په دې حواله سره دواړه پر دې خبره متفق دي چې دا پُسه د بل چا یعني د ادریس ملکیت دی او د هغه له طرفه قابض ته رسېدلی دی، لهذا پر دې پُسه چې د قابض کومه قبضه ده، هغه د خصومت قبضه نه ده، او کله چې هغه د خصومت قبضه نه ده، نو د خصومت دفع کولو لپاره به بیّنه پېشولو ته ضرورت هم نه وي.

ها! که چیرې مدعي دا دعوی وکړي چې "ادریس زه پر دې پُسه د قبضه کولو وکیل جوړ کړی یم (یعني هغه ما ته ویلي دي چې ته له خالد څخه زما پُسه واخله!) او مدعي پر دې خبره بیّنه هم پېش کړي، نو په دې صورت کې د مدعي دعوی معتبره ده او هغه ته به د مذکوره پُسه د ورکولو فیصله کیږي؛ ځکه په دې صورت کې مدعي دا خبره ثابته کړه چې اوس پر دې پُسه د قبضه کولو او د هغه د ساتلو زیات مستحق زه یم. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم

الحمد لله! نن د جمادي الثاني په یویشتمه (۲۱) نېټه ۱۴۴۰ھ په مطابق د فروري د اوویشتمې (۲۷) نېټې ۲۰۱۹ء د چهار شنبې په ماخوستن دا فصل پاته ورسېدی.



# بَابُ مَا يَدَّعِيهِ الرَّجُلَانِ

(دا) باب د هغه شي (په بيان کي) دی کوم چي پرې دوه خلک دعوىٰ کوي

**تشريح:** مخکي تر دې د يوه مدعي او د هغه د دعوې په هکله احکام او مسائل بيان سول، او اوس له دې ځايه د دوو مدعيانو او د هغوی د دعوو په هکله مسائل بيانيږي، او دا خبره خو د ادنیٰ درجې طالب هم ته معلومه ده چي يو (مفرد) له دوو (مرکب) څخه مخکي وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د يوه مدعي احکام او مسائل د دوو مدعيانو له احکامو او مسائلو څخه مخکي بيان کړي دي.

## د يوه شي په باره کي د دوو کسانو دعوىٰ کول او بيّنه پېشول

قَالَ: وَإِذَا ادَّعَى اثْنَانِ عَيْنًا فِي يَدِ آخَرَ فرمايي: او کله چي دوه خلک په داسي شي دعوىٰ وکړي کوم چي د بل چا په قبضه کي وي كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَزْعُمُ أَنَّهَا لَهُ [او] له دوی څخه هريو دا ګومان کوي چي هغه شی زما دی وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ او دوی دواړه بيّنه پېش کړي قُضِيَ بِهَا بَيْنَهُمَا نو د دوی په مينځ کي به د هغه شي فيصله کيږي [او په نصف، نصف سره به تقسيمول کيږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي قَوْلٍ: تَهَاتَرَتَا وَفِي قَوْلٍ: يُقْرَعُ بَيْنَهُمَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله په يوه قول کي فرمايلي دي: چي دواړې بيني ساقطيږي او په بل قول کي [يې فرمايلي دي]: چي د دوی په مينځ کي به قرعه اندازي کيږي لِأَنَّ إِحْدَى الْبَيِّنَتَيْنِ كَاذِبَةٌ بِيَقِينٍ ځکه چي له دواړو بينو څخه يوه بيّنه په يقيني توګه درواغجنه ده لِاسْتِحَالَةِ اجْتِمَاعِ الْمِلْكَيْنِ فِي الْكُلِّ فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ ځکه چي په يوه حالت کي په ټوله شي کي د دوو ملکيتونو جمع کېدل ناممکن دي وَقَدْ تَعَذَّرَ التَّمْيِيزُ او [د دوی په مينځ کي] توپير کول هم مشکل دي [چي کومه بيّنه درواغجنه ده او کومه يوه رښتوني ده] فَيَتَهَاتَرَانِ نو ځکه به دواړه ساقطيږي أَوْ يُصَارُ إِلَى الْقُرْعَةِ يا به د قرعه اندازی وطرف ته رجوع کيږي «لِأَنَّ النَّبِيَّ ﷺ أَقْرَعَ [1] فِيهِ وَقَالَ: اللَّهُمَّ أَنْتَ

[1] تخريج: أخرجه الهيثمي في مجمع الزوائد (ج:۴، ص:۲۰۳).

الْحَكَمُ بَيْنَهُمَا» ځکه [روایت سوی دی چي] نبي کریم ﷺ په داسي معامله کي قرعه اندازي وکړه او دا دعاء يې وکړه: "اې الله! ته د دوی په مینځ کي فیصل يې!" وَلَنَا حَدِيثُ تَمِيمِ بْنِ طَرَفَه ❶ «أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى رَسُولِ اللهِ ﷺ فِي نَاقَةٍ وَأَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ فَقَضَى بِهَا بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ» او زموږ دلیل د تمیم بن طرفه ﷺ دا حدیث دی: "چي دوو خلکو د نبي ﷺ په حضور کي د یو اوښي په باره کي دعویٰ وکړه او له دوی څخه یوه بیّنه پېش کړه نو نبي ﷺ د دواړو په مینځ کي د نیمي، نیمي اوښي فیصله وکړه" وَحَدِيثُ الْقُرْعَةِ كَانَ فِي الِابْتِدَاءِ ثُمَّ نُسِخَ او د قرعه اندازي کولو حدیث د اسلام په شروع کي وو بیا منسوخ کړی سو وَلِأَنَّ الْمُطْلَقَ لِلشَّهَادَةِ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُحْتَمَلُ الْوُجُودِ او ځکه چي له دوی دواړو څخه د هر ګواه په حق کي د ګواهۍ د جائز ګرځونکي شي موجودېدل احتمال لري بِأَنْ يَّعْتَمِدَ أَحَدُهُمَا سَبَبَ الْمِلْكِ وَالْآخَرُ الْيَدَ په دې توګه چي یوه ګواه د ملکیت پر سبب او بل ګواه پر قبضې اعتماد کړی وي فَصَحَّتِ الشَّهَادَتَانِ نو دواړي ګواهۍ صحیح سوي فَيَجِبُ الْعَمَلُ بِهِمَا مَا أَمْكَنَ نو ځکه پر دواړو به حتی الامکان عمل کول ضروري وي وَقَدْ أَمْكَنَ بِالتَّنْصِيفِ او په نیمولو [نصف، نصف کولو] سره عمل کول ممکن دي إِذِ الْمَحَلُّ يَقْبَلُهُ ځکه چي محل تنصیف قبلوي وَإِنَّمَا يُنَصَّفُ لِاسْتِوَائِهِمَا فِي سَبَبِ الِاسْتِحْقَاقِ او تنصیف به ځکه کېږي [یعني په نصف، نصف سره به ځکه تقسیمول کېږي] چي د استحقاق په سبب کي دواړه سره برابر دي.

**اللغات**: ﴿عَين﴾ مُتعيّن شی، ﴿يد﴾ قبضه، ﴿يزعم﴾ د مضارع صیغه ده، له نصر او فتح دواړو بابونو څخه ویل کېدای سي: ګومان کول (احسن الهدایه)، ﴿يُقرع﴾ د افعال د باب مضارع مجهول ده: قرعه اندازي کول، قرعه کشي کول، ﴿استحالة﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ناممکن کېدل، ﴿يتهاتران﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: ساقطېدل، ﴿الحَكَم﴾ فیصله کونکی، فیصل (فیصله کُن).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که د خالد په قبضه کي (مثلا) یو پُسه وي، بیا زید او عمر داوړه په هغه دعویٰ وکړي او هر ووایي چي "دا پُسه زما دی"، او کله چي قاضي له هغو څخه بیّنه

❶ تخريج: اخرجه البيهقي في السنن الكبرىٰ، كتاب المعرفة (ج:١٠،ص:٤٣٦).

يعني ګواهان طلب کړي، نو دواړه ګواهان پېش کړي، نو په دې صورت کي زموږ په نېز حکم دا دی چي هغه پُسه به د دواړو مدعيانو په مينځ کي نيم، نيم تقسيمول کيږي. او له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه دوه قوله نقل سوي دي: ① ... اول قول دا دی چي ديوه مدعي په حق کي به هم هيڅ فيصله نه کيږي او د دواړو پېش کړل سوې بيّنه به د ''إِذَا تَعَارَضَا تَسَاقَطَا'' د قاعدې پر بنياد ردول کيږي.
② ... دويم قول دا دی چي په دواړو مدعيانو کي به قرعه اندازي کيږي او د چا په نامه چي قرعه وخيږي، د هغه په حق کي به د مدعیٰ بِهٖ شي (پُسه) فيصله کيږي.

**دليل**: د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دواړو قولونو مجموعي دليل دا دی چي صرف يو شی په يوه وخت کي د خپل ټولو اجزاؤ سره د دوو خلکو په ملکيت کي جمع کېدل ناممکن دي، نو ځکه له دواړو بينو (ګواهيو) څخه يوه بيّنه خو په يقيني توګه درواغجنه او مبني بر کذب ده. او څرنګه چي دا معلومات کول هم ډېر مشکل دي چي کومه بيّنه رښتونې ده او کومه درواغجنه ده. نو ځکه اوس د قاضي مخته صرف دوې لاري دي: ① يو دا چي قاضي دواړي بينې ساقط او بې اعتباره وګرځوي او دعویٰ ختم او ردّ کړي، ② يا دا چي د دواړو په مينځ کي د قرعه اندازۍ په ذريعه فيصله وکړي، او قرعه اندازي کول له نبي کريم ﷺ څخه هم ثابت دي، لکه څرنګه چي په معجم طبراني کي له حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه دا روايت نقل سوی دی: ''أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فِيْ شَيْءٍ، فَأَقَامَا كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ، فَأَقْرَعَ بَيْنَهُمَا. وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: اَللّٰهُمَّ اقْضِ بَيْنَهُمَا أَوْ قَالَ: اَللّٰهُمَّ أَنْتَ الْحَكَمُ بَيْنَهُمَا'' (يعني دوو خلکو په يوه معامله کي دعویٰ او ختلاف وکړی او د فيصلې لپاره يې هغه دعویٰ د نبي ﷺ په حضور کي وړاندي کړه او هر يوه پر خپله دعویٰ بيّنه هم پېش کړه، نو نبي کريم ﷺ د قرعه اندازۍ په ذريعه د هغوی په مينځ کي فيصله وکړه...الخ).

**زموږ دليل**: د حضرت تميم بن طرفه رضي الله عنه دا حديث دی کوم چي مصنف ابن ابي شيبه رَحِمَهُ الله روايت کړی دی: ''أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فِيْ نَاقَةٍ وَأَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةً فَقَضٰى بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ'' (يعني دوو خلکو ديوې اوښې په هکله اختلاف او دعویٰ وکړه چي د فيصلې لپاره يې هغه دعویٰ د نبي ﷺ په حضور کي پېش کړه، نو نبي کريم ﷺ هغه اوښه د دواړو په مينځ کي نيمه، نيمه تقسيم کړه''. دا حديث د دې خبري ښکاره دليل دی چي په پورتنۍ کي مسئله کي به د تنصيف (نيم، نيم تقسيمولو) په طريقه حکم او فيصله کيږي، نه د قرعه اندازۍ په توګه.

پاته سو هغه حدیث چي په هغه کي د نبي کريم ﷺ له طرفه د قرعه اندازي کولو حکم ذکر سوی دی، نو د هغه جواب دا دی چي دا حکم د اسلام په شروع کي وو، لېکن کله چي خمار حرام کړی سو، نو دا حکم منسوخ کړی سو؛ ځکه چي د مستحق کس (حقدار کس) تعیین ابتداءً د استحقاق په درجه کي دی، او څرنګه چي د قرعه اندازي په ذریعه د استحقاق په تعیین (متعین کولو) کي خمار سته، همداسي د قرعه اندازي په ذریعه د مستحق په تعیین کي هم د خمار معنیٰ سته، او خمار حرام او ناجائز دی، لهذا په کوم شي کي چي د خمار بوی وي، هغه به هم ناجائز وي، نو ځکه اوس دا صورت منسوخ سوی دی.

ولأن المطلق للشهادة إلخ: زموږ دویم او عقلي دلیل دا دی چي په دې مسئله کي د دواړو مدعیانو د بیني (ګواهانو) د قبلولو او معتبر کېدلو وجه دا ده چي دواړو ګواهانو داسي ګواهي ورکړې ده کوم چي قبلول کېدای سي، مثلاً دا ممکنه ده چي یوه ګواه به هغه پُسه د خپل مدعي په قبضه کي لیدلی وي او بل ګواه به خپل مدعي د هغه پُسه پر رانیولو لیدلی وي (یعني بل ګواه به د ملکیت پر سبب [رانیولو] اعتماد کړی وي) او په دې حواله سره د دواړو ګواهي (بینه) صحیح ده، او کله چي ګواهي صحیح ده، نو ښکاره خبره ده چي پر هغه عمل کول هم ضروري دي، او د عمل کولو صحیح او رښتوني صورت همدا دی چي مدعیٰ به یعني دعوه داره شی (پُسه) د دواړو په مینځ کي نصف، نصف تقسیم کړی سي؛ ځکه چي د استحقاق په سبب کي دواړه برابر دي او محل یعني مدعیٰ به تنصیف هم قبلوي.

## د یوې ښځي په باره کي د دوو کسانو دعویٰ کول او بینه پېښول

قَالَ: فَإِنِ ادَّعَىٰ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِكَاحَ امْرَأَةٍ وَأَقَامَا بَيِّنَةً فرمايي: او که له دوو کسانو څخه هر یو د ښځي د نکاح کولو دعویٰ وکړي او دواړه بینه پېش کړي لَمْ يُقْضَ بِوَاحِدَةٍ مِنَ الْبَيِّنَتَيْنِ نو له دواړو بینو [ګواهیو] څخه به پر یوه بینه هم فیصله نه کېږي لِتَعَذُّرِ الْعَمَلِ بِهِمَا ځکه چي پر دواړو عمل کول نا ممکن دي لِأَنَّ الْمَحَلَّ لَا يَقْبَلُ الِاشْتِرَاكَ ځکه چي دا محل [ښځه] اشتراک نه قبلوي قَالَ: وَيُرْجَعُ إِلَىٰ تَصْدِيقِ الْمَرْأَةِ لِأَحَدِهِمَا او له دواړو [مدعیانو] څخه به د یوه په حق کي د ښځي د تصدیق وطرف ته رجوع کیږي لِأَنَّ النِّكَاحَ مِمَّا يُحْكَمُ بِهِ بِتَصَادُقِ الزَّوْجَيْنِ ځکه چي نکاح داسي شی ده چي د خاوند او ښځي دواړو په اتفاق سره د هغه فیصله کیږي وَهٰذَا إِذَا لَمْ تُوَقِّتِ الْبَيِّنَتَانِ او دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي دواړو ګواهیو وخت [تاریخ] نه وي بیان کړی فَأَمَّا إِذَا وَقَّتَا لېکن که

دواړو وخت بيان کړی وي فَصَاحِبُ الْوَقْتِ الْأَوَّلِ أَوْلَى نو د اول وخت [مخکني تاريخ] والا ګواهي اولی [او معتبره] ده وَإِنْ أَقَرَّتْ لِأَحَدِهِمَا قَبْلَ إِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ او که له بيّنه پېشولو څخه مخکې هغه ښځه ديوه مدعي لپاره اقرار وکړي فَهِيَ امْرَأَتُهُ نو دا د هغه مدعي [مقرلهٔ] ښځه ګرځي لِتَصَادُقِهِمَا د دوی دواړو د اتفاق [او تصديق] په وجه وَإِنْ أَقَامَ الْآخَرُ الْبَيِّنَةَ او [بيا] که دويم مدعي بيّنه پېش کړي قُضِيَ بِهَا نو د هغه پر بيّنه به فيصله کيږي لِأَنَّ الْبَيِّنَةَ أَقْوَى مِنَ الْإِقْرَارِ ځکه چې بيّنه له اقرار څخه زياته قوي ده وَلَوْ تَفَرَّدَ أَحَدُهُمَا بِالدَّعْوَى او که په دوی کې يوازې يو کس دعوی وکړي وَالْمَرْأَةُ تَجْحَدُ او ښځه انکار کوي فَأَقَامَ الْبَيِّنَةَ وَقَضَى بِهَا الْقَاضِي لَهُ بيا هغه بيّنه پېش کړي او قاضي پر بيّنه د هغه لپاره فيصله وکړي ثُمَّ ادَّعَى الْآخَرُ وَأَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَى مِثْلِ ذٰلِكَ تر دې وروسته دويم يو دعوی وکړي او په هغه توګه بيّنه پېش کړي لَا يُحْكَمُ بِهَا نو د هغه پر بيّنه به فيصله نه کيږي لِأَنَّ الْقَضَاءَ الْأَوَّلَ قَدْ صَحَّ ځکه چې اول فيصله صحيح سوه فَلَا يُنْقَضُ بِمَا هُوَ مِثْلُهُ بَلْ هُوَ دُونَهُ لهذا هغه به په داسې بيّنه سره نه ماتول کيږي کوم چې د اولې بينې په شېر ده، بلکې تر هغه هم کمه ده إِلَّا أَنْ يُوَقِّتَ شُهُودُ الثَّانِي سَابِقًا مګر دا چې د دويم مدعي ګواهان [د اول مدعي له ګواهانو څخه] مخکې والا تاريخ بيان کړي لِأَنَّهُ ظَهَرَ الْخَطَأُ فِي الْأَوَّلِ بِيَقِينٍ ځکه چې په اوله فيصله کې په يقيني توګه خطاء ښکاره سوه وَكَذَا إِذَا كَانَتِ الْمَرْأَةُ فِي يَدِ الزَّوْجِ وَنِكَاحُهُ ظَاهِرٌ او همدارنګه که ښځه د خاوند په نکاح کې وي او د هغه نکاح ښکاره وي لَا تُقْبَلُ بَيِّنَةُ الْخَارِجِ إِلَّا عَلَى وَجْهِ السَّبْقِ نو د غير قابض بيّنه به نه قبلول کيږي مګر د وخت [تاريخ] مخکې کېدلو پر بنياد.

**اللغات:** ﴿لم تُوقت﴾ (لم تؤقت) د تفعيل له بابه د جحد مضارع صيغه ده: وقت ټاکل، وقت ښوول، تاريخ بيانول. ﴿تصادق﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو د بل تصديق کول، پر يو شي د دوو کسانو اتفاق کول. ﴿لا يُنقَض﴾ د نصر له بابه د نفي مجهول صيغه ده: ماتول. ﴿خارج﴾ غيرِ قابض، هغه مدعي چې په قبضه کې يې مدعیٰ به (دعوه داره شی) نه وي. ﴿سَبْق﴾ د ضرب او نصر د باب مصدر دی: مخکې کېدل، وړاندې کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که دوه خلک د يو ښځې په باره کې دعویٰ وکړي او هر يو ووايي چې "ما د هغې سره نکاح کړې ده او هغه زما ښځه ده" او پر دې بيّنه هم پېش کړي، نو په دې صورت کې به د هيچا په حق کې هم فيصله نه کيږي؛ ځکه چې دا محل يعني ښځه اشتراک نه قبلوي يعني يوازې يوه ښځه په يوه وخت کې د دوو خلکو مابينه (زوجه) نه سي گرځېدای، نو ځکه د "إِذَا تَعَارَضَا تَسَاقَطَا" پر بنياد به د دواړو دعویٰ او بيّنه ردول کيږي، او بيا به له ښځې څخه پوښتنه کيږي چې "ته د کوم يوه ښځه يې!" نو هغه چې د کوم يوه په حق کې تصديق وکړي، د هغه په حق کې به فيصله کيږي او د هغه سره به د ښځې نکاح ثابتيږي؛ ځکه کله چې بغير له دعوې هم د خاوند او ښځې په اتفاق او تصديق سره نکاح ثابتيږي، نو د دعوې او بينې او تصديق په صورت کې خو به په درجه اولیٰ نکاح ثابتيږي. لېکن دا حکم په هغه صورت کې دی کله چې له دواړو گواهانو څخه يوه هم د نکاح تاريخ نه وي ذکر کړی، او که دواړو د نکاح وخت او تاريخ ذکر کړی وي، نو د کوم يوه تاريخ چې مخکې وي، صرف د هغه بيّنه به قبلول کيږي؛ ځکه چې د "الفَضْلُ لِلْمُتَقَدِّم" قاعده مشهوره ده.

وإن أقرّت لأحدهما إلخ: د دې حاصل دا دی چې که په پورتني صورت کې د دواړو مدعيانو له بيّنه پېشولو څخه مخکې ښځه د يوه لپاره اقرار وکړي چې "زه د دې سړي ښځه يم"، نو هغه د دې سړي (مقر لهٗ) ښځه گرځي او د هغې اقرار معتبر دی؛ بيا که د هغې تر اقرار کولو وروسته دويم مدعي پر خپله دعویٰ بيّنه پېش کړي، نو د هغه پر بيّنه به د هغه په حق کې فيصله کيږي او ښځه به د هغه سره استول کيږي؛ ځکه چې د حجت متعديه کېدلو په وجه بيّنه له اقرار څخه زياته قوي ده، لهذا د بينې پېشولو سره به سمدستي اقرار ختميږي.

ولو تفرّد أحدهما إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د يو ښځې په باره کې اول صرف يو سړی د نکاح کولو دعویٰ وکړي (چې ما د هغې سره نکاح کړې ده)، لېکن ښځه د هغه دعویٰ بالکل ردّ کړي او هغه سړی (مدعي) په بيّنه پېشولو سره خپله دعویٰ مؤکده او مضبوطه کړي، نو قاضي به د هغه په حق کې فيصله کوي؛ او تر دې وروسته که يو بل سړی هم د هغه ښځې سره د نکاح کولو دعویٰ وکړي او بيّنه پېش کړي، نو د هغه پر بيّنه به فيصله نه کيږي؛ ځکه چې اوله فيصله هم پر بيّنه وسوه او دا هم بيّنه ده او د اولې بينې سره مشابه ده، نو ځکه په دې بيّنه سره به اوله بيّنه نه باطليږي؛ ځکه قاعده دا ده چې "الشَّيْءُ لَا يُنْقَضُ بِمِثْلِهِ" (يعني شی په خپل مثل سره نه باطلول کيږي)، بلکې دلته اوله بيّنه له

دويمي بينې شخه اقوىٰ هم ده؛ ځکه چي د هغې سره د قاضي فيصله متصل ده، نو ځکه هغه به په درجه اولىٰ په دويمي بينې سره نه باطليږي.

ها! که چيري د دويم مدعي گواهان د اول مدعي د گواهانو له تاريخ شخه په مخکي تاريخ کي د نکاح کېدلو گواهي ورکړي (مثلا د اول مدعي گواهانو ويلي وي چي زموږ مُدعي د رجب د مياشتي په لسمه ورځ د هغې سره نکاح کړې ده او دويم مدعي گواهان ووايي چي زموږ مُدعي د رجب د مياشتي په دويمه ورځ د هغې سره نکاح کړې ده)، نو په دې صورت کي به د دويم مدعي بيّنه (گواهان) قبلول کيږي؛ ځکه چي د تاريخ مخکي کېدلو په وجه د اول مدعي د بينې غلط کېدل ښکاره سوه، او کله چي اوله بيّنه غلطه ښکاره او ثابته سوه، نو ښکاره خبره ده چي اوس پر هغه بيّنه فيصله باقي ساتل ناممکن دي، نو ځکه دا فيصله به اوس د دويمي بينې سره متعلق کول کيږي.

همدارنگه که ښځه د يو سړي په نکاح کي وي او د هغه نکاح په خلکو کي مشهوره او معروفه هم وي، بيا يو سړی د هغې سره د نکاح کولو دعوىٰ وکړي (چي د دې ښځي سره خو ما نکاح [کوزده] کړې ده، ته څوک يې!)، نو په دې صورت کي به هم د وخت او تاريخ د مخکي کېدلو پر بنياد د هغه بيّنه قبلول کيږي، کنې نه به قبلول کيږي. (احسن الهدايه)

## له قابض (صاحبُ اليد) شخه د شي رانيولو په باره کي د دوو کسانو دعوىٰ کول او بيّنه پېشول

| |
|---|
| قَالَ: وَلَوِ ادَّعَى اثْنَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنَّهُ اشْتَرَى مِنْهُ لهذَا الْعَبْدَ مَعْنَاهُ مِنْ صَاحِبِ الْيَدِ فرمايي: او که له دوو کسانو شخه هر يو دا دعوىٰ وکړي چي ما له هغه شخه يعني له قابض شخه دا غلام رانيولى دى وَأَقَامَا بَيِّنَةً او دواړه [مدعيان] بيّنه پېش کړي فَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَخَذَ نِصْفَ الْعَبْدِ بِنِصْفِ الثَّمَنِ وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُ نو له دوى دواړو شخه هر يوه ته اختيار دى که وغواړي نو په نيم قيمت سره دي نيم غلام واخلي او که وغواړي نو هغه دي پرېږدي لِأَنَّ الْقَاضِيَ يَقْضِي بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ لِاسْتِوَائِهِمَا فِي السَّبَبِ ځکه چي په سبب کي د مساوي کېدلو په وجه به قاضي د دوى په مينځ کي د نيم، نيم غلام فيصله کوي فَصَارَ كَالْفُضُولِيَّيْنِ إِذَا بَاعَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنْ رَجُلٍ وَأَجَازَ الْمَالِكُ الْبَيْعَيْنِ نو دا داسي سوه لکه له دوو فضوليانو شخه چي هر يو پر جلا سړي [د يو مالک غلام] خرڅ کړي او مالک د دواړو بيعو اجازت ورکړي يُخَيَّرُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو هر سړي ته اختيار ورکول کيږي [يعني |

هر يوه ته د نصف غلام اخيستلو او نه اخيستلو اختيار حاصليږي] لِأَنَّهُ تَغَيَّرَعَلَيْهِ شَرْطُ عَقْدِهِ ځکه چي پر هر سړي د هغه د عقد شرط متغيّر سوی دی فَلَعَلَّ رَغْبَتَهُ فِي تَمَلُّكِ الْكُلِّ ځکه کېدای سي چي د هغه خواهش [او خوښه] د ټوله غلام په مالک کېدلو کي وي [يعني د هغه خوښه او منشاء به دا وي چي د ټوله غلام مالک سي] فَيَرُدُّهُ وَيَأْخُذُ كُلَّ الثَّمَنِ لَوْأَرَادَ نو ځکه به مبيع [نصف غلام] واپس کوي او ټوله ثمن به اخلي که چيري هغه وغواړي وَإِنْ قَضَى الْقَاضِي بِهِ بَيْنَهُمَا فَقَالَ أَحَدُهُمَا: لَا أَخْتَارُ او که قاضي د دواړو [مشتريانو (مدعيانو)] په مينځ کي د نصف، نصف غلام فيصله وکړي، لېکن يو مشتري ووايي: چي زه نصف غلام نه غواړم [يعني له نصف غلام اخيستلو څخه انکار وکړي] لَمْ يَكُنْ لِلْآخَرِ أَنْ يَأْخُذَ جُمْلَتَهُ نو دويم مشتري [مدعي] لره دا ختيار نسته چي ټوله غلام واخلي لِأَنَّهُ صَارَ مَقْضِيًّا عَلَيْهِ فِي النِّصْفِ ځکه چي د هغه په خلاف په نصف غلام کي فيصله سوې ده فَانْفَسَخَ الْبَيْعُ فِيهِ نو ځکه په دې نصف کي بيع فسخ سوه وَهٰذَا لِأَنَّهُ خَصَمَ فِيهِ او دا ځکه چي هغه په دې نصف کي خصم دی لِظُهُورِ اسْتِحْقَاقِهِ بِالْبَيِّنَةِ لَوْلَا بَيِّنَةُ صَاحِبِهِ ځکه که چيري د هغه د ملګري [بل مشتري] بيّنه نه وای نو د بينې په وجه به د ده استحقاق [په ټوله غلام کي] ښکاره کېدای بِخِلَافِ مَا لَوْقَالَ ذٰلِكَ قَبْلَ تَخْيِيرِ الْقَاضِي په خلاف د هغه صورت کله چي يوه مشتري د قاضي له إختيار ورکولو څخه مخکي دا ويلي وي [يعني د هغه له فيصلې څخه مخکي يې انکار کړی وي] حَيْثُ يَكُونُ لَهُ أَنْ يَأْخُذَ الْجَمِيعَ نو په دې صورت کي دويم مشتري ته دا اختيار سته چي ټوله غلام واخلي لِأَنَّهُ يَدَّعِي الْكُلَّ ځکه چي هغه د ټوله غلام مدعي دی وَلَمْ يَفْسَخْ سَبَبُهُ او د هغه سبب نه دی فسخ سوی وَالْعَوْدُ إِلَى النِّصْفِ لِلْمُزَاحِمَةِ او د نصف وطرف ته رجوع کول د مزاحمت [مزاحم کېدلو] په وجه دي وَلَمْ تُوجَدْ او [دلته] مزاحمت نسته وَنَظِيرُهُ تَسْلِيمُ أَحَدِ الشَّفِيعَيْنِ قَبْلَ الْقَضَاءِ او د دې مثال د قاضي تر فيصلې مخکي له دواړو شفيع ګانو څخه د يوه شفيع [دويم شفيع ته] شفعه ورکول دي [يعني د دې مثال دا دی چي د قاضي له طرفه د نصف، نصف شفعي تر فيصله کولو مخکي يو شفيع خپل نصف شفعه دويم شفيع ته وسپاري يعني د خپل نصف شفعي له اخيستلو څخه انکار وکړي (نور وضاحت به يې په تشريح کي وسي)] وَنَظِيرُ الْأَوَّلِ تَسْلِيمُهُ بَعْدَ الْقَضَاءِ او د اول مثال د قاضي تر فيصلې وروسته له دواړو څخه د يوه شفيع [دويم شفيع ته] شفعه ورکول دي.

**اللغات**: ﴿صاحب اليد﴾ قبضې والا. قابض. دچا په قبضه کې چې شي وي. ﴿استواء﴾ دافتعال دباب مصدر دی: برابرېدل. مساوي کېدل. ﴿يُخيّر﴾ دتفعيل دباب مضارع مجهوله ده: اختيار ورکول. ﴿تملّك﴾ د تفعّل دباب مصدر دی: مالک کېدل. مالک جوړېدل. ﴿فضولي﴾ دفضول وطرف ته منسوب دی (يعني هغه کس کوم چې بې ځايه [بې اجازې] کار وکړي). دفقهاؤ په اصطلاح کې هغه سړي ته وايي کوم چې دمالک له اجازې څخه بغير دهغه په حق کې تصرف وکړي. ﴿مقضيًا﴾ مقضي: دضرب دباب مفعول دی. مقضيًا عليه: دچا په خلاف چې فيصله سوې وي. ﴿مزاحمة﴾ دمفاعلې دباب مصدر دی: مزاحم کېدل. مقابل کېدل. ﴿تسليم﴾ د تفعيل دباب مصدر دی: ورسپارل. ورکول. يو شی دبل چا لپاره خالص ګرځول (او خپله هيڅ حصه نه پکښې اخيستل).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که دخالد په قبضه کې يو غلام موجود وي. بيا زيد او حامد دواړه دهغه د رانيولو دعویٰ وکړي يعني هريو ووايي چې "ما له قابض (خالد) څخه دا غلام رانيولی دی" او دواړه بيّنه هم پېش کړي. لېکن يو هم دغلام رانيولو تاريخ ذکر نه کړي. نو په دې صورت کې به قاضي د دوی په مينځ کې هغه غلام نيم. نيم تقسيموي او هر مدعي ته اختيار دی که خوښه يې وي نو په نيم ثمن (قيمت) سره دې نيم غلام واخلي او که خوښه يې نه وي نو هغه دې پرېږدي؛ ځکه کله چې دواړه دغلام رانيولو دعویٰ کوي او دواړو بيّنه هم پېش کړې ده. نو ښکاره خبره ده چې په هغه کې به د دواړو حصه وي او دواړه به دنصف. نصف غلام اخيستلو حقداره وي.

د دې مثال داسې دی لکه دوه فضوليان چې پر دوو جلا خلکو دبل چا غلام خرڅ کړي او هغه بل څوک (دغلام مالک) دبيع اجازت هم ورکړي، نو په دې صورت کې هم دواړو خلکو ته دنصف. نصف غلام اخيستلو اختيار سته؛ ځکه چې پر هر سړي (مشتري) دا عقد مختلف سو. ځکه دهريوه خوښه او منشاء دا وه چې ټوله غلام هغه رانيسي. لېکن په تنصيف (يعني دغلام په نصف کېدلو) سره د هغه دا خوښه او منشاء باطله سوه. نو ځکه هريوه ته به دنصف غلام اخيستلو او نه اخيستلو اختيار وي.

وإن قضى القاضي إلخ: د دې حاصل دا دی چې کله قاضي د دواړو مشتريانو (مدعيانو) په مينځ کې غلام تقسيم کړي او د دواړو لپاره دنصف. نصف غلام فيصله وکړي. تر دې وروسته يو مشتري ووايي چې "زه نيم غلام نه اخلم. بلکې ټوله غواړم". نو په دې صورت کې دويم مشتري ته دا اختيار نسته چې ټوله غلام واخلي (رانيسي)؛ ځکه چې هغه مقضي عليه ګرځېدلی دی (دهغه په خلاف فيصله سوې ده) يعني دهغه لپاره صرف دنصف غلام دبيع فيصله سوې ده. نو ځکه اوس په دې نصف کې بيع فسخ سوې ده. او بيع چې کله دقاضي په فيصله سره فسخ کيږي نو هغه له تجديد څخه بغير نه راګرځي. او دلته تجديد نه دی سوی.

وهذا لأنه خصم إلخ: دا د یو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي دا دویم مشتري خو مدعي دی نو بیا هغه څنګه مقضي علیه کېدای سي، نو د دې جواب دا دی چي هغه په دې نصف کي خصم دی، ځکه په دې نصف کي د بل (اول) مشتري مستحق کېدل د بینې په ذریعه ثابت سوي دي، همدا وجه ده که د هغه لپاره بیّنه نه وای نو دا دویم مشتري به د ټوله غلام مستحق کېدای، نو ځکه اوس به هغه ته د ټوله غلام اخیستلو اختیار نه وي. ها! که چیري د قاضي تر فیصلې مخکي یو مشتري له نصف اخیستلو څخه انکار وکړي، نو په دې صورت کي دویم مشتري ته د ټولو غلام اخیستلو اختیار سته؛ ځکه چي هغه خو له مخکي څخه هم د ټوله غلام اخیستلو نعرې وهي او د اول مدعي د انکار کولو په وجه د هغه لپاره لاره هم صفا سوه، نو ځکه په دې صورت کي به هغه ته د ټوله غلام اخیستلو اختیار وي او هغه ته به پوره غلام ورکول کیږي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي د اولي مسئلې مثال دا دی چي که په یو کور کي دوه کسان د شفعي حق لري، او قاضي د هغوی دواړو په مینځ کي د نصف، نصف شفعي یعني د نصف، نصف کور فیصله کول وغواړي، لېکن له هغو څخه یو کس (یو شفیع) له نصف کور اخیستلو څخه انکار وکړي، نو په دې صورت کي دویم شفیع ته د ټوله کور اخیستلو اختیار سته. او د دویمي مسئلې مثال دا دی چي قاضي د دواړو شفیع ګانو په مینځ کي د نصف، نصف فیصله وکړي او تر فیصلې وروسته یو شفیع (یو مدعي) له نصف اخیستلو څخه انکار وکړي، نو په دې صورت کي دویم شفیع ته د ټوله کور اخیستلو اختیار نسته.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَلَوْ ذَكَرَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا تَارِيخًا او که له دواړو مدعیانو څخه هر یو تاریخ بیان کړي فَهُوَ لِلْأَوَّلِ مِنْهُمَا نو هغه غلام د اول [مخکني] تاریخ والا دی لِأَنَّهُ أَثْبَتَ الشِّرَاءَ فِي زَمَانٍ لَا يُنَازِعُهُ فِيهِ أَحَدٌ ځکه هغه په داسي وخت کي شراء [رانیول] ثابت کړي دي چي په هغه کي هیڅوک د ده مزاحم [مقابل] نه دی فَانْدَفَعَ الْآخَرُ بِهِ نو ځکه په دې سره به د دویم شراء دفع کیږي وَلَوْ وَقَّتَتْ إِحْدَاهُمَا وَلَمْ يُوَقِّتِ الْأُخْرَى او که له دواړو بینو [ګواهیو] څخه د یوه [مدعي] بیّنه وخت بیان کړي او بله وخت بیان نه کړي فَهُوَ لِصَاحِبِ الْوَقْتِ نو هغه غلام د وخت والا [تاریخ بیانونکي مدعي] دی لِثُبُوتِ مِلْكِهِ فِي ذَلِكَ الْوَقْتِ ځکه چي په هغه وخت کي د ده ملکیت ثابت دی وَاحْتَمَلَ الْآخَرُ أَنْ يَكُونَ قَبْلَهُ أَوْ بَعْدَهُ او په دویم کي احتمال دی چي تر هغه وخت به مخکي وي او که وروسته وي فَلَا يُقْضَى لَهُ بِالشَّكِّ نو ځکه د شک

په وجه به د هغه لپاره فيصله نه کيږي وَإِنْ لَمْ يَذْكُرَا تَارِيخًا وَمَعَ أَحَدِهِمَا قَبْضٌ او که دواړه تاريخ بيان نه کړي او په دوی کي د يوه سره قبضه وي فَهُوَ أَوْلَى نو هغه [قبضې والا] زيات حقداره دی وَمَعْنَاهُ: أَنَّهُ فِي يَدِهِ او د دې [ومع أحدهما قبض] معنیٰ دا ده: چي هغه غلام د يوه په قبضه کي وي لِأَنَّ تَمَكُّنَهُ مِنْ قَبْضِهِ يَدُلُّ عَلَى سَبْقِ شِرَائِهِ ځکه چي پر قبضې د هغه قادر کېدل د هغه د رانيولو پر مخکي والي دلالت کوي [يعني پر دې دلالت کوي چي هغه مخکي غلام رانيولی دی] وَلِأَنَّهُمَا اسْتَوَيَا فِي الْإِثْبَاتِ او ځکه چي دواړه مدعيان د دعوې په اثبات کي برابر دي فَلَا يُنْقَضُ الْيَدُ الثَّابِتَةُ بِالشَّكِّ نو ځکه ثابته سوې قبضه به د شک په وجه نه ماتول کيږي وَكَذَا لَوْ ذَكَرَ الْآخَرُ وَقْتًا او همدا حکم دی که چيري دويم مدعي وخت [تاريخ] بيان کړي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی إِلَّا أَنْ يَشْهَدُوا أَنَّ شِرَاءَهُ كَانَ قَبْلَ شِرَاءِ صَاحِبِ الْيَدِ مګر دا چي ګواهان دا ګواهي ورکړي چي د هغه رانيول د قابض له رانيولو څخه مخکي دي لِأَنَّ الصَّرِيحَ يَفُوقُ الدَّلَالَةَ ځکه چي صراحت له دلالت څخه بالا [او مخکي] وي.

**اللغات**: ﴿شراء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: رانيول، خريداري، ﴿لا ينازعه﴾ د مفاعلې د باب نفي صيغه ده: جنګ او اختلاف کول، خصومت او دعویٰ کول، ﴿اندفع﴾ د انفعال د باب ماضي ده: دفع کېدل، ليري کېدل، ختمېدل، ﴿تمكّن﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: پر يو شي قادر کېدل، قدرت پيدا کول، ممکن کېدل، ﴿اثبات﴾ د افعال د باب مصدر دی: ثابتول، ﴿صريح﴾ واضح، په ښکاره لفظو کي مذکور، ﴿يفوق﴾ د نصر د باب مضارع ده: بالا کېدل، افضل کېدل، راجح کېدل، مخکي کېدل. (مصباح منير)

**تشريح**: فرمايي که په مخکنۍ مسئله کي دواړه دعویٰ کونکي (زيد او حامد) د غلام رانيولو تاريخ بيان کړي او دواړه د هغه تاريخ مطابق بيّنه پېش کړي، نو مدعیٰ به غلام د هغه يوه حق کيږي چي د هغه د رانيولو تاريخ مخکي (مُقدَم) وي؛ ځکه چي په هغه تاريخ کي به دا غلام صرف د هغه مملوک وي او دويم مدعي به د هغه مقابل او د هغه سره دعویٰ کونکی نه وي، نو ځکه د دويم مدعي دعویٰ به ختمه سي. همدارنګه که يو مدعي د رانيولو تاريخ بيان کړي او بل يو يې بيان نه کړي، نو ښکاره خبره ده چي کوم يوه تاريخ بيان کړی وي، غلام د هغه حق کيږي؛ ځکه چي په مذکوره بيان سوي تاريخ کي د هغه ملکيت په يقيني توګه ثابت دی او د دويم مدعي د ملکيت په ثبوت کي دا احتمال سته

چي آیا هغه به د تاریخ بیانونکي مدعي له شراء (رانیولو) څخه مخکي غلام رانیولی وي او که وروسته، او قاعده دا ده چي "مَا ثَبَتَ بِيَقِيْنٍ لَا يَزُوْلُ بِالشَّكِّ"، نو ځکه په دې صورت کي به هم د دویم مدعي دعوىٰ ختمه سي.

وإن لم يذكرا تاريخا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که دواړه مدعیان (زید او حامد) تاریخ بیان نه کړي، لېکن په دوی کي یو پر غلام قابض وي (یعني غلام دیوه مدعي په قبضه کي وي)، نو د هغه په حق کي به فیصله کیږي؛ ځکه چي د هغه قابض کېدل د هغه د مخکي رانیولو دلیل دی. او بل دا چي کله دواړه مدعیان په دعوىٰ او بیّنه کي برابر دي او یوه هم تاریخ نه دی بیان کړی، نو د کوم یوه په قبضه کي چي غلام بالفعل موجود دی، د شک په وجه به د هغه قبضه نه ماتول کیږي. همدا حکم په هغه صورت کي هم دی کله چي دویم مدعي خپل د شراء (رانیولو) تاریخ بیان کړي؛ ځکه چي اوس هم د قابض قبضه د هغه د مخکي رانیولو دلیل دی، ها! که چیري دویم مدعي په ګواهانو سره دا ثابته کړي چي "ماله قابض څخه مخکي دا غلام رانیولی دی"، نو بیا مذکوره غلام د هغه حق کیږي (هغه ته به ورکول کیږي)؛ ځکه چي په دې صورت کي د دویم مدعي د شراء مخکي والی په صریح دلیل (بیّنه) سره ثابت سوی دی او د قابض د شراء مخکي والي دلالتاً په قبضه سره ثابت سوی دی، او صراحتاً ثابت سوی شی له دلالتاً ثابت سوي شي څخه مخکي وي، نو ځکه به اوس دا دویم مدعي د هغه غلام مستحق وي.

## د یوه شي په باره کي د دوو کسانو د شراء او هبه مع القبض دعوىٰ کول

قَالَ: وَإِنِ ادَّعَى أَحَدُهُمَا شِرَاءً وَالْآخَرُ هِبَةً وَقَبْضًا فرمايي: او كه له دوی دواړو څخه يو د رانيولو دعوىٰ وكړي او بل د هبه او قبضې [هبه مع القبض] دعوىٰ وكړي مَعْنَاهُ مِنْ وَاحِدٍ يعني له يو سړي څخه وَأَقَامَا بَيِّنَةً وَلَا تَارِيخَ مَعَهُمَا او دواړه بيّنه پېش كړي حال دا چي د دواړو سره تاريخ نه وي فَالشِّرَاءُ أَوْلَى نو رانيول اولىٰ [او معتبر] دي لِأَنَّ الشِّرَاءَ أَقْوَى ځكه چي رانيول [له هبې څخه] زيات قوي دي لِكَوْنِهِ مُعَاوَضَةً مِنَ الْجَانِبَيْنِ ځكه چي رانيولو له دواړو طرفونو څخه معاوضه [او معامله] ده وَلِأَنَّهُ يُثْبِتُ الْمِلْكَ بِنَفْسِهِ او ځكه چي رانيول بذات خود ملكيت ثابتوي وَالْمِلْكُ فِي الْهِبَةِ يَتَوَقَّفُ عَلَى الْقَبْضِ حال دا چي په هبه كي ملكيت پر قبضه موقوف وي وَكَذَا الشِّرَاءُ وَالصَّدَقَةُ مَعَ الْقَبْضِ او همدا حكم د رانيولو او د صدقه مع القبض هم دی ايعني كه له دوو كسانو څخه يو دا دعوىٰ وكړي چي "ماله

فلانکي څخه دا شی (مثلا پسه) رانيولی دی" او بل يو ووايي چي "دا شی ما ته هغه فلانکي صدقه کړی دی او ما قبضه هم پر کړې وه". نو په دې صورت کي هم شراء اولیٰ ده] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَالْهِبَةُ وَالْقَبْضُ وَالصَّدَقَةُ مَعَ الْقَبْضِ سَوَاءٌ او هبه مع القبضه او صدقه مع القبض دواړه سره برابر دي حَتَّى يُقْضَى بَيْنَهُمَا تر دې چي د دواړو مدعيانو په مينځ کي به [د نصف، نصف] فيصله کيږي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي وَجْهِ التَّبَرُّعِ ځکه چي د تبرّع په وجه کي دواړه برابر دي [ځکه هبه او صدقه دواړه د تبرّع (احسان) عقدونه دي (يعني په دواړو کي مفت او د احسان په توګه شی ورکول کيږي)] وَلَا تَرْجِيحَ بِاللُّزُومِ او د لازم کېدلو په وجه [صدقې لره] ترجيح نسته لِأَنَّهُ يَرْجِعُ إِلَى الْمَآلِ ځکه چي لزوم د مال [انجام] وطرف ته راجع دی [يعني لزوم په آخر کي ثابتيږي] وَالتَّرْجِيحُ بِمَعْنًى قَائِمٍ فِي الْحَالِ حال دا چي ترجيح د داسي سبب په وجه وي کوم چي في الحاله موجود وي وَهٰذَا فِيمَا لَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ صَحِيحٌ او دا حکم په هغه شيانو کي صحيح دی کوم چي تقسيم نه قبلوي وَكَذَا فِيمَا يَحْتَمِلُهَا عِنْدَ الْبَعْضِ او همدارنګه د ځيني مشايخو په نيز په هغه شيانو کي هم صحيح دی کوم چي تقسيم قبلوي لِأَنَّ الشُّيُوعَ طَارِئٌ ځکه چي اشتراک وروسته واقع سوی دی وَعِنْدَ الْبَعْضِ لَا يَصِحُّ او د ځيني مشايخو په نيز صحيح نه دی لِأَنَّهُ تَنْفِيذُ الْهِبَةِ فِي الشَّائِعِ ځکه چي دا په مشترک شي کي هبه نافذول دي.

**اللغات**: ﴿معاوضة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: د عوض په بدله کي عوض ورکول، يو شي په بل شي سره بدلول، معامله کول. ﴿تبرّع﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: نېکي او احسان کول، بلا عوضه (مفت) يو شی ورکول. ﴿يحتملها﴾ زغمل، برداشتول. ﴿شيوع﴾ اشتراک، (نا تقسيم سوی شرکت). ﴿مآل﴾ انجام، وروستنی حالت، آخري حالت. ﴿طارئ﴾ د فتح د باب فاعل دی: طاري کېدونکی، وروسته واقع کېدونکی (وروسته پېښېدونکی)، غير اصلي. ﴿شائع﴾ او مشاع: مشترک (هغه شی کوم چي مشترک وي لېکن تر اوسه تقسيم سوی نه وي [يعني د هر شريک حصه پکښي معلومه نه وي]).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که له دوو خلګو څخه يو داسي دعویٰ وکړي چي "ما دا پسه له نعمان څخه رانيولی دی" او بل يو دا دعویٰ وکړي چي "دا پسه ما ته نعمان هبه کړی دی او ما پر هغه قبضه هم کړې وه". بيا دواړه پر خپله دعویٰ بيّنه پېش کړي. لېکن د يوه سره هم تاريخ درج نه وي.

نو په دې صورت کې چې کوم يو د رانيولو دعویٰ کوي، د هغه ښينې ته به ترجيح ورکول کيږي؛ ځکه په رانيولو (شراء) کې د بائع او مشتري دواړو له طرفه معامله کيږي او په رانيولو سره بذات خود ملکيت ثابتيږي، لېکن هبه (هديه) صرف له يوه طرفه ورکول کيږي او تر قبضې وروسته په هغه کې ملکيت ثابتيږي (يعني انسان هغه وخت د هبه سوي شي مالک کيږي کله چې هغه شی له واهب [هبه کونکي] څخه واخلي او قبضه پر وکړي)، نو ځکه په دې حواله سره به شراء له هبې څخه مخکې وي او کوم يو چې د شراء مدعي وي، صرف د هغه دعویٰ به معتبره او مقبوله وي.

وکذا الشراء والصدقة إلخ: فرمايي: کوم حکم چې د شراء او هبه مع القبض د مدعيانو دی، هغه حکم د شراء او صدقه مع القبض د مدعيانو هم دی، يعني په دې صورت کې به هم شراء ته ترجيح ورکول کيږي او صرف د شراء د مدعي دعویٰ به معتبره او مقبوله وي. ها! که چيري يو مدعي د هبه مع القبض دعویٰ وکړي او بل مدعي د صدقه مع القبض دعویٰ وکړي او د يوه سره هم تاريخ نه وي، نو مدعیٰ بهٖ (پُسه) به دواړو ته نصف، نصف ورکول کيږي؛ ځکه چې په احسان او تبرّع کې دواړه برابر دي او هبه او صدقه دواړه په قبضه سره پوره کيږي، نو ځکه دلته به يوه ته هم پر بل هيڅ ترجيح نه وي او دواړو ته به برابر (نصف، نصف) ورکول کيږي.

ولا ترجيح باللزوم إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چې صدقه او هبه مساوي ګرځول صحيح نه دي؛ ځکه چې صدقه پر صدقه کونکي لازميږي يعني که څوک يو شی صدقه او خيرات کړي نو بيا په هغه کې رجوع نه سي کولای (واپس يې نه سي اخيستلای)، لېکن هبه نه لازميږي او په هغه کې رجوع کېدای سي، نو په دې حواله سره صدقه له هبې څخه راجح او افضله ده، لهذا کوم يو چې د صدقې دعویٰ کوي، د هغه دعویٰ راجح کېدل او مخکې کېدل پکار دي، لېکن تاسو دواړه مساوي (برابر) ګرځولي دي، آخر د دې څه وجه ده؟

نو د هغه جواب دا دی چې که څه هم صدقه لازميږي لېکن لزوم (لازمېدل) د ترجيح وجه او علامت نه دی؛ ځکه چې لزوم د مال سره متعلق وي لېکن ترجيح في الحاله د يو سبب په وجه وي، نو ځکه د لزوم په وجه به د صدقې د مدعئ دعویٰ ته هيڅ ترجيح نه وي.

وهذا فيما لا يحتمل إلخ: فرمايي چې د دواړو مدعيانو په مينځ کې د نصف، نصف حکم او فيصله کول په هغه شيانو کې صحيح دي کوم چې تر تقسيمولو وروسته هم د انتفاع (نفع اخيستلو) قابل نه پاتېږي، لکه حمام (غسل خانه) او داسې نور، صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د "فيما لا يحتمل القسمة" په جمله سره همدا خبره مراد کړې ده، لېکن د ځيني مشايخو په نېز په هغه شيانو کې هم تنصيف

کېدای سي کوم چي تر تقسیمولو وروسته د انتفاع قابل پاتېږي؛ لکه کور، باغ او داسي نور؛ ځکه چي د هبې دا شيوع (اشتراک) طاري دی يعني وروسته واقع سوی دی (يعني يو مدعي خو اول د ټوله پُسه مستحق سوی وو، مګر د دويم مدعي په مزاحم کېدلو سره هبه په نصف مشترک کي پاته سوه)، او وروسته واقع کېدونکي شيوع له تنصيف څخه مانع نه وي، او د ځيني مشايخو په نيز تنصيف صحيح نه دی؛ ځکه چي په تنصيف سره په مشترک شي کي هبه کول لازميږي او په مشترک شي کي هبه صحيح نه ده، نو ځکه د هغه تنصيف (نيمول) به هم صحيح نه وي. دا قول امام صاحب رَحِمَهُ الله ته منسوب دی. (بنايه ج:۸، ص:۴۳۸)

## د يوه غلام په باره کي د رانيولو او په مهر کي د ټاکل کېدلو دعوىٰ کېدل (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا ادَّعٰى أَحَدُهُمَا الشِّرَاءَ وَادَّعَتْ امْرَأَةٌ أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا عَلَيْهِ فرمايي: او کله چي په دوی کي يو مدعي [له قابض څخه د غلام] د رانيولو دعوی وکړي او ښځه دا دعوىٰ وکړي چي قابض زما سره پر هغه غلام نکاح کړې ده فَهُمَا سَوَاءٌ نو دواړه دعوىٰ کونکي سره برابر دي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْقُوَّةِ ځکه چي په قوت کي دواړه برابر دي فَإِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ يُثْبِتُ الْمِلْكَ بِنَفْسِهِ ځکه له شراء او نکاح څخه هر يو د معاوضې عقد دی کوم چي بذات خود ملکيت ثابتوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ او دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ[*]: الشِّرَاءُ أَوْلٰى او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي رانيول اولیٰ [او مخکي] دي وَلَهَا عَلَى الزَّوْجِ الْقِيمَةُ او پر خاوند د ښځي لپاره د غلام قيمت واجب دی لِأَنَّهُ أَمْكَنَ الْعَمَلُ بِالْبَيِّنَتَيْنِ بِتَقْدِيمِ الشِّرَاءِ ځکه چي د شراء په مخکي کولو سره پر دواړو بينو [ګواهيو] عمل کول ممکن دي إِذِ التَّزَوُّجُ عَلٰى عَيْنٍ مَمْلُوكَةٍ لِلْغَيْرِ صَحِيحٌ ځکه پر غير مملوک شي نکاح کول صحيح دي وَتَجِبُ قِيمَتُهُ عِنْدَ تَعَذُّرِ تَسْلِيمِهِ او د هغه شي د ورسپارلو د ناممکن والي په وخت کي د هغه قيمت واجبيږي وَإِنِ ادَّعٰى أَحَدُهُمَا رَهْنًا وَقَبْضًا وَالْآخَرُ هِبَةً وَقَبْضًا او که يو مدعي د رهن مع القبض دعوىٰ وکړي او بل د هبه مع القبض دعوىٰ وکړي وَأَقَامَا بَيِّنَةً او دواړه بيّنه پېش کړي

[*] القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المنتقى (ج:۳، ص:۳۷۶)، وكذا في تنوير الأبصار (ج:۲، ص:۴۸۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۸۴]

فَالرَّهْنُ أَوْلىٰ نو رهن اولىٰ دى وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دى وَفِي الْقِيَاسِ الْهِبَةُ أَوْلىٰ او په قياس كي هبه اولىٰ ده لِأَنَّهَا تُثْبِتُ الْمِلْكَ وَالرَّهْنُ لَا يُثْبِتُهُ ځكه چي هبه ملكيت ثابتوي او رهن ملكيت نه ثابتوي وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ: أَنَّ الْمَقْبُوضَ بِحُكْمِ الرَّهْنِ مَضْمُونٌ وَبِحُكْمِ الْهِبَةِ غَيْرُ مَضْمُونٍ د استحسان دليل دا دى: چي پر كوم شي د رهن په تكه قبضه سوى وي د هغه ضمان [تاوان] واجبيږي او پر كوم شي چي د هبې په توګه قبضه سوې وي ذ هغه ضمان نه واجبيږي وَعَقْدُ الضَّمَانِ أَقْوىٰ او د ضمان والا عقد زيات قوي دى بِخِلَافِ الْهِبَةِ بِشَرْطِ الْعِوَضِ په خلاف د هغه هبې كوم چي د عوض په شرط سره وسي لِأَنَّهُ بَيْعٌ انْتِهَاءً ځكه چي هغه انتهاءً [نتيجتاً] بيع ده وَالْبَيْعُ أَوْلىٰ مِنَ الرَّهْنِ او بيع له رهن څخه اولىٰ ده لِأَنَّهُ عَقْدُ ضَمَانٍ يُثْبِتُ الْمِلْكَ صُورَةً وَمَعْنًى ځكه چي بيع د ضمان والا عقد دى كوم چي د صورت او معنىٰ دواړو په اعتبار سره ملكيت ثابتوي وَالرَّهْنُ لَا يُثْبِتُهُ إِلَّا عِنْدَ الْهَلَاكِ مَعْنًى لَا صُورَةً او رهن ملكيت نه ثابتوي مګر د هلاكېدلو [ضايع كېدلو] په صورت كي [او هغه خو هم صرف] معناً [ملكيت ثابتوي]. نه صورتاً فَكَذَا الْهِبَةُ بِشَرْطِ الْعِوَضِ نو همداسي به هبه بشرط العوض هم له رهن څخه اقوىٰ وي وَإِنْ أَقَامَ الْخَارِجَانِ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمِلْكِ وَالتَّارِيخِ او كه دوه غيرِ قابض مدعيان پر ملكيت او تاريخ بيّنه پېش كړي فَصَاحِبُ التَّارِيخِ الْأَقْدَمِ أَوْلىٰ نو مخكني تاريخ والا اولىٰ دى لِأَنَّهُ أَثْبَتَ أَنَّهُ أَوَّلُ الْمَالِكَيْنِ ځكه چي هغه دا ثابته كړه چي زه له دواړو مالكانو څخه اول مالک يم فَلَا يَتَلَقَّى الْمِلْكُ إِلَّا مِنْ جِهَتِهِ نو ځكه ملكيت صرف د هغه له طرفه [دويم مدعي ته] حاصلېدایٰ سي وَلَمْ يَتَلَقَّ الْآخَرُ مِنْهُ حال دا چي دويم مدعي له هغه څخه ملكيت نه دى حاصل كړى.

**اللغات**: ﴿تزوجها﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: نكاح كول، واده كول. ﴿تعذر﴾ د تفعّل د باب مصدر دى: نا ممكن كېدل، مشكل كېدل. ﴿ضمان﴾ تاوان، جرمانه. ﴿يتلق﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: حاصلول، اخيستل.

**تشريح**: په دې عبارت كي درې مسئلې ذكر سوي دي، چي هغه به انشاء الله على الترتيب ستاسو په مخكي كي پېش كړل سي:

(١)... اوله مسئله دا ده كه يو غلام د خالد په قبضه كي وي او زيد دا دعوىٰ وكړي چي "ماله زيد څخه دا غلام رانيولى دى" او بل طرف ته يوه ښځه دا دعوىٰ وكړي چي "قابض يعني زيد زما سره پر

دې غلام نکاح کړې ده يعني دا غلام يې په مهر کي ماکلی دی" او دواړه پر خپله دعوی بيـنه پېش کړي، نو په دې صورت کي د مدعي (زيد) او مدعيه ښځي دواړو دعوی او بيـنه په قوت او طاقت کي سره برابري دي، او هغه غلام به دواړو ته نصف، نصف ورکول کيـږي. يعني دواړه به له قابض (زيد) څخه د غلام نصف، نصف قيمت اخلي (په دې شرط کله چي مشتري هغه ته پوره قيمت ورکړی وي)؛ او دليل د دې خبري چي د دواړو دعوی او بيـنه سره برابري (مساوي) دي، دا دی چي شراء او نکاح دواړه عقد معاوضه دي او بذات خود مثبت الملک (د ملکيت ثابتونکي) دي، يعني په شراء (رانيولو) سره مشتري د مبيع مالک کيـږي او په نکاح سره خاوند د ښځي مالک کيـږي او ښځه د مهر مستحق کيـږي؛ لهذا دا دواړه عقدونه په قوت کي سره برابر دي، نو ځکه په حکم کي به هم دواړه سره برابر وي.

دا حکم د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دی.

د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د دې حکم دا دی چي دلته پر نکاح شراء لره ترجيح حاصله ده يعني هغه غلام به مشتري ته ورکول کيـږي، بيا به ښځي ته ويل کيـږي چي "ته له خپل مدعی عليه خاوند (زيد) څخه د غلام قيمت واخله!"، او نکاح پر شراء مخکي کول او پر دواړو بينو عمل کول ممکن هم دي. او د دې مثال دا دی لکه يو څوک چي د بل چا پر غلام نکاح وکړي نو دا صحيح دي او که په مهر کي د هغه غلام ورسپارل مشکل او ناممکن وي نو بيا د هغه قيمت ورکول کيـږي، همداسي دلته هم مذکوره غلام د شراء (رانيول کېدلو) په وجه په مهر کي ورکول مشکل دي، نو ځکه اوس به د هغه قيمت په مهر کي ورکول کيـږي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که يو سړی دا دعوی وکړي چي "دا شی ما ته فلانکي سړی (مثلا نعمان) د رهن په توګه راکړی دی او ما پر هغه قبضه کړې ده. لهذا اوس زه د هغه مالک يم"، او بل سړی دا دعوی وکړي چي "دا شی هغه فلانکي سړي (نعمان) ما ته هبه کړی دی او ما پر هغه قبضه کړې ده، لهذا زه د هغه مالک يم"، او دواړه بيـنه هم پېش کړي، نو استحسان دا دی چي په دې صورت کي به د رهن فيصله کيـږي لېکن قياس دا دی چي هبه به له رهن څخه مخکي کول کيـږي او د هبې فيصله به کيـږي؛ ځکه چي هبه مثبت الملک ده لېکن په رهن سره ملکيت نه ثابتيـږي، نو ځکه په دې حواله سره به د هبې د مدعي دعوی د رهن له مدعي څخه راجح او مخکي وي.

د استحسان دليل دا دی چي مقبوض بحکم الرهن يعني پر کوم شي چي د رهن په توګه قبضه سوې وي، هغه مضمون کيـږي، يعني که مرهون شی له قابض (مرتهن) څخه ضايع سي نو پر هغه د دې شي ضمان (تاوان) واجبيـږي، لېکن پر کوم شي چي د هبې په توګه قبضه سوې، هغه نه مضمون

کيږي، يعني که هغه له قابض (موهوب لهٔ) څخه ضايع سي نو ضمان نه پر واجبيږي، او د ضمان والا عقد (يعني د رهن عقد) د غير ضمان (يعني د هبې) له عقد څخه زيات قوي دی؛ ځکه چي هغه د دوو عوضونو يعني د مرهون شي او د قرض دواړو مثبت (ثابتونکي) وي، نو ځکه مقبوض بحکم الرهن به له مقبوض بحکم الهبه څخه اقویٰ او راجح وي. ها! که چيري هبه بشرط العوض وي، نو هغه په هر حال کي له رهن څخه راجح ده؛ ځکه چي هبه بشرط العوض انتهاءً بيع وي، او بيع داسي عقد ضمان دی چي په هغه کي صورتاً او معناً دواړه ډوله ملکيت ثابتيږي لېکن په رهن کي صرف د مرهون شي د ضايع کېدلو په صورت کي ملکيت ثابتيږي او هغه هم معناً وي، يعني خاص د مرهون شي ضمان نه واجبيږي بلکي د هغه د بازاري قيمت ضمان واجبيږي، نو ځکه په دې حوالو سره به هبه بشرط العوض له رهن څخه مخکي وي.

وإن أقام الخارجان إلخ: (۳)... د دې حاصل دا دی چي که يو شی د خالد په قبضه کي وي، بيا زيد او ادريس په هغه دعویٰ وکړي او هر يو ووايي چي "زه د هغه مالک يم"، لېکن يو هم د ملکيت سبب يعني شراء، هبه او داسي نور ذکر نه کړي (يعني يو هم داسي نه ووايي چي ما رانيولی دی يا ما ته چا هبه کړی دی او داسي نور)، خو پر ملکيت او تاريخ بيّنه پېش کړي چي "زه د فلانکی مياشتي له فلان تاريخ څخه د دې مالک يم"، نو د دې صورت حکم هم د مخکي په څېر دی چي دکوم يوه تاريخ مخکي وي، د هغه دعویٰ او بيّنه به راجح او معتبره وګرځول کيږي او د هغه په حق کي به فيصله کيږي؛ ځکه د تاريخ مخکي والي دا ثابته کړه چي هغه (مخکني تاريخ والا مدعي) اول مالک دی، نو ښکاره خبره ده چي اوس دويم مدعي ته صرف د هغه اول مالک (تاريخ والا مدعي) له طرفه ملکيت حاصلېدای سي، حالانکي دويم مدعي د ملکيت سبب نه دی ذکر کړی (چي ما له اول مالک [تاريخ والا مدعي] څخه دا شی رانيولی دی او داسي نور) او د هغه تاريخ هم د اول مالک له تاريخ څخه وروسته دی، نو ځکه به د هغه دعویٰ رد ول کيږي او د اول مدعي په حق کي به فيصله کيږي.

## له يوه کس څخه په دوو مختلفه اوقاتو کي د رانيولو دعویٰ کول

قَالَ: وَلَوِادَّعَيَا الشِّرَاءَ مِنْ وَاحِدٍ مَعْنَاهُ مِنْ غَيْرِ صَاحِبِ الْيَدِ فرمايي: او که دوه خلک له يوه کس يعني له غير قابض څخه د رانيولو دعویٰ وکړي وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ عَلٰى تَارِيخَيْنِ او دوی دواړه پر دوو جلا تاريخونو بيّنه پېش کړي فَالْأَوَّلُ أَوْلٰى نو اول [مخکني] تاريخ والا مدعي اولیٰ دی لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی أَنَّهُ أَثْبَتَهُ فِي وَقْتٍ لَا مُنَازِعَ لَهُ فِيهِ ځکه چي هغه په داسي وخت

کي خپل ملکيت ثابت کړی دی چي په هغه کي هيڅوک د ده مقابل نسته وَإِنْ أَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ عَلَى الشِّرَاءِ مِنْ آخَرَ وَذَكَرَا تَارِيخًا او که له دوی څخه هر يو له بل چا څخه پر رانيولو بيّنه پيش کړي او دواړه تاريخ بيان کړي فَهُمَا سَوَاءٌ نو دواړه سره برابر دي لِأَنَّهُمَا يُثْبِتَانِ الْمِلْكَ لِبَائِعَيْهِمَا ځکه چي دواړه د خپل، خپل بائع لپاره ملکيت ثابتوي فَيَصِيرُ كَأَنَّهُمَا حَضَرَا نو دا به داسي وګرځي لکه دواړه بائعين چي حاضر سي ثُمَّ يُخَيَّرُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بيا به هر مدعي ته [د نصف. نصف اخيستلو] اختيار ورکول کيږي كَمَا ذَكَرْنَا مِنْ قَبْلُ لکه مخکي چي موږ ذکر کړه وَلَوْ وَقَّتَتْ إِحْدَى الْبَيِّنَتَيْنِ وَقْتًا وَلَمْ تُوَقِّتِ الْأُخْرَى او که له دواړو بينو [ګواهيو] څخه صرف يوه بيّنه تاريخ بيان کړي او بله بيّنه تاريخ بيان نه کړي قُضِيَ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ نو د دوی په مينځ کي به د نصف، نصف فيصله کيږي لِأَنَّ تَوْقِيتَ إِحْدَاهُمَا لَا يَدُلُّ عَلَى تَقَدُّمِ الْمِلْكِ ځکه چي د يوې بينې تاريخ بيانول د ملکيت پر مخکي والي دلالت نه کوي لِجَوَازِ أَنْ يَكُونَ الْآخَرُ أَقْدَمَ ځکه دا ممکنه ده چي بل يو مخکي وي [يعني کېدای سي چي د بل مدعي ملکيت تر ده مخکي وي او هغه تر ده مخکي د مُدعىٰ بِهٖ شي مالک وي] بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْبَائِعُ وَاحِدًا په خلاف د هغه صورت کله چي بائع يو وي لِأَنَّهُمَا اتَّفَقَا عَلَى أَنَّ الْمِلْكَ لَا يَتَلَقَّى إِلَّا مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي [په دې صورت کي] دواړه مدعيان پر دې خبره متفق دي چي صرف د همدغه بائع له طرفه ملکيت حاصل سوی دی فَإِذَا أَثْبَتَ أَحَدُهُمَا تَارِيخًا نو کله چي له دوی څخه يو [په خپل بيّنه سره] تاريخ ثابت کړی يُحْكَمُ بِهِ نو د هغه په حق کي به فيصله کيږي حَتَّى يَتَبَيَّنَ أَنَّهُ تَقَدَّمَ شِرَاءُ غَيْرِهِ تر دې چي دا څرګنده سي چي د بل مدعي رانيول [تر هغه] مخکي دي وَلَوِ ادَّعَى أَحَدُهُمَا الشِّرَاءَ مِنْ رَجُلٍ وَالْآخَرُ الْهِبَةَ وَالْقَبْضَ مِنْ غَيْرِهِ او که په دوی دواړو کي يو کس له يوه سړي څخه د رانيولو دعویٰ وکړي او بل [دويم کس] د بل چا له طرفه د هبه مع القبض دعویٰ وکړي [چي ما ته دا شی بل چا هبه کړی دی او ما قبضه هم پر کړې وه] وَالثَّالِثُ الْمِيرَاثَ مِنْ أَبِيهِ او درېيم کس له خپل پلار څخه د ميراث [په ميراث کي د حاصلېدلو] دعویٰ وکړي وَالرَّابِعُ الصَّدَقَةَ وَالْقَبْضَ مِنْ آخَرَ او څلورم کس د بل چا له طرفه د هبه مع القبض دعویٰ وکړي قُضِيَ بَيْنَهُمْ أَرْبَاعًا نو قاضي به د هغو په مينځ کي د څلورو

حصو فيصله کوي [يعني قاضي به هغه شی د دوی په مينځ کي څلور حصې کوي] لِأَنَّهُمْ يَتَلَقَّوْنَ الْمِلْكَ مِنْ بَاعَتِهِمْ ځکه چي دوی تړوله له خپل مُمَلِّکِينو څخه د ملکيت حاصلولو دعویٰ کوي فَيُجْعَلُ كَأَنَّهُمْ حَضَرُوا وَأَقَامُوا الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ نو داسي به ګرځول کيږي لکه څلور سره مملکين چي په خپله حاضر سي او هغوی پر مطلق ملکيت بيّنه پېش کړي.

**اللغات**: ﴿منازع﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: جنګ او اختلاف کونکی، مزاحم، مقابل، ﴿باعتهم﴾ بَاعَةٌ جمع د بَائِعٌ ده: خرڅونکي ته وايي، دلته څني مراد مُمَلِّک (مالک جوړونکی) دی، يعني په پورتني صورت کي له څلورو مدعيانو څخه هر يو دا دعویٰ کوي چي زه کوم چا د دې شي مالک جوړ کړی يم (يعني کوم چا چي ما ته دا شی راکړی دی) ما له هغه څخه ملکيت حاصل کړی دی، دلته له بَاعَةٌ څخه د تغليب په توګه مُمَلِّکِيْن مراد کړل سوي دي، ځکه له دې مملکينو څخه يو بائع دی، لکه څرنګه چي د هدايې په حاشيه کي ذکر سوي دي.

**تشريح**: د دې عبارت مسئلې هم د مخکني عبارت د مسئلو په څېر دي، حاصل يې دا دی که زيد او حامد دا دعویٰ وکړي چي مورږ دا شی (يا مثلاً دا غلام يا پسه) له نعمان څخه رانيولی دی او هغه شی د نعمان په قبضه کي نه وي، بيا هر مدعي پر خپله دعویٰ د جلا تاريخ مطابق بيّنه پېش کړي، نو ښکاره خبره ده چي د کوم مدعي د رانيولو تاريخ مخکي وي، د هغه دعویٰ او بيّنه معتبره ده او د هغه په حق کي به فيصله کيږي؛ ځکه چي په هغه تاريخ کي د دې مدعي (مشتري) هيڅ مزاحم او مقابل نسته. او که په دواړو مدعيانو (زيد او حامد) کي هر يو له جلا، جلا بائع څخه د رانيولو دعویٰ وکړي، لېکن د رانيولو تاريخ صرف يو بيان کړي، نو په هغه شي کي دواړه برابر دي يعني دواړو ته به نصف، نصف ورکول کيږي او دوی ته به هغه داخيستلو او نه اخيستلو اختيار وي، ځکه له دوی دواړو څخه هر يو د خپل بائع لپاره ملکيت ثابتوي، نو داسي به وګرځي لکه دواړه بائعين چي په خپله حاضر سي او دا واضحه سي چي دوی دواړو (مدعيانو) له هغو څخه شی رانيولی دی، نو ځکه به دوی ته دا اختيار ورکول کيږي چي که وغواړي نو نصف، نصف دي واخلي، کني هغه دي پرېږدي.

همدا حکم په هغه صورت کي هم دی، کله چي د يوه مدعي بيّنه (ګواهان) تاريخ بيان کړي او د بل مدعي بيّنه تاريخ بيان نه کړي، يعني په دې صورت کي به هم مدعیٰ به شی د دوی په مينځ کي نصف، نصف تقسيمول کيږي؛ ځکه چي د يوې بيّنې په تاريخ بيانولو سره دا نه لازميږي چي د دغه تاريخ بيانونکي مدعي ملکيت به له بل مدعي څخه مخکي وي، نو ځکه دا به د ترجيح وجه نه

وي او دواړه مدعيان به د نصف، نصف حقداره وي، هـا! كه چيري دواړه صرف له يوه بائع څخه د رانيولو دعوىٰ كوي، نو په دې صورت كي چي كوم مدعي او د هغه بيّنه تاريخ بيان كړي، د هغه په حق كي به فيصله كيږي؛ ځكه چي پر يوه بائع د دواړو (مدعيانو) په اتفاق كولو سره دا خبره ځرګنده سوه چي دواړو له هغه څخه ملكيت حاصل كړى دى، نو ځكه د كوم يوه د رانيولو تاريخ جي مخكي وي، د هغه دعوىٰ به هم مخكي او راجح وي.

ولوادعى أحدهما الشراء إلخ: د دې حاصل دا دى چي كه د يوه شي په باره كي څلور كسان دعوىٰ وكړي: ① يو كس دا دعوىٰ وكړي چي "دا شى ما له خالد څخه رانيولى دى"، ② دويـم دا دعوىٰ وكـړي چي "دا شى ما ته نعمان هبه كړى دى او ما پر هغه قبضه هم كړې وه"، ③ دريـيم دا دعوىٰ وكـړي چي "دا شي ما ته خپل پلار په ميراث كي پرې ايښى دى (ما ته يې په ميراث كي راكړى دى)، ④ څلورم كـس دا دعوىٰ وكړي چي "ما ته ادريس دا شى صدقه كړى دى (په خيرات كي يې راكړى دى) او ما پر هغه قبضه هم كړې وه"، نو په داسي صورت كي به هغه شى د دې څلور سره مدعيانو په مينځ كي تقسيمول كيږي؛ ځكه چي دوى ټوله له جلا، جلا خلكو څخه د ملكيت حاصلولو دعوىٰ كوي، نو داسي سوه لكه هغه ټوله خلك (خالد، نعمان او داسي نور) چي په خپله حاضر سي او هغوى ټوله پر دې خبره بيّنه پېش كړي چي "دا شى زموږ دى"، نو قاضي به هغه پر څلورو حصو تقسيموي، همداسي به په دغه مسئله كي هم هغه د څلور سره مدعيانو په مينځ كي تقسيمول كيږي.

## په قابض او غيرِ قابض كي د ملكيت اختلاف

قَالَ: فَإِنْ أَقَامَ الْخَارِجُ الْبَيِّنَةَ عَلَى مِلْكٍ مُؤَرَّخٍ فرمايي: كه غيرِ قابض په تاريخ والا [تاريخ داره] ملكيت باندي بيّنه پېش كړي وَصَاحِبُ الْيَدِ بَيِّنَةً عَلَى مِلْكٍ أَقْدَمَ تَارِيخًا او قابض [له هغه څخه] په مخكني تاريخ والا ملكيت باندي بيّنه پېش كړي كَانَ أَوْلَى نو د قابض بيّنه اولىٰ ده وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا حكم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دى وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ مُحَمَّدٍ او همدا له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دى وَعَنْهُ❁ أَنَّهُ لَا يُقْبَلُ بَيِّنَةُ ذِي الْيَدِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه بل روايت دا دى چي د قابض بيّنه به نه قبلول كيږي رَجَعَ إِلَيْهِ [او] امام محمد رَحِمَهُ الله خپل دغه

---

❁ القول الرجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الدر المنتقى (ج:۳، ص:۳۷۷)، وكذا في تنوير الأبصار (ج:۴، ص:۴۹۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۸۵]

قول ته رجوع کړي ده لِأَنَّ الْبَيِّنَتَيْنِ قَامَتَا عَلٰى مُطْلَقِ الْمِلْكِ ځکه چي دواړي بينې پر مطلق ملکيت پېش سوي دي وَلَمْ يَتَعَرَّضَا لِجِهَةِ الْمِلْكِ او دواړو بينو د ملکيت د جهت [سبب] نه دی ښکاره کړی [يعني دواړو بيّنو او د هغو مدعيانو هيڅ د ملکيت سبب نه دی ذکر کړی] فَكَانَ التَّقَدُّمُ وَالتَّأَخُّرُ سَوَاءً نو ځکه مخکي کېدل او وروسته کېدل به دواړه سره برابر وي وَلَهُمَا: أَنَّ الْبَيِّنَةَ مَعَ التَّارِيخِ مُتَضَمِّنَةٌ مَعْنَى الدَّفْعِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي تاريخ والا بيّنه د دفع کولو معنیٰ لره شامله ده فَإِنَّ الْمِلْكَ إِذَا ثَبَتَ لِشَخْصٍ فِي وَقْتٍ ځکه کله چي په يوه وخت کي د يو کس لپاره ملکيت ثابت سي فَثُبُوتُهُ لِغَيْرِهِ بَعْدَهُ لَا يَكُونُ إِلَّا بِالتَّلَقِّيْ مِنْ جِهَتِهِ نو تر دې وروسته د بل چا لپاره د دې ملکيت ثابتېدل ممکن نه دي مګر د هغه کس له طرفه په حاصلېدلو سره وَبَيِّنَةُ ذِي الْيَدِ عَلَى الدَّفْعِ مَقْبُولَةٌ او د دفع کولو په حواله سره د قابض بيّنه مقبوله وي وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ لَوْ كَانَتِ الدَّارُ فِي أَيْدِيهِمَا او پر همدغه اختلاف دي کله چي يو کور دوو مدعيانو په قبضه کي وي وَالْمَعْنٰى مَا بَيَّنَّا او وجه هغه ده کوم چي موږ بيان کړه وَلَوْ أَقَامَ الْخَارِجُ وَذُو الْيَدِ الْبَيِّنَةَ عَلٰى مِلْكٍ مُطْلَقٍ او که چيري خارج او قابض دواړه پر مطلق ملکيت بيّنه پېش کړي وَوَقَّتَ إِحْدَاهُمَا دُونَ الْأُخْرٰى او له دواړو څخه صرف د يوې بينې لپاره تاريخ بيان کړی سي، نه د بلي بينې لپاره فَعَلٰى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ الْخَارِجُ أَوْلٰى نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله د قول مطابق خارج [غير قابض] اولیٰ دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ* وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: صَاحِبُ الْوَقْتِ أَوْلٰى او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي (او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی): چي تاريخ والا اولیٰ دی لِأَنَّهُ أَقْدَمُ ځکه چي هغه مخکنی دی وَصَارَ كَمَا فِي دَعْوَى الشِّرَاءِ إِذَا أَرَّخَتْ إِحْدَاهُمَا كَانَ صَاحِبُ التَّارِيخِ أَوْلٰى او دا داسي سوه لکه د رانيولو په دعویٰ کي چي د يوې بينې لپاره تاريخ بيان کړی سي نو [په دې صورت کي هم] تاريخ والا اولیٰ دی وَلَهُمَا أَنَّ بَيِّنَةَ ذِي الْيَدِ إِنَّمَا تُقْبَلُ لِتَضَمُّنِهَا مَعْنَى الدَّفْعِ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د

---

* القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الدر المنتقى (ج:٣، ص:٣٧٨)، وكذا في رد المحتار (ج:٤، ص:٤٨٩). [القول الراجح ج:٢، ص:١٨٦]

قابض بيّنه په دې وجه قبلول کيږي چې هغه د دفع کولو معنىٰ لره شامله وي وَلَا دَفْعَ هٰهُنَا او دلته دفعيه نسته حَيْثُ وَقَعَ الشَّكُّ فِي التَّلَقِّيْ مِنْ جِهَتِهٖ ځکه چې د قابض له طرفه په ملکيت حاصلېدلو کې شک واقع دی وَعَلٰى هٰذَا إِذَا كَانَتِ الدَّارُ فِيْ أَيْدِيْهِمَا او پر همدغه اختلاف دي کله چې يو کور د دوو کسانو [مدعيانو] په قبضه کې وي وَلَوْ كَانَتْ فِيْ يَدِ ثَالِثٍ او که چيرې کور د درېيم کس [بل چا] په قبضه کې وي وَالْمَسْأَلَةُ بِحَالِهَا او مسئله همداسې وي فَهُمَا سَوَاءٌ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو [په دې صورت کې] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دواړه مدعيان سره برابر دي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ*: الَّذِيْ وَقَّتَ أَوْلٰى او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې تاريخ بيانونکی مدعی اولیٰ دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ: الَّذِيْ أَطْلَقَ أَوْلٰى او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې کوم مدعي [ملکيت] مطلق پرې ايښی دی هغه اولیٰ دی لِأَنَّهُ ادَّعٰى أَوَّلِيَّةَ الْمِلْكِ ځکه چې هغه د ملکيت د اول والي [مخکي والي] دعویٰ کوي بِدَلِيْلِ اسْتِحْقَاقِ الزَّوَائِدِ وَرُجُوْعِ الْبَاعَةِ بَعْضِهِمْ عَلَى الْبَعْضِ د زوائدو [اضافياتو] د مستحق کېدلو په دليل سره او د بائعينو يو پر بل د رجوع کولو په دليل سره وَلِأَبِيْ يُوْسُفَ: أَنَّ التَّارِيْخَ يُوْجِبُ الْمِلْكَ فِيْ ذٰلِكَ الْوَقْتِ بِيَقِيْنٍ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې تاريخ په هغه وخت [تاريخ] کې په يقيني توګه ملکيت ثابتوي وَالْإِطْلَاقُ يَحْتَمِلُ غَيْرَ الْأَوَّلِيَّةِ او اطلاق د نا مخکي والي احتمال لري وَالتَّرْجِيْحُ بِالتَّيَقُّنِ او ترجيح په يقيني کېدلو سره وي [په بله وينا دا چې ترجيح هغه شي لره وي کوم چې په يقيني توګه ثابت وي او په هغه کې احتمال نه وي] كَمَا لَوِ ادَّعَيَا الشِّرَاءَ لکه کله چې دواړه د شراء دعویٰ وکړي وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ: أَنَّ التَّارِيْخَ يُضَامُّهُ احْتِمَالُ عَدَمِ التَّقَدُّمِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د تاريخ سره د نه مخکي کېدلو احتمال ضم [او مزاحم] دی فَسَقَطَ اعْتِبَارُهُ لهذا د تاريخ اعتبار ساقط سو فَصَارَ كَمَا لَوْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ عَلٰى مِلْكٍ مُطْلَقٍ نو دا داسې سوه لکه دواړه چې پر مطلق ملکيت بيّنه پېش کړي بِخِلَافِ الشِّرَاءِ په خلاف د رانيولو لِأَنَّهُ أَمْرٌ حَادِثٌ ځکه چې هغه نوې معامله ده فَيُضَافُ

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في الخانية (ج:۳، ص:۵۸)، وكذا في الدر المنتقى (ج:۳، ص۳۷۹). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۸۷]

إِلَىٰ أَقْرَبِ الْأَوْقَاتِ او هغه د نژدې وخت وطرف ته منسوب کيږي فَيَتَرَجَّحُ جَانِبُ صَاحِبِ التَّارِيخِ نو ځکه د تاريخ والا جانب به راجح وي.

**اللغات**: ﴿مُؤَرِّخ﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: تاريخ والا، تاريخ داره (نېټه داره)، د کوم شي لپاره چي وخت او تاريخ بيان کړی سي، ﴿ذی اليد﴾ قابض، هغه مدعي چي په قبضه کي يې دعوه داره شی وي، ﴿يتعرضا﴾ د تفعّل له باب د تثنيه غائب مضارع صيغه ده، تَعَرَّضَ يَتَعَرَّضُ تَعَرُّضًا لِلْأَمْرِ: د يو شي طلب کول، په يو شي پسې کېدل، يو طرف ښکاره کول (مصباح اللغات)، ﴿دفع﴾ د فتح د باب مصدر دی: دفع کول، ليري کول، ﴿أُرِّخت﴾ د تفعيل د باب ماضي مجهوله ده: تاريخ بيانېدل، د معلومي په صيغه سره: تاريخ بيانول، ﴿يُضَامّه﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: يو شی د بل شي سره ضم کېدل (يو ځای کېدل)، ضمول، ﴿التقدّم﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مخکي کېدل، مخکي والی، ﴿حادث﴾ نوی پېښېدونکی، جديد.

**تشريح**: په دې عبارت کي درې مسئلې بيان سوي دي، چي هغه به انشاء الله د مصنف رَحِمَهُ الله د بيان مطابق ستاسو په خدمت کي پېش کړل سي:

(۱)... که دوه خلک د يوه شي په باره کي دعویٰ وکړي او له دوی څخه يو خارج (غيرِ قابض) وي او بل قابض وي، يعني د يوه مدعي په قبضه کي هغه مدعیٰ بهٖ (دعوه داره) شي نه وي او د بل مدعي په قبضه کي هغه وي، بيا له دوی څخه خارج (غيرِ قابض) پر دې خبره بيّنه پېش کړي چي "(زه مثلاً له ۲۰/محرم ۱۴۴۱ھ څخه د دې مدعیٰ بهٖ شي مالک يم"، او قابض پر دې خبره بيّنه پېش کړي چي "زه له ۲۰/شوال ۱۴۴۰ھ څخه پر دې شي قابض يم (زما په قبضه کي دی)"، نو په دې صورت کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قابض بيّنه راجح ده، همدا له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله اصل قول دا دی چي د قابض بيّنه به نه قبلول کيږي بلکي په دې صورت کي قابض او خارج دواړه سره برابر دي (يعني هغه شی به د دواړو په مينځ کي نصف، نصف تقسيمول کيږي).

**د امام محمد دليل**: دا دی چي د قابض او خارج دواړو بيّنه د ملکيت له سبب څخه خالي ده، يعني هر يوه د مطلق ملکيت دعویٰ کړې ده (او دا يې نه دي ويلي چي زه يې څنګه مالک سوی يم، آيا د رانيولو په ذريعه، په ميراث کي د حاصلولو په ذريعه او داسي نور)، نو ځکه د دواړو دعویٰ به سره برابره وي او يو به هم پر بل فائق او بالا نه وي.

**د شيخينو دليل**: دا دی چي دلته د قابض بيّنه په دوو (۲) وجهو سره راجح او معتبره ده، يو خو په دې وجه چي د هغه تاريخ مخکي دی، او دويم په دې وجه چي د قابض په بيّنه کي د بل چا د دفع کولو (ليري کولو) صلاحيت موجود وي (مطلب دا چي په هغه سره د غيرِ قابض دعویٰ دفع کيږي)؛ ځکه کله چي په يوه وخت کي د يو سړي لپاره پر يو شي ملکيت ثابت سي، نو بيا پر هغه شي د بل چا ملکيت په هغه وخت کي ثابتيږي کله چي دا بل څوک د ملکيت سبب ذکر کړي چي "ما دا شی له هغه څخه رانيولی دی يا هغه ما ته هبه کړی دی او داسي نور"، او دلته د بل چا (غيرِ قابض) له طرفه د ملکيت سبب نه دی ذکر سوی، نو ځکه د هغه بيّنه به معتبره نه وي او د مخکني تاريخ والا بيّنه به معتبره او مقبوله وي.

د امام محمد او شيخينو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف په هغه صورت کي هم دی، کله چي دوه کسان پر يو کور قابض وي او بيا دواړه په هغه دعویٰ وکړي او دواړه بيّنه پېش کړي، نو په دې صورت کي هم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د مخکني تاريخ والا بيّنه راجح او معتبره ده، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به پر نصف، نصف فيصله کيږي.

ولو أقام الخارج و ذو اليد إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده چي که قابض او خارج دواړه مدّعيان پر مطلق ملکيت بيّنه پېش کړي لېکن په دوی کي صرف يو مدعي او د هغه بيّنه (ګواهان) تاريخ بيان کړي، نو په دې صورت کي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د خارج بيّنه راجح ده، که څه هم هغه تاريخ نه وي بيان کړی، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د تاريخ بيانونکي مدعي بيّنه راجح ده؛ ځکه چي هغه اقدم او مخکنی دی او په هغه وخت کي دويم مدعي د ده مزاحم نه دی.

د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د قابض بيّنه په دې وجه قبلول کيږي چي د هغه په بيّنه کي د بل چا د دفع کولو صلاحيت وي يعني په هغه سره د غيرِ قابض دعویٰ دفع کيږي، حالانکي دلته د قابض په بيّنه کي داخبره (دفعيه) نسته؛ ځکه چي دلته دا شک او احتمال سته چي غيرِ قابض به له تاريخ بيانونکي مدعي څخه ملکيت حاصل کړی وي (يعني دا کېدای سي چي هغه به له قابض څخه ملکيت حاصل کړی وي)، لهذا دلته د قابض په بيّنه کي داسي شی نسته کوم چي د ترجيح وجه او دليل وګرځي، نو ځکه به د خارج بيّنه قبلول کيږي، همدا اختلاف په هغه صورت کي هم دی کله چي دوه کسان د يو کور په باره کي دعویٰ وکړي او هغوی دواړه پر کور قابض وي (يعني کور د دواړو په قبضه کي وي) او له دوی څخه صرف يو مدعي او د هغه بيّنه تاريخ بيان کړي، نو په دې صورت کي هم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز تاريخ لره اعتبار نسته. لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د تاريخ بيانونکي مدعي بيّنه راجح او معتبره ده.

ولوكانت لي يد ثالث إلخ: (۳)... دريېمه مسئله دا ده كه يو كور دخالد په قبضه كې وي او زيد او حامد دواړه په هغه دعوىٰ وكړي او دواړه پر خپله دعوىٰ بيّنه پېش كړي، لېكن له دوى څخه صرف يو تاريخ بيان كړي، نو په دې صورت كې هم دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دواړو حكم برابر دى، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د تاريخ بيانونكي مدعي بيّنه راجح او معتبره ده. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د تاريخ نه بيانونكي كوم چې خپله دعوىٰ او ملكيت مطلق پرې ايښې وي، د هغه بيّنه اولىٰ او معتبره ده؛ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دى چې كېداى سي د هغه بيّنه د تاريخ بيانونكي مدعي له بېنې څخه هم اولىٰ وي، او بل دا چې د مطلق ملكيت دعوىٰ كونكي د مدعىٰ بہٖ شي د اضافياتو (زائد شيانو) او حاصلاتو هم مستحق كېږي (مثلا كه مدعىٰ بہٖ شى مينځه وي نو د هغې بچيان هم د ده حق كېږي او داسي نور)، همدارنګه كه مدعىٰ بہٖ شى د بل چا مستحق وخېږي او هغه شى له ده څخه واخلي، نو تر استحقاق مخكې چې په هغه شي كې د څومره خلګو بيع او معامله سوې وي، هغوى به ټوله پر خپل، خپل بائع رجوع كوي، نو معلومه سوه چې مطلق ملكيت اقوىٰ دى، نو ځكه كوم مدعي چې د مطلق ملكيت دعوىٰ كوي، د هغه بيّنه به هم مقبوله او معتبره وي.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دى چې په تاريخ بيانولو سره ملكيت يقيني ګرځي او په هغه تاريخ كې د تاريخ بيانونكي مدعي لپاره په يقيني توګه ملكيت ثابتېږي. او په مطلق ملكيت كې چې څرنګه د اوليت (مخكې والي) احتمال سته، همداسي د غير اوليت احتمال هم پكښې ستي، او د فقهي قاعده دا ده "إِذَا جَاءَ الإِحْتِمَالُ بَطَلَ الإِسْتِدْلَال"، نو ځكه فيصله به پر تاريخ كېږي نه پر اطلاق (مطلق ملكيت)، لكه څرنګه چې په شراء (رانيولو) كې پر تاريخ فيصله كېږي.

د امام صاحب دليل دا دى چې كله صرف له يوه طرفه تاريخ بيان سوى وي، نو كېداى سي چې د اطلاق والا طرف له هغه تاريخ څخه مخكې وي (يعني كېداى سي چې د مطلق پرېښوونكي [تاريخ نه بيانونكي] ملكيت د تاريخ بيانونكي مدعي له ملكيت څخه مخكې وي)، لهذا دا خبره يقيني نه سوه چې د تاريخ بيانونكي مدعي ملكيت به د مطلق ملكيت له مدعي څخه مخكې وي. نو ځكه د تاريخ اعتبار ساقط سو. لهذا دا داسي سوه لكه دواړه مدعيان چې بلا تاريخه پر مطلق ملكيت بيّنه پېش كړي، او په داسي صورت كې د دواړو په مېنځ كې د برابر والي (يعني د نصف. نصف) فيصله كېږي، نو همداسي به په دې مسئله كې هم دا فيصله كېږي.

او دا مسئله پر شراء قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چې شراء يو نوې (جديد) معامله وي؛ ځکه کله چې دواړه مدعيان پر شراء متفق دي، نو ښکاره خبره ده چې دواړه پر نوې معامله هم متفق دي، او په نوې معامله کې پر تاريخ اعتماد کيږي او هلته تاريخ ته اعتبار ورکول کيږي، نو ځکه دا مسئله پر شراء قياسول صحيح نه دي لکه څرنګه چې امام ابويوسف رَحِمَهُ الله پر شراء قياس کړې ده. (احسن الهدايه)

## په "نتاج" کې د قابض او خارج اختلاف

قَالَ: وَإِنْ أَقَامَ الْخَارِجُ وَصَاحِبُ الْيَدِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةً عَلَى النِّتَاجِ فرمايي: او که له خارج او قابض څخه هر يو پر نتاج بيّنه پېش کړي فَصَاحِبُ الْيَدِ أَوْلَى نو قابض اولىٰ دی [يعني د هغه دعوىٰ او بيّنې ته به ترجيح ورکول کيږي او د هغه په حق کې به فيصله کيږي] لِأَنَّ الْبَيِّنَةَ قَامَتْ عَلَى مَا لَا تَدُلُّ عَلَيْهِ ځکه چې بيّنه پر هغه څه پېش سوې ده چې پر هغه قبضه دلالت نه کوي فَاسْتَوَيَا نو ځکه دواړه بيّنې به سره برابرې وي وَتَرَجَّحَتْ بَيِّنَةُ ذِي الْيَدِ بِالْيَدِ او د قبضې په وجه به د قابض بيّنه راجح وي فَيُقْضَى لَهُ نو ځکه د هغه په حق کې به فيصله کيږي وَهٰذَا هُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح ده خِلَافًا لِمَا يَقُولُهُ عِيسَى بْنُ أَبَانَ أَنَّهُ تَتَهَاتَرُ الْبَيِّنَتَانِ وَيُتْرَكُ فِي يَدِهِ لَا عَلَى طَرِيقِ الْقَضَاءِ په خلاف د هغه څه کوم چې عيسى بن ابان رَحِمَهُ الله وايي چې دواړې بيّنې به ساقطيږي او مدعىٰ بِهٖ شی د قاضي له فيصلې څخه بغير د قابض په قبضه کې پرېښوول کيږي وَلَوْ تَلَقَّى كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْمِلْكَ مِنْ رَجُلٍ او که چيرې له قابض او خارج څخه هر يو له يو بل سړي څخه د ملکيت حاصلولو دعوىٰ وکړي وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ عَلَى النِّتَاجِ عِنْدَهُ او دواړه د هغه سره پر نتاج [يعني د نتاج پر پيدا کېدلو] بيّنه پېش کړي فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ إِقَامَتِهَا عَلَى النِّتَاجِ فِي يَدِ نَفْسِهِ نو دا په خپله قبضه کې پر نتاج [پيدا کېدلو] د بيّنه پېشولو په څېر دي وَلَوْ أَقَامَ أَحَدُهُمَا الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمِلْكِ وَالْآخَرُ عَلَى النِّتَاجِ او که له دوی څخه يو پر ملکيت بيّنه پېش کړي او بل پر نتاج بيّنه پېش کړي فَصَاحِبُ النِّتَاجِ أَوْلَى نو نتاج والا اولىٰ دی أَيُّهُمَا كَانَ برابره ده هغه که له دوی څخه هر يو وي [يعني برابره ده قابض وي او که غير قابض (خارج) وي] لِأَنَّ بَيِّنَتَهُ قَامَتْ عَلَى أَوَّلِيَّةِ الْمِلْكِ ځکه چې د هغه بيّنه د ملکيت پر اول والي [مخکې والي] پېش سوې ده فَلَا يَثْبُتُ

لِلۡاٰخَرِ إِلَّا بِالتَّلَقِّيۡ مِنۡ جِهَتِهٖ نو ځکه د بل يوه لپاره به صرف د هغه له طرفه ملکيت ثابتيږي وَكَذٰلِكَ إِذَا كَانَتِ الدَّعْوٰى بَيْنَ خَارِجَيْنِ او همدارنګه کله چي دا دعوىٰ د دوو غيرِ قابض کسانو په مينځ کي وي فَبَيِّنَةُ النِّتَاجِ أَوْلٰى نو د نتاج والا بيّنه اولىٰ ده لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلَوْ قُضِيَ بِالنِّتَاجِ لِصَاحِبِ الْيَدِ او که چيري د قابض لپاره د نتاج فيصله وسي ثُمَّ أَقَامَ ثَالِثٌ الْبَيِّنَةَ عَلَى النِّتَاجِ بيا دريم کس پر نتاج بيّنه پيش کړي يُقْضٰى لَهُ نو د هغه لپاره به د نتاج فيصله کيږي إِلَّا أَنْ يُعِيْدَهَا ذُو الْيَدِ مګر دا چي قابض دوباره بيّنه پيش کړي [نو د هغه لپاره به فيصله کيږي] لِأَنَّ الثَّالِثَ لَمْ يَصِرْ مَقْضِيًّا عَلَيْهِ بِتِلْكَ الْقَضِيَّةِ ځکه چي په مخکني فيصله سره دريم کس مقضي عليه نه وو ګرځېدلی وَكَذَا الْمَقْضِيُّ عَلَيْهِ بِالْمِلْكِ الْمُطْلَقِ إِذَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَى النِّتَاجِ او همدارنګه که د ملک مطلق مقضی عليه [يعني پر کوم مدعي چي د مطلق ملکيت فيصله سوې وي، هغه] پر نتاج بيّنه پيش کړي تُقْبَلُ نو د هغه بيّنه به قبلول کيږي وَيُنْقَضُ الْقَضَاءُ او اوله فيصله به ماتول کيږي لِأَنَّهٗ بِمَنْزِلَةِ النَّصِّ ځکه چي دويمه فيصله [قضاء] د نص په درجه کي ده وَالْأَوَّلُ بِمَنْزِلَةِ الْاِجْتِهَادِ او اوله فيصله د اجتهاد په درجه کي ده.

**اللغات:** ﴿نتاج﴾ د څاروي نوي پيدا سوی بچی، د څاروي د بچي پيدا کېدلو (زېږېدلو) حالت، ﴿تتهاتر﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: ساقطېدل، ﴿تلقّي﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: حاصلول، ترلاسه کول، اخيستل، ﴿خارج﴾ غيرِ قابض، هغه مدعي چي د هغه په قبضه کي مدعىٰ به شي نه وي، ﴿قضية﴾ فيصله، د قضاء نتيجه.

**تشريح:** په دې عبارت کي څلور مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که له قابض او خارج دواړو څخه هر يو دا دعوىٰ وکړي چي "دا مرغومی زما له بزې (وزې) څخه پيدا سوی دی" او هر يوه پر خپله دعوىٰ بيّنه هم پيش کړي، نو د قابض دعوىٰ او بيّنه به قبلول کيږي، او دا مقبوليت د بينې په وجه نه دی، بلکي د قبضې په وجه دی؛ ځکه چي د يوه مدعي بيّنه هم د ملک د اوليت خبر نه دی ورکړی (چي د کوم يوه ملکيت اول دی)، نو د دواړو بيّنه به سره مساوي وي او د قبضې په وجه به د قابض بينې لره ترجيح حاصله وي او هغه به قبلول کيږي. د دې په خلاف عيسىٰ بن ابان رَحِمَهُ الله وايي چي په دې مسئله کي به د دواړو بينې ساقطيږي او د قاضي له فيصلې

شخه بغير به مدعیٰ بہ شی (مرغومی) د قابض سره پرېښوول کیږي: ځکه که چیرې قاضي فیصله وکړي هم، نو همدا فیصله به وکړي چي مدعیٰ بہ شی دي د قابض سره پرېښوول سي: ځکه چي له دوو څارويو څخه د یوه بچي پیدا کېدل ناممکن او محال دي، نو ځکه د دواړو مدعیانو بیّنه پېشول د بیّنه نه پېشولو په څېر سوه، او د بیّنه نه پېشولو په صورت کي د قابض په حق کي د پرېښوولو فیصله کیږي، نو په دې صورت کي به هم د قابض په حق کي د پرېښوولو فیصله کیږي. لېکن دا قول صحیح نه دی، یعني دواړه بیني به نه ساقطیږي. بلکي د قابض بیّنه به معتبره منل کیږي.

ولـوتلقى إلـخ: (۲)... دویمه مسئله دا ده که خارج او قابض دواړه له یو بل سړي څخه د ملکیت حاصلولو دعویٰ وکړي، مثلاً له دوی څخه هر یو دا دعویٰ وکړي چي "دا زما د هغه بزې مرغومی دی کوم چي ما له فلانکي سړي څخه رانیولې وه"، نو دا مسئله د هغه مسئلې په څېر ده چي بزه صرف د یوه مدعي په قبضه کي وي او یو مدعي دا بیّنه پېش کړي چي له دغه بزې څخه چي کوم بچي (مرغومی) پیدا سوی دی دا زما دی، او هغه پر دې بچي قابض هم وي، نو په دې صورت کي به د قابض په حق کي فیصله کیږي.

(۳)... که یو مدعي پر ملکیت بیّنه پېش کړي او بل مدعي پر نتاج بیّنه پېش کړي، نو د نتاج والا مدعي بیّنه اولیٰ او معتبره ده، برابره ده هغه خارج وي او که قابض: ځکه چي د نتاج والا بیّنه د ملکیت تقدم بیانوي یعني د ملکیت د مخکي والي (اولیت) خبر ورکوي. لهذا کله چي د نتاج والا مدعي ملکیت مخکي سو، نو ښکاره خبره ده چي دا بل مدعي به له هغه څخه ملکیت حاصلونکی وي، حالانکي بل مدعي د ملکیت سبب نه دی ذکر کړی، نو ځکه د هغه دعویٰ او بیّنه به دواړه ساقطیږي.

او که چیرې دواړه مدعیان خارج وي یعني یو هم قابض نه وي، نو په دې صورت کي د نتاج والا بیّنه راجح او معتبره ده: ځکه چي هغه د ملکیت د مخکي والي (اولیت) خبر ورکوي.

(۴)... څلورمه مسئله دا ده که په مخکنی مسئله کي د قابض لپاره د نتاج فیصله وسي. بیا یو دریم کس په دې نتاج دعویٰ وکړي او بیّنه هم پېش کړي، نو په دې صورت کي د هغه قول او بیّنه راجح ګرځي او د هغه په حق کي به فیصله کیږي. ها! که چیرې قابض دویم وار بیّنه پېش کړي او په بیّنه پېشولو سره خپله دعویٰ مؤکده او مضبوطه کړي، نو بیا به د ثالث (دریم کس) په حق کي فیصله نه کیږي، بلکي د قابض په حق کي چي کومه فیصله سوې وه، هغه به باقي پاتیږي. او که چیرې قابض بیّنه پېش نه کړي، نو د ثالث په حق کي به فیصله کیږي: ځکه چي دغه ثالث کس خو بالکل تر مخکنی فیصلې لاندي داخل نه وو چي هغه مقضي علیه او مدعیٰ علیه وګرځول سي. و

هغه له مقدمې او دعوې څخه خارج کړی سي، هغه خو وروسته مخته راغلی دی، نو ځکه قاضي به د هغه خبره په غور سره اوري نو که د هغه خبره صحيح او معتبره وي، نو د هغه په حق کي به فيصله کوي.

وکذا المقضي عليه إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د نعمان په قبضه کي يوه بزه وي او حامد په هغه دعوىٰ وکړي چي دا "بزه زما ده" او بيّنه هم پېش کړي او د بينې پر بناء قاضي د خارج يعني د حامد په حق کي د هغه بزې فيصله وکړي، نو حامد مقضي لهٗ سو او نعمان مقضي عليه سو. اوس که چيري له هغه بزې څخه بچی (مرغومی) پيدا سي او نعمان دعوىٰ وکړي چي "دا مرغومی زما د هغه بزې نتاج (بچی) دی چي د حامد لپاره د هغې فيصله سوې وه" او نعمان پر دې خبره بيّنه هم پېش کړي، نو قاضي به خپل اوله فيصله ماتوي او بيا به د نعمان (کوم چي د نتاج دعوىٰ کوي) په حق کي د بزې او مرغومي دواړو فيصله کوي؛ ځکه پر نتاج چي کوم بيّنه پېش کړل سوې ده، هغه د نص حکم او درجه لري او مخکي چي کومه بيّنه او فيصله سوې وه، هغه د اجتهاد په حکم کي وه، او دا خو هر چا ته معلومه ده چي نص له اجتهاد څخه اقوىٰ او اعلىٰ وي، نو ځکه په دې مسئله کي به اوله فيصله ماتول کيږي او دويمه فيصله به نافذول کيږي.

## د "نتاج" په خير حُکم والا يو څو نور شيان

قَالَ: وَكَذَلِكَ النَّسْجُ فِي الثِّيَابِ الَّتِي لَا تُنْسَجُ إِلَّا مَرَّةً فرمايي: او همدارنګه د هغه کپړو د وودلو [جوړولو] هم دا حکم دی کوم چي صرف يو وار وودل کيږي كَغَزْلِ الْقُطْنِ لکه له پمبې څخه جوړه سوې کپړه وَكَذَلِكَ كُلُّ سَبَبٍ فِي الْمِلْكِ لَا يَتَكَرَّرُ او همدا حکم د هر هغه سبب الملک دی کوم چي نه مکرر کيږي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى النِّتَاجِ ځکه چي هغه د نتاج په معنىٰ سره دی كَحَلْبِ اللَّبَنِ لکه شيدې لوښل وَاتِّخَاذِ الْجُبْنِ وَاللِّبَدِ او پنير [پوڅه] او کراسته جوړول وَالْمِرْعِزَّى وَجَزِّ الصُّوفِ او لکه وجغوني او وړی سکستل [پرېکول] وَإِنْ كَانَ يَتَكَرَّرُ او که هغه مکرر کيږي قُضِيَ بِهِ لِلْخَارِجِ نو د غير قابض لپاره به د هغه فيصله کيږي بِمَنْزِلَةِ الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ د مطلق ملکيت په څېر [يعني لکه څرنګه چي د مطلق ملکيت په دعوىٰ کي د خارج لپاره فيصله کيږي] وَهُوَ مِثْلُ الْخَزِّ وَالْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ وَزِرَاعَةِ الْحِنْطَةِ وَالْحُبُوبِ او هغه لکه وربښمي کپړه جوړول، وداني جوړول، بوټي لګول، د غنمو او دانو کښت کرل

فَإِنْ أَشْكَلَ او كه چيري معامله مشتبه وي يُرْجَعُ إِلَى أَهْلِ الْخِبْرَةِ نو خبر لرونكو [ماهرينو] ته به رجوع كيږي لِأَنَّهُمْ أَعْرَفُ بِهِ ځكه چي هغوی د دې زيات پېژندونكي وي فَإِنْ أَشْكَلَ عَلَيْهِمْ او كه پر هغو هم معامله مشتبه وي قُضِيَ بِهِ لِلْخَارِجِ نو د خارج لپاره به فيصله كيږي لِأَنَّ الْقَضَاءَ بِبَيِّنَتِهِ هُوَ الْأَصْلُ ځكه چي د خارج پر بيّنه فيصله كول اصل دي وَالْعُدُولُ عَنْهُ بِخَبَرِ النِّتَاجِ او له هغه څخه عدول [د هغه پرېښوول] د نتاج د خبر په وجه كيږي فَإِذَا لَمْ يَعْلَمْ او كله چي هغه معلوم نه وي يُرْجَعُ إِلَى الْأَصْلِ نو د اصل وطرف ته به رجوع كيږي.

**اللغات**: ﴿نسج﴾ د نصر او ضرب مصدر دی: كپړه (ټوكر) جوړول، له تارونو څخه ټوكر وودل (اوبدل)، ﴿غزل﴾، په معنیٰ سره د مَغْزُوْل: يعني هغه تارونه او سپېنسيان كوم چي له پمبې او وړۍ څخه جوړ سوي وي (لكه ښځوا چي به دلاسي شرخې په ذريعه له پمبې څخه تارونه جوړېدل بيا به له هغه تارونو څخه ټوكر او كپړه جوړېده)، ﴿قطن﴾ پمبه، پنبه، ﴿غزل القطن﴾ مراد ځني د پنمبې له تارونو (سپېنسيانو) څخه جوړه سوې كپړه ده، ﴿حَلْب﴾ او حَلَب: د نصر او ضرب مصدر دی: لوښل، ﴿جبن﴾ له تازه شيدو څخه جوړه سوې پوڅه، پنير، ﴿لِبد﴾ او لَبَد او لِبْدَةٌ: كراسته، نيمڅې، لمڅه، هغه فرش او ټوكر چي له وړيو څخه جوړ سوی وي، ﴿مِرْعِزّٰی﴾ او مَرْعَز: نور لغات هم پكښې سته: په اصل كي هغه نري او كوچني وړېښتو ته وايي كوم چي د بزې تر وجغونو لاندي وي (مصباح منير)، ﴿جَزّ﴾ د نصر د باب مصدر دی، جَزَّ يَجُزُّ جَزًّا: وړۍ پرېكول (غيچي كول)، سكستل، ﴿صوف﴾ وړۍ (د پسه وېښته)، ﴿الخَزّ﴾ او قزّ: په دې لفظ كي دوه قوله مذكور دي: ① هغه كپړه كوم چي له وربېښمو څخه جوړه سوې وي، ② هغه كپړه كوم چي له وربېښمو او وړيو (صوف) دواړو څخه جوړه سوې وي، ﴿بناء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: وداني جوړول (مثلا دېوال يا داسي بل شی جوړول)، تعميرول، ﴿غرس﴾ د ضرب د باب مصدر دی: بوټي او درختنه لګول، راشين كول، ﴿حنطة﴾ غنم، ﴿حبوب﴾ غله، دانې، ﴿عُدُول﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ګرځېدل، اوښتل، ليرې كېدل، پرېښوول. (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي هغه كپړه كوم چي صرف يو ځل وودل كيږي (جوړول كيږي) لكه عامه كپړه، يا هر هغه سبب الملک (د ملكيت سبب) كوم چي نه مكرر كيږي، هغه د نتاج په حكم

کي دي، مثلاً د يو سړي (خالد) په قبضه کي يو کپړه وي او بل څوک په هغه دعویٰ وکړي چي "دا کپړه زما ده، او ما په خپل ملکيت کي هغه جوړه کړې ده" لېکن قابض (خالد) ووايي چي "دا زما کپړه ده او ما هغه جوړه کړې ده"، نو د نتاج په څېر به دلته هم د قابض په حق کي فيصله کيږي او د خارج (غير قابض) دعویٰ او بينې ته به هيڅ اهميت نه ورکول کيږي.

او هغه سبب الملک کوم چي نه مکرر کيږي، د هغه مثالونه دا دي: شيدې لوښل، پنير جوړول، کراسته جوړول. د پُسه وړي او د بزې وجغوني سکستل. څرنګه چي دا ټوله اسباب الملک په يوه وخت کي صرف يو وار موجوديږي، نو ځکه دا ټوله د نتاج په حکم کي دي او په دې ټولو کي به د قابض په حق کي فيصله کيږي.

او که چيري سبب الملک (د ملکيت سبب) داسي وي چي په هغه کي د مکرر کېدلو امکان وي، لکه وربښمي کپړه جوړول، کور جوړول، بوټي او درختي ايښول، د غنمو او داسي نورو غله جاتو کښت کرل، څرنګه چي په دې ټولو کي تکرار ممکن دی؛ ځکه چي کښت وربېل سي او دوباره را شين کړی سي او داسي نور... نو که چيري د داسي شيانو په هکله د خارج او قابض تر مينځ اختلاف راسي، نو فيصله به د خارج په حق کيږي، لکه څرنګه چي د مطلق ملکيت د دعوی کولو په صورت کي د خارج په حق کي فيصله کيږي.

فإن إشكل إلخ: د دې حاصل دا دی چي که يو شي يا يو سبب الملک مشتبه وي او دا معلومه نه وي چي په هغه کي تکرار کيږي او که نه، نو په داسي صورت به کي د هغه شي د ماهرينو وطرف ته رجوع کيږي او د هغو د قول او خبر مطابق به فيصله کيږي؛ ځکه چي ماهرين د هغه شي په جرړه هم واقف وي، لېکن که هغوی هم په دې باره کي پوره خبر نه لري، نو دلته به هم د خارج په حق کي فيصله کيږي؛ ځکه چي زموږ په نيز د خارج پر بيّنه فيصله کول اصل دي، او په نتاج او داسي نورو شيانو کي اصل ته رجوع کيږي، لهذا په کوم صورت کي چي د نتاج او مثل نتاج معامله وي نو هلته به د قابض حکومت وي او چيري چي د نتاج او مثل نتاج معامله نه وي، هلته به خارج بازي ګټي. (احسن الهدايه)

## د مطلق ملکيت او رانيولو په دعوو کي اختلاف

| قَالَ: وَإِنْ أَقَامَ الْخَارِجُ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ فرمايي: او که چيري خارج [غيرِ قابض] پر مطلق ملکيت بينه پېش کړي وَصَاحِبُ الْيَدِ الْبَيِّنَةَ عَلَى الشِّرَاءِ مِنْهُ او قابض له خارج څخه پر رانيولو بينه پېش کړي كَانَ صَاحِبُ الْيَدِ أَوْلَى نو قابض اولیٰ دی لِأَنَّ الْأَوَّلَ إِنْ كَانَ يَدَّعِي أَوَّلِيَّةَ الْمِلْكِ ځکه |
| --- |

خارج که څه هم د ملکیت د اول والي دعوىٰ کوي فَهٰذَا تَلَقِّي مِنْهُ لیکن قابض له همدې خارج څخه د ملکیت حاصلېدل ثابت کړي دي وَفِي هٰذَا لَا تَنَافِيَ او په دې کې هیڅ منافات نشته فَصَارَ كَمَا إِذَا أَقَرَّ بِالْمِلْكِ لَهُ ثُمَّ ادَّعَى الشِّرَاءَ مِنْهُ نو داسې سوه لکه قابض چې د خارج د ملکیت اقرار وکړي بیا له هغه څخه د رانیولو دعوىٰ وکړي.

**اللغات:** ﴿خارج﴾ غیر قابض، ﴿اولیة﴾ اول والي، مخکې والی، ﴿تَلَقِّي﴾ د تفعل د باب ماضي ده: حاصلول، حاصلېدل، ترلاسه کول، اخیستل، ﴿تنافي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: تعارض، یو د بل مخالف کېدل.

**تشریح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې کله خارج پر مطلق ملکیت بیّنه پېش کړي، نو د اصل کېدلو په وجه به د هغه بیّنه قبلول کیږي، بیا که قابض له همدې خارج څخه د رانیولو دعوىٰ وکړي (چې ما له هغه څخه دا شی رانیولی دی) او پر دې بیّنه پېش کړي، نو د هغه بیّنه د خارج له بینې څه اولىٰ او معتبره ده او هغه به قبلول کیږي، لکه کله چې خارج پر مطلق ملکیت بیّنه پېش کړي او بیا قابض د خارج لپاره د ملکیت اقرار وکړي او تر دې وروسته له هغه څخه د رانیولو دعوىٰ وکړي، نو د هغه دا دعوىٰ قبلول کیږي، نو همداسې به په دغه مسئله کې هم د قابض دعوىٰ قبلول کیږي.

## له بل چا څخه د رانیولو دعوی کول

قَالَ: وَإِنْ أَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ عَلَى الشِّرَاءِ مِنَ الْآخَرِ وَلَا تَارِيخَ مَعَهُمَا او که په دواړو مدعیانو کې هر یو له بل څخه پر رانیولو بیّنه پېش کړي او د هغو سره تاریخ نه وي تَهَاتَرَتِ الْبَيِّنَتَانِ نو دواړې بینې ساقطیږي وَتُتْرَكُ الدَّارُ فِي يَدِ ذِي الْيَدِ او کور به د قابض په قبضه کې پرېښوول کیږي قَالَ: وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ فرمایي: دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَعَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ* يُقْضَى بِالْبَيِّنَتَيْنِ وَيَكُونُ لِلْخَارِجِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول مطابق به پر دواړو بینو [ګواهیو] فیصله کیږي او مدعیٰ بِهٖ [کور] به د خارج لپاره وي لِأَنَّ الْعَمَلَ بِهِمَا مُمْكِنٌ ځکه چې پر دواړو بینو

* القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَاالله، لأن قولهما قول المتون، كما ذكر في كنز الدقائق (ص:۲۸۳)، وملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۳۸۱). [القول الراجح ج:۲، ۱۸۸]

عمل کول ممکن دي فَيُجْعَلُ كَأَنَّهُ اشْتَرَى ذُو الْيَدِ مِنَ الْآخَرِ وَقَبَضَ ثُمَّ بَاعَ وَلَمْ يُسَلِّمْ نو مسئله به داسې ګرځول کيږي [فرض کيږي] لکه قابض چې له بل چا [خارج] څخه هغه [کور] رانيوی او قبضه يې پر وکړه او بيا يې [پر خارج] خرڅ کړی لېکن [هغه ته يې] نه وسپاری لِأَنَّ الْقَبْضَ دَلَالَةُ السَّبْقِ ځکه چې قبضه [د ملکيت] د مخکې والي دليل دی عَلَى مَا مَرَّ لکه مخکې چې تېر سوه وَلَا يَعْكِسُ الْأَمْرُ او معامله د دې نه برعکس کيږي لِأَنَّ الْبَيْعَ قَبْلَ الْقَبْضِ لَا يَجُوزُ ځکه [پر مبيع] له قبضه کولو څخه مخکې [د مبيع] خرڅول جائز نه دي وَإِنْ كَانَ فِي الْعَقَارِ که څه هم هغه په جايداد [کور] کې وي عِنْدَهُ د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز [يعني دا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی] وَلَهُمَا أَنَّ الْإِقْدَامَ عَلَى الشِّرَاءِ إِقْرَارٌ مِنْهُ بِالْمِلْكِ لِلْبَائِعِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې پر رانيولو اقدام کول [په حقيقت کې] د مشتري له طرفه د بائع لپاره د ملکيت اقرار کول دي فَصَارَ كَأَنَّهُمَا قَامَتَا عَلَى الْإِقْرَارَيْنِ نو داسې سوه لکه دواړي ګواهياني [بينې] چې پر دوو اقرارنو قائم سي [پېش سي] وَفِيهِ التَّهَاتُرُ بِالْإِجْمَاعِ او په داسې صورت کې بالاتفاق ګواهياني ساقطيږي كَذَا هٰهُنَا نو همداسې به دلته هم وي وَلِأَنَّ السَّبَبَ يُرَادُ لِحُكْمِهِ وَهُوَ الْمِلْكُ او ځکه چې له سبب [شراء] څخه د سبب حکم يعني ملکيت مراديږي وَلَا يُمْكِنُ الْقَضَاءُ لِذِي الْيَدِ إِلَّا بِمِلْكٍ مُسْتَحَقٍّ او [دلته] له مستحق ملکيت څخه بغير د قابض لپاره د ملکيت فيصله کول ممکن نه دي فَبَقِيَ الْقَضَاءُ لَهُ بِمُجَرَّدِ السَّبَبِ نو ځکه د قابض لپاره د محض سبب [شراء] فيصله وسوه وَأَنَّهُ لَا يُفِيدُهُ او د محض سبب فيصله حکم [ملکيت] نه فايده کوي ثُمَّ لَوْ شَهِدَتِ الْبَيِّنَتَانِ عَلَى نَقْدِ الثَّمَنِ بيا که دواړي بينې د ثمن پر اداء کولو ګواهي ورکړي [يعني د خارج او قابض دواړو ګواهان دا ګواهي ورکړي چې په دوی کې هر يوه زر درهمه ثمن اداء کړی دی] فَالْأَلْفُ بِالْأَلْفِ قِصَاصٌ عِنْدَهُمَا نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز زر درهمه د زر درهمو په عوض کې تبادله کيږي [مقاصه کيږي] إِذَا اسْتَوَيَا په دې شرط کله چې دواړه ثمنونه [په جنس او صفت کې] سره برابر وي لِوُجُودِ قَبْضٍ مَضْمُونٍ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ ځکه چې له هر طرفه ضمان والا قبضه موجوده ده وَإِنْ لَمْ يَشْهَدُوا عَلَى نَقْدِ الثَّمَنِ او که ګواهان د ثمن اداء کولو ګواهي نه ورکړي فَالْقِصَاصُ مَذْهَبُ مُحَمَّدٍ نو تبادله

کېدل د امام محمد رَحِمَهُ الله مذهب دی لِلْوُجُوبِ عِنْدَهُ ځکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز ثمن واجبيږي وَلَوْ شَهِدَ الْفَرِيقَانِ بِالْبَيْعِ وَالْقَبْضِ او که د خارج او قابض دواړو ګواهان د بيع مع القبض ګواهي ورکړي تَهَاتَرَتَا بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق دواړي بينې ساقطيږي لِأَنَّ الْجَمْعَ غَيْرُ مُمْكِنٍ عِنْدَ مُحَمَّدٍ ځکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز جمع کول ناممکن دي لِجَوَازِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْبَيْعَيْنِ ځکه چي دواړي بيع جائز دي بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت وَإِنْ وَقَّتَتِ الْبَيِّنَتَانِ فِي الْعَقَارِ وَلَمْ تُثْبِتَا قَبْضًا او په که جايداد کي [يعني د جايداد په دعویٰ کي] دواړو بينې تاريخ بيان کړي لېکن دواړي قبضه ثابته نه کړي وَوَقْتُ الْخَارِجِ أَسْبَقُ او د خارج تاريخ [له قابض څخه] مخکي وي يُقْضَى لِصَاحِبِ الْيَدِ عِنْدَهُمَا نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به د قابض لپاره فيصله کيږي فَيُجْعَلُ كَأَنَّ الْخَارِجَ اشْتَرَى أَوَّلًا ثُمَّ بَاعَ قَبْلَ الْقَبْضِ مِنْ صَاحِبِ الْيَدِ نو مسئله به داسي ګرځول کيږي لکه خارج چي اول له قابض څخه مدعیٰ به [کور] رانيوی او بيا يې [پر کور] له قبضه کولو څخه مخکي هغه پر قابض خرڅ کړی وَهُوَ جَائِزٌ فِي الْعَقَارِ عِنْدَهُمَا او دا [بيع قبل القبض] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په جايداد کي جائز ده وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ* يُقْضَى لِلْخَارِجِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به د خارج لپاره فيصله کيږي لِأَنَّهُ لَا يَصِحُّ بَيْعُهُ قَبْلَ الْقَبْضِ ځکه چي [د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز] قبل القبض [د خارج لپاره] د جايداد بيع جائز نه ده فَبَقِيَ عَلَى مِلْكِهِ نو ځکه مدعیٰ به [کور] د خارج په ملکيت کي پاته سو وَإِنْ أَثْبَتَا قَبْضًا او که ګواهان قبضه هم ثابته کړي يُقْضَى لِصَاحِبِ الْيَدِ نو بيا [د شيخينو او امام محمد په اتفاق سره] به د قابض لپاره فيصله کيږي لِأَنَّ الْبَيْعَيْنِ جَائِزَانِ عَلَى الْقَوْلَيْنِ ځکه چي [په دې صورت کي] د دواړو قولونو مطابق دواړي بيع جائز دي وَإِنْ كَانَ وَقْتُ صَاحِبِ الْيَدِ أَسْبَقَ او که د قابض تاريخ مخکي وي يُقْضَى لِلْخَارِجِ فِي الْوَجْهَيْنِ نو په دواړو صورتونو کي به د خارج لپاره فيصله کيږي فَيُجْعَلُ كَأَنَّهُ اشْتَرَاهُ ذُو الْيَدِ وَقَبَضَ ثُمَّ بَاعَ وَلَمْ يُسَلِّمْ نو مسئله به داسي ګرځول کيږي لکه قابض چي مدعیٰ به

---

* القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر فى ملتقى الأبحر (ج:٣، ص:٣٨١)، وكذا فى البحر الرائق (ج:٧، ص:٢٤٦). [القول الراجح ج:٢، ص:١٨٩]

اکور] رانیوی او پر هغه یې قبضه وکړه بیا یې پر [خارج] خرڅ کړی لېکن [هغه ته یې] نه وسپاری أَوْ سَلَّمَهُ ثُمَّ وَصَلَ إِلَيْهِ بِسَبَبٍ آخَرَ یا [هغه ته یې] وسپاری بیا هغه [کور] په یو بل سبب سره د قابض لاس ته ورسېدی.

**اللغات**: ﴿تهاترت﴾ د تفاعل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: ساقطېدل، باطلېدل، ﴿سَبْق﴾ د ضرب او نصر د باب مصدر دی: مخکې کېدل، وړاندې کېدل، ﴿عقار﴾ غيرِ منقوله جايداد. لکه کور، ځمکه او داسې نور. ﴿إقدام﴾ د افعال د باب مصدر دی: وړاندېتوب کول، په يو کار لاس پورې کول، ﴿قصاص﴾ مقاصه، تبادله کول، ادل بدل کول (مثلاً پر زيد د خالد لس درهمه قرض باندې وي. او بيا د خالد هم پر زيد لس درهمه قرض باندې سي، نو دوی خپل قرضونه سره مقابله او ادل بدل کړي، دې ته مقاصه وايي)، په برابری سره يو شی د بل شي په مقابله کې راتلل، ﴿وقتت﴾ د تفعيل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: وخت بيانول (تاريخ بيانول).

**تشريح**: په دې عبارت کې څلور مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که د يو کور په باره کې دوه خلک مثلاً زيد او حامد يو له بل څخه د رانيولو دعوی وکړي، يعني زيد ووايي چي "ما دا کور له حامد څخه رانيولی دی" او حامد ووايي چي "ما دا کور له زيد څخه رانيولی دی" او دواړه پر دې بيّنه پېش کړی، لېکن له دوی څخه يو مدعي او د هغه بيّنه تاريخ بيان نه کړي، نو په دې صورت کې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دواړې بينې ساقطېږي او باطلېږي او هغه کور چي في الحاله د کوم مدعي په قبضه کې وي، د هغه سره به پرېښوول کېږي. د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي دلته به د خارج (غيرِ قابض) په حق کې فيصله کېږي، او د مسئلې تخريج به داسې وي چي قابض هغه کور له خارج څخه رانيوی او پر هغه يې قبضه وکړه، بيا خارج پر همدې قابض هغه کور خرڅ کړی لېکن هغه ته يې نه وسپاری، نو اوس به قابض ته ويل کېږي چي وروره! د خارج کور هغه ته وسپاره!. ځکه چي ستا پر هغه کور قبضه کول د دې خبري علامت دی چي اول تا رانيولی دی او وروسته خارج رانيولی دی، او وروستني رانيول د مخکني اېيرلو لپاره ناسخ کرځي. لهذا ته په سمه خارج ته د هغه رانيول سوی کور ورکړه!، او دلته به دا نه ..ل کېږي چي اول خارج رانيولی وو او بيا هغه پر قابض خرڅ کړی؛ ځکه چي دا بيع قبل القبض .. بيع قبل القبض جائز نه ده، نو ځکه دا صورت ممکن نه دی.

ولهما إلخ: د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي پر شراء د قابض اقدام کول (يعني له خارج څخه د قابض رانيول) د دې خبري دليل دی چي د مدعیٰ بهٖ (کور) اصل مالک بائع يعني قابض دی، او څرنګه چي قابض او خارج دواړه يو له بل څخه د شراء (رانيولو) دعویٰ کوي، نو ځکه د دواړو دعویٰ او بيّنه به باطله وي، د دې مثال لکه دواړه چي ووايي "هغه د دې کور مالک دی"، يعني خارج ووايي: قابض د دې کور مالک دی او قابض يا د هغه ګواهان ووايي: خارج د دې کور مالک دی، او په دې صورت کي دعویٰ او بيّنه باطله ده، نو ځکه په پورتني مسئله کي به هم د دواړو مدعيانو بينې باطله وي او مدعیٰ بهٖ (کور) به د قابض په قبضه کي پرېښوول کيږي.

د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دويم دليل دا دی چي سبب هغه وخت معتبر ګرځي کله چي هغه د حکم فايده ورکوي، او په دې مسئله کي سبب (شراء) د حکم (ملکيت) فايده نه ورکوي، نه د خارج په حق کي او نه د قابض په حق؛ د خارج په حق کي خو په دې وجه د حکم فايده نه ورکوي چي که د هغه په حق کي سبب يعني شراء تسليم کړی سي (يعني د هغه رانيول تسليم کړی سي) نو بيع المبيع قبل القبض به لازم سي، او بيع المبيع قبل القبض صحيح نه ده. او د قابض په حق کي سبب يعني شراء په دې وجه د حکم فايده نه ورکوي چي که د هغه په حق کي شراء تسليم کړی سي نو د خارج لپاره به پر هغه مدعیٰ بهٖ (کور) قبضه کول لازم وي، او دا ناممکن دي؛ ځکه چي پر مدعیٰ بهٖ (کور) خو په خپله د قابض قبضه ده، نو ځکه د هغه په حق کي به صرف د سبب يعني د شراء فيصله کيږي لېکن د شراء د حکم يعني د ملکيت فيصله به نه کيږي، او محض د سبب فيصله حکم نه فايده کوي، نو ځکه غوره فيصله دا ده چي دواړي بينې ساقط کړل سي او مُدعیٰ بهٖ (کور) د قابض په قبضه کي پرېښوول سي.

(۲)... او که د دواړو فريقو ګواهان يعني د خارج او قابض ګواهان دا ګواهي ورکړي چي خارج او قابض دواړو زر، زر درهمه د مدعیٰ بهٖ (کور) ثمن اداء کړی دی او هر يوه بل ته دا ثمن سپارلی دی، نو که چيري دواړه ثمنونه په جنس او صفت کي سره برابر وي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د دواړو ثمنونو په مينځ کي مقاصه کيږي، يعني يو د بل په بدله کي راځي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز په هغه صورت کي هم مقاصه کيږي، کله چي ګواهانو د ثمن اداء کولو ګواهي نه وي ورکړې؛ ځکه کله چي هغو د شراء (رانيولو) ګواهي ورکړه نو په هغه سره ثمن هم ثابت او واجب سو، نو ځکه مقاصه به هم واجب وي.

**ولو شهد الفريقان إلخ:** (۳)... او که د دواړو فريقو ګواهان دا ګواهي ورکړي چي هر فريق مدعیٰ بهٖ (کور) خرڅ کړی دی او مشتري پر هغه قبضه هم کړې ده، نو بالاتفاق دواړي ګواهی باطليږي؛ ځکه چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا ګواهي داسي ده لکه د هر فريق له طرفه د بل فريق په حق کي د ملکيت اقرار کول کول، او دا باطل دي.

او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دې وجه باطليږي چي کله دواړي بيع بعد القبض دي، نو ښکاره خبره ده چي دواړي بيع صحيح دي، خو څرنګه چي د دواړو تاريخ معلوم او واضح نه دی، نو ځکه يوه بيع له بلي څخه اولیٰ هم نه ده او دواړي سره متعارض دي او د فقهي قاعدې "إِذَا تَعَارَضَا تَسَاقَطَا" په وجه باطل دي. د دې په خلاف په اول صورت يعني کله چي ګواهان صرف د شراء ګواهي ورکړي او د قبضې ګواهي نه ورکړي، نو هلته به د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د خارج په حق کي فيصله کيږي، لکه څرنګه په اوله مسئله کي د دې تخريج او تشريح تېره سوه.

**وإن وقتت إلخ:** (۴)... د دې حاصل دا دی چي که دواړه بينې (ګواهان) دا ګواهي ورکړي چي هر فريق يو پر بل په فلانکي تاريخ دا کور خرڅ کړی دی او د قبضې ګواهي نه ورکړي (يعني دا نه روايي چي هغه قبضه پر کړې ده)، لېکن د خارج د بيع تاريخ د قابض له تاريخ څخه مقدم وي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چي په دې صورت کي به د قابض په حق کي د مدعیٰ بهٖ (کور) فيصله کيږي (يعني قابض ته به هغه ورکول کيږي) او د مسئلې تخريج به داسي کيږي چي خارج اول هغه کور له قابض څخه رانيوی بيا پر هغه له قبضه کولو څخه مخکي يې بيرته پر قابض خرڅ کړی، نو ځکه اوس به خارج هغه کور قابض ته واپس کوي، او داسي ممکن هم دي؛ ځکه چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز بيع العقار قبل القبض صحيح او جائز ده. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي خارج په حق کي به د هغه کور فيصله کيږي؛ ځکه چي د هغه په نېز قبل القبض د عقار بيع صحيح نه ده.

او که چيري ګواهان د بيع مع القبض ګواهي ورکړي، نو بيا د ټولو په نېز حکم دا دی چي د قابض په حق کي به فيصله کيږي؛ ځکه چي د قبضه کولو په وجه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هم بيع جائز ده، او څرنګه چي د خارج د شراء (رانيولو) تاريخ مخکي دی، نو ځکه هغه به خامخا وروسته خرڅونکی وي او پر هغه به دا لازم وي چي قابض ته مدعیٰ بهٖ (کور) وسپاري.

د دې په خلاف که چيري د قابض د شراء تاريخ مخکي وي، نو په دواړو صورتونو کي به د خارج په حق کي فيصله کيږي، يعني برابره ده ګواهان د قبضې ګواهي ورکړي او که نه، په دواړو

صورتو کي به صرف د خارج په حق کي فیصله کیږي او د مسئلې تخریج به داسي کیږي چي قابض اول له خارج شخه مدعیٰ به کور رانیوی او پر هغه یې قبضه وکړه، بیا یې هغه (کور) بیرته پر خارج خرڅ کړی لیکن هغه ته یې نه وسپاری یا هغه ته خویې وسپاری لیکن بیا د عاریتاً یا اجارتاً اخیستلو په وجه بیرته هغه د ده (قابض) قبضې ته راغلی، نو ځکه به اوس قابض دا کور خارج ته واپس کوي. (احسن الهدایه)

## د دعوې پر ثبوت د گواهانو د کثرت او قلت اثر

قَالَ: وَإِنْ أَقَامَ أَحَدُ الْمُدَّعِيَيْنِ شَاهِدَيْنِ وَالْآخَرُ أَرْبَعَةً فرمایي: او که له دواړو مدعیانو شخه یو دوه گواهان پېش کړي او بل څلور گواهان پېش کړي فَهُمَا سَوَاءٌ نو [هم] دواړه سره برابر دي لِأَنَّ شَهَادَةَ كُلِّ الشَّاهِدِينَ عِلَّةٌ تَامَّةٌ ځکه چي د هر دوو گواهانو گواهي بشپړ علت دی كَمَا فِي حَالَةِ الِانْفِرَادِ لکه څرنګه چي د انفراد په حالت کي [د دوو گواهي بشپړ علت تامه دی] وَالتَّرْجِيحُ لَا يَقَعُ بِكَثْرَةِ الْعِلَلِ او د علتونو په زیاتوب سره ترجیح نه ثابتیږي بَلْ بِقُوَّةٍ فِيهَا بلکي د علتونو په قوت سره ثابتیږي [یعني د علت په قوت سره ترجیح ثابتیږي] عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي معلومه سوې ده.

**اللغات**: ﴿شهادة﴾ گواهي، ﴿علة تامة﴾ بشپړ علت، پوره سبب.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که له قابض او خارج شخه یو مدعي څلور گواهان پېش کړي او بل یو دوه گواهان پېش کړي، نو په دې صورت کي هم دواړه مدعیان (خارج او قابض) سره برابر دي او د څلورو گواهانو مدعي پر دوو گواهانو والا مدعي فضیلت او فوقیت نه لري؛ ځکه چي د شهادت اصل نصاب دوه عدد (دوه گواهان) دي، او دا نصاب په هر طرف کي موجود دی، لهذا څرنګه چي په انفرادي حالت کي یعني د یوه مدعي له طرفه د دوو گواهانو شهادت علت تامه دی، همداسي به په اجتماعي حالت کي هم د دوو گواهانو شهادت علت تامه وي او د گواهانو کثرت به د ترجیح وجه نه گرځي. ها! د گواهانو قوت به د ترجیح وجه گرځي، مثلاً د یوه مدعي گواهان مستور الحاله وي او د بل مدعي گواهان ظاهر العدالته وي، نو عادله گواهان به له مستور الحاله گواهانو شخه مخکي کول کیږي. همدا د فقهي ضابطه او قاعده ده.

## د ټوله او نيم کور د دعوې کولو يو صورت

قَالَ: وَإِذَا كَانَتْ دَارٌ فِي يَدِ رَجُلٍ ادَّعَاهَا اثْنَانِ فرمايي: او كه د يو سړي په قبضه کې يو کور وي چې په هغه دوه کسان دعویٰ وکړي أَحَدُهُمَا جَمِيعَهَا وَالْآخَرُ نِصْفَهَا يو کس د ټوله کور دعویٰ وکړي او بل د نيم کور دعویٰ وکړي وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ او دواړه بيّنه پېش کړي فَلِصَاحِبِ الْجَمِيعِ ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِهَا نو د ټوله کور د مدعي لپاره د کور درې څلورمې حصې دي وَلِصَاحِبِ النِّصْفِ رُبُعُهَا او د نصف کور د مدعي لپاره يوه څلورمه حصه ده عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز اعْتِبَارًا بِطَرِيقِ الْمُنَازَعَةِ د منازعت د طريقې په اعتبار کولو سره فَإِنَّ صَاحِبَ النِّصْفِ لَا يُنَازِعُ الْآخَرَ فِي النِّصْفِ ځکه د نصف کور مدعي په [بل] نصف کې د دويم مدعي سره منازعت [دعویٰ] نه کوي [يعني د نصف کور مدعي په بل نصف کې د کُل کور د مدعي سره تنازع او دعویٰ نه لري] فَسَلَّمَ لَهُ بِلَا مُنَازِعٍ نو د ځکه دا نصف د هغه [کُل کور د مدعي] لپاره سالم پاتې سو وَاسْتَوَتْ مُنَازَعَتُهُمَا فِي النِّصْفِ الْآخَرِ او په بل نصف کې د دوی منازعت [دعویٰ] برابره ده فَيُنَصَّفُ بَيْنَهُمَا نو ځکه هغه به د دوی په مينځ کې نيمول کيږي

وَقَالَا❁: هِيَ بَيْنَهُمَا أَثْلَاثًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې هغه کور دوی په مينځ کې د دريو حصو په حساب سره مشترک دی [يعني هغه به د دوی په مينځ کې د دريو حصو په حساب سره تقسيمول کيږي] فَاعْتَبَرَا طَرِيقَ الْعَوْلِ وَالْمُضَارَبَةِ نو صاحبينو د عول او مضاربت د طريقې اعتبار کړی دی فَصَاحِبُ الْجَمِيعِ يَضْرِبُ بِكُلِّ حَقِّهِ سَهْمَيْنِ وَصَاحِبُ النِّصْفِ بِسَهْمٍ وَاحِدٍ نو ځکه د کل کور مدعي به خپل ټوله حق په دوو حصو کې اخلي او د نصف مدعي به خپل حق په يوه حصه کې اخلي فَيُقَسَّمُ أَثْلَاثًا نو [په دې توګه] به کور د دريو حصو په حساب سره تقسيم کړی سي وَلِهَذِهِ الْمَسْأَلَةِ

---

❁ القول الراجح: قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۴۹۰)، وكذا في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۳۸۳). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۹۰]

نَظَائِرُ وَأَضْدَادٌ لَا يَحْتَمِلُهَا هٰذَا الْمُخْتَصَرُ او د دغه مسئلې لپاره ډېر مثالونه او اضداد سته چې دا مختصر کتاب د هغه ګنجايش نه لري وَقَدْ ذَكَرْنَاهَا فِي الزِّيَادَاتِ او هغه موږ په "زيادات" کې ذکر کړي دي.

**اللغات:** ﴿يد﴾ قبضه. ﴿منازعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: جنګ او اختلاف کول. دعویٰ کول. ﴿بطريق المنازعة﴾ د دې مطلب دا دی چې کله يو مدعي د نصف کور مدعي دعویٰ وکړه نو دويم نصف د بل مدعي لپاره سالم پاتـه سو او صرف په يوه نصف کې د دواړو منازعت موجود سو. په تشريح کې به هم د دې وضاحت وسي. ﴿عَوْل﴾ پر ټاکل سوي مقدار د حصو زياتېدل. د حصو په شمېر کې زياتوب او کمي راتلل(معجم لغة الفقهاء). ﴿سهم﴾ حصه. برخه. ﴿بطريق العول﴾ د دې مطلب به په تشريح کې بيان سي. ﴿أثلاثاً﴾ جمع د ثُلث ده. د ثلث معنیٰ ده: يوه درېيمه حصه. أثلاثاً: د درېو ثلثو په حساب سره. ﴿نظائر﴾ جمع د نَظِيرٌ ده: مثل. مثال. مساوي. ﴿أضداد﴾ جمع د ضِدٌّ ده: مخالف. نظير. (مصباح منير)

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو کور د خالد په قبضه کې وي. بيا ادريس او زيد په هغه دعویٰ وکړي. ادريس ووايي چې "دا کور زما دی" او زيد ووايي چې "په دې کور کې نصف (نيمه حصه) زما ده"، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چې په دې صورت کې به د منازعت په طريقه سره د دې کور تقسيم کيږي، مطلب دا چې دا کور به څلور حصې ګرځول کيږي. او کوم مدعي چې د ټوله کور دعویٰ کوي يعني ادريس، هغه ته به درې حصې (درې رُبع) ورکول کيږي او د نصف کور مدعي (زيد) ته به يوه حصه ورکول کيږي؛ ځکه چې يو کس (ادريس) د کل کور مدعي دی او بل يو د نصف کور مدعي دی، نو دويم نصف به د کل کور مدعي لره سالم پاتـه وي او په هغه کې به د ده هيڅ مقابل او منازع نه وي او د دواړو اختلاف به صرف په دويم نصف کې وي. نو ځکه هغه نصف به دوې حصې ګرځول کيږي او هر مدعي ته به يوه. يوه حصه ورکول کيږي چې په دې توګه به د کل کور د مدعي په قبضه کې درې حصې راسي او د نصف کور د مدعي په قبضه کې به يوه حصه راسي.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چې د دوی په مېنځ کې به د عول او مضاربت په طريقه سره تقسيم کيږي؛ ځکه چې د عول په ځېر دلته هم مخرج کم دی او حصې زائد دي، نو ځکه د صحيح او کسر د بغير تقسيم لپاره يو داسې عدد ته ضرورت دی کوم چې کامل نصف لري. او څرنګه چې په دې سلسله کې تر ټولو کم (اقلّ) عدد "دوه" دی چې د هغه کامل نصف "يو" دی. نو ځکه د کل کور مدعي به خپله حصه د دوو سره ضرب ورکوي او د نصف کور مدعي به د يوه سره چې د هغه حاصل ضرب "۳" دی او له دې څخه به د کل کور مدعي "۲" حصې (دوه ثلثه) اخلي او د نصف مدعي به يوه حصه (يو ثلث) اخلي. نو په دې اعتبار سره به دا تقسيم اثلاثاً وي. (احسن الهدايه ج:۱۱، ص:۳۴)

صاحب د اشرف الهدايې د پورتني عبارت "أثلاثاً...بطريق العول والمضاربة" مختصره تشريح داسې کړې ده چې: د صاحبينو رَحِمَهُمَا اللہ په نيز به د عول و مضاربت په طريقه سره کور اثلاثاً تقسيميږي، يعني د کل کور مدعي ته به دوه ثلثه ورکول کيږي او د نصف کور مدعي ته به يو ثلث ورکول کيږي؛ ځکه چې په دې مسئله کې کل او نصف دواړه سره جمع دي، نو مسئله به له "دوو" شخه وي؛ ځکه چې د نصف مخرج "دوه" دی، او د "۲" عدد د "۳" وطرف ته عول کوي، نو دوې حصې د ټوله کور د مدعي سوې او يوه حصه د نصف کور د مدعي سوه. (اشرف الهدايه ج:۱۱، ص:۲۷)

صاحب د هدايې رَحِمَهُ اللہ فرمايي چې د دغه مسئلې نور هم ډېر مثالونه سته چې په دې مختصر کتاب "هدايه" کې د هغوی ذکر کول ممکن نه دي او موږ هغه په خپل بل کتاب "زيادات" کې ذکر کړي دي، که څوک نور طلب لري نو هغه دې زيادات ته رجوع وکړي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَلَوْكَانَتْ فِي أَيْدِيهِمَا فرمايي: او که کور د دواړو په قبضه کې وي سُلِّمَ لِصَاحِبِ الْجَمِيعِ نِصْفُهَا عَلَى وَجْهِ الْقَضَاءِ وَنِصْفُهَا لَا عَلَى وَجْهِ الْقَضَاءِ نو کور به د کل کور مدعي ته ورکول کيږي، نيم کور د قضاء په توګه او نيم کور بغير له قضاء لِأَنَّهُ خَارِجٌ فِي النِّصْفِ ځکه چې د [غير مقبوضه] نصف په باره کې هغه خارج دی فَيُقْضٰى بِبَيِّنَتِهِ نو ځکه [د هغه نصف په هکله به] به د ده پر بيّنه فيصله کيږي وَالنِّصْفُ الَّذِي فِي يَدَيْهِ او کوم نصف چې د ده په قبضه کې دی صَاحِبُهُ لَا يَدَّعِيهِ د ده ملګری [دويم مدعي] د هغه دعوىٰ نه کوي لِأَنَّ مُدَّعَاهُ النِّصْفُ ځکه چې د هغه دعوىٰ صرف په نصف کې ده وَهُوَ فِي يَدِهِ سَالِمٌ لَهُ او هغه نصف د ده په قبضه کې سالم دی وَلَوْلَمْ يَنْصَرِفْ إِلَيْهِ دَعْوَاهُ او که چيرې د کل کور د مدعی دعوىٰ د دې نصف [کوم چې د نصف کور د مدعي په قبضه کې دی] وطرف ته نه وګرځول سي كَانَ ظَالِمًا بِإِمْسَاكِهِ نو هغه به د دې نصف په راګرځولو کې ظالم وي [په بله وينا: هغه به د نصف په راګرځولو سره ظالم وګرځي] وَلَا قَضَاءَ بِدُوْنِ الدَّعْوٰى او [ځرنګه چې] له دعوىٰ څخه بغير هيڅ فيصله نه کيږي فَيُتْرَكُ فِي يَدِهِ نو ځکه هغه [بلا دعوىٰ] نصف به د کل کور د مدعي په قبضه کې پرېښوول کيږي.

**اللغات**: ﴿إمساك﴾ د افعال د باب مصدر دی: (د ځان سره) راګرځول، منع کول، بند ساتل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که دعویٰ داره کور د دواړو مدعیانو (ادریس او زید) په قبضه کي وي، او له دوی څخه یو مدعي د پوره کور دعویٰ کوي (چي ټوله زما دی) او بل مدعي د نصف دعویٰ کوي (چي نیم زما دی)، نو په دې صورت کي به ټوله کور هغه مدعي ته ورکول کیږي کوم چي د پوره کور دعویٰ کوي، یعني یو نصف به اول هغه ته قضاء (د قاضي په فیصله) سره ورکول کیږي او بل نصف به هغه ته بغیر له قضاء ورکول کیږي؛ ځکه چي پر یوه نصف هغه قابض دی او پر بل هغه قابض نه دی. لهذا پر کوم نصف چي هغه قابض نه دی، د هغه په هکله خو به د ده بیّنه مقبوله او معتبره وي، او پر کوم نصف چي هغه په خپله قابض دی، د ده ملګری د هغه نصف مدعي نه دی؛ ځکه چي شریک خو صرف د بل نصف کور مدعي دی او دا بل نصف کور د هغه په قبضه کي هم دی، لهذا کوم نصف چي د کل کور د مدعي په قبضه کي دی، د هغه سره د ملګري (بل مدعي) هیڅ کار نسته، نو ځکه دا نصف خو به بلا دعویٰ او بلا قضاء د هغه (یعني د ټوله کور د مدعي) سره پرېښوول کیږي او کوم نصف چي د ملګري (بل مدعي) په قبضه کي دی، د هغه په باره کي د کل کور مدعي خارج (غیر قابض) دی، نو ځکه په دې سلسله کي به د هغه بیّنه قبلول کیږي او د دې نصف فیصله به هم د کل کور د مدعي لپاره کیږي، نو په دې اعتبار سره به یو نصف هغه ته قضاء حاصل سي او بل نصف به هغه ته بغیر له قضاء حاصل سي.

## د خاروي په ملکیت کي د اختلاف کولو پر مهال د خاروي پر عُمر د فیصله کولو بیان

قَالَ: وَإِذَا تَنَازَعَا فِي دَابَّةٍ فرمایي: او که په یو خاروي کي دوه کسان جنګ [یعني اختلاف او دعویٰ] وکړي وَأَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةً أَنَّهَا نُتِجَتْ عِنْدَهُ او له دوی دواړو څخه هر یو پر دې خبره بیّنه پېش کړي چي دا خاروی زما سره پیدا سوی دی وَذَكَرَا تَارِيخًا او دواړه تاریخ بیان کړي وَسِنُّ الدَّابَّةِ يُوَافِقُ أَحَدَ التَّارِيخَيْنِ او د خاروي عمر په دواړو تاریخونو کي د یوه تاریخ سره موافق وي فَهُوَ أَوْلَى نو هغه مدعي اولیٰ دی [د کوم یوه تاریخ چي د خاروي د عمر سره موافق وي] لِأَنَّ الْحَالَ يَشْهَدُ لَهُ ځکه چي ظاهر حال د هغه په حق کي ګواهي ورکوي فَيَتَرَجَّحُ نو ځکه هغه ته به ترجیح ورکول کیږي

وَإِنْ أَشْكَلَ ذٰلِكَ او كه د څاروي عمر مشتبه ابهما وي كَانَتْ بَيْنَهُمَا نو هغه څاروى د دواړو په مينځ كي مشترک ګرځي لِأَنَّهُ سَقَطَ التَّوْقِيتُ ځكه چي د تاريخ بيان ساقط سو فَصَارَ كَأَنَّهُمَا لَمْ يَذْكُرَا تَارِيخًا نو داسي سوه لكه هغوى دواړو چي هيڅ تاريخ نه وي بيان كړى وَإِنْ خَالَفَ سِنُّ الدَّابَّةِ الْوَقْتَيْنِ او كه د څاروي عمر د دواړو تاريخونو مخالف وي [او ديوه تاريخ سره هم مطابقت نه لري] بَطَلَتْ الْبَيِّنَتَانِ نو دواړي بينې باطليږي كَذَا ذَكَرَهُ الْحَاكِمُ همداسي حاكم شهيد رَحِمَهُ الله ذكر كړي دي لِأَنَّهُ ظَهَرَ كَذِبُ الْفَرِيقَيْنِ ځكه چي [په دې صورت كي] د دواړو فريقو درواغ ښكاره سول فَيُتْرَكُ فِي يَدِ مَنْ كَانَتْ فِي يَدِهِ نو ځكه [اوس] به هغه څاروى د هغه كس په قبضه كي پرېښوول كيږي د كوم يوه په قبضه كي چي هغه [له مخكي څخه] موجود وي قَالَ: وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ فِي يَدِ رَجُلٍ فرمايي: او كه يو غلام ديو سړي په قبضه كي وي أَقَامَ رَجُلَانِ عَلَيْهِ الْبَيِّنَةَ [او] دوه خلګ پر هغه بيّنه پېش كړي أَحَدُهُمَا بِغَصْبٍ وَالْآخَرُ بِوَدِيعَةٍ يو سړى د غصب كولو [بينه پېش كړي] او بل د امانتا وركولو فَهُوَ بَيْنَهُمَا نو هغه غلام د دواړو په مينځ كي مشترک دى لِاسْتِوَائِهِمَا ځكه چي دوى دواړه [د استحقاق په سبب كي] سره برابر دي.

**اللغات:** ﴿دابة﴾ څاروى، حيوان، چارپاى، ﴿نتجت﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: بچي پيدا كېدل، زېږول (د حيوان لپاره استعماليږي)، ﴿سن﴾ عمر، ﴿أشكل﴾ د افعال د باب ماضي ده: مشتبه كېدل، مشكوک كېدل، مبهم كېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده كه يو څاروى مثلاً سېرلى د خالد په قبضه كي وي، بيا زيد او ادريس دواړه په هغه دعوىٰ وكړي او هر ووايي چي "دا زما دى او زما له بزې څخه پيدا سوى دى" او دواړه مدعيان د پيدايش تاريخ هم بيان كړي. نو دې ته به كتل كيږي چي آيا د څاروي (سېرلي) عمر په دوى كي ديوه د بيان كړده تاريخ سره موافق دى، كه نه؟، كه چيري د هغه عمر (سِن) ديوه مدعي د تاريخ سره موافق وي، نو د هغه په حق كي به د څاروي فيصله كيږي؛ ځكه چي ظاهر حال د هغه په حق كي ګواه دى،

نو ځکه د فقهي قاعدې "أَنَّ مَنْ سَاعَدَهُ الظَّاهِرُ فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ" پر بناء به څاروی د هغه وي. او که چیري د څاروي عمر مشتبه وي او د مدعیانو د بیان کړه تاریخ په لحاظ سره د څاروي عمر معلومول مشکل وي، نو په دې صورت کې هغه څاروی د دواړو مدعیانو (زید او ادریس) په مینځ کې مشترک ګرځي؛ ځکه کله چې د څاروي عمر مشتبه وي او د هغه معلومول مشکل وي، نو د تاریخ ذکر کول او نه ذکر کول به سره برابر وي او یو مدعي به هم له بل څخه اولیٰ نه وي، نو ځکه به هغه د دواړو په مینځ کې مشترک پاتیږي.

وإن خالف إلخ: فرمایي که د څاروي عمر د مدعیانو د بیان کړه وخت او تاریخ سره موافق نه وي بلکې په تاریخ او عمر کې ډېر فرق او اختلاف وي، نو د دواړو دعویٰ به ردول کیږي او څاروی چې د چا په قبضه کې وي، د هغه سره به پرېښوول کیږي، همدا د حاکم شهید رَحِمَهُ الله فتویٰ ده او همدا صحیح قول دی (بنایه ج:۸، ص:۵۰۶)، ځکه چې په دې صورت کې دواړه مدعیان درواغجن ثابت سول او د دوی درواغ څرګند سول، نو ځکه اوس به دوی له څاروي څخه محروموول کیږي.

قال وإذا كان العبد إلخ: مسئله دا ده که یو غلام د خالد په قبضه کې وي، او دوه کسان مثلاً حامد او راشد په هغه دعویٰ وکړي، حامد ووایي چې "دا زما غلام دی او خالد زما څخه غصب کړی دی" او راشد ووایي چې "دا زما غلام دی او ما هغه زید ته امانتاً ورکړی وو"، او دواړه پر خپله دعویٰ بیّنه هم پېش کړي، نو دا غلام د دواړو په مینځ کې مشترک ګرځي؛ ځکه کله چې مُودَع (خالد) د مُودِع (راشد) له خبري څخه انکار کوي نو هغه هم غاصب شمارل کیږي، لهذا په دې حواله سره د دواړو دعویٰ پر غصب مبني ده، نو ځکه دواړه به د استحقاق په سبب کې برابر وي، او کله چې دواړه د استحقاق په سبب کې برابر او مساوي دي، نو په نفسِ استحقاق کې به هم مساوي او مشترک وي. والله أعلم وعلمهٗ أتمّ



# فَصْلٌ فِي التَّنَازُعِ بِالْأَيْدِي

(دا) فصل د قبضو په حواله سره د اختلاف کولو (په بیان کي) دی

**تشريح:** مخکي تر دې د بينې (ګواهی) په ذريعه د ملکيت حاصلولو بيان وو، او په دې فصل کي د قبضې په ذريعه د ملکيت حاصلولو بيان دی، او ښکاره خبره ده چي بيّنه له قبضې څخه اقوىٰ دليل دی، نو ځکه د هغې بيان د قبضې له بيان څخه مخکي کړی سوی دی. (بنايه ج:۸، ص:۵۰۶)

## که د څاروي د دعوې په صورت کي يو مدعي پر څاروي سپور وي او بل د هغه قيزه نيولې وي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا تَنَازَعَا فِي دَابَّةٍ أَحَدُهُمَا رَاكِبُهَا وَالْآخَرُ مُتَعَلِّقٌ بِلِجَامِهَا فرمايي: او که د يو داسي څاروي په باره کي دوه کسان اختلاف [او دعویٰ] وکړي چي يو پر هغه سپور وي او بل د څاروي قيزه نيولې وي او فَالرَّاكِبُ أَوْلَى نو سپور کس اولیٰ دی [يعني په دې صورت کي سپور کس د هغه زيات مستحق دی] لِأَنَّ تَصَرُّفَهُ أَظْهَرُ ځکه چي د هغه تصرف غالب [زيات] دی فَإِنَّهُ يَخْتَصُّ بِالْمِلْكِ ځکه رکوب [سپرتيا] د ملکيت سره مختص ده وَكَذَلِكَ إِذَا كَانَ أَحَدُهُمَا رَاكِبًا فِي السَّرْجِ وَالْآخَرُ رَدِيفُهُ او همدارنګه کله چي يو کس پر زين سپور وي او دويم د هغه تر شا ناست وي فَالرَّاكِبُ فِي السَّرْجِ أَوْلَى نو پر زين سپور کس اولیٰ دی بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَا رَاكِبَيْنِ په خلاف د هغه صورت کله چي دواړه پر زين سپاره وي حَيْثُ تَكُونُ بَيْنَهُمَا نو په دې صورت کي هغه څاروی د دواړو په مينځ کي مشترک ګرځي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي التَّصَرُّفِ ځکه چي [په دې صورت کي] دواړه په تصرف کي سره برابر دي وَكَذَا إِذَا تَنَازَعَا فِي بَعِيرٍ وَعَلَيْهِ حِمْلٌ لِأَحَدِهِمَا وَلِلْآخَرِ كُوزٌ مُعَلَّقٌ او همدارنګه که د يو داسي اوښ کي په باره کي دوه کسان اختلاف وکړي چي پر هغه د يوه کس بار پروت وي او د بل کوزه [په هغه] راځړول سوې وي فَصَاحِبُ الْحِمْلِ أَوْلَى نو بار والا اولیٰ دی لِأَنَّهُ هُوَ الْمُتَصَرِّفُ ځکه چي هغه متصرف [تصرف کونکی] دی وَكَذَا إِذَا تَنَازَعَا

فِي قَمِيصٍ أَحَدُهُمَا لَابِسُهُ وَالْآخَرُ مُتَعَلِّقٌ بِكُمِّهِ همدارنګه که د يو داسي کميس په باره کي دوه کسان اختلاف وکړي چي يوه کس هغه اغوستی وي او بل کس د هغه لستوڼی نیولی وي فَاللَّابِسُ أَوْلَى نو اغوستونکی اولیٰ دی لِأَنَّهُ أَظْهَرُهُمَا تَصَرُّفًا ځکه چي په دوی دواړو کي د هغه تصرف غالب [زيات] دی وَلَوْ تَنَازَعَا فِي بِسَاطٍ أَحَدُهُمَا جَالِسٌ عَلَيْهِ وَالْآخَرُ مُتَعَلِّقٌ بِهِ او که دوه کس د يو داسي فرش په باره کي اختلاف وکړي چي يو پر هغه ناست وي او بل کس هغه نیولی وي فَهُوَ بَيْنَهُمَا نو هغه فرش د دوی په مینځ کي مشترک دی [ځکه چي کښېنستل پر هغه د قبضې دلیل نه دی] مَعْنَاهُ لَا عَلَى طَرِيقِ الْقَضَاءِ د دې معنیٰ دا ده چي دا د قضاء په طریقه سره نه دی [يعني قضاءً مشترک نه ګرځي] لِأَنَّ الْقُعُودَ لَيْسَ بِيَدٍ عَلَيْهِ ځکه چي کښېنستل پر هغه د قبضې دلیل نه دی فَاسْتَوَيَا نو ځکه به دواړه برابر وي [او يوه ته به پر بل ترجيح وي نه بلکي فرش به په دواړو کي مُشترک وي] قَالَ: وَإِذَا كَانَ ثَوْبٌ فِي يَدِ رَجُلٍ وَطَرَفٌ مِنْهُ فِي يَدِ آخَرَ فرمايي: او که چيري د يو سړي په قبضه کي يوه کپړه وي او د هغې يو طرف د بل سړي په قبضه کي وي فَهُوَ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ نو هغه کپړه د دواړو په مینځ کي نصف، نصف ده [يعني هر يوه ته به نصف، نصف ورکول کيږي] لِأَنَّ الزِّيَادَةَ مِنْ جِنْسِ الْحُجَّةِ ځکه چي کوم زياتوب دی هغه د دلیل له جنس څخه دی فَلَا تُوجِبُ زِيَادَةً فِي الِاسْتِحْقَاقِ نو ځکه دا زياتوب به د استحقاق زياتوب نه ثابتوي.

**اللغات:** ﴿لجام﴾ قيزه، لګام، واګي، ﴿سَرْج﴾ د آس يا خره زين، جمع: سُرُوْج، ﴿رديف﴾ شاته کښېنستونکی، ﴿حِمْل﴾ بار، بوج، ﴿کوز﴾ کوزه، هغه خاورين يا مسين لوښی چي د څښاک او به پکښي ساتل کيږي، ﴿مُعَلَّقٌ﴾ د تفعيل د باب اسم مفعول دی: ځوړند، راځړېدلی، ﴿کُمّ﴾ لستوڼی، ﴿بساط﴾ هر هغه څه چي پر ځمکه هواريږي، بستره، فرش، ټاټ، چټايي، ﴿لا توجب﴾ د افعال د باب نفي صيغه ده: واجبول، ثابتول.

**تشريح:** په دې عبارت کي د قبضې په هکله څو مسئلې ذکر سوي دي:

(۱).... که دوه کسان د داسي څاروي په باره کي اختلاف وکړي چي له دوی څخه يو پر څاروي سپور وي او بل د څاروي قيزه نيولې وي او هر وايي چي "دا زما څاروی دی" لېکن ګواه د يوه سره هم نه وي، نو په دې صورت کي به د سپاره کس (راکب) په حق کي فيصله کيږي؛ ځکه عموماً دا ډول

سپرلي (سپرتيا) مالک کوي او د هغه غلام او خادم د څاروي قيضه نيولې وي، لهذا د راکب تصرف د قيزه نيونکي پر تصرف غالب او زيات دی، نو ځکه همدا راکب به د څاروي مستحق وي.

(۲)... او که له دوی څخه يو د څاروي پر زين سپور وي او بل د هغه تر شا ناست وي، نو کوم مدعي چې پر زين سپور وي، د هغه تصرف غالب او زيات دی او هغه د څاروي مستحق دی. ها! که چيرې دواړه پر زين سپاره وي، نو څرنګه چې په دې صورت کې د دواړو تصرف سره برابر دی، نو ځکه څاروی به د دوی په مينځ کې مشترک ګرځي.

(۴)... که دوه کسان د يو اوښ په باره کې دعوىٰ وکړي او هر يو وايي چې "دا زما دی" او له دوی څخه يو کس پر هغه اوښ خپل بار پر اينبې وي (خپل سامان يې پر اينبې وي) او بل کس خپل د اوبو لوښی مثلاً چاګله د هغه اوښ پر زين يا کجاوه را ځړولې وي، نو په دې صورت کې بار والا (سامان اينبونکی) مدعي د اوښ مستحق دی، ځکه چې د هغه تصرف زيات او غالب دی.

د باقي مسئلو تشريح څرګنده ده.

قال: وإذا كان ثوب إلخ: د دې حاصل دا دی که د يو سړي په قبضه کې کپړه وي او د هغه کپړې يو طرف د بل کس په قبضه کې وي او دواړه په هغه دعوىٰ کوي، نو په دې صورت کې دا کپړه د دواړو په مينځ کې په نصف، نصف سره مشترکه ګرځي؛ ځکه چې دواړه پر کپړې قابض دي، فرق صرف دومره دی چې د يوه مدعي قبضه زياته ده، لېکن څرنګه چې دا زياتوب د قبضې له جنس څخه دی او قبضه د بل مدعي په حق کې هم موجوده ده، نو ځکه په دې سره به استحقاق برابر ثابتيږي او زياتوب به نه ثابتيږي.

## که کوچنی هلک د خپل آزاد والي دعوىٰ وکړي

| |
|---|
| قَالَ: وَإِذَا كَانَ الصَّبِيُّ فِي يَدِ رَجُلٍ وَهُوَ يُعَبِّرُ عَنْ نَفْسِهِ فرمايي: او که چيرې د يو سړي په قبضه کې يو کوچنی وي او هغه د خپل ځان په باره کې اظهار کولای سي [يعني د ځان په باره کې معلومات ورکولای سي] فَقَالَ: أَنَا حُرٌّ او هغه وايي: چې زه آزاد يم فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو قول د هغه معتبر دی لِأَنَّهُ فِي يَدِ نَفْسِهِ ځکه چې هغه د خپل ځان په قبضه کې دی [د خپل ځان مالک دی] وَلَوْ قَالَ: أَنَا عَبْدٌ لِفُلَانٍ او که چيرې هغه وايي: زه د فلانکي کس غلام يم وي فَهُوَ عَبْدٌ لِلَّذِي هُوَ فِي يَدِهِ نو [په دې صورت کې] دا کوچنی د هغه کس غلام دی د کوم يوه په قبضه کې چې هغه وي [يعني د قابض غلام دی، نه د فلانکي] لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِأَنَّهُ لَا يَدَ لَهُ ځکه [په دې صورت کې] هغه اقرار وکړی چې ما لره ذاتي قبضه نسته حَيْثُ أَقَرَّ بِالرِّقِّ |

ځکه چي هغه د خپل غلام والي اقرار وکړی وَإِنْ كَانَ لَا يُعَبِّرُ عَنْ نَفْسِهِ او که هغه د خپل ځان په باره کي اظهار نه سي کولای فَهُوَ عَبْدٌ لِلَّذِي هُوَ فِي يَدِهِ نو [هم] د هغه کس غلام دی د کوم یوه په قبضه کي چي وي لِأَنَّهُ لَا يَدَ لَهُ عَلَى نَفْسِهِ ځکه هغه ته پر خپل ځان قبضه نسته لِمَا كَانَ لَا يُعَبِّرُ عَنْهَا ځکه چي هغه د خپل ځان په باره کي اظهار نه سي کولای وَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْمَتَاعِ نو هغه د سامان په څېر دی بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ يُعَبِّرُ په خلاف د هغه صورت کله چي هغه اظهار کولای سي فَلَوْ كَبِرَ وَادَّعَى الْحُرِّيَّةَ بيا که هغه غټ سي او د آزاد والي دعویٰ وکړي لَا يَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو د هغه قول به معتبر نه وي لِأَنَّهُ ظَهَرَ الرِّقُّ عَلَيْهِ فِي حَالِ صِغَرِهِ ځکه چي پر هغه د خپل کوچني والي په حالت کي غلامتوب ښکاره سو.

**اللغات**: ﴿يعبر﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: تعبير کول، اظهار کول، څرګندول، د زړه خبره ښکاره کول، اظهار ما في الضمير کول. ﴿يعبر عن نفسه﴾ يعني چي د ځان په باره کي معلومات ورکولای سي چي زه غلام يم، که نه يم. ﴿رِقّ﴾ غلامتوب، غلام والی، مملوک کېدل. ﴿کَبِرَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: د کوچني غټېدل، عمر ډېرېدل، او کبر: په مرتبه کي غټېدل. (مصباح اللغات)

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که د يو سړي په قبضه کي يو کوچنی (بچی) وي او د هغه عمر دومره وي چي خبري کولای سي او د خپل ځان په باره کي معلومات ورکولای سي، بيا يو بل سړی په هغه دعویٰ وکړي چي "دا زما غلام دی" او کوچنی ووايي چي "زه آزاد يم، غلام نه يم"، نو په دې صورت کي د کوچني قول معتبر دی او هغه به آزاد شمارل کيږي، ځکه چي هغه د خپل نفس مالک او پر خپل نفس قابض دی، او قول د قابض معتبر وي، نو ځکه د هغه قول به هم معتبر وي.

او که داسي کوچنی ووايي چي "زه د فلانکي غلام يم" او فلانکی پر هغه قابض نه وي (يعني هغه د فلانکي په قبضه کي نه وي)، نو په دې صورت کي دا کوچنی د فلانکي غلام نه ګرځي بلکي د قابض غلام ګرځي؛ ځکه چي اوس هغه دا اقرار وکړی چي "پر خپل ذات زما قبضه نسته" (ځکه د غلام پر خپل ذات هيڅ قبضه نه وي). لهذا اوس چي دا کوچنی د کوم سړي په قبضه کي وي، هغه به د ده مالک وي.

او که هغه دومره کوچنی وي چي د خپل ځان په باره کي هيڅ معلومات نه سي ورکولای او خپل مقصد نه سي بيانولای او بل سړی په هغه دعویٰ وکړي چي "دا زما غلام دی"، نو په دې صورت کي

هم هغه د قابض غلام ګرځي، او بيا چي کله هغه غټ سي او د خپل آزاد والي دعویٰ وکړي چي "زه آزاد يم"، نو د هغه دا دعویٰ معتبره نه ده؛ ځکه په کوچنيوالي کي پر هغه رقيت (غلامتوب) واقع سوی دی او په هغه کي د قابض ملکيت ثابت سوی دی، نو ځکه بلا دليله به دا ثابت سوی ملکيت او رقيت نه زائليږي.

## پر کوم دېوال چي د يو چا تيران وي يا د يو چا عمارت (خای) ورسره متصل وي، نو هغه د چا حق کيږي؟

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الْحَائِطُ لِرَجُلٍ عَلَيْهِ جُذُوعٌ أَوْ مُتَّصِلٌ بِبِنَائِهِ فرمايي: او که د يو سړي پر دېوال د هغه تيران وي يا دېوال د هغه د عمارت [ودانۍ] سره متصل وي وَلِلْآخَرِ عَلَيْهِ هَرَادِيُّ او پر هغه د دېوال د بل سړي لرګيان وي فَهُوَ لِصَاحِبِ الْجُذُوعِ وَالِاتِّصَالِ نو هغه دېوال د تيرانو او اتصال والا کس لپاره دی وَالْهَرَادِيُّ لَيْسَتْ بِشَيْءٍ او لرګيان هيڅ نه دي [يعني هغه لره هيڅ اعتبار نسته] لِأَنَّ صَاحِبَ الْجُذُوعِ صَاحِبُ اسْتِعْمَالٍ ځکه چي تيرانو والا [د دېوال] استعمالونکی دی وَالْآخَرُ صَاحِبُ تَعَلُّقٍ او بل کس [صاحبُ الهرادي] تعلق والا دی فَصَارَ كَدَابَّةٍ تَنَازَعَا فِيهَا وَلِأَحَدِهِمَا حِمْلٌ عَلَيْهَا وَلِلْآخَرِ كُوزٌ مُعَلَّقٌ نو داسي سوه لکه د يو ښاروي په هکله چي دوه کسان اختلاف وکړي او په دوی کي پر ښاروي د يوه بار [سامان] وي او د بل کس [په هغه] کوزه راځړېدلې وي وَالْمُرَادُ بِالِاتِّصَالِ مُدَاخَلَةُ لَبِنِ جِدَارِهِ فِيهِ وَلَبِنِ هٰذَا فِي جِدَارِهِ او د اتصال مطلب دا دی چي د هغه سړي [د عمارت] د دېوال خښتې د مدعیٰ بِهٖ [دعوه داره] دېوال په خښتو دننه سوي وي او د دې خښتې د هغه د دېوال په خښتو دننه سوي وي وَقَدْ يُسَمّٰى اتِّصَالُ تَرْبِيعٍ او دغه اتصال ته "اتصال تربيع" [هم] ويل کيږي وَهٰذَا شَاهِدٌ ظَاهِرٌ لِصَاحِبِهِ او دا اتصال د عمارت د مالک په حق کي ظاهري ګواهي دی لِأَنَّ بَعْضَ بِنَائِهِ عَلٰى بَعْضِ بِنَاءِ هٰذَا الْحَائِطِ ځکه چي د هغه د عمارت څه حصه د مدعیٰ بِهٖ دېوال په څه حصه کي داخله ده وَقَوْلُهُ الْهَرَادِيُّ لَيْسَتْ بِشَيْءٍ يَدُلُّ عَلٰى أَنَّهُ لَا اعْتِبَارَ لِلْهَرَادِيِّ أَصْلًا او [په متن کي] د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول "الهراوي ليست بشيء" پر دې دلالت کوي چي لرګيو لره هيڅ اعتبار نسته وَكَذَا الْبَوَارِيُّ او همدا حکم د بوريو [او کېړو] هم دی لِأَنَّ الْحَائِطَ لَا تُبْنٰى لَهُمَا أَصْلًا ځکه چي دېوال بالکل د هغوی لپاره نه جوړول

کيږي حَتّٰى لَوْ تَنَازَعَا فِي حَائِطٍ وَلِأَحَدِهِمَا عَلَيْهِ هَرَاوِيُّ وَلَيْسَ لِلْآخَرِ عَلَيْهِ شَيْءٌ تر دې که دوه خلک د داسې دېوال په هکله اختلاف وي چې پر هغه ديوه کس لرګي وي او د بل کس هيڅ شی نه وي فَهُوَ بَيْنَهُمَا نو [بيا هم] هغه دېوال د دوی په مينځ کې مشترک ګرځي.

**اللغات:** ﴿حائط﴾ دېوال، ﴿بِنَاء﴾ عمارت، ودانی، تعمير، ځای، (مراد ځني کور او د هغه دېوالونه او خوني دي)، ﴿جُذُوع﴾ جمع د جِذْعٌ ده: د خرما دوني تنه، تېر، شاتير، ﴿هراوي﴾ د لغت په کتابو کې دا لفظ په واو سره يعني "الهَرَاوِيُّ" ذکر سوی دی، جمع د هِرَاوَةٌ ده: پنډ لرګی، پنډه لکړه، تخته کوم چې د بام په تعمير کې استعماليږي (معجم وسيط، مصباح منير، احسن الهدايه)، ﴿حِمْل﴾ بار، ﴿اللِّبْن﴾ او اللَّبِن (لکه كَتِف) او اللِّبِن: کچه خښتې، واحد: لبنةٌ، ﴿بَوَارِي﴾ جمع د بوريه ده: پوزی، چټايي، بوريا (احسن الهدايه)، (د خاشو او لرګيو څخه جوړه کېږه).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د ادريس په قبضه کې يو دېوال وي چې پر هغه ده خپل تيران اينبي وي يا هغه دېوال د ادريس د کور او عمارت (ودانی) سره متصل او لګېدلی وي، او پر هغه دېوال خالد هم لرګيان او تختې اينبې وي، او هريو وايي چې "دا زما دېوال دی"، نو په دې صورت کې به د صاحب الجذوع والاتصال (يعني د ادريس) لپاره د هغه دېوال فيصله کيږي، او د لرګيانو والا (خالد) دعوی به ردول کيږي، ځکه چې تيرانو او متصل عمارت والا (ادريس) د دې دېوال مستعمل او متصرف دی او لرګيانو والا (خالد) صرف د دې سره متعلق دی، او مخکې دا خبره تېره سوه چې متصرف مالک شمارل کيږي، نو ځکه صاحب الجذوع (ادريس) کوم چې په حقيقت کې د دېوال متصرف دی، هغه به د دې مالک وي، لکه کوم مدعي چې پر څاروي سامان بار کړی وي، هغه د زيات متصرف کېدلو په وجه پر څاروي د اوبو اينبونکي کس څخه مخکې او زيات مستحق وي، نو ځکه دلته به هم چې کوم يو متصرف دی، هغه به مخکې او زيات مستحق وي.

والمراد بالاتصال إلخ: فرمايي: دلته د "اتصال" مراد او مطلب دا دی چې د عمارت خښتې او د دېوال خښتې يو په بل ننوتلې وي، يعني د دېوال د خښتو نيمه حصه د عمارت په خښتو کې پټه وي، او داسې اتصال ته د فقهاؤ په اصطلاح کې "اتصال تربيع" وايي. (بنايه ج:۸، ص:۵۱۱)

وقوله الهراوي إلخ: فرمايي په متن کې د دې قول "الهراوي ليست بشيء" مطلب دا دی چې هرواي (لرګي او تختې) نه په استحقاق کې څه اعتبار لري او نه د استحقاق په زياتوالي کې څه ارزښت لري، او همدا حکم د چټايي او کېږې هم دی، مثلاً که پر يو دېوال ديوه کس کېږه پرته وي او د بل کس کېږه

پر هغه نه وي، نو دا کېږه ایښوول د ترجیح وجه نه ګرځي؛ ځکه چې دېوال بالکل د هَـرَاوِي او بَـوَارِي لپاره نه جوړېږي. (احسن الهدایه)

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَلَوْكَانَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَيْهِ جُذُوعٌ ثَلَاثَةٌ او که له دواړو مدعیانو څخه د هر یوه پر هغه دېوال درې، درې تیران وي فَهُوَ بَيْنَهُمَا نو هغه دېوال د دوی په مینځ کې مشترک ګرځي لِاسْتِوَائِهِمَا ځکه چې دوی دواړه [د استحقاق په سبب کې] سره برابر دي وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْأَكْثَرِ مِنْهَا بَعْدَ الثَّلَاثَةِ او تر دریو وروسته زائد تیرانو لره هیڅ اعتبار نشته وَإِنْ كَانَ جُذُوعُ أَحَدِهِمَا أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثَةٍ او که د یوه مدعي تیران له دریو څخه کم وي فَهُوَ لِصَاحِبِ الثَّلَاثَةِ نو هغه دېوال د دریو والا لپاره دی وَلِلْآخَرِ مَوْضِعُ جِذْعِهِ او د بل د مدعي لپاره د خپل تیر ځای دی [یعني هغه ته به صرف د تیر ایښوولو ځای ورکول کېږي] وَفِي رِوَايَةٍ: لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَا تَحْتَ خَشَبِهِ او په یوه روایت کې [ذکر سوي] دي: چې په دوی کې د هر یوه لپاره د خپلو لرګي [تیرانو] د ایښوولو ځای دی ثُمَّ قِيلَ: مَا بَيْنَ الْخَشَبِ إِلَى الْخَشَبِ بَيْنَهُمَا بیا ویل سوي دي: چې د یوه تیر او بل تېر په مینځ کې چې کوم ځای وي هغه د دوی په مینځ کې مشترک دی وَقِيلَ: عَلَى قَدْرِ خَشَبِهِمَا او ویل سوي دي: چې دوی ته د خپلو تیرانو په اندازه ځای دی وَالْقِيَاسُ أَنْ يَكُونَ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ او قیاس دا دی چې هغه دېوال د دواړو په مینځ کې نصف، نصف وي [یعني د دوی په مینځ کې نصف، نصف مشترک وي] لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ بِالْكَثْرَةِ فِي نَفْسِ الْحُجَّةِ ځکه چې په نفس حجت کې کثرت [ډېربښت] لره هیڅ اعتبار نشته وَجْهُ الثَّانِي: أَنَّ الِاسْتِعْمَالَ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ بِقَدْرِ خَشَبَتِهِ د دویم روایت دلیل دا دی: چې د هر مدعي له طرفه استعمال د هغه د تیرانو په اندازه دی [یعني هر مدعي (په دې دېوال کې) د خپل تیرانو په اندازه متصرف دی] وَوَجْهُ الْأَوَّلِ: أَنَّ الْحَائِطَ يُبْنَى لِوَضْعِ كَثِيرِ الْجُذُوعِ دُونَ الْوَاحِدِ وَالْمُثَنَّى او د اول روایت دلیل دا دی: چې دېوال د ډېرو تیرانو د ایښوولو لپاره جوړول کېږي نه د یوه او دوو تیرانو لپاره فَكَانَ الظَّاهِرُ شَاهِدًا لِصَاحِبِ الْكَثِيرِ نو ځکه ظاهر حال به د ډېرو تیرانو والا په حق کې ګواه وي إِلَّا أَنَّهُ يَبْقَى لَهُ حَقُّ الْوَضْعِ لېکن د دویم مدعي [یو، دوه

تيرانو لپاره به هم د تېر اينبوولو حق پاتېږي لِأَنَّ الظَّاهِرَ لَيْسَ بِحُجَّةٍ لِي اسْتِحْقَاقِ يَدِهِ ځکه چې ظاهر حال د هغه د قبضې په استحقاق کې حجت نه دی.

**اللغات**: ﴿استواء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: برابرېدل، برابري، ﴿خشب﴾ لرګي، ﴿حجة﴾ دليل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که پريو دېوال د دوو خلکو درې، درې تيران وي، نو هغه دېوال د دوی په مينځ کې مشترک ګرځي؛ ځکه چې عموماً پر دېوال درې تيران اينبوول کيږي، او څرنګه چې دوی دواړه د دريو تيرانو مالکان دي، نو ځکه د استحقاق په سبب کې دواړه سره برابر دي، او کله چې داسې ده، نو په نفس استحقاق کې به هم دواړه مساوي او سره برابر وي.

او له دريو څخه په زياتو تيرانو کې مساوات ضروري نه دي بلکې درې تيران د مساوات فی سبب الاستحقاق لپاره کافي دي، لهذا که د يوه مدعي تيران له دريو څخه ډېر وي او د بل مدعي درې تيران وي، نو بيا هم دواړه په استحقاق کې مساوي او برابر پاتېږي او دېوال د دوی په مينځ کې مشترک ګرځي. لېکن که يوه مدعي له دريو څخه کم مثلاً يو يا دوه تيران اينبي وي او بل مدعي له دريو څخه ډېر اينبي وي، نو بيا ډېرو تيرانو والا د دېوال مستحق او مالک دی، خو بيا هم په دې صورت کې به کمو تيرانو والا ته د خپل تيرانو د اينبوولو ځای ورکول کيږي. دا په مبسوط کې د "کتاب الاقرار" روايت دی، او د "کتاب الدعوی" روايت دا دی چې دغه دواړو مدعيانو ته د خپل، خپل تيرانو د اينبولو په اندازه د ځای حق سته. او بيا يو قول دا دی چې د دواړو تيرانو په مينځ کې چې کوم ځای دی هغه د دوی په مينځ کې مشترک دی، او دوېم قول دا دی چې د دې ځای تقسيم به د هغو د تيرانو په حساب سره کيږي، د هر قول دليل مخته را روان دی.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: د قياس تقاضا دا ده چې دا دېوال د دواړو په مينځ کې مشترک وګرځي، ځکه کله چې دواړو پر هغه خپل تيران اينبي دي او په دې حواله سره دواړه پر هغه قابض دي، نو بيا به د قلت او کثرت (کمو او ډېرو تيرانو) هيڅ اعتبار نه کيږي او کثرت به د ترجيح وجه نه ګرځي.

ووجه الثاني إلخ: فرمايي: د مبسوط د "کتاب الدعوی" چې کوم روايت دی چې هر يوه ته بد تيرانو په اندازه د ځای حق سته، د هغه دليل دا دی چې هر مدعي د تيرانو په اندازه دېوال استعمالوي، لهذا څومره چې د تيرانو جثه او حصه ده، هغومره ځای به ورکول کيږي. او د "کتاب الاقرار" د روايت دليل دا دی چې دېوال د يوه تېر د اينبوولو لپاره نه جوړېږي بلکې د ډېرو تيرانو د اينبوولو لپاره جوړېږي، نو ځکه د تيرانو د کثرت (ډېرښت) پر بناء به ظاهر حوال د ډېرو تيرانو والا په حق کې ګواه وي او دا به د هغه لپاره د ترجيح وجه ګرځي او صرف هغه به د دېوال مالک وي لېکن دا ظاهر حال به د

دويم مدعي (يو. دوه تيرانو والا) د حق لپاره دافع نه ګرځي او هغه ته به په دې دېوال کې د هغه د تيرانو د ايښوولو په اندازه ځای خامخا ورکول کيږي.

## د پورتني مسئلې بل صورت

وَلَوْكَانَ لِأَحَدِهِمَا جُذُوعٌ وَلِلْآخَرِ اتِّصَالٌ او که د يوه مدعي تيران وي او د بل مدعي لپاره [صرف] اتصال وي فَالْأَوَّلُ أَوْلٰى نو اول اولیٰ دی [يعني په دې صورت کې تيرانو والا حقداره دی] وَيُرْوٰى: الثَّانِي أَوْلٰى او روايت سوی دی: چې دويم [اتصال والا] اولیٰ دی وَجْهُ الْأَوَّلِ أَنَّ لِصَاحِبِ الْجُذُوعِ التَّصَرُّفَ د اول روايت دليل دا دی: چې تيرانو لپاره تصرف دی [يعني هغه په دې دېوال کې متصرف دی] وَلِصَاحِبِ الاِتِّصَالِ الْيَدُ او اتصال والا لره قبضه ده وَالتَّصَرُّفُ أَقْوٰى او تصرف زيات قوي دی وَجْهُ الثَّانِي: أَنَّ الْحَائِطَيْنِ بِالاِتِّصَالِ يَصِيْرَانِ كَبِنَاءٍ وَاحِدٍ د دويم روايت دليل دا دی: چې د اتصال په وجه دواړه ديوالونه د يوه عمارت [ودانۍ] په څېر دي وَمِنْ ضَرُوْرَةِ الْقَضَاءِ لَهُ بِبَعْضِهِ الْقَضَاءُ بِكُلِّهِ او د هغه لپاره د بعضي دېوال فيصله کېدل بالضرور د دې تقاضا کوي چې د ټوله دېوال فيصله د هغه لپاره وسي [په بله وينا: د اتصال والا لپاره د بعضي دېوال په فيصله کولو سره بداهتاً د هغه لپاره د ټوله دېوال فيصله کيږي] ثُمَّ يَبْقٰى لِلْآخَرِ حَقُّ وَضْعِ جُذُوْعِهِ بيا به د بل مدعي [صاحب الجذوع] لپاره د خپل تيرانو د ايښوولو ځای پاتېږي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ [مخکې] ذکر کړی وَهٰذِهِ رِوَايَةُ الطَّحَاوِيِّ وَصَحَّحَهَا الْجُرْجَانِيُّ او دا د امام طحاوي رَحِمَهُ الله روايت دی او امام جرجاني رَحِمَهُ الله هغه صحيح ګرځولی دی.

**اللغات:** ﴿اتصال﴾ د افتعال د باب مصدر دی: متصل کېدل، لګېدل. ﴿بناء﴾ عمارت. ودانۍ. ځای.

**تشريح:** مسئله خو بالکل ښکاره ده چې که پر دېوال د يوه مدعي تيران پراته وي او د بل مدعي دېوال (يعني د هغه د کور يا خوني دېوال) د دغه مدعیٰ بهٖ دېوال سره متصل وي يعني دواړه دېوالونه يو په بل سره نه ايستل سوي وي (کوم ته چې اتصالِ تربيع وايي)، نو يو روايت دا دی چې د تيرانو والا حق مخکې او هغه حقدار دی او دويم روايت دا دی چې د اتصال والا (متصل دېوال والا) حقدار دی؛ د اول روايت دليل واضح دی. او د دويم روايت دليل دا دی چې د متصل کېدلو په وجه دواړه دېوالونه يعني مدعیٰ بهٖ (دعویٰ داره) دېوال او د اتصال والا مدعي دېوال د يوه عمارت (ودانۍ) شکل اختيار کړی دی، او

ځرنګه چې د دې نصف د اتصال والا دعوي دی، لهذا کله چې دواړه سره متصل او لګېدلي دي، نو خامخا به د ما بقي فيصله هم د اتصال والا مدعي لپاره کيږي. خو بيا هم په دې صورت کې به د تيرانو والا ته د خپل تيرانو د اينبوولو حق او اختيار وي؛ ځکه د دې دويم روايت مطابق د اتصال والا په حق کې چې کوم ظاهر حال ګواه دی، هغه د دويم فريق (تيرانو والا) حق نه سي ختمولای. دا د امام طحاوي رَحِمَهُ الله روايت دی او همدا روايت امام ابو عبد الله جرجاني رَحِمَهُ الله صحيح ګرځولی دی. صاحب د نتائج الافکار د تصحيح وجه دا بيان کړې ده چې د اتصال والا چې کوم اتصال دی هغه "اتصال تربيع" دی، او داسي اتصال د بناء (جوړېدلو) په حالت کې کيږي، او د بناء په حالت کې د اتصال ثبوت د دې خبري دليل دی چې اتصال والا له صاحب الجذوع څخه مخکې پر دغه دېوال قابض دی، نو ځکه د هغه حق به هم له صاحب الجذوع څخه مخکې وي.

## په مشترک کور کې صحن (غولی) د چا حق کيږي؟

قَالَ: وَإِذَا كَانَتْ دَارٌ فِيهَا فِي يَدِ رَجُلٍ عَشَرَةُ أَبْيَاتٍ وَفِي يَدِ آخَرَ بَيْتٌ فرمايي: او که چيري يو کور [داسي] وي چې په هغه کې د يوه سړي په قبضه کې لس خوني [کمرې] وي او د بل سړي په قبضه کې يوه خونه [کمره] وي فَالسَّاحَةُ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ نو [د هغه] کور صحن د دوی په مېنځ کې نصف، نصف [مشترک] دی لِاسْتِوَائِهِمَا فِي اسْتِعْمَالِهَا ځکه چې دوی دواړه د صحن په استعمال کې سره برابر دي وَهُوَ الْمُرُورُ فِيهَا او له استعمال څخه مراد په صحن کې تېرېدل دي [همدارنګه په صحن کې سامان اينبوول او داسي نور کارونه پکښې کول] قَالَ: وَإِذَا ادَّعَى الرَّجُلَانِ أَرْضًا او که چيري دوه خلک په يو ځمکه دعویٰ وکړي يَعْنِي يَدَّعِي كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنَّهَا فِي يَدِهِ يعني له دوو خلکو څخه هر يو دا دعویٰ کوي چې هغه ځمکه زما په قبضه کې ده لَمْ يُقْضَ أَنَّهَا فِي يَدِ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حَتَّى يُقِيمَا الْبَيِّنَةَ أَنَّهَا فِي أَيْدِيهِمَا نو دا فيصله به نه کيږي چې هغه [ځمکه] له دوی څخه د يوه په قبضه کې ده تر دې چې دواړه پر دې خبره بيّنه پېش کړي چې هغه زموږ په قبضه کې ده لِأَنَّ الْيَدَ فِيهَا غَيْرُ مُشَاهَدَةٍ ځکه چې قبضه په ځمکه کې نا ليدل کېدونکې ده [يعني په ظاهري توګه نه معلوميږي] لِتَعَذُّرِ إِحْضَارِهَا ځکه چې [د قاضي

مجلس ته] د هغې حاضرول ناممکن دي وَمَا غَابَ عَنْ عِلْمِ الْقَاضِي او کوم څه چي د قاضي له خبر [او معلومات] څخه ليري وي فَالْبَيِّنَةُ تُثْبِتُهُ نو هغه بيّنه ثابتوي وَإِنْ أَقَامَ أَحَدُهُمَا الْبَيِّنَةَ او که له دوی څخه يو بيّنه پېش کړي جُعِلَتْ فِي يَدِهِ نو ځمکه به د هغه په قبضه کي ورکول کيږي لِقِيَامِ الْحُجَّةِ ځکه دليل قائم سو لِأَنَّ الْيَدَ حَقٌّ مَقْصُودٌ ځکه چي قبضه مقصود حق ده وَإِنْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ او که دوی دواړه بيّنه پېش کړي جُعِلَتْ فِي أَيْدِيهِمَا نو هغه ځمکه به د دواړو په قبضه کي ورکول کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی فَلَا تَسْتَحِقُّ لِأَحَدِهِمَا مِنْ غَيْرِ حُجَّةٍ نو [اوس] به بغير له حجته يو د هغه مستحق نه ګرځول کيږي [په بله وينا: نو له بل حجت څخه بغير به د يوه لپاره د هغه د استحقاق فيصله نه کيږي] وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا قَدْ لَبَّنَ فِي الْأَرْضِ أَوْ بَنَى أَوْ حَفَرَ او که يوه مدعي په ځمکه کي خښتي جوړي کړي وي يا يې ځای [پکښې] جوړ کړی وي يا يې څاه [پکښې] کيندلې وي فَهِيَ فِي يَدِهِ نو ځمکه د هغه په قبضه کي ده لِوُجُودِ التَّصَرُّفِ وَالِاسْتِعْمَالِ فِيهَا ځکه چي په دې ځمکه کي [د هغه] تصرف او استعمال موجود سو.

**اللغات:** ﴿أبيات﴾ جمع د بَيْتٌ ده: خونه، کمره، ﴿الساحة﴾ خالي ميدان چي پر هغه د پاسه بام نه وي، صحن، غولی، انګړ، ﴿مرور﴾ د ضرب د باب مصدر دی: تېرېدل، ﴿إحضار﴾ د افعال د باب مصدر دی: حاضرول، پېشول، ﴿لَبَّن﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: د ځای او ودانۍ لپاره خښتي جوړول (معجم وسيط)، ﴿بنٰی﴾ د ضرب د باب ماضي ده: ځای جوړول، ودانی (عمارت) جوړول، ﴿حفر﴾ دا هم د ضرب د باب ماضي ده: کيندل، کنبل.

**تشريح:** په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو غټ کور وي چي په هغه کي يوولس خوني (کمرې) وي او له هغه څخه لس خوني د خالد په قبضه کي وي او يوه خونه د زيد په قبضه کي وي، نو د دې کور صحن د خالد او زيد دواړو په مېنځ کي مشترک ګرځي او د کوم يوه خوني چي زياتي دي (يعني خالد)، هغه په دې صحن کي د

زياتي حصې حق نه لري؛ ځکه چي په صحن کي د تګ راتګ کولو، ګرځېدلو او داسي نورو کارونو په حواله سره د دوی دواړو استعمال برابر دی، نو ځکه د دواړو استحقاق (مستحق کېدل) به هم په هغه کي برابر وي او يو به هم د زياتي حصې مستحق نه وي.

(۲)... که د يو ځمکي په هکله دوه خلک دعویٰ وکړي او هر يو ووايي چي "دا زما ځمکه ده او زما په قبضه کي ده"، نو تر څو چي دوی دواړه بيّنه پېش نه کړي، تر هغه وخته به د يوه لپاره هم فيصله نه کيږي؛ ځکه چي قبضه يو غيرِ محسوس او غيرِ مشاهد (ناليدل کېدونکې) شی ده، او بل دا چي ځمکه هم د قاضي په مجلس کي پېشول (حاضرول) ناممکن دي، نو ځکه دلته د قاضي د فيصلې يوازينی لاره بيّنه ده. بيا که په دوی کي يو مدعي بيّنه پېش کړي، نو د هغه په حق کي به د ټوله ځمکي فيصله کيږي، او که دواړه بيّنه پېش کړي، نو ځمکه به د دوی په مينځ کي مشترکه ګرځي؛ ځکه چي دواړو په بيّنه سره په هغه کي خپل حق ثابت کړی دی، لهذا اوس به له يو بل حجت او دليل څخه بغير په دوی کي د يوه لپاره د ټولي ځمکي فيصله نه کيږي.

(۳)... او که له دوی څخه يوه مدعي په دغه ځمکه کي تصرف کړی وي، مثلاً هغه په دې ځمکه کي څاه کنبلې وي، يا يې يو ځای پکښي جوړ کړی وي، نو په دې صورت کي ځمکه د هغه په قبضه کي شمارل کيږي؛ ځکه چي هغه په دې ځمکه کي متصرف ګرځېدلی دی او تصرف د قبضې او ملکيت دليل دی، نو ځکه د بل مدعي دعویٰ به ردول کيږي او متصرف به د دې ځمکي مالک ګرځول کيږي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ دَعْوَى النَّسَبِ

(دا) باب د نسب د دعوې کولو (په بيان کې) دی

**تشريح**: مخکې تر دې د مال په هکله د دعوه کولو بيان وو، او اوس له دې ځايه د نسب په هکله د دعوه کولو مسائل بيانيږي، او څرنګه چې مال کثيرُ الوقوع دی، نو ځکه د هغه بيان له نسب څخه مخکې کړی سوی دی. (بنايه ج:۸، ص:۵۱۶)

## د مينځې تر خرڅولو وروسته د پيدا کېدونکې بچي د نسب دعویٰ کول

قَالَ: وَإِذَا بَاعَ جَارِيَةً او که چيري [يوڅوک(بائع)] مينځه خرڅه کړي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ بيا هغه مينځه بچی وزيږوي فَادَّعَاهُ الْبَائِعُ او بائع د هغه [د نسب] دعویٰ وکړي فَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ يَوْمِ بَاعَ نو که هغې د بيع له ورځې څخه تر شپږو مياشتو په کم مودت کې بچی زيږولی وي فَهُوَ ابْنُ الْبَائِعِ وَأُمُّهُ أُمُّ وَلَدٍ لَهُ نو هغه د بائع بچی ګرځي او د هغه مور د بائع اُمِ ولد ګرځي وَفِي الْقِيَاسِ وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ دَعْوَتُهُ بَاطِلَةٌ● او په قياس کې (او همدا د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله قول دی) د هغه دعویٰ باطله ده لِأَنَّ الْبَيْعَ اعْتِرَافٌ مِنْهُ بِأَنَّهُ عَبْدٌ ځکه چې [د بائع] بيع کول د هغه له طرفه د دې خبرې اقرار کول دي چې هغه بچی غلام دی فَكَانَ فِي دَعْوَاهُ مُنَاقِضًا نو ځکه هغه په خپل دعویٰ کې تناقض کونکی سو وَلَا نَسَبَ بِدُونِ الدَّعْوَى او له دعوی څخه بغير نسب نه ثابتيږي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ اتِّصَالَ الْعُلُوقِ بِمِلْكِهِ شَهَادَةٌ ظَاهِرَةٌ عَلَى كَوْنِهِ مِنْهُ د استحسان دليل دا دی: چې د بائع د ملکيت سره د علوق متصل کېدل د دې خبرې ښکاره ګواهي ده چې هغه بچی له ده څخه دی لِأَنَّ الظَّاهِرَ عَدَمُ الزِّنَا ځکه ظاهر حال زنا نه کول دي [يعني ښکاره همدا ده چې يو مسلمان زنا نه کوي]

● القول الراجح: قول الجمهور، قال العلامة التمرتاشي: مبيعة ولدت لأقل من ستة أشهر مذ بيعت، فادعاه البائع، ثبت نسبه منه استحسانا (تنوير الأبصار ج:۲، ص:۲۹۲)، وكذا في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۳۸۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۹۱]

وَمَبْنَى النَّسَبِ عَلَى الْخَفَاءِ او د نسب مدار پر پټوالي امخفي والي ا دی فَيُعْفَى فِيهِ التَّنَاقُضُ نو ځکه په هغه کي به تناقض معاف کول کيږي وَإِذَا صَحَّتِ الدَّعْوَى او کله چي اد بائع ا دعویٰ صحيح ده اسْتَنَدَتْ إِلَى وَقْتِ الْعُلُوقِ نو دا دعوی به د علوق د وخت وطرف ته منسوبه کيږي فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ بَاعَ أُمَّ وَلَدِهِ نو دا به ښکاره سي چي بائع خپل اُمِ ولد مينځه خرڅ کړې ده [او د اُمِ ولد خرڅول جائز نه دي] فَيُفْسَخُ الْبَيْعُ نو ځکه بيع به فسخ کول کيږي لِأَنَّ بَيْعَ أُمِّ الْوَلَدِ لَا يَجُوزُ ځکه چي د اُمِ ولد بيع جائز نه ده وَيَرُدُّ الثَّمَنَ او بائع به [مشتري ته] ثمن واپس کوي لِأَنَّهُ قَبَضَهُ بِغَيْرِ حَقٍّ ځکه چي [اوس] بائع په ناحقه پر هغه قبضه کړې ده وَإِنْ ادَّعَاهُ الْمُشْتَرِي مَعَ دَعْوَةِ الْبَائِعِ أَوْ بَعْدَهُ او که د بائع د دعوې سره يو ځای يا تر هغه وروسته مشتري هم د بچي دعویٰ وکړي فَدَعْوَةُ الْبَائِعِ أَوْلَى نو د بائع دعویٰ اولیٰ ده لِأَنَّهَا أَسْبَقُ لِاسْتِنَادِهَا إِلَى وَقْتِ الْعُلُوقِ ځکه چي د علوق د وخت وطرف ته د منسوبه کېدلو په وجه هغه [د مشتري له دعوې څخه] مخکي ده وَهٰذِهِ دَعْوَةُ اسْتِيلَادٍ او دا [د بائع دعویٰ] د استيلاد دعوی ده.

**اللغات:** ﴿جارية﴾ مينځه. ﴿عُلوق﴾ د سمع د باب مصدر دی: عَلِقَتِ الْمَرْأَةُ بِالْوَلَدِ: حامله کېدل. له نطفې څخه بچي جوړېدل. حمل نيول کېدل (مصباح منير). ﴿يُعفى﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: معافول (معاف كول). بخښل. ﴿أسبق﴾ د نصر او ضرب له بابه د اسم تفضيل صيغه ده: زيات مخکي. ﴿استناد﴾ د استفعال د باب مصدر دی: منسوب کېدل. نسبت کېدل. ﴿استيلاد﴾ مخکنی صيغه ده: اُمِ ولد جوړول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی خپله مينځه خرڅ کړي او هغه مينځه د بيع له ورځي څخه تر شپږو مياشتو په کم مودت کي بچی وزېږوي، بيا بائع دا دعویٰ وکړي چي "دا زما بچی دی او زماله وطي او نطفې څخه پيدا سوی دی". نو استحساناً حکم دا دی چي د بائع دعویٰ به قبلول کيږي او د ده سره به د هغه بچي نسب ثابتيږي او بيع به فسخ کول کيږي او مشتري چي کوم ثمن بائع ته ورکړی دی. بائع به هغه مشتري ته واپس ورکوي. لېکن قياس دا دی چي د بائع دا دعویٰ به ردول کيږي او بيع به نه فسخ کول کيږي؛ ځکه بائع چي مينځه خرڅه کړه نو دا د هغه له طرفه د دې خبرې اقرار او دليل دی چي پيدا سوی بچی غلام دی. حال دا چي د نسب په دعوه کولو سره اوس هغه د استيلاد دعوه کوي (چي دا بچی زما دی او مور يې زما اُمِ ولد ده). لهذا د هغه په فعل او قول کي تناقض

راغلی او تناقض والا دعویٰ ردول کیږي، او څرنګه چي له دعویٰ څخه بغیر نسب نه ثابتیږي، نو ځکه د مذکوره بائع سره به د بچي نسب نه ثابتیږي.

وجه الاستحسان إلخ: د استحسان دلیل دا دی چي د دغه بچي علوق (یعني له نطفې څخه دده جوړېدل) هغه وخت ترسره سوي دي کله چي دده مور د بائع په ملکیت کي وه؛ ځکه چي د یو مسلمان ظاهر حال همدا دی چي هغه به د خپل مملوکه مینځي سره وطي کړي وي، نه زناء، لهذا د مذکوره بچي حمل به بالکل د بائع له نطفې څخه وي، خو څرنګه چي حامله کېدل او علوق (یعني له نطفې څخه د بچي جوړېدل) یو پټ او مخفي کار دی نو کېدای سي چي بائع به په هغه خبر سوی نه وي او هغه به ناخبري کي خپله مینځه خرڅه کړې وي، او ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي هم په بیع او د نسب په دعویٰ کي تناقض یقیناً سته، لېکن دا تناقض به معاف وي او د بائع له طرفه به د نسب دعویٰ صحیح وي او هغه مینځه به د ده اُمِ ولد ګرځي، او څرنګه چي د اُمِ ولد بیع جائز نه ده، نو ځکه دا بیع به استحساناً فسخ کول کیږي او مشتري چي بائع ته کوم ثمن ورکړی وي، بائع به هغه ثمن مشتري ته واپس کوي.

وإن ادّعاه المشتري إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د بائع د دعوه کولو پر مهال یا تر هغه وروسته مشتري هم د هغه بچي د نسب دعوه وکړي، نو په دې صورت کي هم د بائع دعوه اولیٰ ده او هغه د بچي مستحق دی؛ ځکه چي د هغه دعوه د علوق د وخت وطرف ته منسوبه ده نو په دې حواله سره د هغه دعوه د مشتري له دعوې څخه مخکي ده او د فقهاؤ په اصطلاح کي دا دعوه "دعویٰ استیلاد" ده، او څرنګه چي دا دعوه د علوق وخت ته یعني د بائع د ملکیت وخت ته منسوبه ده، نو ځکه اوس دغه دعوې ته في الحاله د ملکیت ضرورت نسته او بغیر له ملکیته هم هغه مقبوله او معتبره ده. (احسن الهدایه)

## د پورتنی مسئلې بل صورت

| وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَكْثَرَ مِنْ سَنَتَيْنِ مِنْ وَقْتِ الْبَيْعِ او که مینځه د بیع له وخت څخه تر دوو کالو په زیات مودت کي بچی وزیږوي لَمْ تَصِحَّ دَعْوَةُ الْبَائِعِ نو د بائع دعویٰ نه صحیح کیږي لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدْ اتِّصَالُ الْعُلُوقِ بِمِلْكِهِ تَيَقُّنًا ځکه چي [په دې صورت کي] د هغه د ملکیت سره د عُلوق متصل کېدل موجود نه سوه وَهُوَ الشَّاهِدُ وَالْحُجَّةُ حال دا چي همدا [د عُلوق متصل کېدل] ګواه او دلیل دی إِلَّا إِذَا صَدَّقَهُ الْمُشْتَرِيْ مګر دا چي کله مشتري د بائع تصدیق وکړي فَيَثْبُتُ النَّسَبُ نو بیا نسب ثابتیږي وَيُحْمَلُ عَلَى الِاسْتِيلَادِ بِالنِّكَاحِ وَلَا يَبْطُلُ الْبَيْعُ او دا به پر استیلاد بالنکاح حمل کیږي او بیع به نه باطلیږي |
|---|

لِأَنَّا تَيَقَّنَّا أَنَّ الْعُلُوقَ لَمْ يَكُنْ فِي مِلْكِهِ ځکه چې موږ ته دا یقین سو چې عُلوق د بائع په ملکیت کې نه دی واقع سوی فَلَا يَثْبُتُ حَقِيقَةُ الْعِتْقِ وَلَا حَقُّهُ نو ځکه به نه د عتق [آزادی] حقیقت ثابتیږي او نه به د عتق حق ثابتیږي وَهٰذِهِ دَعْوَةُ تَحْرِيرٍ او دا دعوىٰ به د تحریر [آزادولو] دعوىٰ وي وَغَيْرُ الْمَالِكِ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ او نا مالک کس د تحریر د دعوې اهل نه وي وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَكْثَرَ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ وَقْتِ الْبَيْعِ وَلِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ او که مینځه د بیع له وخت څخه تر شپږو میاشتو په زیات مودت کې او تر دوو کالو په کم مودت کې بچی وزیږوي لَمْ تُقْبَلْ دَعْوَةُ الْبَائِعِ فِيهِ نو د نسب په هکله به د بائع دعوىٰ نه قبلول کیږي إِلَّا أَنْ يُصَدِّقَهُ الْمُشْتَرِيْ مګر دا چې مشتري د هغه تصدیق وکړي لِأَنَّهُ احْتَمَلَ أَنْ لَا يَكُونَ الْعُلُوقُ فِي مِلْكِهِ ځکه چې [په دې صورت کې] دا احتمال سته چې علوق به د بائع په ملکیت کې نه وي واقع سوی فَلَمْ تُوجَدِ الْحُجَّةُ نو دلیل موجود نه سو فَلَا بُدَّ مِنْ تَصْدِيقِهِ لهذا [اوس] د مشتري له تصدیق څخه چاره نسته وَإِذَا صَدَّقَهُ او کله چې مشتري د هغه تصدیق وکړي يَثْبُتُ النَّسَبُ وَيَبْطُلُ الْبَيْعُ وَالْوَلَدُ حُرٌّ وَالْأُمُّ أُمُّ وَلَدٍ لَهُ نو نسب ثابتیږي او بیع باطلیږي او بچی به آزاد وي او [د بچي] مور به د بائع أُمِ ولد وي كَمَا فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولٰى لکه په اوله مسئله کې [چې همدا حکم دی] لِتَصَادُقِهِمَا وَاحْتِمَالِ الْعُلُوقِ فِي الْمِلْكِ د بائع او مشتري د تصادق او [د بائع] په ملکیت کې د عُلوق واقع کیدلو د احتمال په وجه [يعني ځکه چې بائع او مشتري يو د بل تصديق وکړی او ځکه چې په دې صورت کې د بائع په ملکيت کې د علوق ترسره کیدلو احتمال سته].

**اللغات**: ﴿علوق﴾ د سمع د باب مصدر دی: حمل نیول کېدل، له نطفې څخه بچی جوړېدل، حامله کېدل. ﴿تَيَقَّنَّا﴾ په يقيني توګه. ﴿استيلاد﴾ د استفعال مصدر دی: خپله مینځه اُمِ ولد جوړول، اُمِ ولد ګرځول. ﴿تحرير﴾ د تفعيل مصدر دی: آزادول. ﴿حجة﴾ دليل. ﴿تصديق﴾ د تفعيل مصدر دی: رښتونی ګڼل، خبره ورسره منل. ﴿تصادق﴾ د تفاعل مصدر دی: يو د بل تصديق کول، پر يو خبره متفق کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که هغه مینځه د بیع له ورځې څخه تر دوو کالو په زیات مودت کې بچی وزېږوي او بیا بائع د دې بچي د نسب دعوىٰ وکړي (چې دا زما بچی دی)، نو د هغه دعوىٰ معتبره

نه ده؛ ځکه چې د بائع دعوی په هماغه صورت کې صحیح کیږي کله چې د هغه په ملکیت کې د مینځې حامله کېدل او علوق تر سره کېدل یقیني وي. حال دا چې تر دوو کالو وروسته د بچې زېږولو په وجه دا خبره یقیني سوه چې دا علوق د بائع په ملکیت کې نه دی تر سره سوی. نو ځکه به د هغه دعوی معتبره نه وي.

ها! که چیري مشتري په خپله د دې خبري تصدیق وکړي چې دا علوق د بائع په ملکیت کې تر سره سوی دی او بچی د هغه له نطفې څخه دی. نو بیا به د بائع دعوی قبلول کیږي او د بائع د دعوې د صحیح ګرځولو او د زناء له تهمت څخه د هغه د ساتلو لپاره به دا ویل کیږي چې بائع د دې مینځې سره نکاح کړې ده او په دې وجه مذکوره مینځه حامله سوې ده. او بیع به نه باطلیږي او نه به فسخ کول کیږي؛ ځکه چې دا مینځه د بائع په ملکیت کې نه ده حامله سوې. نو ځکه نه به حقیقت عتق ثابتیږي او نه به حق عتق ثابتیږي یعني نه به هغه بچی آزاد شمارل کیږي او نه به د هغه مور د بائع اُمِ ولد ګرځي. بلکې هغه بچی به د مشتري غلام وي او د بائع له طرفه د بچې د نسب کولو دعوی به د تحریر (آزادولو) دعوی وي. او د "دعوی تحریر" لپاره ملکیت ضروري دی. حال دا چې بائع د هغه مالک نه دی. نو ځکه د مشتري تصدیق ضروري سو او د مشتري په تصدیق کولو سره به د بائع دعوی بالکل معتبره او مقبوله ګرځي.

وإن جاءت إلخ: د دې حاصل دا دی چې که دغه مینځه تر دوو کالو په کم مودت او تر شپږو میاشتو په زیات مودت کې بچی وزېږوي او بائع د هغه د نسب دعوی وکړي. نو په دې صورت کې به هم د هغه دعوی نه قبلول کیږي؛ ځکه دلته دا احتمال سته چې دا علوق به د بائع په ملکیت کې نه وي تر سره سوی. ها! که چیري مشتري د بائع تصدیق وکړي نو په دې صورت کې هم د بائع دعوی معتبره ګرځي او د بائع سره د هغه بچې نسب ثابتیږي. او په دې صورت کې بیع باطلیږي. او کله چې بیع باطله سوه نو هغه بچی آزاد ګرځي او د هغه مور د بائع اُمِ ولد ګرځي. لکه څرنګه چې د باب په اوله مسئله کې هم دغه حکم دی.

## د بچې یا د مینځې د مرګ په صورت کې د نسب دعوی کول

قَالَ: فَإِنْ مَاتَ الْوَلَدُ فَادَّعَاهُ الْبَائِعُ فرمایي: او که چیري بچی مړ سي بیا بائع د هغه [د نسب] دعوی وکړي وَقَدْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ حال دا چې مینځې هغه تر شپږو میاشتو په کم مودت کې زېږولی وي لَمْ يَثْبُتْ الِاسْتِيلَادُ فِي الْأُمِّ نو په مور [مینځه] کې استیلاد نه ثابتیږي لِأَنَّهَا تَابِعَةٌ لِلْوَلَدِ

ځکه چې هغه د بچي تابع ده وَلَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ بَعْدَ الْمَوْتِ او تر مرګ وروسته د هغه نسب [د بائع سره] نه دی ثابت سوی لِعَدَمِ حَاجَتِهِ إِلَى ذٰلِكَ ځکه چې تر مرګ وروسته نسب ثابتېدلو ته ضرورت نسته فَلَا يَتْبَعُهُ اسْتِيلَادُ الْأُمِّ نو ځکه د مور استيلاد [أم ولد جوړېدل] به د هغه نه تابع کيږي وَإِنْ مَاتَتِ الْأُمُّ فَادَّعَاهُ الْبَائِعُ او که چيري مور مړه سي او بائع د بچي [د نسب] دعویٰ وکړي وَقَدْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ حال دا چې مور تر شپږو مياشتو په کم مودت کي بچی زېږولی وي يَثْبُتُ النَّسَبُ فِي الْوَلَدِ وَأَخَذَهُ الْبَائِعُ نو په بچي کي نسب ثابتيږي او بائع به هغه اخلي لِأَنَّ الْوَلَدَ هُوَ الْأَصْلُ فِي النَّسَبِ ځکه چې د نسب په سلسله کي بچی اصل دی فَلَا يَضُرُّهُ فَوَاتُ التَّبَعِ نو ځکه د تابع [مور] فوتېدل به هغه ته ضرر نه کوي وَإِنَّمَا كَانَ الْوَلَدُ أَصْلًا لِأَنَّهَا تُضَافُ إِلَيْهِ يُقَالُ: "أُمُّ الْوَلَدِ" او بچی په دې وجه اصل دی ځکه چې مور د هغه وطرف ته منسوبه کيږي او ويل کيږي "ام ولد" (د بچي مور) وَتَسْتَفِيدُ الْحُرِّيَّةَ مِنْ جِهَتِهِ او [ځکه چې] مور د همدې بچي له طرفه آزادي حاصلوي لِقَوْلِهِ ﷺ: «أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "هغه [ماريه قبطيه] خپل بچي آزاده کړه" وَالثَّابِتُ لَهَا حَقُّ الْحُرِّيَّةِ وَلَهُ حَقِيقَتُهَا او د مور لپاره د حريت حق ثابتيږي [يعني أم ولد د آزادۍ مستحق ګرځي] او د بچي لپاره حقيقي حريت ثابتيږي وَالْأَدْنٰى يَتْبَعُ الْأَعْلٰى او ادنی د اعلیٰ تابع کيږي وَيَرُدُّ الثَّمَنَ كُلَّهُ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول مطابق به بائع ټوله ثمن واپس کوي وَقَالَا[*]: يَرُدُّ حِصَّةَ الْوَلَدِ وَلَا يَرُدُّ حِصَّةَ الْأُمِّ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې صرف د بچي حصه به واپس کوي او د مور حصه به نه واپس کوي لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ أَنَّهُ بَاعَ أُمَّ وَلَدِهِ ځکه دا ښکاره سوه چې بائع خپل ام ولد خرڅه کړې ده وَمَالِيَّتُهَا غَيْرُ مُتَقَوِّمَةٍ عِنْدَهُ فِي الْعَقْدِ وَالْغَصْبِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په عقد او غصب کي د ام ولد ماليت متقوم نه دی فَلَا يَضْمَنُهَا الْمُشْتَرِي نو ځکه مشتري به د هغې د ماليت نه ضامن کيږي وَعِنْدَهُمَا مُتَقَوِّمَةٌ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هغه متقوم دی فَيَضْمَنُهَا نو ځکه مشتري به د هغه ضامن کيږي.

---

[*] القول الراجح: قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الهندية (ج:۴، ص:۱۱۵)، وكذا في نتائج الأفكار (ج:۷، ص:۲۷۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۵۲]

**اللغات**: ﴿استیلاد﴾ د استفعال مصدر دی: خپله مینځه اُم ولد جوړول، اُم ولد ګرځول، ﴿لا یضره﴾ د نصر له بابه د نفي صیغه ده: ضرر او نقصان رسول، ﴿لا تضاف﴾ د افعال له بابه د نفي مجهول صیغه ده: منسوب کېدل، اضافت کېدل (نسبت کېدل)، ﴿تستفید﴾ د استفعال مضارع ده: حاصلول، ترلاسه کول، اخیستل، ﴿مُتقوِّمة﴾ د تفعیل د باب اسم مفعول مؤنث دی: مالي قیمت والا، قیمتداره (قیمت لرونکی)، یو شی د دې قابل کېدل چې په عقد کې د هغه لپاره قیمت وټاکل سي.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که خرڅه کړی سوې مینځه تر شپږو میاشتو په کم مودت کي بچی وزېږوي او هغه بچی مړ سي، بیا بائع د هغه د نسب دعویٰ وکړي (چي دا زما بچی دی)، نو نه نسب ثابتیږي او نه هغه مینځه د بائع اُم ولد ګرځي؛ ځکه چي اُم ولد جوړېدل د نسب د ثبوت تابع دي (یعني مینځه هغه وخت اُم ولد ګرځي کله چي د هغې د بچي نسب ثابت سي)، او په دې مسئله کي د بچي د مرګ په وجه د ثبوت النسب معامله ختمه سوه نو ځکه د استیلاد معامله به هم ختمیږي.

او که د بچي مور (مینځه) مړه سي، نو بیا په بچي کي د مدعي (بائع) نسب ثابتیږي؛ ځکه چي د نسب په معامله کي بچی اصل دی او هغه په دې صورت کي موجود دی، نو ځکه د تابع ناموجودیت به د دعوې له مقبویت او له ثبوت النسب څخه مانع نه ګرځي. او د بچي د اصل کېدلو وجه دا ده چي مور د هغه وطرف ته منسوبه کیږي او ویل کیږي "اُمِ ولد" (د بچي مور) او د همدې بچي په وجه مور هم د عتق (آزادی) مستحقه کیږي. لکه څرنګه چي نبي کریم ﷺ د ماریه قبطیه رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا په هکله فرمایلي دي "أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا" (یعني د هغې بچي "ابراهیم" هغه آزاده کړه)، او په دې مسئله کي بچی حقیقتاً آزادیږي او د هغه مور د عتق مستحقه کیږي یعني کله چي مالک (بائع) مړ سي نو سمدستي هغه آزادیږي او د مالک تر مرګ وروسته هغه د بیع محل نه پاتیږي، لهذا په دې حواله سره دلته بچی اعلیٰ دی او مور ادنیٰ ده، او ادنیٰ د اعلیٰ تابع کیږي لیکن اعلیٰ د ادنیٰ نه تابع کیږي، نو ځکه بچی اصل دی.

ویراد الثمن الخ: فرمایي: بائع چي له مشتري څخه د دې مینځي په عوض کي کوم ثمن اخیستی وي، هغه ثمن به ټوله مشتري ته واپس ورکوي او یوه روپۍ به هم نه راګرځوي، دا د امام صاحب رَحِمَهُ اللّٰه فیصله ده؛ ځکه چي د بائع سره د بچي د نسب ثابتېدلو په وجه دا خبره ښکاره سوه چي هغه خپله اُم ولد مینځه خرڅه کړې ده، حال دا چي د امام صاحب رَحِمَهُ اللّٰه په نېز د اُم ولد مالیت په غصب کي هم متقوّم (قیمت لرونکی) نه دی، عقد خو هلته پرېږده! (په عقد کي خو بالکل متقوّم نه دی)، نو ځکه د

مشتري په قبضه کي دأم ولد مينځي دمړه کېدلو باوجود به پر مشتري دهغې ضمان (تاوان) نه واجبيږي او هغه ته به خپل ټوله ثمن واپس ورکول کيږي.

لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز أم ولد متقوّم مال دی او هغه دلته د مشتري په قبضه کي مړه سوې ده، نو ځکه بائع به د مشتري له ثمن څخه د هغه مينځي د قيمت په اندازه ثمن راګرځوي، او پاته سو بچی نو څرنګه چي هغه د بائع بچی سو، نو ځکه بائع به د بچي د قيمت په اندازه مشتري ته ثمن ورکوي، لنډه دا چي بائع به د مينځي حصه راګرځوي او د بچي حصه به ورکوي. (احسن الهدايه)

## د مشتري له طرفه د مينځي يا بچي تر آزادېدلو وروسته د بائع له طرفه د بچي د نسب دعویٰ کېدل

قَالَ: وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَإِذَا حَبِلَتِ الْجَارِيَةُ فِي مِلْكِ رَجُلٍ فرمايي: او په جامع صغير کي [ذکر سوي] دي: چي که ديو سړي په ملکيت کي مينځه حامله سي فَبَاعَهَا بيا هغه مينځه خرڅ کړي فَوَلَدَتْ فِي يَدِ الْمُشْتَرِيْ او مينځه د مشتري په قبضه کي بچی وزېږوي فَادَّعَى الْبَائِعُ الْوَلَدَ وَقَدْ أَعْتَقَ الْمُشْتَرِيْ الْأُمَّ او بائع د هغه بچي دعویٰ وکړي حال دا چي مشتري [د بچي] مور آزاده کړې وي فَهُوَ ابْنُهُ نو هغه بچی د بائع ځوی ګرځي وَيَرُدُّ عَلَيْهِ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ او بائع به مشتري ته د هغه د حصې ثمن واپس کوي وَلَوْ كَانَ الْمُشْتَرِيْ إِنَّمَا أَعْتَقَ الْوَلَدَ او که چيري مشتري بچی آزاد کړی وي فَدَعْوَاهُ بَاطِلَةٌ نو [په دې صورت کي] د بائع دعویٰ باطله ده وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ الْأَصْلَ فِي هَذَا الْبَابِ الْوَلَدُ وَالْأُمُّ تَابِعَةٌ لَهُ او وجه د فرق دا ده چي په دې باب کي بچی اصل دی او مور د هغه تابع ده عَلَى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سوه وَفِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ قَامَ الْمَانِعُ مِنَ الدَّعْوَةِ وَالِاسْتِيلَادِ او په اول صورت کي له دعویٰ او استيلاد څخه مانع موجود دی وَهُوَ الْعِتْقُ فِي التَّبَعِ وَهُوَ الْأُمُّ او هغه په تابع يعني په مور کي آزادي ده فَلَا يَمْتَنِعُ ثُبُوتُهُ فِي الْأَصْلِ وَهُوَ الْوَلَدُ نو ځکه دا عتق به په اصل يعني په بچي کي له ثبوت النسب څخه مانع نه وي وَلَيْسَ مِنْ ضَرُورَاتِهِ او د بچي د آزادېدلو سره د هغه د مور آزادېدل ضروري نه دي [يا: د مور په حق کي د استيلاد ثبوت د ثبوت نسب الولد له ضروریاتو څخه نه دی] كَمَا فِي وَلَدِ الْمَغْرُورِ لکه د دوکه ورکړل سوي کس په بچي کي [چي هم دا حکم دی] فَإِنَّهُ حُرٌّ وَأُمُّهُ أَمَةٌ لِمَوْلَاهَا ځکه هغه

بچي آزاد دی او د هغه مور د خپل مالک مینځه ده وَكَمَا فِي الْمُسْتَوْلَدَةِ بِالنِّكَاحِ او لکه د نکاح په ذريعه له مينځې څخه په پيدا سوي بچي کي [چي هم دا حکم دی] وَفِي الْفَصْلِ الثَّانِي قَامَ الْمَانِعُ بِالْأَصْلِ وَهُوَ الْوَلَدُ او په دويم صورت کي د اصل يعني د بچي په وجه مانع موجود دی فَيَمْتَنِعُ ثُبُوتُهُ فِيهِ وَفِي التَّبَعِ نو ځکه د نسب ثبوت به په اصل [بچي] او تابع [مور] دواړو کي ممتنع وي [په بله وينا: نو ځکه دا به په بچي او تابع (مور) دواړو کي له ثبوتُ النسب والعتق څخه مانع وي] وَإِنَّمَا كَانَ الْإِعْتَاقُ مَانِعًا لِأَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُ النَّقْضَ او اعتاق [آزادول] په دې وجه مانع دي ځکه چي هغه د ماتېدلو [باطلېدلو] احتمال نه لري كَحَقِّ اسْتِحْقَاقِ النَّسَبِ وَحَقِّ الِاسْتِيلَادِ لکه د نسب د استحقاق حق او د استيلاد حق فَاسْتَوَيَا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ نو ځکه په دې اعتبار سره دواړه برابره سول ثُمَّ الثَّابِتُ مِنَ الْمُشْتَرِيْ حَقِيقَةُ الْإِعْتَاقِ بيا د مشتري له طرفه حقيقي اعتاق ثابت دی وَالثَّابِتُ فِي الْأُمِّ حَقُّ الْحُرِّيَّةِ لېکن په مور [مينځه] کي صرف د آزادۍ حق ثابت دی وَفِي الْوَلَدِ لِلْبَائِعِ حَقُّ الدَّعْوَةِ او په بچي کي د بائع لپاره [د نسب] د دعوی حق موجود دی وَالْحَقُّ لَا يُعَارِضُ الْحَقِيقَةَ او حق د حقيقت نه معارض کيږي وَالتَّدْبِيرُ بِمَنْزِلَةِ الْإِعْتَاقِ او مدبر جوړول د اعتاق [آزادولو] په درجه کي دي لِأَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُ النَّقْضَ ځکه چي تدبير د ماتېدلو [باطلېدلو] احتمال نه لري وَقَدْ ثَبَتَ بِهِ بَعْضُ آثَارِ الْحُرِّيَّةِ او په تدبير سره هم د آزادۍ بعضي اثار ثابتيږي وَقَوْلُهُ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ يَرُدُّ عَلَيْهِ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ قَوْلُهُمَا او په اول صورت کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول "يردّ عليه بحصته من الثمن" د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَعِنْدَهُ بِكُلِّ الثَّمَنِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به [بائع] ټوله ثمن واپس کوي هُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح ده كَمَا ذَكَرْنَا فِي فَصْلِ الْمَوْتِ لکه څرنګه چي موږ [د مينځې] د مرګ په صورت کي ذکر کړي دي.

**اللغات:** ﴿حَبِلَت﴾ د سمع د باب ماضي ده: حامله کېدل، بلاربېدل (مصباح منير. مصباح اللغات). ﴿مَغرُور﴾ د نصر له بابه د اسم مفعول صيغه ده: دوکه سوی، فريب خورده (چا ته چي دوکه ورکول سوي وي). "وَلَدُ المَغرُور" (د دوکه سوي پلار بچی) ځکه چي د ده پلار ته د ده مور (مينځې) دوکه ورکړې وي.

چي زه آزاده يم، ﴿مستولدة﴾ د استفعال له بابه د مؤنث اسم مفعول صيغه ده: هغه مينځه چي مالک وطي ورسره کړي وي او هغه بچى راوړي، هغه مينځه کوم چي اُم ولد جوړه کړی سوې وي.
﴿تدبير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مدبر جوړول، د غلام آزادي پر خپل مرګ معلق کول. يعني خپل غلام ته ويل چي "زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې"، ﴿عتق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: آزادېدل، آزادي، ﴿حريّة﴾ آزادي، آزادوالی.

**تشريح**: په دې عبارت کي چي کومه مسئله ذکر سوې ده. هغه د جامع صغير مسئله ده. حاصل يې دا دی که (مثلاً) د خالد په ملکيت کي د هغه مينځه حامله سوه او بيا خالد هغه پر زيد خرڅه کړه او هغه مينځي د زيد په قبضه کي د بيع له ورځي څخه تر شپږو مياشتو په کم مودت کي بچی وزېږوی، بيا بائع (خالد) د هغه بچي د نسب دعویٰ وکړه او په همدې دوران کي مشتري (زيد) د هغه بچي مور يعني مينځه آزاده کړې وه. نو په دې صورت کي هم د بائع دعویٰ معتبره ده او هغه بچی د ده سره ثابت النسب ګرځي، او د مينځي چي کوم ثمن وو، هغه به د مينځي او د هغې د بچي پر قيمت تقسيمول کيږي او د مينځي په حصه کي چي کوم ثمن راسي، هغه به پر مشتري لازم وي يعني بائع به هغه مشتري نه ورکوي او کوم ثمن چي د بچي په حصه کي راسي، هغه به له مشتري څخه ساقطيږي يعني بائع به هغه مشتري ته واپس کوي.

د دې په خلاف که مشتري د مينځي پر ځای د هغې بچی آزاد کړی وي، نو په دې صورت کي د بائع دعویٰ باطليږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې دواړو صورتونو کي د فرق وجه دا ده چي د "استيلاد" د دعویٰ په باب کي بچی اصل دی او مور (مينځه) د بچي تابع ده. اوس په اول صورت کي يعني کله چي مشتري مور يعني مينځه آزاده کړې وي (په دې صورت کي چي) له دعویٰ او استيلاد څخه کوم شی مانع دی يعني عتق هغه په تابع (مور) کي موجود سو، او تابع ادنیٰ دی. نو ځکه دا به په اصل يعني په بچي کي د دعویٰ له ثبوت څخه مانع نه وي او د هغه په باره کي به د بائع دعویٰ ثابتيږي او بچی به آزاديږي، لېکن د بچي د آزادېدلو سره دا ضروري نه ده چي د هغه مور دي هم د آزادی مستحقه (يعني د بائع اُم ولد) وګرځي، لکه څرنګه چي "ولد مغرور" او "ولد مستولده" آزاديږي لېکن د هغو مور نه آزاديږي (يعني اُم ولد نه ګرځي) بلکي مينځه پاتيږي.

د "ولد مغرور" صورت دا دی چي يوه مينځه آزاد سړي ته دوکه ورکړي چي "زه آزاده ښځه يم، زما سره نکاح وکړه!"، کله چي سړی د هغه مينځي سره نکاح وکړي او د هغې بچی پيدا سي، نو د

هغې مالک راسي او دا ثابته کړي چي "دا زما مينځه" ده، نو هغه مينځه د مشتري اُم ولد نه ګرځي او د هغې بچی آزاديږي او مشتري ته به ورکول کيږي (کوم ته چي مينځي دوکه ورکړې وه) او مشتري به د بچي قيمت مالک ته ورکوي، نو دلته بچی آزاد سو لېکن د هغه مؤر آزاده نه سوه يعني د مشتري اُم ولد نه سوه بلکي د خپل مالک مينځه وګرځېده.

د "ولد مستولده" صورت دا دی چي يو سړی مثلاً خالد د بل چا د مينځي سره نکاح وکړي او له هغې څخه بچی پيدا سي، نو د بچي نسب د خالد سره ثابتيږي او آزاديږي، لېکن مينځه د خالد اُم ولد نه ګرځي، لنډه دا چي څرنګه په دې دوو صورتونو کي بچی آزاديږي او د هغه مور مينځه پاتيږي، همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم بچی آزاديږي او د هغه مور به مينځه پاتيږي.

وفي الفصل الثاني إلخ: فرمايي: په دويم صورت کي يعني کله چي مشتري بچی آزاد کړي وي، نو په دې صورت کي د اصل يعني د بچي په حق کي د دعویٰ له ثبوت څخه مانع موجود دی، او مور (اُمِ ولد [مينځه]) د هغه تابع ده، نو ځکه د اصل سره، سره به په تابع يعني په اُم ولد کي هم دا مانع اثر کوي.

او د مشتري له طرفه د مينځي يا بچي آزادول "اعتاق" په دې وجه له "دعویٰ استيلاد" او "ثبوت النسب" څخه مانع دي چي په اعتاق کي د نقض (ماتېدلو) احتمال نسته او هغه د نقض قابل نه دی، لکه څرنګه چي (په بچي کي) د نسب د استحقاق حق او (په مينځه کي) د استيلاد حق قابل نقض نه دی، نو دا دواړه يعني د مشتري اعتاق او د بائع د استحقاق او استيلاد حق په نه ماتېدلو (نه باطلېدلو) کي سره برابر دي لېکن د مشتري فعل يعني اعتاق د حريت له حق څخه راجح دی؛ ځکه چي مشتري حقيقت اعتاق ثابتوي او بائع حق عتق ثابتوي، يعني د مشتري اعتاق ته په دې معنیٰ ترجيح حاصله ده چي د مشتري له طرفه حقيقي اعتاق دی او د بائع له طرفه په مينځ کي صرف د ازای حق او په بچي کي د نسب د دعویٰ حق دي، او د آزادۍ او نسب حق د حقيقي آزادۍ نه سي معارض کېدای، او حقيقت له حق څخه اقویٰ دی، نو په همدې وجه که مشتري بچی آزاد کړي نو دا آزادي به په مور کي اثر نه کوي.

او په پورتنۍ مسئله کي چي کوم حکم د اعتاق دی هغه حکم د تدبير (مدبر جوړولو) هم دی؛ ځکه چي د اعتاق په څېر په هغه کي هم د نقض احتمال نسته او په تدبير سره هم د اعتاق بعضي آثار (مثلاً د بيع عدم جواز او داسي نور) ثابتيږي.

وقوله في الفصل الأول إلخ: فرمايي چي د پورتنۍ مسئله په اول صورت کي چي امام محمد رَحِمَهُ الله "يَرُدُّ عَلَيْهِ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَن" ويلي دي، دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله

په نېز حکم دا دی چي بائع به مشتري ته تېوله ثمن واپس کوي، همدا صحيح ده، لکه څرنګه چي د مينځي دمره کېدلو په صورت کي هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله همدا قول بيان سو.

## د غلام تر خرڅولو وروسته د هغه د بچي کېدلو دعویٰ کول

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا وُلِدَ عِنْدَهُ فرمايي: او که څوک داسي غلام خرڅ کړي کوم چي د هغه په قبضه کي پيدا سوی وي وَبَاعَهُ الْمُشْتَرِي مِنْ آخَرَ او مشتري هغه پر بل چا خرڅ کړي ثُمَّ ادَّعَاهُ الْبَائِعُ بيا اول بائع ذ هغه [د نسب] دعویٰ وکړي فَهُوَ ابْنُهُ وَيَبْطُلُ الْبَيْعُ نو هغه غلام د ده ځوی ګرځي او بيع باطليږي لِأَنَّ الْبَيْعَ يَحْتَمِلُ النَّقْضَ ځکه چي بيع د ماتېدلو [باطلېدلو] احتمال لري وَمَا لَهُ مِنْ حَقِّ الدَّعْوَةِ لَا يَحْتَمِلُهُ لېکن بائع لره چي کوم د دعوی حق دی هغه د نقض [باطليدلو] احتمال نه لري فَيَنْتَقِضُ الْبَيْعُ لِأَجْلِهِ نو ځکه د دې په وجه به بيع باطليږي وَكَذَا إِذَا كَاتَبَ الْوَلَدَ أَوْ رَهَنَهُ أَوْ آجَرَهُ أَوْ كَاتَبَ الْأُمَّ أَوْ رَهَنَهَا أَوْ زَوَّجَهَا ثُمَّ كَانَتِ الدَّعْوَةُ همدارنګه که مشتري دا بچی مکاتب جوړ کړي يا هغه په رهن کي ورکړي يا هغه په أجرت ورکړي يا د هغې مور مکاتبه جوړه کړي يا هغه په رهن کي ورکړي يا [ديو چا سره] د هغې نکاح وکړي بيا دعویٰ پېښه سي [يعني تر دې وروسته بائع دعویٰ وکړي] لِأَنَّ هٰذِهِ الْعَوَارِضَ تَحْتَمِلُ النَّقْضَ ځکه چي دا عوارض د نقض [باطلېدلو] احتمال لري فَيَنْتَقِضُ ذٰلِكَ كُلُّهُ وَتَصِحُّ الدَّعْوَةُ نو ځکه دا ټوله به باطليږي او دعویٰ به صحيح کيږي بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ وَالتَّدْبِيرِ په خلاف د آزادولو او مدبر جوړولو عَلٰى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سوه وَبِخِلَافِ مَا إِذَا ادَّعَاهُ الْمُشْتَرِي أَوَّلًا ثُمَّ ادَّعَاهُ الْبَائِعُ او په خلاف د هغه صورت کله چي اول مشتري د بچي [د نسب] دعویٰ وکړي بيا بائع د هغه دعویٰ وکړي وَحَيْثُ لَا يَثْبُتُ النَّسَبُ مِنَ الْبَائِعِ نو د بائع سره [د بچي] نسب نه ثابتيږي لِأَنَّ النَّسَبَ الثَّابِتَ مِنَ الْمُشْتَرِي لَا يَحْتَمِلُ النَّقْضَ ځکه د مشتري سره ثابت سوی نسب د نقض احتمال نه لري فَصَارَ كَإِعْتَاقِهِ نو دا د مشتري د آزادولو په څېر سو.

**اللغات**: ﴿نَقْض﴾ د نصر د باب مصدر دی: ماتول، ختمول، باطلول (معجم لغة الفقهاء)، شارحينو لازمي استعمال کړی دی يعني: ماتېدل، باطلېدل، ﴿كَاتَبَ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: مکاتب جوړول،

مکاتب ګرځول. ﴿آجر﴾ د افعال د باب ماضي ده: په اُجرت (په مزدوري) ورکول، په کرايه ورکول.
﴿تدبير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، د تېر عبارت په لغاتو کي د دې معنیٰ ذکر سوه.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که د خالد مينځه بچی وزېږوي او خالد هغه پر زيد خرڅ کړي، بيا زيد هغه پر ادريس خرڅ کړي، تر دې وروسته اول بائع (يعني خالد) ووايي چي "دا زما بچی دی او زماله نطفې څخه پيدا سوی دی"، نو د خالد دا دعوىٰ به قبلول کيږي او بيع به باطليږي؛ ځکه چي په بيع کي د نقض او باطلېدلو احتمال سته او د بائع په دعوىٰ کي د دې احتمال نسته، نو ځکه غير محتمل به له محتمل څخه راجح وي او بيع به باطليږي.

او که مشتري (زيد) دا بچی يا د هغه مور مکاتبه جوړه کړي، يا يې په رهن او اُجرت کي ورکړي، نو هم پورتنی حکم دی؛ ځکه چي په دې عوارضو يعني په کتابت، اُجرت او داسي نورو کي هم د نقض او بطلان احتمال سته، نو ځکه د مدعي د دعوې مخته به دا ټوله باطليږي او دعوىٰ به پر دې ټولو غالبه وي.

ها! که مشتري دا بچی آزاد کړي يا يې مدبر جوړ کړي، نو بيا د بائع دعوىٰ معتبره نه ده؛ ځکه چي اعتاق او تدبير له دې دعوې څخه قوي دي او په هغوی کي د نقض احتمال نسته. نو ځکه د هغوی مخته به د بائع دعوې لره هيڅ اثر نه وي. همدارنګه که د بائع له دعوې څخه مخکي مشتري په خپله د هغه بچي د نسب دعوىٰ کړې وي، نو په دې صورت کي هم د بائع دعوىٰ بې اثره ګرځي؛ ځکه چي د مشتري په دعوىٰ سره هغه بچی د مشتري سره ثابت النسب وګرځېدی او څرنګه چي په دې کي د نقض امکان نسته، نو ځکه څرنګه چي د مشتري د اعتاق په صورت کي د بائع دعوىٰ معتبره او مقبوله نه ګرځي، همداسي به د مشتري د دعوىٰ کولو په صورت کي هم د بائع دعوىٰ نه قبلول کيږي. (احسن الهدايه)

## په دوو غبرګولي بچيانو کي د يوه د نسب دعوىٰ کول

قَالَ: وَمَنْ ادَّعٰى نَسَبَ أَحَدِ التَّوْأَمَيْنِ فرمايي: او که څوک له دوو غبرګوليو څخه د يوه بچي د نسب دعوىٰ وکړي ثَبَتَ نَسَبُهُمَا مِنْهُ نو د دواړو نسب د هغه سره ثابتيږي لِأَنَّهُمَا مِنْ مَاءٍ وَاحِدٍ ځکه چي دوی دواړه له يوې نطفې څخه [پيدا سوي] دي فَمِنْ ضَرُورَةِ ثُبُوتِ نَسَبِ أَحَدِهِمَا ثُبُوتُ نَسَبِ الْآخَرِ نو د يوه د نسب ثابتېدلو سره د بل يوه نسب ثابتېدل ضروري دي [يعني په دوی کي د يوه غبرګولي د نسب په ثابتېدلو سره خامخا د بل غبرګولي نسب هم ثابتيږي] وَهٰذَا لِأَنَّ التَّوْأَمَيْنِ وَلَدَانِ بَيْنَ وِلَادَتِهِمَا أَقَلُّ مِنْ سِتَّةِ

أَشْهُرٍ او دا حکم ځکه دی چي غبرګولیان هغه بچیو ته وایي چي د هغوی دواړو د پیدا ینښت په مینځ کي تر شپږو میاشتو کمه فاصله وي فَلَا يُتَصَوَّرُ عُلُوقُ الثَّانِي حَادِثًا نو ځکه د دویم بچي حمل نیول کېدل به نه متصور کیږي [په بله وینا: نو ځکه د دویم بچي علوق وروسته ممکن نه دی] لِأَنَّهُ لَا حَبَلَ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ ځکه چي تر شپږو میاشتو په کم مودت کي حامله کېدل نسته [په بله وینا: ځکه چي د حمل مودت له شپږو میاشتو څخه کم نه دی] وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ غُلَامَانِ تَوْأَمَانِ وُلِدَا عِنْدَهُ او په جامع صغیر کي [ذکر سوي دي]: که چیري د یو سړي په قبضه کي دوه غلامان وي او دوی دواړه د هغه سره پیدا سوي وي فَبَاعَ أَحَدَهُمَا وَأَعْتَقَهُ الْمُشْتَرِي او هغه له دوی څخه یو غلام خرڅ کړي او مشتري هغه آزاد کړي ثُمَّ ادَّعَى الْبَائِعُ الَّذِي فِي يَدِهِ بیا بائع د هغه غلام [د نسب] دعوىٰ وکړي کوم چي د ده په قبضه وي فَهُمَا ابْنَاهُ نو هغه دواړه د ده [بائع] ځامن ګرځي وَبَطَلَ عِتْقُ الْمُشْتَرِي او د مشتري آزادي باطلیږي لِأَنَّهُ لَمَّا ثَبَتَ نَسَبُ الْوَلَدِ الَّذِي عِنْدَهُ لِمُصَادَفَةِ الْعُلُوقِ وَالدَّعْوَةِ مِلْكَهُ إِذِ الْمَسْأَلَةُ مَفْرُوضَةٌ فِيهِ ځکه کله چي د بائع [مدعي] په ملکیت کي د علوق او دعوىٰ د واقع کېدلو په وجه د هغه بچي [غلام] نسب ثابت سو کوم چي د بائع په قبضه کي دی (ځکه چي مسئله په همدې صورت کي فرض سوې ده [چي علوق او دعوىٰ دواړه د بائع په ملکیت کي واقع سوي دي]) ثَبَتَ بِهِ حُرِّيَّةُ الْأَصْلِ فِيهِ نو په دې سره په هغه بچي کي اصلي حریت [پیدایښتي آزادي] ثابته سوه فَيَثْبُتُ نَسَبُ الْآخَرِ وَحُرِّيَّةُ الْأَصْلِ فِيهِ ضَرُورَةً نو ځکه د بل بچي نسب او په هغه کي اصلي حریت به هم بالضرور ثابتیږي لِأَنَّهُمَا تَوْأَمَانِ ځکه چي دوی دواړه غبرګولیان دي فَتَبَيَّنَ أَنَّ عِتْقَ الْمُشْتَرِي وَشِرَاءَهُ لَاقَى حُرِّيَّةَ الْأَصْلِ نو [اوس] دا ښکاره سوه چي د مشتري آزادول او د هغه رانیول د اصل آزاد سره ملاقي سول فَبَطَلَ نو ځکه به د مشتري آزادول [اعتاق] باطلیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْوَلَدُ وَاحِدًا په خلاف د هغه صورت کله چي بچی یو وي لِأَنَّ هُنَاكَ يَبْطُلُ الْعِتْقُ فِيهِ مَقْصُودًا لِحَقِّ دَعْوَةِ الْبَائِعِ ځکه چي په دې صورت کي د بائع د دعوې د حق په وجه قصداً عتق باطلیږي وَهُنَا ثَبَتَ تَبَعًا لِحُرِّيَّتِهِ فِيهِ حُرِّيَّةُ الْأَصْلِ او دلته [د غبرګولیو په مسئله کي] د اصلي حریت په وجه د مشتري د اعتاق

باطلېدل تبعاً ثابت سوه فَافْتَرَقَا لهذا دواړه مسئلې سره جلا سوې [يعني په دواړو کي فرق ثابت سو] وَلَوْ لَمْ يَكُنْ أَصْلُ الْعُلُوقِ فِي مِلْكِهِ او که چيري اصل علوق د بائع په ملکيت نه وي واقع سوی ثَبَتَ نَسَبُ الْوَلَدِ الَّذِي عِنْدَهُ نو د هغه بچي نسب [د بائع سره] ثابتيږي کوم چي د ده سره وي وَلَا يَنْقُضُ الْبَيْعَ فِيمَا بَاعَ او په خرڅ کړده غلام کي بيع نه باطليږي لِأَنَّ هٰذِهِ دَعْوَةُ تَحْرِيرٍ ځکه چي دا د تحرير [آزادولو] دعوىٰ ده لِانْعِدَامِ شَاهِدِ الِاتِّصَالِ د شاهد اتصال د نشتوالي په وجه [يعني ځکه چي په دې صورت کي د بائع د ملکيت سره د علوق متصل کېدل نسته] فَيَقْتَصِرُ عَلَىٰ مَحَلِّ وِلَايَتِهِ نو ځکه دا دعوىٰ به د بائع پر محل ولايت منحصر وي [يعني صرف د هغه د ولايت تر محل پوري به محدود وي].

**اللغات:** ﴿توأمين﴾ غبرګوليان، دوه غبرګولي بچيان. ﴿حَبَل﴾ د سمع د باب مصدر دی: حامله کېدل، بلاربېدل. ﴿مصادفة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: واقع کېدل، يو شی د بل شي سره مخامخ کېدل. ﴿لاقیٰ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: ملاقي کېدل، ور سره يو ځای کېدل، ور سره مخامخ کېدل، (واقع کېدل). ﴿تحرير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: آزادول. ﴿انعدام﴾ د انفعال د باب مصدر دی: نه کېدل، نه موجودېدل، نشتوالی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی په دوو غبرګوليو بچيانو کي د يوه بچي د نسب دعوىٰ وکړي چي "صرف دا يو زما بچی دی"، نو د هغه سره د دواړو بچيانو نسب ثابتيږي؛ ځکه چي دواړه "غبرګوليان" دي او له يوې نطفې څخه پيدا سوي دي، نو ځکه د دويم بچي علوق به نوی (حادث) نه وي او کوم حکم چي د يوه بچي وي هغه به د دويم بچي هم وي، يعني کله چي يو بچی د هغه سړي سره ثابت النسب ګرځي نو خامخا به دويم بچی هم د هغه سره ثابت النسب ګرځي.

په دې سلسله کي د جامع صغير روايت دا دی چي که د يو سړي دوه غبرګولي غلامان وي کوم چي د ده په قبضه کي پيدا سوي وي (يعني د هغو عُلوق د ده په ملکيت کي ترسره سوی وي)، او هغه سړی له دوی څخه يو غلام خرڅ کړي او مشتري هغه آزاد کړي، بيا هغه سړی (بائع) د نا خرڅ کړی سوي غلام په هکله دا دعوىٰ وکړي چي "دا زما بچی دی"، نو په دې صورت کي هم دا دواړه غلامان (بچيان) د هغه سره ثابت النسب ګرځي او د مشتري اعتاق (آزادول) باطليږي؛ ځکه کله چي په يوه غبرګولي غلام (نا خرڅ کړی سوي غلام) کي د بائع نسب ثابت سي او هغه آزاد و ګرځي نو د هغه په وجه په دويم غبرګولي غلام (خرڅ کړی سوي غلام) کي هم خامخا د هغه نسب ثابتيږي او هغه آزاد ګرځي؛ ځکه چي دواړه له يوې نطفې څخه پيدا سوي دي.

او څرنګه چې دوی له مخکې څخه آزاد دي، نو ځکه د مشتري له طرفه د دویم غلام آزادول باطل دي؛ ځکه په هغه کې هم د بائع دعویٰ مؤثره ده او د بائع سره یې نسب ثابت دی.

او که غلام صرف یو وي یعني دوه غبرګولي غلامان نه وي بلکې یوازې غلام وي، او مالک هغه خرڅ کړي، بیا مشتري هغه آزاد کړي او تر دې وروسته بائع (مالک) د هغه د نسب دعویٰ وکړي، نو په دې صورت کې هم عتق باطلیږي، لیکن په دې صورت کې د بائع د دعویٰ کولو په وجه قصداً (او اصالتاً) عتق باطلیږي، او د غبرګولیو په مسئله کې د نا خرڅ کړی سوي غلام په متابعت کې عتق باطلیږي، او همدا په دواړو مسئلو کې فرق دی، یعني په یوه مسئله کې د عتق بطلان اصالةً دی او په بله مسئله کې تبعاً دی.

او که چیرې د غبرګولي غلامانو علوق د بائع په ملکیت کې نه وي ترسره سوی (یعني د دوی مور د هغه په ملکیت کې نه وي حامله سوې) بلکې صرف د دوی پیدایش د بائع په ملکیت کې سوی وي، او بائع له دوی څخه یو خرڅ کړی او مشتري هغه آزاد کړي، بیا بائع په دوی کې د یوه د نسب دعویٰ وکړي، نو په دې صورت کې د بائع سره د هغه غلام نسب ثابتیږي کوم چې د ده په قبضه کې وي (یعني په دې صورت کې نا خرڅ کړی سوی غلام د بائع سره ثابتُ النسب ګرځي)، او کوم غلام چې بائع خرڅ کړی وي، په هغه کې د بائع دعویٰ مؤثره نه ګرځي او نه د هغه بیع باطلیږي؛ ځکه په هغه غلام کې چې کومه دعویٰ ده. هغه د تحریر دعویٰ ده. د استیلاد دعویٰ نه ده، ځکه علوق کوم چې د استیلاد علامت دی، هغه د بائع د ملکیت سره متصل نه دی (یعني عُلوق د بائع په ملکیت کې نه دی تر سره سوی)، نو ځکه د بائع دعویٰ به صرف د بائع تر محل ولایت یعني د هغه په قبضه کې د موجود غلام تر ذات پورې محدود پاتیږي او بل غلام ته به نه متعدي کیږي.

## د نسب په اقرار کې رجوع کول

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الصَّبِيُّ فِي يَدِ رَجُلٍ فرمایي: او که چیرې یو کوچنی د یو سړي په قبضه کې وي فَقَالَ: هُوَ ابْنُ عَبْدِي فُلَانٍ الْغَائِبِ او هغه سړی [قابض] ووایي: چې دا زما د فلانکي غائب غلام ځوی دی ثُمَّ قَالَ: هُوَ ابْنِي بیا هغه [قابض] ووایي: چې دا زما ځوی دی لَمْ يَكُنْ ابْنَهُ أَبَدًا نو دا بچی هیڅکله هم د هغه [قابض] ځوی نه ګرځي وَإِنْ جَحَدَ الْعَبْدُ أَنْ يَكُونَ ابْنَهُ که څه هم غلام له دې څخه انکار وکړي چې هغه زما ځوی دی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا●:

● القول الراجح: قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله، لأن قول الإمام قول المتون، وأيضا ظهر من دأب المصنف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الكنز (ص:٢٨٥)، وكذا في تنوير الأبصار (ج:٤، ص:٤٩٦). [القول الراجح ج:٢، ص:١٩٤]

إِذَا جَحَدَ الْعَبْدُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي كه غلام انكار وكړي فَهُوَ ابْنُ الْمَوْلَىٰ نو هغه د مالک [قابض] ځوی ګرځي وَعَلَىٰ هَذَا الْخِلَافِ إِذَا قَالَ: هُوَ ابْنُ فُلَانٍ وُلِدَ عَلَىٰ فِرَاشِهِ ثُمَّ ادَّعَاهُ لِنَفْسِهِ او پر همدغه اختلاف دي كله چي هغه [قابض] داسي ووايي: چي دا د فلانكي سړي بچى دى او د هغه پر بستر [يعني د هغه له نطفې څخه] پيدا سوى دى بيا د خپل ځان لاره د هغه دعوىٰ وكړي لَهُمَا: أَنَّ الْإِقْرَارَ يَرْتَدُّ بِرَدِّ الْعَبْدِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى: چي اقرار د غلام په ردولو سره رديږي فَصَارَ كَأَنْ لَمْ يَكُنِ الْإِقْرَارُ نو داسي سوه لكه اقرار چي سوى نه وي وَالْإِقْرَارُ بِالنَّسَبِ يَرْتَدُّ بِالرَّدِّ او د نسب اقرار په ردولو سره رديږي وَإِنْ كَانَ لَا يَحْتَمِلُ النَّقْضَ كه څه هم هغه د نقض [باطلېدلو] احتمال نه لري أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَعْمَلُ فِيهِ الْإِكْرَاهُ وَالْهَزْلُ آيا ته نه ګورې! چي په دې كي اكراه او هزل خپل عمل كوي فَصَارَ كَمَا إِذَا أَقَرَّ الْمُشْتَرِيْ عَلَى الْبَائِعِ بِإِعْتَاقِ الْمُشْتَرٰى نو دا داسي سوه لكه مشتري چي پر بائع د رانيول سوي غلام د آزادولو دعوىٰ وكړي [يعني داسي سوه لكه مشتري چي دا اقرار وكړي چي بائع خپل مبيع غلام له خرڅولو څخه مخكي آزاد كړى دى] فَكَذَّبَهُ الْبَائِعُ ليكن بائع د هغه تكذيب وكړي ثُمَّ قَالَ: أَنَا أَعْتَقْتُهُ بيا مشتري ووايي: چي ما هغه آزاد كړى دى يَتَحَوَّلُ الْوَلَاءُ إِلَيْهِ نو ولاء د مشتري وطرف ته منتقل كيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا صَدَّقَهُ په خلاف د هغه صورت كله چي غلام د مالک تصديق وكړي [نو په دې صورت كي هم د مالک دعوىٰ معتبره نه ده او د هغه سره د بچي نسب نه ثابتيږي] لِأَنَّهُ يَدَّعِي بَعْدَ ذٰلِكَ نَسَبًا ثَابِتًا مِنَ الْغَيْرِ ځكه چي هغه تر دې وروسته [يعني د غلام له تصديق كولو څخه وروسته] د داسي نسب مدعي دى كوم چي د بل چا [يعني د غلام] سره ثابت دى وَبِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يُصَدِّقْهُ وَلَمْ يُكَذِّبْهُ او په خلاف د هغه صورت كله چي غلام نه د مالک تصديق وكړي او نه د هغه تكذيب وكړي لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْمُقَرِّ لَهُ عَلَى اعْتِبَارِ تَصْدِيقِهِ ځكه چي [په دې صورت كي] د بچي سره د مقرلهٔ [غلام] حق متعلق سو، د هغه [غلام] د تصديق كولو په اعتبار سره فَيَصِيرُ كَوَلَدِ الْمُلَاعَنَةِ فَإِنَّهُ لَا يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْ غَيْرِ الْمُلَاعِنِ نو هغه بچى به داسي وي لكه د ملاعنه ښځي بچى، چي له ملاعن څخه بغير د هغه نسب [د بل چا سره] نه ثابتيږي لِأَنَّ لَهُ أَنْ يُكَذِّبَ نَفْسَهُ ځكه چي ملاعن ته دا اختيار وي

چي د خپل ځان تکذيب وکړي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ النَّسَبَ مِمَّا لَا يَحْتَمِلُ النَّقْضَ بَعْدَ ثُبُوتِهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي نسب له هغه شيانو څخه دی کوم چي تر ثابتېدلو وروسته د باطليدلو احتمال نه لري وَالْإِقْرَارُ بِمِثْلِهِ لَا يَرْتَدُّ بِالرَّدِّ او د هغه په مثل سره چي کوم اقرار وي هغه [هم] په ردولو سره نه رديږي فَبَقِيَ نو ځکه اقرار به باقي پاته وي فَيَمْتَنِعُ دَعْوَتُهُ نو د مُقِر دعوی به ممتنع وګرځي كَمَنْ شَهِدَ عَلَى رَجُلٍ بِنَسَبِ صَغِيرٍ لکه څوک چي د يو سړي په خلاف د يو کوچني د نسب ګواهي ورکړي فَرُدَّتْ شَهَادَتُهُ لِتُهْمَةٍ بيا يو د تهمت په وجه د هغه ګواهي رد کړی سي ثُمَّ ادَّعَاهُ لِنَفْسِهِ تر دې وروسته هغه [ګواهي ورکونکی] د خپل ځان لپاره د هغه کوچني د نسب دعوی وکړي وَهٰذَا لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْمُقَرِّ لَهُ عَلَى اعْتِبَارِ تَصْدِيقِهِ او دا ځکه چي د مقرلهٗ د تصديق په وجه د هغه بچي سره د ده [مقرلهٗ] حق متعلق سو حَتَّى لَوْ صَدَّقَهُ بَعْدَ التَّكْذِيبِ تر دې که مقرلهٗ تر تکذيب وروسته د هغه تصديق وکړي يَثْبُتُ النَّسَبُ مِنْهُ نو هم د هغه سره نسب ثابتيږي وَكَذَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْوَلَدِ او همدارنګه د اقرار په وجه [د هغه سره] د بچي حق هم متعلق سو فَلَا يَرْتَدُّ بِرَدِّ الْمُقَرِّ لَهُ نو ځکه د مقرلهٗ په ردولو سره به نسب نه رديږي وَمَسْأَلَةُ الْوَلَاءِ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ او د ولاء مسئله هم پر دغه اختلاف ده وَلَوْ سُلِّمَ او که هغه تسليم کړی سي [يعني که بيا هم مونږ هغه متفق عليها ومنو] فَالْوَلَاءُ قَدْ يَبْطُلُ بِاعْتِرَاضِ الْأَقْوَى نو ولاء ځيني وخت د اقوی [زيات قوي] په پېښ کېدلو سره باطليږي كَجَرِّ الْوَلَاءِ مِنْ جَانِبِ الْأُمِّ إِلَى قَوْمِ الْأَبِ لکه د مور له طرفه د پلار د قوم طرف ته د ولاء کشېدل [منتقل کېدل] وَقَدِ اعْتَرَضَ عَلَى الْوَلَاءِ الْمَوْقُوفِ مَا هُوَ أَقْوَى او [دلته] پر موقوفه ولاء داسي شی واقع سوی دی کوم چي اله هغه څخه [زيات قوي دی وَهُوَ دَعْوَى الْمُشْتَرِي او هغه د مشتري دعوی ده فَيَبْطُلُ بِهِ نو ځکه د دې دعوې په وجه به موقوفه ولاء باطليږي بِخِلَافِ النَّسَبِ په خلاف د نسب عَلَى مَا مَرَّ لکه اسعکې[ا] چي تېر سوه وَهٰذَا يَصْلُحُ مَخْرَجًا عَلَى أَصْلِهِ فِيمَنْ يَبِيعُ الْوَلَدَ وَيَخَافُ عَلَيْهِ الدَّعْوَةَ بَعْدَ ذٰلِكَ او دا مسئله د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر أصول د هغه کس په حق کي د وتلو لاره [حيله] جوړېدای سي کوم چي خپل يو کوچنی غلام خرڅ کړي او ده ته دا ډېره وي چي تر بيع [خرڅولو] وروسته به پر

هغه د نسب دعویٰ وسي ﴿فَيَقْطَعُ دَعْوَاهُ إِقْرَارُهُ بِالنَّسَبِ لِغَيْرِهِ﴾ نو هغه کس د بل چا لپاره د نسب په اقرار کولو سره د هغه [مُدعي] دعویٰ قطع کړي.

**اللغات**: ﴿جحد﴾ د فتح د باب ماضي ده: انکار کول. ﴿فراش﴾ بستر، بستره. ﴿يرتد﴾ د افتعال د باب مضارع ده: رد کېدل، واپس کېدل، ختمېدل. ﴿إكراه﴾ د افعال د باب مصدر دی: په يو چا په زوره يو کار کول، مجبوره کول. ﴿هزل﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ټوکي او مسخرې کول، د مسخرو په توګه يوه خبره کول. ﴿مشترى﴾ د افتعال د باب مفعول دی: رانيول سوی. ﴿كذبه﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: تکذيب کول، د يو چا خبره دروغ ګرځول، درواغجن ګرځول. ﴿مُقَرّ لَهُ﴾ هغه کس چي د هغه لپاره (ديو شي) اقرار سوی وي، چي هغه دلته غلام دی. ﴿يتحوّل﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: ګرځېدل، اوښتل، منتقل کېدل. ﴿ولاء﴾ د غلام ميراث (باقي مانده ترکه). ﴿ملاعنة﴾ د مفاعلې له بابه د اسم فاعل مؤنث صيغه ده: لعان کونکې ښځه. ﴿اعتراض﴾ د افتعال د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چي له هغه څخه ځيني دا دي: پېش کېدل، مخته راتلل، واقع کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د يو سړي (مثلاً د خالد) په قبضه کي يو کوچنی وي او هغه اول داسي ووايي چي "دا کوچنی زما د فلانکي غلام ځوی دی کوم چي اوس غائب دی (يو خوا ته تللی دی)"، تر دې وروسته ووايي چي "دا زما ځوی دی"، نو په دې صورت کي هغه کوچنی د ده (خالد) ځوی نه ګرځي، که څه هم د کوم غائب غلام لپاره چي ده اقرار کړی وي، هغه انکار وکړي او ووايي چي "دا زما ځوی نه دی". او د دې غائب (مقرلهٗ) له طرفه دلته درې احتمالات سته: ① تصديق، ② تکذيب، ③ سکوت، د تصديق او سکوت په صورت کي خو په هيڅ حال کي هم هغه کوچنی د مدعي (خالد) ځوی نه ګرځي، او د تکذيب په صورت کي اختلاف دی، يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه د مدعي (خالد) ځوی نه ګرځي لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کي هغه کوچنی د مدعي ځوی ګرځي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي کله مدعي اول د خپل غلام لپاره د دې بچي اقرار وکړی او هغه دغه اقرار رد کړی، نو اقرار رد سو، او کله چي اقرار رد او ختم سو، نو د مدعي د دعوې د مقبوليت لاره بالکل صفا سوه. او پاته سو دا سوال چي په نسب کي د نقض او بطلان احتمال نسته لېکن په اقرار بالنسب کي خو د رد او نقض احتمال سته لکه څرنګه چي په دې کي د اکراه او هزل امکان سته، يعني که يو څوک په بل چا په زوره دا اقرار وکړي چي ته ووايه! "فلانکی کوچنی زما ځوی دی" يا يو څوک د مسخرو

په توګه ديو کوچني په هکله ووايي چي "هغه زما ځوی دی"، نو دا اقرار باطليږي او نسب نه ثابتيږي، همداسي به په دې مسئله کي هم د مقرلهٔ يعني د غلام په ردولو سره د مالک (مدعي) له طرفه د نسب اقرار باطليږي او هغه بچی به د غلام سره ثابت النسب نه ګرځي او د نسب ثابتېدلو په حواله سره به د مدعي (خالد) دعویٰ معتبره وي.

د دې يو مثال دا هم دی چي که زيد له حامد څخه يو غلام رانيسي، بيا مشتري يعني زيد ووايي چي "بائع (حامد) له بيع څخه مخکي دا غلام آزاد کړی دی" لېکن بائع د هغه تکذيب وکړي، نو په دغه تکذيب سره د مشتري اقرار بالاعتاق باطليږي او تر دې وروسته که مشتري په خپله ووايي چي "ما هغه آزاد کړی دی"، نو دا اعتاق (آزادول) معتبر ګرځي (يعني غلام آزاديږي) او د دې غلام ولاء مشتري ته حاصليږي. لنډه دا چي څرنګه د بائع په تکذيب سره دلته د مشتري اقرار بالاعتاق باطليږي، همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم د مقرلهٔ (غلام) په تکذيب سره د مدعي يعني د مالک (خالد) اقرار بالنسب باطليږي.

بخلاف ما إذا صدقه إلخ: فرمايي: که چيري مقرلهٔ (غلام) د خپل مالک تصديق وکړي او داسي ووايي چي "هو! واقعتاً دا زما ځوی دی" يا مقرلهٔ سکوت اختيار کړي، نو په دې دواړو صورتونو کي د مالک (خالد) سره د هغه بچي نسب نه ثابتيږي؛ ځکه چي د تصديق په صورت کي کوچنی د مقرلهٔ ځوی وګرځېدی او هغه له نسب ثابتېدلو څخه مستغني سو. او پاته سو سکوت نو هغه هم تصديق ګرځول کيږي او د هغه سره د مقرلهٔ حق متعلق کيږي او د سکوت په صورت کي هم بچی د هغه ځوی ګرځي. لکه څرنګه چي د ملاعنه ښځي د بچي نسب له ملاعن څخه بغير د بل چا سره نه ثابتيږي: ځکه چي ملاعن ته دا اختيار دی چي د خپل ځان تکذيب وکړي او لعان باطل کړي او هغه بچی واخلي، نو همداسي به د تصديق او سکوت په صورت کي هم د مذکوره کوچني نسب له مقرلهٔ څخه بغير د بل چا سره نه ثابتيږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي په نسب کي بالاتفاق د نقض او بطلان احتمال نسته، لهذا د نسب په باره کي چي کوم اقرار کيږي، هغه به هم له نقض او بطلان څخه پاک وي، او که څه هم مقرلهٔ هغه ردّ کړي، لېکن هغه به نه رديږي، يعني د مقرلهٔ په حق کي خو به رديږي لېکن د مُقِر په حق کي به معتبر وي؛ ځکه همدا د فقه قاعده ده چي "إِقْرَارُ الْمُقِرِّ حُجَّةٌ فِيْ حَقِّهٖ خَاصَّةً" (يعني د اقرار کونکي اقرار صرف د هغه په حق کي حجت وي)، نو ځکه په دې مسئله کي به هم د مالک اقرار بالنسب لغيره د

هغه په حق کي حجت وي او د دې کوچني په هکله به د مالک د نسب دعویٰ ردول کیږي. د دې مثال داسي دی لکه نعمان او سلمان چي سره ورونه وي بیا مثلاً سلمان دا ګواهي ورکړي چي "ادریس د نعمان ځوی دی". خو څرنګه چي سلمان د نعمان ورور دی او دا تهمت سته چي سلمان به د هغه د فایدې لپاره د درواغو ګواهي ورکړې وي، نو ځکه د تهمت په وجه د نعمان په حق کي د هغه ګواهي ردول کیږي لېکن په خپله د سلمان په حق کي هغه ګواهي باقي ده او که سلمان په خپله دا دعویٰ وکړي چي "ادریس زما ځوی دی" نو د هغه دا دعویٰ باطلیږي، لهذا همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم د مُقر د نسب دعویٰ باطلیږي. او په اقرار بالنسب کي د ردّ او نقض د احتمال نه کېدلو یوه وجه دا هم ده چي که موږ د مقرلهٗ تصدیق ومنو، نو د اقرار په وجه د مُقربهٖ (کوچني) سره د مقرلهٗ حق متعلق کیږي همدارنګه مُقر بهٖ هم د مقرلهٗ سره متعلق کیږي، همدا وجه ده که مقرلهٗ تر تکذیب وروسته د مُقر تصدیق وکړي، نو بیا هم د مقرلهٗ سره هغه کوچنی ثابتُ النسب ګرځي. لنډه دا چي په پورتنۍ مسئله کي د مقرلهٗ سره د کوچني د نسب ثابتېدلو امکان او احتمال زیات دی، نو په دې وجه به هم د مدعي دعویٰ معتبره نه وي او هغه کوچنی به د ده ځوی نه ګرځي.

ومسألةُ الولاءِ إلخ: صاحبینو رَحِمَهُمَا الله پورتنۍ مسئله د ولاء پر مسئله قیاس کړې وه، په دې عبارت سره د هغه قیاس او استدلال جواب ورکوي، فرمایي چي د ولاء مسئله هم د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله په مینځ کي مختلف فیها ده، لهذا په هغې سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په خلاف دلیل نیول صحیح نه دي، او که بیا هم موږ هغه متفق علیها ومنو، نو د ولاء حکم دا دی چي که پر یوه ولاء بله زیاته قوي ولاء واقع سي نو اوله (ضعیفه) ولاء باطلیږي. مثلاً که یوه آزاده ښځه د بل چا (مثلاً د نعمان) د غلام سره نکاح وکړي او له هغې څخه بچی پیدا سي، نو د دې بچي چي کوم ولاء ده، هغه مور ته حاصلیږي. لېکن کله چي د بچي پلار یعني غلام آزاد کړی سي (یعني نعمان هغه آزاد کړي)، نو هغه (پلار) د بچي ولاء ځان ته راکشوي او د خپل آزادونکي قوم یعني د آزادونکي مالک (نعمان) وطرف ته یې منتقل کوي او تر دې وروسته د بچي ولاء د پلار قوم (مالک) ته حاصلیږي. نو معلومه سوه چي کله پر ضعیفه ولاء قوي ولاء واقع سي نو هغه ضعیفه ولاء باطلوي. لنډه دا چي ولاء باطلېدای سي، لېکن نسب نه سي باطلېدای.

او دلته د ولاء په مسئله کي چي د بائع له طرفه کومه ولاء ده. هغه موقوفه ده او پر هغه د مشتري دعویٰ وارده سوې ده کوم چي له دې موقوفه ولاء څخه زیاته قوي (اقویٰ) ده. نو ځکه په دې اقویٰ سره

په اوله ولاء باطليږي، حالانکي د نسب حکم دا دی چي هغه تر ثابتېدلو وروسته بيا هيڅکله هم نه باطليږي.

وهذا يصلح مخرجا إلخ: فرمايي چي د بائع مذکوره اقرار "هذا ابن عبدي فلان الغائب" د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر أصول په را روان صورت کي د ځان خلاصولو حيله جوړېدای سي چي که يو څوک (مثلا حميد) پر يو مشتري خپل يو غلام خرڅول غواړي لېکن ده ته (يعني حميد ته) ته دا بېره وي چي که زه پر هغه مشتري غلام خرڅ کړم نو هغه به د دې غلام سره د خپل نسب دعوىٰ وکړي (چي دا زما ځوی دی) او په دې توګه به بيع باطله سي، نو په دې صورت کي د مشتري د دعوې د قطع کولو او ماتولو طريقه دا ده چي مالک (حميد) دې د يو بل سړي سره د دې بچي د نسب اقرار وکړي (چي دا بچی د فلانکي سړي ځوی دی) نو په دې توګه به مشتري د هغه د نسب دعوىٰ نه وکړی سي او د مالک بېره به زائل سي.

## د يو کوچني په باره کي د مسلمان او کافر د اختلاف کولو بيان

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الصَّبِيُّ فِي يَدِ مُسْلِمٍ وَنَصْرَانِيٍّ فرمايي: او که چيري د يو مسلمان سړي او نصراني سړي په قبضه کي يو کوچنی وي فَقَالَ النَّصْرَانِيُّ: هُوَ ابْنِيْ نو نصراني ووايي: چي دا زما ځوی دی وَقَالَ الْمُسْلِمُ: هُوَ عَبْدِيْ او غلام ووايي: چي دا زما غلام دی فَهُوَ ابْنُ النَّصْرَانِيِّ وَهُوَ حُرٌّ نو هغه د نصراني ځوی دی او هغه آزاد ګرځي لِأَنَّ الْإِسْلَامَ مُرَجِّحٌ ځکه چي اسلام ترجيح ورکونکی دی فَيَسْتَدْعِي تَعَارُضًا [لېکن] ترجيح د تعارض تقاضا کوي وَلَا تَعَارُضَ او [دلته] تعارض نسته لِأَنَّ نَظَرَ الصَّبِيِّ فِي هَذَا أَوْفَرُ ځکه چي په دې کي [يعني د نصراني په ځوی کولو کي] د بچي لپاره بشپړ شفقت دی [په بله وينا: په دې کي د بچي لپاره زياته ښېګڼه ده] لِأَنَّهُ يَنَالُ شَرَفَ الْحُرِّيَّةِ حَالًا وَشَرَفَ الْإِسْلَامِ مَآلًا ځکه چي هغه به في الحاله د آزادۍ شرف حاصل کړي او وروسته به د اسلام شرف حاصل کړي إِذْ دَلَائِلُ الْوَحْدَانِيَّةِ ظَاهِرَةٌ ځکه چي د الله تعالىٰ د وحدانيت دلائل ښکاره دي وَفِي عَكْسِهِ الْحُكْمُ بِالْإِسْلَامِ تَبَعًا وَحِرْمَانُهُ عَنِ الْحُرِّيَّةِ او د دې په برعکس صورت کي [يعني که هغه غلام وګرځول سي] د اسلام حکم تبعاً دی او د آزادۍ له شرف څخه د هغه محرومېدل دي [يعني که هغه د مسلمان غلام وګرځول سي نو د خپل مسلمان مالک په متابعت کي به مسلمان وګرځي او د آزادۍ له نعمت څخه به محروم سي] لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي وُسْعِهِ

اِكْتِسَابُهَا ځکه چي د آزادۍ حاصلول د هغه په وس [او اختيار] کي نه دي وَلَوْ كَانَتْ دَعْوَتُهُمَا دَعْوَةَ الْبُنُوَّةِ او که د دواړو دعوىٰ د ځوی والي دعوىٰ وي [يعني له دوی څخه هر يو ووايي: چي دا زما ځوی دی] فَالْمُسْلِمُ أَوْلَىٰ نو مسلمان اولىٰ دی تَرْجِيحًا لِلْإِسْلَامِ اسلام ته په ترجيح ورکولو سره وَهُوَ أَوْفَرُ النَّظَرَيْنِ او له دواړو شفقتونو څخه همدا بشپړ شفقت دی.

**اللغات**: ﴿مُرجح﴾ د تفعيل د باب اسم فاعل دی: ترجيح ورکونکی، ﴿يستدعي﴾ د استفعال د باب مضارع ده: تقاضا کول، ﴿نظر﴾ شفقت، مصلحت (ښېګڼه)، يو چا ته اعتبار او اهميت ورکول، ﴿أوفر﴾ د ضرب د باب اسم تفضيل دی: زيات بشپړ (زيات پوره)، اکمل، ﴿ينال﴾ د فتح د باب مضارع ده: حاصلول، ترلاسه کول، ﴿مآل﴾ انجام، وروستني حالت، ﴿وسع﴾ وس، طاقت، ﴿بنوة﴾ ځوی والی، ځوی کېدل.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو ښکاره دی چي که يو کوچنی د مسلمان او نصراني په قبضه کي وي، نصراني هغه خپل ځوی ګرځوي چي "دا زما ځوی دی" او مسلمان هغه خپل غلام ګرځوي، نو هغه به د نصراني ځوی ګرځول کيږي او هغه به آزاديږي؛ وجه دا ده چي اسلام پر هره موقع (مسلمان ته پر نصراني او داسي نورو) ترجيح ورکونکی دی، لېکن د ترجيح لپاره يو تعارض موجودېدل پکار دي او دلته هيڅ تعارض نسته، ځکه چي د نصراني په ځوی ګرځولو کي د هغه کوچني لپاره دوه نعمتونه دي: يو في الحاله آزادېدل او بل وروسته مسلمان کېدل، او په غلام ګرځولو کي په کامله توګه يو نعمت هم هغه ته نه حاصليږي، نو ځکه په دې صورت کي به هغه د نصراني ځوی ګرځول کيږي، ها! که چيري مسلمان او نصراني دواړه د هغه کوچني د ځوی والي دعوىٰ وکړي او هر يو ووايي چي "دا زما ځوی دی"، نو په دې صورت کي به هغه د مسلمان ځوی ګرځول کيږي او د نصراني دعوىٰ به بالکل ردول کيږي، لأن الاسلام يعلو ولا يُعلى. (احسن الهدايه)

## د يو کوچني په باره کي د ښځي دعوىٰ کول

قَالَ: وَإِذَا ادَّعَتْ امْرَأَةٌ صَبِيًّا أَنَّهُ ابْنُهَا فرمايي: او که يوه ښځه د يو کوچني په هکله دعوىٰ وکړي چي هغه زما ځوی دی لَمْ تَجُزْ دَعْوَاهَا نو د هغې دعوىٰ جائز نه ده حَتّٰى تَشْهَدَ امْرَأَةٌ عَلَى الْوِلَادَةِ تر دې چي يو ښځه پر پيدايښت ګواهي ورکړي وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ أَنْ تَكُونَ الْمَرْأَةُ ذَاتَ زَوْجٍ او د مسئلې مطلب دا دی چي ښځه د خاوند والا وي لِأَنَّهَا تَدَّعِي تَحْمِيلَ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ ځکه چي هغه پر بل چا [يعني پر

خاوند] د نسب د بوج اچولو دعویٰ کوي فَلَا تُصَدَّقُ إِلَّا بِحُجَّةٍ نو ځکه له دليل څخه بغير به د هغې د
قول تصديق نه کیږي بِخِلَافِ الرَّجُلِ په خلاف د سړي [د دعویٰ کولو] لِأَنَّهُ يُحَمِّلُ نَفْسَهُ النَّسَبَ ځکه
چي هغه خپله پر خپل ځان د نسب بوج اچوي ثُمَّ شَهَادَةُ الْقَابِلَةِ كَافِيَةٌ فِيهَا بيا په دې سلسله کي د
دايي ګواهي کافي ده لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى تَعْيِينِ الْوَلَدِ ځکه [دلته] صرف د بچي مُتعيّن کولو ته
ضرورت دی أَمَّا النَّسَبُ فَيَثْبُتُ بِالْفِرَاشِ الْقَائِمِ پاته سو نسب نو هغه په موجوده زوجيت [نکاح]
سره ثابتيږي وَقَدْ صَحَّ: « أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَبِلَ شَهَادَةَ الْقَابِلَةِ عَلَى الْوِلَادَةِ » او دا په صحيح روايت
سره ثابت دي: "چي نبي کريم ﷺ د ولادت په باره کي د دايي ګواهي قبوله کړه" وَلَوْ كَانَتْ مُعْتَدَّةً
او که مدعيه ښځه معتده [عدت تېرونکې] وي فَلَا بُدَّ مِنْ حُجَّةٍ تَامَّةٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب
رَحِمَهُ الله په نيز بشپړ دليل [شهادتِ کامله] ضروري دی وَقَدْ مَرَّ فِي الطَّلَاقِ او دا په کتاب الطلاق کي تېر
سوه وَإِنْ لَمْ تَكُنْ مَنْكُوحَةً وَلَا مُعْتَدَّةً او که هغه ښځه نه معتده وي او نه منکوحه وي قَالُوا: يَثْبُتُ
النَّسَبُ مِنْهَا بِقَوْلِهَا نو مشايخو فرمايلي دي: چي [په دې صورت کي] محض د هغې په قول سره
نسب ثابتيږي لِأَنَّ فِيهِ إِلْزَامًا عَلَى نَفْسِهَا دُونَ غَيْرِهَا ځکه چي په دې کي د هغې پر خپل ځان [د
نسب] لازمول سته، نه پر بل چا وَإِنْ كَانَ لَهَا زَوْجٌ وَزَعَمَتْ أَنَّهُ ابْنُهَا مِنْهُ او که د ښځي خاوند وي او هغه
دعویٰ وکړي چي دا زما ځوی له دغه خاوند څخه دی وَصَدَّقَهَا او خاوند د هغې تصديق وکړي فَهُوَ
ابْنُهُمَا نو هغه د دوی دواړو ځوی ګرځي وَإِنْ لَمْ تَشْهَدْ امْرَأَةٌ که څه هم يو ښځه [مثلا دايي] ګواهي نه
ورکړي لِأَنَّهُ الْتَزَمَ نَسَبَهُ ځکه چي خاوند په خپله د هغه نسب پر ځان لازم کړی دی فَأَغْنَى ذٰلِكَ
عَنِ الْحُجَّةِ نو دې له دليل څخه استغناء پيدا کړه [يعني اوس بيّنه پېشولو ته ضرورت پاته نه سو] وَإِنْ كَانَ
الصَّبِيُّ فِي أَيْدِيهِمَا او که کوچنی د دواړو په قبضه کي وي وَزَعَمَ الزَّوْجُ أَنَّهُ ابْنُهُ مِنْ غَيْرِهَا او خاوند
دعویٰ وکړي چي دا زما ځوی له بلي ښځي څخه دی وَزَعَمَتْ أَنَّهُ ابْنُهَا مِنْ غَيْرِهِ او ښځه دعویٰ وکړي
چي دا زما ځوی له بل خاوند څخه دی فَهُوَ ابْنُهُمَا نو هغه د دواړو ځوی ګرځي لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ الْوَلَدَ

مِنْهُمَا ځکه چي ظاهر حال همدا دی چي هغه له دوی دوو څخه پيدا سوی دی لِقِيَامِ أَيْدِيهِمَا أَوْ لِقِيَامِ الْفِرَاشِ بَيْنَهُمَا د دوی د قبضي يا د دوی په مينځ کي د بستر [زوجيت] د موجودوالي په وجه [يعني ځکه چي هغه بچی د دوی په قبضه کي دی يا په دې وجه چي د دوی په مينځ کي د زوجيت (خاوند او ښځي) رشته موجوده ده] ثُمَّ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يُرِيدُ إِبْطَالَ حَقِّ صَاحِبِهِ بيا له دوی څخه هر يو د خپل ملګري د حق باطلول غواړي فَلَا يُصَدَّقُ عَلَيْهِ نو ځکه د يوه په خلاف به د بل تصديق نه کيږي وَهُوَ نَظِيرُ ثَوْبٍ فِي يَدِ رَجُلَيْنِ يَقُولُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا: هُوَ بَيْنِي وَبَيْنَ رَجُلٍ آخَرَ غَيْرِ صَاحِبِهِ او دا د هغه کپړې په څېر دي کوم چي د دوو کسانو په قبضه کي وي چي له هغوی څخه هر يو وايي: دا کپړه زما له ملګري څخه بغير زما او د بل سړي په مينځ کي مشترکه ده يَكُونُ الثَّوْبُ بَيْنَهُمَا نو [په دې صورت کي] هغه کپړه د دواړو په مينځ کي مشترکه ګرځي إِلَّا أَنَّ هُنَاكَ يَدْخُلُ الْمُقَرُّ لَهُ فِي نَصِيبِ الْمُقِرِّ مګر هلته [يعني په دې صورت کي] مقرلهٔ د مُقِر په حصه کي داخليږي [يعني په دې صورت کي مقرلهٔ د مقر په حصه کي حصه داره ګرځي] لِأَنَّ الْمَحَلَّ يَحْتَمِلُ الشَّرِكَةَ ځکه چي دا محل [کپړه] د شرکت احتمال لري وَهٰهُنَا لَا يَدْخُلُ او دلته [يعني د کوچني د نسب په دعویٰ کي] مقرلهٔ د مُقِر په حصله کي نه داخليږي لِأَنَّ النَّسَبَ لَا يَحْتَمِلُهَا ځکه چي نسب د شرکت احتمال نه لري.

**اللغات**: ﴿ولادة﴾ د ضرب د باب اسمِ مصدر دی: پيدايښت، بچی پيدا کېدل، بچی زېږول، ﴿تحميل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: پر يو چا د يو شي بوج او بار اچول، د يو شي مکلف کول، ذمه وار ګرځول، ﴿قابلة﴾ دايي، دايه، هغه ښځه کوم چي د يو ښځي د لنګېدلو (بچي زېږولو) پر مهال د مرستي لپاره د هغې سره موجوده وي، ﴿الفراش﴾ بستر، مراد ځني زوجيت او نکاح ده، ﴿حجة تامة﴾ بشپړ دليل (پوره دليل)، مراد ځني شهادت کامله دی، يعني د دوو خلګو يا د يوه سړي او دوو ښځو ګواهي، ﴿معتدة﴾ د افتعال له بابه د اسم مفعول مؤنث صيغه ده: عدت تېرونکې ښځه (عده تېرونکې، کوم چي د طلاق يا د خاوند د وفات عده تېروي)، ﴿التزم﴾ د افتعال د باب ماضي ده: پر خپل ځان لازمول، په خپله ذمه اخيستل، ﴿مُقِر﴾ د افعال د باب فاعل دی: اقرار کونکی.

**تشريح**: په دې عبارت کي په مجموعي توګه څلور (۴) مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که د يو بچي په هکله د خاوند والا ښځه دعویٰ وکړي چي "دا زما ځوی دی" لېکن خاوند د هغې له دعوې څخه انکار وکړي، نو تر څو چي د هغې په حق کي بله ښځه مثلاً دايي دا ګواهي نه

وركړي چي "دا بچی د همدغه مدعیه ښځي ځوی دی"، تر هغه وخته دا بچی د هغې سره ثابت النسب نه ګرځي؛ لکه څرنګه چي له نبي کريم ﷺ څخه دا روايت سوی دی چي هغه دیوې دايي ګواهي قبوله کړه؛ ځکه دلته ښځه پر خاوند د نسب بوج اچوي او څرنګه چي خاوند له دې څخه منکر دی، نو ځکه بلا دليله (بېله ګواهۍ) به د هغې قول او دعوی مقبوله نه وي. ها! که چيري د ښځي پر ځای خاوند دعوی وکړي، نو د هغه د دعوې قبلولو لپاره حجت او دليل ته ضرورت نسته؛ ځکه چي په دې صورت کي هغه خپله د خپل ځان سره د بچي نسب تړي.

(۲)... که مدعيه ښځه معتده وي، برابره ده هغه د وفات په عدت کي وي يا د طلاق په عدت کي وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له حجت کامله يعني له شهادت کامله څخه بغير به د هغې دعوی نه قبلول کيږي. ها! که چيري هغه ښځه نه منکوحه وي او نه معتده وي، نو محض په ويلو او دعوی کولو سره به د هغې قول او دعوی قبلول کيږي او د کوچني نسب به د هغې سره ثابتيږي؛ ځکه چي دا پر خپل ځان اقرار کول او د خپل ځان سره د بچي نسب لازمول دي او د بل چا سره د دې هيڅ تعلق نسته، نو ځکه په دې صورت کي به بغير له دليله د هغې قول او دعوی مقبوله وي.

(۳)... که مدعيه ښځه منکوحه وي او هغه دا دعوی وکړي چي "دا بچی زما له دغه خاوند څخه دی" او خاوند د هغې تصديق وکړي، نو د خاوند په تصديق سره هغه بچی د دوی دواړو سره ثابت النسب ګرځي، او نور بل حجت او دليل ته ضرورت نسته.

(۴)... که يو کوچنی د خاوند او ښځي په قبضه کي وي، خاوند ووايي چي "دا زما ځوی دی، خو زما له بلي ښځي څخه دی، نه له قابضه ښځي څخه"، او ښځه ووايي چي دا "زما ځوی دی او زما له مخکني خاوند څخه دی)، نو په دې صورت کي به هغه کوچنی د همدې ښځي او خاوند ځوی ګرځول کيږي کوم چي في الحاله پر بچي قابضين دي؛ ځکه چي پر بچي د دوی قابض کېدل او د دوی په مينځ کي د خاوند او ښځي رشته او تعلق موجودېدل د دې خبري دليل دی چي دا کوچنی د همدوی ځوی دی لېکن دوی قصداً د بل چا وطرف ته په نسبت کولو سره يو د بل حق باطلول غواړي، نو ځکه په دې حواله سره به د دوی تصديق نه کيږي.

د دې مثال داسي دی لکه دوه خلک مثلاً خالد او زيد پر يو تان قابض وي (يعني د هغو په قبضه کي د کپړې تان وي)، لېکن له دوی څخه هر يو دعوی کوي چي "دا زما تان دی، او دا زما او د حامد په مينځ کي مشترک دی"، نو په دې صورت کي هم هغه تان د واړو قابضينو يعني د خالد او زيد په مينځ کي مشترک ګرځي، او دوی چي د کوم کس لپاره د اشتراک او حصې اقرار کړی دی (يعني حامد)، هغه د دوی سره په خپله، خپله حصه کي حصه داره ګرځي يعني د هر يوه سره د هغه په حصه کي مشترک

ګرځي؛ ځکه چې دلته په محل يعني په کپړه کي د شرکت احتمال سته، لېکن په نسب کي د شرکت احتمال نسته، نو ځکه د نسب والا په مسئله کي به مقرلهٔ حصه دار نه ګرځي. (احسن الهدايه)

## که مينځه تر أم ولد ګرځېدلو وروسته د بل چا مستحقه وخيږي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى جَارِيَةً فَوَلَدَتْ وَلَدًا عِنْدَهُ فرمايي: او که څوک يو مينځه رانيسي او هغه مينځه د ده [مشتري] سره بچی وزېږوي فَاسْتَحَقَّهَا رَجُلٌ بيا يو سړی د هغه مينځي مستحق وخيږي غَرِمَ الْأَبُ قِيمَةَ الْوَلَدِ يَوْمَ يُخَاصِمُ نو پلار [مشتري] د خصومت والا د ورځي د قيمت ضامن کيږي لِأَنَّهُ وَلَدُ الْمَغْرُورِ ځکه چي دا "ولد مغرور" دی فَإِنَّ الْمَغْرُورَ مَنْ يَطَأُ امْرَأَةً مُعْتَمِدًا عَلٰى مِلْكِ يَمِينٍ أَوْ نِكَاحٍ فَتَلِدُ مِنْهُ ثُمَّ تُسْتَحَقُّ او مغرور هغه کس دی کوم چي پر ملک يمين يا پر نکاح په اعتماد کولو سره د يو مينځي سره وطي وکړي او هغه مينځه له ده څخه [يعني د ده له نطفې څخه] بچی وزېږوي بيا هغه مينځه مستحقه وخيږي وَوَلَدُ الْمَغْرُورِ حُرٌّ بِالْقِيمَةِ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او "ولد مغرور" د صحابه وو په اجماع سره د قيمت په عوض کي آزاد دی وَلِأَنَّ النَّظَرَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ وَاجِبٌ او په دې وجه هم چي د دواړو طرفونو [مغرور پلار او مستحق کس] لحاظ ساتل [رعايت کول] ضروري دي فَيُجْعَلُ الْوَلَدُ حُرَّ الْأَصْلِ فِي حَقِّ أَبِيهِ رَقِيقًا فِي حَقِّ مُدَّعِيهِ نو ځکه بچی به د پلار په حق کي اصلي آزاد ګرځول کيږي او د مدعي په حق کي به هغه غلام ګرځول کيږي نَظَرًا لَهُمَا د دې لپاره چي د دواړو لحاظ وساتل سي ثُمَّ الْوَلَدُ حَاصِلٌ فِي يَدِهِ مِنْ غَيْرِ صُنْعِهِ بيا دا بچی د پلار له يو فعل [تعدی] څخه بغير د هغه په قبضه کي راغلی دی فَلَا يَضْمَنُهُ إِلَّا بِالْمَنْعِ نو ځکه له منع کولو [بچي راګرځولو] څخه بغير به پلار د هغه نه ضامن کيږي كَمَا فِي وَلَدِ الْمَغْصُوبَةِ لکه د مغصوبه ښځي په بچي کي [چي هم دا حکم دی] فَلِهٰذَا تُعْتَبَرُ قِيمَةُ الْوَلَدِ يَوْمَ الْخُصُومَةِ نو له همدې کبله د بچي هغه قيمت معتبر دی کوم چي د خصومت د ورځي وي لِأَنَّهُ يَوْمُ الْمَنْعِ ځکه چي د منع [يعني د بچي د راګرځولو] ورځ همدا يوم الخصومت ده وَلَوْ مَاتَ الْوَلَدُ او که دا بچی مړ سي لَا شَيْءَ عَلَى الْأَبِ نو پر پلار هيڅ شی نه لازميږي لِانْعِدَامِ الْمَنْعِ ځکه چي منع موجود نه سوه وَكَذَا لَوْ تَرَكَ مَالًا او همدارنګه که بچی [په ميراث کي] مال پرېږدي [نو هم پر پلار ضمان نه لازميږي] لِأَنَّ الْإِرْثَ لَيْسَ بِبَدَلٍ عَنْهُ وَالْمَالُ لِأَبِيهِ ځکه

چي میراث د دې بچي بدل [عوض] نه دی او [د بچي] مال د هغه د پلار دی لِأَنَّهُ حُرُّ الْأَصْلِ فِي حَقِّهِ ځکه چي دا بچی د پلار په حق کي حُرّ الاصل دی فَيَرِثُهُ نو ځکه پلار به د هغه وارث کيږي وَلَوْ قَتَلَهُ الْأَبُ او که چيري پلار دا بچی قتل کړي يَغْرَمُ قِيمَتَهُ نو پلار د هغه د قيمت ضامن کيږي لِوُجُودِ الْمَنْعِ ځکه چي منع موجود سوه وَكَذَا لَوْ قَتَلَهُ غَيْرُهُ فَأَخَذَ دِيَتَهُ او همدارنګه [پلار د هغه ضامن کيږي] که چيري له پلار څخه بغير بل څوک دا بچی قتل کړي او پلار د هغه ديت واخلي لِأَنَّ سَلَامَةَ بَدَلِهِ كَسَلَامَتِهِ لَهُ وَمَنْعَ بَدَلِهِ كَمَنْعِهِ ځکه چي پلار ته د بچي د بدل سالم پاتېدل د بچي د سالم پاتېدلو په څېر دي او د بچي د بدل منع کول [راګرځول] د بچي د منع کولو په څېر دي [په بله وينا: ځکه چي پلار ته د بچي عوض حاصلېدل په خپله د بچي د حاصلېدلو په څېر دي او د ديت راګرځول د بچي د راګرځولو په څېر دي] فَيَغْرَمُ قِيمَتَهُ نو ځکه به پلار د هغه د قيمت ضامن کيږي كَمَا إِذَا كَانَ حَيًّا لکه کله چي بچی ژوندی وي [نو هم پلار ضامن کيږي] وَيَرْجِعُ بِقِيمَةِ الْوَلَدِ عَلَى بَائِعِهِ او مشتري [مغرور پلار] به له خپل بائع څخه د بچي قيمت واپس اخلي لِأَنَّهُ ضَمِنَ لَهُ سَلَامَتَهُ ځکه چي بائع د مشتري لپاره د مبيع د سلامتيا ذمه واري اخيستې وه كَمَا يَرْجِعُ بِثَمَنِهِ لکه څرنګه چي پلار به د مبيع [د بچي د مور] ثمن هم له هغه څخه واپس اخلي بِخِلَافِ الْعُقْرِ په خلاف د عُقر لِأَنَّهُ لَزِمَهُ لِاسْتِيفَاءِ مَنَافِعِهَا ځکه د مينځي د منافعو د حاصلولو په وجه پر مشتري عُقر لازم سو فَلَا يَرْجِعُ بِهِ عَلَى الْبَائِعِ نو ځکه مشتري به هغه له بائع څخه نه اخلي.

**اللغات**: ﴿استحق﴾ د استفعال د باب ماضي ده: مستحق کېدل، مستحق ختل، ﴿غرم﴾ د سمع د باب ماضي ده: ضامن کېدل، ضمان (تاوان) پر لازمېدل، ﴿يخاصم﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: جنګ او اختلاف کول، خصومت کول، دعویٰ کول، ﴿مغرور﴾ د نصر له بابه د اسم مفعول صيغه ده: دوکه سوی، فرېب خورده (چا ته چي دوکه ورکول سوې وي). "وَلَدُ الْمَغْرُوْرِ" (د دوکه سوي پلار بچی) ځکه چي د ده پلار د ملک يمين يا نکاح پر اعتماد دوکه سوی وي، يعني د هغه اعتماد او يقين دا وي چي دا زما خپل مملوکه يا منکوحه مينځه ده (ځکه چي د هغې مالک ورته ويلي وي چي دا د هيچا مينځه نه ده، لهذا ته يې غمه هغه رانيسه!. يا ته يې غمه نکاح ور سره وکړه) لېکن وروسته هغه د بل چا مستحقه وختله. ﴿ملك يمين﴾ د رقبې ملکيت (د غلام يا مينځي مالک کېدل)، يعني چي غلام يا مينځه د انسان په

ملکيت کې راسي. ﴿نظر﴾ شفقت، مصلحت، يو چا ته اعتبار ورکول. ﴿صنع﴾ فعل، عمل، کاروايي. ﴿عُقُر﴾ د وطي معاوضه، د وطي جرمانه، هغه مال (مهر) کوم چې د غيرِ صحيح وطي په عوض کې پر وطي کونکي لازم سي (داسي غيرِ صحيح وطي کوم چې د حد مُوجِب نه وي). (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو سړی (مثلاً زيد) يو مينځه رانيسي او د هغې سره وطي وکړي چې د هغه په نتيجه کې له مينځي څخه بچی پيدا سي، بيا هغه مينځه د بل چا (مثلاً د خالد) مستحقه وخيږي يعني بل څوک (خالد) په هغې دعویٰ وکړي چې "دا زما مينځه ده" او خپله دعویٰ ثابته کړي، نو په دې صورت کې پر مشتري يعني پر پلار (زيد) د هغه بچي قيمت واجبيږي کوم چې له مينځي څخه پيدا سوی دی او بچی آزاديږي؛ ځکه چې دا بچی "ولد مغرور" دی (يعني "د دوکه ورکړل سوي سړي ځوی دی" ځکه چې د هغه پلار ته دا دوکه ورکول سوې ده چې دا مينځه (د بچي مور) د بل چا نه ده لهذا ته يې غمه هغه رانيسه!. ليکن وروسته هغه د بل چا وخته)، او "ولد مغرور" د صحابه وو په اتفاق سره د قيمت په عوض کې آزاديږي. نو ځکه دا بچی به هم د قيمت په عوض کې آزاديږي.

ولأن النظر من الجانبين إلخ: عقلي دليل دا دی چې په داسي صورت کې د پلار (زيد) او د مستحق کس (خالد) دواړو رعايت کول ضروري دي، نو د پلار په رعايت کولو سره به دا بچی حُرّ الاصل گرځول کيږي (يعني دا به ويل کيږي چې هغه له پيدايښته آزاد دی؛ ځکه که پلار ته دا معلومه وای چې دا مينځه به د بل چا وي او زما بچی به غلام وگرځي، نو هغه به هيڅکله د دې بل چا (خالد) د مينځي سره وطي نه کولای)، او د مستحق کس يعني د مور د مالک (خالد) په رعايت کولو سره به هغه بچی غلام گرځول کيږي يعني پر پلار (مشتري) به د هغه ثمن لازمول کيږي، لنډه دا چې د دواړو رعايت او خيال ساتل په دې توگه ممکن دی چې هغه کوچنی د قيمت په عوض کې آزاد وگرځول سي (يعني چې مستحق کس ته د بچي د قيمت ضمان [تاوان] ورکول سي)، نو ځکه هغه به د قيمت په عوض کې آزاديږي.

او څرنگه چې مذکوره بچی د پلار په قبضه کې بلا تعدی راغلی دی. نو پر هغه صرف په دې وجه د بچي قيمت (ضمان) واجب دی چې هغه دا کوچنی له مستحق کس څخه راگرځوي او هغه ته يې نه ورکوي (نو ځکه هغه ته به د بچي قيمت ورکوي). لکه څرنگه چې د مغصوبه مينځي په بچي کې هم داسي کيږي، لهذا پر پلار (مشتري) به د هغه ورځي قيمت واجب وي، کوم قيمت چې د خصومت په ورځ د هغه وي (يعني د مستحق کس د دعویٰ کولو په ورځ چې بچی په بازار کې څومره قيمت لري. پلار به مستحق کس ته هغومره قيمت ورکوي)؛ ځکه چې پلار (يعني مشتري [زيد]) په هغه ورځ بچی له مستحق کس څخه راگرځولی دی. لکه څرنگه چې د مغصوبه مينځي په بچي کې هم د خصومت د ورځي قيمت واجبيږي.

**ولو مات الولد إلخ**: فرمايي که چيري له ستحقاق او خصومت څخه مخکي بچی مړ سي، نو هغه نه مضمون کيږي يعني پر پلار د هغه هيڅ ضمان (تاوان) نه واجبيږي، بلکي پلار به مستحق کس ته صرف هغه مينځه ورکوي. ځکه که چيري دا بچی حقيقتاً د مستحق کس غلام سوي وای، نو هم به هغه نه مضمون کېدای، نو د ملک حقيقي د نشتوالي په صورت کي خو به په طريقه اولیٰ هغه نه مضمون کيږي. همدارنګه که دا مړه بچي څه مال (ميراث) پرې ايښی وي، نو صرف پلار د هغه وارث او مالک ګرځي؛ ځکه چي د پلار په حق کي بچی حُرّ الاصل دی.

**ولو قتله الأب إلخ**: فرمايي: که چيري پلار (مشتري) دغه بچی قتل کړي، نو په دې صورت کي پر هغه د بچي د قيمت ضمان واجبيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي د هغه له طرفه د بچي راګرځول (مستحق کس ته نه ورکول) موجود سوه، همدارنګه که بل څوک هغه قتل کړي او پلار له هغه څخه ديت واخلي، نو په دې صورت کي هم پر پلار ضمان واجبيږي؛ ځکه چي ديت د بچي بدل دی. او د بدل راګرځول د اصل (بچي) د راګرځولو په څېر دي، نو ځکه د اصل په څېر د بدل راګرځولو په صورت به کي هم پر پلار د قيمت ضمان (تاوان) واجبيږي يعني هغه به مستحق کس ته د بچي قيمت ورکوي.

او کله چي پلار مستحق کس ته د بچي قيمت ورکړي، نو بيا به هغه خپل بائع تر غاړه نيسي او له هغه څخه به د بچي قيمت هم اخلي او د مينځي (مبيع) قيمت به هم ځني اخلي، ځکه چي بائع د مينځي د سلامتيا ذمه واري اخيستې وه (چي دا مينځه د بل چا نه ده) او پلار (مشتري) ته يې دوکه ورکړې ده، ځکه چي مينځه د بل چا مستحقه ثابته سوه.

لېکن د دې مينځي چي کوم عُقر وي يعني هغه مال کوم چي مستحق کس له مشتري (پلار) څخه د مينځي د وطي په عوض کي اخيستی وي، هغه مال مشتري (پلار) له بائع څخه نه سي اخيستلای، ځکه چي مشتري د هغه په عوض کي مينځه او د هغې بضع استعمال کړې ده او پر هغې يې خوندونه اخيستي دي، نو ځکه مشتري به هغه مال (عُقر) په خپله زغمي او له بائع څخه به يې نه اخلي. والله أعلم وعلمهٗ أتم



# كِتَابُ الْإِقْرَارِ

(دا) کتاب داقرار کولو (داحکامو په بیان کي) دی

**تشریح:** له کتاب الدعوىٰ څخه تر فراغت وروسته اوس صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله کتاب الاقرار بیانوي؛ په دعوىٰ او اقرار کي مناسبت په دې توګه دی چي مدعىٰ علیه به یا د مدعي د دعوې اقرار کونکی وي یا به د هغه له دعوې څخه منکر وي، که هغه اقرار کونکی (مُقر) وي نو معامله او دعوىٰ به ژر حل سي، لېکن د منکر کېدلو په صورت کي به له څو مراحلو څخه وروسته يو حل را ووځي، لنډه دا چي د اقرار او انکار مرحله پر دعوې موقوف ده، او موقوف تر موقوف علیه وروسته وي، نو ځکه موقوف یعني اقرار له دعوىٰ څخه وروسته بیان کړی سوی دی. (بنایه)

## د اقرار حکم او شرائط

قَالَ: وَإِذَا أَقَرَّ الْحُرُّ الْبَالِغُ الْعَاقِلُ بِحَقٍّ فرمايي: او كله چي آزاد، عاقل او بالغ كس [پر خپل ځان] د يو حق اقرار وکړي لَزِمَهُ إِقْرَارُهُ نو پر هغه خپل اقرار لازميږي مَجْهُولًا كَانَ مَا أَقَرَّ بِهِ أَوْ مَعْلُومًا برابره ده هغه حق مجهول وي چي د هغه په باره کي ده اقرار کړی وي او که معلوم وي اِعْلَمْ أَنَّ الْإِقْرَارَ إِخْبَارٌ عَنْ ثُبُوتِ الْحَقِّ پوه سه! چي اقرار د يو حق ثابتېدلو په باره کي خبر ورکولو ته وايي [چي پر ما د فلانکي يو حق باندي دی] وَأَنَّهُ مُلْزِمٌ او اقرار پر مُقر [د اقرار کړه شي (مخبر به)] لازمونکی دی لِوُقُوعِهِ دَلَالَةً ځکه چي اقرار پر مخبر بهٖ دليل جوړيږي أَلَا تَرَى كَيْفَ أَلْزَمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاعِزًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ الرَّجْمَ بِإِقْرَارِهِ آيا ته نه ګورې! چي نبي کريم ﷺ پر ماعز رضي الله عنه د خپل اقرار [يعني د زنا د اقرار کولو] په وجه رجم لازم کړی وو وَتِلْكَ الْمَرْأَةَ بِاعْتِرَافِهَا او پر هغه ښځه [غامديه] يې د خپل اقرار په وجه لازم کړی وو وَهُوَ حُجَّةٌ قَاصِرَةٌ او اقرار حجت قاصره [ناقص دليل] دی لِقُصُورِ وِلَايَةِ الْمُقِرِّ عَنْ غَيْرِهِ پر بل چا د مُقر د ولايت قاصر کېدلو په وجه [يعني ځکه مُقر ته له خپل ځان څخه بغير پر بل چا ولايت نه وي] فَيَقْتَصِرُ عَلَيْهِ نو ځکه اقرار به صرف پر هغه منحصر وي [يعني صرف تر هغه پوري به محدود پاتيږي]

وَشَرَطَ الْحُرِّيَّةِ لِيَصِحَّ إِقْرَارُهُ مُطْلَقًا او امام قدوري رَحِمَهُ الله ځکه [د مُقر] د آزاد والي شرط لګولی دی چي د هغه اقرار مطلقاً صحیح سي فَإِنَّ الْعَبْدَ الْمَأْذُونَ لَهُ وَإِنْ كَانَ مُلْحَقًا بِالْحُرِّ فِي حَقِّ الْإِقْرَارِ لَكِنَّ الْمَحْجُورَ عَلَيْهِ لَا يَصِحُّ إِقْرَارُهُ بِالْمَالِ ځکه مأذون لهٔ غلام که څه هم د اقرار په حق کي د آزاد سره ملحق دی لېکن د محجور غلام [لپاره] د مال اقرار صحیح نه دی وَيَصِحُّ بِالْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ ها! په حد یا قصاص کي د محجور غلام اقرار صحیح دی لِأَنَّ إِقْرَارَهُ عُهِدَ مُوجِبًا ځکه د هغه اقرار هم لازمونکی معلوم سوی دی لِتَعَلُّقِ الدَّيْنِ بِرَقَبَتِهِ ځکه چي قرض د هغه د غاړي [ذات] سره متعلق کیږي وَهِيَ مَالُ الْمَوْلَى حال دا چي د هغه غاړه [ذات] د مالک مال دی فَلَا يُصَدَّقُ عَلَيْهِ نو ځکه د مالک په خلاف به د هغه [د اقرار] تصدیق نه کیږي بِخِلَافِ الْمَأْذُونِ په خلاف د مأذون غلام لِأَنَّهُ مُسَلَّطٌ عَلَيْهِ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي هغه د همدې مالک له طرفه [د مالک] پر مال ګومارل سوی وي وَبِخِلَافِ الْحَدِّ وَالدَّمِ او په خلاف د حد او قصاص د اقرار کولو لِأَنَّهُ مُبْقًى عَلَى أَصْلِ الْحُرِّيَّةِ فِي ذٰلِكَ ځکه چي په حد او قصاص کي هغه پر خپل اصلي آزادۍ باقي پاتيږي حَتَّى لَا يَصِحَّ إِقْرَارُ الْمَوْلَى عَلَى الْعَبْدِ فِيهِ تر دې چي په حد او قصاص کي د غلام په خلاف د هغه د مالک اقرار [هم] صحیح نه دی وَلَا بُدَّ مِنَ الْبُلُوغِ وَالْعَقْلِ لِأَنَّ إِقْرَارَ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ غَيْرُ لَازِمٍ او [د مُقر] بالغ والی او عاقل والی [په دې وجه] ضروري دی ځکه چي د کوچني او لېوني اقرار لازم نه دی لِانْعِدَامِ أَهْلِيَّةِ الِالْتِزَامِ ځکه چي [په دوی کي] د التزام اهلیت نسته إِلَّا إِذَا كَانَ الصَّبِيُّ مَأْذُونًا لَهُ مګر دا چي کله کوچنی مأذون لهٔ وي [یعني د تجارت او تصرف کولو اجازه ورکول سوې وي] لِأَنَّهُ مُلْحَقٌ بِالْبَالِغِ بِحُكْمِ الْإِذْنِ ځکه چي د اجازت [اجازې] په وجه هغه د بالغ په درجه کي وي وَجَهَالَةُ الْمُقَرِّ بِهِ لَا تَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقْرَارِ او د مقر بهٔ [اقرار کړه شي] جهالت د اقرار صحیح والی نه منع کوي [یعني د اقرار له صحت څخه مانع نه دی] لِأَنَّ الْحَقَّ قَدْ يَلْزَمُهُ مَجْهُولًا ځکه څیني وخت پر انسان مجهول حق هم لازمیږي بِأَنْ أَتْلَفَ مَالًا لَا يَدْرِي قِيمَتَهُ په دې توګه چي انسان داسي شی ضایع کړي چي د هغه قیمت نه پېژني أَوْ يَجْرَحَ جِرَاحَةً لَا يَعْلَمُ أَرْشَهَا یا داسي زخم جوړ کړي چي د هغه په جرمانه خبر نه وي أَوْ تَبْقَى عَلَيْهِ بَاقِيَةُ حِسَابٍ لَا يُحِيطُ بِهِ عِلْمُهُ یا

پر هغه څه داسي حساب باقي پاته وي کوم چي ده ته معلوم نه وي وَالْإِقْرَارُ إِخْبَارٌ عَنْ ثُبُوتِ الْحَقِّ او اخرنګه چي اقرار د حق ثابتېدلو په باره کي خبر ورکولو ته وايي اچي پر ما د فلانکي يو حق باندي دی فَيَصِحُّ بِهِ نو ځکه د مجهول شي اقرار به [هم] صحيح وي بِخِلَافِ الْجَهَالَةِ فِي الْمُقَرِّ لَهُ په خلاف د هغه جهالت کوم چي په مقرلهٗ کي وي لِأَنَّ الْمَجْهُولَ لَا يَصْلُحُ مُسْتَحِقًّا ځکه چي مجهول کس د مستحق جوړېدلو صلاحيت نه لري [يا: ځکه چي مجهول کس مستحق نه سي جوړېدای] وَيُقَالُ لَهُ: بَيِّنِ الْمَجْهُولَ او مُقر ته به ويل کيږي: چي د مجهول وضاحت وکړه! اچي هغه څه شي دي او ستا مراد څه دی] لِأَنَّ التَّجْهِيلَ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي مجهول پرېښوول د هغه له طرفه دي فَصَارَ كَمَا إِذَا أَعْتَقَ أَحَدَ عَبْدَيْهِ نو داسي سوه لکه هغه چي له خپل دوو غلامانو څخه يو [غير مُعين] غلام آزاد کړي فَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ او که مُقر [د جهالت] وضاحت نه کوي أَجْبَرَهُ الْقَاضِي عَلَى الْبَيَانِ نو قاضي به هغه پر وضاحت کولو مجبوره کوي لِأَنَّهُ لَزِمَهُ الْخُرُوجُ عَمَّا لَزِمَهُ بِصَحِيحِ إِقْرَارِهِ ځکه د مُقر د صحيح اقرار کولو په وجه چي پر مُقر کوم شی لازم سوی دی له هغه څخه وتل [ځان خلاصول] هم پر ده لازم دي وَذَلِكَ بِالْبَيَانِ او دا [يعني له هغه څخه وتل] د وضاحت کولو په ذريعه کېدای سي.

**اللغات:** ﴿رجم﴾ د ضرب د باب مصدر دی: سنګسارول، په کاڼو او ډبرو سره قتل کول. ﴿قاصرة﴾ ناکافي، کمزوري، ناقص. ﴿يقتصر﴾ د افتعال د باب مضارع ده: مراد ځني منحصر کېدل او محدود کېدل دي. ﴿عبد مأذون لهٗ﴾ هغه غلام چي د مالک له طرفه د تجارت (کاروبار) کولو اجازه ورکول سوې وي. ﴿محجور عليه﴾ هغه غلام کوم چي له تجارت کولو څخه منع سوی وي (د تجارت او تصرف نه کولو پابندي پر لګول سوې وي). ﴿رقبة﴾ غاړه، د غلام ذات. ﴿مُقِر﴾ اقرار کونکی. ﴿مُقَر بِهٖ﴾ د کوم شي اقرار چي سوی وي (هغه شی چي د هغه په باره کي اقرار سوی وي). ﴿مُقَر لهٗ﴾ د چا لپاره چي اقرار سوی وي (هغه کس چي د هغه لپاره د يو شي اقرار سوی وي). ﴿التزام﴾ د افعال د باب مصدر دی: پر ځان يو شی لازمول. په خپله ذمه اخيستل. پر خپله غاړه د يو شي ذمه واري اخيستل. ﴿تجهيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مجهول کول. مجهول پرېښوول. ﴿أجبره﴾ د افعال د باب ماضي ده: مجبوره کول، اړ ايستل.

**تشريح**: دعبارت مطلب خو له ترجمې څخه هم معلوميږي، خو مختصراً عرض دا دی چې داقرار د صحت لپاره دا شرط او ضروري دي چې اقرار کونکی (مُقر) به آزاد. بالغ او عاقل وي؛ آزاد والی خو ځکه ضروري دي چې د مال او غير مال دواړو اقرار صحيح سي. ځکه چې دغير مأذون غلام لپاره دا صحيح نه دي چې د مال اقرار وکړي؛ ځکه که دهغه اقرار صحيح وګرځول سي نو دهغه پر مالک به د قرض په زياتوب کي اضافه وسي کوم چې له "تحميلُ الدَّين على الغَير بغير إذنـه" له قبيلې څخه دي او دا صحيح نه دي. لېکن د مأذون (اجازت ورکول سوي) غلام مالي او غير مالي دواړه اقرارونه صحيح دي؛ ځکه چې داجازت په وجه مأذون غلام د آزاد په فهرس کي داخليږي، او بيا هغه د همدې خپل مالک له طرفه په تصرف کولو امر سوی دی، نو ځکه به دهغه مالي او غير مالي دواړه اقرارونه معتبر وي. او د محجور (غيرِ مأذون) غلام لپاره غير مالي اقرار مثلاً د حد يا قصاص اقرار کول صحيح دي، ځکه چې د حد او قصاص په حق کي محجور غلام پر خپل اصلي حريت باقي پاتيږي، او د آزاد کس لپاره د حد يا قصاص اقرار کول صحيح او معتبر دي، نو ځکه د محجور غلام لپاره به هم د حد يا قصاص اقرار صحيح وي او په دې باره کي به دهغه اقرار هم معتبر وي.

ولا بد من البلوغ والعقل إلخ: فرمايي: د بالغ کېدلو او عاقل کېدلو شرط ځکه لګول سوی دی چې په مُقر کي داقرار او د التزام اهليت وي، او څرنګه چې په بچي او مجنون کي داقرار او التزام اهليت نسته، نو ځکه دهغو اقرار لره به هيڅ حيثيت هم نه وي. ها! که چيري يو بچي ته د خپل ولي او سرپرست له طرفه د تجارت (کاروبار) او تصرف کولو اجازت حاصل وي، نو دهغه اقرار معتبر دی؛ ځکه چې داجازت په وجه هغه په دې باره کي د بالغانو په صف کي درېږي.

وجهالة المقر به إلخ: په دې عبارت سره د متن د دې جملې "مَجْهُولًا كَان مَا أَقَرَّ بِهِ أَوْ مَعْلُومًا" وضاحت کوي، فرمايي چې داقرار د صحت لپاره د مقربه معلوم والی (متعين والی) ضروري نه دی، بلکي که مقربه مجهول وي، نو بيا هم اقرر صحيح دی او انسان مجهول شی هم پر ځان لازمولای سي، مثلاً که يو سړی د بل چا شی ضايع کړي لېکن د هغه قيمت ده ته معلوم نه وي يا مثلاً يو سړی په بل چا کي يو زخم جوړ کړي لېکن د هغه تاوان (أرش) ده ته معلوم نه وي چې څومره کيږي، او بيا دغه ضايع کونکی او زخمي کونکی سړی د خپل فعل اقرار وکړي، نو د دوی دغه اقرار معتبر او صحيح دی. لېکن له دوی څخه به د هغه فعل د وضاحت او تعيين غوښتنه کيږي، او که دوی په سمه د هغه وضاحت او تعيين نه کوي، نو قاضي به د وهلو او ډنډو په زور په دوی د هغه وضاحت بيانوي.

د دې په خلاف که مقرلهٔ مجهول وي نو اقرار صحيح نه دی، مثلاً که يو څوک داسې ووايي "لِرَجُلٍ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ" (پر ما د يو سړي زر درهمه باندې دي) او سړی معلوم نه کړي، نو څرنګه چې په دې صورت کې مقرلهٔ مجهول دی، نو ځکه دا اقرار صحيح نه دی؛ ځکه چې مجهول کس د حق او مال مستحق کېدای نه سي.

## د مجهول اقرار بيان

فَإِنْ قَالَ: لِفُلَانٍ عَلَيَّ شَيْءٌ فرمايي: او که څوک ووايي: چې د فلانکي پر ما يو شی باندې دی لَزِمَهُ أَنْ يُبَيِّنَ مَا لَهُ قِيمَةٌ نو پر ده لازم دي چې داسې شی بيان کړي چې هغه لره يو قيمت وي لِأَنَّهُ أَخْبَرَ عَنِ الْوُجُوبِ فِي ذِمَّتِهِ ځکه چې ده پر خپله ذمه [د يو شي] واجبېدلو اقرار کړی دی وَمَا لَا قِيمَةَ لَهُ لَا يَجِبُ فِيهَا او کوم شي لره چې قيمت نه وي هغه پر ذمه نه واجبيږي فَإِذَا بَيَّنَ غَيْرَ ذَٰلِكَ لهذا کله چې هغه غير قيمت والا شی بيان کړي يَكُونُ رُجُوعًا نو دا به رجوع وي قَالَ: وَالْقَوْلُ قَوْلُهُ مَعَ يَمِينِهِ إِنْ ادَّعَى الْمُقَرُّ لَهُ أَكْثَرَ مِنْ ذَٰلِكَ او قول د مُقِر معتبر دی که چيرې مقرلهٔ د مُقِر له اقرار کرده مقدار څخه د زيات مقدار اقرار وکړي لِأَنَّهُ هُوَ الْمُنْكِرُ فِيهِ ځکه چې په دې سلسله کې همدا مُقِر انکار کونکی دی وَكَذَا إِذَا قَالَ: لِفُلَانٍ عَلَيَّ حَقٌّ او همدارنګه کله چې هغه ووايي: د فلانکي پر ما يو حق باندې دی لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَكَذَا لَوْ قَالَ: غَصَبْتُ مِنْهُ شَيْئًا او همدارنګه که هغه ووايي: ما له فلانکي څخه يو شی غصب کړی دی وَيَجِبُ أَنْ يُبَيِّنَ مَا هُوَ مَالٌ يَجْرِي فِيهِ التَّمَانُعُ نو ضروري ده چې هغه يو داسې شی بيان کړي کوم چې مال وي او په هغه کې تمانع [يو د بل منع کول] جاري وي [يعني هغه يو مفت شی نه وي لکه عام کاڼي (ډبري) او داسې نور. بلکې قيمت لرونکی شی وي چې خلک په خپل مينځ کې يو بل د هغه له اخيستلو څخه منع کوي] تَعْوِيلًا عَلَى الْعَادَةِ پر عادت [عرف] په اعتماد کولو سره وَلَوْ قَالَ: لِفُلَانٍ عَلَيَّ مَالٌ او که چيرې ووايي: د فلانکي پر ما مال باندې دی فَالْمَرْجِعُ إِلَيْهِ فِي بَيَانِهِ نو د مال د وضاحت په باره کې د هغه وطرف ته رجوع کيږي لِأَنَّهُ الْمُجْمِلُ ځکه هغه اجمال کونکی دی وَيُقْبَلُ قَوْلُهُ فِي الْقَلِيلِ وَالْكَثِيرِ او په کم او زيات دواړو کې به د هغه قول منل کيږي لِأَنَّ كُلَّ ذَٰلِكَ مَالٌ ځکه چې دا ټوله مال دی [يعني قليل هم مال دی او کثير هم مال دی] فَإِنَّهُ

اسْمٌ لِمَا يَتَمَوَّلُ بِهِ ځکه مال هغه شي ته وايي چي په هغه سره مالداري حاصليږي إِلَّا أَنَّهُ لَا يُصَدَّقُ فِي أَقَلَّ مِنْ دِرْهَمٍ لېکن تر يوه درهم په کم مقدار کي به د هغه تصديق نه کيږي لِأَنَّهُ لَا يُعَدُّ مَالًا عُرْفًا ځکه چي تر يوه درهم کم په عرف کي مال نه شمارل کيږي وَلَوْ قَالَ: مَالٌ عَظِيمٌ او که مُقِر ووايي: ستر مال لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ نو تر دوو سوو درهمو په کم مقدار کي به د هغه تصديق نه کيږي لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِمَالٍ مَوْصُوفٍ ځکه چي هغه د موصوف مال اقرار کړی دی [يعني ځکه هغه د داسي مال اقرار کړی دی کوم چي د "عظيم" په صفت سره متصف دی] فَلَا يَجُوزُ إِلْغَاءُ الْوَصْفِ نو ځکه [دا] صفت لغو ګرځول صحيح نه دي وَالنِّصَابُ عَظِيمٌ او نصاب [يعني د نصاب په اندازه مال] عظيم دی حَتَّى اُعْتُبِرَ صَاحِبُهُ غَنِيًّا بِهِ همدا وجه ده چي د نصاب خاوند د هغه په وجه مالدار ګڼل کيږي وَالْغَنِيُّ عَظِيمٌ عِنْدَ النَّاسِ او مالدار کس د خلکو په نيز عظيم [ستر] وي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ لَا يُصَدَّقُ فِي أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چي تر لسو درهمو په کم مقدار کي به د هغه تصديق نه کيږي وَهِيَ نِصَابُ السَّرِقَةِ او لس درهمه د غلا نصاب دی لِأَنَّهُ عَظِيمٌ حَيْثُ يُقْطَعُ بِهِ الْيَدُ الْمُحْتَرَمَةُ ځکه چي هغه په دې حيثيت سره عظيم دي چي د هغه په غلا کولو سره محترم لاس پرېکول کيږي وَعَنْهُ مِثْلُ جَوَابِ الْكِتَابِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دويم روايت د قدوري د حکم په څېر نقل سوی دی وَهٰذَا إِذَا قَالَ: مِنَ الدَّرَاهِمِ او دا [حکم] په هغه صورت کي دی کله چي هغه ويلي وي: "مِنَ الدَّرَاهِم" أَمَّا إِذَا قَالَ: مِنَ الدَّنَانِيرِ لېکن که هغه ويلي وي: "مِنَ الدَّنَانِيْر" فَالتَّقْدِيرُ فِيهَا بِالْعِشْرِينَ نو په دنانيرو کي به شلو سره اندازه کيږي [يعني په دې صورت کي به شل دنانير مُتعينول کيږي] وَفِي الْإِبِلِ بِخَمْسٍ وَعِشْرِينَ او په اوښانو کي به په پنځويشت سره اندازه کيږي لِأَنَّهُ أَدْنَى نِصَابٍ يَجِبُ فِيهِ مِنْ جِنْسِهِ ځکه چي دا ادنیٰ نصاب دی چي په هغه کي [زکاة] د هغه له جنس څخه واجبيږي [ځکه له دنانيرو څخه په شلو کي زکاة واجبيږي او له دراهمو څخه په دوو سوو کي زکاة واجبيږي او له اوښانو څخه په پنځويشتو کي (دله هغه له جنس څخه يعني) يو اوښ واجبيږي] وَفِي غَيْرِ مَالِ الزَّكَاةِ بِقِيمَةِ النِّصَابِ او د زکاة له مال څخه بغير په بل کي مال کي به د نصاب د قيمت اعتبار کيږي.

**اللغات**: ﴿يبيّن﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: بيانول. د يو شي وضاحت کول. ﴿تمانع﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو بل منع کول. ﴿تعويل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: اعتماد کول. بروسه کول. ﴿المَرجِع﴾ دا د ضرب له بابه مصدرِ ميمي دی او اسم ظرف هم پر دغه وزن رائحي: رجوع کول. ﴿مُجمِل﴾ د افعال د باب فاعل دی: اجمال کونکی. اختصار کونکی. أجْمَلَ يُجْمِلُ إجْمَالًا: په مختصره او مبهمه توگه خبره کول. په کلام کي اختصار کول. ﴿عظيم﴾ ستر. غټ. ﴿لا يُصدق﴾ د تفعيل له بابه د نفي مجهول صيغه ده: تصديق کول. رښتونی گڼل. خبر ورسره منل. ﴿سرقة﴾ غلام. ﴿المحترمة﴾ د افتعال له بابه د اسم مفعول مؤنث صيغه ده: احترام او عظمت والا. هغه څه چي د بل چاليپاره د هغه اخيستل او په هغه تېری کول ناجائز وي. لکه څرنگه چي دا د "المال المحترم" په تعريف کي ذکر سوي دي.

**تشريح**: په دغه عبارت کي څلور (۴) مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو سړی ووايي چي "پر ما د فلانکي سړي يو شی باندي دی" لېکن دا ښکاره نه کړي چي هغه څه شي دی، نو پر هغه لازم دي چي د شي داسي وضاحت وکړي کوم چي قيمت والا (قيمت لرونکی) شی وي؛ ځکه چي صرف قيمت والا شی پر ذمه واجبېږي. او که هغه ووايي چي "د هغه فلانکي سړي (مقرلهٗ) پر ما له اسلامي حقوقو څخه يو حق باندي دی" نو دا د ده (مُقر) له طرفه د خپل اقرار څخه رجوع ده؛ ځکه چي د اسلامي حق هيڅ ماليت او قيمت نه وي. او که مُقِر ووايي چي "د فلانکي (مقرلهٗ) پر ما سل روپۍ قرض باندي دی"، لېکن فلانکی (مقرلهٗ) ووايي چي "قرض دوه سوه روپۍ دی"، نو په دې صورت کي به هغه فلانکی (مقرلهٗ) پر خپله دعویٰ بيّنه پېشوي او که هغه بيّنه پېش نه کړی سي، نو له مُقِر څخه به قسم اخيستل کيږي او تر قسم اخيستلو وروسته به د هغه په حق کي فيصله کيږي يعني پر هغه به فقط د سل روپيو اداء لازمول کيږي؛ ځکه چي په دې حديث "البَيِّنَةُ عَلَى المُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلٰى مَنْ أَنْكَرَ" کي پر مدعیٰ عليه قسم لازم سوی دی.

که چيري مُقِر ووايي د "فلانکي پر ما يو حق باندي دی (لفلانٍ عليّ حقٌّ)"، نو بيا هم پر هغه د داسي شي وضاحت کول لازم دي کوم چي متقوّم (قيمت لرونکی) وي؛ ځکه چي په دې جمله سره هم د داسي شي خبر ورکول سوی دی کوم چي پر ذمه واجب وي، او پر ذمه صرف متقوّم شی واجبېږي.

(۲)... که مُقِر ووايي چي "ما د فلانکي يو شی غصب کړی دی"، نو په دې صورت کي هم پر مُقِر په متقوّم شي سره د هغه وضاحت کول لازم دي؛ ځکه چي په عرف کي په غصب سره عموماً د متقوّم مال غصب مراديږي، ځکه چي صرف همدا متقوّم شی پر ذمه واجبېږي.

(۳)... که مُقِر داسي ووايي چي " پر ما د فلانکي مال باندي دی (لفلان عليّ مال)". نو څرنګه چي مال مجمل دی او دا اجمال په خپله د مُقر له طرفه پیدا سوی دی، نو ځکه پر مُقر د هغه وضاحت کول لازم دي، او هغه چي تر يوه درهم زيات کوم مقدار هم بيان کړي، نو د هغه قول به منل کيږي، لېکن که هغه يو درهم يا تر هغه کم مقدار بيان کړي، نو د هغه قول معتبر نه دی؛ ځکه چي تر يوه درهم کم مقدار نه عرفاً مال شمال کيږي او نه د هغه په ورکېدلو او غلا کېدلو څه پروا کيږي.

(۴)... او که مُقِر داسي ووايي چي "پر ما د فلانکي عظيم (ستر) مال دی"، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چي تر دوه سوو درهمو په کم مقدار کي به د هغه قول نه منل کيږي. يعني که هغه دوه سوه درهمه يا تر دې زيات مقدار بيان کړي، نو بيا خو د هغه قول معتبر دی، کنې نه دی؛ ځکه چي دلته مُقِر د "عظيم" په وصف سره مال متصف کړی دی، لهذا د دې وصف اعتبار کول ضروري دي؛ او څرنګه چي دوه سوه درهمه د نصاب مال دی او په هغه کي زکاة واجب دی او دا مقدار په عرف کي عظيم ګڼل کيږي؛ ځکه څوک چي دوه سوه درهمه لري، نو هغه مالدار شمارل کيږي او پر هغه زکاة واجبيږي، نو ځکه له عظيم مال څخه به د دوه سوه درهمو مقدار مرادول کيږي.

او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه په دې سلسله کي دوه روايتونه نقل سوي دي: ① يو روايت د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په څير دی، ② او دويم روايت دا دی چي د عظيم اقل (کمترين) مقدار لس درهمه دي، نو په لس درهمو يا تر دې په زيات مقدار کي به د هغه قول منل کيږي او تر دې په کم مقدار کي به د هغه قول نه منل کيږي؛ ځکه چي لس درهمه د غلا نصاب دی يعني د دومره مال په غلا کولو سره د غله لاس پرېکول کيږي، کوم چي محترم اندام دی. لهذا پر کوم مقدار چي لاس پرېکول کيږي، هغه مقدار به هم محترم او عظمت والا وي. دا دواړ قولونه (يعني د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُم الله اقوال) په هغه صورت کي دي کله چي مُقِر داسي ويلي وي: "لفلان عليّ مالٌ عظيمٌ من الدراهم".

او که چيري هغه د دراهم پر ځای دنانير ويلي وي، نو په دې صورت کي د هغه اقل مقدار شل ديناره دي؛ ځکه چي د دينار په حساب سره د نصاب مقدار شل ديناره دي. او که مُقر "من الإبل" ووايي، نو پنځويشت اوښان اقل مقدار دی، ځکه چي په اوښانو کي پنځويشت عدده د نصاب مقدار دی. لنډه دا چي مُقِر که د هر جنس نوم اخيستی وي، د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د هغه جنس د زکاة نصاب مقربه ګرځول کيږي او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به د لس درهمو مقدار مقربه ګرځول کيږي.

شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول زيات صحيح معلوميږي. نو په دې کي به د اقرار کونکي (مُقِر) مالي حالت ته کتل کيږي. لهذا که هغه غريب او تنګلاسی وي، نو

د هغه لپاره لږ دراهم هم ډېر او عظيم مال دی او که هغه مالدار وي، نو د هغه لپاره ډېر دراهم هم هيڅ حيثيت نه لري، لهذا له حالت کتلو څخه بغير په داسي صورتونو کي فوراً دوه سوه درهمه لازمول مناسب نه دي. (احسن الهدايه)

## د يو څو مبهمو الفاظو د اقرار حکم او تفصيل

وَلَوْقَالَ: أَمْوَالٌ عِظَامٌ او که مُقر ووايي: عظيم مالونه [يعني داسي ووايي: پر ما د فلانکي عظيم (ستر) مالونه باندي دي] فَالتَّقْدِيرُ بِثَلَاثَةِ نُصُبٍ مِنْ جِنْسِ مَا سَمَّاهُ نو هغه چي د کوم جنس والا مالونه ذکر کړي وي د هغه په دريو نصابو سره به اندازه کيږي اعْتِبَارًا لِأَدْنَى الْجَمْعِ د ادنیٰ جمع په اعتبار کولو سره وَلَوْقَالَ: دَرَاهِمُ كَثِيرَةٌ او که مُقر ووايي: زيات دراهم لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةٍ نو تر لسو دزهمو په کم مقدار کي به د هغه تصديق نه کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي وَعِنْدَهُمَا* لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ مِائَتَيْنِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به تر دوو سوو درهمو په کم مقدار کي د هغه تصديق نه کيږي لِأَنَّ صَاحِبَ النِّصَابِ مُكْثِرٌ ځکه چي صاحب د نصاب زيات مال والا وي [او نصاب دوه سوه درهمه دی] حَتَّى وَجَبَ عَلَيْهِ مُوَاسَاةُ غَيْرِهِ همدا وجه ده چي پر هغه د بل چا سره مالي همدردي کول واجب دي بِخِلَافِ مَا دُونَهُ په خلاف تر نصاب د کم مال وَلَهُ: أَنَّ الْعَشَرَةَ أَقْصَى مَا يَنْتَهِي إِلَيْهِ اسْمُ الْجَمْعِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي "لس" هغه آخري عدد دی چي پر هغه د جمع نوم منتهي کيږي [په بله وينا: د امام صاحب دليل دا دی چي د لسو عدد دا اسم جمع آخري (نهائي) عدد دی] يُقَالُ: عَشَرَةُ دَرَاهِمَ ثُمَّ يُقَالُ: أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا ويل کيږي: عشره دراهم [د جمع په صيغه سره] تر هغه وروسته ويل کيږي: احد عشر درهمًا [د مفرد په صيغه سره] فَيَكُونُ هُوَ الْأَكْثَرُ مِنْ حَيْثُ اللَّفْظُ لهذا د لفظ په اعتبار سره "لس" [عشرة] اکثر دی فَيَنْصَرِفُ إِلَيْهِ نو ځکه د هغه وطرف ته به رجوع کيږي وَلَوْقَالَ: دَرَاهِمُ او که مُقر ووايي: دَرَاهِم [يعني داسي ووايي:

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۵۰۱)، وملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۳۹۸). وقال المفتي غلام قادر النعماني: لو حملت هذه المسئلة على العرف لكانت اولى، لأن كل متكلم يتكلم باصطلاحه. [القول الراجح ج:۲، ص:۱۹۵]

پر ما د فلانکي دراهم باندې دي] فَهِيَ ثَلَاثَةٌ نو هغه درې درهمه دي [يعني له هغه شخه به درې درهمه مرادول کيږي] لِأَنَّهَا أَقَلُّ الْجَمْعِ الصَّحِيحِ ځکه چي درې [ ثلاثة ] د جمع صحيح کمترين فرد دی إِلَّا أَنْ يُبَيِّنَ أَكْثَرَ مِنْهَا مګر دا چي مُقِر په ځپله تر دريو زيات دراهم بيان کړي لِأَنَّ اللَّفْظَ يَحْتَمِلُهُ ځکه چي [د جمع لفظ] د دې احتمال هم لري وَيَنْصَرِفُ إِلَى الْوَزْنِ الْمُعْتَادِ او د دراهم به د معتاد [رائج] وزن وطرف ته ګرځي [په بله وينا: او د دراهمو د معروف وزن وطرف ته به رجوع کيږي (کوم چي په ښار کي رائج وي)] وَلَوْ قَالَ: كَذَا كَذَا دِرْهَمًا او که مُقِر ووايي: دومره دومره دراهم لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا نو تر يوولس درهمو په کم مقدار کي به د هغه تصديق نه کيږي لِأَنَّهُ ذَكَرَ عَدَدَيْنِ مُبْهَمَيْنِ لَيْسَ بَيْنَهُمَا حَرْفُ الْعَطْفِ ځکه چي هغه دوه داسي مبهم عددونه ذکر کړي دي چي د هغوی په مينځ کي حرفِ عطف نسته وَأَقَلُّ ذَلِكَ مِنَ الْمُفَسَّرِ أَحَدَ عَشَرَ او د تفسير [وضاحت کولو] په صورت کي د هغه کمترين مقدار يوولس دی وَلَوْ قَالَ: كَذَا وَكَذَا او که هغه ووايي: دومره او دومره دراهم لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ أَحَدٍ وَعِشْرِينَ نو تر يو ويشت درهمو په کم مقدار کي به د هغه تصديق نه کيږي لِأَنَّهُ ذَكَرَ عَدَدَيْنِ مُبْهَمَيْنِ بَيْنَهُمَا حَرْفُ الْعَطْفِ ځکه چي مُقِر دوه داسي عددونه ذکر کړي دي چي د هغوی په مينځ کي حرفِ عطف سته وَأَقَلُّ ذَلِكَ مِنَ الْمُفَسَّرِ أَحَدٌ وَعِشْرُونَ او د تفسير په صورت کي د هغه کمترين مقدار يوولس دی فَيُحْمَلُ كُلُّ وَجْهٍ عَلَى نَظِيرِهِ نو ځکه هر وجه به د هغه پر نظير [مشابه عدد] حمل کول کيږي وَلَوْ قَالَ: كَذَا دِرْهَمًا او که هغه ووايي: دومره درهم [د مفرد په صيغه سره. په بله وينا: دومره از روپۍ درهم] فَهُوَ دِرْهَمٌ نو هغه يو درهم دی لِأَنَّهُ تَفْسِيرٌ لِلْمُبْهَمِ ځکه دا [درهما] د مبهم تفسير دی [يعني د مبهم شي تمييز دی او هغه "كذا" دی. ځکه له "كذا" څخه مبهم عدد مراد دی چي د هغه أقل "يو" دی. نو ځکه پر يوه درهم به حمل کول کيږي] وَلَوْ ثَلَّثَ كَذَا بِغَيْرِ وَاوٍ او که مُقِر درې واره د "كَذَا" لفظ له "واو" څخه بغير ووايي فَأَحَدَ عَشَرَ نو هغه يوولس درهمه دي لِأَنَّهُ لَا نَظِيرَ لَهُ سِوَاهُ ځکه چي له "يوولس" څخه بغير د هغه بل مشابه عدد نسته وَإِنْ ثَلَّثَ بِالْوَاوِ او که مُقِر درې واره د "واو" سره د "كَذَا" لفظ ووايي فَمِائَةٌ وَأَحَدٌ وَعِشْرُونَ نو هغه يو سل و يو ويشت [ ١٢١ ] درهمه دي وَإِنْ رَبَّعَ او

که هغه څلور واره د "كَذَا" لفظ ووايي يُزَادُ عَلَيْهَا أَلْفٌ نو پر [۱۲۱] به زر درهمه اضافه کول کیږي لِأَنَّ ذٰلِكَ نَظِيْرُهُ ځکه چي د هغه مشابه همدا عدد دی.

**اللغات**: ﴿عظام﴾ جمع د عَظِيمٌ ده: ستر، غټ، ﴿مواساة﴾ او مُؤَاسَاة، د مفاعلې د باب مصدر دی: آسَى يُوَاسِيُ مُوَاسَاةً: د يو چا سره مالي همدردي کول، غم خوري، خواخوږي، (مصباح اللغات). ﴿أقصٰى﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات لري، آخري درجه، ﴿أقل﴾ دا هم د اسم تفضيل صيغه ده: زيات کم، کمتر (کمترين)، ﴿معتاد﴾ د افتعال د باب اسم مفعول دی: هغه څه چي په عرف کي د هغه عادت او رواج وي، رائج (مروج)، ﴿يحمل﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: حمل کول، ﴿ثلث﴾ د تفعيل د باب ماضي صيغه ده: يو کار درې واره کول (يو لفظ درې واره ذکر کول)، ﴿نظير﴾ مثل، مثال، مشابه.

**تشريح**: په دې عبارت کي د جمع په لفظ سره د اقرار کولو تقريباً شپږ صورتونه ذکر سوي دي:

(۱)... که مُقِر ووايي چي "عليّ أموال عِظَام لفلان"، نو هغه چي د مال کومه نوع بيان کړې وي، د هغه نوع او جنس درې نصابه به مرداول کيږي او پر مُقِر به درې نصابه واجبُ الاداء وي، نو که مُقِر "من الدراهم" ويلي وي، نو پر هغه به شپږ سوه درهمه واجب وي او که هغه "من الدنانير" ويلي وي، نو شپږ سوه ديناره به پر واجب وي وقِس علٰی هذا: ځکه چي عِظَام جمع د عظيمٌ ده او د جمع کمترين (اقلّ) فرد "درې" دی، نو ځکه مُقِر چي د کوم مال وضاحت کړی وي، د هغه درې نصابه به پر مُقِر واجب وي.

(۲)... او که مُقِر "دراهم كثيرة" ووايي، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه اقل مقدار لس درهمه دي او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه اقل مقدار دوه سوه درهمه دي: ځکه چي هغه "كثيرة" ويلي دي او "كثيرة" (ډېر دراهم) صرف د نصاب والا سره وي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د جمع آخري عدد "عشرة" (لس درهمه) دي، لکه څرنګه چي تر لسو پوري "عشرة دراهم" ويل کيږي او تر هغه د زائد مقدار لپاره "أحد عشر درهمًا" ويل کيږي، لهذا "عشرة" به په لفظي اعتبار سره اکثر وي او پر همدې به عمل کيږي.

(۳)... که مقر ووايي "لفلان عليّ دراهم"، نو د دې اقل مقدار درې درهمه دي: ځکه چي د جمع صحيح اقل فرد "درې" دی، نو ځکه کم از کم په دريو سره د هغه وضاحت کول ضروري دي، ها! که مُقِر په خپله تر دريو په زيات دراهمو سره د هغه وضاحت وکړي (يعني هغه ووايي چي ماله "دراهم" څخه

مراد [مثلا] نهه درهمه دي)، نو په دې صورت کي به هم د هغه تصديق کيږي؛ ځکه چي "دراهم" جمع ده او په هغه کي له دريو څخه د زائد مقدار احتمال هم سته.

او له دراهمو څخه به هماغه دراهم مراد وي کوم چي د مُقِر په ښار کي رائج وي؛ ځکه چي هغه د مطلق دراهمو اقرار کړی دی، او مطلق پر هغه ثمن حمل کيږي کوم چي په ښار کي رائج او غالب الاستعمال وي.

(۴)... که مُقِر "كذا، كذا درهمًا" ووايي، نو د هغه اقل مقدار يوولس (۱۱) درهمه دي؛ ځکه چي "كذا، كذا" دوه عدده دي او دواړه مبهم دي او څرنګه چي د دوی په مينځ کي حرفِ عطف هم نسته. او هغه مرکب اعداد چي د هغوی په مينځ کي حرف عطف نه وي، د هغوی اقل شمېر "يوولس" دی، نو ځکه له پورتنی اعدادو څخه به يوولس درهمه مرادول کيږي. د دې په خلاف که مُقِر په حرفِ عطف سره "كذا وكذا درهمًا" ووايي، نو بيا به له هغه څخه يو ويشت (۲۱) درهمه مرادول کيږي؛ ځکه چي د حرفِ عطف په ذريعه د دوه مرکب اعدادو اقل شمېر همدا دی؛ او څرنګه چي اقل متيقن وي، نو ځکه هغه به مُتعيّن کيږي.

(۵)... که مُقِر "كذا درهمًا" ووايي، نو له دې څخه به يو درهم مرادول کيږي؛ ځکه چي "درهمًا" واحد دی او د هغه اقل فرد "يو" دی.

(۶)... او که مُقِر له حرفِ عطف څخه بغير درې واره "كذا، كذا، كذا درهمًا" ووايي، نو له دې څخه به يوولس درهمه مرادول کيږي؛ ځکه چي له حرف عطف څخه بغير د دريو لفظونو لپاره يو واضح عدد نسته؛ نو ځکه له دريو څخه به يو لفظ مکرر او اضافي شمارل کيږي او د مُقِر له طرفه به صرف دوه ځله "كذا، كذا درهمًا" ويل ثابتيږي؛ او تاسو ته معلومه سوه چي بغير له حرف عطفه د "كذا، كذا درهمًا" ويلو په صورت کي يوولس درهمه واجبيږي، نو ځکه په دې صورت کي به هم يوولس درهمه واجب وي.

او که مُقِر په حرفِ عطف سره درې واره "كذا وكذا وكذا درهمًا" ووايي، نو د دې اقل مقدار يو سل و يوويشت (۱۲۱) درهمه دي؛ ځکه چي په حرفِ عطف سره د دريو لفظونو اقل شمېر "مائة وأحد وعشرون" دی. او که مُقِر څلور واره په حرفِ عطف سره "كذا وكذا وكذا وكذا درهمًا" ووايي، نو د دې اقل شمېر "ألف ومائة وأحد وعشرون" دی يعني يو زور او يو سل و يوويشت (۱۱۲۱) درهمه.

## په داسي الفاظو سره اقرار کول چي په هغوی کي صراحتاً اقرار ذکر نه وي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِنْ قَالَ: لَهُ عَلَيَّ أَوْ قِبَلِي فرمایي: او که مُقِر ووايي: د هغه [فلانکي] پر ما یا زما سره [دراهم دي] فَقَدْ أَقَرَّ بِالدَّيْنِ نو هغه د قرض اقرار وکړی لِأَنَّ "عَلَيَّ" صِيغَةُ إِيجَابٍ ځکه چي "عَلَيَّ" د ایجاب صیغه ده وَقِبَلِي يُنْبِئُ عَنِ الضَّمَانِ او "قِبَلِيْ" د ضمان خبر ورکوي عَلَى مَا مَرَّ فِي الْكَفَالَةِ لکه په "کتاب الکفاله" کي چي تېر سوه وَلَوْ قَالَ الْمُقِرُّ: هُوَ وَدِيعَةٌ وَوَصَلَ او که مُقِر ووايي: چي هغه ودیعت دی [یعني د فلانکي پر ما یا زما سره د امانت دراهم دي] او هغه متصل کړي [یعني "هو وديعة" د "علي" یا "قِبلي" سره متصل ووايي] صُدِّقَ نو د هغه تصدیق به کیږي لِأَنَّ اللَّفْظَ يَحْتَمِلُهُ مَجَازًا ځکه چي [دا] لفظ مجازاً د ودیعت احتمال لري حَيْثُ يَكُونُ الْمَضْمُونُ عَلَيْهِ حِفْظَهُ ځکه چي مودَع [أمین] د ودیعت د حفاظت کولو ضامن [ذمه وار] وي وَالْمَالُ مَحَلُّهُ او مال د حفاظت محل دی فَيُصَدَّقُ مَوْصُولًا لَا مَفْصُولًا نو ځکه [صرف] موصولا به د هغه تصدیق کیږي، نه مفصولا قَالَ: وَفِي نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ فِي قَوْلِهِ قِبَلِي: إِنَّهُ إِقْرَارٌ بِالْأَمَانَةِ او صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: چي د مختصر القدوري په بعضي نسخو کي د مُقِر د دې قول "قِبَلِيْ" په هکله نقل سوي دي: چي دا د امانت اقرار دی لِأَنَّ اللَّفْظَ يَنْتَظِمُهَا ځکه چي دا لفظ امانت لره هم شامل دی حَتَّى صَارَ قَوْلُهُ: "لَا حَقَّ لِي قِبَلَ فُلَانٍ" إِبْرَاءٌ عَنِ الدَّيْنِ وَالْأَمَانَةِ جَمِيعًا همدا وجه ده چي دیو چا دا قول "د فلانکي سره زما هیڅ حق نسته" له قرض او امانت دواړو څخه بري کول ګرځي وَالْأَمَانَةُ أَقَلُّهُمَا او په دې دواړو [امانت او قرض] کي امانت اقل دی وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ لیکن اول قول زیات صحیح دی وَلَوْ قَالَ: عِنْدِي أَوْ مَعِي أَوْ فِي بَيْتِي أَوْ فِي كِيسِي أَوْ فِي صُنْدُوقِي او که څیري مُقِر ووايي: زما سره [د فلانکي دراهم دي] یا زما په کور کي یا زما په خلته یا زما په صندوق کي فَهُوَ إِقْرَارٌ بِأَمَانَةٍ فِي يَدِهِ نو دا د هغه په قبضه کي د امانت کېدلو اقرار دی لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ إِقْرَارٌ بِكَوْنِ الشَّيْءِ فِي يَدِهِ ځکه چي دا ټوله د دې خبري اقرار کول دی چي هغه شی د ده په قبضه کي دی وَذَلِكَ يَتَنَوَّعُ إِلَى مَضْمُونٍ وَأَمَانَةٍ او قبضه [یا مقبوض شی] د مضمون او امانت وطرف ته

تقسيميږي [يعني قبضه پر دوه قسمه ده: د ضمانت قبضه، د امانت قبضه] فَيَثْبُتُ أَقَلُّهُمَا نو ځکه له دوی څخه به اقل [يعني امانت] ثابتيږي وَلَوْ قَالَ لَهُ رَجُلٌ: لِي عَلَيْكَ أَلْفٌ او که يو څوک بل چا ته ووايي: زما پر تا زر درهمه باندي دي فَقَالَ: اتَّزِنْهَا أَوِ انْتَقِدْهَا نو هغه [بل څوک] ووايي: چي ته هغه وزن کړه! يا ته د هغه کره او کوټه سره جلا کړه! أَوْ أَجِّلْنِي بِهَا أَوْ قَدْ قَضَيْتُكَهَا يا [ووايي] ما ته د هغه دراهمو په باره کي مهلت راکړه! يا ما تا ته هغه درکړل [يعني هغه به زه تا ته درکړم (اداء کړم)] فَهُوَ إِقْرَارٌ نو دا اقرار دی لِأَنَّ الْهَاءَ فِي الْأَوَّلِ وَالثَّانِي كِنَايَةٌ عَنِ الْمَذْكُورِ فِي الدَّعْوَى ځکه په اوله او دويمه جمله کي چي کومه "هاء" ده دا له هغو دراهمو څخه کنايه ده کوم چي په دعوىٰ کي مذکور [ذکر سوي] دي فَكَأَنَّهُ قَالَ: اتَّزِنِ الْأَلْفَ الَّتِي لَكَ عَلَيَّ نو ګواکي هغه داسي وويل: ته هغه دراهم وزن کړه! کوم چي ستا پر ما باندي دي حَتَّى لَوْ لَمْ يَذْكُرْ حَرْفَ الْكِنَايَةِ حتىٰ که هغه حرفِ کنايه ذکر نه کړي لَا يَكُونُ إِقْرَارًا نو دا اقرار نه ګرځي لِعَدَمِ انْصِرَافِهِ إِلَى الْمَذْكُورِ ځکه چي [په دې صورت کي] هغه د مذکور وطرف ته ګرځول ممکن نه دي وَالتَّأْجِيلُ إِنَّمَا يَكُونُ فِي حَقٍّ وَاجِبٍ او مهلت ورکول په واجب سوي حق کي کيږي وَالْقَضَاءُ يَتْلُو الْوُجُوبَ او اداء کول تر وجوب وروسته کيږي وَدَعْوَى الْإِبْرَاءِ كَالْقَضَاءِ او د برې کولو دعوىٰ داسي ده لکه د اداء کولو دعوىٰ کول لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَكَذَا دَعْوَى الصَّدَقَةِ وَالْهِبَةِ او همدارنګه د صدقه کولو او هبه کولو دعوىٰ [داسي] ده [لکه د اداء کولو دعوىٰ کول] لِأَنَّ التَّمْلِيكَ يَقْتَضِي سَابِقَةَ الْوُجُوبِ ځکه چي تمليک [مالک جوړول] د مخکي واجبېدلو تقاضا کوي وَكَذَا لَوْ قَالَ: أَحَلْتُكَ بِهَا عَلَى فُلَانٍ او همدارنګه که هغه ووايي: ما ته د هغه درهمو په هکله پر فلانکي حواله کړې! لِأَنَّهُ تَحْوِيلُ الدَّيْنِ ځکه چي دا [د بل چا ذمې ته] د قرض منتقل کول دي.

**اللغات:** ﴿قبلي﴾ د "قِبَل" يوه معنىٰ ده "طرف" او بله معنىٰ يې ده "سره" (زما په قبضه). لکه څرنګه چي عرب وايي "لِيْ قِبَلَ فُلَانٍ دَيْنٌ" (زما د فلانکي سره قرض دی [د فلانکي په قبضه کي زما قرض دی]). دلته د "سره" په معنىٰ سره دی. او د ضمان (ضامن کېدلو) په معنىٰ سره هم راځي چي د هغه وضاحت

به په تشريح کي وي، او د طرف د معنىٰ مثال يې دا دی "أَتَانِي مِن قِبَلِه" (د هغه له طرفه [د هغه له خوا] ما ته راغلی) (مصباح اللغات)، ﴿إيجاب﴾ د افعال د باب مصدر دی: واجبول، لازمول، ﴿يلبي﴾ د افعال د باب مضارع ده: خبر ورکول، ﴿الوديعة﴾ امانت ايښوول سوی مال، د بل چا سره پرېښوول سوی مال، ﴿الامانة﴾ امانت، هغه څه چي د عقد په ذريعه يا بغير له عقده د هغه حفاظت کول واجب وي، د عقد په ذريعه لکه وديعت، او بغير له عقده لکه لقطه (په لاره کي پيدا کړی سوی شی)، ﴿يتنظمها﴾ د افتعال د باب مضارع ده: شاملېدل، مشتمل کېدل، ﴿كِيْس﴾ خلته، تېلی، ﴿يتنوّع﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: قسما قسم کېدل، يو شی څو اقسامو ته تقسيمېدل، ﴿اتزنها﴾ د افتعال له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده: وزن کول، تلل، ﴿انتقدها﴾ د افتعال له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده: پر دراهمو د دې لپاره قبضه کول چي د هغه اصل او کوټه سره جلا کړی سي، يو شي ته د دې لپاره کتل چي د هغه ښه او بد سره وپېژندل سي، ازمايل، معلومول، ﴿أجّلني﴾ د تفعيل له بابه مخکنی صيغه ده: مهلت ورکول، ﴿قضيتُ﴾ د ضرب له بابه د واحد متکلم ماضي صيغه ده: اداء کول، ورکول، ﴿يتلو﴾ د نصر له بابه د مضارع صيغه ده: يو شی په بل شي پسې کېدل، ورسره متصل کېدل، ﴿سابق﴾ د ضرب له بابه د مؤنث اسم فاعل صيغه ده: مخکنی، ﴿أحلتك﴾ د افعال له بابه د واحد متکلم ماضي صيغه ده: يو څوک پر بل چا حواله کول، ﴿تحويل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: له يو ځايه بل ځای ته منتقل کول، نقلول (له يوې ذمې څخه بلي ذمې ته اړول). (مصباح اللغات)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک په دې الفاظو سره اقرار وکړي "لَهُ عَلَيَّ دَرَاهِمُ" يا "لَهُ مِنْ قِبَلِيْ دَرَاهِمُ" (د هغه فلانکي پر ما څه دراهم باندي دي. يا د فلانکي زما سره څه دراهم دي)، نو دا د قرض (دَين) اقرار دی او پر مُقِر د وضاحت سره هغومره دراهم واجب دي؛ ځکه چي "عليّ" پر خپل ځان د يوشي د واجبولو لپاره وضع سوی دی، او "قِبَلي" هم د ضمان (او پر ځان د يوشي د تاوان لازمولو) لپاره وي، لکه څرنګه چي "قَبِلَ فلانٌ عن فلان" د "ضَمِن عنه" په معنىٰ سره دی او "قَبِيْل" د ضامن (کفيل) په معنىٰ سره دی.

او که چيري مُقِر د "علي دراهم" سره "هو وديعة" متصل ووايي او د دوی په مينځ کي فصل نه وکړي، نو د هغه تصديق به کيږي او دغه دراهم به د امانت دراهم شمارل کيږي؛ ځکه چي په دې

جمله کي د همدې خبري احتمال هم سته او بل دا چي د امانت مال حفاظت كول د مودَع (أمين) پر ذمه وي، نو ځكه په دې پورتني صورت کي به د مُقِر تصديق كيږي، او دا به د "تسمية المحل بإسم الحال" له قبيلې څخه وي، لېكن څرنګه چي له دې څخه امانت مرادول د حقيقت خلاف (خلاف الحقيقة) دي، لهذا فقط د وُصل كولو په صورت کي (موصولاً) به د مُقِر تصديق كيږي، مفصولاً به د هغه تصديق نه كيږي. (احسن الهدايه)

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د قدوري په بعضي نسخو کي "لَهُ مِنْ قِبَلِيْ دَرَاهِمُ" اقرار بالامانت شمارل سوى دى؛ ځكه چي د "قِبَلي" په لفظ کي د امانت احتمال هم سته (ځكه د دې معنیٰ ده: زما سره د فلانكي دراهم دي)، او څرنګه چي په امانت کي ضمان نه واجبيږي (يعني كه له أمين څخه د امانت شی هلاک سي نو پر هغه تاوان نه لازميږي) نو په دې وجه امانت له دَين څخه اقل دى، او اقل متيقن وي، نو ځكه دا لفظ به پر امانت حمل كول متيقن وي، لېكن صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي "قِبَلِي" پر قرض (دَين) حمل كول زيات صحيح دي؛ ځكه چي د دې لفظ استعمال په قرضونو کي زيات او غالب وي، نو پر هغه به حمل كول زيات مناسب وي.

كه چيري مقرلهٗ ووايي "عِنْدِيْ يا مَعِيْ مَالًا" يا "فِيْ صُنْدُوْقِيْ مَالًا" يا داسي نور، نو په دې ټولو صورتونو کي هغه د امانت اقرار دی؛ ځكه چي دغه هر صورت د مُقِر پر قبضه دليل دی يعني له دې څخه مراد دا دی چي د هغه په قبضه کي د بل چا (مقرلهٗ) مال دی. او د بل چا پر مال قبضه پر دوه قسمه ده: ① د امانت قبضه، ② د ضمانت قبضه، او په دې دواړو کي د امانت قبضه اقل ده، نو ځكه هغه به مرادول كيږي.

ولوقال له رجل إلخ: مسئله دا ده كه زيد وخالد ته ووايي چي "زما پر تا زر درهمه باندي دي"، او خالد د زيد په جواب کي ووايي "اتّزنها، يا انتقدها..."، يعني "ته هغه وزن كړه! يا د هغه كره او كوټه سره جلا كړه! يا ما ته د هغه د اداء كولو لپاره څه مهلت راكړه! يا زه هغه دركوم (اداء كوم)"، نو دا د خالد له طرفه د قرض (دَين) اقرار دی؛ ځكه چي په "اتّزنها او انتقدها" کي چي كومه "هاء" (د ضمير هاء) ده، دا له هغو زر درهمو څخه كنايه ده كوم چي په دعویٰ کي ذكر سوي دي (لكه څرنګه چي دا بنكاره خبره ده) او د خالد اصل جواب داسي دی چي "هغه زر درهمه كوم چي ستا پر ما باندي دي، ته هغه وزن كړه يا يې كره او كوټه سره جلا كړه...!"، ګواكي دغه هاء د ضمير ذكر كول په حقيقت کي د اقرار علامت دی او كه چيري د ضمير هاء نه وای نو دا به اقرار هم نه وای. او مهلت غوښتل او د قضاء

(اداء کولو) دعوىٰ کول دواړه د دې خبرې دليل دى چې له مخکې شخه زما پر ذمه ستا قرض واجب دى، ځکه که قرض نه وي، نو نه به مهلت غوښتل صحيح وي او نه به د اداء کولو دعوىٰ کول صحيح وي.

وكذا دعوى الصدقة إلخ: او که خالد دعوىٰ وکړي چې "تا هغه دراهم ما ته صدقه کړل (په خيرات کې دې راکړل!) يا ما ته دې هبه کړل"، نو دا هم اقرار دى؛ ځکه چې د صدقې او هبې دعوىٰ کول د دې خبرې تقاضا کوي چې مخکې د خالد پر ذمه د زيد قرض (زر درهمه) واجب وه. همدارنګه که مدعىٰ عليه يعني خالد ووايي چې "ما د هغه زر درهمو په باره کې ته ادريس ته حواله کړې! (او د دې اداء کول مې د هغه پر غاړه واچول او ته په دې راضي سوې!)، نو دا هم د خالد له طرفه اقرار دى، ځکه چې د دې معنىٰ ده: زما پر ذمه چې کوم قرض واجب وو، ما هغه له خپل ذمې (غاړې) شخه د ادريس ذمې ته منتقل کړى.

## په اقرار کې د مقرلهٗ سره جزئي اختلاف کول

قَالَ: وَمَنْ أَقَرَّ بِدَيْنٍ مُؤَجَّلٍ فرمايي: او که څوک د مؤجل [ميعادي] قرض اقرار وکړي فَصَدَّقَهُ الْمُقَرُّ لَهُ فِي الدَّيْنِ وَكَذَّبَهُ فِي التَّأْجِيلِ او مقرلهٗ د قرض په باره کې د هغه تصديق وکړي لېکن د ميعاد ټاکلو په هکله هغه دروغجن وګڼي لَزِمَهُ الدَّيْنُ حَالًا نو پر مُقر في الحاله قرض لازميږي لِأَنَّهُ أَقَرَّ عَلَى نَفْسِهِ بِمَالٍ وَادَّعَى حَقًّا لِنَفْسِهِ فِيهِ ځکه چې هغه پر ځان د مال اقرار وکړى او په هغه کې يې د ځان لپاره ديو حق [تاجيل] دعوىٰ وکړه فَصَارَ كَمَا إِذَا أَقَرَّ بِعَبْدٍ فِي يَدِهِ وَادَّعَى الْإِجَارَةَ نو دا داسې سوه لکه مُقر چې [د بل چا لپاره] د داسې غلام اقرار وکړي کوم چې د ده په قبضه کې وي او [د اقرار سره] د اجارې دعوىٰ هم وکړي بِخِلَافِ الْإِقْرَارِ بِالدَّرَاهِمِ السُّودِ په خلاف د تور دراهمو د اقرار کولو لِأَنَّهُ صِفَةٌ فِيهِ ځکه چې تور والى په درهم کې صفت دى وَقَدْ مَرَّتِ الْمَسْأَلَةُ فِي الْكَفَالَةِ او دا مسئله په کتاب الکفاله کې تېره سوې ده قَالَ: وَيُسْتَحْلَفُ الْمُقَرُّ لَهُ عَلَى الْأَجَلِ فرمايي: او د ميعاد پر انکار کولو به له مقرلهٗ شخه قسم اخيستل کيږي لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ حَقًّا عَلَيْهِ ځکه چې هغه پر خپل ځان له حق لازمېدلو شخه منکر دى وَالْيَمِينُ عَلَى الْمُنْكِرِ او قسم پر منکر وي.

**اللغات:** ﴿مؤجل﴾ ميعادي (ميادي)، د کوم شي لپاره چې وخت ټاکل سوى وي، نېټه داره، ﴿كذّبه﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: تکذيب کول، دروغجن ګڼل، دروغجن ګرځول. ﴿إجارة﴾ د

افعال د باب مصدر دی: په اُجرت ورکول، په کرایه ورکول. ﴿سُوْد﴾ جمع د اَسْوَد ده: تور، بد. کوټه (احسن الهدایه). ﴿یستحلف﴾ د استفعال د باب مضارع مجهوله ده: له بل چا څخه د قسم کولو مطالبه کول، قسم ځني اخیستل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که (مثلا) خالد ووایي چې "پر ما د نعمان قرض باندي دی لېکن هغه میعادي نه دی (یعني د هغه قرض لپاره زما او د نعمان په مینځ کي میاد (مودت) نه دی ټاکل سوی. بلکي هر وخت چي زما خوښه وي. هغه وخت قرض ورکوم)، او نعمان د قرض تصدیق وکړي لېکن د میعاد په دعوىٰ کي مُقِر (خالد) درواغجن وګڼي او د میعاد انکار وکړي، نو په دې صورت کي پر مُقِر فوراً (فی الحاله) دا قرض واجبُ الاداء ګرځي؛ ځکه چي هغه پر خپل ځان د بل چا (نعمان) لپاره د قرض د اقرار کولو سره، سره د خپل ځان لپاره د میعاد دعوىٰ هم کوي، نو په اقرار کي به د هغه قول معتبر وي لېکن د میعاد دعوىٰ به معتبره نه وي. د دې مثال دا دی لکه یو څوک چي ووایي "زما سره چي کوم غلام دی، هغه د زید دی او ما هغه له زید څخه په اجاره (کرایه) اخیستی دی"، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي په اقرار کي به د هغه تصدیق کیږي لېکن په دعوىٰ (اجاره) کي به د هغه تصدیق نه کیږي؛ نو همداسي به دلته هم په اقرار (قرض) کي د مُقِر تصدیق کیږي لېکن په دعوىٰ (میعاد) کي به د هغه تصدیق نه کیږي.

د دې په خلاف که مُقِر د یو چا لپاره د تور (سیاه) دراهمو اقرار وکړي (چي د فلانکي پر ما تور دراهم باندي دي. نه سپین)، لېکن مقرلهٗ (فلانکی) د سپینو دراهمو دعوىٰ وکړي، نو په دې صورت کي د مُقِر قول معتبر دی؛ ځکه چي تور والی په دراهمو کي صفت اصلیه دی (ځکه دراهم له کوټ [غش] څخه بغیر نه سي جوړېدای)، لېکن میعاد په قرض کي عارضي شی (کوم چي له شرط لګولو څخه بغیر نه ثابتیږي)، او په صفت کي د مُقِر قول معتبر وي لېکن په عارض کي د منکر قول معتبر وي، نو ځکه موږ هم د صفت په صورت کي د مُقِر قول ته اعتبار ورکړی دی او د عارض یعني د میعاد په صورت کي مو د منکر یعني د مقرلهٗ قول ته ترجیح ورکړې ده. لېکن د دې سره، سره دا هم شرط دي چي مقرلهٗ به قسم اخلي؛ ځکه چي هغه منکر دی. او قاعده دا ده چي "اَلْبَیِّنَةُ عَلَی الْمُدَّعِيْ وَالْیَمِیْنُ عَلٰی مَنْ أَنْکَرَ".

## په اقرار کي مبهم اعداد ذکر کول (حکم او تفصيل)

وَإِنْ قَالَ: لَهُ عَلَيَّ مِائَةٌ وَدِرْهَمٌ او که يو څوک ووايي: چي د هغه [فلانکي] پر ما سل او يو درهم دي لَزِمَهُ كُلُّهَا دَرَاهِمُ نو پر هغه ټوله [يو سل ويو] درهمه لازميږي وَلَوْ قَالَ: مِائَةٌ وَثَوْبٌ او که چيري هغه ووايي: [د هغه پر ما] سل او يوه کپړه ده لَزِمَهُ ثَوْبٌ وَاحِدٌ نو پر هغه يوه کپړه لازميږي وَالْمَرْجِعُ فِي تَفْسِيرِ الْمِائَةِ إِلَيْهِ او د سلو د تفسير [او وضاحت] په باره کي به هغه ته رجوع کيږي وَهُوَ الْقِيَاسُ فِي الْأَوَّلِ او همدا په اول صورت کي قياس دی [يعني د "مائة ودرهم" په صورت کي هم قياس دا دی چي صرف يو درهم لازميږي] وَبِهِ قَالَ الشَّافِعِيُّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله د همدې قائل دی لِأَنَّ الْمِائَةَ مُبْهَمَةٌ وَالدِّرْهَمَ مَعْطُوفٌ عَلَيْهَا بِالْوَاوِ الْعَاطِفَةِ لَا تَفْسِيرًا لَهَا ځکه چي مائه مبهم دی او درهم پر هغه معطوف دی، په واو عاطفه سره دې لره تفسير نسته [د تغاير په وجه] فَبَقِيَتِ الْمِائَةُ عَلَى إِبْهَامِهَا نو ځکه "مائة" [سل] پر خپل ابهام باقي پاته سو كَمَا فِي الْفَصْلِ الثَّانِي لکه په دويم صورت کي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وَهُوَ الْفَرْقُ: أَنَّهُمُ اسْتَثْقَلُوا تَكْرَارَ الدِّرْهَمِ فِي كُلِّ عَدَدٍ وَاكْتَفَوْا بِذِكْرِهِ عَقِيبَ الْعَدَدَيْنِ د استحسان دليل (او همدا [په دواړو صورتونو کي] فرق دی) دا دی چي هغوی په هر عدد کي د درهم تکرار ثقيل [درون] کڼي وَهٰذَا فِيمَا يَكْثُرُ اسْتِعْمَالُهُ او دا په هغه څه کي چي استعمال يې زيات وي وَذٰلِكَ عِنْدَ كَثْرَةِ الْوُجُوبِ بِكَثْرَةِ أَسْبَابِهِ او د استعمال زياتوب هماغه وخت وي کله چي د اسبابو د زياتوب په وجه وجوب زيات وي وَذٰلِكَ فِي الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ وَالْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ او دا خبره په دراهمو، دنانيرو، کيلي او وزني شيانو کي وي أَمَّا الثِّيَابُ وَمَا لَا يُكَالُ وَلَا يُوزَنُ او پاته سو کپړې او هغه شيان کوم چي نه کيل کيږي او نه تلل کيږي فَلَا يَكْثُرُ وُجُوبُهَا نو د هغوی وجوب هم زيات نه وي فَبَقِيَ عَلَى الْحَقِيقَةِ لهذا دلته "مائة" پر حقيقت باقي پاته سو [احسن الهدايه] وَكَذَا إِذَا قَالَ: مِائَةٌ وَثَوْبَانِ او همدارنګه کله چي هغه ووايي: سل او دوې کپړې لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: مِائَةٌ وَثَلَاثَةُ أَثْوَابٍ په خلاف د هغه صورت کله چي ووايي: سل او درې کپړې لِأَنَّهُ ذَكَرَ عَدَدَيْنِ مُبْهَمَيْنِ وَأَعْقَبَهُمَا تَفْسِيرًا ځکه چي هغه د دوو مبهم عددونو له ذکر کولو څخه وروسته د

هغوی تفسیر هم بیان کړی دی إِذِ الْأَثْوَابُ لَمْ تُذْكَرْ بِحَرْفِ الْعَطْفِ ځکه چي [دلته] "اثواب" په حرف عطف سره نه دي ذکر سوي فَانْصَرَفَ إِلَيْهِمَا نو ځکه دا تفسیر به هغه دواړو عددونو ته راجع کیږي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْحَاجَةِ إِلَى التَّفْسِيرِ ځکه چي تفسیر ته په احتیاج کي دوی دواړه برابر دي فَكَانَتْ كُلُّهَا ثِيَابًا نو ځکه هغه ټوله به کپړې وي.

**اللغات**: ﴿استثقلوا﴾ د استفعال له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صیغه ده: ثقیل (درون) ګڼل، دروند ګڼل، بوج محسوسول. ﴿لا يُكال﴾ د ضرب له بابه د نفي مجهول صیغه ده: کَیل کول، په کَیل (معلوم لوښي او ظرف) سره پیمانه کول. ﴿أعقبها﴾ د افعال د باب مضارع ده: وروسته راوړل. ﴿استواء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: برابرېدل، برابري.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو شوک ووایي "لِفُلَانٍ عَلَيَّ مِائَةٌ وَدِرْهَمٌ" یعني "د فلانکي پر ما سل او یو درهم باندي دی"؛ نو استحسانا حکم دا دی چي له سلو شخه به دراهم مرادول کیږي او پر هغه پوره یو سل ویو (۱۰۱) درهمه لازمیږي. او که هغه ووایي "د فلانکي پر ما سل او یوه کپړه ده"، نو پر هغه صرف یوه کپړه لازمیږي او د سلو په باره کي به له هغه شخه د وضاحت غوښتنه کیږي (چي له سلو شخه ستا مراد شه دی؟).

او په اول صورت کي یعني د "لِفُلَانٍ عَلَيَّ مِائَةٌ وَدِرْهَمٌ" په صورت کي د قیاس حکم دا دی چي پر هغه صرف یو درهم لازمیږي لکه شرنګه چي د کپړې والا په صورت کي صرف یوه کپړه لازمیږي؛ د قیاس دلیل دا دی چي "مائة" مبهم دي، لهذا د "مائة" او "درهم" په مینځ کي تغایر سته، نو ځکه "درهم" د "مائة" تفسیر نه سي کېدای، نو ځکه "مائة" به پر خپل ابهام باقي پاته وي؛ او کله چي داسي ده نو د "مِائَةٌ وَثَوْبٌ" په شیر به د "مِائَةٌ وَدِرْهَمٌ" په صورت کي هم له مُقِر شخه د "مائة" د وضاحت او تفسیر غوښتنه کیږي.

د استحسان (او په دواړو صورتونو کي د فرق) دلیل دا دی چي عرب د هر عدد سره "دِرْهَمًا" مکرر کول ثقیل او نا مناسب ګڼي او د دوو اعدادو یا له دوو شخه د زائد اعدادو په آخر کي صرف یو وار "درهم" ذکر کوي. مثلاً "أَحَدٌ وَعِشْرُوْنَ دِرْهَمًا" یا "مِائَةٌ وَأَحَدٌ وَعِشْرُوْنَ دِرْهَمًا"، او شرنګه چي د درهم، دینار، کَیلي او وزني شیانو ضرورت هم زیات وي او پر ژبو د هغوی استعمال او اطلاق هم زیات وي، نو ځکه په هغوی کي صرف یو وار ذکر کول به ټولو ته شاملیږي او له "مِائَةٌ وَدِرْهَمٌ"

څخه به يو سل ويو (۱۰۱) درهمه مراديږي. لېکن د "ثوب" د لفظ او د غير کَيلي او غير وزني شي استعمال او اطلاق کم دی او هغه ته زيات ضرورت هم نه پرېوځي، نو ځکه د "مِائَةٌ وَثَوْبٌ" په صورت کي په "ثوب" سره د "مائه" تفسير نه کيږي بلکي دلته به "مائة" پر حقيقت باقي پاتې وي او له مُقر څخه به د هغه د تفسير غوښتنه کيږي.

او که چيري مقر "مِائَةٌ وَثَوْبَانِ" ووايي، نو هم دغه حکم دی، يعني په "ثوبان" سره د "مائة" تفسير نه کيږي، بلکي له مُقر څخه به د هغه د وضاحت او تفسير غوښتنه کيږي.

ها! که چيري مُقر "مِائَةٌ وَثَلَاثَةُ أَثْوَابٍ" ووايي، نو په "أثواب" سره د "ثلاثة" او "مائة" دواړو تفسير کيږي؛ ځکه چي دلته "أثواب" په حرف عطف سره يعني "ثلاثة وأثواب" نه دي ذکر سوي، نو ځکه په "أثواب" سره به د "ثلاثة" تفسير کيږي او په هغه سره به د "مائة" تفسير هم کيږي؛ ځکه چي دواړه تفسير او وضاحت ته محتاج دي، نو ځکه له ټولو څخه به کپړه مرادول کيږي.

## هغه شيان چي د هغوی په اقرار کي ضمناً نور شيان هم واجبيږي

قَالَ: وَمَنْ أَقَرَّ بِتَمْرٍ فِي قَوْصَرَةٍ فرمايي: او که څوک په يو ټوکرۍ کي د خرماوو [د غصب کولو] اقرار وکړي لَزِمَهُ التَّمْرُ وَالْقَوْصَرَةُ نو پر هغه خرما او ټوکرۍ [دواړه] لازميږي [يعني د خرماوو سره ټوکرۍ هم پر لازميږي] وَفَسَّرَهُ فِي الْأَصْلِ بِقَوْلِهِ: غَصَبْتُ تَمْرًا فِي قَوْصَرَةٍ او په مبسوط کي امام محمد رَحِمَهُ الله د هغه تفسير په دې قول سره کړی دی: ما په ټوکرۍ کي [اېښوول سوي] خرماوي غصب کړي دي وَوَجْهُهُ: أَنَّ الْقَوْصَرَةَ وِعَاءٌ وَظَرْفٌ لَهُ او د دې دليل دا دی چي ټوکرۍ د خرماوو لپاره لوښی دی وَغَصْبُ الشَّيْءِ وَهُوَ مَظْرُوفٌ لَا يَتَحَقَّقُ بِدُونِ الظَّرْفِ او د شي يعني د مظروف غصب بغير له ظرفه نه ثابتيږي [نه موجوديږي] فَيَلْزَمَانِهِ نو ځکه خرما او ټوکرۍ دواړه به پر مُقر لازميږي وَكَذَا الطَّعَامُ فِي السَّفِينَةِ وَالْحِنْطَةُ فِي الْجَوَالِقِ او همدا حکم دی په کښتۍ کي د [اېښوول سوي] غلې او په جوال کي د [اېښوول سوي] غنمو بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: غَصَبْتُ تَمْرًا مِنْ قَوْصَرَةٍ په خلاف د هغه صورت کله چي مُقر داسي ووايي: ما له ټوکرۍ څخه خرماوي غصب کړي دي لِأَنَّ كَلِمَةَ مِنْ لِلِانْتِزَاعِ ځکه چي د "مِنْ" کلمه د را ايستلو [کښلو] لپاره وضع سوې ده فَيَكُونُ الْإِقْرَارُ بِغَصْبِ الْمَنْزُوعِ نو ځکه دا به د را ايستل

سوي شي د غصب اقرار وي قَالَ: وَمَنْ أَقَرَّ بِدَابَّةٍ فِي إِصْطَبْلٍ فرمايي: او كه څوک په طبيله كي د يو شاروي د غصب كولو اقرار وكړي لَزِمَهُ الدَّابَّةُ خَاصَّةً نو پر هغه صرف شاروى لازميږي لِأَنَّ الْإِصْطَبْلَ غَيْرُ مَضْمُونٍ بِالْغَصْبِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ځكه چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په غصب كولو سره د تبيلي ضمان نه لازميږي وَعَلَى قِيَاسِ قَوْلِ مُحَمَّدٍ[*] يَضْمَنُهُمَا او د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول مطابق مُقر د شاروي او طبيله دواړو ضامن كيږي [يعني د دواړو ضمان (تاوان) پر لازميږي]. وَمِثْلُهُ الطَّعَامُ فِي الْبَيْتِ او په خونه [كمره] كي د غلي د غصب كولو هم دا حكم دى قَالَ: وَمَنْ أَقَرَّ لِغَيْرِهِ بِخَاتَمٍ فرمايي: او كه څوک د بل چا لپاره د ګوتمۍ اقرار وكړي لَزِمَهُ الْحَلَقَةُ وَالْفَصُّ نو پر هغه د ګوتمۍ حلقه او غمى [دواړه] لازميږي لِأَنَّ اسْمَ الْخَاتَمِ يَشْمَلُ الْكُلَّ ځكه چي لفظ د "خاتم" دي ټولو لره شامل دى وَمَنْ أَقَرَّ لَهُ بِسَيْفٍ او كه څوک د بل چا لپاره د توري اقرار وكړي فَلَهُ النَّصْلُ وَالْجَفْنُ وَالْحَمَائِلُ نو د هغه [بل چا] لپاره د توري اوسپنه، پوښ او د راځړولو تناو ټوله لازم دي [يعني د توري په اقرار كي پر مُقر دا ټوله شيان لازميږي] لِأَنَّ الِاسْمَ يَنْطَوِي عَلَى الْكُلِّ ځكه چي لفظ د "سيف" پر دې ټولو مشتمل وي وَمَنْ أَقَرَّ بِحَجَلَةٍ او كه څوک [د بل چا لپاره] د پيلار اقرار وكړي فَلَهُ الْعِيدَانُ وَالْكِسْوَةُ نو د هغه لپاره لرګيان [لكړي] او پردې ټوله لازم دي لِانْطِلَاقِ الِاسْمِ عَلَى الْكُلِّ عُرْفًا ځكه چي په عرف كي لفظ د "حجله" پر دغه ټولو ويل ...

**اللغات**: ﴿تمر﴾ خرماوي، كجوري، واحد: تَمْرَةٌ، ﴿قَوْصَرَةٌ﴾ او قَوْصَرَّةٌ: له مزرو او داسي نورو لرګيو څخه جوړه سوې ټوكرۍ چي په هغه كي خرماوي ساتل كيږي. ﴿وعاء﴾ لوښى. ﴿ظرف﴾ لوښى، هر هغه څه چي په هغه كي بل شى قرار نيسي. هر هغه څه چي په هغه كي بل شى ايښول كيږي. ﴿مظروف﴾ هغه شى كوم چي په ظرف كي ايښول سوى وي. ﴿جوالق﴾ مفرد دى. جمع يې جَوَالِيْق راځي: جوال. ګونى. ﴿انتزاع﴾ د فتعال د باب مصدر دى: راكښل. را ايستل. ﴿طعام﴾ مخكي ذكر سوه چي د دې لفظو له معناوو څخه يوه معنىٰ ده: غله. يعني غنم. اوربشي او داسي نور.

---

[*] القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في ملتقى الأبحر مع مجمع الأنهر (ج:٣، ص:٢٠٢)، وكذا في تنوير الأبصار (ج:٤ ص:٥٠٥). [القول الراجح ج:٢، ص:١٩٦]

﴿بيت﴾ خونه. ﴿دابة﴾ څاروی. ﴿اصطبل﴾ د اسونو او خرو د تړلو او ساتلو ځای (کوټه)، طبیله، تبیله، طویله. ﴿حلقة﴾ د ګوتمې کړی، خالي ګوتمی. ﴿نصل﴾ د توري اوسپنه، د توري د اوسپنې حصه، د لاس څخه بغیر د توري نوره تېره اوسپنه. ﴿جفن﴾ د توري پوښ، نیام. ﴿حمائل﴾ جمع د حِمَالَةٌ ده: د راځړولو تناو، دسته. ﴿ينطوي﴾ د انفعال د باب مضارع ده: مشتمل کېدل. ﴿حجلة﴾ د دې مختلف تعریفونه سوي دي چي له هغه څخه یو په حاشیه کي ذکر سوی دی او دوه دا دي: ① سَاتِرٌ كَالقبَةِ يُزَيَّنُ بِالثِّيَابِ وَالسُّتُوْرِ لِلْعُرُوْسِ. ② سَتْرٌ يُضْرَبُ لِلْعُرُوْسِ فِيْ جَوْفِ البَيْتِ. لکه زموږ په علاقو کي چي خاوند او ناوې ښځه (عروس) د ګرمی په موسم کي د دباندیني خوب لپاره پېلار استعمالوي، کوم چي د لرګیو او پردو څخه جوړ وي. ﴿عیدان﴾ جمع د عُوْدٌ ده: هر ډول لرګي او لکړي ته وايي، برابره ده هغه نری وي او که پنډ (معجم وسیط). ﴿کسوة﴾ څادر، پرده. اللِّبَاسُ الَّذِيْ يُسْتَتَرُ بِهِ.

**تشریح**: په دغه عبارت کي اصلاً څلور مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که یو سړی داسي اقرار وکړي: "فلانکي سړي چي په ټوکرۍ کي کومي خرماوي ایښي وې، هغه ما غصب کړي دي"، نو پر مُقِر د خرماوو سره، سره د هغه ټوکرۍ ضمان (تاوان) هم لازمیږي؛ ځکه چي ټوکرۍ ظرف ده او خرماوي مظروف دي، او مظروف له ظرف څخه بغیر نه موجودیږي (نه متحقق کیږي)، نو ځکه ظرف او مظروف دواړه به پر هغه لازم وي. همدارنګه که یو څوک ووايي "په کنبتۍ یا په ګونۍ کي چي کوم غنم ایښوول سوي وه، هغه ما غصب کړي دي"، نو دلته هم پر هغه د غنمو سره، سره د کنبتۍ او ګونۍ ضمان هم لازمیږي؛ ځکه چه دا شیان هم د غنمو لپاره ظرف دي او له دوی څخه بغیر مذکوره غنم نه متحقق کیږي. ها! که چیري مُقِر داسي ووايي چي "ما هغه خرماوي له ټوکرۍ څخه غصب کړي دي"، نو په دې صورت کي پر هغه صرف د خرماوو ضمان لازمیږي؛ ځکه چي د "مِنْ" کلمه د اخراج او انتزاع لپاره ده او د دې مطلب دا دی چي "ما له ظرف څخه مظروف راویستی او غصب مي کړی"، نو ځکه په دې صورت کي به پر مُقِر د ټوکرۍ ضمان نه لازمیږي.

(۲)... که یو سړی اقرار وکړي چي "ما د فلانکي په اصطبل کي د هغه آس غصب کړی دی"، نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر هغه صرف د څاروي (آس) ضمان لازمیږي؛ ځکه چي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د عقار او غیرِ منقوله شیانو ضمان نه لازمیږي. لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د عقار او

غيرِ منقوله شيانو ضمان لازميږي؛ نو ځکه په پورتني صورت کي د هغه په نيز د اصطبل ضمان هم لازميږي.

د امام محمد او شيخينو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف د "الطعام في البيت" د غصب کولو په صورت کي هم دی؛ يعني د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دې صورت کي صرف د طعام (غلې) ضمان لازميږي. لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د طعام او بيت دواړو ضمان لازميږي.

(۳)... که يو څوک د بل چا لپاره د ګوتمۍ اقرار وکړي مثلاً زيد ووايي چي "د نعمان د سپينو زرو ګوتمۍ زما سره ده" نو پر مُقِر يعني پر زيد لازم دي چي نعمان ته به ګوتمۍ او د ګوتمۍ غمی دواړه ورکوي؛ ځکه چي د "خَاتَم" لفظ دواړو لره شامل دی، همدا وجه ده چي بغير له ذکر کولو د ګوتمۍ په بيع کي غمی داخليږي، نو ځکه د "خَاتَم" په اقرار کي به د هغه اقرار هم شامل وي.

(۴)... که يو څوک د بل چا لپاره د توري اقرار وکړي، نو د توري سره مربوط هر شی يعني تېره او سپنه (توره) د هغې دسته (تناو)، پوښ او داسي نور ټوله په دې اقرار کي شامليږي؛ ځکه چي لفظ د "سَيْف" پر دې ټولو شيانو صادقيږي، نو ځکه پر مُقِر به هغه ټوله لازم وي.

همدارنګه که څوک د يو چا لپاره د پېلار اقرار وکړي، نو پر هغه د پېلار لرګيان او پردې ټوله لازميږي؛ ځکه چي په عرف کي د دې دواړو (يعني د پردې او لرګيو) مجموعې ته پېلار (حجله) وايي، نو ځکه دواړه شيان به په اقرار کي شامل وي او پر مُقِر به واجبُ الاداء وي.

## هغه شيان چي د هغوی په اقرار کي ضمناً نور شيان هم واجبيږي

وَإِنْ قَالَ: غَصَبْتُ ثَوْبًا فِي مِنْدِيلٍ او که يو څوک ووايي: ما په دسمال کي [پېچل سوې] کپړه غصب کړې ده لَزِمَاهُ جَمِيعًا نو پر هغه کپړه او دسمال دواړه لازميږي لِأَنَّهُ ظَرْفٌ ځکه [دلته] دسمال ظرف دی لِأَنَّ الثَّوْبَ يُلَفُّ فِيهِ ځکه چي کپړه په هغه کي پېچل کيږي وَكَذَا لَوْ قَالَ: عَلَيَّ ثَوْبٌ فِي ثَوْبٍ او همدارنګه که هغه ووايي: پر ما [د فلانکي] کپړه په کپړه کي باندي ده لِأَنَّهُ ظَرْفٌ ځکه چي [دلته هم] دويمه کپړه ظرف ده بِخِلَافِ قَوْلِهِ: دِرْهَمٌ فِي دِرْهَمٍ په خلاف د هغه د دې قول: درهم په درهم کي دی حَيْثُ يَلْزَمُهُ وَاحِدٌ نو په دې صورت کي پر هغه يوه کپړه لازميږي لِأَنَّهُ ضَرْبٌ لَا ظَرْفٌ ځکه چي دا د حساب ضرب دی، ظرف نه دی وَإِنْ قَالَ: ثَوْبٌ فِي عَشَرَةِ أَثْوَابٍ او که هغه ووايي: يوه کپړه په لسو کپړو کي ده لَمْ يَلْزَمْهُ إِلَّا ثَوْبٌ وَاحِدٌ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه صرف يوه

کپړه لازميږي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَزِمَهُ أَحَدَ عَشَرَ ثَوْبًا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر هغه يوولس کپړې لازميږي لِأَنَّ النَّفِيسَ مِنَ الثِّيَابِ قَدْ يُلَفُّ فِي عَشَرَةِ أَثْوَابٍ ځکه چې قيمتي کپړه ځيني وخت په لسو کپړو کې پېچل کيږي فَأَمْكَنَ حَمْلُهُ عَلَى الظَّرْفِ لهذا "عشرة أثواب" پر ظرف حمل کول ممکن دي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ حَرْفَ "فِي" يُسْتَعْمَلُ فِي الْبَيْنِ وَالْوَسَطِ أَيْضًا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې حرف د "في" د مينځ [منځ] په معنیٰ سره هم استعماليږي قَالَ اللهُ تَعَالَىٰ: ﴿فَادْخُلِي فِي عِبَادِي﴾ أَيْ بَيْنَ عِبَادِي الله تعالیٰ فرمايلي دي: "او داخل سه! زما په بندګانو کې" يعني زما د بندګانو په مينځ کې فَوَقَعَ الشَّكُّ نو ځکه شک واقع سو وَالْأَصْلُ بَرَاءَةُ الذِّمَمِ او اصل د ذمو بري کېدل [د غاړو خلاصېدل] دي عَلَىٰ أَنَّ كُلَّ ثَوْبٍ مُوعًى وَلَيْسَ بِوِعَاءٍ سره د دې چې هره کپړه مظروف ده او ظرف نه ده فَتَعَذَّرَ حَمْلُهُ عَلَى الظَّرْفِ نو هغه پر ظرف حمل کول ناممکن دي فَتَعَيَّنَ الْأَوَّلُ مَحْمَلًا نو نو ځکه د محمل کېدلو لپاره اوله معنیٰ متعينه سوه.

**اللغات:** ﴿منديل﴾ رومال، دسمال. ﴿بين﴾ مينځ، منځ. ﴿نفيس﴾ قيمتي، ارزښتمن. ﴿براءة﴾ بري کېدل، غير مشغول کېدل. ﴿موعًى﴾ مظروف.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو څوک ووايي چې "ما په دسمال کې پېچل سوې کپړه غصب کړې ده". يا داسې ووايي "پر ما د فلانکي يوه داسې کپړه باندې ده کوم چې په بله کپړه کې ده". نو په دې دوو صورتونو کې پر مُقر دواړه شيان (يعني په اول صورت کې ثوب مع المنديل او په دويم صورت ثوب فی الثوب) واجبيږي؛ ځکه چې په اول صورت کې دسمال (منديل) د کپړې لپاره او په دويم صورت کې کپړه د کپړې لپاره ظرف ده. او مظروف بغير له ظرفه نه موجوديږي (نه متحقق کيږي)، نو ځکه پر مُقر به ظرف او مظروف دواړه شيان واجب وي. لېکن که مُقر ووايي "درهم فی درهم". نو پر هغه صرف يو درهم واجبيږي؛ ځکه چې "في درهم" د "درهم" لپاره ظرف نه دی بلکې ضرب او حساب دی.

او که مُقر ووايي "ما په لسو کپړو کې پېچل سوې کپړه غصب کړې ده". نو د امام ابو يوسف او امام صاحب رَحِمَهُمَا الله په نيز پر هغه صرف يوه کپړه واجبيږي. لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه يوولس (۱۱) کپړې واجبيږي.

القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في نتائج الأفكار (ج:۷، ص:۳۱۹)، وكذا في الدر المختار (ج:۴، ص:۵۰۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۹۷]

**د امام محمد ليل**: دا دی چي ځيني وخت يو کپړه ډېره قيمتي وي او په ډېرو کپړو کي پېچل سوې وي، نو ځکه "عشرة أثواب" د "ثواب واحد" لپاره ظرف جوړېدل ممکن دي، او څرنګه چي ظرف او مظروف دواړه يو ځای متحقق کيږي، نو ځکه پر مُقِر به يوولس سره کپړې واجب وي.

**د امام ابو يوسف دليل**: کوم چي بقول کافي د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل هم دی، دا دی چي دلته مُقِر "في عشرة أثواب" ويلي دي او د "فِيْ" حرف د وسط او مينځ په معنیٰ سره هم مستعمل دی. لکه د قرآن کريم په دې آيت کي: ﴿فَادْخُلِيْ فِيْ عِبَادِيْ﴾ [سورة الفجر: ۲۹] يعني "بَيْنَ عِبَادِيْ". لهذا کله چي د "فِيْ" حرف د مينځ په معنیٰ سره هم راځي، نو په دې باره کي شک واقع سو چي په "فِي عشرة أثواب" کي "في" په يقيني توګه د ظرف په معنیٰ سره ده، که نه؟، او د شک په صورت کي پر اقل عمل کيږي او دلته اقل يوه کپړه ده، نو ځکه پر مُقِر به صرف يوه کپړه واجب وي، او څرنګه چي ديوې کپړې په واجبولو سره مُقِر په آسانه توګه برئ الذمه هم ګرځي (يعني غاړي يې خلاصيږي)، او د ذمې برائت اصل دی، نو په دې وجه به هم پر هغه صرف يوه کپړه واجب وي.

على أن كل ثوب إلخ: د دې حاصل دا دی چي په پورتني قول "ثوب في عشرة أثواب" کي د لسو کپړو مجموعه ديوې کپړې لپاره ظرف نه ده، بلکي هره کپړه مظروف ده؛ ځکه کله چي يوه کپړه په څو کپړو کي پېچل سوې وي، نو هره کپړه د خپل ماوراء کپړې په حق کي مظروف وي، او ظرف صرف هغه کپړه وي کوم چي پر ټولو د پاسه وي، او کله چي ديوې کپړې لپاره د لسو کپړو نه ظرف کېدل ثابت سوه، نو "في" پر ظرف حمل کول ناممکن دي، لهذا دا مُتعينه سوه چي مُقِر د لسو څخه يوه کپړه ايستلې او غصب کړې ده، او ښکاره خبره ده چي په داسي صورت کي صرف يوه کپړه واجبيږي، نه يوولس کپړې.

## د "فِيْ"، "مِنْ" او "مَا بَيْنَ" د اقرار حکم

وَلَوْ قَالَ: لِفُلَانٍ عَلَيَّ خَمْسَةٌ فِي خَمْسَةٍ يُرِيدُ الضَّرْبَ وَالْحِسَابَ فرمايي: او که يو څوک ووايي: د فلانکي پر ما پنځه په پنځه کي دي او هغه د ضرب او حساب اراده لري لَزِمَهُ خَمْسَةٌ نو پر هغه پنځه درهمه لازميږي لِأَنَّ الضَّرْبَ لَا يُكَثِّرُ الْمَالَ ځکه چي ضرب مال نه زياتوي [په بله وينا: ځکه چي په ضرب سره په مال کي اضافه نه راځي] وَقَالَ: الْحَسَنُ: يَلْزَمُهُ خَمْسَةٌ وَعِشْرُونَ او امام حسن رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر

هغه پنځويشت درهمه لازميږي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الطَّلَاقِ او په كتاب الطلاق كي موږ د دې بيان كړى دى وَلَوْ قَالَ: أَرَدْتُ خَمْسَةً مَعَ خَمْسَةٍ او كه هغه ووايي: چي ما د پنځو سره د پنځو اراده كړې ده لَزِمَهُ عَشَرَةٌ نو پر هغه لس درهمه لازميږي لِأَنَّ اللَّفْظَ يَحْتَمِلُهُ ځكه چي لفظ د دې احتمال [هم] لري وَلَوْ قَالَ: لَهُ عَلَيَّ مِنْ دِرْهَمٍ إِلَى عَشَرَةٍ او كه هغه ووايي: د فلانكي پر ما له يوه څخه تر لسو درهمو پوري دي أَوْ قَالَ: مَا بَيْنَ دِرْهَمٍ إِلَى عَشَرَةٍ يا ووايي: چي له يوه څخه د لسو درهمو په مينځ كي دي لَزِمَهُ تِسْعَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو پر هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز نهه دراهم لازميږي فَيَلْزَمُهُ الِابْتِدَاءُ وَمَا بَعْدَهُ وَتَسْقُطُ الْغَايَةُ لهذا پر هغه د ابتداء او تر هغه وروسته والا دراهم لازميږي او غايت [آخري درهم] ساقطيږي وَقَالَا ۞: يَلْزَمُهُ الْعَشَرَةُ كُلُّهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر هغه ټوله لس درهمه لازميږي فَيَدْخُلُ الْغَايَتَانِ نو دواړه غايتونه [ابتداء او انتهاء] داخليږي وَقَالَ زُفَرُ: يَلْزَمُهُ ثَمَانِيَةٌ وَلَا يَدْخُلُ الْغَايَتَانِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر هغه اته درهمه لازميږي او دواړه غايتونه نه داخليږي وَلَوْ قَالَ: لَهُ مِنْ دَارِي مَا بَيْنَ هَذَا الْحَائِطِ إِلَى هَذَا الْحَائِطِ او كه يو څوک ووايي: د فلانكي لپاره زما له كور څخه هغه حصه ده كوم چي د دې او دې دېوال په مينځ كي ده فَلَهُ مَا بَيْنَهُمَا نو د ده [مقرلهٗ] لپاره هغه حصه ده كوم چي د دواړو دېوالونو په مينځ كي واقع ده وَلَيْسَ لَهُ مِنَ الْحَائِطَيْنِ شَيْءٌ او له دواړو دېوالونو څخه د هغه لپاره هيڅ حصه نسته وَقَدْ مَرَّتِ الدَّلَائِلُ فِي الطَّلَاقِ او په كتاب الطلاق كي د دې دليلونه تېر سوي دي.

**اللغات**: ﴿تسقط﴾ د نصر د باب مضارع ده: ساقطېدل. ﴿غاية﴾ انتهاء. آخر. (د هر شي آخر ته وايي).

﴿حائط﴾ دېوال. جمع: حِيْطَان.

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص۴۰۳)، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۵۰۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۹۸]

**تشريح**: په دې عبارت کې درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو څوک ووايي "د فلانکي سړي پرما پنځه په پنځه کې واجب دي" او د هغه نيت د ضرب او حساب وي، نو پر هغه صرف پنځه درهمه لازميږي؛ ځکه چي په ضرب او حساب سره په اصل مال کې اضافه نه کيږي، بلکي د هغه په اجزاؤ کې اضافه کيږي. او د اجزاؤ د اضافې سره د اصل هيڅ تعلق نسته. ها! که چيري هغه ووايي چي زما نيت د "خمسة مع الخمسة" (د پنځه سره پنځه) دی، نو پر هغه لس درهمه لازميږي؛ ځکه چي په دې جمله کې د "خمسة مع الخمسة" احتمال هم سته.

(۲)... که يو سړی ووايي چي "پر ما له يوه څخه تر لسو پوري د فلانکي دراهم باندې دي" يا "د يوه او لسو په مينځ کې پر ما د هغه دراهم باندې دي"، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په دې اقرار کې د ابتداء او تر هغه وروسته والا دراهم شامليږي او غايت والا يعني لسم درهم نه پکښې شامليږي نو په مجموعي توګه پر هغه نهه درهمه واجبيږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز ابتداء او انتهاء والا او متوسط ټوله دراهم پکښې داخليږي او پر هغه ټوله لس درهمه واجبيږي، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز د ابتداء او انتهاء والا څخه بغير د مينځ اته دراهم پر واجبيږي.

(۳)... او که يو سړی داسې ووايي چي "زما په کور کې له دې دېوال څخه تر هغه دېواله پوري د فلانکي حصه ده"، نو په دې اقرار کې صرف هغه حصه (ځمکه) داخليږي کوم چي د هغه دوو دېوالونو په مينځ کې وي او د دېوالونو يوه حصه هم نه پکښې داخليږي بلکي فلانکي (مقر لهٗ) ته به صرف د مينځ حصه (ځمکه) ورکول کيږي. والله أعلم وعلمهٗ أتم



# فَصْلٌ

(دا) فصل (د حمل د مسائلو په بيان کې) دی

**تشريح**: څرنګه چي د حمل مسائل صورتاً او معناً له نورو مسئلو څخه جلا دي، نو ځکه هغوی په جلا فصل کې بيان سوي دي، او د مبسوط په اتباع کې د خيار يوه مسئله هم په دې فصل کې ذکر سوې ده.

## د حمل لپاره اقرار کول (حکم او تفصيل)

وَمَنْ قَالَ: لِحَمْلِ فُلَانَةَ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ فرمايي: او که څوک وايي: چي د فلانکې ښځې د حمل لپاره پر ما زر درهمه دي فَإِنْ قَالَ: أَوْصَى لَهُ فُلَانٌ أَوْ مَاتَ أَبُوهُ فَوَرِثَهُ نو [اوس] که هغه وايي چي فلانکي سړي د هغه حمل لپاره وصيت کړی دی يا د هغه حمل پلار مړ سو او هغه د دې زر درهمو وارث سوی دی فَالْإِقْرَارُ صَحِيحٌ نو اقرار صحيح دی لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِسَبَبٍ صَالِحٍ لِثُبُوتِ الْمِلْكِ لَهُ ځکه چي مُقِر د داسي سبب اقرار کړی دی کوم چي د هغه حمل لپاره د ملکيت ثابتېدلو صلاحت لري ثُمَّ إِذَا جَاءَتْ بِهِ فِي مُدَّةٍ حَيًّا يُعْلَمُ أَنَّهُ كَانَ قَائِمًا وَقْتَ الْإِقْرَارِ بيا که هغه فلانکۍ ښځه دا حمل په دومره مودت کي ژوندی وزېږوي چي له هغه څخه معلومه سي چي دا اقرار په وخت کي دا حمل موجود وو لَزِمَهُ نو اقرار [زر درهمه] پر مُقِر لازمېږي فَإِنْ جَاءَتْ بِهِ مَيِّتًا او که هغه ښځه دا حمل مړ وزېږوي فَالْمَالُ لِلْمُوصِي وَالْمُوَرِّثِ حَتَّى يُقْسَمُ بَيْنَ وَرَثَتِهِ نو مال د موصي او مورث لپاره دی او هغه به د وارثانو په مينځ کي تقسيمول کيږي لِأَنَّهُ إِقْرَارٌ فِي الْحَقِيقَةِ لَهُمَا ځکه چي دا په حقيقت کي د موصي او مورث لپاره اقرار دی وَإِنَّمَا يَنْتَقِلُ إِلَى الْجَنِينِ بَعْدَ الْوِلَادَةِ او د بچي وطرف ته خو تر پيداکېدلو وروسته هغه منتقل کيږي وَلَمْ يَنْتَقِلْ حالانکي [د بچي د مړه پيدا کېدلو په وجه د هغه وطرف ته] منتقل نه سو وَلَوْ جَاءَتْ بِوَلَدَيْنِ حَيَّيْنِ او که هغه ښځه دوه ژوندي بچيان وزېږوي فَالْمَالُ بَيْنَهُمَا نو مال [زر درهمه] د هغه دواړو په مينځ کي مشترک ګرځي وَلَوْ قَالَ: الْمُقِرُّ بَاعَنِي أَوْ أَقْرَضَنِي او که مُقِر [داسي] ووايي:

چې هغه حمل دا مال پر ما خرڅ کړی دی یا ما ته یې په قرض راکړی دی لَمْ يَلْزَمْهُ شَيْءٌ نو پر هغه هیڅ شی نه لازمیږي لِأَنَّهُ بَيَّنَ مُسْتَحِيلًا ځکه چې هغه یو محال [ناممکن] سبب بیان کړی دی قَالَ: فَإِنْ أَبْهَمَ الْإِقْرَارَ فرمایي: او که مُقر اقرار مبهم وساتي [او هیڅ سبب بیان نه کړي] لَمْ يَصِحَّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا اقرار صحیح نه دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞: يَصِحُّ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چې صحیح دی لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مِنَ الْحُجَجِ ځکه چې اقرار هم له حجتونو څخه [یو حجت] دی فَيَجِبُ إِعْمَالُهُ نو ځکه اقرار ته عمل ورکول [او پر هغه عمل کول] به واجب وي وَقَدْ أَمْكَنَ بِالْحَمْلِ عَلَى السَّبَبِ الصَّالِحِ او دا ممکن دي، پر سبب صالح په حمل کولو سره [یعني دلته پر اقرار عمل کول ممکن دي. په دې توګه چې اقرار پر صلاحیت لرونکي سبب حمل کړی سي] وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ الْإِقْرَارَ مُطْلَقَهُ يَنْصَرِفُ إِلَى الْإِقْرَارِ بِسَبَبِ التِّجَارَةِ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې مطلق اقرار د هغه اقرار وطرف ته راجع کیږي کوم چې د تجارت په سبب سره وي وَلِهَذَا حُمِلَ إِقْرَارُ الْعَبْدِ الْمَأْذُونِ لَهُ وَأَحَدِ الْمُتَفَاوِضِينَ عَلَيْهِ او په همدې وجه د مأذون لهٔ غلام او د یوه مفاوض شریک اقرار پر همدې اقرار بسبب التجارت حمل کیږي فَيَصِيرُ كَمَا إِذَا صَرَّحَ بِهِ نو دا به داسي وي لکه مُقر چې د هغه تصریح وکړي [یعني لکه مُقر چې صراحتاً د سببِ تجارت اقرار وکړي] قَالَ: وَمَنْ أَقَرَّ بِحَمْلِ جَارِيَةٍ أَوْ حَمْلِ شَاةٍ لِرَجُلٍ فرمایي: او که یو څوک د بل سړي لپاره د مینځې یا د بزې د حمل اقرار وکړي صَحَّ إِقْرَارُهُ نو د هغه اقرار صحیح دی وَلَزِمَهُ او دا اقرار پر هغه لازم دی لِأَنَّ لَهُ وَجْهًا صَحِيحًا وَهُوَ الْوَصِيَّةُ بِهِ مِنْ جِهَةِ غَيْرِهِ ځکه چې د دې اقرار لپاره صحیح وجه موجود ده او هغه د بل چا له طرف د دې حمل وصیت دی [یعني صحیح وجه دا ده چې بل چا به د هغه سړي لپاره د دې حمل وصیت کړی وي] فَحُمِلَ عَلَيْهِ نو ځکه دا اقرار به پر هغه محمول کیږي قَالَ: وَمَنْ أَقَرَّ بِشَرْطِ الْخِيَارِ فرمایي: او که څوک د خیار شرط اقرار وکړي بَطَلَ الشَّرْطُ نو شرط [خیار] باطلیږي لِأَنَّ الْخِيَارَ لِلْفَسْخِ ځکه چې خیار د فسخ

۞ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۲۰۴)، وكذا في نتائج الأفكار (ج:۷، ص:۳۳۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۹۹]

لپاره وي وَالْإِخْبَارُ لَا يَحْتَمِلُهُ او إخبار [اقرار] د فسخ احتمال نه لري وَلَزِمَهُ الْمَالُ او پر مُقِر به مال لازميږي لِوُجُودِ الصِّيغَةِ الْمُلْزِمَةِ ځکه چي لازمونکی لفظ "عَلَيَّ" موجود دی وَلَمْ يَنْعَدِمْ بِهَذَا الشَّرْطِ الْبَاطِلِ او دالزوم د دغه باطل شرط په وجه نه باطليږي.

**اللغات**: ﴿حمل﴾ هغه بچی چي د مور په خېټه (نس) کي وي، او همدا د جنين معنیٰ ده. ﴿إعمال﴾ د افعال د باب مصدر دی: عمل ورکول. ﴿متفاوضَين﴾ د شرکت مفاوضه کونکي. ﴿إخبار﴾ د افعال د باب مصدر دی: خبر ورکول. او اقرار إخبار دی ځکه چي مُقِر پر ځان د يو حق ثابتېدلو خبر ورکوي (چي پر ما د فلانکي دا حق باندي دی).

**تشريح**: په دې عبارت کي ټوله څلور مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو سړی ووايي "د فلانکۍ ښځي په نس کي چي کوم حمل دی، د هغه لپاره پر ما زر درهمه واجبُ الاداء دي"، او دا سړی د واجبېدلو سبب هم بيان کړي او داسي ووايي چي "دا زر درهمه هغه حمل ته د خپل پلار له ميراث څخه حاصل سوي دي" يا داسي ووايي چي "فلانکي سړي (مثلا خالد) د هغه لپاره د دې دراهمو وصيت کړی وو"، نو څرنګه چي دلته مُقِر د حمل د ملکيت په حواله سره د سبب صحيح (سببِ صالح) اقرار کړی دی، نو ځکه دا اقرار صحيح دی، بيا که تر اقرار وروسته هغه فلانکۍ ښځه په دومره مودت کي دا حمل (بچی) وزېږوي چي له هغه څخه دا معلومه سي چي د اقرار په وخت کي حمل موجود وو، يعني تر شپږو مياشتو په کم مودت کي هغه ښځه بچی وزېږوي، نو پر مُقِر د هغه بچي لپاره زر درهمه لازميږي. او که چيري بچی مړ پيدا سي، نو هغه دراهم به يا موصي (وَصيت کونکي) ته ورکول کيږي يا به د مورث (پلار) وارثانو ته وروکول کيږي؛ ځکه چي تر ولادت مخکي هغه مال په حقيقت کي صرف د موصي يا د مورث دی، او حمل (بچی) تر ولادت وروسته صرف د ژوند په صورت کي د هغه مستحق ګرځي او د مړه پيدا کېدلو په صورت کي د ده وطرف ته د هغه انتقال ناممکن او محال دی. نو ځکه په دې صورت کي به دا بچی د هغه مستحق نه ګرځي.

او که هغه ښځه دوه بچيان وزېږوي او دواړه ژوندي وي، نو مُقِر به مال د دواړو په مينځ کي مشترک ګرځي؛ ځکه چي اقرار د حمل لپاره دی، او هغوی دواړه د اقرار په وخت کي حمل وه؛ ځکه دواړه يو حمل دی.

او که مُقِر داسي ووايي چي "پر ما د دې حمل لپاره زر درهمه واجب دي، په دې وجه چي هغه زما څخه د دې دراهمو په عوض کي شی رانيولی دی يا ما ته يې هغه په قرض راکړي دي"، نو په دې صورت پر مُقِر هيڅ شی نه لازميږي؛ ځکه چي د حمل بيع وشراء کول او د هغه قرض ورکول

ناممکن دي (ځکه دا ښکاره خبره ده چي په نس کي موجود حمل کاروبار او تجارت نه سي کولای او نه چا ته قرض ورکولای سي)، نو ځکه د مُقِر کلام به لغو او باطل وي او د هغه وطرف ته به هيڅ توجه نه کيږي.

(۲)... او که چيري مُقِر د حمل لپاره صرف اقرار وکړي او سبب بيان نه کړي بلکي هغه مبهم پريږدي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د هغه اقرار صحيح نه دی همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د هغه اقرار صحيح دی همدا د امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله قول دی. (بنايه ج:۸. ص:۵۶۱).

د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي اقرار له شرعي حجتونو څخه يو حجت دی او څرنګه چي هغه دلته د عاقل او بالغ کس له طرفه صادر سوی دی، نو ځکه حتی الامکان به پر هغه عمل کيږي، او دلته سبب صالح (وصيت يا ميراث) د اقرار سبب ګرځول او په اقرار عمل کول ممکن دي (لکه په اوله مسئله کي چي همداسي سوي دي)، نو ځکه په دې حواله سره به اقرار صحيح منل کيږي.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي دلته مُقِر مطلق اقرار کړی دی. او مطلق اقرار د سبب تجارت وطرف ته ګرځي. نو ځکه دا اقرار به هم د سبب تجارت وطرف ته منتقل کيږي او داسي به وي لکه صراحتاً د سبب تجارت اقرار کول. حال دا چي د حمل تجارت (بيع وشراء) کول ناممکن دي. نو ځکه به دا اقرار لغو او باطل وي.

(۳)... که چيري (مثلا) نعمان داسي اقرار وکړي چي "زما د مينځي يا زما د بزې په نس کي چي کوم بچی دی هغه د خالد دی". نو دا اقرار بالاتفاق صحيح دی که څه هم مُقِر (نعمان) د هغه هيڅ سبب بيان نه کړي: ځکه چي د دې اقرار صحيح وجه ممکن ده: په دې توګه چي کېدای سي يو ميت (مړسوي کس) به د دې وصيت کړی وي او د هغه وارث (مثلا ادريس) به اقرار کړی وي چي دا حمل د فلانکي (خالد) دی. نو ځکه دا صورت به پر جواز حمل کيږي.

(۴)... که چيري ادريس ووايي چي پر "ما د زيد سل روپۍ قرض باندي دی "يا"ما له هغه څخه سل روپۍ غصب کړي دي ليکن په دې شرط چي ما ته به په خپل اقرار کي درې ورځي اختيار وي. که چيري په دغه دريو ورځو کي زما خوښه سي نو هغه روپۍ به پر ما لازميږي. کنې نه به لازميږي". نو فرمايي چي په دې صورت کي اقرار صحيح کيږي (يعني پر هغه سل روپۍ لازميږي) او خيار باطليږي: ځکه چي د هغه خيار تر اقرار وروسته د اقرار فسخ کولو لپاره دی (يعني په دې سره ادريس خپل ثابت سوی اقرار فسخ کوي). حال دا چي تر ثابتېدلو وروسته اقرار نه فسخ کيږي. نو ځکه د مُقِر (ادريس) خيار شرط به فسخ کيږي او اقرار به باقي پاته وي. نو نتيجه به دا سي چي مُقِر کوم د التزام لفظ "عَلَيَّ" ويلی دی. پر هغه په عمل کولو سره به پر مُقِر سل روپۍ واجبُ الاداء وي.



# بَابُ الإِسْتِثْنَاءِ

(دا) باب د استثناء کولو (په بیان کي) دی

**تشریح**: کوم کلام چي له استثاء څخه بغیر وي، ښکاره خبره ده چي په هغه کي تغیّر نه وي، او په کوم کلام کي چي استثناء وي، په هغه کي تغیّر وي، او له تغیّر څخه د کلام خالي والي اصل دی، نو ځکه یې غیرِ استثناء والا اقرار له استثناء والا اقرار څخه مخکي بیان کړی دی.

## د استثناء حکم او شرط

قَالَ: وَمَنِ اسْتَثْنٰى مُتَّصِلًا بِإِقْرَارِهِ فرمایي: او که څوک د خپل اقرار سره متصل استثناء وکړه صَحَّ الِاسْتِثْنَاءُ وَلَزِمَهُ الْبَاقِيْ نو دا استثناء صحیح کیږي او باقي [مابقی مقربه] پر هغه لازمیږي لِأَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ مَعَ الْجُمْلَةِ عِبَارَةٌ عَنِ الْبَاقِيْ ځکه چي استثناء د ټوله [صدر] سره له باقي [مابقي] څخه عبارت ده وَلٰكِنْ لَا بُدَّ مِنَ الِاتِّصَالِ لیکن [د استثناء د صحیح والي لپاره] متصل کېدل ضروري دي [یعني دا ضروري دي چي هغه به د اقرار سره متصل وي] وَسَوَاءٌ اسْتَثْنَى الْأَقَلَّ أَوِ الْأَكْثَرَ او برابره ده مُقر د کم مقدار استثناء وکړي یا د زیات [یعني د استثناء د صحیح والي لپاره متصلاً کېدل ضروري دي، برابره ده استثناء د قلیل مقدار او که د کثیر] فَإِنِ اسْتَثْنَى الْجَمِيعَ او که هغه د کل استثناء وکړي لَزِمَهُ الْإِقْرَارُ وَبَطَلَ الِاسْتِثْنَاءُ نو پر هغه اقرار لازمیږي او استثناء باطلیږي لِأَنَّهُ تَكَلُّمٌ بِالْحَاصِلِ بَعْدَ الثُّنْيَا ځکه تر استثناء [مستثنیٰ] وروسته چي کوم مقدار باقي پاته سي په هغه سره تکلم کولو [د هغه ویلو] ته استثناء وایي وَلَا حَاصِلَ بَعْدَهُ او د کل له استثناء څخه وروسته هیڅ باقي نه پاتیږي فَيَكُوْنُ رُجُوْعًا نو ځکه د کل استثناء کول به [له خپل اقرار څخه] رجوع کول وي وَقَدْ مَرَّ الْوَجْهُ فِي الطَّلَاقِ او په کتاب الطلاق کي د دې دلیل تېر سوی دی.

**اللغات**: ﴿استثناء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: جلا کول، خارجول. د استثناء اصطلاحي معنی ده: تَكَلُّمٌ بِالْبَاقِيْ بَعْدَ الثُّنْيَا. ﴿عبارة﴾ بیان. ﴿الثُّنْيَا﴾ والثَّنْوٰی: استثناء (استثناء کول). ﴿مستثنٰی﴾ د کوم څه استثناء چي وسي، کوم څه چي جلا کړی سي، مستثنٰی منه: له کوم شي څخه چي

استثناء وسي، مثلاً که يو څوک ووايي: لِفُلَانٍ عَلَيَّ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ إِلَّا خَمْسَةً (پر ما د فلانکي لس درهمه باندي دي ماسواله پنځو درهمو) نو په دې جمله کي "عشرة" (لس درهمه) مستثنیٰ منه ده او "خمسة" (پنځه درهمه) مستثنیٰ ده.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي له اقرار څخه استثناء کول صحيح او جائز دي، لېکن د استثناء د صحت (صحيح والي) لپاره دوه شيان شرط دي: ① استثناء به متصل وي. ② او د کل استثناء به نه وي؛ د استثناء د صحيح کېدلو وجه او علت دا دی چي استثناء هم د متکلم د اول عبارت (صدر) جزء او حصه ګرځي، مثلاً که يو څوک ووايي "لِفُلَانٍ عَلَيَّ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ إِلَّا خَمْسَةً"، نو دا پوره يوه جمله ده او د دې مطلب دا دی چي د لسو درهمو څخه پر ما د فلانکي پنځه درهمه باندي دي يعني پر ما صرف پنځه درهمه لازم دي.

د دويم شرط حاصل دا دی چي له کل څخه به د کل استثناء نه وي، مثلاً داسي به نه وايي "لِفُلَانٍ عَلَيَّ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ إِلَّا عَشَرَةً" (پر ما د فلانکي لس درهمه باندي دي ماسوا له لسو درهمو)؛ ځکه چي تر استثناء وروسته څه مقدار باقي پاتېدل پکار دي چي له هغه څخه مستثنیٰ او مستثنیٰ منه معلوم کړی سي، او له کل څخه د کل استثناء کول په حقيقت کي رجوع او انکار دی، استثناء نه ده، نو ځکه هغه صحيح نه دي.

## مستثنیٰ د مستثنیٰ منه له جنس څخه کېدل

| |
|---|
| وَلَوْقَالَ: لَهُ عَلَيَّ مِائَةُ دِرْهَمٍ إِلَّا دِينَارًا أَوْ إِلَّا قَفِيزَ حِنْطَةٍ او که يو څوک ووايي: چي د هغه [فلانکي] پر ما سل درهمه دي ماسوا له يوه ديناره يا ماسوا له يوه قفيز غنمو لَزِمَهُ مِائَةُ دِرْهَمٍ إِلَّا قِيمَةَ الدِّينَارِ أَوِ الْقَفِيزِ نو پر هغه [مُقِر] د يوه دينار يا قفيز له قيمت څخه بغير نور ټول له سل درهمه لازميږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَلَوْقَالَ: لَهُ عَلَيَّ مِائَةُ دِرْهَمٍ إِلَّا ثَوْبًا او که ووايي: چي د هغه پر ما سل درهمه دي ماسوا له يوې کپړې لَمْ يَصِحَّ الِاسْتِثْنَاءُ نو دا استثناء صحيح نه ده وَقَالَ مُحَمَّدٌ ❀: لَا يَصِحُّ فِيهِمَا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: په دې دواړو صورتونو |

❀ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۵۱۰)، وكذا في مجمع الأنهر (ج:۳، ص:۴۰۷). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۰۰]

کې استثناء نه صحیح کیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَصِحُّ فِيهِمَا او مام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: په دواړو صورتونو کې صحیح کیږي وَلِمُحَمَّدٍ: أَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ مَا لَوْلَاهُ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې استثناء داسې شی ده چې که هغه نه وای لَدَخَلَ تَحْتَ اللَّفْظِ نو مستثنیٰ به تر لفظ لاندې داخل سوی وای [په بله وینا: د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې که استثناء نه وسي نو د هغه ما بعد په ماقبل کې داخلیږي] وَهٰذَا لَا يَتَحَقَّقُ فِي خِلَافِ الْجِنْسِ او دا خبره په مختلف جنس والا شیانو کې نه سي ثابتېدای وَلِلشَّافِعِيِّ: أَنَّهُمَا اتَّحَدَا جِنْسًا مِنْ حَيْثُ الْمَالِيَّةُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې مستثنیٰ او مستثنیٰ منه دواړه د مالیت په اعتبار سره متحد الجنس دي وَلَهُمَا: أَنَّ الْمُجَانَسَةَ فِي الْأَوَّلِ ثَابِتَةٌ مِنْ حَيْثُ الثَّمَنِيَّةُ او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې په اول کې د ثمنیت په اعتبار سره مجانست ثابت دی وَهٰذَا فِي الدِّينَارِ ظَاهِرٌ او دا د دینار په حق کې ښکاره ده وَالْمَكِيلُ وَالْمَوْزُونُ أَوْصَافُهُمَا أَثْمَانٌ او د مکیلي او موزوني شي اوصاف ثمن وي أَمَّا الثَّوْبُ فَلَيْسَ بِثَمَنٍ أَصْلًا او پاته سو ثوب [کپړه] نو هغه بالکل ثمن نه ده وَلِهٰذَا لَا يَجِبُ بِمُطْلَقِ عَقْدِ الْمُعَاوَضَةِ او په همدې وجه په مطلق عقد معاوضه کې ثوب نه واجبیږي وَمَا يَكُونُ ثَمَنًا صَلُحَ مُقَدِّرًا لِلدَّرَاهِمِ او کوم شی چې ثمن کېدای سي، په دراهمو سره د هغه اندازه هم کېدای سي [په بله وینا: او کوم شی چې ثمن وي. هغه په دراهمو سره د اندازه کېدلو (متعین کېدلو) صلاحیت لري] فَصَارَ مُسْتَثْنًى مِنَ الدَّرَاهِمِ نو ځکه له دراهمو څخه هغومره مقدار مستثنیٰ سو وَمَا لَا يَكُونُ ثَمَنًا لَا يَصْلُحُ مُقَدِّرًا او کوم شی چې ثمن نه سي جوړېدای، په دراهمو سره د هغه اندازه هم نه سي کېدای فَبَقِيَ الْمُسْتَثْنَى مِنَ الدَّرَاهِمِ مَجْهُولًا نو ځکه له دراهمو څخه مستثنیٰ کړه شی مجهوله پاته سو فَلَا يَصِحُّ لهذا استثناء به صحیح نه وي.

**اللغات**: ﴿قفیز﴾ د پخوا زماني يو پیمانه ده، شرعي قفیز تقریباً ۱۲ صاعه کیږي. ﴿اتحدا﴾ د افتعال له بابه د تثنیه مذکر غائب ماضي صیغه ده: متحد کېدل، يو کېدل. ﴿مکیل﴾ هغه شی کوم چې په کَیل (معلوم لوښي او ظرف) سره اندازه کیږي (پیمانه کیږي). ﴿موزون﴾ هغه شی کوم چې په وزن سره اندازه کیږي (تلل کیږي).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک ووايي چي "پر ما د فلانکي سل درهمه باندي دي ما سوا له يوه ديناره، يا ما سوا له يوه قفيز غنمو"، نو استثناء صحيح کيږي، او د يوه دينار يا د يوه قفيز د قيمت په اندازه دراهم به له مستثنیٰ منه يعني له سلو څخه درهمو څخه ايستل کيږي او مابقي دراهم به پر هغه واجبُ الاداء وي.

او که هغه داسي ووايي: "د فلانکي پر ما سل درهمه باندي دي ما سوا له يوې کپړې"، نو استثناء نه صحيح کيږي او پر مُقِر پوره سل درهمه واجبيږي، دا حکم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دواړو صورتونو کي استثناء نه صحيح کيږي او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دواړو صورتونو کي صحيح کيږي.

**د امام محمد دليل**: دا دی چي په دواړو صورتونو کي مستثنیٰ منه د مستثنیٰ له جنس څخه نه ده؛ ځکه ښکاره خبره ده چي نه دينار د درهم له جنس څخه دی او نه کپړه د درهم له جنس څخه ده، او صورت حال دا دی چي که هغوی مستثنیٰ سوي نه وای نو هغوی به هم په مستثنیٰ منه يعني په "مائة درهم" کي داخل وای، لېکن په استثناء کولو سره هغوی جلا سول، نو ځکه دلته به مستثنیٰ په مستثنیٰ منه کي داخليږي او پر مُقِر به صرف سل درهمه واجبيږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي په دې مسئله کي مستثنیٰ منه هم مال دی او مستثنیٰ هم مال دی، او د ماليت (مال کېدلو) په اعتبار سره دواړه متحد الجنس دي، نو ځکه په دواړو صورتونو کي به د ماليت په اعتبار سره استثناء صحيح گرځول کيږي.

**د شيخينو دليل**: دا دی چي په اول صورت يعني د "إِلَّا دِيْنَارًا، او إِلَّا قَفِيْزَ حِنْطَةٍ" په صورت کي د ثمنيت (ثمن کېدلو) په اعتبار سره اتحاد الجنس موجود دی؛ ځکه څرنگه چي دينار ثمن دی، همداسي د ما وجب في الذمه په اعتبا سره قفيز هم ثمن دی: ځکه چي حِنْطَة (غنم) مکيلي دي يا موزوني دي، او مکيلي او موزوني دواړه د اوصافو په اعتبار سره مُعيّن وي، مثلاً که يو څوک مکيلي يا موزوني شی ثمن وگرځوي، نو د هغه سره عقد متعلق کيږي، او دا د ثمنيت واضح دليل دی. په خلاف د ثوب؛ ځکه چي په هغه کي هيڅ ډول هم ثمنيت نسته، همدا وجه ده چي ثوب په مطلق عقد معاوضه کي هم د ثمن په توگه نه واجبيږي، او قاعده دا ده چي کوم شی ثمن جوړېدای سي، هغه د دراهمو لپاره مقدر هم کېدای سي يعني د ثمنيت او ماليت په اعتبار د دراهمو سره د هغه موازنه کېدای سي. لهذا د دينار او حنطه والا په صورت کي به د ماليت په اعتبار مستثنیٰ له مستثنیٰ منه څخه جلا کول کيږي او استثناء به صحيح کيږي، لېکن څرنگه چي د ثوب والا په صورت کي تقدير

(اندازه کول) مشکل او متعذر دي، نو ځکه مستثنیٰ کرده دراهم به مجهول پاتـه وي او پـه خپله مستثنیٰ منه به هم مجهول پاته وي، او دا ښکاره خبره ده چي د مستثنیٰ او مستثنیٰ منه جهالت د استثناء له صحت څخه مانع دی، نو ځکه په دې صورت کي استثناء صحیح نه ده.

## له اقرار کولو څخه وروسته "انشاء الله" ویل

قَالَ: وَمَنْ أَقَرَّ بِحَقٍّ وَقَالَ إِنْ شَاءَ اللهُ مُتَّصِلًا بِإِقْرَارِهِ فرمايي: او كه څوک د يو حق اقرار وكړي او د خپل اقرار سره متصل ووايي "انشاء الله" (كه چيري د الله خوښه وي) لَا يَلْزَمُهُ الْإِقْرَارُ نو پر هغه اقرار نه لازميږي لِأَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ بِمَشِيئَةِ اللهِ إِمَّا إِبْطَالٌ أَوْ تَعْلِيقٌ ځكه چي په الهي مشيت [خوښه] سره استثناء كول يا ابطال دى يا تعليق دى [يعني له هغه څخه به يا ابطال مراد وي يا تعليق] فَإِنْ كَانَ الْأَوَّلُ كه چيري اول وي [يعني ابطال څني مراد وي] فَقَدْ بَطَلَ نو اقرار باطل سو وَإِنْ كَانَ الثَّانِيَ او كه دويم وي [يعني تعيلق څنې مراد وي] فَكَذٰلِكَ نو هم اقرار باطليږي إِمَّا لِأَنَّ الْإِقْرَارَ لَا يَحْتَمِلُ التَّعْلِيقَ بِالشَّرْطِ يا خو په دې وجه چي اقرار پر شرط د معلق كېدلو احتمال نه لري أَوْ لِأَنَّهُ شَرْطٌ لَا يُوقَفُ عَلَيْهِ يا په دې وجه چي هغه [يعني د الهي مشيت شرط] داسي شرط دى چي پر هغه وقوف [خبر] نه سي حاصلېداى [يعني هغه نه سي معلومېداى او په هغه څوک واقف كېداى نه سي] كَمَا ذَكَرْنَا فِي الطَّلَاقِ لكه څرنګه چي په طلاق كي موږ ذكر كړه بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: لِفُلَانٍ عَلَيَّ مِائَةُ دِرْهَمٍ إِذَا مِتُّ أَوْ إِذَا جَاءَ رَأْسُ الشَّهْرِ أَوْ إِذَا أَفْطَرَ النَّاسُ په خلاف د هغه صورت كله چي مُقِر [داسي] ووايي: د فلانكي پر ما سل درهمه دي كله چي زه مړسم يا كله چي د مياشتي سر راسي يا كله چي خلك روژه ماته كړي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى بَيَانِ الْمُدَّةِ ځكه چي دا د مودت بيانولو په معنىٰ سره دي فَيَكُونُ تَأْجِيلًا لَا تَعْلِيقًا نو دا به تاجيل وي، نه تعليق حَتَّى لَوْ كَذَّبَهُ الْمُقَرُّ لَهُ فِي الْأَجَلِ همدا وجه ده كه مقر لهٗ د اجل [ميعاد] په هكله د مُقِر تكذيب وكړي يَكُونُ الْمَالُ حَالًّا نو مال في الحاله واجبيږي.

**اللغات**: ﴿مشيئة﴾ او مشيّة: خوښه. ﴿أفطر﴾ د افعال د باب ماضي ده: روژه ماتول. ﴿تعليق﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: معلق كول. ﴿تأجيل﴾ دا هم مخكنۍ صيغه ده: مؤجل كول. ميعادي كول. د يو شي لپاره ميعاد (مودت) ټاكل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک د بل چا لپاره د يو حق اقرار وکړي لېکن د اقرار سره متصل "إن‌شاء الله" ووايي. مثلاً داسي ووايي "لِفُلَانٍ عَلَيَّ عَشَرَةُ دِيْنَارٍ إِنْ شَاءَ اللهُ". نو دا استثناء صحيح کيږي او اقرار باطليږي يعني پر مُقِر يو دينار هم نه لازميږي؛ ځکه چي د الله په مشيت او خوښي سره د استثناء کولو دوه حالتونه ده: ① يو دا چي په دې استثناء سره د مخکني کلام باطلول مقصود وي، ② او بل دا چي د الله پر مشيت د هغه معلق کول مقصود وي، او دا دواړه باطل دي: ځکه په اول صورت (يعني د ابطال په صورت) کي ښکاره خبره ده چي مُقِر خپل کلام باطلوي، او د تعليق په صورت کي په دې وجه اقرار باطل دی چي اقرار إخبار دی (يعني مُقِر پر ځان د يو حق واجبېدلو خبر ورکوي. لکه دلته چي هغه د لسو دينارو خبر ورکوي)، او إخبار (خبر ورکول) پر شرط نه معلق کيږي بلکي په خبر ورکولو کي يا صدق وي يا کذب وي او معامله واضحه وي. دويمه خبره دا ده چي د الله پر مشيت معلق کول داسي شرط دی چي په هغه واقف کېدل (خبرېدل) ممکن نه دي. لهٰذا په دې حواله سره د هغه تعليق صحيح نه دی. ها! که مُقِر داسي ووايي چي "پر ما د فلانکي سل درهمه واجب دي کله چي زه مړ سم يا کله چي د مياشتي اوله شپه راسي يا کله چي اختر سي"، نو حکم دا دی چي کله ذکر سوی وخت راسي نو سمدستي پر مُقِر سل درهمه واجبيږي؛ ځکه چي "إِذَا مِتُّ" او داسي نور د مودت بيانولو (مودت ټاکولو) لپاره دي او دا تاجيل دی، تعليق نه دی؛ همدا وجه ده که مُقَرلهٗ د مودت (ميعاد) په باره کي د مُقِر تکذيب وکړي يعني مُقِر ته ووايي چي "زما في الحاله پر تا سل درهمه واجب دي، نه تر مرګ وروسته..."، نو د مقرلهٗ قول معتبر دی او پر مُقِر في الحاله مال (سل درهمه) واجبيږي.

## د کور د اقرار کولو په صورت کي د هغه د عمارت (ودانۍ) استثناء کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ أَقَرَّ بِدَارٍ وَاسْتَثْنٰى بِنَاءَهَا لِنَفْسِهٖ فرمايي: او که څوک [د بل چا لپاره] د کور اقرار وکړي او د خپل ځان لپاره د هغه کور د بناء [ودانۍ] استثناء وکړي فَلِلْمُقَرِّ لَهُ الدَّارُ وَالْبِنَاءُ نو کور او د هغه بناء دواړه د مقرلهٗ لپاره دي لِأَنَّ الْبِنَاءَ دَاخِلٌ فِي هٰذَا الْإِقْرَارِ مَعْنًى لَا لَفْظًا ځکه چي په دې اقرار کي بناء معناً داخله ده، لفظاً داخله نه ده وَالِاسْتِثْنَاءُ تَصَرُّفٌ فِي الْمَلْفُوْظِ حالانکي استثناء په ملفوظ [ظاهري الفاظو کي] تصرف کول دي وَالْفَصُّ فِي الْخَاتَمِ وَالنَّخْلَةُ فِي الْبُسْتَانِ نَظِيْرُ الْبِنَاءِ فِي الدَّارِ او په ګوتمۍ کي غمی او په باغ کي درخته داسي دي لکه بناء په کور کي لِأَنَّهٗ يَدْخُلُ فِيْهِ تَبَعًا لَا لَفْظًا ځکه چي هغه

ایعني غمی او درخته] په دې [کوټې او باغ] کې تبعاً داخلیږي، نه لفظاً بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: إِلَّا ثُلُثَهَا أَوْ إِلَّا بَيْتًا مِنْهَا په خلاف د هغه صورت کله چې مُقِر ووایي: ماسوا د کور له دریمې حصې یا ما سوا د کور له یوې خونې لِأَنَّهُ دَاخِلٌ فِيهِ لَفْظًا ځکه چې هغه [دریمه حصه او خونه] په کور کې لفظاً داخل دي نه تبعاً] وَلَوْ قَالَ: بِنَاءُ هَذَا الدَّارِ لِي وَالْعَرْصَةُ لِفُلَانٍ او که چیرې مُقِر [داسې] ووایي: د دې کور بناء زما ده او صحن [غولی] د فلانکي دی فَهُوَ كَمَا قَالَ نو دا به د مُقِر د قول مطابق وي [یعني بناء د هغه لپاره ده او صحن د فلانکي لپاره دی] لِأَنَّ الْعَرْصَةَ عِبَارَةٌ عَنِ الْبُقْعَةِ دُونَ الْبِنَاءِ ځکه چې "عرصه" له خالي ځمکې څخه عبارت ده، نه له بناء څخه [یعني "عرصه" خالي میدان [صحن] ته وایي. د کور ودانۍ ته نه وایي] فَكَأَنَّهُ قَالَ: بَيَاضُ هَذِهِ الْأَرْضِ دُونَ الْبِنَاءِ لِفُلَانٍ نو ګواکې هغه وویل: چې د دې ځمکې خالي ځای د فلانکي لپاره دی، نه بناء بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: مَكَانُ الْعَرْصَةِ أَرْضًا په خلاف د هغه صورت کله چې هغه د "عرصة" [صحن] پر ځای "أرض" ووایي حَيْثُ يَكُونُ الْبِنَاءُ لِلْمُقَرِّ لَهُ نو په دې صورت کې بناء هم د مقر لهٗ لپاره ده لِأَنَّ الْإِقْرَارَ بِالْأَرْضِ إِقْرَارٌ بِالْبِنَاءِ ځکه چې د ځمکې اقرار کول د بناء اقرار هم دی كَالْإِقْرَارِ بِالدَّارِ لکه د کور اقرار کول [چې د بناء اقرار هم دی].

**اللغات**: ﴿بناء﴾ د کور عمارت او ودانۍ، یعني په کور کې جوړ سوي ځایونه لکه خونې (کمرې) او داسې نور. ﴿نخلة﴾ د خرما درخته. ﴿بستان﴾ باغ. ﴿عَرْصَة﴾ د کور صحن، غولی، هغه خالي ځای (میدان) کوم چې د کور په مینځ کې وي. ﴿بُقْعَة﴾ د ځمکې ټوټه (ټوکړه). ﴿بياض﴾ سپین والي، مراد: خالي ځمکه.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی د بل چا (مثلاً د خالد) لپاره د کور اقرار وکړي لیکن د کور بناء د ځان لپاره استثناء کړي، نو دا اقرار صحیح کیږي او استثناء باطلیږي یعني کور او بناء دواړه د مقرلهٗ (خالد) لپاره ګرځي؛ ځکه چې په کور کې بناء تبعاً داخله ده او د کور اقرار کول د بناء اقرار هم دی؛ لهذا کله چې بناء په کور کې تبعاً او معناً داخله ده، نه لفظاً. حال دا چې استثناء د هماغه شي صحیح کیږي چې هغه لره مستثنیٰ منه لفظاً شامله وي. نو په دې وجه دلته استثناء نه صحیح کیږي، لهذا کله چې استثناء صحیح نه سوه، نو ځکه کور او بناء به دواړه مقرلهٗ ته ورکول کیږي.

همدا حکم په هغه صورت کې هم دی کله چې يو څوک په اقرار کې له ګوتمۍ څخه د غمي استثناء وکړي يا له باغ څخه د درختې استثناء وکړي. يعنې په دې دواړو صورتونو کې هم اقرار صحيح کيږي او استثناء باطليږي؛ ځکه چې په ګوتمۍ کې غمی او په باغ کې درخته تبعاً داخل دي، نه لفظاً. ها! که چيرې مُقِر داسې ووايي "هٰذِهِ الدَّارُ لِفُلَانٍ إِلَّا ثُلُثَهَا أَوْ إِلَّا بَيْتًا مِنْهَا" (له دريمې حصې يا له يوې خونې څخه بغير ټوله کور د فلانکي دی)، نو استثناء صحيح کيږي؛ ځکه چې ثلث (دريمه حصه) او بيت (خونه) دواړه لفظاً په دَار کې داخل دي او د مستثنیٰ منه (دَار) په ذات او ماهيت کې شامل دي. نو ځکه د هغوی استثناء صحيح کيږي.

ولو قال بناء هذه الدار إلخ: فرمايي که مُقِر داسې ووايي چې "د دې کور بناء زما ده او صحن يې د فلانکي دی"، نو د هغه قول صحيح او معتبر دی او استثناء صحيح کيږي. يعنې بناء د هغه ده او صحن د فلانکي دی؛ ځکه چې صحن د خالي ځمکې (ميدان) نوم دی او خالي ځمکه په دَار کې داخله نه ده. نو ګواکې مُقِر داسې ووېل چې "د دې کور خالي ځمکه د فلانکي ده او بناء زما ده". لېکن که هغه د "عرصة" (صحن) پر ځای "أرض (ځمکه) ووايي، نو په دې صورت کې بناء هم د مقر لهٗ ده؛ ځکه چې د ځمکې په اقرار کې د بناء اقرار هم شامل دی لکه څرنګه چې د کور (دَار) په اقرار کې د بناء اقرار شامل دی.

## تر اقرار وروسته د اقرار په سبب کې اختلاف کول (حکم او تفصيل)

وَلَوْ قَالَ: لَهُ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ اشْتَرَيْتُهُ مِنْهُ وَلَمْ أَقْبِضْهُ او که يو څوک ووايي: چې د فلانکي پر ما د هغه غلام د ثمن زر درهمه باندې دي کوم چې ما له ده څخه رانيولی وو لېکن پر هغه مې قبضه کړې نه وه فَإِنْ ذَكَرَ عَبْدًا بِعَيْنِهِ نو که [په دې صورت کې] مُقِر يو مُعَيَّن غلام ذکر کړي قِيلَ لِلْمُقَرِّ لَهُ: إِنْ شِئْتَ فَسَلِّمِ الْعَبْدَ وَخُذِ الْأَلْفَ وَإِلَّا فَلَا شَيْءَ لَكَ نو مقرلهٗ ته به ووېل کيږي: چې که ستا خوښه وي نو غلام [هغه ته] وسپاره! او زر درهمه واخله!، کنې ستا لپاره هيڅ شی نشته قَالَ: وَهٰذَا عَلَى وُجُوهٍ: أَحَدُهَا هٰذَا وَهُوَ أَنْ يُصَدِّقَهُ وَيُسَلِّمَ الْعَبْدَ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا مسئله پر څو صورتونو [منقسم] ده: [۱] يو صورت خو همدا دی چې مقرلهٗ د مُقِر تصديق وکړي او [هغه ته] غلام وسپاري وَجَوَابُهُ مَا ذَكَرْنَا او د دې جواب هغه دی کوم چې موږ ذکر کړی [يعنې: قيل للمقرلهٗ...] لِأَنَّ الثَّابِتَ بِتَصَادُقِهِمَا كَالثَّابِتِ مُعَايَنَةً ځکه چې د مُقِر او مقر لهٗ دواړو په تصديق [او

اتفاق [سره ثابت سوی شی داسي دی لکه په مشاهده [ليدني] سره ثابت سوی شی وَالثَّانِي: أَنْ يَقُولَ الْمُقَرُّ لَهُ: الْعَبْدُ عَبْدُكَ مَا بِعْتُكَهُ وَإِنَّمَا بِعْتُكَ عَبْدًا غَيْرَ هٰذَا [۲] او دويم صورت دا دی چي مقرلهٗ [داسي] ووايي: دا غلام ستا دی او ما هغه پر تا نه دی خرڅ کړی بلکي ما پر تا له هغه څخه بغير بل غلام خرڅ کړی دی وَفِيهِ الْمَالُ لَازِمٌ عَلَى الْمُقِرِّ او په دې صورت کي پر مُقِر مال لازم دی لِإِقْرَارِهِ بِهِ عِنْدَ سَلَامَةِ الْعَبْدِ لَهُ ځکه چي هغه د مال اقرار کړی دی، د هغه لپاره د غلام د سالم پاتېدلو په صورت کي [يعني مُقِر په هغه صورت کي د مال مُقِر دی کله چي د ده مُتعيَّن سوی غلام سالم پاته وي او ده ته سالم وسپارل سي] وَقَدْ سَلِمَ او هغه غلام [د ده لپاره] سالم دی [او ده ته سپارل سوی دی] فَلَا يُبَالِي بِاخْتِلَافِ السَّبَبِ بَعْدَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ نو ځکه له مقصود حاصلېدلو څخه وروسته به د سبب په اختلاف هيڅ پروا نه کيږي وَالثَّالِثُ: أَنْ يَقُولَ: الْعَبْدُ عَبْدِي مَا بِعْتُكَ [۳] او درېيم صورت دا دی چي مُقِر داسي ووايي: دا غلام زما دی او ما پر تا نه دی خرڅ کړی وَحُكْمُهُ أَنْ لَا يَلْزَمَ الْمُقِرَّ شَيْءٌ او د دې حکم دا دی چي پر مُقِر هيڅ شی نه لازميږي لِأَنَّهُ مَا أَقَرَّ بِالْمَالِ إِلَّا عِوَضًا عَنِ الْعَبْدِ ځکه چي هغه د دې مال اقرار نه دی کړی مګر د غلام په عوض کي فَلَا يَلْزَمُهُ دُونَهُ نو ځکه له غلام څخه بغير به پر هغه مال نه لازميږي وَلَوْ قَالَ مَعَ ذٰلِكَ: إِنَّمَا بِعْتُكَ غَيْرَهُ او که د هغه سره مُقر دا هم ووايي: چي ما له دې څخه بغير بل غلام پر تا خرڅ کړی دی يَتَحَالَفَانِ نو دواړه به قسمونه اخلي لِأَنَّ الْمُقِرَّ يَدَّعِي تَسْلِيمَ مَنْ عَيَّنَهُ ځکه چي مُقِر د خپل مُتعيَّن کړده غلام د ورسپارلو مدعي دی [يعني هغه د دې دعوىٰ کوي چي پر مقرلهٗ واجب دي چي ما ته زما مُتعيَّن سوی غلام وسپاري] وَالْآخَرُ يُنْكِرُ او بل يو [يعني مقر لهٗ] انکار کوي وَالْمُقَرُّ لَهُ يَدَّعِي عَلَيْهِ الْأَلْفَ بِبَيْعِ غَيْرِهِ او مقر لهٗ پر مُقِر د بل غلام د خرڅولو دعوىٰ کوي وَالْآخَرُ يُنْكِرُهُ او بل يو [مقر] انکار کوي وَإِذَا تَحَالَفَا او کله چي دواړه قسمونه واخلي بَطَلَ الْمَالُ نو مال به باطليږي هٰذَا إِذَا ذَكَرَ عَبْدًا بِعَيْنِهِ دا [حکم] په هغه صورت کي دی کله چي مُقِر يو مُتعيَّن غلام ذکر کړي وي وَإِنْ قَالَ: مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ وَلَمْ يُعَيِّنْهُ او که هغه "مِن ثمن عبد" ووايي لېکن غلام مُتعيَّن نه کړي لَزِمَهُ الْأَلْفُ نو پر هغه زر درهمه لازميږي وَلَا يُصَدَّقُ فِي قَوْلِهِ مَا قَبَضْتُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام

صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به په دې قول کي د هغه تصديق نه کيږي چي "ما [پر غلام] قبضه نه ده کړې" وَصَلَ أَمْ فَصَلَ برابره ده هغه دا قول متصلاً ووايي او که منفصلاً لِأَنَّهُ رُجُوعٌ ځکه دا [له اقرار څخه] رجوع کول دي فَإِنَّهُ أَقَرَّ بِوُجُوبِ الْمَالِ رُجُوعًا إِلَى كَلِمَةِ عَلَيَّ ځکه چي هغه د مال د وجوب [واجبېدلو] اقرار کړی دی لکه څرنګه چي د "عَلَيَّ" کلمه پر دې دلالت کوي وَإِنْكَارُهُ الْقَبْضَ فِي غَيْرِ الْمُعَيَّنِ يُنَافِي الْوُجُوبَ أَصْلًا او په غير مُعيّن غلام کي د قبضې انکار کول بالکل د وجوب منافي دی لِأَنَّ الْجَهَالَةَ مُقَارِنَةً كَانَتْ أَوْ طَارِئَةً بِأَنْ اشْتَرَى عَبْدًا ثُمَّ نَسِيَاهُ عِنْدَ الِاخْتِلَاطِ بِأَمْثَالِهِ تُوجِبُ هَلَاكَ الْمَبِيعِ ځکه چي جهالت که متصل وي او که طاري [وروسته واقع سوی] وي د مبيع هلاکت لره مستلزم وي، [د طارئ مثال دا دی] چي يو څوک يو غلام رانيسي بيا د بل چا په غلامانو د ګډېدلو په وجه هغه له بائع او مشتري څخه هېر سي [لهذا کله چي جهالت د مبيع هلاکت لره مستلزم دی] فَيَمْتَنِعُ وُجُوبُ نَقْدِ الثَّمَنِ نو ځکه د ثمن اداء کولو وجوب به ممتنع وي [ځکه ښکاره خبره ده چي د مبيع هلاکېدل (ضايع کېدل) د ثمن له وجوب څخه مانع دي] وَإِذَا كَانَ كَذَلِكَ او کله چي خبره داسي ده كَانَ رُجُوعًا نو د مُقر دا قول به [له اقرار څخه] رجوع کول وي فَلَا يَصِحُّ وَإِنْ كَانَ مَوْصُولًا نو ځکه به صحيح نه وي که څه هم متصلاً وي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ ۞: إِنْ وَصَلَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي که مُقر دا قول متصلاً ووايي صُدِّقَ وَلَمْ يَلْزَمْهُ شَيْءٌ نو د هغه تصديق به کيږي او پر هغه به هيڅ شی نه لازميږي وَإِنْ فَصَلَ او که منفصلاً دا قول ووايي لَمْ يُصَدَّقْ إِذَا أَنْكَرَ الْمُقَرُّ لَهُ أَنْ يَكُونَ ذَلِكَ مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ نو د هغه تصديق به نه کيږي [په دې شرط] کله چي مقر لهٗ د دې څخه انکار وکړي چي هغه زر درهمه د غلام قيمت دی وَإِنْ أَقَرَّ أَنَّهُ بَاعَهُ مَتَاعًا او که مقر لهٗ د دې اقرار وکړي چي ما پر مُقر سامان خرڅ کړی دی فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُقِرِّ نو قول د مُقر معتبر دی وَوَجْهُ ذَلِكَ أَنَّهُ أَقَرَّ بِوُجُوبِ الْمَالِ عَلَيْهِ وَبَيَّنَ سَبَبًا وَهُوَ الْبَيْعُ او د دې وجه دا ده چي مُقر پر خپل ځان د مال واجبېدلو اقرار کړی دی او د هغه

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المنتقى (ج:۳، ص:۴۱۰)، وكذا في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۴۱۰). [القول الراجح ج:۲، ص: ۲۰۱]

سبب يې هم بيان کړی دی يعني بيع فَإِنْ وَافَقَهُ الطَّالِبُ فِي السَّبَبِ نو اوس که طالب يعني مقر لهٔ [د وجوب] په سبب کي د هغه موافقت وکړي وَبِهِ لَا يَتَأَكَّدُ الْوُجُوبُ إِلَّا بِالْقَبْضِ حال دا چي بغير له قبضې صرف په سبب [بيع] سره د ثمن وجوب نه مؤکد کيږي وَالْمُقِرُّ يُنْكِرُهُ او مُقر له قبضي څخه انکار کوي [ځکه هغه وايي: ما قبضتُه (ما قبضه نه ده پر کړې)] فَيَكُونُ الْقَوْلُ لَهُ نو ځکه د هغه قول به معتبر وي وَإِنْ كَذَّبَهُ فِي السَّبَبِ او که چيري مقر لهٔ [د وجوب] په سبب کي د مُقر تکذيب وکړي كَانَ هٰذَا مِنَ الْمُقِرِّ بَيَانًا مُغَيِّرًا نو دا بيان به د مُقر له طرفه مُغير [د هغه د کلام بدلونکی] وي لِأَنَّ صَدْرَ كَلَامِهِ لِلْوُجُوبِ مُطْلَقًا ځکه چي د هغه د کلام شروع مطلقاً د وجوب لپاره ده وَآخِرُهُ يَحْتَمِلُ انْتِفَاءَهُ عَلَى اعْتِبَارِ عَدَمِ الْقَبْضِ حالانکي د هغه د کلام آخر د قبضې د نشتوالي په اعتبار سره د وجوب نفي کېدلو احتمال لري وَالْمُغَيِّرُ يَصِحُّ مَوْصُولًا لَا مَفْصُولًا او مُغير صرف متصلاً صحيح کيږي، نه منفصلاً وَلَوْ قَالَ: ابْتَعْتُ مِنْهُ بَيْعًا إِلَّا أَنِّي لَمْ أَقْبِضْهُ او که چيري مُقر وايي: ما له مقر لهٔ څخه مُعين مال رانيولی دی لېکن پر هغه مي قبضه کړې نه ده فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق د مُقر قول معتبر دی لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ ضَرُورَةِ الْبَيْعِ الْقَبْضُ ځکه چي قبضه د بيع د لوازماتو څخه نه ده [يعني د بيع ثابتېدلو لپاره قبضه ضروري نه ده] بِخِلَافِ الْإِقْرَارِ بِوُجُوبِ الثَّمَنِ په خلاف د ثمن واجبېدلو د اقرار.

**اللغات**: ﴿ثمن﴾ قيمت، ﴿تصادق﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو د بل تصديق کول، پر يو خبره د دوو کسانو اتفاق کول، ﴿يتحالفان﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه مذکر غائب مضارع ده: يو تر بله قسم کول، د دوو کسانو قسم اخيستل، ﴿وصل﴾ د ضرب د باب ماضي ده: متصل کول (يو ځای کول)، متصل ذکر کول، ﴿فصل﴾ دا هم د ضرب د باب ماضي ده: جلا کول، قطع کول، جلا ذکر کول، ﴿مقارنة﴾ د مفاعلې له بابه د اسم فاعل مؤنث صيغه ده: متصل، جوخت، يو د بل سره يو ځای، ﴿طارئة﴾ د فتح له بابه مخکنی صيغه ده: طاري کېدونکی، وروسته واقع کېدونکی (بعد کي راتلونکی)، ﴿متاع﴾ سامان، ﴿مُغيِّر﴾ د تفعيل له بابه د اسم فاعل مذکر صيغه ده: بدلونکی، متغير کونکی، ﴿الصّدر﴾ د هر شي اولي حصې ته وايي (د شروع حصه)، ﴿ابتعتُ﴾ د افتعال له بابه د واحد

متکلم ماضي صيغه ده: رانيول، ځکه د بيع ماده چې د افتعال په باب سره ذکر سي نو د "رانيولو" معنیٰ ورکوي.

**تشريح**: په دې مسئله کي د يوې مسئلې په هکله څو صورتونه بيان سوي دي. اصل مسئله دا ده که يو څوک دا اقرار وکړي چې "پر ما د خالد زر درهمه واجب دي او دا زر درهمه د هغه غلام ثمن (قيمت) دی کوم چې ما له خالد څخه رانيولی وو لېکن پر هغه مي قبضه نه وه کړې"، (۱) اوس که مُقرِ يو مُتعين غلام ذکر کړي چې "هغه دا غلام دی کوم چې ما له خالد څخه رانيولی وو"، نو مقرله (خالد) ته دوه اختيار حاصليږي: ① يو دا چې هغه د مُقِر مُتعين سوی غلام مُقِر ته وسپاري او ثمن (زر درهمه) واخلي، ② بل دا چې نه غلام واخلي او نه ثمن (زر درهمه)؛ ځکه د دوی دواړو په خپل مينځوي تصديق او اتفاق سره چې کومه خبره او معامله ثابت سوه هغه داسي ده لکه په مشاهده او عيني ليدنه سره چې ثابت سوې وي، نو ګواکي دوی خاص پر همدغه مقدار (زر درهمه) معامله کړې ده، ځکه کله چې معامله وسي نو بيا پر مُقِر واجبيږي. دا اول صورت دی.

(۲) دويم صورت دا دی چې مقرلهٗ د مُقِر تصديق وکړي او داسي ووايي "چې کوم غلام تا ذکر کړی دی هغه خو ستا دی لېکن ما هغه پر تا نه دی خرڅ کړی بلکي بل غلام مي پر تا خرڅ کړی دی او هغه مي تا ته سپارلی هم دی"، نو دا اقرار صحيح او معتبر دی او پر مُقِر د مقرلهٗ لپاره زر درهمه (أَلف) واجبيږي؛ ځکه مُقِر صرف د غلام د سالم پاتېدلو او مُقِر ته د ورسپارل کېدلو په صورت کي د مقرلهٗ لپاره د زر درهمو اقرار کوي او مقرلهٗ هم دوايي چې ما هغه ته غلام سپارلی دی، نو په دې حواله سره دواړه د ثمن پر وجوب متفق دي، نو ځکه پر مُقِر به د مقرلهٗ ثمن واجبيږي او د وجوب د سبب په مختلف کېدلو به پروانه کيږي، يعني که څه هم مقرلهٗ وايي چې پر تا د بل غلام ثمن (زر درهمه) واجب دي او مُقِر وايي چې پر ما د دې غلام ثمن واجب دی، نو په دې اختلاف سره به پروانه کيږي او په دې سره دا اقرار پر صحت هيڅ اثر نه پرېوځي.

(۳) درېيم صورت دا دی چې مقرلهٗ د مُقِر دعویٰ رد کړي او داسي ووايي چې "دا خو زما غلام دی او ما هيڅکله پر تا نه دی خرڅ کړی"، نو په دې صورت کي معامله ختميږي او پر مُقِر هيڅ شی نه واجبيږي؛ ځکه چې هغه د غلام په عوض کي د زر درهمو د وجوب مُقِر دی (يعني هغه وايي چې پر ما د دغه غلام په عوض کي زر درهمه واجب دي) او مقرلهٗ د هغه غلام ورکولو څخه انکار کوي، نو بلا عوضه به پر مُقِر هيڅ نه لازميږي. ها! که چيري مقرلهٗ د "الْعَبْدُ عَبْدِيْ مَا بِعْتُكَ" سره دا هم ووايي "إِنَّمَا

بِعْتُكَ غَيْرَه" چي "ما بل غلام پر تا خرڅ کړی دی"، نو بیا به دواړه قسمونه اخلي. یعني مُقر به داسي قسم اخلي چي "په الله قسم! تا پر ما دغه غلام خرڅ کړی دی" او مقر لهٔ به وايي "په الله قسم! ما پر تا بل فلانکی غلام خرڅ کړی دی"، ځکه چي مُقِر دیو مُتعیّن غلام د رانیولو او د هغه د ورسپارلو مدعي دی (چي ما دا غلام رانیولی دی لهذا ته ما ته خاص دغه غلام وسپاره!) او مقر لهٔ له دې څخه منکر دی او هغه د بل فلانکي غلام او پر مُقِر د زرو درهمو مدعي دی او مُقِر له دې څخه منکر دی، نو دلته مُقِر او مقر لهٔ دواړه په یوه اعتبار سره مدعیان دي او په یوه اعتبار سره منکرین دي، نو ځکه به له دواړو څخه قسم اخیستل کیږي او دواړه به پر خپل قول او دعویٰ قسمونه اخلي، نو که چیري یو له قسم څخه انکار وکړي، نو د هغه په خلاف د به د هغه د ملګري قول او دعویٰ منل کیږي؛ او که دواړه قسمونه واخلي، نو معامله به ختمول کیږي؛ ځکه چي د دواړو په تحالف سره تعارض پیدا سو، لهذا پر "إِذَا تَحَالَفَا تَسَاقَطَا" په عمل کولو سره به د دواړو قول او دعویٰ ساقطیږي.

وهذا إذا ذكر عبدًا بعينه إلخ: فرمايي په پورتني صورتونو کي چي کوم حکم دی دا په هغه وخت کي دی کله چي مُقِر یو مُتعیّن غلام ذکر کړی وي، لېکن که هغه غلام مُتعیّن نه کړي بلکي مطلق "مِنْ ثَمِنْ عَبْدٍ" ووايي نو پر هغه زر درهمه لازمیږي او د هغه دا قول "مَا قَبَضْتُهُ" (لَمْ أَقْبِضْهُ) به نه منل کیږي؛ برابره ده هغه "مَا قَبَضْتُهُ" د "مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ" سره متصل ووايي یا څه وخت وروسته بیا "مَا قَبَضْتُهُ" ووايي؛ ځکه چي د "عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ" په ویلو سره هغه مخکي د زر درهمو د وجوب اقرار کړی دی او اوس د "مَا قَبَضْتُهُ" په ویلو سره هغه له خپل اقرار څخه رجوع کول غواړي، نو ځکه د هغه رجوع به نه صحیح کیږي؛ ځکه د "مَا قَبَضْتُهُ" په ویلو سره په مبیع کي جهالت پیدا کیږي او د مبیع جهالت د ثمن له وجوب څخه مانع دی، او همدا ممانعت د دې خبري دلیل دی چي تر اقرار وروسته د مقر "مَا قَبَضْتُهُ" ویل رجوع عن الاقرار ده، نو ځکه د وصل او فصل په دواړو حالتونو کي به دا رجوع معتبره نه وي، دا حکم او تفصیل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی.

صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: دلته به دې ته کتل کیږي چي که مُقر متصلاً "مَا قَبَضْتُهُ" ووايي، نو د هغه د قول تصدیق به کیږي او پر هغه به مال (زر درهمه) نه لازمیږي؛ او که هغه څه وخت وډریږي یا په یو بله جمله سره فصل وکړي او بیا "مَا قَبَضْتُهُ" ووايي، نو د هغه تصدیق به نه کیږي او پر هغه به زر درهمه لازمیږي،

او که مقر لهٗ د وجوب په سبب کي د مُقِر تصديق وکړي او د قبضې په انکار (ما قبضتُه) کي د هغه تکذيب وکړي يعني داسي ووايي چي "هو! ما پر مُقِر متاع (يعني غلام يا داسي بل څه) خرڅ کړی دی لېکن هغه قبضه پر کړې ده او هغه د قبضې په انکار کي درواغجن دی"، نو په دې صورت کي به د مقر لهٗ قول نه منل کيږي بلکي د مُقِر قول به منل کيږي او قبضه به نه ثابتيږي؛ ځکه چي مُقِر د "عليّ ألف" په وينا سره پر خپل ځان د مال د وجوب اقرار کړی دی او د "من ثمن عبد اشتريته منه" په وينا سره يې د هغه سبب هم بيان کړی دی، لېکن څرنګه چي هغه له قبضې څخه منکر دی او قول د منکر معتبر وي، نو اوس که طالب (مقرلهٗ) د هغه د قول تصديق هم وکړي چي "هو! ما پر مُقِر غلام خرڅ کړی دی" نو محض په دې تصديق سره قبضه نه ثابتيږي او نه په دې سره پر مُقِر (مشتري) د ثمن وجوب مؤکد کيږي؛ ځکه کېدای سي چي تر رانيولو وروسته او له قبضه کولو څخه مخکي مبيع (غلام) د بائع په قبضه کي هلاک سوی وي، او په دې صورت کي د مشتري له ذمې څخه ثمن ساقطيږي. او ثمن صرف د قبضې په ذريعه مؤکد کيږي (مضبوطيږي)، او دلته مقر لهٗ د قبضې دعویٰ کوي او مُقِر له هغه څخه منکر دی، نو ځکه د منکر (مُقِر) قول به قبلول کيږي.

د دې په خلاف که مقر لهٗ په مذکوره سبب کي د مُقِر تکذيب وکړي مثلاً داسي ووايي "چي هغه مال (زر درهمه) د بيع ثمن نه دی بلکي زما د فلانکی سامان قيمت دی کوم چي تا غصب کړی وو" او داسي نور، نو په دې صورت کي د مُقِر د کلام آخر يعني د هغه دا قول "مَا قَبَضْتُهُ" (ما قبضه نه ده پر کړې) د هغه د کلام د اولي حصې يعني د "لَهُ عَلَيَّ أَلفُ دِرْهَم" لپاره مُغير دی؛ ځکه چي د کلام په شروع (لهٗ عليه ألف درهم) سره مطلقاً وجوب ثابتيږي او د کلام د آخر په وجه دا احتمال را وځي چي (بتقدير عدم قبضه) وجوب نه ثابتيږي؛ ځکه چي هغه په آخر کي (د ما قبضتُهٗ په وينا سره) له قبضې څخه انکار کوي او په دې توګه له خپل ځان څخه د ثمن وجوب دفع کوي. نو د هغه د کلام آخر د کلام د شروع لپاره مُغير سو، او مُغير بيان صرف متصلاً صحيح کيږي، نه منفصلاً. نو ځکه صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د وصل او فصل په صورتونو کي جلا، جلا احکام بيان کړي دي.

ولوقال إلخ: د دې حاصل دا دی که يو سړی داسي ووايي چي "ما له زيد څخه يو مُتعين غلام يا سامان رانيولی دی لېکن پر هغه مي قبضه نه ده کړې"، نو د هغه قول معتبر دی او پر هغه به فوراً ثمن نه لازمول کيږي؛ ځکه چي دا د بيع اقرار دی، د ثمن د وجوب (واجبېدلو) اقرار نه دی او دلته د مشتري د کلام آخر "انِّي لَمْ أَقْبِضْهُ" د کلام د شروع "اِبْتَعْتُ مِنْهُ عَيْنًا" لپاره مُغير نه دی او د بيع د اقرار لپاره

قبضه لازمي او ضروري نه ده؛ ځکه کېدای سي چي بيع بشرط الخيار وي، او په بيع بشرط الخيار کي نه في الحاله قبضه کيږي او نه ثمن واجبيږي. لېکن د ثمن د وجوب په اقرار کي قبضه ضروري ده؛ ځکه چي بغير له قبضې د ثمن وجوب نه ثابتيږي. نو په دې حواله سره د بيع د اقرار او د وجوب الثمن د اقرار په مينځ کي فرق دی. (احسن الهدايه)

## په ناجائز سبب سره د حق واجبـېدلو اقرار کول

قَالَ: وَكَذَا لَوْقَالَ: مِنْ ثَمَنِ خَمْرٍأَوْ خِنْزِيرٍ فرمايي: او همدارنګه که هغه ووايي: د شراب او خنزير له قيمت څخه وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ إِذَا قَالَ: لِفُلَانٍ عَلَيَّ أَلْفٌ مِنْ ثَمَنِ خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ او د مسئلې معنیٰ دا ده چي کله يو څوک داسي ووايي: د فلانکي پر ما د شراب او خنزير د قيمت زر درهمه دي لَزِمَهُ الْأَلْفُ نو پر هغه زر درهمه لازميږي وَلَمْ يُقْبَلْ تَفْسِيرُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه تفسير [بيان] به نه منل کيږي وَصَلَ أَمْ فَصَلَ برابره ده هغه متصلاً ووايي او که منفصلاً [يعني برابره ده متصلاً تفسير وکړي او که منفصلاً] لِأَنَّهُ رُجُوعٌ ځکه چي دا [له اقرار څخه] رجوع کول دي لِأَنَّ ثَمَنَ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ لَا يَكُونُ وَاجِبًا ځکه د شراب او خنزير قيمت نه واجبيږي وَأَوَّلُ كَلَامِهِ لِلْوُجُوبِ حالانکي د مُقِر د کلام اوله حصه د وجوب لپاره ده وَقَالَا: إِذَا وَصَلَ لَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي که هغه متصلاً ووايي نو هيڅ شی نه پر لازميږي لِأَنَّهُ بَيَّنَ بِآخِرِ كَلَامِهِ أَنَّهُ مَا أَرَادَ بِهِ الْإِيجَابَ ځکه چي هغه د خپل کلام په آخر سره دا بيان کړی دی چي هغه د ايجاب اراده نه وه کړې [يعني هغه د خپل کلام په آخري حصه سره دا خبره بيان کړې ده چي زما مراد واجبېدل نه وو] وَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ فِي آخِرِهِ: إِنْ شَاءَ اللهُ او دا داسي سوه لکه هغه چي د خپل کلام په آخر کي ووايي: انشاء الله قُلْنَا: ذَاكَ تَعْلِيقٌ وَهٰذَا إِبْطَالٌ موږ [جواباً] وايو: چي هغه [انشاء الله] تعليق دی او دا [د دې عبارت مسئله] ابطال دی.

**اللغات**: ﴿ثمن﴾ قيمت. ﴿إيجاب﴾ د افعال د باب مصدر دی: واجبول. ﴿إبطال﴾ د مخکني باب مصدر دی: باطلول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک ووايي چي "د فلانکي پر ما د خنزير يا شرابو د قيمت زر درهمه باندي دي". نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه صرف زر درهمه لازميږي او برابره ده

هغه د خپل دې قول سره يو ځای "مَا قَبَضْتُه" ووايي يا وروسته، په دواړو صورتونو کې د هغه دا قول معتبر نه دی (يعني هغه به نه منل کيږي)؛ ځکه چې دا له خپل اقرار څخه رجوع کول دي، حال دا چې د "لِفُلَانٍ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ" په ذريعه هغه پر خپل ځان زر درهمه لازم کړي دي، نو ځکه د رجوع په هکله به د هغه قول معتبر نه وي او هغه به نه منل کيږي. او بيا د خنزير او شرابو ثمن پر ذمه واجبيږي هم نه؛ نو ځکه په دې حواله سره به د هغه "مَا قَبَضْتُه" ويل معتبر نه وي.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې که هغه "مَا قَبَضْتُه" متصلاً ووايي، نو بيا د هغه قول معتبر دی او پر هغه به زر درهمه نه لازميږي؛ ځکه که څه هم د هغه ابتدائي کلام د وجوب سره متعلق دی لېکن د هغه آخري کلام د وجوب منافي دی، او څرنګه چې د متصلاً "إن شاء الله" ويلو په صورت کې وجوب نه ثابتيږي، همداسې به په دې صورت کې هم پر مُقِر زر درهمه نه واجبيږي. لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه صاحبينو ته جواب دا دی چې صورتِ مسئله د "إن شاء الله" پر صورت قياسول صحيح نه دي؛ ځکه د "إن شاء الله" والا په صورت کې تعليق دی او تعليق لره بيان (تفسير) لاحق کېدای سي، لېکن په صورتِ مسئله کې بيان (تفسير) خپل اقرار باطلول او له اقرار څخه رجوع کول دي، او په اقرار کې رجوع نه صحيح کيږي. (احسن الهدايه)

## تر اقرار وروسته د شي يو صفت يا قيد بيانول

وَلَوْ قَالَ: لَهُ عَلَيَّ أَلْفٌ مِنْ ثَمَنِ مَتَاعٍ او که چيرې ووايي: د فلانکي پر ما د سامان د قيمت زر درهمه دي أَوْ قَالَ: أَقْرَضَنِيْ أَلْفَ دِرْهَمٍ يا ووايي: چې هغه ما ته زر درهمه په قرض راکړي وه ثُمَّ قَالَ: هِيَ زُيُوْفٌ أَوْ نَبَهْرَجَةٌ بيا ووايي: چې هغه دراهم کوټه يا نبهرجه وه وَقَالَ: الْمُقَرُّ لَهُ جِيَادٌ او مقر له ووايي: چې هغه کره [اصلي] دراهم وه لَزِمَهُ الْجِيَادُ فِي قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه کره دراهم لازميږي وَقَالَا❁: إِنْ قَالَ مَوْصُوْلًا يُصَدَّقُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: که مُقِر متصلاً دا ويلي وي نو د هغه تصديق به کيږي وَإِنْ قَالَ مَفْصُوْلًا لَا يُصَدَّقُ او که منفصلاً يې ويلي وي نو تصديق به يې نه کيږي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا قَالَ: هِيَ سَتُّوْقَةٌ أَوْ رَصَاصٌ او پر همدغه اختلاف دي

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحمَهُ الله، كما ذكر في ملتقى الأبحر (ج:٣، ص:٤١٠)، وكذا في الدر المختار (ج:٦، ص:٥١٢). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٠٢]

که هغه ووايي: چي هغه ستوقه دراهم وه يا هغه ژړ وه [يعني صرف له ژړو شخه جوړ وه، دراهم نه وه] وَعَلٰى هٰذَا إِذَا قَالَ: إِلَّا أَنَّهَا زُيُوفٌ او پر همدې اختلاف دي که هغه ووايي: لېکن هغه کوټه [جعلي] وه وَعَلٰى هٰذَا إِذَا قَالَ: لِفُلَانٍ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ زُيُوفٍ مِنْ ثَمَنِ مَتَاعٍ او پر همدې اختلاف دي که هغه ووايي: پر ما د سامان د قيمت زر کوټه درهمه دي لَهُمَا: أَنَّهُ بَيَانٌ مُغَيِّرٌ د صاحبينو رَحِمَهُمَا اللّٰه دليل دا دی: چي د مُقِر آخري قول [يعني د مُقِر د کلام آخر] مُغَيِّر بيان دی فَيَصِحُّ بِشَرْطِ الْوَصْلِ نو ځکه هغه به د وصل [متصل والي] په شرط سره صحيح وي كَالشَّرْطِ وَالِاسْتِثْنَاءِ لکه شرط او استثناء [چي د وصل په شرط سره صحيح دي] وَهٰذَا لِأَنَّ اسْمَ الدَّرَاهِمِ يَحْتَمِلُ الزُّيُوفَ بِحَقِيقَتِهِ وَالسَّتُّوقَةَ بِمَجَازِهِ او دا ځکه چي لفظ د "دراهم" د خپل حقيقت په اعتبار سره د کوټه دراهمو احتمال لري او مجازاً د ستوقه دراهمو احتمال لري إِلَّا أَنَّ مُطْلَقَهُ يَنْصَرِفُ إِلَى الْجِيَادِ لېکن مطلق لفظ د "دراهم" د کَرَه دراهمو وطرف ته راجع کيږي فَكَانَ بَيَانًا مُغَيِّرًا مِنْ هٰذَا الْوَجْهِ نو ځکه په دې اعتبار سره به د هغه آخري قول مُغَيِّر بيان وي وَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: إِلَّا أَنَّهَا وَزْنُ خَمْسَةٍ او دا داسي سوه لکه مُقِر چي ووايي: هغه د "وزن خمسه" دراهم وه وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ هٰذَا رُجُوعٌ د امام صاحب رَحِمَهُ اللّٰه دليل دا دی: چي دا [له خپل اقرار شخه] رجوع کول دي لِأَنَّ مُطْلَقَ الْعَقْدِ يَقْتَضِي وَصْفَ السَّلَامَةِ عَنِ الْعَيْبِ ځکه چي مطلق عقد له عيب شخه د سالم کېدلو تقاضا وي وَالزِّيَافَةُ عَيْبٌ او کوټه والی عيب دی وَدَعْوَى الْعَيْبِ رُجُوعٌ عَنْ بَعْضِ مُوجِبِهِ او د عيب دعوىٰ کول د عقد له بعضي مُوجب شخه رجوع کول دي وَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: بِعْتُكَهُ مَعِيبًا وَقَالَ: الْمُشْتَرِي بِعْتَنِيهِ سَلِيمًا او دا داسي سوه لکه هغه چي ووايي: ما هغه پر تا عيبداره خرڅ کړی وو او مشتري ووايي: تا هغه پر ما صحيح سالم خرڅ کړی وو فَالْقَوْلُ لِلْمُشْتَرِي نو قول د مشتري معتبر دی لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَالسَّتُّوقَةُ لَيْسَتْ مِنَ الْأَثْمَانِ او ستوقه ثمن نه دي وَالْبَيْعُ يُرَدُّ عَلَى الثَّمَنِ حال دا چي بيع صَرف پر ثمن وارديږي فَكَانَ رُجُوعًا نو ځکه به دا رجوع وي وَقَوْلُهُ "إِلَّا أَنَّهَا وَزْنُ خَمْسَةٍ" يَصِحُّ اسْتِثْنَاءً او د مُقِر دا قول "إلا أنها وزن خمسة" د استثناء په اعتبار سره صحيح دي لِأَنَّهُ مِقْدَارٌ ځکه چي "وزن

خمسه" د دراهمو يو مقدار دى بِخِلَافِ الْجَوْدَةِ په خلاف د كَره والي لِأَنَّ اسْتِثْنَاءَ الْوَصْفِ لَا يَجُوزُ ځكه چي د وصف استثناء جائز نه ده كَاسْتِثْنَاءِ الْبِنَاءِ فِي الدَّارِ لكه له كور څخه د بناء (ودانۍ) استثناء كول بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: عَلَيَّ كُرُّ حِنْطَةٍ مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ إِلَّا أَنَّهَا رَدِيئَةٌ د دې په خلاف كه مُقِر ووايي: پر ما د غلام د قيمت يو كُر غنم دي ليكن هغه ردي [كمزوري] دي لِأَنَّ الرَّدَاءَةَ نَوْعٌ لَا عَيْبٌ ځكه چي ردي والي يو قسم دى. عيب نه دى فَمُطْلَقُ الْعَقْدِ لَا يَقْتَضِي السَّلَامَةَ عَنْهَا نو ځكه مطلق عقد له ردي والي څخه د سالم كېدلو تقاضا نه كوي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ فِي غَيْرِ رِوَايَةِ الْأُصُولِ أَنَّهُ يُصَدَّقُ فِي الزُّيُوفِ إِذَا وَصَلَ او په غير ظاهر روايت كي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دا روايت سوى دى چي كه مُقِر متصلاً ووايي نو د كوټه دراهمو په هكله به د هغه تصديق كيږي لِأَنَّ الْقَرْضَ يُوجِبُ رَدَّ مِثْلِ الْمَقْبُوضِ ځكه چي قرض د هغه شي د مثل واپس كول واجبوي كوم چي قبضه كړى سوى وي [يعني مقروض چي له قرض وركونكي څخه څنګه شى اخيستى وي. په قرض كي د هغسي شي واپس كول (اداء كول) واجب دي] وَقَدْ يَكُونُ زَيْفًا كَمَا فِي الْغَصْبِ حال دا چي مقبوض كله كوټه [جعلي] وي لكه په غصب كي چي كيږي وَوَجْهُ الظَّاهِرِ: أَنَّ التَّعَامُلَ بِالْجِيَادِ او د ظاهر روايت دليل دا دى: چي معامله [عموماً] په كَره دراهمو سره كيږي فَانْصَرَفَ مُطْلَقُهُ إِلَيْهَا نو ځكه مطلق دراهم به د هغه وطرف ته راجع كيږي وَلَوْ قَالَ: لِفُلَانٍ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ زُيُوفٍ او كه چيري ووايي: د فلانكي پر ما زر كوټه درهمه دي وَلَمْ يَذْكُرِ الْبَيْعَ وَالْقَرْضَ ليكن بيع او قرض ذكر نه كړي قِيلَ: يُصَدَّقُ بِالْإِجْمَاعِ نو ويل سوي دي: چي بالاتفاق به د هغه تصيق كيږي لِأَنَّ اسْمَ الدَّرَاهِمِ يَتَنَاوَلُهَا ځكه چي لفظ د "دراهم" كوټه دراهمو لره هم شامليږي وَقِيلَ: لَا يُصَدَّقُ او ويل سوي دي: چي د هغه تصديق به نه كيږي لِأَنَّ مُطْلَقَ الْإِقْرَارِ يَنْصَرِفُ إِلَى الْعُقُودِ ځكه چي مطلق اقرار د عقدونو وطرف ته راجع كيږي لِتَعَيُّنِهَا مَشْرُوعَةً لَا إِلَى الِاسْتِهْلَاكِ الْمُحَرَّمِ ځكه چي عقدونه مشروع مُتعيّن سوي دي. نه د هلاكولو [ضايع كولو] وطرف ته كوم چي حرام دي.

**اللغات**: ﴿زُيوف﴾ جمع د زَيْفٌ ده: كوټه درهم. يعني هغه درهم كوم چي خالص سپين زر نه وي بلكي بل شى (مثلاً ژړ يا ګيلټ يا داسي بل فلز) هم په ګډ وي ليكن سپين زر پكښي غالب وي. مخكي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د هغه داسي تعريف كړى وو چي "زيف" هغه درهم ته وايي كوم چي يې بيتُ المال كوټه وشماري ليكن كاروباري حضرات هغه قبلوي. ﴿نبهرجة﴾ دا هم يو قسم كوټه درهم وو يعني كوټ (ژړ يا داسي بل فلز) به په ګډ وو. او سپين زر به يې غالب وو. ليكن تاجرانو به هغه

نه قبلوی، ګواکي نبهرجه دراهم له زيوف څخه هم کمزوري وه. ﴿جِيادٌ﴾ جمع د جَيِّدٌ ده: کـره درهـم، يعني هغه درهم کوم چي له خالص سپينو زرو څخه جوړ وي. ﴿ستوقة﴾ د دې لغوي معني ده: "درې طاقه والا"، هغه درهم ته وايي کوم چي له ژړو يا داسي بل فلز او معدن څخه جوړ وي او فقط د پاسه د سپينو زرو رنګ ورکول سوی وي، يعني ستوقه درهم دننه ټوله کوټ وي. ﴿رصاص﴾ ژړ، مشهوره فلز دی. ﴿مُغيّر﴾ د تفعيل د باب فاعل دی: بدلونکی، متغير کونکی. ﴿وزن خمسه﴾ د دراهمو يو قسم وو چي د هغه لپاره يو معلوم وزن وو. لکه "وزن عشره" او "وزن عشرين" چي هم د دراهمو اقسام وه او بيا په آخر کي "وزن سبعه" مشهور او رائج پاته سو. ﴿الرداءة﴾ بد والی، خراب والی، فاسد والی (معجم لغة الفقهاء)، ﴿معيب﴾ د ضرب د باب مفعول دی: عيبداره، عيبجن. ﴿سليم﴾ د سمع د باب صفت مشبه صيغه ده: صحيح سالم، بې عيبه. ﴿كُرّ﴾ دا په عربو کي د يو غټې پيمانې نوم وو چي په هغه سره به وريجي، غنم او داسي نور پيمانه کېدل. مخکي چي د هدايې په حاشيه کي د دې کوم مقدار ليکل سوی وو، د هغه په اعتبار سره يو کُر تقريباً (۲۵۴۷) کيلو کيږي. ﴿يتناول﴾ د ضرب د باب مضارع ده: شاملېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي د يوې مسئلې سره اړوند څو صورتونه بيان سوي دي. مسئله دا ده که يو سړی اقرار وکړي چي د "فلانکي پر ما د يو شي زر درهمه باندي دي کوم چي ما له هغه څخه اخيستي وو"، يا داسي ووايي چي "فلانکي ما ته په قرض زر درهمه راکړي وه"، بيا ووايي چي "هغه زر درهمه کوټه وه يا تاجرانو هغه نه قبلول"، لېکن مقر لهٗ (فلانکی) ووايي چي "هغه کَره دراهم وه"، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي په دې صورت کي به د مُقِر قول نه منل کيږي او پر هغه به کَره دراهم لازميږي، برابره ده مُقِر "هِيَ زُيُوْف، يا هِيَ نَبَهْرَجة" د "عَلَيَّ أَلْفُ..." سره متصلاً (يو ځای) ويلي وي يا يې منفصلاً ويلي وي. لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په وصل او فصل کي فرق دی، هغوی فرمايي چي که مُقِر متصلاً دا ووايي، نو بيا د هغه قول معتبر دی او پر هغه به هيڅ شی نه لازميږي. د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف په هغه صورت کي هم دی کله چي مُقِر د "هِيَ زُيُوْفٌ" پر ځای "هِيَ سَتُوْقَة" يا "هِيَ رَصَاص" ويلي وي يا يې په حرف استثناء سره "إِلَّا أَنَّهَا زُيُوْفٌ" ويلي وي يا يې په وضاحت سره "عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ مِنْ ثَمَنِ مَتَاعٍ" ويلي وي، نو په دې ټولو

صور تونو کي پر هغه کراه دراهم لازميږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا لزوم صرف د فصل په صورت کي ثابتيږي او د وصل په صورت کي پر هغه هيڅ شی نه لازميږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي تر "عَلَيَّ أَلْفٌ" وروسته د مُقِر "هِيَ زُيُوْفٌ" او داسي نور ويل د هغه د کلام او بيان مُغيِّر (بدلونکی) دي، او د مُغيِّر په هکله زموږ قاعده دا ده چي هغه صرف د وصل په صورت کي صحيح دي لکه څرنګه چي په شرط او استثناء کي هم زموږ قاعده همدا ده چي صرف د وصل په صورت کي صحيح دی، همداسي دا مُغيِّر هم صرف متصلاً صحيح دی، منفصلاً صحيح نه دی.

وهذا لأن إلخ: د دې حاصل دا دی چي په پورتنۍ مسئله کي "هِيَ زُيُوْفٌ" ته د مُغيِّر ويلو وجه دا ده چي لفظ د "دراهم" د حقيقت په اعتبار سره زُيُوف (کوټه دراهمو) لره هم شامل دی او ستوقه دراهمو لره مجازاً شامل دی، لېکن څرنګه چي دلته مُقِر د مطلق دراهمو اقرار کړی دی، او له مطلق څخه فرد کامل مراديږي لکه څرنګه چي همدا قاعده ده "إِذَا أُطْلِقَ يُرَادُ بِهِ الْفَرْدُ الكَامِل"، او فرد کامل کَرَه دراهم دي، نو ځکه دا مطلق دراهم د مذکوره قاعدې پر بناء کَرَه دراهمو لره شامليږي، لهذا د مُغيِّر له راتګ څخه مخکي خو پر مُقِر کَرَه دراهم لازم وه، لېکن مُغيِّر هغه بدل کړل او اوس به د کَرَه دراهمو پر ځای پر هغه کوټ دراهم (زيوف) لازم وي. د دې مثال داسي دی لکه څرنګه چي له مطلق دراهمو څخه د وزن سبعه والا دراهم مراديږي، لېکن که مُقِر د وزن خمسه صراحت وکړي، نو ښکاره خبره ده چي پر هغه همدا وزن خمسه والا دراهم لازميږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي له اقرار کولو څخه وروسته د مُقِر "هِيَ زُيُوْفٌ" او داسي نور ويل رجوع عن الاقرار دی؛ ځکه چي عقد مطلق دی، او مطلق عقد د دې خبري تقاضا کوي چي مبيع او ثمن دواړه له عيب څخه پاک او صحيح سالم وي (په بله وينا دا چي د سلامتيا په وصف سره متصف وي)، او د دراهمو کوټه والی يو عيب دی، او څرنګه چي مُقِر د دغه عيب مدعي دی، نو ځکه ګواکي هغه د اصل عقد له تقاضا څخه په بله وينا له عقد څخه رجوع کول غواړي. نو ځکه د هغه دا دعوی به نه قبلول کيږي، د دې مثال داسي دی لکه يو بائع چي مشتري ته ووايي "ما فلانکی شی پر تا عيبداره خرڅ کړی دی" او مشتري ووايي چي "ما هغه صحيح سالم رانيولی دی"، نو په دې صورت کي هم د مشتري قول معتبر دی ځکه چي له عيب څخه د مبيع پاکېدل (صحيح سالم کېدل) اصل دي.

پاته سوه د ستوقه دراهمو مسئله، نو هغه له نبهرجه دراهمو څخه هم بدتر دي او هغوی په هیڅ حال کي هم ثمن نه سي جوړېدای، نو د ستوقه دراهمو دعویٰ کول به له اقرار څخه رجوع کول وي، نو ځکه دا به هم صحیح نه وي.

**وقوله إلا أنها وزن خمسة إلخ:** په دې سره د صاحبینو رَحِمَهُمَا اللهُ د استثناء جواب ورکوي، حاصل یې دا دی چي د "إلّا أنها وزن خمسة" مسئله د پورتني مسئلې سره تعلق نه لري؛ ځکه چي "وزن خمسه" یو مقدار دی، وصف نه دی، او د بعضي مقدار استثناء کول صحیح دي: ځکه چي دِ کلام شروع (ابتدائي کلام) مقدار لره شامل وي، نو دا د ملفوظ استثناء سوه، کوم چي بېله شکه صحیح ده. لېکن جودت (کَرَه والی) یو وصف دی او د وصف استثناء صحیح نه ده لکه څرنګه چي له کور څخه د بناء (ودانی) استثناء صحیح نه ده.

همدارنګه په "رداءت" سره دلیل نیول او اعتراض کول صحیح نه دي؛ ځکه چي رداءت یو نوع ده، عیب نه دی، او مطلق عقد له رداءت څخه د سلامتیا تقاضا نه کوي، نو ځکه که یو سړی تر "عَلَيَّ کُر حِنْطَةٍ مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ" تر ویلو وروسته "إِلَّا أَنَّهَا رَدِيْئَةٌ" ووایي، نو دا صحیح دي.

**وعند أبي حنيفة إلخ:** فرمايي چي له امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ څخه په غیر ظاهر روایت کي یو قول دا نقل سوی دی چي د قرض په صورت کي که مُقِر متصلاً "أَنَّهَا زُيُوْف" ووایي، نو د هغه تصدیق به کیږي او پر هغه به زیوف یعني کوټه دراهم لازمیږي؛ ځکه په قرض کي چي څرنګه مال واخیستل سي، هغسي واپس کول لازم وي، او دا ممکنه ده چي اخیستونکی به صرف کوټه دراهم په قرض اخیستي وي لهذا هغه به صرف کوټه دراهم واپس کوي، لکه څرنګه چي په غصب کي کیږي چي ځیني وخت مغصوبه دراهم کوټه وي، نو پر غاصب صرف د کوټه دراهمو واپس کول لازمیږي. د دې په مقابله کي د ظاهر روایت دلیل دا دی چي معامله عموماً په کَرَه دراهمو سره کیږي لهذا له مطلق دراهمو څخه به صرف کَرَه دراهم مرادیږي.

**ولو قال إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که یو څوک مطلق ووایي "لِفُلَانٍ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ زُيُوْف" لېکن د بیع او قرض خبره نه وکړي، نو یو قول دا دی چي که هغه "زُیوف" متصلاً ویلي وي، نو بالاتفاق به د مُقِر تصدیق کیږي؛ ځکه چي لفظ د "دراهم" زیوف یعني کوټه دراهمو لره هم شامل دی. دویم قول دا دی چي د هغه تصدیق به نه کیږي؛ ځکه چي مطلق عقد د عقدونو وطرف ته منسوب کیږي. لهذا دغه اقرار به هم د نو عقد وطرف ته منسوبول کیږي؛ ځکه چي عقود مشروع دي او دا به ویل کیږي چي مُقِر د دراهمو د وجوب سبب تجارت بیان کړی دی (یعني هغه ګواکي داسي ویلي دي چي پر ما امثلاً ا

بيع کولو په وجه د فلانکي زر درهمه باندې دي)، او دا اقرار به د هلاکولو. غصب کولو يعني د حرام کار وطرف ته نه منسوبول کيږي.

## په پورتني صورت کې د غصب يا امانت اقرار کول

وَلَوْقَالَ: اِغْتَصَبْتُ مِنْهُ أَلْفًا أَوْ قَالَ: أَوْدَعَنِيْ او که يو څوک ووايي: چې ما له فلانکي څخه زر درهمه غصب کړي دي يا ووايي: چې فلانکي ما ته زر درهمه په امانت ايښي دي ثُمَّ قَالَ: هِيَ زُيُوفٌ أَوْ نَبَهْرَجَةٌ بيا ووايي: چې هغه کوټه دي يا نبهرجة دي صُدِّقَ نو د هغه تصديق به کيږي وَصَلَ أَمْ فَصَلَ برابره ده هغه دا متصلاً ووايي او که منفصلاً لِأَنَّ الْإِنْسَانَ يَغْصِبُ مَا يَجِدُ وَيُوْدِعُ مَا يَمْلِكُ ځکه انسان چې کوم څه پيدا کړي هغه غصب کوي او د کوم څه چې مالک وي هغه په امانت ورکوي فَلَا مُقْتَضٰى لَهٗ فِي الْجِيَادِ نو ځکه په کره کېدلو کې دوی لره تقاضا نشته [يعني نو ځکه د امانت او د غصب والا دراهمو کَرَه کېدل ضروري نه دي] وَلَا تَعَامُلَ او په دې [امانت او غصب] کې د کَرَه دراهمو تعامل هم نشته فَيَكُوْنُ بَيَانَ النَّوْعِ نو ځکه د مُقر دا بيان [قول] به د نوع بيان وي فَيَصِحُّ وَإِنْ فَصَلَ نو ځکه به صحيح وي که څه هم منفصلاً يې بيان کړي وَلِهٰذَا لَوْ جَاءَ رَادُّ الْمَغْصُوْبِ وَالْوَدِيْعَةِ بِالْمَعِيْبِ او همدا وجه ده که د مغصوب او امانت واپس کونکی سړی عيبداره دراهم راوړي كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهٗ نو قول د هغه معتبر دی وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهٗ لَا يُصَدَّقُ فِيْهِ مَفْصُوْلًا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې د منفصلاً ويلو په صورت کې به د هغه تصديق نه کيږي اِعْتِبَارًا بِالْقَرْضِ پر قرض به قياس کولو سره إِذِ الْقَبْضُ فِيْهِمَا هُوَ الْمُوْجِبُ لِلضَّمَانِ ځکه چې په غصب او قرض کې همدا قبضه د ضمان واجبونکې ده وَلَوْقَالَ: هِيَ سَتُّوْقَةٌ أَوْ رَصَاصٌ بَعْدَ مَا أَقَرَّ بِالْغَصْبِ وَالْوَدِيْعَةِ وَوَصَلَ او که مُقر د غصب او امانت له اقرار کولو څخه وروسته متصلاً ووايي: چې هغه ستوقه دراهم وه صُدِّقَ نو تصديق به يې کيږي وَإِنْ فَصَلَ او که هغه منفصلاً دا ووايي لَمْ يُصَدَّقْ نو تصديق به يې نه کيږي لِأَنَّ السَّتُّوْقَةَ لَيْسَتْ مِنْ جِنْسِ الدَّرَاهِمِ ځکه چې ستوقه د دراهمو له جنس څخه نه دي لٰكِنَّ الْاِسْمَ يَتَنَاوَلُهَا مَجَازًا ليکن اسم [لفظ] مجازاً هغه لره شامل دی فَكَانَ بَيَانًا مُغَيِّرًا لهذا دا به مُغير بيان وي فَلَا بُدَّ مِنَ الْوَصْلِ نو ځکه [د هغه] متصل والی ضروري دی وَإِنْ قَالَ فِيْ هٰذَا كُلِّهٖ أَلْفًا او که مُقر په دې

ټولو صورتونو کې ووايي چې زر درهمه دي ثُمَّ قَالَ: إِلَّا أَنَّهُ يَنْقُصُ كَذَا بيا ووايي: لېکن له زرو درهمو څخه دومره کم دي لَمْ يُصَدَّقْ نو د هغه تصديق به نه کيږي وَإِنْ وَصَلَ او که متصلاً دا ووايي صُدِّقَ نو تصديق به يې کيږي لِأَنَّ هَذَا اسْتِثْنَاءُ الْمِقْدَارِ ځکه چې دا د مقدار استثناء ده وَالِاسْتِثْنَاءُ يَصِحُّ مَوْصُولًا او استثناء متصلاً صحيح کيږي بِخِلَافِ الزِّيَافَةِ په خلاف د کوټه والي لِأَنَّهَا وَصْفٌ ځکه چې هغه [په دراهمو کې] يو وصف دی وَاسْتِثْنَاءُ الْأَوْصَافِ لَا يَصِحُّ او د اوصافو استثناء نه صحيح کيږي وَاللَّفْظُ يَتَنَاوَلُ الْمِقْدَارَ دُونَ الْوَصْفِ او لفظ د "أَلْف" [يعني زر] مقدار لره شامل دی، نه وصف لره وَهُوَ تَصَرُّفٌ لَفْظِيٌّ او دا لفظي تصرف دی كَمَا بَيَّنَّا لکه څرنګه چې موږ بيان کړه وَلَوْ كَانَ الْفَصْلُ ضَرُورَةَ انْقِطَاعِ الْكَلَامِ او که چيرې فصل کول [منفصلاً ويل] د خبرو بندېدلو [ساه درېدلو] د ضرورت په وجه وي فَهُوَ وَاصِلٌ نو هغه وصل کونکی [متصل ويونکی] دی لِعَدَمِ إِمْكَانِ الِاحْتِرَازِ عَنْهُ ځکه چې له دې څخه ځان ساتل ممکن نه دي.

**اللغات**: ﴿نبهرجة﴾ د دې لفظ او نورو الفاظو تعريفونه د تېر عبارت په لغاتو کې ذکر سول، ﴿انقطاع﴾ د انفعال د باب مصدر دی: قطع کېدل، درېدل، بندېدل. ﴿احتراز﴾ د افتعال د باب مصدر دی: ځان ساتل (بچ کېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک اقرار وکړي چې "ما د فلانکي زر درهمه غصب کړي دي"، يا داسې ووايي "زما سره د فلانکي زر درهمه امانتاً پراته دي"، او بيا ووايي "هغه دراهم کوټه دي. يا نبهرجه دي"، نو د مُقر دا قول معتبر دی، برابره ده هغه دا متصلاً ووايي او که منفصلاً، په هر صورت کې د هغه قول معتبر او مقبول دی؛ ځکه غل او غاصب چې کوم څه ومونډي هغه غصب کوي او کله چې د امانت (وديعت) معامله وي، نو څه چې د انسان سره موجود وي، هغه يو چا ته په امانت ورکوي. او په دې وختونو کې د کره او کوټه تحقيق نه کيږي، او عموماً په غصب او داسې نورو کې د کَره دراهمو تعامل هم نسته. نو ځکه د مُقر دا قول "هِيَ زُيُوفٌ" به بيان نوع وي، لهذا دا بيان به صحيح وي. برابره ده هغه متصلاً وي او که منفصلاً. امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې که مُقر منفصلاً "هِيَ زُيُوفٌ" ووايي، نو د هغه تصديق به نه کيږي، لکه څرنګه چې په قرض کې د منفصلاً قول تصديق نه

کیږي؛ ځکه چې په غصب او قرض کې صرف قبضه د ضمان مُوجب ده یعني پر قرض د غصب د قیاسولو وجه صرف قبضه ده. (احسن الهدایه)

ولوقال هی ستوقة إلخ: تشریح واضحه ده.

وإن قال إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مُقِر په دې ټولو صورتونو کې صرف د زرو درهمو اقرار وکړي مثلاً هغه داسې ووایي "لِفُلَانٍ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ" یا ووایي "أَوْدَعَنِيْ أَلْفَ دِرْهَمٍ" یا ووایي "أَقْرَضْتَنِيْ أَلْفَ دِرْهَمٍ" یا ووایي "غَصَبْتُ أَلْفَ دِرْهَمٍ" او پر خپل دې قول د هیڅ شي اضافه نه وکړي، صرف په آخر کې داسې ووایي "إِلَّا إِنَّهُ يَنْقُصُ" یعني "پر ما د فلانکي زر درهمه باندې دي خو هغه له زرو څخه کم دي"، یا "ما زر درهمه غصب کړي دي خو هغه له زرو څخه کم دي"، نو په دې ټولو صورتونو کې حکم دا دی چې که هغه منفصلاً دا ویلي وي نو د هغه تصدیق به نه کیږي. لېکن که متصلاً یې ویلي وي، نو د هغه تصدیق به کیږي؛ ځکه چې "إِلَّا أَنَّهُ يَنْقُصُ" د مقدار استثناء ده. او د استثناء په هکله تاسو ته ښه معلومه ده چې هغه صرف متصلاً صحیح کیږي. ها! که چیرې مُقِر "إِلَّا أَنَّهَا زُيُوْفَةٌ" ویلي وای، نو صحیح به نه وای؛ ځکه چې زیافت (کوټه والی) د دراهمو وصف دی او د وصف استثناء صحیح نه ده. همدارنګه مستثنیٰ منه یعني "أَلْف دِرْهَم" مقدار لره شامل دي، نه وصف لره. دی او څرنګه چې په استثناء سره صرف په ملفوظ کلام کې تصرف کیږي. لهذا لفظ یعني مستثنیٰ منه چې کوم شي لره شامل وي، صرف د هغه استثناء به صحیح وي او کوم څه لره چې لفظ شامل نه وي، د هغه استثناء به هم صحیح نه وي.

## تر مطلق اقرار وروسته یو خاص قید والا شی پېښول

وَمَنْ أَقَرَّ بِغَصْبِ ثَوْبٍ ثُمَّ جَاءَ بِثَوْبٍ مَعِيْبٍ او که څوک د یو کپړې د غصب کولو اقرار وکړي بیا عیبداره کپړه راوړي [او د قاضي مجلس ته حاضر سي] فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو قول د هغه معتبر دی لِأَنَّ الْغَصْبَ لَا يَخْتَصُّ بِالسَّلِيْمِ ځکه چې غصب کول د صحیح سالمې کپړې سره خاص نه دي وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ: أَخَذْتُ مِنْكَ أَلْفَ دِرْهَمٍ وَدِيْعَةً فَهَلَكَتْ او که څوک بل چا ته ووایي: ما ستا څخه زر درهمه د امانت په توګه اخیستي وه او هغه هلاک سوه [ضایع سوه] فَقَالَ: لَا بَلْ أَخَذْتَهَا غَصْبًا او هغه بل څوک [مقر لهٗ] ووایي: نه! بلکې تا هغه غصب کړي وه فَهُوَ ضَامِنٌ نو مُقِر ضامن ګرځي [یعني د هغه زر درهمو ضمان

(تاوان) پر لازميږي] وَإِنْ قَالَ: أَعْطَيْتَنِيهَا وَدِيعَةً او که مُقِر ووايي: تا ما ته زر درهمه د امانت په توګه راکړي وه فَقَالَ: لَا بَلْ غَصَبْتَهَا او هغه [مقر لهٗ] ووايي: چې نه! بلکې هغه تا غصب کړي وه لَمْ يَضْمَنْ نو نه ضامن کيږي وَالْفَرْقُ أَنَّ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ أَقَرَّ بِسَبَبِ الضَّمَانِ وَهُوَ "الْأَخْذُ" او [په دې دواړو صورتو کې] فرق دا دی چې په اول صورت کې مُقِر د ضمان د سبب يعني د "اخيستلو" اقرار کړی دی ثُمَّ ادَّعَى مَا يُبْرِئُهُ وَهُوَ الْإِذْنُ او بيا مُقِر د داسې شي دعوىٰ کړې ده کوم چې مُقِر [له ضمان څخه] بري کوي چې هغه اجازت دی وَالْآخَرُ يُنْكِرُهُ او بل يو [يعني مقرلهٗ] د دې انکار کوي فَيَكُونُ الْقَوْلُ لَهُ مَعَ الْيَمِينِ نو ځکه د قسم سره به د هغه قول معتبر وي وَفِي الثَّانِي أَضَافَ الْفِعْلَ إِلَى غَيْرِهِ او په دويم صورت کې مُقِر فعل د بل چا [مقر لهٗ] وطرف ته منسوب کړی دی وَذَاكَ يَدَّعِي عَلَيْهِ سَبَبَ الضَّمَانِ وَهُوَ الْغَصْبُ او هغه [مقر لهٗ] پر هغه د ضمان د سبب يعني د غصب دعوىٰ کوي فَكَانَ الْقَوْلُ لِمُنْكِرِهِ مَعَ الْيَمِينِ نو ځکه د قسم سره به د غصب د منکر قول معتبر وي وَالْقَبْضُ فِي هَذَا كَالْأَخْذِ او په دې سلسله کې قبضه کول د اخيستلو په شان دي وَالدَّفْعُ كَالْإِعْطَاءِ او ورکول د عطا کولو په شان دي [يعني "دفعت" ويل د "اعطيتُ" د ويلو په شان دي، په حکم کې يې فرق نشته] فَإِنْ قَالَ قَائِلٌ: إِعْطَاؤُهُ وَالدَّفْعُ إِلَيْهِ لَا يَكُونُ إِلَّا بِقَبْضِهِ او که يو ويونکی ووايي [يعني که يو څوک اعتراض وکړي]: چې مُقِر ته ورکول او عطا کول د هغه له قبضه کولو څخه بغير نه ثابتيږي فَنَقُولُ: قَدْ يَكُونُ بِالتَّخْلِيَةِ وَالْوَضْعِ بَيْنَ يَدَيْهِ نو موږ [جوابًا] وايو چې: ورکول او عطا کول ځيني وخت په ور پرېښوولو [ورسپارلو] او د مُقِر مخته په اېښوولو سره هم کيږي وَلَوِ اقْتَضَى ذَلِكَ او که چيرې ورکول او عطا کول د قبضې تقاضا کوي فَالْمُقْتَضَى ثَابِتٌ ضَرُورَةً نو مقتضىٰ [قبضه] ضرورتًا ثابته ده فَلَا يَظْهَرُ فِي انْعِقَادِهِ سَبَبُ الضَّمَانِ نو ځکه د ضمان د سبب په انعقاد کې به دا مقتضىٰ نه ثابتيږي وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: أَخَذْتُهَا مِنْكَ وَدِيعَةً وَقَالَ: الْآخَرُ لَا بَلْ قَرْضًا او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چې مُقِر ووايي: ما ستا څخه د امانت په توګه زر درهمه اخيستي وه او بل يو [مُقرلهٗ] ووايي: نه! بلکې تا د قرض په توګه اخيستي وه حَيْثُ يَكُونُ الْقَوْلُ لِلْمُقِرِّ نو [په دې صورت کې] قول د مُقِر معتبر دی وَإِنْ أَقَرَّ بِالْأَخْذِ که څه هم هغه د

اخیستلو اقرار کوي لِأَنَّهُمَا تَوَافَقَا هُنَاكَ عَلَى أَنَّ الْأَخْذَ كَانَ بِالْإِذْنِ ځکه چي هلته [یعني په دې صورت کي] دوی واړو پر دې خبره موافقت کړی دی چي اخیستل په اجازت سره وه إِلَّا أَنَّ الْمُقَرَّ لَهُ يَدَّعِي سَبَبَ الضَّمَانِ وَهُوَ الْقَرْضُ وَالْآخَرُ يُنْكِرُهُ مګر دا چي مقر لهٗ د ضمان د سبب دعوىٰ کوي او بل یو [مُقِر] د دې انکار کوي فَافْتَرَقَا نو ځکه دواړه صورتونو سره جلا سوه [یعني په دواړو کي فرق ثابت سو].

**اللغات**: ﴿ضمان﴾ تاوان، جرمانه، ضمانت (ذمه واري)، ﴿ما يبرئه﴾ د افعال د باب مضارع ده، په شروع کي يې ”ما“ نافيه دی: بري کول، ﴿تخلية﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، د دې باب ښو معناوي دي چي د صلې په بدلون سره یې معنیٰ هم بدلیږي: آزادول، پرېښوول او داسي نور، کله چي د مبيع سره ذکر سي، نو د ”ورسپارلو“ معنیٰ ورکوي، یعني له مبيع ښخه خپل قبضه ختمول او د مشتري لپاره په هغه کي تصرف مباح کول، ﴿إذن﴾ اجازت، اجازه، ﴿مقتضٰی﴾ د افتعال د باب مفعول دی: د کوم شه چي تقاضا سوې وي، مطلوب.

**تشريح**: د عبارت اوله مسئله ”ومن أقرّ بغصب“ خو واضحه ده. دويمه مسئله دا ده که یو سړی بل چا ته ووایي چي ”ما ستا ښخه امانتاً (وديعتاً) زر درهمه اخيستي وه او هغه ضايع سوه“، او دا بل شوک یعني مقر لهٗ ووایي چي ”تا هغه زما ښخه غصباً اخيستي وه“، نو د قسم سره د مقر لهٗ قول معتبر دی او مُقر د ده لپاره د زرو درهمو ضامن دی (یعني هغه به ده ته په ضمان [تاوان] کي زر درهمه ورکوي)؛ ځکه چي مُقِر اول د ”أَخَذْتُ مِنْكَ“ په ویلو سره د ضمان د سبب دعویٰ کړې ده او بیا یې د ”وَدِيْعَة“ په ویلو سره له ضمان ښخه د بري کېدلو دعویٰ کړې ده، حال دا چي مقر لهٗ د دې منکر دی، او قول د منکر معتبر وي د قسم سره، نو ځکه به د قسم سره د مقر لهٗ قول معتبر وي. د دې په خلاف که مُقِر داسي ووایي چي ”تا ما ته زر درهمه امانتاً راکړي وه“ او مقر لهٗ ووایي چي ”تا هغه غصب کړي وه، نو په دې صورت کي د مُقِر قول معتبر دی؛ ځکه چي دلته مُقِر د فعل نسبت د مقر لهٗ وطرف ته کړی دی یعني هغه د دراهمو د امانتاً ورکولو فعل د مقر لهٗ وطرف ته منسوب کړی دی او مقر لهٗ د هغه قول تسليموي او پر هغه د ضمان د سبب دعویٰ کوي، حال دا چي مُقر د دې منکر دی، نو ځکه به د قسم سره د مُقِر قول معتبر وي. یعني په دواړو صورتونو کي چي کوم یو منکر وي، د هغه قول معتبر دی.

والقبض إلخ: فرمايي کوم حکم چې د اخيستلو "أخذ" دی هغه حکم د قبضه کولو هم دی. يعني د "أَخَذْتُ" او "قَبَضْتُ" دواړو په صورت کې مُقر ضامن کيږي. همدارنګه کوم حکم چې د دفع يعني "دَفَعْتُ" دی هغه حکم د اعطاء يعني د "أَعْطَيْتُ" هم دی يعني د دواړو د ويلو په صورت کې مُقر نه ضامن کيږي. اوس که يو څوک اعتراض وکړي چې په اعطاء او دفع کې هيڅ فرق نشته؛ ځکه چې مُقر ته ورکول او عطاء کول د هغه له قبضې څخه بغير نه پوره کيږي او په دې توګه د اعطاء او دفع په صورت کې هم پر هغه ضمان لازميدل پکار دي. حال دا چې د اعطاء او دفع په صورت کې مُقر له ضمان څخه بري کړی سوی دی.

د دې جواب دا دی چې د اعطاء او دفع لپاره قبضه ضروري نه ده. بلکې ځينې وخت مُقر ته په سامان ورسپارلو يا د مُقر مخته په سامان اېښوولو سره هم اعطاء او دفع ثابتيږي. او که بيا هم موږ دا تسليم کړو چې په اعطاء او دفع کې قبضه ضروري ده. نو په دې صورت کې جواب دا دی چې قبضه ضرورتاً ثابتيږي. يعني د مُقر مخته په مال اېښوولو سره ضرورتاً قبضه ثابتيږي. لهذا پر مُقر د ضمان واجبيدلو په حواله سره به دا قبضه ثابته نه منل کيږي؛ ځکه قاعده دا ده چې "الضَّرُورَةُ لَا يَتَعَدّٰى عَمَّا عَدَاهُ" (ضرورت خپل ماسوا ته نه متعدي کيږي).

د دې په خلاف که مُقر ووايي چې "ما ستا څخه امانتاً (وديعتاً) زر درهمه اخيستي وه" او مقر لهٗ ووايي چې "تا په قرض اخيستي وه"، نو په دې صورت کې که څه هم مُقر د اخيستلو "أَخَذْتُ" اقرار کړی دی خو بيا هم د هغه قول معتبر دی؛ ځکه چې دلته مُقر او مقر لهٗ دواړه پر دې خبره متفق دي چې معامله په اجازت سره سوې وه، لېکن مقر لهٗ د ضمان د سبب مدعي دی او مُقر د دې منکر دی، نو ځکه د انکار وجه به د قسم سره د مُقر قول معتبر وي. او د مقر لهٗ د دې قولونو "بَلْ غَصَبْتَهَا" او "بَلْ أَخَذْتَهَا" په مينځ کې همدغه فرق دی. (احسن الهدايه)

## د بل چا لپاره د قبضې اقرار کول او د هغه د استحقاق انکار کول (حکم او تفصيل)

| فَإِنْ قَالَ: هٰذِهِ الْأَلْفُ كَانَتْ وَدِيعَةً لِي عِنْدَ فُلَانٍ فَأَخَذْتُهَا او که يو څوک ووايي: دغه زر درهمه زما د فلانکي سره امانتاً پراته وه او ما هغه [ځني] واخيستل فَقَالَ فُلَانٌ: هِيَ لِي او فلانکی ووايي: چې هغه زما دي فَإِنَّهُ يَأْخُذُهَا نو همدا فلانکی [مقر لهٗ] به هغه دراهم اخلي لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِالْيَدِ لَهُ وَادَّعَى اسْتِحْقَاقَهَا عَلَيْهِ ځکه مُقر د قبضې اقرار د فلانکي لپاره کړی دی او [بيا] پرٍ هغه يې د خپل استحقاق دعویٰ کړې ده وَهُوَ يُنْكِرُ حال دا |
|---|

چي فلانکی امقر لهٔ] د دې استحقاق انکار کوي وَالْقَوْلُ لِلْمُنْكِرِ او قول د منکر معتبر دی وَلَوْ قَالَ: آجَرْتُ دَابَّتِيْ هٰذِهٖ فُلَانًا فَرَكِبَهَا وَرَدَّهَا او که یو څوک ووايي: ما فلانکي ته زما دغه څاروی [مثلا آس] په کرایه ورکړی او هغه پر سپور سو او بيا يې ما ته واپس کړی أَوْ قَالَ: آجَرْتُ ثَوْبِيْ هٰذَا فُلَانًا فَلَبِسَهٗ وَرَدَّهٗ يا [داسي] ووايي: ما فلانکي ته زما دغه کپړه په أجرت ورکړه او هغه واغوستله او بيا يې ماته واپس کړه وَقَالَ فُلَانٌ: كَذَبْتَ وَهُمَا لِيْ او فلانکی ووايي: چي ته درواغ وايې! او هغه دواړه [يعني څاروی يا کپړه] زما دي فَالْقَوْلُ قَوْلُهٗ نو قول د مُقِر معتبر دی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ[*]: اَلْقَوْلُ قَوْلُ الَّذِيْ أُخِذَ مِنْهُ الدَّابَّةُ وَالثَّوْبُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: قول د هغه کس معتبر دی چي له هغه څخه دا څاروی او کپړه اخيستل سوي وي وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قياس دی وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ الْإِعَارَةُ وَالْإِسْكَانُ او پر همدغه اختلاف دي عاريتاً ورکول او اسول [يعني د اوسېدلو لپاره کور ورکول] وَلَوْ قَالَ: خَاطَ فُلَانٌ ثَوْبِيْ هٰذَا بِنِصْفِ دِرْهَمٍ ثُمَّ قَبَضْتُهٗ او که يو څوک ووايي: چي فلانکي زما دغه کپړه په نيم درهم ګنډلې [جوړه کړې] ده او ما پر هغه قبضه هم کړې ده وَقَالَ فُلَانٌ: اَلثَّوْبُ ثَوْبِيْ او فلانکی ووايي: چي دا خو زما کپړه ده فَهُوَ عَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ فِي الصَّحِيْحِ نو د صحيح قول مطابق دا صورت هم پر مذکوره اختلاف دی وَجْهُ الْقِيَاسِ مَا بَيَّنَّاهُ فِي الْوَدِيْعَةِ او د قياس دليل هغه دی کوم چي موږ د وديعت په باره کي بيان کړی وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ وَهُوَ الْفَرْقُ: أَنَّ الْيَدَ فِي الْإِجَارَةِ وَالْإِعَارَةِ ضَرُوْرِيَّةٌ تَثْبُتُ ضَرُوْرَةَ اسْتِيْفَاءِ الْمَعْقُوْدِ عَلَيْهِ وَهُوَ الْمَنَافِعُ او د استحسان دليل (او همدا د فرق وجه ده) دا دی: چي په اجاره او اعاره کي قبضه د ضرورت پر بناء وي کوم چي د معقود عليه يعني د منافعو د حاصلولو په ضرورت سره ثابتيږي فَيَكُوْنُ عَدَمًا فِيْمَا وَرَاءَ الضَّرُوْرَةِ نو ځکه له ضرورت څخه بغير به دا قبضه معدومه وي فَلَا يَكُوْنُ إِقْرَارًا لَهٗ بِالْيَدِ مُطْلَقًا لهذا د مُقِر د عاريتاً او اجارتاً ورکولو اقرار به د هغه لپاره د مطلق قبضې اقرار نه وي بِخِلَافِ الْوَدِيْعَةِ په خلاف د امانت لِأَنَّ الْيَدَ فِيْهَا مَقْصُوْدَةٌ ځکه چي په امانت کي قبضه مقصود وي وَالْإِيْدَاعُ إِثْبَاتُ الْيَدِ قَصْدًا او امانتاً ورکول قصداً قبضه ثابتوي فَيَكُوْنُ الْإِقْرَارُ بِهٖ اعْتِرَافًا بِالْيَدِ لِلْمُوْدِعِ نو ځکه د امانت اقرار به د مودع [امانتاً ايښوونکي] لپاره د

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۵۱۳د)، وكذا في نتائج الأفكار (ج:۷، ص:۳۵۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۰۳]

قبضې اقرار وي وَوَجْهٌ آخَرُ: أَنَّ فِي الْإِجَارَةِ وَالْإِعَارَةِ وَالْإِسْكَانِ أَقَرَّ بِيَدٍ ثَابِتَةٍ مِنْ جِهَتِهِ او بل دليل دا دی: چې په اجاره، اعاره او اسکان کې مُقِر د داسې قبضې اقرار کوي کوم چې د هغه له طرفه ثابته ده فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ فِي كَيْفِيَّتِهِ نو ځکه د قبضې د کيفيت په هکله به صرف د مُقِر قول معتبر وي وَلَا كَذٰلِكَ فِي مَسْأَلَةِ الْوَدِيعَةِ او د امانت والا په مسئله کې داسې نه دي لِأَنَّهُ قَالَ فِيهَا: كَانَتْ وَدِيعَةً ځکه په دې کې مُقِر ويلي دي: هغه د امانت په توګه وو [يعني د امانت په مسئله کې مُقِر صرف د امانت کېدلو اقرار کړی دی] وَقَدْ تَكُونُ مِنْ غَيْرِ صُنْعِهِ او امانت کله د مودِع [امانتا اېښوونکي] له فعل څخه بغير هم ثابتېږي حَتّٰى لَوْ قَالَ: أَوْدَعْتُهَا همدا وجه ده: که مُودِع [داسې] ويلي وای: ما هغه ته امانتاً ورکړې وو كَانَ عَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ نو دا به هم پر دغه اختلاف وای وَلَيْسَ مَدَارُ الْفَرْقِ عَلٰى ذِكْرِ الْأَخْذِ فِي طَرَفِ الْوَدِيعَةِ وَعَدَمِهِ فِي الطَّرَفِ الْآخَرِ وَهُوَ الْإِجَارَةُ وَأُخْتَاهُ او د فرق مدار د امانت په جانب کې د "اخذ" پر ذکر کولو او په بل جانب يعني په اجاره، اعاره او د هغوی په خور [اسکان] کې پر نه ذکر کولو نه دی [يعني د فرق او اختلاف مدار پر دې خبره نه دی چې د امانت په صورت کې مُقِر د اخيستلو وضاحت کړی دی او په اجاره او داسې نورو کې يې دا وضاحت نه دی کړی] لِأَنَّهُ ذَكَرَ الْأَخْذَ فِي وَضْعِ الطَّرَفِ الْآخَرِ فِي كِتَابِ الْإِقْرَارِ أَيْضًا ځکه چې امام محمد رَحِمَهُ الله په "كتاب الاقرار" کې په بل جانب [يعني په اجاره کې] هم د "اخذ" لفظ ذکر کړی دی [يعني د جامع صغير په کتاب الاقرار کې امام محمد رَحِمَهُ الله د اجارې په صورت کې هم د "أخذ" (اخيستلو) يادونه کړې ده] وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: اِقْتَضَيْتُ مِنْ فُلَانٍ أَلْفَ دِرْهَمٍ كَانَتْ لِيْ عَلَيْهِ أَوْ أَقْرَضْتُهُ أَلْفًا ثُمَّ أَخَذْتُهَا مِنْهُ او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چې مُقِر داسې ووايي: ما له فلانکي څخه هغه زر درهمه واخيستل کوم چې ما پر هغه باندې وه، يا ما هغه ته زر درهمه په قرض ورکړې وه بيا مې له هغه څخه واخيستل وَأَنْكَرَ الْمُقَرُّ لَهُ او مقر لهٔ انکار وکړي حَيْثُ يَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو [په دې صورت کې] قول د منکر معتبر دی لِأَنَّ الدُّيُونَ تُقْضٰى بِأَمْثَالِهَا ځکه چې قرضونه په خپل مثل سره اداء کيږي وَذٰلِكَ إِنَّمَا يَكُونُ بِقَبْضٍ مَضْمُونٍ او دا صرف په مضمونه [ضمان والا] قبضه سره کيږي فَإِذَا أَقَرَّ بِالْاِقْتِضَاءِ نو کله چې هغه د اخيستلو اقرار وکړی فَقَدْ أَقَرَّ بِسَبَبِ الضَّمَانِ نو هغه د ضمان د سبب اقرار [هم] وکړی ثُمَّ ادَّعٰى تَمَلُّكَهُ عَلَيْهِ بِمَا يَدَّعِيهِ مِنَ الدَّيْنِ مُقَاصَّةً بيا ده پر مقر لهٔ د قرض په دعویٰ کولو سره د مقاصه [تبادله] په توګه د خپل ځان د مالک کېدلو دعویٰ وکړه وَالْآخَرُ يُنْكِرُهُ او بل يو [مقر لهٔ] د دې انکار کوي نو ځکه به د هغه قول معتبر وي [ أَمَّا هٰهُنَا الْمَقْبُوضُ عَيْنُ مَا ادَّعٰى فِيهِ الْإِجَارَةَ وَمَا أَشْبَهَهَا ليکن دلته [يعني په اجاره او داسې نورو کې] مقبوض

بعينه هغه شی دی چي په هغه کي د اجارې او داسي نورو دعویٰ ده فَافْتَرَقَا نو ځکه دواړه يو له بل څخه جلا سول وَلَوْ أَقَرَّ أَنَّ فُلَانًا زَرَعَ هٰذِهِ الْأَرْضَ أَوْ بَنٰى هٰذِهِ الدَّارَ أَوْ غَرَسَ هٰذَا الْكَرْمَ وَذٰلِكَ كُلُّهُ فِي يَدِ الْمُقِرِّ او که يو ځوک اقرار وکړي چي فلانکي دغه ځمکه وکرل يا هغه دغه کور جوړ کړی يا هغه دغه [بوټي د] انګور ولګول حال دا چي دغه ټوله شيانو د مُقِر په قبضه کي وي فَادَّعَاهَا فُلَانٌ بيا فلانکی د دې شيانو دعویٰ وکړي [چي دا خو زما دي] وَقَالَ الْمُقِرُّ: لَا بَلْ ذٰلِكَ كُلُّهُ لِي اِسْتَعَنْتُ بِكَ فَفَعَلْتَ أَوْ فَعَلْتَهُ بِأَجْرٍ او مُقِر ووايي: چي نه! بلکي دا ټوله زما دي او ما [صرف] په دې کارو کي ستا څخه د مدد غوښتنه کړې وه نو تا [زما مدد] وکړی يا تا په مزدوري کار وکړی فَالْقَوْلُ لِلْمُقِرِّ نو قول د مُقِر معتبر دی لِأَنَّهُ مَا أَقَرَّ لَهُ بِالْيَدِ وَإِنَّمَا أَقَرَّ بِمُجَرَّدِ فِعْلٍ مِنْهُ ځکه چي مُقِر د فلانکي لپاره د قبضې اقرار نه دی کړی بلکي د هغه له طرفه يې ضرف د کار اقرار کړی دی وَقَدْ يَكُونُ ذٰلِكَ فِي مِلْكٍ فِي يَدِ الْمُقِرِّ حال دا چي کار کله په هغه ملکيت کي کيږي کوم چي د مُقِر په قبضه کي وي وَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: خَاطَ لِيَ الْخَيَّاطُ قَمِيصِيْ هٰذَا بِنِصْفِ دِرْهَمٍ او دا داسي سوه لکه يو ځوک چي ووايي: خياط زما دغه کميس په نيم درهم ګنډلی اجوړ کړی] دی وَلَمْ يَقُلْ: قَبَضْتُهُ مِنْهُ لېکن دا نه ووايي: چي ما له هغه څخه قبضه کړی [اخيستی] دی. لَمْ يَكُنْ إِقْرَارًا بِالْيَدِ نو دا [هم] د قبضې اقرر نه ګرځي وَيَكُوْنُ الْقَوْلُ لِلْمُقِرِّ او قول د مُقِر معتبر دی لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِفِعْلٍ مِنْهُ ځکه چي مُقِر د خياط د فعل اقرار کړی دی وَقَدْ يَخِيطُ ثَوْبًا فِي يَدِ الْمُقِرِّ او خياط کله د مُقِر په قبضه کي [هم] کميس ګنډي [جوړوي] كَذَا هٰذَا همداسي به دا هم وي.

**اللغات:** ﴿اليد﴾ قبضه. ﴿إعارة﴾ د افعال د باب مصدر دی: عاريتاً ورکول. خواست کونکي ته شی ورکول. (مثلاً که ځوک بل چا خواست وکړي: دا شی ما ته قرضاً يو څو وخت راکړه! زما ضروري پکار دی. نو که هغه ته شی ورکول سي نو دې ته "إعاره" او "عاريتاً ورکول" وايي). ﴿إسكان﴾ د افعال د باب مصدر دی: اسول. په يو ځای او کور کي يو ځوک بېله اُجرت ته (مفت) اسول. استوګنه ورکول. ﴿خاط﴾ د ضرب د باب ماضي ده: ګنډل. کپړه ګنډل (جوړول). ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: پوره اخيستل. ترلاسه کول. ﴿إيداع﴾ د افعال د باب مصدر دی: امانتاً اېښوول. امانتاً ورکول. ﴿اقتضيت﴾ د افتعال له بابه د واحد متكلم ماضي صيغه ده. کله چي د دې باب په صله کي يو حق مثلاً "قرض" ذکر سي نو معنیٰ يې ده: اخيستل. وصولول. ترلاسه کول. ﴿مُودِع﴾ د افعال د باب فاعل دی: امانتاً اېښوونکی (امانت پرېښوونکی). او مُودَع (بفتح الدال): امانت ساتونکی. امين. ﴿تملّكه﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مالک جوړېدل. مالک کېدل. ﴿مقاصة﴾ تبادله. ﴿زرع﴾ د فتح د باب ماضي ده: کرل. کښتګري کول. تخم کرل. ﴿بنٰى﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جوړول. تعميرول.

﴿غرس﴾ دا هم د ضرب د باب ماضي ده: درخته او نيالګی په ځمکه کي ايښوول (لګول). ﴿كَرْم﴾ انګور. مراد ځني دانګورو بوټي او نيالګي دي. ﴿استعنتُ﴾ داستفعال له بابه د واحد متکلم ماضي صيغه ده: د مدد طلب کول، مرسته غوښتل. ﴿خياط﴾ درزي، کپړه ګنډونکی (کالي جوړونکی).

**تشريح**: په دې عبارت کي څو مسئلې ذکر سوي دي چي هغه به انشاء الله على الترتيب ستاسو په خدمت کي پېش کړل سي:

اوله مسئله دا ده که زيد ووايي چي "زما زر درهمه د خالد سره د امانت په توګه پراته وه، او اوس ما له خالد څخه هغه دراهم واخيستل"، لېکن خالد (مقر لهٗ) ووايي "چي هغه دراهم زما دي (او زما څخه زيد غصب کړي دي)"، نو په دې صورت کي د مقر لهٗ يعني د خالد قول معتبر دی او زيد به هغه دراهم خالد ته واپس کوي؛ ځکه د "كَانَتْ وَدِيْعَةً لِيْ عِنْدَهٗ" په وينا سره مُقِر (زيد) د مقر لهٗ لپاره قبضه ثابته کړه او د "وَدِيْعَة" په وينا سره پر هغه دراهمو خپل استحقاق ثابتوي، حال دا چي مقر لهٗ له دې استحقاق څخه منکر دی، او قول د منر معتبر وي، نو ځکه دلته به هم د منکر (کوم چي مقر لهٗ [خالد] دی) قول به معتبر وي. د دې په خلاف که مُقِر ووايي چي "ما خالد ته خپل آس د سپرتيا لپاره ورکړی وو او خالد تر سپر ېدلو او خپل کار کولو وروسته ما ته هغه واپس کړی"، يا "دا کپړه ما هغه ته د اغوستولو لپاره ورکړې وه او هغه تر اغوستلو وروسته ما ته کپړه واپس کړه"، او مقر لهٗ (خالد) ووايي چي "ته درواغجن يې، دا آس او کپړه خو زما دي"، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مُقِر قول معتبر دی، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د مقر لهٗ قول معتبر دی (لېکن دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي دا مشهوره وي چي د آس او کپړې مالک مُقِر دی، او که چيري پر دې شيانو د مقر لهٗ ملکيت مشهوره وي، نو بيا صرف د مقر لهٗ قول معتبر دی (عنايه ج:۸، ص:۵۸۳)، همدا د قياس تقاضا ده.

د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مذکوره اختلاف په هغه صورت کي هم دی کله چي يو سړي يو چا ته د عاريتاً يو شي ورکولو يا د استوګني لپاره د کور ورکولو او بيا د واپس اخيستلو مُقِر وي، او مقر لهٗ وايي چي دا شی يا کور زما دی، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مُقِر قول معتبر دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د مقر لهٗ قول معتبر او راجح دی.

**ولوقال خاط لي فلان إلخ**: دا مسئله هم مختلف فيه ده. د قياس او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل هغه دی کوم چي په اوله مسئله کي د وديعت په باره کي بيان کړی سو. د استحسان او د امام صاحب رَحِمَهُ الله

دليل دا دی چې د اجاره او اعاره په صورت کې د مقر لهٗ قبضه ضرورتاً ثابتيږي؛ ځکه چې بغير له قبضې له هغه څخه فايده اخيستل ممکن نه دي، او قاعده دا ده چې کوم شی ضرورتاً ثابت وي، هغه صرف د ضرورت په اندازه عمل کوي، لهذا د منافعو له استيفاء څخه بغير د ملکيت او داسې نورو په حواله سره په عاريتاً يا اجارتاً اخيستل سوي شي کې به د مقر لهٗ قبضه معدومه وي، او استيفاء منافع والا قبضه به د ملکيت قبضه نه شمارل کيږي، لهذا اصل مالک به همدا مقر وي، او د ملکيت په حواله سره به د هغه قول مقبول او معتبر وي. د دې په خلاف د وديعت (امانت) په صورت کې چې څرنګه صرف قبضه اصل ده او مُودِع بذات خود د مُودَع قبضه ثابتوي او قبضه د ملکيت دليل ده. لهذا کله چې په خپله مُودَع د خپل ملکيت دعویٰ کوي، نو ځکه د هغه دعویٰ به مقبوله او معتبره وي.

و وجه آخر إلخ: د وديعت، اجاره او اعاره په مېنځ کې بل فرق دا هم دی چې په اجاره او اعاره کې صرف د مُقر له طرفه قبضه ورکول کيږي، نو ځکه د قبضې د حالت او کيفيت په هکله به صرف د مُقر قول منل کيږي، او مُقر چې د څه ډول قبضې دعویٰ کوي، د هغه دعویٰ به معتبره وي. خال دا چې د وديعت په مسئله کې د مُقر له طرفه قبضه ورکول ضروري نه دي؛ ځکه چې هغه "كَانَتْ وَدِيْعَةً" ويلي دي، "أَوْدَعْتُهَا" يې نه دي ويلي، چې له دې څخه دا احتمال راوځي چې هغه مال به لقطه وي او مُودَع به هغه راپورته کړی وي او د وديعت په توګه به يې د ځان سره ايښی وي. لهذا دلته د قبضې او د قبضې د کيفيت او نوعيت په هکله د مُقر قول منل ضروري نه دي. بلکې مقر لهٗ کوم چې د مُقر د استحقاق منکر دی د قسم سره به د هغه قول منل کيږي.

وليس مدار الفرق إلخ: فرمايي چې په وديعت، اجاره او اعاره کې د فرق دار ومدار پر دې خبره نه دی چې مُقر د وديعت په صورت کې "فَأَخَذْتُهُ مِنْه" ويلي دي او په اجاره او اعاره کې يې "وَرَدَهَا" ويلي دي او "فَأَخَذْتُهَا" يې نه دي ذکر کړي، يعني د فرق په سلسله کې د اخذ او عدم اخذ هيڅ کار نسته؛ ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله د جامع صغير په کتاب الاقرار کې د اجاره په ضمن کې د "أَخَذْتُهَا مِنْه" تذکره کړې ده. د دې په خلاف که مُقر ووايي چې "اِقْتَضَيْتُ مِنْ فُلَانٍ إلخ" ("ما له فلانکي هغه څخه زر درهمه واخيستل کوم چې زما پر هغه باندي وه"، يا "ما هغه ته زر درهمه په قرض ورکړي وه بيا مي له هغه څخه واخيستل")، لېکن مقر لهٗ (فلانکی) له دې څخه انکار کوي، نو په دې صورت کې د منکر يعني د مقر لهٗ قول معتبر دی؛ ځکه چې قرض بالمثل اداء کيږي (لکه مخکې چې شو

ځله ذکر سوي دي)، او دا په هماغه صورت کي ممکن دي کله چي مقر لهٔ پر داسي شي قبضه کړې وي کوم چي مضمون وي، يعني مقر لهٔ په هر اعتبار سره پر هغه قابض سوی وي، د دې لپاره چي پر مقر لهٔ د هغه اداء کول واجب وګرځي، بيا چي کله مُقِر دا اخيستلو اقرار وکړی نو هغه د دې خبري اقرار هم وکړی چي پر ما د ضمان سبب لازم سو، لېکن تر دې وروسته هغه پر مقر لهٔ د قرض اخيستلو په دعویٰ کولو سره خپل ځان د ضمان له سبب څخه بري کول غواړي، حال دا چي مقر لهٔ له دې څخه منکر دی، او قول د منکر معتبر وي د قسم سره، نو ځکه به دلته د مقر لهٔ قول د قسم سره معتبر وي.

د دې په خلاف په اجاره او اعاره کي بعينهٖ پر مدعیٰ بهٖ قبضه کيږي او د هغه پر مثل قبضه نه کيږي، نو ځکه د دې قبضې او دعوې په وجه به مُقِر د مقر لهٔ لپاره د ملکيت اقرار کونکی نه وي او په دې صورت کي به د مقر لهٔ دعویٰ معتبره نه وي. نو په دې حواله سره د قرض اخيستلو او د اجارتاً او عاريتاً ورکولو په احکامو کي فرق ثابت سو.

ولو أقرّ أن فلاناً إلخ: د دې حاصل دا دی چي که زيد ووايي "دا ځمکه زما ده او خالد په هغه کي کښتکري کړې ده". يا "دا کور زما دی او خالد په هغه کي خوني [کمرې] جوړې کړي دي". يا "دا ځمکه زما ده او خالد په هغه کي د انګورو بوټي اينبي دي". لېکن خالد ووايي چي "دا ټوله شيان زما دي. او مُقِر (زيد) ووايي چي "نه! بلکي زما دي او ما صرف ستا څخه د کار او خدمت په باره کي د مدد غوښتنه کړې وه". يا "تا په مزدوري دا کار کړی وو"، نو په دې صورت کي د مُقِر قول معتبر دی؛ ځکه چي مُقِر د مقر لهٔ لپاره صرف د کار اقرار کړی دی او د قبضې اقرار يې نه دی کړی، او صورت حال همداسي وي چي د ځمکي مالک په اُجرت او مزدوري سره د خپل کښت کرنه او داسي نور کارونه په بل چا کوي، او کار په کول د کار کونکي لپاره د قبضې او ملکيت دليل نه وي، لهذا دلته به د مقر لهٔ (خالد) فعل د هغه په حق کي د قبضې دليل نه وي. د دې مثال دا دی لکه يو سړی چي داسي ووايي "خياط زما دا کميس په نصف درهم سره جوړ کړی دی" او دا نه ووايي چي "قَبَضْتُهُ مِنْهُ". نو دا هم د مقر لهٔ لپاره صرف د فعل اقرار دی او د قبضې اقرار نه دی. همداسي په پورتنۍ مسئله کي هم د مُقِر اقرار د هغه له طرفه صرف د فعل اقرار دی، د قبضې اقرار نه دی. لهذا په دې سره به د مقر لهٔ لپاره ملکيت نه ثابتيږي. والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ إِقْرَارِ الْمَرِيْضِ

## (دا) باب د مريض د اقرار کولو (په بيان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې د صحيح او روغ کس د اقرار احکام او مسائل بيان سول، او اوس په دغه باب کي د مريض کس د اقرار په هکله احکام بيانول کيږي، ځرنګه چي صحت اصل دی او مرض فرع دی او اصل له فرع څخه مخکي وي، نو ځکه د روغ کس اقرار د مريض کس له اقرار څخه مخکي بيان کړی سوی دی. (بنايه)

### د مرضُ الموت اقرار (حکم او تفصيل)

وَإِذَا أَقَرَّ الرَّجُلُ فِي مَرَضِ مَوْتِهِ بِدُيُوْنٍ فرمايي: او که څوک په خپل مرضُ الموت کي د څو قرضونو اقرار وکړي وَعَلَيْهِ دُيُوْنٌ فِي صِحَّتِهِ او پر هغه د خپل صحت [روغتيا] په زمانه کي څه قرضونه باندي وي وَدُيُوْنٌ لَزِمَتْهُ فِي مَرَضِهِ بِأَسْبَابٍ مَعْلُوْمَةٍ او څه قرضونه داسي وي کوم چي پر هغه په مرضُ الموت کي په معلومه اسبابو سره لازم سوي وي فَدَيْنُ الصِّحَّةِ وَالدَّيْنُ الْمَعْرُوْفَةُ الْأَسْبَابِ مُقَدَّمٌ نو صحت او معلومه اسبابو والا قرضونه مخکي دي [يعني هغه به مخکي اداء کول کيږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: دَيْنُ الْمَرَضِ وَدَيْنُ الصِّحَّةِ يَسْتَوِيَانِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مرض او صحت قرضونه سره برابر دي لِاسْتِوَاءِ سَبَبِهِمَا ځکه چي د دوی سبب سره برابر دی وَهُوَ الْإِقْرَارُ الصَّادِرُ عَنْ عَقْلٍ وَدِيْنٍ او هغه داسي اقرار دی کوم چي له عقل او دين والا کس څخه صادر سوی دی وَمَحَلُّ الْوُجُوبِ الذِّمَّةُ الْقَابِلَةُ لِلْحُقُوْقِ او د وجوب [واجبېدلو] محل هغه ذمه ده کوم چي د حقوقو قابله ده [يعني کوم چي حقوق قبلولای سي] فَصَارَ كَإِنْشَاءِ التَّصَرُّفِ مُبَايَعَةً وَمُنَاكَحَةً نو دا داسي سوه لکه هغه چي [د بل چا سره] د بيع او نکاح تصرف کړی وي وَلَنَا: أَنَّ الْإِقْرَارَ لَا يُعْتَبَرُ دَلِيلًا إِذَا كَانَ فِيهِ إِبْطَالُ حَقِّ الْغَيْرِ زموږ دليل دا دی: چي که په اقرار کي د بل چا د حق باطلول [ضايع کول] وي نو هغه اقرار دليل نه ګرځي وَفِي إِقْرَارِ الْمَرِيضِ ذٰلِكَ او د مريض په اقرار کي دا خبره سته [چي په هغه سره د بل چا حق باطليږي] لِأَنَّ

حَقَّ غُرَمَاءِ الصِّحَّةِ تَعَلَّقَ بِهٰذَا الْمَالِ اسْتِيفَاءً ځکه چي د صحت والا [زماني] د قرضخواهانو حق د استيفاء په توګه د دې مال سره متعلق سوی دی وَلِهٰذَا مُنِعَ مِنَ التَّبَرُّعِ وَالْمُحَابَاةِ إِلَّا بِقَدْرِ الثُّلُثِ او په همدې وجه مريض له تبرّع او محابات څخه منع کول کيږي مګر د ثلث مال په اندازه [يعني هغه د ميراث له درېيمي حصې مال څخه په زائد مال کي تبرّع نه سي کولای او نه محابات کولای سي چي يو شی له خپل قيمت څخه په کم قيمت خرڅ کړي. بلکي هغه دا کارونه صرف د ميراثي مال په درېيمه حصه کي کولای سي]

بِخِلَافِ النِّكَاحِ په خلاف د نکاح لِأَنَّهُ مِنَ الْحَوَائِجِ الْأَصْلِيَّةِ وَهُوَ بِمَهْرِ الْمِثْلِ ځکه چي نکاح کول له اصلي حاجتونو څخه دي د مهرِ مثل په عوض کي وَبِخِلَافِ الْمُبَايَعَةِ بِمِثْلِ الْقِيمَةِ او په خلاف پر مثلي قيمت د بيع کولو لِأَنَّ حَقَّ الْغُرَمَاءِ تَعَلَّقَ بِالْمَالِيَّةِ لَا بِالصُّورَةِ ځکه چي [په دې صورت کي] د قرضخواهانو حق د ماليت سره متعلق دی، نه د صورت سره وَفِي حَالَةِ الصِّحَّةِ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِالْمَالِ او د صحت په زمانه کي د هغو حق د مال سره نه متعلق کيږي لِقُدْرَتِهِ عَلَى الِاكْتِسَابِ ځکه چي مريض [د صحت په زمانه کي] پر مال ګټلو [کار کولو] قادر وي فَيَتَحَقَّقُ التَّثْمِيرُ نو د هغه په مال کي اضافه [زياتوب] راتلای سي وَهٰذِهِ حَالَةُ الْعَجْزِ او دا د عاجزۍ حالت دی وَحَالَتَا الْمَرَضِ حَالَةٌ وَاحِدَةٌ او د مرض دواړه حالتونه سره يو دي لِأَنَّهُ حَالَةُ الْحَجْرِ ځکه چي هغه د ممانعت [او مجبورۍ] حالت دی بِخِلَافِ حَالَتَيِ الصِّحَّةِ وَالْمَرَضِ په خلاف د صحت او مرض د حالتونو لِأَنَّ الْأُولَى حَالَةُ إِطْلَاقٍ وَهٰذِهِ حَالَةُ عَجْزٍ ځکه چي اول د اباحت [جواز] حالت دی او دا بل د عاجزۍ حالت دی فَافْتَرَقَا نو دواړه حالتونه يو له بل څخه جلا سول وَإِنَّمَا تُقَدَّمُ الدُّيُونُ الْمَعْرُوفَةُ الْأَسْبَابِ لِأَنَّهُ لَا تُهْمَةَ فِي ثُبُوتِهَا او معلومه اسبابو والا قرضونه په ځکه مخکي کول کيږي چي د هغوی په ثابتېدلو کي هيڅ تهمت نسته إِذِ الْمُعَايَنُ لَا مَرَدَّ لَهُ ځکه په سترګو ليدل سوي شي [يعني معلوم قرض] الره واپس ګرځېدل نسته [يعني د هغه د واپس کولو او شاته کولو هيڅ ګنجايش نسته] وَذٰلِكَ مِثْلُ بَدَلِ مَالٍ مَلَكَهُ أَوِ اسْتَهْلَكَهُ وَعُلِمَ وُجُوبُهُ بِغَيْرِ إِقْرَارِهِ او د دې [معروفة الأسباب قرضونو] مثال دا دی لکه مريض چي د يو مال د بدل مالک سوی وي يا يې هغه هلاک کړی وي او د هغه وجوب د ده له اقرار څخه بغير په بل دليل سره معلوم سوی وي أَوْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً بِمَهْرِ مِثْلِهَا يا هغه د يو ښځي سره د هغې پر مهرِ مثل نکاح کړې وي وَهٰذَا الدَّيْنُ

مِثْلُ دَيْنِ الصِّحَّةِ او دا قرض د صحت والا [زماني] د قرض په شان دی لَا يُقَدَّمُ أَحَدُهُمَا عَلَى الْآخَرِ یو به پر بل نه مخکي کول کیږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چي مونږ بیان کړی وَلَوْ أَقَرَّ بِعَيْنٍ فِي يَدِهِ لِآخَرَ او که مریض د بل چا لپاره د داسي عین شي اقرار وکړي کوم چي د ده په قبضه کي وي لَمْ يَصِحَّ فِي حَقِّ غُرَمَاءِ الصِّحَّةِ نو د صحت والا قرضخواهانو په حق کي دا اقرار نه صحیح کیږي لِتَعَلُّقِ حَقِّهِمْ بِهِ ځکه د دې شي سره د هغو حق متعلق سوی دی وَلَا يَجُوزُ لِلْمَرِيضِ أَنْ يَقْضِيَ دَيْنَ بَعْضِ الْغُرَمَاءِ دُونَ الْبَعْضِ او د مریض لپاره دا جائز نه دی چي هغه د ځیني قرضخواهانو قرض اداء کړي او د ځینو قرض اداء نه کړي لِأَنَّ فِي إِيثَارِ الْبَعْضِ إِبْطَالُ حَقِّ الْبَاقِينَ ځکه ځینو ته په ترجیح ورکولو کي د باقي قرضخواهانو د حق باطلول [ضایع کول] سته وَغُرَمَاءُ الصِّحَّةِ وَالْمَرَضِ فِي ذٰلِكَ سَوَاءٌ او په دې سلسله کي د صحت او مرض والا قرضخواهان سره برابر دي إِلَّا إِذَا قَضَى مَا اسْتَقْرَضَ فِي مَرَضِهِ أَوْ نَقَدَ ثَمَنَ مَا اشْتَرَى فِي مَرَضِهِ مګر دا چي مریض یو داسي قرض اداء کړي کوم چي هغه د خپل مرض په زمانه کي اخیستی وي یا د داسي شي ثمن اداء کړي کوم چي هغه د خپل مرض په زمانه کي رانیولی وي وَقَدْ عُلِمَ بِالْبَيِّنَةِ او دا په بینه [ګواهی] سره معلومه سوې وي.

**اللغات:** ﴿مرض موت﴾ هغه مرض او ناروغي کوم چي انسان له ولاړي او تګ راتګ څخه عاجزه کړي او د مرګ سره متصل سي، ﴿غرماء﴾ جمع د غَرِيْمٌ ده؛ قرضخواه (قرض غوښتونکي)، د قرض مالک، يعني هغه کس چي مقروض ته يې قرض ورکړی وي، (ښکاره دي وي چي مونږ دلته د غرماؤ لپاره د قرضخواهانو لفظ استعمالوو)، ﴿مبايعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: یو د بل سره بیع کول (یو تر بله بیع کول)، ﴿تبرّع﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: احسان کول، بلا عوضه (مفت) شی ورکول، داسي کار کول کوم چي د انسان پر ذمه واجب نه وي لکه وصیت، هبه او داسي نور، ﴿محاباة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي: یو چا ته میلان کول، یو څوک په مال سره خاصول، د یو چا سره په ثمن یا مبیع کي ښه کول، يعني یو شی په ډېر کم (ارزانه) قیمت سره خرڅول یا بائع (دوکاندار) ته پر ارزانه شي ډېر قیمت ورکول، ﴿تثمير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: زیاتول، اضافه

کول. التشمير : اضافه. ﴿مردّ﴾ د نصر د باب مصدرِ ميمي دی: واپس کول. بيرته ګرځېدل (واپس کېدل). ﴿استقرض﴾ د استفعال د باب ماضي ده: په قرض اخيستل. په پور اخيستل.

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی که يو سړی په خپل مرضُ الموت کي دا اقرار وکړي چي "پر ما د څو خلکو قرضونه باندي دي" لېکن د قرض اسباب او نوعيت ذکر نه کړي. لېکن پر هغه د صحت په زمانه کي هم د خلکو قرضونه باندي وي او د مرض په زمانه کي هم هغه د څو خلکو مقروض سوی وي او دا قرض خلکو ته معلوم ويِ او د هغه اسباب هم معلوم وي. نو په دې صورت کي به د صحت والا قرضونه او معروفةُ الاسباب والا قرضونه د دې سړي له اقرار کرده قرضونو څخه مخکي اداء کول کيږي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د صحت او مرض دواړو زمانو قرضونه سره برابر او مساوي دي. برابره ده د هغوی اسباب معلوم وي او که نه وي؛ ځکه چي هغه دواړه قرضونه د عاقل او بالغ کس په اقرار سره ثابت سوي دي او د دواړو محل داسي کس کوم چي حقوق قبلولای سي. او څرنګه چي د هغوی سبب هم يو دی. نو ځکه په اداء کي به هم هغوی سره برابر وي او د يوه حالت (زمانې) قرض به د بل حالت له قرض څخه نه مخکي کول کيږي. د دې مثال دا دی لکه يو سړی چي بيع او نکاح کوي نو د هغه د صحت او مرض د حالتونو تصرّف برابر شمارل کيږي. او اقرار هم يو تصرّف دی. لهذا په دې دواړو حالتونو کي به د هغه اقرار هم برابر ګرځول کيږي.

ولنا أن الإقرار إلخ: زموږ دليل دا دی چي په کوم اقرار سره د بل چا حق باطليږي. هغه دليل نه سي جوړېدای. او په پورتنۍ مسئله کي د مريض په مذکوره اقرار سره د بل چا حق يعني د حالتِ صحت د قرضخواهانو حقوق باطليږي؛ ځکه چي د حالتِ صحت د قرضخواهانو حقوق د دې مريض د مال سره متعلق سوي دي. او دا تعلّق دومره قوي دی چي هغه له ثُلث المال څخه په زائد مال کي له تبرّع او محابات کولو څخه منع سوی دی. حال دا چي له ثُلث څخه په زائد مال کي د وارثانو حق دی او د وارثانو حق د قرضخواهانو له حقوقو څخه زيات ضعيف (أضعف) دی. لهذا کله چي د أضعف حق د رعايت کولو لپاره پر مريض پابندي لګول سوې ده. نو د أقویٰ (زيات قوي) حق د رعايت کولو په حواله سره به سختي او پابندي نوره هم زياته وي. نو په همدې وجه موږ د حالتِ صحت قرضونو ته پر اقرار کرده (مقربها) قرضونو د ترجيح ورکولو او مخکي اداء کولو فيصله کړې ده.

او امام شافعي رَحِمَهُ الله چي پورتنۍ مسئله پر نکاح او بيع کولو قياس کړې ده. دا صحيح نه دي: ځکه چي پر مهر مثل نکاح کول د انسان له بنيادي او اصلي ضرورياتو څخه اهم ضرورت دی او د نفقې او خرڅې لپاره بيع کول هم يو ضروري کار دی. او بل دا چي د قرضخواهانو حق د مطلق ماليت

سره متعلق کیږي، د یو مخصوص او مُتعیّن مال سره نه متعلق کیږي؛ ځکه چې د صحت زمانه د انسان د کاروبار زمانه وي او په دې زمانه کې هغه په خپل محنت او تجارت کولو سره په مال کې اضافه کولای سي، لهذا په دې زمانه کې د هغه د یو مُتعیّن مال سره د قرضخواهانو حق متعلق کول په حقیقت کې هغه په نقصان او تاوان کې اچول دي، نو ځکه په حالتِ صحت کې موږ صرف د هغه د مطلق مالیت سره د قرضخواهانو حق متعلق کړی دی، او څرنګه چې حالت مرض د عاجزۍ او مجبورۍ حالت دی او په دې حالت کې د مقروض له طرفه تجارت کول او مال اضافه کول ناممکن دي، نو ځکه د مرضُ الموت په حالت کې د مریض د مال سره موږ د قرضخواهانو حقوق متعلق کوو او د حالتِ صحت قرضونو ته پر مُقَربها قرضونو ترجیح ورکوو. د صحت او مرض د حالتونو په مینځ کې د تجارت کولو او په مال کې د اضافه کولو او نه کولو په اعتبار سره فرق دی، لکه څرنګه چې معلومه سوه.

وانما تقدم الخ: فرمایي: د معروفةُ الأسباب قرضونو د مخکې اداء کولو وجه دا ده چې د هغوی په ثبوت کې هیڅ تهمت نه وي او هغوی د قاضي په حضور کې ثابتیږي او عام خلک په دې واقف وي او د هغوی په لزوم کې هیڅ شبهه نه وي، نو ځکه به دا قرضونه د حالتِ مرض پر قرضونو او پر مقر بها قرضونو مخکې وي لیکن د حالتِ صحت د قرضونو سره به مساوي او برابر وي. د معروفةُ الأسباب قرضونو مثال دا دی چې مریض له یو سړي څه یو شی رانیسي یا د یو سړي یو شی هلاک کړي (ضایع کړي) او پر هغه د رانیول سوي شي ثمن یا د هلاک کړه شي ضمان (تاوان) باقي پاته سي او په بینه یا د قاضي په فیصله سره هغه معلوم سي، نو دا معروفُ السبب قرض دی.

ولو أقر بعين الخ: د دې حاصل دا دی که د مریض سره مثلاً یو موټر وي او هغه وایي چې "دا موټر د فلانکي دی، زما نه دی"، نو د حالتِ صحت والا قرضخواهانو په حق کې دا اقرار نه صحیح کیږي، ځکه چې د دې شي (موټر) سره خو مخکې لا د هغو حق متعلق سوی دی، نو ځکه به د هغو په هکله دا اقرار صحیح او معتبر نه وي.

ولا یجوز للمریض الخ: پر مریض لازم دي چې د قرض ورکولو پر مهال ټولو قرضخواهانو ته قرض ورکړي، برابره ده د حالتِ صحت د قرضخواهانو نوبت وي او که د حالتِ مرض د قرضخواهانو نوبت وي، او داسې دې نه کوي چې ځینو ته قرض ورکړي او ځینو ته یې نه ورکړي؛ ځکه په دې کې ترجیح بلا مُرجّح لازمیږي، او ترجیح بلا مُرجح باطله ده. ها! که چیرې مریض په حالتِ مرض کې له یو چا څخه قرض اخیستی وی، یا هغه یو شی رانیولی وي او ثمن یې باقي پاته وي، او دا په بینه سره ثابت سوي وي، نو د هغه اداء مخکې کولای سي؛ ځکه چې په دې کې د قرضخواهانو د حق

ابطال نسته او انسان د خپل علاج او دوالپاره په داسې قرض اخيستلو او معامله کولو کې مجبوره او معذوره وي. (احسن الهدايه)

## د مخکني قرضونو تر اداء وروسته پاتېدونکی مال

قَالَ وَإِذَا قُضِيَتْ يَعْنِي الدُّيُونَ الْمُتَقَدِّمَةِ او کله چې اداء کړل سي يعني مخکني قرضونه وَفَضَلَ شَيْءٌ او څه مال پاته سي يُصْرَفُ إِلَى مَا أَقَرَّ بِهِ فِي حَالَةِ الْمَرَضِ نو هغه مال به په هغه قرض کې ورکول کيږي د کوم چې مريض د خپل مرض په زمانه کې اقرار کړی وي لِأَنَّ الْإِقْرَارَ فِي ذَاتِهِ صَحِيحٌ ځکه چې اقرار بذات خود صحيح وو وَإِنَّمَا رُدَّ فِي حَقِّ غُرَمَاءِ الصِّحَّةِ لیکن د صحت والا [زمانې] د قرضخواهانو د حق په رعايت کې دا اقرار رد کړی سوی وو فَإِذَا لَمْ يَبْقَ حَقُّهُمْ نو کله چې د هغو حق باقي پاته نه سو [يعني پوره سو] ظَهَرَتْ صِحَّتُهُ نو د اقرار صحت [صحيح والی] ښکاره سو قَالَ: فَإِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دُيُونٌ فِي صِحَّتِهِ فرمايي: او که پر مريض په خپل صحت کې [يعني د روغتيا په زمانه کې] هيڅ قرض نه وي جَازَ إِقْرَارُهُ نو د هغه د قرض اقرار جائز دی لِأَنَّهُ لَمْ يَتَضَمَّنْ إِبْطَالَ حَقِّ الْغَيْرِ ځکه چې دا اقرار د بل چا د حق باطلولو لره شامل نه دی وَكَانَ الْمُقَرُّ لَهُ أَوْلَى مِنَ الْوَرَثَةِ او مقر لهٔ به له وارثانو څخه اولیٰ [مقدم] وي [يعني هغه به تر وارثانو مخکې کول کيږي] لِقَوْلِ عُمَرَ رضي الله عنه: ”إِذَا أَقَرَّ الْمَرِيضُ بِدَيْنٍ جَازَ ذٰلِكَ عَلَيْهِ فِي جَمِيعِ تَرِكَتِهِ“ ځکه چې حضرت عمر رضي الله عنه فرمايلي دي: ”کله چې مريض د يو قرض اقرار وکړي نو دا پر هغه جائز دی د هغه په ټوله ميراث کيږي“ وَلِأَنَّ قَضَاءَ الدَّيْنِ مِنَ الْحَوَائِجِ الْأَصْلِيَّةِ او ځکه چې قرض اداء کول له اصلي حاجتونو څخه دي وَحَقُّ الْوَرَثَةِ يَتَعَلَّقُ بِالتَّرِكَةِ بِشَرْطِ الْفَرَاغِ او د وارثانو حق په دې شرط د ميراث سره متعلق کيږي چې ميراث [د بل چا له حق څخه] فارغ وي وَلِهٰذَا تُقَدَّمُ حَاجَتُهُ فِي التَّكْفِينِ او له همدې کبله د مړي د تکفين [او تدفين] ضرورت هم [د وارثانو له حق څخه] مخکې کول کيږي.

**اللغات:** ﴿متقدمة﴾ د تفعّل د باب اسم فاعل دی: مخکنی، پخوانی، ﴿فَضَلَ﴾ د نصر د باب ماضي ده: باقي پاتېدل، اضافه کېدل، زياتېدل (مصباح منير)، ﴿تکفين﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مړي ته کفن ورکول (د مړي لپاره کفن رانيول او ور اغوستل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله مخکښي قرضونه يعني د حالت صحت او معلومه اسبابو والا قرضونه اداء کړل سي او تر دې وروسته د مريض څه مال باقي پاته سي، نو په دې سره به د حالت مرض والا قرضونه اداء کول کيږي؛ ځکه د حالت مرض والا قرضونو اقرار هم صحيح وو، لېکن هغوی د حالت صحت والا قرضونو په رعايت کې رد کړل سوي او مؤخر کړل سوي وه، او اوس چې کله دا مخکښي قرضونه ټوله اداء کړل سوه، نو د هغوی داداء او مقبوليت لاره خلاصه سوه.

دويمه مسئله دا ده که پر مريض په حالت صحت کې هيڅ قرض هم باندې نه وي او پر هغه صرف د مرض په حالت کې قرض لازم سي، نو د دې قرض اقرار هم جائز دی او د مريض له مال څخه د هغه اداء کول صحيح دي؛ ځکه چې په دې سره د بل چا حق نه باطليږي.

وكان المقرله أولى إلخ: د پاته عبارت تشريح ښکاره ده.

## په مرضُ الموت کي د وارث لپاره د اقرار کولو حکم

قَالَ: وَلَوْ أَقَرَّ الْمَرِيضُ لِوَارِثِهِ فرمايي: او که چيري مريض د خپل وارث لپاره اقرار وکړي لَا يَصِحُّ إِلَّا أَنْ يُصَدِّقَهُ فِيهِ بَقِيَّةُ وَرَثَتِهِ نو هغه صحيح نه دی مگر دا چې باقي [نور] وارثان د ده تصديق وکړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي أَحَدِ قَوْلَيْهِ: يَصِحُّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله له خپل دوو قولونو څخه په يوه قول کې فرمايلي دي: چې صحيح دی لِأَنَّهُ إِظْهَارُ حَقٍّ ثَابِتٍ ځکه چې دا د يو ثابت سوي حق ښکاره کول [څرګندول] دي لِتَرَجُّحِ جَانِبِ الصِّدْقِ د صدق د جهت راجح کېدلو په وجه [يعني د دې لپاره چې د رښتيا والي جانب راجح سي] وَصَارَ كَالْإِقْرَارِ لِأَجْنَبِيٍّ وَبِوَارِثٍ آخَرَ وَبِوَدِيعَةٍ مُسْتَهْلَكَةٍ لِلْوَارِثِ او دا داسي سوه لکه د پردي کس لپاره يا د بل وارث يا د وارث د هلاک کرده [ضايع کړی سوي] امانت اقرار کول وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ: «لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ وَلَا إِقْرَارَ لَهُ بِالدَّيْنِ» او زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی: "د وارث لپاره وصيت صحيح نه دی او نه د هغه لپاره د قرض اقرار صحيح دی" وَلِأَنَّهُ تَعَلَّقَ حَقُّ الْوَرَثَةِ بِمَالِهِ فِي مَرَضِهِ او ځکه چې د مريض په مرضُ الموت کي د هغه د مال سره د وارثانو حق متعلق کيږي وَلِهَذَا يُمْنَعُ مِنَ التَّبَرُّعِ عَلَى الْوَارِثِ أَصْلًا او په همدې وجه هغه پر وارث له تبرع کولو [احسان کولو] څخه بالکل منع کول کيږي فَفِي تَخْصِيصِ الْبَعْضِ بِهِ إِبْطَالُ حَقِّ الْبَاقِينَ لهذا په اقرار سره د بعضي وارثانو په خاصولو کي د باقي وارثانو د حق باطلول سته [يعني صرف د يوه وارث لپاره په اقرار کولو سره د

نورو وارثانو حق باطليږي] وَلِأَنَّ حَالَةَ الْمَرَضِ حَالَةَ الِاسْتِغْنَاءِ او ځکه چي د مرض حالت د مستغني والي حالت دی وَالْقَرَابَةِ سَبَبُ التَّعَلُّقِ او قرابت د تعلق سبب دی إِلَّا أَنَّ هَذَا التَّعَلُّقَ لَمْ يَظْهَرْ فِي حَقِّ الْأَجْنَبِيِّ لِحَاجَتِهِ إِلَى الْمُعَامَلَةِ فِي الصِّحَّةِ لیکن د اجنبي کس په حق کي دا تعلق [په دې وجه] ښکاره نه سو ځکه چي د صحت په حالت کي د هغه سره معامله کولو ته ضرورت وي [په بله وینا: ځکه چي د صحت په زمانه کي مریض ته د اجنبي سره معامله کولو ته ضرورت وي] لِأَنَّهُ لَوِ انْحَجَرَ عَنِ الْإِقْرَارِ بِالْمَرَضِ ځکه که چیري د مرض په وجه مریض له اقرار کولو څخه منع کړی سي يَمْتَنِعُ النَّاسُ عَنِ الْمُعَامَلَةِ مَعَهُ نو خلک به د هغه سره له معامله کولو څخه منع سي [يعني د هغه سره به معامله نه کوي] وَقَلَّمَا تَقَعُ الْمُعَامَلَةُ مَعَ الْوَارِثِ او د وارث سره معامله ډېر کم واقع کیږي وَلَمْ يَظْهَرْ فِي حَقِّ الْإِقْرَارِ بِوَارِثٍ آخَرَ او د بل چا د وارث کېدلو د اقرار په حق کي هم دا تعلق ښکاره نه سو لِحَاجَتِهِ أَيْضًا ځکه چي هغه ته هم ضرورت وي ثُمَّ هَذَا التَّعَلُّقُ حَقُّ بَقِيَّةِ الْوَرَثَةِ بیا دغه تعلق د باقي وارثانو حق دی فَإِذَا صَدَّقُوهُ نو کله چي باقي وارثانو د هغه تصدق وکړی فَقَدْ أَبْطَلُوهُ نو هغوی خپل حق [په خپله] باطل کړی فَيَصِحُّ إِقْرَارُهُ نو ځکه به د مریض اقرار صحیح کیږي وَإِنْ أَقَرَّ لِأَجْنَبِيٍّ جَازَ وَإِنْ أَحَاطَ بِمَالِهِ او که چیري مریض د یو اجنبي کس لپاره اقرار وکړي نو جائز دي که څه هم دا اقرار د هغه پر ټوله مال احاطه وکړي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړي وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوزَ إِلَّا فِي الثُّلُثِ او قیاس دا دی چي دا صرف [د مال] په ثلث [دریېمه حصه] کي جائز سي لِأَنَّ الشَّرْعَ قَصَرَ تَصَرُّفَهُ عَلَيْهِ ځکه چي شریعت د مریض تصرف [د مال] پر ثلث منحصر کړی دی إِلَّا أَنَّا نَقُولُ: لَمَّا صَحَّ إِقْرَارُهُ فِي الثُّلُثِ كَانَ لَهُ التَّصَرُّفُ فِي ثُلُثِ الْبَاقِي لیکن موږ [جوابًا] وایو: چي کله په ثلث [دریېمه حصه] کي د هغه اقرار [او تصرف] صحیح دی نو په باقي ثلث کي به هم هغه ته د تصرف حق وي لِأَنَّهُ الثُّلُثُ بَعْدَ الدَّيْنِ ځکه چي تر قرض وروسته ثلث سته [په بله وینا: ځکه چي تر قرض وروسته هم ثلث (دریېمه حصه) پاتیږي] ثُمَّ وَثُمَّ حَتَّى يَأْتِيَ عَلَى الْكُلِّ بیا د هغه باقي ثلث او بیا باقي ثلث تر دې چي اقرار به پر ټوله مال واقع او جاري اسي.

**اللغات**: ﴿ورثة﴾ جمع د وَارِثٌ ده: وارثان. میراث خوره. ﴿مستهلكة﴾ د استفعال د باب اسم مفعول دی: هلاک کړی سوی. ضایع کړی سوی. هغه شی کوم چي یې انسان قصداً هلاک کړي (ضایع

کړي)، ﴿أجنبي﴾ پردی، بېګانه. ﴿استغناء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: مستغني کېدل، بې نيازه کېدل. ﴿قلما﴾ ډېر کم کيږي. ﴿ثُلث﴾ او ثُلث: دريمه حصه.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو مريض په مرض الموت کې د خپل يوه وارث لپاره د عين (متعين شي) يا دَين (قرض) اقرار وکړي، نو زموږ په نېز دا اقرار صحيح نه دی. ها! که چيرې نور وارثان يعني د مقر لهٔ شريکان د هغه تصديق وکړي، نو بيا اقرار صحيح دی. له امام شافعي رحمه الله څخه په دې باره کې دوه قوله نقل سوي دي: ① صحيح نه دی، ② صحيح دی. همدا دويم قول اصح دی: ځکه چې اقرار د ثابت سوي او لازم سوي حق اظهار دی، او له يو مسلمان څخه په ښکاره همدا توقع ده چې هغه به درواغ نه وايي او کله چې هغه د مرګ پر بستره پروت وي نو د هغه له طرفه بيخي د درواغو امکان نسته. نو ځکه د هغه د صدق جانب ته په ترجيح ورکولو سره به د هغه اقرار معتبر وي، د دې مثال دا دی چې که هغه مريض د يو اجنبي کس لپاره اقرار وکړي يا د بل چا د وارث کېدنې اقرار وکړي. يا د يو وارث د امانت ضايع کولو او د هغه د ضمان (تاوان) ورکولو اقرار وکړي. نو د هغه دا ټوله اقرارونه صحيح دي، همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم د وارث لپاره د هغه اقرار صحيح وي.

**ولنا قوله عليه السلام**: زموږ دليل دا حديث دی "لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ وَلَا إِقْرَارَ لَهُ بِالدَّيْنِ"، په دې حديث کې په ښکاره توګه ذکر سوي دي چې نه د وارث لپاره وصيت کول صحيح دي او نه د هغه لپاره د قرض اقرار کول صحيح دي. عقلي دليل دا دی چې په مرض الموت کې د مريض د مال سره د وارثانو حق متعلق کيږي، اوس ښکاره خبره ده که د يوه وارث لپاره موږ د مريض اقرار صحيح وګرځوو، نو په دې سره به د نورو وارثانو حق ضايع سي او دا صحيح نه دي.

دويم عقلي دليل دا دی چې د مرض حالت له مال څخه د بې نيازۍ او مستغني والي حالت وي (ځکه د مرګ د علاماتو په ښکاره کېدلو سره ټوله اميدونه ختميږي)، او د مريض د مال سره د وارثانو د حق متعلق کېدلو سبب قرابت دی. نو ځکه د قريب (وارث) لپاره هيڅکله هم د مريض اقرار صحيح نه دی. لېکن د اجنبي کس په حق کې دا تعلق (د مريض د مال سره د هغه د حق متعلق کېدل) نه ښکاره کيږي (بلکې د هغه لپاره اقرار صحيح دی)؛ ځکه چې د صحت په حالت کې مريض ته د اجنبي سره د معامله کولو ضرورت پېښيږي، او د وارثانو سره معامله کول ډېر کم واقع کيږي. زياتره وخت د اجنبي کس سره واقع کيږي. او که چيرې د اجنبي کس لپاره د مريض اقرار صحيح نه وګرځول سي نو خلک به د هغه سره معاملات نه کوي او د هغه د ضرورياتو دروازه به بنده سي. نو په دې وجه د اجنبي کس په حق کې اقرار صحيح دی. همدارنګه دغه مذکوره تعلق د بل کس په نسبت د وارث کېدلو د اقرار په حق کې هم نه ښکاره کيږي؛ ځکه چې انسان ته د دې ضرورت هم وي. د دې لپاره چې د هغه ټوله

وارثان معلوم او باقي پاته سي، نو ځکه د وارث لپاره اقرار کول د دې کسانو لپاره پر اقرار کولو قياسول صحيح نه دي. او د مقر لهٗ د شريکانو يعني د باقي (نورو) وارثانو په حق کي قرابت او تعلق موجود دی، نو ځکه موږ وايو چي د وارثانو تر تصديق کولو وروسته د وارث لپاره هم اقرار صحيح دی، ځکه چي دا ممانعت صرف د هغو د حق په وجه دی، او هغو په تصديق کولو او اجازت ورکولو ښخه خپل دا حق ساقط او باطل کړی.

وإن أقر الأجنبي إلخ: فرمايي که مريض د يو اجنبي کس لپاره د قرض اقرار وکړي، نو دا اقرار جائز دی، که څه هم دا اقرار د هغه پر ټوله مال احاطه وکړي او د وارثانو لپاره هيڅ مال پاته نه سي؛ ځکه چي د قرض اداء کول له حوائج اصليه څخه دي، نو ځکه استحساناً د اجنبي کس لپاره اقرار کول صحيح دي، لېکن د قياس تقاضا دا ده چي صرف د مال په ثلث (درېيمه حصه) کي د مريض اقرار صحيح دی او له هغه څخه په زائد مال کي صحيح نه دی؛ ځکه چي شريعت د مورث تصرف صرف تر ثلث المال پوري محدود کړی دی، لېکن زموږ له طرفه جواب دا دی چي کله په يوه ثلث کي اقرار صحيح دی نو تر يوه قرض اداء کولو وروسته چي کوم مال باقي پاته سي د هغه په ثلث کي به هم د مريض تصرف جائز وي او هغه به ابتدائي ثلث وي، تر دې وروسته چي کله د بل قرض يا بل حق اداء کولو نوبت راسي او هغه اداء کړی سي، نو درېيم وار ثلث به ابتدائي ثلث او په ټوله مال کي به همدا معامله جاري وي، لهذا پر يوه ځای او په يوه واره جائز ګرځول غوره دي، د دې لپاره چي د حصه، حصه کولو نوبت رانه سي. (احسن الهدايه)

## په مرضُ الموت کي تر اقرار وروسته د نسب دعوی کول

قَالَ: وَمَنْ أَقَرَّ لِأَجْنَبِيٍّ فرمايي: او که مريض د يو اجنبي [پردي] کس لپاره اقرار وکړي ثُمَّ قَالَ: هُوَ ابْنِيْ بيا ووايي: چي هغه زما ځوی دی ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ نو د مريض [مُقِر] سره د هغه نسب ثابتيږي وَبَطَلَ إِقْرَارُهُ لَهُ او د هغه لپاره د مريض [مُقِر] اقرار باطليږي فَإِنْ أَقَرَّ لِأَجْنَبِيَّةٍ ثُمَّ تَزَوَّجَهَا او که مريض د يو اجنبي ښځي لپاره اقرار وکړي بيا د هغې سره نکاح وکړي لَمْ يَبْطُلْ إِقْرَارُهُ لَهَا نو د هغې لپاره د ده اقرار باطليږي وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ دَعْوَةَ النَّسَبِ تَسْتَنِدُ إِلَى وَقْتِ الْعُلُوقِ او وجه د فرق دا ده چي د نسب دعویٰ د علوق د وخت وطرف ته منسوب کيږي فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ أَقَرَّ لِابْنِهِ نو ښکاره سوه چي مُقِر د خپل

ځوی لپاره اقرار کړی دی فَلَا يَصِحُّ نو ځکه به هغه صحيح نه وي وَلَا كَذٰلِكَ الزَّوْجِيَّةُ او زوجيت [نکاح] داسي نه ده لِأَنَّهَا تَقْتَصِرُ عَلٰى زَمَانِ التَّزَوُّجِ ځکه چي هغه د نکاح کولو پر وخت منحصر [او محدود] وي فَبَقِيَ إِقْرَارُهُ لِأَجْنَبِيَّةٍ لهذا د هغه اقرار صرف د اجنبي ښځي لپاره اقرار پاته سو قَالَ: وَمَنْ طَلَّقَ زَوْجَتَهُ فِي مَرَضِهِ ثَلَاثًا ثُمَّ أَقَرَّ لَهَا بِدَيْنٍ فرمايي: او که څوک په خپل مرض الموت کي خپلي ښځي ته دري طلاقه ورکړي بيا د هغې لپاره د يو قرض اقرار وکړي فَلَهَا الْأَقَلُّ مِنَ الدَّيْنِ وَمِنْ مِيرَاثِهَا مِنْهُ نو له قرض او د خاوند له ميراث څخه چي کوم يو کم وي هغه د ښځي لپاره دی [يعني په قرض او ميراث کي چي کوم يو کم (لږ) وي هغه به دې ښځي ته ورکول کيږي] لِأَنَّهُمَا مُتَّهَمَانِ فِيهِ ځکه چي هغوی دواړه په دې اقرار کي متهم دي لِقِيَامِ الْعِدَّةِ د عدت پاتېدلو په وجه وَبَابُ الْإِقْرَارِ مَسْدُودٌ لِلْوَارِثِ او د وارث لپاره د اقرار دروازه بنده ده فَلَعَلَّهُ أَقْدَمَ عَلٰى هٰذَا الطَّلَاقِ لِيَصِحَّ إِقْرَارُهُ لَهَا زِيَادَةً عَلٰى مِيرَاثِهَا نو کېدای سي چي خاوند پر دغه طلاق ځکه اقدام کړی وي چي د ښځي لپاره د ده اقرار صحيح سي او هغې ته له خپل ميراث څخه زيات ميراث حاصل سي وَلَا تُهْمَةَ فِي أَقَلِّ الْأَمْرَيْنِ او له قرض او ميراث څخه په کم [ورکولو] کي هيڅ تهمت نسته فَيَثْبُتُ نو ځکه به هغه ثابتيږي.

**اللغات**: ﴿تستند﴾ د استفعال د باب مضارع ده: منسوبېدل (نسبت کېدل)، مضاف کېدل. ﴿عُلوق﴾ د سمع د باب مصدر دی: عَلِقَتِ الْمَرْأَةُ بِالْوَلَدِ: حامله کېدل، له نطفې څخه بچی جوړېدل، حمل نېول کېدل (مصباح منير). ﴿زوجية﴾ زواج، سړی او ښځه سره يو ځای کېدل (يو د بل خاوند او ښځه کېدل)، واده، نکاح. ﴿تقتصر﴾ د افتعال د باب مضارع ده، مراد: منحصر کېدل، محدود کېدل. ﴿مسدود﴾ د نصر له بابه اسم مفعول دی: بند کړی سوی.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که مريض د يو اجنبي کس لپاره د قرض تر اقرار کولو وروسته ووايي چي "هغه (اجنبي) زما ځوی دی"، نو اجنبي کس د هغه ځوی ګرځي او مريض چي د هغه لپاره کوم د قرض اقرار کړی دی، هغه باطليږي. د دې په خلاف که مريض د يو اجنبيه ښځي لپاره اقرار وکړي او

بيا د هغې سره نكاح وكړي، نو اقرار نه باطليږي بلكي صحيح پاتيږي. په دې دواړو صورتونو كي فرق دا دى چي د نسب دعوىٰ د علوق د وخت وطرف ته منسوب كيږي او اجنبي كس ته د ځوى ويلو مطلب دا را وځي چي مقر د خپل وارث ځوى لپاره اقرار كړى وو، حال دا چي د وارث لپاره اقرار كول صحيح نه دي، نو ځكه د اجنبي كس د ځوى والي د اقرار كولو په صورت كي د هغه لپاره مخكنى (د قرض) اقرار باطليږي. لېكن د نكاح والا په صورت كي په دې وجه اقرار اقرار نه باطليږي، چي زوجيت د يو مخكني وخت وطرف ته نه منسوب كيږي او په حقيقت كي د اجنبيه ښځي لپاره مخكنى اقرار د همدې اجنبيه ښځي لپاره واقع كيږي، نو ځكه به هغه نه باطليږي.

ومن طلق زوجته إلخ: او كه څوك په مرضُ الموت كي خپلي ښځي ته درې طلاقه وركړي، بيا د عدت په زمانه كي د هغې لپاره د قرض اقرار وكړي او مړ سي، نو په دې صورت كي حكم دا دى چي د خاوند په ميراث او د هغه په اقرار كړده قرض كي چي كوم يو كم وي، هغه به ښځي ته وركول كيږي (مثلا كه د ښځي ميراث دوه سوه درهمه وي او قرض درې سوه درهمه وي. نو ميراث به وركول كيږي)، ځكه چي ښځه په عدت (عده) كي ده او د هغې لپاره په اقرار كولو كي دوى دواړه (خاوند او ښځه) متهم دي؛ ځكه دلته دا تهمت كېداى سي چي شايد خاوند به هغې ته له ميراث څخه د زيات مال وركولو اراده كړې وي او په دې توګه به يې دا پلان جوړ كړى وي چي زه به ستا لپاره د زيات قرض اقرار وكړم او طلاق به دركړم چي زما اقرار صحيح سي (ځكه د خپلي ښځي لپاره د قرض اقرار كول صحيح نه دي) او په دې توګه به تا ته له خپل ميراث څخه ډېر مال حاصل سي، او په كم (اقل) مال كي دا تهمت نسته، نو ځكه موږ د ښځي لپاره اقل المالين ثابت كړى دى. والله أعلم وعلمه أتم



# فَصْلٌ (فِي الْإِقْرَارِ بِالنَّسَبِ)

(دا) فصل (د نسب د اقرار کولو په بيان کې) دی

**تشريح**: مخکې تر دې د اقرار بالمال بيان وو، او اوس په دې فصل کې اقرار بالنسب بيانول کيږي، ځرنګه چې د مال په هکله اقرار زيات واقع کيږي، نو ځکه هغه تر اقرار بالنسب مخکې بيان کړی سوی دی.

## د نسب د اقرار (اقرار بالنسب) د صحيح کېدلو شرطونه

وَمَنْ أَقَرَّ بِغُلَامٍ يُولَدُ مِثْلُهُ لِمِثْلِهِ وَلَيْسَ لَهُ نَسَبٌ مَعْرُوفٌ أَنَّهُ ابْنُهُ او که يو کس [مُقر] د داسې هلک په باره کې اقرار وکړي چې هغسې هلک د ده په شېر کس لپاره پيدا کېدای سي او د هغه هلک لپاره يو معلوم نسب نه وي [دا اقرار وکړي] چې هغه زما ځوی دی وَصَدَّقَهُ الْغُلَامُ او هلک د ده تصديق وکړي ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ نو د ده [مُقر] سره د هغه نسب ثابتيږي وَإِنْ كَانَ مَرِيضًا که څه هم مقر مريض وي لِأَنَّ النَّسَبَ مِمَّا يَلْزَمُهُ خَاصَّةً ځکه چې نسب خاص پر مقر لازميږي فَيَصِحُّ إِقْرَارُهُ بِهِ نو ځکه د مقر لپاره به د هغه اقرار کول صحيح وي وَشَرَطَ أَنْ يُولَدَ مِثْلُهُ لِمِثْلِهِ كَيْلَا يَكُونَ مُكَذَّبًا فِي الظَّاهِرِ او امام قدوري رَحِمَهُ الله دا شرط "چې هغسې هلک به د مقر په شېر کس لپاره پيدا کېدای سي" د دې لپاره لګولی دی چې په ظاهر کې هغه درواغجن نه وګرځي وَشَرَطَ أَنْ لَا يَكُونَ لَهُ نَسَبٌ مَعْرُوفٌ لِأَنَّهُ يَمْنَعُ ثُبُوتَهُ مِنْ غَيْرِهِ او د نسب نه معروف کېدلو شرط يې په دې وجه لګولی دی چې معروف نسب د بل چا [مُقر] سره د نسب ثبوت منع کوي [يعني ځکه چې د هلک نسب معلومېدل له دې څخه مانع دی چې د مُقر (مريض) سره د هغه نسب ثابت سي] وَإِنَّمَا شَرَطَ تَصْدِيقَهُ لِأَنَّهُ فِي يَدِ نَفْسِهِ او د هلک د تصديق کولو شرط يې په دې وجه لګولی دی چې هغه د خپل ځان په قبضه کې دی إِذِ الْمَسْأَلَةُ وَضْعُهَا فِي غُلَامٍ يُعَبِّرُ عَنْ نَفْسِهِ ځکه دا مسئله د همداسې هلک په باره کې وضع سوې [فرض سوې] ده کوم چې د خپل ځان په باره کې اظهار کولای سي [يعني پر اظهار ما فی الضمير قادر وي] بِخِلَافِ الصَّغِيرِ په خلاف د کوچني

هلک [کوم چي پر اظهار ما في الضمير قادر نه وي] عَلَىٰ مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ لکه مخکي چي تېر سوه وَلَا يَمْتَنِعُ بِالْمَرَضِ او د مرض په وجه اقرار [له قبوليت څخه] نه ممتنع کيږي لِأَنَّ النَّسَبَ مِنَ الْحَوَائِجِ الْأَصْلِيَّةِ ځکه چي نسب له اصلي حاجتونو څخه دی وَيُشَارِكُ الْوَرَثَةَ فِي الْمِيرَاثِ او هغه هلک د نورو وارثانو سره په ميراث کي شريک ګرځي لِأَنَّهُ لَمَّا ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ ځکه کله چي د مريض سره د هغه نسب ثابت سو صَارَ كَالْوَارِثِ الْمَعْرُوفِ نو هغه د معلوم وارث په شېر وګرځېدی فَيُشَارِكُ وَرَثَتَهُ نو ځکه به هغه د مريض د وارثانو سره شريک کيږي.

**اللغات:** ﴿يُولد﴾ د ضرب د باب مضارع مجهوله ده: پيدا کېدل. ﴿معروف﴾ د ضرب د باب اسم مفعول دی: پېژندل سوی، معلوم، مشهور. ﴿يعبر﴾ اظهار کول (ښکندول). تعبير کول. يعبر عن نفسه: د زړه خبره ښکاره کول. اظهار ما في الضمير کول. د ځان په باره کي معلومات ورکول.

**تشريح: مسئله:** دا ده که ادريس د زيد په باره کي دا اقرار وکړي چي "زيد زما ځوی دی" او دادريس عمر دومره وي چي له هغه څخه د زيد په شېر هلک پيدا کېدای سي او د بل چا سره د زيد نسب ثابت او معروف هم نه وي، همدارنګه زيد ډېر کوچنی نه وي بلکي د زړه خبره ښکاره کولای سي او هغه د مقر (ادريس) تصديق کوي، نو د ادريس دا اقرار صحيح کيږي او زيد د هغه ځوی ګرځي، او په عبارت کي د مذکوره قيودو په رڼا کي هغه د ادريس وارث (ميراث خور) هم ګرځي او د باقي وارثانو سره په ميراث کي شريک کيږي.

## د يو چا په باره کي د مور وپلار کېدلو، بچي کېدلو او داسي نورو د اقرار کولو حکم

قَالَ: وَيَجُوزُ إِقْرَارُ الرَّجُلِ بِالْوَالِدَيْنِ وَالْوَلَدِ وَالزَّوْجَةِ وَالْمَوْلَىٰ فرمايي: [د يو چا] د مور وپلار کېدلو، بچي کېدلو، ښځه او مالک کېدلو په باره کي د سړي اقرار جائز دی لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِمَا يَلْزَمُهُ ځکه چي هغه د داسي شي اقرار وکړی کوم چي خاص پر هغه لازميږي وَلَيْسَ فِيهِ تَحْمِيلُ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ او په دې کي پر بل چا د نسب اچول الازمول] نسته [يعني د نسب په اقرار کي مُقِر وروسته د بل چا سره نسب نه سي ترلای بلکي په خپله پر هغه لازميږي] وَيُقْبَلُ إِقْرَارُ الْمَرْأَةِ بِالْوَالِدَيْنِ وَالزَّوْجِ وَالْمَوْلَىٰ او [د يو چا] د مور وپلار کېدلو، خاوند او مالک کېدلو په باره کي به د ښځي اقرار قبلول کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَلَا يُقْبَلُ بِالْوَلَدِ لېکن [د يو چا] د بچي کېدلو په باره کي به د ښځي اقرار نه

قبلول کیږي لِأَنَّ فِيهِ تَحْمِيلَ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ وَهُوَ الزَّوْجُ ځکه په دې کې پر بل چا یعنې پر خاوند د نسب اچول [لازمول] سته لِأَنَّ النَّسَبَ مِنْهُ ځکه چې نسب د خاوند له طرفه ثابتیږي إِلَّا أَنْ يُصَدِّقَهَا الزَّوْجُ مګر دا چې خاوند د هغې تصدیق وکړي لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُ ځکه چې دا د هغه حق دی أَوْ تَشْهَدَ بِوِلَادَتِهِ قَابِلَةٌ یا یوه دایي [دایه] د هغه بچي د ولادت ګواهي ورکړي لِأَنَّ قَوْلَ الْقَابِلَةِ فِي هَذَا مَقْبُولٌ ځکه چې په دې سلسله کې د دايي قول مقبول دی وَقَدْ مَرَّ فِي الطَّلَاقِ او په کتاب الطلاق کې دا تېر سوه وَقَدْ ذَكَرْنَا فِي إِقْرَارِ الْمَرْأَةِ تَفْصِيلًا فِي كِتَابِ الدَّعْوَى او موږ د ښځې د اقرار په باره کې څه تفصيل په کتاب الدعوىٰ کې ذکر کړی دی وَلَا بُدَّ مِنْ تَصْدِيقِ هَؤُلَاءِ او [د اقرار صحيح کېدلو لپاره] د دې کسانو [مقر لهم] تصدیق ضروري دی وَيَصِحُّ التَّصْدِيقُ فِي النَّسَبِ بَعْدَ مَوْتِ الْمُقِرِّ او د مقر تر مرګ وروسته هم د نسب د اقرار په هکله تصدیق صحیح دی لِأَنَّ النَّسَبَ يَبْقَى بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چې نسب تر مرګ وروسته [هم] باقي پاتېږي وَكَذَا يَصِحُّ تَصْدِيقُ الزَّوْجَةِ همدارنګه [د خاوند تر مرګ وروسته] د ښځې تصدیق هم صحیح دی لِأَنَّ حُكْمَ النِّكَاحِ بَاقٍ ځکه چې د نکاح حکم باقي دی وَكَذَا يَصِحُّ تَصْدِيقُ الزَّوْجِ بَعْدَ مَوْتِهَا او همدارنګه د ښځې تر مرګ وروسته د خاوند تصدیق هم صحیح دی لِأَنَّ الْإِرْثَ مِنْ أَحْكَامِهِ ځکه چې میراث د نکاح له احکامو څخه [یو حکم] دی وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ لَا يَصِحُّ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [د ښځې تر مرګ وروسته د خاوند تصدیق] صحیح نه دی لِأَنَّ النِّكَاحَ انْقَطَعَ بِالْمَوْتِ ځکه چې د مرګ په وجه نکاح منقطع سوه وَلِهَذَا لَا يَحِلُّ لَهُ غُسْلُهَا عِنْدَنَا او په همدې وجه زموږ په نېز د خاوند لپاره ښځې ته غسل ورکول روا نه دي وَلَا يَصِحُّ التَّصْدِيقُ عَلَى اعْتِبَارِ الْإِرْثِ او د وراثت [وارث کېدلو] په اعتبار سره [د خاوند] تصدیق صحیح نه دی لِأَنَّهُ مَعْدُومٌ حَالَةَ الْإِقْرَارِ ځکه چې د اقرار په وخت کې وراثت معدوم دی وَإِنَّمَا يَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ [ځکه] میراث خو تر مرګ وروسته ثابتیږي وَالتَّصْدِيقُ يَسْتَنِدُ إِلَى أَوَّلِ الْإِقْرَارِ حال دا چې تصدیق د اقرار د ابتداء وطرف ته منسوب کیږي.

**اللغات:** ﴿تحميل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: د يو چا پر ذمه د يو شي بوج او بار اچول. په يو شي مکلف کول. يو شی پر لازمول. ﴿مولی﴾ آزادونکی مالک. ﴿قابلة﴾ دايي. دايه. هغه ښځه کوم چې د

یو ښځي د لنګېدلو (بچي زېږولو) پر مهال د مرستي لپاره د هغې سره موجوده وي. ﴿إرث﴾ وراثت، میراث.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو څوک مثلاً ادریس ووایي چې "فلانکی سړی زما پلار دی، یا فلانۍ ښځه زما مور ده، یا فلانکی زما ځوی دی، یا فلانۍ ښځه زما مایننه (زوجه) ده، یا فلانکی سړی زما مالک دی"، نو د ادریس دا اقرار جائز او صحیح دی؛ ځکه چې دا اقرار یعني د پورتني کسانو نسب صرف پر مقر (ادریس) لازمیږي او له هغه څخه بغیر بل پر هیڅ نه لازمیږي، نو ځکه هغه معتبر او صحیح دی. همدارنګه که ښځه اقرار وکړي، نو هم صحیح دی، لېکن که ښځه د یو هلک په باره کي ووایي چي دا زما ځوی دی، نو د هغې دا اقرار صحیح نه دی؛ ځکه چي په دې اقرار کي پر خاوند نسب لازمیږي، لهذا د خاوند له تصدیق څخه بغیر به دا اقرار صحیح نه وي. ها! که دایي (دایه) وایي چي دا هلک د همدې ښځي ځوی دی او د فلانکي سړي سره یې نسب ثابت دی، نو د هغې په تصدیق او تائید سره دا اقرار صحیح کیږي؛ ځکه ولادت یو مخفي معامله ده چي په هغه صرف ښځي صحیح خبرېدای سي، لهذا په دې باره کي د هغو پر خبره فیصله کېدای سي.

ولا بد من تصدیق هولاء إلخ: فرمایي چي په مذکوره ټولو صورتونو کي د مقر لهم کسانو (پلار، مور، ځوی...) له طرفه دا تصدیق ضروري دی چي هو! مور د مقر (ادریس) پلار، یا مور، یا ځوی او داسي نور یو؛ ځکه چي دا ټوله د خپل نفس او د خپل ځان مالکان دي، لهذا د دوی سره د نسب ثابتېدلو لپاره د دوی تصدیق ضروري دی.

ویصح التصدیق إلخ: مسئله دا ده که مقر یو څوک خپل پلار یا ځوی (یا داسي نور) وګرځوي، بیا مړ سي او مقر لهٔ (پلار یا ځوی...) د هغه تر مرګ وروسته د هغه تصدیق وکړي، نو دا تصدیق هم معتبر دی؛ ځکه چي نسب تر مرګ وروسته هم باقي پاتیږي، همدارنګه که خاوند مړ سي او ښځه تر مرګ وروسته د هغه تصدیق وکړي، نو دا تصدیق هم معتبر دی؛ ځکه چي تر مرګ وروسته د عدت په حق کي د زوجیت رشته هم باقي پاتیږي.

وکذا إلخ: د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز که ښځه مړه سي او تر مرګ وروسته خاوند د هغې تصدیق وکړي، نو څرنګه چي خاوند د ښځي وارث کیږي، نو په دې حواله سره دا تصدیق معتبر دی، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا تصدیق معتبر نه دی؛ ځکه چي د مرګ په وجه نکاح ختمیږي، په همدې وجه خو زموږ په نېز خاوند خپل وفات شُده ښځي ته غسل نه سي ورکولای، او د وارث کېدلو په حواله سره اقرار ته صحیح نه سي ویل کېدای؛ ځکه دا اقرار په وخت کي وراثت معدوم وي،

وراثت خو تر مرګ وروسته ثابتیږي، او اقرار تر مرګ مخکښي واقع کیږي، نو ځکه وراثت (وارث کېدل) د اقرار ثابتېدلو لپاره معیار نه سي جوړېدای. (احسن الهدایه)

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: وَمَنْ أَقَرَّ بِنَسَبٍ مِنْ غَيْرِ الْوَالِدَيْنِ وَالْوَلَدِ نَحْوَ الْأَخِ وَالْعَمِّ فرمايي: او که څوک له مور و پلار څخه بغیر د بل چا د نسب اقرار وکړي لکه ورور او اکا لَا يُقْبَلُ إِقْرَارُهُ فِي النَّسَبِ نو د نسب په باره کي به د هغه اقرار نه قبلول کیږي لِأَنَّ فِيهِ حَمْلَ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ ځکه په دې کي پر بل چا د نسب اچول [الازمول] سته فَإِنْ كَانَ لَهُ وَارِثٌ مَعْرُوفٌ بیا که د هغه [مُقر] یو معلوم وارث وي قَرِيبٌ أَوْ بَعِيدٌ برابره ده هغه نژدې وارث وي او که لیري فَهُوَ أَوْلَى بِالْمِيرَاثِ مِنَ الْمُقَرِّ لَهُ نو هغه وارث له مقر لهٗ [ورور او اکا] څخه زيات د میراث مستحق دی لِأَنَّهُ لَمَّا لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ مِنْهُ ځکه کله چي د مقر سره د مقر لهٗ نسب ثابت نه سو لَا يُزَاحِمُ الْوَارِثَ الْمَعْرُوفَ نو مقر لهٗ به د معلوم وارث مزاحم [مقابل] نه وي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَارِثٌ او که چیري د مقر هیڅ وارث نه وي اِسْتَحَقَّ الْمُقَرُّ لَهُ مِيرَاثَهُ نو بیا مقر لهٗ د هغه د میراث مستحق کیږي لِأَنَّ لَهُ وِلَايَةَ التَّصَرُّفِ فِي مَالِ نَفْسِهِ عِنْدَ عَدَمِ الْوَارِثِ ځکه چي د وارث د نشتوالي په صورت کي مقر ته په خپل مال کي د تصرف کولو ولایت [او اختیار] سته أَلَا تَرَى أَنَّ لَهُ أَنْ يُوصِيَ بِجَمِيعِهِ آیا ته نه ګورې! چي [د وارث د نشتوالي په صورت کي] هغه ته دا اختیار سته چي د خپل ټوله مال وصیت وکړي فَيَسْتَحِقُّ جَمِيعَ الْمَالِ نو ځکه مقر لهٗ به د ټوله مال مستحق کیږي وَإِنْ لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ مِنْهُ که څه هم د مقر سره د هغه نسب نه ثابتیږي لِمَا فِيهِ مِنْ حَمْلِ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ ځکه چي په دې کي پر بل چا د نسب اچول [الازمول] سته وَلَيْسَتْ هَذِهِ وَصِيَّةً حَقِيقَةً او دا اقرار حقیقي وصیت نه دی حَتَّى أَنَّ مَنْ أَقَرَّ بِأَخٍ ثُمَّ أَوْصَى لِآخَرَ بِجَمِيعِ مَالِهِ همدا وجه ده که یو څوک [د یو چا] د ورور کېدلو اقرار وکړي بیا د بل چا لپاره د خپل ټوله مال وصیت وکړي كَانَ لِلْمُوصَى لَهُ ثُلُثُ جَمِيعِ الْمَالِ نو د موصیٰ لهٗ لپاره د ټوله مال دریمه حصه ده وَلَوْ كَانَ الْأَوَّلُ وَصِيَّةً نو که چیري اول [یعني مذکوره اقرار] وصیت وای لَاشْتَرَكَا نِصْفَيْنِ نو دوی دواړه به په نصف، نصف مال کي مشترک وای لَكِنَّهُ بِمَنْزِلَتِهِ

لېکن دا اقرار [فقط] د وصيت په درجه کي دی حَتّٰى لَوْ أَقَرَّ فِي مَرَضِهٖ بِأَخٍ همدا وجه ده که مقر په خپل مرضُ الموت کي [ديو چا] د ورور کېدلو اقرار وکړي وَصَدَّقَهُ الْمُقَرُّ لَهٗ او مقر لهٗ د هغه تصديق وکړي ثُمَّ أَنْكَرَ الْمُقِرُّ قَرَابَتَهٗ ثُمَّ أَوْصٰى بِمَالِهٖ كُلِّهٖ لِإِنْسَانٍ بيا مقر د هغه د قرابت [ورور والي] انکار وکړي بيا د يو انسان لپاره د خپل ټوله مال وصيت وکړي كَانَ الْمَالُ لِلْمُوْصٰى لَهٗ نو [د مُقِر] مال د موصیٰ له کيږي وَلَوْ لَمْ يُوْصِ لِأَحَدٍ او که د هيچا لپاره وصيت نه وکړي كَانَ لِبَيْتِ الْمَالِ نو هغه مال د بيتُ المال کيږي لِأَنَّ رُجُوْعَهٗ صَحِيْحٌ ځکه چي د مقر رجوع صحيح ده لِأَنَّ النَّسَبَ لَمْ يَثْبُتْ ځکه [کله] چي نسب ثابت نه سو فَبَطَلَ الْإِقْرَارُ نو اقرار باطل سو.

**اللغات:** ﴿لا يزاحم﴾ د مفاعلې د باب نفي صيغه ده: مقابل کېدل. ﴿موصٰى لهٗ﴾ د چا لپاره چي وصيت سوی وي (هغه کس چي مړي په خپل ژوند کي د هغه لپاره د مال يا بل شي وصيت کړی وي). ﴿بيت المال﴾ هغه دولتي ځای چي د عوامو مالونه پکښي جمع کيږي، سرکاري خزانه. د اسلامي دولت خزانه.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که ادريس ووايي چي "فلانکی سړی زما ورور دی يا هغه زما اکا دی"، نو محض په دې اقرار سره هغه د ادريس ورور يا ځوی نه ګرځي؛ ځکه د ورور په صورت کي په دې اقرار سره پر پلار نسب لازميږي؛ ځکه څوک چي د ده ورور سي نو هغه د ده د پلار ځوی ګرځي، او د اکا ويلو په صورت کي پر نيکه نسب لازميږي؛ ځکه چي اکا د نيکه ځوی ګرځي. او له رضا او تصديق څخه بغير پر يو سړي د بل چا نسب لازمول صحيح نه دي. بيا که دا مقر (ادريس) مړ سي او د مقر لهٗ (ورور، اکا) څخه بغير د هغه بل معلوم وارث موجود وي، برابره ده هغه نژدې وارث وي لکه ذوی الفروض او عصبه، يا ليري وارث وي لکه ذوی الارحام، نو د دې مقر مال به هغه معلوم (معروف نسب والا) وارث اخلي او مقر لهٗ ته به هيڅ شی نه ورکول کيږي؛ ځکه کله چي د مقر سره د مقر لهٗ نسب ثابت نه سو، نو هغه د معلوم وارث مزاحم او مقابل نه ګرځي.

ها! که چيري د مقر هيڅ وارث نه وي، نو په دې صورت کي مقر لهٗ د هغه د ميراث مستحق کيږي او هغه به يې مال اخلي، ځکه که څه هم د نسب په هکله د مقر خبره رد کړی سوې ده لېکن د مقر لهٗ د مال مستحق کېدلو په هکله د هغه اقرار نه دی رد کړی سوی (يعني په دې باره کي د مقر اقرار نه دی رد کړی سوی چي مقر لهٗ د هغه د مال مستحق کيږي)، او د وارث د نشتوالي په صورت کي مورث ته د خپل

ټوله مال د وصيت کولو حق ستـه. نو ځکه په دې صورت کې به د مقر لهٔ د مال مستحق کېدلو په هکله د مقر اقرار مقبول او معتبر وي.

وليست هذه إلخ: فرمايي: په پورتنۍ مسئله کې چې کوم اقرار دی. هغه حقيقي وصيت نه دی بلکې د وصيت په درجه کې دی، حقيقي وصيت خو په دې وجه نه دی چې که يو څوک مثلاً ادريس ووايي "خالد زما ورور دی"، بيا هغه د زيد لپاره د ټوله مال وصيت وکړي. نو مال به موصىٰ لهٔ (زيد) ته ورکول کيږه، حال دا چې کوم چا ته ادريس ورور ويلي دي يعني خالد. که چيرې هغه هم موصىٰ لهٔ وای نو د وصيت مال به دواړو ته نصف. نصف حاصلېدای، لېکن نصف. نصف نه حاصلېدل د دې خبرې علامت دی چې د ورور کېدلو. اکا کېدلو او داسې نور اقرار حقيقي وصيت نه دی، ها! د وصيت په درجه کې دی، همدا وجه ده که يو څوک په خپل مرضُ الموت کې ووايي چې مثلاً "حامد زما ورور دی" او حامد هم ووايي چې "هو! زه يې ورور يم". بيا مقر د هغه له قرابت څخه نکار وکړي چې "دا ځوی مړی بالکل زما ورور نه دی"، تر دې وروسته مقر د يو چا لپاره د خپل ټوله مال وصيت وکړي، نو ټوله مال به موصىٰ لهٔ ته ورکول کيږي. او که هغه د هيچا لپاره د خپل مال وصيت نه وکړي، نو د هغه مال به په بيتُ المال کې جمع کيږي؛ ځکه کله چې هغه د ورور له ورور والي څخه انکار وکړی، نو د هغه له نسب او په خپل ميراث کې يې د هغه له شرکت (شريک کېدلو) څخه رجوع وکړه، او دا رجوع صحيح ده. يعني د نسب له اقرار څخه رجوع کول صحيح دي. لکه څرنګه چې له وصيت څخه رجوع کول صحيح دي. لهٰذا که چيرې مذکوره اقرار د وصيت په درجه کې نه وای، نو د هغه رجوع کول به صحيح نه وای.

## د پلار تر مرګ وروسته يو څوک خپل ورور ګرځول

قَالَ: وَمَنْ مَاتَ أَبُوهُ فرمايي: او که د چا پلار مړ سي فَأَقَرَّ بِأَخٍ او هغه د يو چا د ورور کېدلو اقرار وکړي لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُ أَخِيهِ نو د هغه د ورور کېدلو نسب نه ثابتيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَيُشَارِكُهُ فِي الْمِيرَاثِ او مقر لهٔ [ورور] د هغه [مُقر] سره په ميراث کې شريک کيږي لِأَنَّ إِقْرَارَهُ تَضَمَّنَ شَيْئَيْنِ ځکه چې د هغه [مُقر] اقرار پر دوو شيانو مشتمل دی حَمْلَ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ وَلَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَيْهِ [۱] پر بل چا نسب اچول [لازمول] او مقر ته د دې ولايت نسته وَالِاشْتِرَاكَ فِي الْمَالِ وَلَهُ فِيهِ وِلَايَةٌ [۲] په مال کې مقر لهٔ شريکول او په دې باره کې مقر ته ولايت

سته فَيَثْبُتُ نو ځکه به دا [اشتراک فی المال] ثابتیږي كَالْمُشْتَرِيْ إِذَا أَقَرَّ عَلَى الْبَائِعِ بِالْعِتْقِ لکه کله چي مشتري پر پائع [د غلام] د آزادولو اقرار وکړي لَمْ يُقْبَلْ إِقْرَارُهُ عَلَيْهِ نو د بائع په خلاف د هغه اقرار نه قبلول کیږي حَتّٰى لَا يَرْجِعَ عَلَيْهِ بِالثَّمَنِ تر دې چي مشتري پر هغه د ثمن رجوع نه سي کولای [یعني له بائع څخه ثمن واپس نه اخیستلای] وَلٰكِنَّهُ يُقْبَلُ فِي حَقِّ الْعِتْقِ لېکن دا اقرار د عتق [آزادېدلو] په حق کي قبلول کیږي قَالَ: وَمَنْ مَاتَ وَتَرَكَ ابْنَيْنِ فرمایي او که څوک مړ سي او دوه ځامن پرېږدي وَلَهُ عَلٰى آخَرَ مِائَةُ دِرْهَمٍ او د هغه [میت] پر بل چا سل درهمه باندي وي فَأَقَرَّ أَحَدُهُمَا أَنَّ أَبُوهُ قَبَضَ مِنْهَا خَمْسِينَ بیا له دواړو ځامنو څخه یو دا اقرار وکړي چي زما پلار له هغه سل درهمو څخه پنځوس درهمه اخیستي دي [او بل ځوی د دې انکار کوي] لَا شَيْءَ لِلْمُقِرِّ وَلِلْآخَرِ خَمْسُونَ نو د مقر ځوی لپاره هیڅ شی نسته او د بل [منکر] ځوی لپاره پنځوس درهمه دي لِأَنَّ هٰذَا إِقْرَارٌ بِالدَّيْنِ عَلَى الْمَيِّتِ ځکه چي دا پر مړي [پلار] د قرض اقرار دی لِأَنَّ الِاسْتِيفَاءَ إِنَّمَا يَكُونُ بِقَبْضٍ مَضْمُونٍ ځکه چي د قرض اخیستل د ضمان والا مال په قبضه کولو سره وي [یعني د قرض اخیستلو طریقه همدا ده چي پر مضمون (پر ذمه واجب) مال باندي قبضه وسي (واخیستل سي)] فَإِذَا كَذَّبَهُ أَخُوهُ بیا چي کله د هغه ورور [منکر] د هغه تکذیب وکړی اسْتَغْرَقَ الدَّيْنُ نَصِيبَهُ نو قرض د هغه پر حصه احاطه وکړه كَمَا هُوَ الْمَذْهَبُ عِنْدَنَا لکه څرنګه چي زموږ په نېز همدا مذهب دی غَايَةُ الْأَمْرِ أَنَّهُمَا تَصَادَقَا عَلٰى كَوْنِ الْمَقْبُوضِ مُشْتَرَكًا بَيْنَهُمَا ها! دا ویل کېدای سي چي دوی دواړو د مقبوض [اخیستل سوي قرض] پر مشترک کېدلو اتفاق کړی دی لٰكِنَّ الْمُقِرَّ لَوْ رَجَعَ عَلَى الْقَابِضِ بِشَيْءٍ لېکن که مقر ځوی پر بائع د یو شي رجوع کړي [یعني له هغه څخه څه ثمن واپس واخلي] لَرَجَعَ الْقَابِضُ عَلَى الْغَرِيمِ وَرَجَعَ الْغَرِيمُ عَلَى الْمُقِرِّ نو قابض به پر مقروض رجوع کوي او مقروض به پر مقر رجوع کوي [یعني قابض به یې له مقروض څخه اخلي او مقروض به یې له مقر ځوی څخه اخلي] فَيُؤَدِّي إِلَى الدَّوْرِ نو دا به د دور [تسلسل] سبب وګرځي.

**اللغات:** ﴿ولاية﴾ اختیار. ﴿اسیفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: خپل حق اخیستل، ترلاسه کول، وصولول. ﴿كذبه﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: درواغجن ګڼل، درواغجن ګرځول. ﴿استغرق﴾

داستفعال ماضي ده: په پوره توګه نیول، په پوره توګه احاطه کول. ﴿نصیب﴾ حصه، برخه. ﴿غایة الأمر﴾ انتهائي خبره (یعني په آخر کي کم از کم دا خبره او اعتراض کېدای سي). ﴿تصادقا﴾ د تفاعل له بابه د تثنیه غائب ماضي صیغه ده: یو د بل تصدیق کول. یو تر بله پر یو خبره اتفاق کول یعني پر یو خبره د دوو کیسانو متفق کېدل. ﴿دَور﴾ مراد څني تسلسل دی. د تسلسل معنیٰ ده: پرلپسې والي، جاري والي (روان والی). یعني یو سلسله په لامتناهي توګه روانه پاتېدل او نه درېدل.

**تشریح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې بیان سوي دي:

(۱)... که یو څوک مثلاً ادریس مړ سي او د هغه یو څوی نعمان پاته سي او څه وخت وروسته نعمان دیو چا مثلاً د خالد په هکله دا اقرار وکړي چي "خالد زما حقیقي ورور دی"، نو د ورور کېدلو او د نسب ثابتېدلو په باره کي د نعمان دا اقرار معتبر نه دی؛ څکه چي په دې اقرار کي پر بل چا یعني پر مړ سوي پلار (ادریس) نسب لازمیږي او مقر ته "ولایت الزام" حاصل نه دی (یعني هغه د دې ولایت او اختیار نسته چي پر یو کس [مثلا پر پلار] د بل چا نسب لازم کړي). لېکن د پورتني اقرار په وجه مقر لهٗ د پلار په میراث کي شریک او حصه دار ګرځي؛ څکه چي میراث د مقر حق دی او هغه لره دا ولایت او اختیار سته چي بل څوک په خپل دغه حق کي شریک کړي. نو څکه په دې حواله سره د هغه دا اقرار صحیح او معتبر دی. د دې مثال داسي دی لکه زید چي له حامد څخه غلام رانیسي او هغه ته ثمن ورکړي، بیا زید دا اقرار وکړي چي "حامد خو تر خرڅولو مخکي لا دا غلام آزاد کړی وو"، نو د زید دا اقرار د بائع (حامد) په خلاف مقبول نه دی یعني د دې اقرار په وجه زید له بائع څخه د غلام ثمن واپس نه سي اخیستلای؛ څکه چي دا هم قرار علی الغیر دی. لېکن دا اقرار په خپله د مقر یعني د زید په حق کي معتبر دی یعني د ده له طرفه به هغه غلام آزاد شُده شمارل کیږي.

(۲)... دویمه مسئله دا ده که یو څوک مثلاً ادریس مړ سي او د هغه دوه څامن پاته سي چي د هغو پر حامد قرض باندي وي، بیا د هغه له دوو څامنو څخه یو څوی وایي چي "زما پلار (ادریس) له مقروض یعني له حامد څخه پنځوس درهمه اخیستي دي، او اوس پر هغه صرف پنځوس درهمه پاته دي"، لېکن دویم څوی وایي چي "نه! زما پلار له مقروض څخه یو درهم هم اخیستی نه دی او پر مقروض پوره سل درهمه پاته دي"، نو په دې صورت کي به مقر څوی ته هیڅ شی نه ورکول کیږي یعني کوم څوی چي د پنځوس درهمو د اخیستلو اقرار کوي هغه ته یو درهم هم نه حاصلیږي؛ څکه چي هغه د خپل مړه پلار له مال څخه د پنځوس درهمو مالک وو، او هغه د مقروض په حق کي د پنځوس درهمو په اقرار کولو سره خپل دا حق ساقط کړی. او څرنګه چي د هغه په دغه اقرار کي د بل چا (دویم څوی) د حق ضیاع سته نو څکه د بل چا په حق کي به دا اقرار معتبر نه وي او

هغه (دویم ځوی) ته به خپل حق یعني پنځوس درهمه ورکول کیږي؛ ځکه کوم ځوی چې د دې خبرې اقرار کوي چې زما پلار پنځوس درهمه اخیستي دي، هغه په حقیقت کې پر میت (پلار) د قرض اقرار کوي، او د قرض اخیستل پر داسې مال په قبضه کولو (یعني د داسې مال په اخیستلو) سره ثابتیږي کوم چې پر ذمه واجب وي یعني د هغه ضمان واجب وي؛ ځکه چې قرضونه بامثالها اداء کیږي، نه باعیانها. اوس چې کله یو ځوی د مړسوي پلار په حق کې د اخیستلو منکر دی (چې ما پلار یو درهم نه دی اخیستی) او د هغه ورور په دې باره کې د هغه تکذیب کوي، نو اوس به قرض صرف د مُقر ځوی په حصه کې اخیستل سوی ګڼل کیږي، او مابقي پنځوس درهمه به د منکر ځوی لپاره وي او په هغه کې به د مُقر ځوی لپاره هیڅ حصه نه وي.

لېکن که دا اعتراض وسي چې کله مُقر او منکر دواړه ځامن پر دې خبره متفق دي چې مابقي پنځوس درهمه کوم چې منکر ځوی له مقروض شخصه اخیستی دی په هغه کې خو دوی دواړه مشترک دي، یا په بله وینا دا چې مُقر ځوی وایي چې "موږ په پنځوسو درهمو کې یو د بل شریکان یو" او منکر ځوی وایي چې "په سلو درهمو کې شریکان یو" او د شرکت (اشتراک) په هکله دواړه متفق دي او په دې اعتبار سره مقر ځوی له منکر ځوی شخصه (چې د هغه په قبضه کې قرض دی) خپله حصه واپس اخیستلای سي یا د قرض نه اخیستل کېدلو په صورت کې له مقروض شخصه (د کوم په قبضه کې چې قرض پاته دی) خپله حصه واپس اخیستلای سي، حال دا چې په نفس الأمر کې داسې نه ده؟

د دې جواب دا دی چې په دې مسئله کې مقر ځوی له قابض شخصه یو درهم هم نه سي اخیستلای؛ ځکه چې د مقر ځوی په اقرار سره مقروض پنځوس درهمه د هغه پلار ته ورکړي دي. اوس که مقر ځوی له هغه شخصه بیا خپله حصه یعني پنځویشت درهمه واپس واخلي نو د هغه په حق کې به پنځه اویا (۷۵) درهمه راسي او بیا منکر ځوی به هم له مقروض شخصه خپله حصه غواړي او څرنګه چې هغه له دې شخصه منکر دی چې مقروض زما پلار ته قرض ورکړی دی نو ځکه د هغه حصه پنځوس درهمه ده لېکن مقروض به هغه ته صرف پنځویشت درهمه ورکړي، ځکه چې د مقروض سره به اوس صرف پنځویشت درهمه پاته وي. لهذا اوس به هغه خامخا مقر ځوی تر غوږ نیسي او له هغه شخصه به پنځویشت درهمه واپس اخلي او منکر ځوی ته به یې ورکوي. او کله چې مقروض له مقر ځوی شخصه هغه واپس واخلي. نو مقر ځوی به بیا د خپل حق یعني د پنځوس درهمو د اخیستلو لپاره د مقروض لمن نیسي او د مرګ تر وخته به دا د اخیستلو او ورکولو سلسله روانه وي. نو په دې وجه په دغه مسئله کې زموږ پرېکړه او فیصله دا ده چې مابقي قرض به صرف منکر ځوی ته ورکول کیږي او مقر ځوی ته به هیڅ شی نه ورکول کیږي. والله أعلم وعلمهٔ أتم



# كِتَابُ الصُّلْحِ

(دا) کتاب د صلح (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح:** له "کتابُ الاقرار" څخه وروسته سمدستي د "کتابُ الصلح" د ذکر کولو وجه دا ده چې د مُقِر یا مُقَر لهٗ انکار د خصومت (دعوې) او اختلاف سبب دی. او د خصومت ختمولو غوره طریقه صلح کول دي، لېکن څرنګه چې د صلح نوبت تر خصومت وروسته راځي، نو ځکه کتاب الاقرار پر کتاب الصلح مخکې کړی سوی دی.

**د صلح لغوي معنیٰ:** "صلح" د فساد (خرابوالي او بد والي) ضد دی. لغوي معنیٰ یې ده: صلاح، ښه والی، روغوالی.

**د صلح اصطلاحي معنیٰ:** "عَقْدٌ وُضِعَ لِرَفْعِ الْمُنَازَعَةِ" یعني صلح داسې عقد (تړون) دی کوم چې د جنګ او دعویٰ ختمولو لپاره وضع سوی دی"، په بله وینا: یو د بل په رضا سره د دعوې د ختمولو او پرېښوولو تړون ته "صُلح" وایي.

**یادونه:** پر کوم شي چې صلح واقع سي، هغه ته "مُصَالَح عَلَيْه" وایي او د کوم شي په باره کې چې صلح واقع سي هغه ته "مُصَالَح عَنْهُ" وایي او کوم شوک چې صلح وکړي هغه ته "مُصَالِح" وایي، مثلاً نعمان پر ادریس د یو کور دعویٰ وکړي چې دا کور زما دی، او ادریس ووایي چې "زه به تا ته زر درهمه درکړم، ته د هغه په عوض کې خپله دعویٰ پرېږده!" او نعمان زر درهمه واخلي او صلح وکړي (دعویٰ پرېږدي)، نو زر درهمه "مصالح علیه" دي، کور "مصالح عنه" دی او ادریس "مصالِح" دی.

## د صلح اقسام او د هغوی په جواز کې د اختلاف بیان

| |
|---|
| قَالَ: الصُّلْحُ عَلٰى ثَلَاثَةِ أَضْرُبٍ فرمایي: صلح پر درې قسمه ده صُلْحٌ مَعَ إِقْرَارٍ [۱] صلح مع اقرار وَصُلْحٌ مَعَ سُكُوتٍ وَهُوَ أَنْ لَا يُقِرَّ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ وَلَا يُنْكِرَ [۲] او صلح مع سکوت او هغه دا ده چې مدعی علیه نه اقرار وکړي او نه انکار وکړي وَصُلْحٌ مَعَ إِنْكَارٍ [۳] او صلح مع انکار وَكُلُّ ذٰلِكَ جَائِزٌ او دا ټول له |

صلحي جائز دي لِإِطْلَاقِ قَوْلِهِ تَعَالَىٰ: ﴿وَالصُّلْحُ خَيْرٌ﴾ ځکه چي د الله تعالیٰ دا فرمان مطلق دی: "او صلح غوره ده" وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: «كُلُّ صُلْحٍ جَائِزٌ فِيمَا بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا صُلْحًا أَحَلَّ حَرَامًا أَوْ حَرَّمَ حَلَالًا» او ځکه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: "د مسلمانانو په مينځ کي هره صلح جائز ده مگر هغه صلح کوم چي حرام حلال وگرځوي او حلال حرام وگرځوي" وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ مَعَ إِنْكَارٍ أَوْ سُكُوتٍ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي صلح مع انکار او صلح مع سکوت جائز نه ده لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَهٰذَا بِهٰذِهِ الصِّفَةِ او دا [صلح مع انکار او صلح مع سکوت] هم پر دغه صفت دي لِأَنَّ الْبَدَلَ إِنْ كَانَ حَلَالًا عَلَى الدَّافِعِ حَرَامًا عَلَى الْآخِذِ ځکه [د صلح] بدل که څه هم پر ورکونکي حلال دي لېکن پر اخيستونکي حرام دی فَيَنْقَلِبُ الْأَمْرُ لهذا معامله به واوړي [معامله به چپه وگرځي] وَلِأَنَّ الْمُدَّعَىٰ عَلَيْهِ يَدْفَعُ الْمَالَ لِقَطْعِ الْخُصُومَةِ عَنْ نَفْسِهِ ځکه چي مدعیٰ عليه له خپل ځان څخه د خصومت [دعوې] ليري کولو لپاره مال ورکوي وَهٰذَا رِشْوَةٌ او دا رشوت دی وَلَنَا مَا تَلَوْنَا وَأَوَّلُ مَا رَوَيْنَا او زموږ دليل هغه آيت دی کوم چي موږ ولوستی او د هغه حديث اوله حصه ده کوم چي موږ روايت کړی وَتَأْوِيلُ آخِرِهِ أَحَلَّ حَرَامًا لِعَيْنِهِ كَالْخَمْرِ او د آخري حصې تأويل يې دا دی چي [مگر هغه صلح ناجائز ده کوم چي] داسي شی حرام کړي چي هغه حرام لعينہٖ [حرام بالذات] وي لکه شراب أَوْ حَرَّمَ حَلَالًا لِعَيْنِهِ يا داسي شی حرام کړي چي هغه حلال لعينہٖ [حلال بالذات] وي كَالصُّلْحِ عَلَىٰ أَنْ لَا يَطَأَ الضَّرَّةَ لکه پر دې خبره [د خپلي بنځي سره د خاوند] صلح کول چي د بَنْ سره به هغه وطي نه کوي وَلِأَنَّ هٰذَا صُلْحٌ بَعْدَ دَعْوَىٰ صَحِيحَةٍ او ځکه چي دا صلح تر يو صحيح دعویٰ وروسته [واقع سوې] ده فَيُقْضَىٰ بِجَوَازِهِ نو ځکه د هغه د جواز [جائز کېدلو] فيصله به کيږي لِأَنَّ الْمُدَّعِيَ يَأْخُذُهُ عِوَضًا عَنْ حَقِّهِ فِي زَعْمِهِ ځکه چي مدعي د خپل گومان مطابق دا مال د خپل حق په عوض کي اخلي وَهٰذَا مَشْرُوعٌ او دا مشروع دي وَالْمُدَّعَىٰ عَلَيْهِ يَدْفَعُهُ لِدَفْعِ الْخُصُومَةِ عَنْ نَفْسِهِ او مدعی عليه له خپل ځان څخه د خصومت ليري کولو لپاره هغه ورکوي وَهٰذَا مَشْرُوعٌ أَيْضًا او دا هم مشروع دي إِذِ الْمَالُ وِقَايَةُ الْأَنْفُسِ ځکه چي مال د ځانو د حفاظت لپاره وي وَدَفْعُ الرِّشْوَةِ لِدَفْعِ

الظُّلْمِ أَمْرٌ جَائِزٌ او د ظلم دفع کولو لپاره رشوت ورکول جائز کار دی.

**اللغات**: ﴿سكوت﴾ د نصر مصدر دی: چوپېدل، خاموشي. ﴿دافع﴾ د فتح اسم افاعل دی: ورکونکی، ځکه د ''دفع'' یوه معنیٰ ده: ورکول، او بله معنیٰ يې ده: دفع کول. لیري کول. ختمول. ﴿خصومة﴾ جنګ او اختلاف، دعویٰ (دعوه). ﴿ضَرَّة﴾ بَن (بنه)، د يو خاوند دوې ښځي يوه د بلې بَن کيږي، ﴿مشروع﴾ د فتح اسم مفعول دی: په شريعت کي نافذ او جاري. په شريعت کي جائز. ﴿وقاية﴾ د ضرب مصدر دی: حفاظت کول، ساتل، ژغورل.

**تشريح**: صلح پر درې قسمه ده: ① صلح مع اقرار، يعني مدعیٰ عليه د مدعي د دعوې اقرار وکړي او بيا د هغه سره پر څه مال صلح وکړي، د دې لپاره چي هغه خپله دعویٰ پرېږدي او خوله بنده وساتي، ② صلح مع انکار، يعني مدعیٰ عليه د مدعي د دعوې انکار وکړي. بيا چي کله له مدعیٰ څخه د قسم اخيستلو غوښتنه وسي، نو هغه د قسم پر ځای مدعي ته څه مال ورکړي او د مدعي خوله وربنده کړي، ③ صلح مع سکوت، يعني مدعیٰ عليه نه د دعوې اقرار وکړي او نه يې انکار وکړي. بلکي په پټه خوله د مدعي سره صلح وکړي، زموږ په نېز د صلح دغه درې سره قسمونه جائز دي، لېکن د شوافعو په نېز صرف صلح مع الاقرار صحيح ده او له دې څخه بغير صلح مع الانکار او صلح مع السکوت صحيح نه دي.

**د امام شافعي دليل**: دا حديث دی ''كُلُّ صُلْحٍ جَائِزٌ فِيمَا بَيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ إِلَّا صُلْحًا أَحَلَّ حَرَامًا أَوْ حَرَّمَ حَلَالًا'' چي هره صلح د مسلمانانو په مينځ کي صحيح ده. لېکن کومه صلح چي حلال شی حرام وګرځوي يا حرام حلال وګرځوي. هغه صحيح نه ده. او څرنګه چي په صلح مع الانکار او صلح مع السکوت کي دا خرابي موجوده ده. نو ځکه به هغه صحيح نه وي: ځکه د صلح عوض (بدلِ صلح) پر ورکونکي حلال دی او پر اخيستونکی حرام. ځکه چي مدعیٰ عليه د هغه د دعوې منکر دی او مدعي (اخيستونکي) په بيّنه سره خپل حق نه دی ثابت کړی. او په دې حواله سره معامله چپه سوه. يعني اوس به پر ورکونکي حرام وي او پر اخيستونکيَ به حلال وي، په بله وينا دا چي که مدعي په خپله دعویٰ کي پر حق وي نو د هغه لپاره خو تر صلح مخکي د مدعیٰ به (دعوه داره شي) اخيستل حلال دي. لېکن د دې صلح په وجه به حرام وګرځي. او که چيري پر ناحقه وي. نو د باطله دعویٰ په ذريعه د هغه لپاره تر

صلح مخکي د مدعیٰ به اخيستل حرام دي، او د دغه صلح په وجه به حلال وګرځي، نو دغه صلح حرام کار حلال وګرځوی، نو ځکه به صحيح نه وي.

**زموږ دليل** : د صلح د دريو سره اقسامو د جواز او صحت په باره کي زموږ دليل د قرآن کريم دا آيت دی: ﴿وَالصُّلْحُ خَيْرٌ﴾ [سورة النساء: ١٢٨] چي صلح کول غوره دي، او څرنګه چي دا آيت مطلق دی او په دې کي د اقرار او نکار هيڅ تفصيل نسته، نو ځکه به د صلح هر قسم جائز وي. همدارنګه د پورتني حديث په اوله حصه "كُلُّ صُلْحٍ جَائِزٌ فِيمَا بَيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ" سره هم على الإطلاق د هري صلحي د جواز حکم ثابتيږي او د دې حديث په آخر کي چي کوم دا حکم ذکر سوی دی "إِلَّا صُلْحًا أَحَلَّ حَرَامًا أَوْ حَرَّمَ حَلَالًا"، له دې څخه حرام لعينه او حلال لعينه مراد دي؛ ځکه چي حَلَالًا او حَرَامًا مطلق ذکر سوي دي، او له مطلق څخه حرام لعينه او حلال لعينه مراديږي، يعني که صلح پر يو حرام لعينه شي واقع سي لکه شراب او خنزير، يا پر حلال لعينه شي واقع سي مثلاً خاوند د خپلي ښځي سره پر دې خبره صلح وکړي چي زه به ستا د بنّي سره وطي نه کوم (حال دا چي د بنّي سره وطي کول حلال دي). نو داسي صلح جائز نه ده.

دويم دليل دا دی چي صلح مع الانکار او صلح مع السکوت هم تر صحيح دعوې وروسته واقع کيږي، په همدې وجه له مدعیٰ عليه څخه پر انکار قسم اخيستل کيږي، ښکاره خبره ده چي که دعویٰ صحيح نه وای نو له هغه څخه به قسم هم نه اخيستل کېدای، لهذا دا ثابته سوه چي په صلح مع الانکار او صلح مع السکوت کي دعویٰ صحيح وي، نو ځکه صلح به هم صحيح وي، او کله چي صلح صحيح ده، نو د دې تقرير به داسي وي چي مدعي د خپل ګومان مطابق هغه مال (د صلح بدل) د خپل حق په عوض کي اخلي او مدعیٰ عليه له خپل ځان څخه د ظلم ليري کولو په غرض هغه ته مال ورکوي، او مال نو د همدې ځان د حفاظت لپاره وي او په همدې مقصد سره جمع کيږي. لهذا د ظلم دفع کولو لپاره رشوت ورکول جائز دي. (احسن الهدايه)

## د صلح د دريو سره اقسامو حکم او تفصيل

قَالَ: وَإِنْ وَقَعَ الصُّلْحُ عَنْ إِقْرَارٍ فرمايي: او که صلح د يو اقرار په هکله واقع سي اُعْتُبِرَ فِيهِ مَا يُعْتَبَرُ فِي الْبِيَاعَاتِ نو په دې کي به د هغه شيانو اعتبار کيږي کوم چي په بيعو کي کيږي إِنْ وَقَعَ عَنْ مَالٍ بِمَالٍ [په دې شرط] که صلح د مال په عوض کي واقع سوې وي لِوُجُودِ مَعْنَى الْبَيْعِ ځکه چي [په دې صورت کي] د بيع معنیٰ [مبادلة المال بالمال] موجوده ده وَهُوَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ فِي حَقِّ الْمُتَعَاقِدَيْنِ

بِتَرَاضِيهِمَا او هغه [د بيع معنیٰ] مال په مال سره بدلول دي د دواړو عاقدينو په حق كي د دوی په رضا سره فَيَجْرِيْ فِيهِ الشُّفْعَةُ إِذَا كَانَ عَقَارًا نو ځکه په هغه [يعني د مدعیٰ عليه په وركول سوي شي] كي به شفعه جاري كيږي كه چيري هغه جايداد وي [لكه ځمكه او داسي نور] وَيُرَدُّ بِالْعَيْبِ او د عيب په وجه به واپس كول كيږي وَيَثْبُتُ فِيهِ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ وَالشَّرْطِ او په هغه كي به خيار شرط او خيار رؤيت ثابتيږي وَيُفْسِدُهُ جَهَالَةُ الْبَدَلِ او د بدل جهالت [مجهول والی] هغه فاسدوي لِأَنَّهَا هِيَ الْمُفْضِيَةُ إِلَى الْمُنَازَعَةِ ځکه چي همدا د بدل جهالت جنګ [خصومت] ته رسونکی دی دُونَ جَهَالَةِ الْمُصَالَحِ عَنْهُ نه د مصالح عنه جهالت لِأَنَّهُ يَسْقُطُ ځکه چي هغه خو ساقطيږي وَيُشْتَرَطُ الْقُدْرَةُ عَلَى تَسْلِيمِ الْبَدَلِ او [په دې صلح كي] د بدل پر ورسپارلو قادر كېدل شرط دي وَإِنْ وَقَعَ عَنْ مَالٍ بِمَنَافِعَ او كه د مال په عوض كي پر منافعو صلح واقع سي يُعْتَبَرُ بِالْإِجَارَاتِ نو اعتبار به يې كيږي په اجاراتو سره [يعني هغه به پر اجاره قياسول كيږي] لِوُجُودِ مَعْنَى الْإِجَارَةِ ځکه چي [په هغه كي] د اجارې معنیٰ موجوده ده وَهُوَ تَمْلِيكُ الْمَنَافِعِ بِمَالٍ او هغه [يعني د اجارې معنیٰ دا ده] د مال په عوض كي د منافعو مالک كول وَالِاعْتِبَارُ فِي الْعُقُودِ لِمَعَانِيهَا او په عقودو كي اعتبار معنیٰ ګانو لره دی [يعني په عقدونو كي د معنیٰ اعتبار كيږي] فَيُشْتَرَطُ التَّوْقِيتُ فِيهَا نو ځکه په هغه كي به وخت ټاكل [مودت بيانول] شرط وي وَيَبْطُلُ الصُّلْحُ بِمَوْتِ أَحَدِهِمَا فِي الْمُدَّةِ او [د صلح] په مودت كي د يوه په مړه كېدلو سره صلح باطليږي لِأَنَّهُ إِجَارَةٌ ځکه چي دا صلح اجاره ده وَالصُّلْحُ عَنِ السُّكُوتِ وَالْإِنْكَارِ فِي حَقِّ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ لِافْتِدَاءِ الْيَمِينِ وَقَطْعِ الْخُصُومَةِ وَفِي حَقِّ الْمُدَّعِي لِمَعْنَى الْمُعَاوَضَةِ او صلح مع سكوت او صلح مع انكار د مدعیٰ عليه په حق كي د قسم د فديه وركولو او خصومت ختمولو لپاره ده، او د مدعي په حق كي د معاوضې په معنیٰ سره ده [په بله وينا: او هغه صلح كوم چي د سكوت يا انكار په هكله وي هغه د مدعیٰ عليه په حق كي د فديه وركولو او خصومت ختمولو په توګه ده او د مدعي په حق كي د معاوضې په معنیٰ سره ده] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړی وَيَجُوزُ أَنْ يَخْتَلِفَ حُكْمُ الْعَقْدِ فِي حَقِّهِمَا او دا جائز دي [يعني دا كېدای سي] چي د عقد [صلح] حكم د مدعي او مدعیٰ عليه په حق كي مختلف سي كَمَا يَخْتَلِفُ حُكْمُ

الْإِقَالَةِ فِي حَقِّ الْمُتَعَاقِدَيْنِ وَغَيْرِهِمَا لکه څرنګه چي د اقالې حکم د عاقدَينو او داسي نورو په حق کي مختلف کيږي وَهٰذَا فِي الْإِنْكَارِ ظَاهِرٌ او دا د صلح مع الانکار په صورت کي ښکاره ده وَكَذَا فِي السُّكُوتِ او همدارنګه په صلح مع السکوت کي [هم ښکاره ده] لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الْإِقْرَارَ وَالْجُحُودَ ځکه چي سکوت د اقرار او انکار دواړو احتمال لري فَلَا يَثْبُتُ كَوْنُهُ عِوَضًا فِي حَقِّهِ بِالشَّكِّ نو ځکه د شک په وجه د مدعیٰ عليه په حق کي به د هغه عوض کېدل نه ثابتيږي.

**اللغات**: ﴿بياعات﴾ د خرڅولو او رانيولو معاملات، بيوع. ﴿عَقار﴾ (د لغت په کتابو کي د عَين په فتحه سره منقول دی) غيرِ منقوله جايداد، لکه ځمکه کور او داسي نور. ﴿مُصالَح عنه﴾ د کوم شي په هکله چي صلح سوې وي، هغه ته مصالح عنه وايي، مثال يې د کتاب الصلح په شروع کي ذکر سو. ﴿مفضية﴾ د افعال د باب مؤنث اسم فاعل دی: رسېدونکی، رسونکی، سبب جوړېدونکی. ﴿افتداء﴾ د افتعال د باب مصدر دی: فديه ورکول (مراد ځني د خپل قسم اخيستلو په مقابله کي تاکلې قيمت ورکول دي [چي له قسم اخيستو څخه خلاص سي]). ﴿يمين﴾ قسم. ﴿إقالة﴾ د افعال د باب مصدر دی: اقاله کول، د بائع او مشتري دواړو په خپل رضا سره بيع فسخ کول، بيع ماتول (ختمول).

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوې دي:

(۱)... که چيري صلح مع الاقرار وي او دا صلح د مال په عوض کي پر مال واقع سوې وي، يعني مدعي د مال دعویٰ وکړي او مدعیٰ عليه د هغه د دعوې اقرار وکړي بيا د هغه سره پر څه مال صلح وکړي، نو د دې صلح د صحيح کېدلو لپاره هغه ټوله شرطونه ضروري دي کوم چي د بيع لپاره شرط او ضروري دي؛ ځکه چي په دې کي د بيع معنیٰ يعني "مبادلة المال بالمال" موجوده ده. او که چيري مدعیٰ به (دعوه داره شی) عقار مثلاً ځمکه وي، نو په هغه کي شفعه هم جاري کيږي. خيار شرط او رؤيت هم پکښې ثابتيږي، لکه څرنګه چي په بيع کي کيږي. او څرنګه چي د ثمن جهالت بيع فاسدوي، همداسي د صلح د عوض (بدلِ صلح) جهالت هم صلح فاسدوي؛ ځکه چي د عوض (بدل) جهالت مفضي الی النزاع دي (يعني د اختلاف او دعوې سبب جوړيږي). مثلاً مدعي له مدعیٰ عليه څخه د مال مطالبه وکړي او مدعیٰ عليه ووايي زه به تا ته څه دراهم درکړم (او مقدار يې معلوم نه کړي) او پر هغه صلح وکړي، نو د دراهمو د مجهول والي په وجه خامخا د دوی په مينځ کي فساد او اختلاف پيدا کيږي، نو ځکه د ثمن د مقدار وضاحت کول ضروري دي، لېکن مصالح عنه يعني د کوم شي په باره

کي چي صلح سوې وي، مثلاً مدعي په يو کور دعوىٰ وکړي چي په دې کور کي زما حصه هم سته لهذا هغه ما ته راکول پکار دي، لېکن مدعىٰ عليه هغه ته څه مال ورکړي او خوله يې ورېنده کړي، نو دا صحيح دي، يعني که څه هم په دې صورت کي د مدعي حصه مجهوله دهٔ لېکن د دې باوجود صلح صحيح ده، او په داسي جهالت سره د صلح پر صحت هيڅ اغېز نه لوېږي. او د صلح د صحت لپاره دا هم ضروري دي چي مدعىٰ عليه به د عوض (بدل) پر ورسپارلو قادر وي، ځکه که مدعي ته د هغه عوض حاصل نه سي، نو هغه به خپل خصومت او دعوىٰ نه پرېږدي او په دې توګه به صلح فاسده سي.

وإن وقع عن مال بمنافع إلخ: او که چيري د مال په عوض کي پر منافعو صلح واقع سي، مثلاً مدعي دعوىٰ وکړي چي ما پر تا درهمه باندي دي لهذا ته هغه راکړه!، او مدعىٰ عليه هغه ته په صلح کي خپل آس د سپرېدلو لپاره ورکړي (چي ته! يو څه وخت له دې آس څخه منافع (سپرتيا) حاصله کړه! او خپله دعوىٰ پرېږده!) يا مثلاً خپل کور د اوسېدلو لپاره ورکړي، نو داسي صلح د اجارې په درجه کي ده او په دې کي به د اجارې د شرطونو اعتبار کيږي، لهذا په دې صلح کي د سپرېدلو يا اوسېدلو مودت ټاکل ضروري دي (چي دومره وخت پر سپور سه! يا دومره مياشتي پکښي او وسېږه!)، همدارنګه که د ټاکل سوي مودت په دوران کي مدعي يا مدعيٰ عليه مړ سي، نو صلح باطليږي. لکه څرنګه چي په اجاره کي هم دا ټوله شيان شرط او ضروري دي.

والصلح عن السكوت إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده که چيري صلح مع الانكار يا مع السكوت وي (يعني مدعىٰ عليه د مدعي د دعوې په باره کي سکوت وکړي يا انکار وکړي بيا د مدعي سره صلح وکړي)، نو دا صلح د مدعي په حق کي معاوضه ده او د مدعىٰ عليه په حق کي د خصومت او قسم فديه ده؛ د مدعي په حق کي معاوضه ځکه ده چي هغه د خپل فهم او ګومان مطابق د خپل حق عوض (بدل) اخلي، او د مدعىٰ عليه په حق کي د قسم فديه ځکه ده، چي که صلح سوې نه وای نو پر مدعىٰ عليه به قسم اخيستل لازم وای او هغه به د مدعي سره خصومت او دعوىٰ نه پرېښوولای.

دلته ممکنه ده چي څوک دا اعتراض وکړي چي کله عقد (صلح) په يوه صفت سره متصف سي نو بيا به هغه څنګه په بل صفت سره متصف کيږي؟ نو د دې په جواب کي فرمايي "ويجوز أن يختلف حكم العقد إلخ" يعني دا خبره ممکنه ده چي د دې صلح حکم د دواړو په حق کي مختلف سي، يعني مثلاً د مدعي په حق کي صلح بمعنىٰ بيع يا بمعنىٰ اجاره وي او د مدعىٰ عليه په حق کي نه وي، لکه څرنګه چي د اقالې په صورت کي کيږي، يعني لکه اقاله چي د دواړو عاقدَينو په حق کي

فسخ ده لېكن له عاقدينو څخه بغير د بل چا په حق كي بيع جديد ده، همدارنګه نكاح چي د هغې حكم د خپلي ښځي په حق كي حِلَت دى او د ښځي د مور (خپلي خواښي) په حق كي حرمتِ مؤبده دى.

وهذا في الانكار إلخ: فرمايي كله چي صلح مع الانكار وي، نو ښكاره خبره ده چي هغه د مدعىٰ عليه په حق كي د قسم د فديې او د خصومت ختمولو لپاره ده، او كه چيري صلح مع السكوت وي، نو هغه ځكه د قسم د فديې او د خصومت ختمولو لپاره ده، چي په سكوت كي د اقرار او نكار دواړو احتمال سته، حال دا چي په صلح كي وركول سوى شى هغه وخت عوض (بدلِ صلح) ګرځي كله چي مدعىٰ عليه اقرار وكړي، لېكن دلته هغه نه اقرار كړى دى او نه انكار، نو ځكه د شك په وجه به هغه د مدعىٰ عليه په حق كي عوض او معاوضه نه ګرځول كيږي.

## د ځمكي په صلح كي حق الشفعه نه ثابتيږي

قَالَ: وَإِذَا صَالَحَ عَنْ دَارٍ فرمايي: او كله چي مدعي د يو كور په هكله صلح وكړي لَمْ يَجِبْ فِيهَا الشُّفْعَةُ نو په هغه كور كي شفعه نه واجبيږي قَالَ: مَعْنَاهُ إِذَا كَانَ عَنْ إِنْكَارٍ أَوْ سُكُوتٍ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د امام قدوري رَحِمَهُ الله د قول مطلب دا دى چي كله صلح مع الانكار يا صلح مع السكوت وي لِأَنَّهُ يَأْخُذُهَا عَلَى أَصْلِ حَقِّهِ ځكه چي مدعىٰ عليه هغه كور د خپل اصل حق په توګه اخلي وَيَدْفَعُ الْمَالَ دَفْعًا لِخُصُومَةِ الْمُدَّعِي او د مدعي د خصومت ختمولو لپاره [هغه ته] مال وركوي وَزَعْمُ الْمُدَّعِي لَا يَلْزَمُهُ او د مدعي ګومان پر مدعىٰ عليه نه لازميږي بِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَلَى دَارٍ په خلاف د هغه صورت كله چي پر يو كور صلح وكړي حَيْثُ يَجِبُ فِيهَا الشُّفْعَةُ نو په هغه كي شفعه واجبيږي لِأَنَّ الْمُدَّعِيَ يَأْخُذُهَا عِوَضًا عَنِ الْمَالِ ځكه چي مدعي هغه د مال په عوض كي اخلي فَكَانَ مُعَاوَضَةً فِي حَقِّهِ نو دا به د مدعي په حق كي معاوضه وي فَيَلْزَمُ الشُّفْعَةُ بِإِقْرَارِهِ نو ځكه د مدعي په اقرار سره به شفعه لازميږي وَإِنْ كَانَ الْمُدَّعَىٰ عَلَيْهِ يُكَذِّبُهُ كه څه هم مدعىٰ عليه هغه دروغجن ګڼي.

**اللغات:** ﴿صَالَحَ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: صلح كول، د خصومت او دعوى پر ختمولو تړون كول، ﴿يكذبه﴾ د تفعيل مضارع ده: تكذيب كول، دروغجن ګرځول، دروغجن ګڼل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو کور د ادریس په قبضه کې وي او بل څوک په هغه دعوی وکړي چې په دې کور زما هم حصه سته، او ادریس انکار وکړي یا چپ پاته سي (یعني هیڅ نه ووایي) بیا د مدعي سره پر څه مال صلح وکړي، نو په دغه کور کې شفعه نه ثابتیږي. ځکه مدعیٰ علیه (ادریس) خو همدا ګومان کوي چې دا کور فقط زما دی او هغه صرف د خصومت او دعوې ختمولو لپاره مدعي ته مال ورکوي، او د مدعي د ګومان سره د مدعیٰ علیه هیڅ واسطه نسته (یعني برابره ده مدعي هغه مال د خپل حق عوض ګڼي یا بل څه، د دې سره د مدعیٰ علیه هیڅ واسطه نسته). ها! که چیري صلح پر کور واقع سي، یعني مدعیٰ علیه په صلح کې مدعي ته کور ورکړي، نو بیا په هغه کې شفعه ثابتیږي او لازمیږي؛ ځکه چې په دې صورت کې مدعي هغه کور د خپل مال په عوض کې اخلي، نو دا د هغه په حق کې معاوضه سوه، لهذا که مدعي د هغه د معاوضه کېدلو اقرار کوي نو په هغه کې به شفعه لازمیږي او شفیع ته به د هغه د اخیستلو حق وي، که څه هم مدعیٰ علیه په دې باره کې د مدعي د قول انکار کوي او هغه درواغجن شمېري.

## تر صلح وروسته دعوه داره (متنازَع فیه) شی د بل چا مستحق ختل

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الصُّلْحُ عَنْ إِقْرَارٍ فرمایي: او کله چې صلح مع اقرار وي وَاسْتُحِقَّ بَعْضُ الْمُصَالَحِ عَنْهُ او د مصالح عنه څه حصه [د بل چا] مستحق وخیږي [یعني بل څوک خپل حق پکښې ثابت کړي] رَجَعَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ بِحِصَّةِ ذٰلِكَ مِنَ الْعِوَضِ نو مدعیٰ علیه به د هغه حصې په اندازه له مدعي څخه عوض [بدلِ صلح] واپس اخلي لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةٌ مُطْلَقَةٌ كَالْبَيْعِ ځکه چې صلح مع الاقرار د بیع په څېر مطلق معاوضه ده وَحُكْمُ الِاسْتِحْقَاقِ فِي الْبَيْعِ هٰذَا او په بیع کې د استحقاق همدغه حکم دی [یعني که د بیع په صورت کې یو څوک د مبیع مستحق وخیږي، نو هم دغه حکم دی] وَإِنْ وَقَعَ الصُّلْحُ عَنْ سُكُوتٍ أَوْ إِنْكَارٍ او که صلح مع سکوت یا صلح مع انکار وي فَاسْتُحِقَّ الْمُتَنَازَعُ فِيهِ بیا دعوه داره شی [د بل چا] مستحق وخیږي رَجَعَ الْمُدَّعِي بِالْخُصُومَةِ وَرَدَّ الْعِوَضَ نو مدعي به [د مستحق کس سره] خصومت کوي او عوض به [مدعیٰ علیه ته] واپس کوي لِأَنَّ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ مَا بَذَلَ الْعِوَضَ إِلَّا لِيَدْفَعَ خُصُومَتَهُ عَنْ نَفْسِهِ ځکه چې مدعیٰ علیه د همدې لپاره عوض ورکړی دی چې له خپل ځان څخه خصومت لیري کړي فَإِذَا ظَهَرَ الِاسْتِحْقَاقُ تَبَيَّنَ أَنْ لَا خُصُومَةَ لَهُ لیکن کله چې استحقاق ښکاره سو نو دا څرګنده

سوه چي مدعىٰ عليه لره خصومت نه وو فَيَبْقَى الْعِوَضُ فِي يَدِهِ غَيْرَ مُشْتَمِلٍ عَلَى غَرَضِهِ نو ځکه د ده په قبضه کي به عوض په دې توګه پاته سي چي هغه به د مدعىٰ عليه پر مقصد مشتمل نه وي فَيَسْتَرِدُّهُ نو ځکه به مدعىٰ عليه هغه [له مدعي څخه] واپس اخلي وَإِنِ اسْتُحِقَّ بَعْضُ ذٰلِكَ او که [په صلح مع انکار وسکوت کي] بعضي حصه [د بل چا] مستحق وخيږي رَدَّ حِصَّتَهُ وَرَجَعَ بِالْخُصُومَةِ فِيهِ نو مدعي به د هغه حصه [يعني د مستحق شده حصې په اندازه عوض به مدعىٰ عليه ته] واپس کوي او په هغومره حصه کي به [د مستحق کس سره] خصومت کوي لِأَنَّهُ خَلَا الْعِوَضُ فِي هٰذَا الْقَدْرِ عَنِ الْغَرَضِ ځکه چي عوض په همدومره مقدار کي له مقصد څخه خالي دی وَلَوِ اسْتُحِقَّ الْمُصَالَحُ عَلَيْهِ عَنْ إِقْرَارٍ او که په صلح مع اقرار کي مصالح عليه [دبو چا] مستحق وخيږي رَجَعَ بِكُلِّ الْمُصَالَحِ عَنْهُ نو مدعي به ټوله مصالح عنه واپس اخلي لِأَنَّهُ مُبَادَلَةٌ ځکه چي دا مبادله ده وَإِنِ اسْتُحِقَّ بَعْضُهُ او که د مصالح عليه څه حصه [د بل چا] مستحق وخيږي رَجَعَ بِحِصَّتِهِ نو مدعي به د هغه حصې په اندازه واپس اخلي وَإِنْ كَانَ الصُّلْحُ عَنْ إِنْكَارٍ أَوْ سُكُوتٍ او که چيري صلح مع انکار يا صلح مع سکوت وي رَجَعَ إِلَى الدَّعْوٰى فِي كُلِّهِ أَوْ بِقَدْرِ الْمُسْتَحَقِّ إِذَا اسْتُحِقَّ بَعْضُهُ نو [د کُل د استحقاق په صورت کي] به مدعي په کل [ټوله حصه] کي د دعوى وطرف ته رجوع کوي يا که چيري د هغه څه حصه مستحق وخيږي نو د مستحق شُده حصې په اندازه به رجوع کوي لِأَنَّ الْمُبْدَلَ فِيهِ هُوَ الدَّعْوٰى ځکه چي مبدل په دې کي دعوىٰ ده [په بله وينا: ځکه د کوم شي په باره کي چي بدل (عوض) ورکول سوی دی هغه دعوىٰ ده] وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ مِنْهُ عَلَى الْإِنْكَارِ شَيْئًا او دا حکم د هغه صورت په خلاف دی کله چي مدعىٰ عليه د انکار باوجود پر هغه يو شی خرڅ کړي حَيْثُ يَرْجِعُ بِالْمُدَّعٰى ځکه [په دې صورت کي به [هغه مدعی به [دعوه داره شی] واپس اخلي لِأَنَّ الْإِقْدَامَ عَلَى الْبَيْعِ إِقْرَارٌ مِنْهُ بِالْحَقِّ لَهُ ځکه چي پر بيع د مدعىٰ عليه اقدام کول د مدعي د حق اقرار کول دي وَلَا كَذٰلِكَ الصُّلْحُ او صلح داسي نه ده لِأَنَّهُ قَدْ يَقَعُ لِدَفْعِ الْخُصُومَةِ ځکه چي صلح کله د خصومت ليري کولو لپاره هم واقع کيږي وَلَوْ هَلَكَ بَدَلُ الصُّلْحِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ او که [مدعي ته] له ورسپارلو څخه مخکي د صلح بدل [عوض] هلاک سي فَالْجَوَابُ فِيهِ كَالْجَوَابِ فِي الِاسْتِحْقَاقِ فِي الْفَصْلَيْنِ نو د دې حکم هغه دی کوم چي د استحقاق دی [د اقرار او انکار] په دواړو صورتونو کي.

**اللغات:** ﴿مُصالَح عنه﴾ د کوم شي په هکله چې صلح وسي، هغه ته مصالح عنه ووايي، مثال يې د كتاب الصلح په شروع کې تېر سو. ﴿استحقاق﴾ د استفعال د باب مصدر دی، مراد ځني مستحق ختل دي، حق ثابتېدل، مستحق ثابتېدل. ﴿خصومة﴾ جنګ، دعویٰ (دعوه). ﴿يسترده﴾ د استفعال مضارع ده: واپس اخیستل. ﴿إقدام﴾ د افعال د باب مصدر دی: وړاندېتوب کول، په يو کار لاس پوري کول. ﴿تسليم﴾ د تفعيل مصدر دی: ورسپارل.

**تشريح:** په دې عبارت کې څو مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که چیري صلح مع الاقرار وي، مثلاً مدعي دعویٰ وکړي چې دا کور زما دی، او مدعیٰ علیه د هغه د دعوې اقرار وکړي او د کور په هکله پر مال صلح ور سره وکړي، بیا یو بل څوک د مصالح عنه یعني د کور په یوه حصه کې خپل استحقاق ثابت کړي (یعني په حجت او بیّنه سره دا ثابته کړي چې په دې کور کې دومره حصه زما ده)، نو مدعیٰ علیه به د هغې حصې په اندازه عوض له مدعي څخه واپس اخلي (مثلا که مدعیٰ علیه په صلح کې مدعي ته سل درهمه مال ورکړی وي بیا بل څوک د نیم کور مستحق وخیږي یعني په نیم کور کې خپل استحقاق ثابت کړي، نو مدعیٰ علیه به له مدعي څخه پنځوس درهمه واپس اخلي)؛ ځکه چې صلح مع الاقرار په حقیقت کې د بیع په څېر مطلق معاوضه ده، او په معاضه کې همدا حکم دی چې د مستحق ختلو (استحقاق ثابتېدلو) په صورت کې رجوع د مستحق شُده حصې په اندازه وي.

وإن وقع الصلح عن سكوت إلخ: (۲)... او که چیري صلح معَ السکوت یا صلح مع الانکار وي، بیا مدعیٰ بِهٖ (دعویٰ داره شی) د بل چا مستحق وخیږي، مثلاً د خالد په قبضه کې یو کور وي او زید په هغه دعویٰ وکړي چې دا کور زما دی، او خالد له دې څخه انکار وکړي یا چپ پاته سي، بیا د زید سره پر سل درهمو صلح وکړي، تر دې وروسته هغه کور د بل چا مثلاً د حامد مستحق وخیږي، نو په دې صورت کې حکم دا دی چې زید له خالد څخه کوم سل درهمه اخیستي وه هغه به خالد ته واپس کوي او د مستحق کس (حامد) سره به خصومت او دعویٰ کوي، ځکه خالد په دې وجه زید ته سل درهمه ورکړي وه چې جنګ او خصومت ختم سي او د هغه سره مدعیٰ بِهٖ (کور) بلا خصومته پاته سي، لیکن کله چې هغه د بل چا مستحق وختی، نو د خالد (مدعیٰ علیه) مقصد حاصل نه سو، همدارنګه دا هم ښکاره سوه چې د خالد سره د زید خصومت او دعویٰ بې ځایه وه، نو ځکه به خالد له زید څخه هغه سل درهمه واپس اخلي او تر دې وروسته به زید د مستحق کس (حامد) سره په خصومت او دعویٰ شروع کوي، ځکه چې اوس هغه د مدعیٰ علیه (خالد) قائم مقام دی.

(۳)... او که د صلح مع الانکار یا مع السکوت په صورت کې د مدعیٰ بهٖ (کور) بعضې حصه مستحق وخیږي، نو مدعي به د مستحق شُده حصې په اندازه عوض (بدل صلح) مدعیٰ علیه ته واپس کوي، ځکه چې په هغومره مقدار کې د مدعیٰ علیه مقصد حاصِل نه سو، او تر دې وروسته به مدعي په هغومره حصه او مقداره کې د مستحق کس سره خصومت او دعویٰ کوي.

ولو استحق المصالح علیه إلخ: (۴)... او که مصالح علیه یعني "بدل صلح" دیو چا مستحق وخیږي، مثلاً مدعي په یو موټر دعویٰ وکړي چې دا موټر زما دی، او مدعیٰ علیه د هغه موټر په هکله د مدعي سره پر یو دوکان صلح وکړي او په مدعي دعویٰ پرېږدي (خوله یې وربنده کړي)، بیا هغه دوکان (بدل صلح) د بل چا مستحق وخیږي (یعني بل څوک دعویٰ وکړي چې دا دوکان زما دی او خپل استحقاق ثابت کړي)، نو مدعي به د خپل دعوې وطرف ته رجوع کوي، یعني بیا به دعویٰ شروع کوي، که چیرې ټوله بدل صلح (ټوله دوکان) مستحق وخیږي نو مدعي به د ټوله مصالح عنه (ټوله موټر) دعویٰ کوي و که د بدل صلح بعضې حصه مستحق وخیږي نو مدعي به د هغه (موټر) د بعضې حصې دعویٰ کوي؛ ځکه مدعي خپل دعوی په دې وجه پرې ایښې وه چې د هغه په قبضه کې بدل (کوم چې دلته دوکان دی) صحیح سالم راسي یا پله وینا دا چې هغه ته د دعوې پرېښوولو په بدله کې صحیح سالم بدل ورکول سوی دی (ځکه هغه ته مدعیٰ علیه ویلي دي چې په دې بدل [دوکان] کې د هیچا حق نسته)، لهذا کله چې بدل (دوکان) د بل چا مستحق وخیږي، نو ځکه اوس به مدعي د مبدل یعني د دعوې وطرف ته رجوع کوي.

وهذا بخلاف إلخ: دا پورتنی حکم په هغه صورت کې دی کله چې په صلح کې د بیع (خرڅولو) لفظ ذکر نه سي، لېکن په هغه کې د بیع یادونه وسي، مثلاً مدعي پر مدعي علیه د موټر دعویٰ وکړي لېکن مدعیٰ علیه د هغه انکار وکړي او بیا مدعیٰ علیه د بیع په لفظ د مدعي سره پر یو پُسه صلح وکړي، په دې توګه چې مدعیٰ علیه ووایي "بِعْتُ مِنْكَ هٰذَا الشَّاةَ بِهٰذِهِ السَّيَّارَة" (ما دې موټر په عوض کې پر تا دا پُسه خرڅ کړی)، اوس که هغه پُسه د بل چا مستحق وخیږي، نو په دې صورت کې به مدعي له مدعیٰ علیه څخه هغه دعوه داره موټر واپس اخلي، او د دعوې وطرف ته د رجوع کولو ضرورت نسته؛ ځکه چې پر بیع اقدام کول یعني د موټر په عوض کې پُسه ورکول او د بیع لفظ استعمالول د مدعیٰ علیه له طرفه د مدعي د حق اقرار دی (یعني هغه د مدعي د حق اقرار کوي) چې د مدعي دعویٰ صحیح ده او هغه د موټر حقداره دی، حال دا چې د صلح په صورت کې د مدعي حقداره کېدل ضروري نه دي، او په صلح

کولو سره دا نه لازمیږي چې مدعیٰ علیه د مدعي د حق اقرار کوي؛ ځکه صلح ځیني وخت صرف د خصومت او دعوې ختمولو لپاره هم کیږي.

ولوهلك إلخ: فرمايي که چيري بدل صلح (مثلا دوکان یا پیسه) ضایع سي مخکي تر دې چې مدعیٰ علیه هغه مدعي ته وسپاري، نو ضایع کېدل (هلاکېدل) د مستحق ختلو په درجه کي دي، یعني د صلح مع الاقرار او مع السکوت په صورتونو کي چې کوم حکم د استحقاق دی، په دې صورتونو کي هغه حکم د بدل صلح د ضایع کېدلو هم دی.

## د مبهمي دعوې په هکله صلح کول

قَالَ: وَإِنِ ادَّعَى حَقًّا فِي دَارٍ فرمايي: او که مدعي په یو کور کي د حق دعویٰ وکړي وَلَمْ يُبَيِّنْهُ لیکن د هغه تفصیل بیان نه کړي فَصُولِحَ مِنْ ذَلِكَ ثُمَّ اسْتُحِقَّ بَعْضُ الدَّارِ بیا له هغه څخه صلح وسي تر دې وروسته د کور بعضي حصه [د بل چا] مستحق وخیږي لَمْ يَرُدَّ شَيْئًا مِنَ الْعِوَضِ نو مدعي به [د صلح] له عوض څخه هیڅ شی نه واپس کوي لِأَنَّ دَعْوَاهُ يَجُوزُ أَنْ يَكُونَ فِيمَا بَقِيَ ځکه کېدای سي چي د هغه دعویٰ په ما بقي کور کي وي بِخِلَافِ مَا إِذَا اسْتُحِقَّ كُلُّهُ په خلاف د هغه صورت کله چي ټوله کور مستحق وخيږي لِأَنَّهُ يَعْرَى الْعِوَضُ عِنْدَ ذَلِكَ عَنْ شَيْءٍ يُقَابِلُهُ ځکه په دې صورت کي عوض له داسي شي څخه خالي دی کوم چي د هغه په مقابله کي وګرځي فَيَرْجِعُ بِكُلِّهِ نو ځکه مدعیٰ علیه به خپل ټوله عوض واپس اخلي عَلَى مَا قَدَّمْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ لکه مخکي چي موږ په "بيوع" کي ذکر کړه وَلَوِ ادَّعَى دَارًا او که څوک په یو کور دعویٰ وکړي فَصَالَحَ عَلَى قِطْعَةٍ مِنْهَا بیا مدعیٰ علیه د کور پریوه ټوټه [د مدعي سره] صلح وکړي لَمْ يَصِحَّ الصُّلْحُ نو دا صلح نه صحیح کیږي لِأَنَّ مَا قَبَضَهُ مِنْ عَيْنِ حَقِّهِ ځکه مدعي چي پر کومه حصه قبضه کړې ده هغه د مدعي له عین حق څخه ده وَهُوَ عَلَى دَعْوَاهُ فِي الْبَاقِي او هغه په ما بقي کور کي پر خپل دعویٰ قائم پاته دی وَالْوَجْهُ فِيهِ أَحَدُ الْأَمْرَيْنِ او د دې صلح په جائز کېدلو له دې دوو کارونو څخه یو کار وجهه جوړېدای سي [په بله وینا، او په دې دوو طریقو کي په یوه طریقه سره د دغه صلح جواز ته حیله جوړېدای سي] إِمَّا أَنْ يَزِيدَ دِرْهَمًا فِي بَدَلِ الصُّلْحِ [۱] یا مدعیٰ علیه دي د صلح په بدل [عوض] کي یو درهم اضافه کړي فَيَصِيرُ ذَلِكَ عِوَضًا عَنْ حَقِّهِ فِيمَا بَقِيَ نو

دا به په ما بقي کور کي د هغه د حق عوض وګرځي أَوْ يُلْحِقَ بِهِ ذِكْرَ الْبَرَاءَةِ عَنْ دَعْوَى الْبَاقِيْ [۲] يا دي د دغه صلح سره له ما بقي کور څخه د برائت ذکر لاحق کړي [په بله وينا: يا دي د "بدل صلح" تر ورکولو وروسته له ما بقي څخه برائت ښکاره کړي].

**اللغات**: ﴿لم يبيّنه﴾ د تفعيل د باب جحد صيغه ده: بيانول، وضاحت کول. ﴿يعرى﴾ د فتح د باب مضارع ده: خالي کېدل. ﴿يلحق﴾ د افعال د باب مضارع ده: لاحق کول، متصل کول (ور سره يو ځای کول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د خالد په قبضه کي يو کور وي او زيد دعوىٰ وکړي چي په دې کور کي زما حصه هم سته، لېکن هغه د خپلې حصې تفصيل بيان نه کړي چي کومه حصه ده او څومره ده؟، بيا مدعىٰ عليه د هغه کور پر يوه حصه د مدعي سره صلح وکړي او مدعي هغه واخلي، نو اوس که د هغه کور بعضې حصه د بل چا مستحق وخيږي، نو مدعي به له عوض (اخيستل سوي حصې) څخه لږ غوندي هم مدعىٰ عليه ته نه واپس کوي؛ ځکه چي د مدعي دعوىٰ په غير مُتعيّنه (نامعلومه) حصه کي ده، نو ځکه کېدای سي چي د کور په نا مستحق شُده (غيرِ مستحَق) حصه کي د هغه دعوىٰ وي او هغه د عوض په اخيستلو کي پر حق وي، نو ځکه په دې صورت کي به هغه له عوض څخه هيڅ شی نه واپس کوي، ها! که چيري ټول کور مستحق وخيږي، نو بيا به مدعي ټول عوض (اخيستل سوې حصه) واپس کوي، کنې عوض به له معوض او مبدل څخه خالي سي، او له معوض څخه د عوض خالي کېدل صحيح نه دي.

او که مدعي ووايي چي دا کور زما دی او مدعىٰ عليه د هغه کور يوه ټوټه مدعي ته ورکړي او صلح ور سره وکړي، نو دا صلح نه صحيح کيږي، ځکه چي په دې صورت کي مدعي د ټوله کور دعوىٰ کړې ده، او پر کومه حصه (ټوټه) چي هغه قبضه کړې ده يعني کومه ټوټه چي مدعىٰ عليه هغه ته ورکړې ده، هغه هم د مدعي حق او حصه ده. لهٰذا په ما بقي کور کي به د هغه دعوىٰ باقي پاته وي، او کله چي دعوىٰ باقي ده نو صلح به څنګه صحيح سي.

**والوجه فيه إلخ**: فرمايي مذکوره صلح (يعني د قطعه دار صُلح) په لاندينی دوو طريقو کي په يوه طريقه سره صحيح کېدای سي: ① يو دا چي مدعىٰ عليه دي په بدل صلح کي يو درهم اضافه کړي او داسي دي ووايي چي "دا درهم د مابقي کور عوض دی". ② يا دي د بدل صلح تر ورکولو وروسته له ما بقي کور څخه د برائت اظهار وکړي او دا دي ووايي چي "اوس په دې کي ستا حق نسته" (يا داسي نور)، نو په دې صورت کي مذکوره صلح صحيح ګرځي. (احسن الهدايه)



# فَصْلٌ

دا فصل د هغه شیانو په بیان کی دی چې د هغوی په هکله صلح کول جائز دي او هغه چې د هغوی په هکله صلح کول ناجائز دي

## د کومو شیانو په هکله صلح کول جائز دي؟ (د مال د دعوې په هکله صلح کول)

| |
|---|
| وَالصُّلْحُ جَائِزٌ عَنْ دَعْوَى الْأَمْوَالِ او د مالونو د دعوې په هکله صلح کول جائز دي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْبَيْعِ ځکه چې دا صلح د بیع په معنیٰ سره ده عَلَى مَا مَرَّ لکه مخکې چې تېر سوه وَالْمَنَافِعِ او د منافعو د دعوې په هکله [صلح کول هم جائز دي] لِأَنَّهَا تُمْلَكُ بِعَقْدِ الْإِجَارَةِ ځکه چې منافع په عقد اجاره سره مملوک کیږي فَكَذَا بِالصُّلْحِ نو همداسې به په صلح سره هم [هغوی مملوک کیږي] وَالْأَصْلُ أَنَّ الصُّلْحَ يَجِبُ حَمْلُهُ عَلَى أَقْرَبِ الْعُقُودِ إِلَيْهِ وَأَشْبَهِهَا بِهِ او اصل دا دی چې صلح پر هغه عقد حمل کول ضروري دي کوم چې صلح ته زیات نژدې وي او کوم چې د صلح سره زیات مشابه وي احْتِيَالًا لِتَصْحِيحِ تَصَرُّفِ الْعَاقِدِ مَا أَمْكَنَ د دې لپاره چې حتی الامکان د عاقد د تصرف صحیح کولو ته حیله جوړه سي. |

**اللغات:** ﴿احتیال﴾ د افتعال د باب مصدر دی:- حیله کول، حیله جوړول، چل او تدبیر کول. ﴿تصحیح﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: صحیح کول، صحیح ګرځول. ﴿أمکن﴾ د افعال د باب ماضي ده: ممکن کېدل، ما أمکن: تر څو چې ممکنه وي، حتی الامکان.

**تشریح: مسئله:** دا ده که مدعي د مال دعویٰ وکړي نو د هغه په هکله صلح کول جائز دي، مثلاً که ادریس دعویٰ وکړي چې پر نعمان زما سل درهمه باندي دي او بیا ادریس د هغه سل درهمو په هکله د نعمان سره مثلاً پر شل درهمو صلح وکړي چې دا شل درهمه وخله او بیا ړغ مه لره!. نو دا صلح جائز ده: ځکه چې د مال د دعوې په هکله صلح کول د بیع په معنیٰ سره دي. او پر مال بیع کول جائز دي نو ځکه صلح کول به هم جائز وي. همدارنګه که مدعي د منافعو دعویٰ وکړي نو د هغه په هکله هم صلح کول جائز دي. مثلاً که نعمان دعویٰ وکړي چې فلانکي سړي زما لپاره په دې کور کې تر یوه

کال پوري د اوسېدلو وصيت کړی دی (يعني فلانکي مړي وېلي دي چي ته زما په دې کور کي يو کال و اوسېږه!)، او د مړي وارثان د نعمان سره پر څه مال صلح وکړي، نو دا صلح جائز ده؛ ځکه چي د عقد اجاره په ذريعه د منافعو (اوسېدلو او داسي نورو) عوض اخيستل جائز دي، نو ځکه د عقد صلح په ذريعه به هم د منافعو عوض اخيستل جائز وي.

الأصل أن الصلح إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د منافعو، قرضونو او داسي نورو د دعوې په هکله د صلح کولو اصل قاعده دا ده چي (کله يو اشکال وي نو) صلح پر داسي عقد حمل کول پکار دي کوم چي صلح ته زيات نژدې وي او د هغه سره زيات مشابه وي، د دې لپاره چي تر څو ممکنه وي په يو حيله سره د عاقد (صلح کونکي) فعل صحيح وګرځول سي، لهذا که ممکنه وي، نو صلح به د بيع په معنیٰ سره اخيستل کيږي، کنې د اجارې په معنیٰ سره يا د عفو او برائت په معنیٰ سره به اخيستل کيږي. (اشرف الهدايه)

(لکه څرنګه چي په "باب الصلح في الدين" کي همدا قاعده جاري سوي ده، چي هغه به څه وروسته راسي)

## د قصاص او ديت په هکله صلح کول

قَالَ: وَيَصِحُّ عَنْ جِنَايَةِ الْعَمْدِ وَالْخَطَأِ فرمايي: د قتلِ عمد او قتلِ خطاء د جرم په هکله صلح کول [هم] صحيح دي أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ﴾ کوم چي اول [يعني قتلِ عمد] دی نو د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه [د هغه په هکله صلح کول صحيح دي]: "او څوک چي معاف کړی سي د خپل ورور [مقتول] له طرفه څه هم نو..." قَالَ: ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: إِنَّهَا نَزَلَتْ فِي الصُّلْحِ ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي: چي دا آيت د صلح په باره کي نازل سوی دی وَهُوَ بِمَنْزِلَةِ النِّكَاحِ او دا صلح د نکاح په درجه کي ده حَتَّى أَنَّ مَا صَلُحَ مُسَمًّى فِيهِ صَلُحَ بَدَلًا هٰهُنَا تر دې چي کوم شی په نکاح کي د مهر جوړېدلو صلاحيت لري هغه دلته د بدل [عوض] جوړېدلو صلاحيت لري إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِغَيْرِ الْمَالِ ځکه چي دا صلح او نکاح دواړه مبادلة المال بغير المال دي إِلَّا أَنَّ عِنْدَ فَسَادِ التَّسْمِيَةِ هٰهُنَا يُصَارُ إِلَى الدِّيَةِ لېکن دلته [په صلح کي] د تسميه [مهر ټاکلو] د فاسدېدلو په صورت کي د ديت وطرف ته رجوع کيږي لِأَنَّهَا مُوجَبُ الدَّمِ ځکه چي همدا ديت د قتل موجب دی وَلَوْ صَالَحَ عَلَى خَمْرٍ او که چيري پر شراب صلح وکړي لَا يَجِبُ شَيْءٌ نو

هيڅ شی نه واجبيږي لِأَنَّهُ لَا يَجِبُ بِمُطْلَقِ الْعَفْوِ ځکه چي په مطلق عفو کي هيڅ شی نه واجبيږي وَفِي النِّكَاحِ يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ فِي الْفَصْلَيْنِ او په نکاح کي په دواړو صورتونو کي مهرِ مثل واجبيږي لِأَنَّهُ الْمُوجَبُ الْأَصْلِيُّ ځکه چي همدا مهرِ مثل مُوجب اصلي دی وَيَجِبُ مَعَ السُّكُوتِ عَنْهُ حُكْمًا او د مهر په باره کي د چپېدلو [يعني د مهر نه ذکر کولو] په وخت کي هم حکماً مهرِ مثل واجبيږي وَيَدْخُلُ فِي إِطْلَاقِ جَوَابِ الْكِتَابِ الْجِنَايَةَ فِي النَّفْسِ وَمَا دُونَهَا او د قدوري [متن] په مطلق حکم کي جنايت فی النفس [قتل] او جنايت ما دون النفس [قطع اليد] دواړه داخل دي وَهٰذَا بِخِلَافِ الصُّلْحِ عَنْ حَقِّ الشُّفْعَةِ عَلَىٰ مَالٍ او دا د هغه صلح په خلاف دي کوم چي د حق شفعه په هکله پر مال وسي حَيْثُ لَا يَصِحُّ ځکه هغه [يعني پر مال د حقِ شفعه په هکله صلح کول] صحيح نه دي لِأَنَّهُ حَقُّ التَّمَلُّكِ ځکه چي حق شفعه د تملک حق دی [يعني د شفعي حق په مبيع (عقار) کي د ملکيت حاصلولو حق دی] وَلَا حَقَّ فِي الْمَحَلِّ قَبْلَ التَّمَلُّكِ او له ملکيت حاصلېدلو څخه مخکي په محل کي هيڅ حق نسته وَأَمَّا الْقِصَاصُ فَمِلْكُ الْمَحَلِّ فِي حَقِّ الْفِعْلِ او پاته سو قصاص نو هغه د فعل [قصاص] په حق کي د ملکيت محل دی فَيَصِحُّ الِاعْتِيَاضُ عَنْهُ نو ځکه د هغه په هکله عوض اخيستل صحيح دي وَإِذَا لَمْ يَصِحَّ الصُّلْحُ او کله چي [د حق شفعه په هکله] صلح صحيح نه ده تَبْطُلُ الشُّفْعَةُ نو شفعه به باطليږي لِأَنَّهَا تَبْطُلُ بِالْإِعْرَاضِ وَالسُّكُوتِ ځکه چي شفعه په اعراض او سکوت کولو سره باطليږي وَالْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ بِمَنْزِلَةِ حَقِّ الشُّفْعَةِ او کفاله بالنفس [د يو چا د نفس حاضرولو کفيل کېدل] د حق شفعه په درجه کي دي حَتَّىٰ لَا يَجِبَ الْمَالُ بِالصُّلْحِ عَنْهُ تر دې چي د کفاله بالنفس په هکله په صلح کولو سره مال نه واجبيږي غَيْرَ أَنَّ فِي بُطْلَانِ الْكَفَالَةِ رِوَايَتَيْنِ خو د کفالې د باطلېدلو په باره کي دوه روايتونه دي عَلَىٰ مَا عُرِفَ فِي مَوْضِعِهِ لکه څرنګه چي په خپل ځای [يعني په مبسوط] کي معلوم سوي دي وَأَمَّا الثَّانِي وَهُوَ جِنَايَةُ الْخَطَإِ فَلِأَنَّ مُوجَبَهَا الْمَالُ او پاته سو دويم يعني جنايت خطاء [قتلِ خطاء] نو [د هغه په هکله صلح کول په دې وجه صحيح دي] ځکه چي د جنايت خطاء مُوجب مال دی فَيَصِيرُ بِمَنْزِلَةِ الْبَيْعِ نو ځکه [د هغه په هکله صلح کول] به د بيع په درجه کي وي إِلَّا أَنَّهُ لَا تَصِحُّ الزِّيَادَةُ عَلَىٰ قَدْرِ الدِّيَةِ ليکن د

دیت پر مقدار زیاتوب [اضافه] کول صحیح نه دي لِأَنَّهُ مُقَدَّرٌ شَرْعًا ځکه چي دیت شرعاً مُتعیّن [تاکل سوی] دی فَلَا يَجُوزُ إِبْطَالُهُ لهذا د هغه باطلول صحیح نه دي فَيُرَدُّ الزِّيَادَةُ نو ځکه زیاتوب به واپس کیږي بِخِلَافِ الصُّلْحِ عَنِ الْقِصَاصِ په خلاف د قصاص په هکله د صلح کولو حَيْثُ تَجُوزُ الزِّيَادَةُ عَلَى قَدْرِ الدِّيَةِ ځکه [په هغه کي] د دیت پر مقدار زیاتوب کول جائز دي لِأَنَّ الْقِصَاصَ لَيْسَ بِمَالٍ ځکه چي قصاص [متقوّم] مال نه دی وَإِنَّمَا يَتَقَوَّمُ بِالْعَقْدِ او هغه صرف په عقد سره متقوّم [قیمتداره] کیږي وَهٰذَا إِذَا صَالَحَ عَلَى أَحَدِ مَقَادِيرِ الدِّيَةِ او دا [حکم] په هغه صورت کي دی کله چي د دیت له مقدارونو څخه پر یو مقدار صلح وکړي أَمَّا إِذَا صَالَحَ عَلَى غَيْرِ ذٰلِكَ او که له هغه څخه بغیر پر بل شي صلح وکړي جَازَ نو [هم] جائز دي لِأَنَّهُ مُبَادَلَةٌ بِهَا ځکه چي دا په دیت سره مبادله ده [په بله وینا: ځکه چي دا دیت بدل دی] إِلَّا أَنَّهُ يُشْتَرَطُ الْقَبْضُ فِي الْمَجْلِسِ كَيْلَا يَكُونَ افْتِرَاقًا عَنْ دَيْنٍ بِدَيْنٍ لیکن په مجلس کي دننه [د صلح پر بدلې] قبضه کول شرط دي د دې لپاره چي جدايي له قرض څخه د قرض په عوض کي نه وي وَلَوْ قَضَى الْقَاضِي بِأَحَدِ مَقَادِيرِهَا او که چیري قاضي د دیت د یو مقدار فیصله وکړي فَصَالَحَ عَلَى جِنْسٍ آخَرَ مِنْهَا بِالزِّيَادَةِ او قاتل له هغه مقدار څخه بغیر پر بل جنس د زیاتوب سره صلح وکړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ تَعَيَّنَ الْحَقُّ بِالْقَضَاءِ ځکه چي د قاضي په فیصله سره حق مُتعیّن سو فَكَانَ مُبَادَلَةً نو دا به مبادله [تبادله] وي بِخِلَافِ الصُّلْحِ ابْتِدَاءً په خلاف [پر بل جنس په زیاتوب سره] د ابتداءً صلح کولو لِأَنَّ تَرَاضِيَهُمَا عَلَى بَعْضِ الْمَقَادِيرِ بِمَنْزِلَةِ الْقَضَاءِ فِي حَقِّ التَّعْيِينِ ځکه چي پر یوه مقدار د دواړو صلح کونکو راضي کېدل د مُتعیّن کولو په هکله د قاضي د فیصلې په درجه کي دي فَلَا تَجُوزُ الزِّيَادَةُ عَلَى مَا تَعَيَّنَ لهذا کوم څه چي [په شرع] سره مُتعیّن وي پر هغه به زیاتوب کول جائز نه وي [په بله وینا: نو ځکه د شریعت پر مُتعیّن سوي مقدار به اضافه کول جائز نه وي].

**اللغات**: ﴿جناية﴾ جرم، ګناه، مراد څني قتل دی. ﴿عمد﴾ قصداً. ﴿مسمى﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: نومول سوی، مقرر شده، تاکل سوی مهر. ﴿موجب﴾ د افعال د باب مفعول دی: واجب کړی سوی. ﴿اعتياض﴾ د افتعال د باب مصدر دی: عوض اخیستل. ﴿إعراض﴾ د افعال د باب مصدر

دی: مخ اړول (روګرداني کول)، توجه نه کول. ﴿مُقَدّر﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: مُتعيَّن، ټاکل سوی، اندازه کړی سوی.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که یو څوک عمداً یا خطاءً قتل وکړي، نو پر هغه قصاص لازم دی، لیکن که دا قاتل د مقتول په ولیانو (وارثانو) کي یوه ولي ته څه مال ورکړي چي "ته د خپلي حصې قصاص را معاف کړه" (ماوبخښه!)، نو د یوه ولي په معافولو (بخښلو) سره د باقي ولیانو په حق کي هم قصاص ساقطیږي، یعني اوس هغوی له قاتل څخه قصاص نه سي اخیستلای بلکي هغوی به هم مال (دیت) اخلي؛ دلیل د قرآن کریم دا آیت دی ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ﴾ [سورة البقرة: ۱۷۸]، که چا ته د خپل ورور (مقتول) له طرفه عفوه وکړی سي څه هم، یعني که د مقتول له وارثانو څخه صرف یو وارث قاتل معاف کړی، نو باقي وارثانو ته پکار دي چي په معروفه او ښه طریقه سره د قاتل مؤاخذه وکړي (یعني له هغه څخه دي مال [دیت] واخلي) او قاتل ته پکار دي چي په احسان سره کما حقهٗ مال (دیت) اداء کړي. رئیس المفسرین سیدنا حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمایلي دي چي دا آیت د صلح عن القصاص په باره کي وارد سوی دی او په همدې آیت سره د قتلِ عمد په هکله د صُلح کولو جواز ثابت سوی دی. او دا صلح د نکاح په درجه کي ده؛ ځکه څرنګه چي نکاح مبادلةُ المال بغیر المال ده، همداسي دا هم مبادلةُ المال بغیر المال ده، او کوم شی چي په نکاح کي مهر جوړېدای سي، هغه په صلح کي بدل (بدلِ صلح) جوړېدای سي لیکن فرق دا دی چي که په ټاکل سوي بدل (بدلِ صلح) کي فساد راسي، نو دیت واجبیږي، ځکه چي په دې باره کي دیت اصل دی. او که چیري پر خنزیر یا شرابو صلح وسي، نو هیڅ شی نه واجبیږي؛ ځکه چي خنزیر او شراب د مسلمان په حق کي متقوّم (قیمت لرونکی) مال نه دي، لهذا په صلح کي د هغوی ټاکل (ذکر کول) او نه ټاکل سره برابر دي، او تاسو ته معلومه ده چي که بدل صلح نه وټاکل سي نو پر صلح کونکي هیڅ شی نه واجبیږي، لهذا که خنزیر او شراب بدل صلح وټاکل سي، نو په دې صورت کي به هم پر صلح کونکي (قاتل) هیڅ شی نه واجبیږي. لیکن که په نکاح کي په ټاکل سوي مهر کي فساد راسي مثلاً خنزیر او شراب په مهر کي وټاکل سي، نو په دواړو صورتونو کي مهرِ مثل واجبیږي؛ ځکه چي په نکاح کي مهرِ مثل اصل دی.

وهذا بخلاف إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مدعیٰ علیه د شفعي مستحق کس ته څه مال ورکړي او د هغه سره پر دې مال صلح وکړي چي ته د شفعي د حق دعویٰ مه کوه!، نو دا صلح صحیح نه ده؛ ځکه چي صلح د هغه چا سره کیږي کوم چي د مصالح علیه یا مصالح عنه مالک وي، حال دا چي شفیع

هغه وخت د کور مالک کیږي کله چې په شفعه کې کور واخلي، تر هغه مخکې صرف د مالک کېدلو حقدار وي، او د صلح لپاره مالک کېدل ضروري دي، صرف په مستحق کېدلو سره کار نه کیږي، او پاتې سو قصاص نو په هغه کې د مقتول ولیانو لره د قاتل پر نفس (ذات) ملکیت حاصل وي، نو ځکه په قصاص کې صلح صحیح ده لېکن په شفعه کې صحیح نه ده.

او د شفعې په څېر په کفاله بالنفس کې هم صلح صحیح نه ده، یعني که یو سړی د دې کفیل (ضامن) جوړ سي چې زه فلاکی کس (مدعیٰ علیه) د قاضي مجلس ته حاضروم (د هغه حاضرول پر ما دي)، بیا هغه کس (مدعیٰ علیه) د کفیل سره پر څه مال صلح وکړي چې "ته ما د قاضي مجلس ته مه حاضروه!" او کفیل د مال په لالچ کې د حاضرولو له ضمانت (ذمه واری) څخه برائت ښکاره کړي، نو دا صلح هم نه صحیح کیږي، او د کفالې د بطلان په هکله دوه روایتونه نقل سوي دي: ① د ابو حفص رَحِمَهُ الله روایت دا دی چې کفاله باطلیږي، همدا مفتیٰ بِهٖ قول دی، ② د ابو سلیمان رَحِمَهُ الله روایت دا دی چې کفاله نه باطلیږي. (نهایه، بنایه)

وأما الثاني إلخ: فرمایي د قتلِ خطاء په هکله پر مال او داسې نورو صلح کول ځکه صحیح دي چې په قتلِ خطاء کې پر قاتل صرف مال (دیت) واجبیږي او کله چې په قتلِ خطاء کې صلح وسي نو هغه د بیع په حکم سره ګرځي. لېکن د قتلِ خطاء په هکله په صلح کولو کې دا ضروري ده چې بدل صلح به له دیت څخه کم یا د هغه سره برابر وي، او د دیت پر مقدار زیاتوب کول جائز نه دي؛ ځکه شریعت د قتلِ خطاء په دیت (ضمان) کې درې مقدارونه ټاکلي دي: ① زر دیناره ② یا لس زره درهمه ③ یا سل اوښان، لهذا بدل صلح له دې مقدار څخه زیاتول صحیح نه دي. مګر د قصاص په هکله په صلح کولو کې بدل صلح له دیت څخه زیاتول صحیح دي؛ ځکه چې قصاص مال نه وي او هغه صرف د عقد (صلح) په وجه مال ګرځي، لهذا په قصاص کې که فریقین په خپله رضا سره کوم مقدار هم وټاکي، هغه به صحیح وي، که څه هم هغه له دیت څخه زیات (اضافه) وي.

وهذا إذا صالح إلخ: د دې حاصل دا دی چې له دیت څخه پر زائد مقدار د صلح نه جائز کېدل په هغه صورت کې دي کله چې قاتل د دیت له مقدارونو (① زر دیناره، ② لس زره دیناره، ③ سل اوښان) څخه پر یوه مقدار صلح کړې وي، لېکن که هغه له دې څخه بغیر پر بل شي مثلاً پر کَیلي یا وزني شي صلح کړې وي، نو پر زائد (زیات) مقدار صلح کول هم جائز دي؛ ځکه چې له مذکوره شرعي مقدارونو څخه بغیر پر بل شي او پر بل مقدار صلح کول په دیت سره تبادله ده او د شریعت په ټاکل سوي مقدار کې زیاتوب کول نه دي، نو ځکه به صحیح وي، لېکن په دې صورت کې د عقد په مجلس کې پر بدل صلح د مقتول د وارثانو قبضه کول شرط دي، د دې لپاره چې له قرض څخه د قرض په عوض کې

جدايي را نه سي، ځکه چي ديت پر قاتل قرض (دَين) وي لهذا که د هغه پر بدل (متبادل) قبضه نه وسي نو هغه به هم قرض وګرځي، حالانکي دا صحيح نه دي.

**ولوقضى القاضي إلخ:** مسئله دا ده که قاضي پر قاتل د ديت د يوه مقدار مثلاً د زرو دينارو فيصله وکړي، بيا قاتل پر بل مقدار په زياتوب سره مثلاً پر پنځلس زرو درهمو صلح وکړي، نو دا صلح جائز ده؛ ځکه د قاضي د فيصلې په وجه دلته د مقتول د وارثانو حق په زرو دينارو کي مُتعيّن سو، او تر دې وروسته په پنځلس زرو درهمو سره صلح کول په زرو دينارو سره تبادله ده او دا تبادله صحيح ده، ها! که چيري د قاضي له فيصلې څخه بغير قاتل او د مقتول وارثان له شروع څخه پر پنځلس زرو درهمو صلح وکړي، نو دا صلح صحيح نه ده؛ ځکه چي په دې سره د شريعت په ټاکل سوي مقدار کي تغيّر او اضافه راځي، نو ځکه صحيح نه ده. همدا وجه که قاضي پر يو قاتل پنځلس زره درهمه ديت مقرر کړي، نو دا هم صحيح نه دي. لهذا کله چي قاضي ته دا اختيار نسته چي د شريعت په ټاکل سوي مقدار کي اضافه وکړي، نو موږ او تاسو ته به څه اختيار وي!. (احسن الهدايه)

## د حدّ او داسي نورو شيانو په هکله صلح کول

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ الصُّلْحُ مِنْ دَعْوَى حَدٍّ فرمايي: او د حد د دعوې په هکله صلح کول جائز نه دي لِأَنَّهُ حَقُّ اللهِ تَعَالَى لَا حَقُّهُ ځکه چي حد د الله تعالیٰ حق دی، د بنده حق نه دی وَلَا يَجُوزُ الِاعْتِيَاضُ عَنْ حَقِّ غَيْرِهِ او د بل چا د حق عوض اخيستل جائز نه دي وَلِهَذَا لَا يَجُوزُ الِاعْتِيَاضُ إِذَا ادَّعَتْ الْمَرْأَةُ نَسَبَ وَلَدِهَا او په همدې وجه کله چي ښځه د خپل بچي د نسب دعویٰ وکړي نو د هغه عوض اخيستل جائز نه دي لِأَنَّهُ حَقُّ الْوَلَدِ لَا حَقُّهَا ځکه چي نسب د بچي حق دی، د ښځي حق نه دی وَكَذَا لَا يَجُوزُ الصُّلْحُ عَمَّا أَشْرَعَهُ إِلَى طَرِيقِ الْعَامَّةِ او همدارنګه د هغه شي په هکله هم صلح کول جائز نه دي کوم چي په عامه لار کي يې جوړ کړی وي لِأَنَّهُ حَقُّ الْعَامَّةِ ځکه چي هغه د عامو خلکو [عوامو] حق دی فَلَا يَجُوزُ أَنْ يُصَالِحَ وَاحِدٌ عَلَى الِانْفِرَادِ عَنْهُ لهذا دا جائز نه دي چي تنها يو کس د هغه په هکله صلح وکړي وَيَدْخُلُ فِي إِطْلَاقِ الْجَوَابِ حَدُّ الْقَذْفِ او د قدوري [متن] په مطلق حکم کي حدّ قذف هم داخل دی لِأَنَّ الْمُغَلَّبَ فِيهِ حَقُّ الشَّرْعِ ځکه چي په هغه کي د شريعت حق غالب دی قَالَ: وَإِذَا ادَّعَى رَجُلٌ عَلَى امْرَأَةٍ نِكَاحًا وَهِيَ تَجْحَدُ فرمايي: او کله چي يو سړی پر يوې ښځي د نکاح دعویٰ وکړي او ښځه انکار وکړي فَصَالَحَتْهُ عَلَى مَالٍ بَذَلَتْهُ حَتَّى يَتْرُكَ الدَّعْوَى بيا ښځه هغه سړي ته څه مال ورکړي او

پرهغه صلح ور سره وکړي د دې لپاره چي خپله دعویٰ پرېږدي جَازَ نو دا صلح جائز ده وَكَانَ فِي مَعْنَى الْخُلْعِ او دا صلح به د خلع په معنیٰ سره وي لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ خُلْعًا فِي جَانِبِهِ بِنَاءً عَلَى زَعْمِهِ وَفِي جَانِبِهَا بَذْلًا لِلْمَالِ لِدَفْعِ الْخُصُومَةِ ځکه چي د خاوند د گومان [او خيال] مطابق د خاوند په جانب کي هغه [صلح] خلع گرځول او د ښځي په جانب کي د خصومت دفع کولو په غرض هغه بذل المال [د مال ورکول] گرځول او [په دې توگه د هغه] صحيح کول ممکن دي قَالُوا: وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَأْخُذَ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى إِذَا كَانَ مُبْطِلًا فِي دَعْوَاهُ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چي کله يو څوک په خپله دعویٰ کي درواغجن وي نو دياتنا [فيما بيٌنه بين الله] د هغه لپاره د دې مال اخيستل حلال نه دي قَالَ: وَإِذَا ادَّعَتِ امْرَأَةٌ عَلَى رَجُلٍ نِكَاحًا فرمايي: او کله چي يوه ښځه پر يو سړي د نکاح دعویٰ وکړي فَصَالَحَهَا عَلَى مَالٍ بَذَلَهُ لَهَا بيا سړی هغې ته څه مال ورکړي او پر هغه صلح ور سره وکړي جَازَ نو صلح جائز ده قَالَ: هَكَذَا ذَكَرَهُ فِي بَعْضِ نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مختصر القدوري په ځيني نسخو کي يې همداسي ذکر کړي دي وَفِي بَعْضِهَا قَالَ: لَمْ يَجُزْ او په ځيني نسخو کي يې ويلي دي: چي جائز نه دي وَجْهُ الْأَوَّلِ: أَنْ يُجْعَلَ زِيَادَةً فِي مَهْرِهَا د اول قول [يعني د صلح جائز کېدلو] دليل دا دی: چي هغه [د صلح بدل] د ښځي په مهر کي اضافه وگرځول سي وَجْهُ الثَّانِي: أَنَّهُ بَذَلَ لَهَا الْمَالَ لِتَتْرُكَ الدَّعْوَى او د دويم قول دليل دا دی: چي خاوند ښځي ته د دې لپاره مال ورکړی دی چي ښځه خپله دعویٰ پرېږدي فَإِنْ جُعِلَ تَرْكُ الدَّعْوَى مِنْهَا فُرْقَةً اوس که [د ښځي] دعویٰ پرېښوول د هغې له طرفه فرقت وگرځول سي فَالزَّوْجُ لَا يُعْطِي الْعِوَضَ فِي الْفُرْقَةِ نو خاوند په فرقت کي عوض نه ورکوي وَإِنْ لَمْ يُجْعَلْ او که هغه فرقت نه وگرځول سي فَالْحَالُ عَلَى مَا كَانَ عَلَيْهِ قَبْلَ الدَّعْوَى نو حال به هغه وي کوم چي له دعوې څخه مخکي وي [يعني ښځه به پر خپله دعویٰ قائم پاته وي (احسن الهدايه)] فَلَا شَيْءَ يُقَابِلُهُ الْعِوَضُ نو داسي شی به نه وي چي د هغه په مقابله کي [د صلح] عوض راسي [يعني د عوض په مقابله کي به خاوند ته هيڅ شی حاصل نه سي] فَلَمْ يَصِحَّ نو ځکه به صلح صحيح نه وي.

**اللغات**: ﴿اعتياض﴾ د افتعال د باب مصدر دی: عوض اخيستل، بدل اخيستل، ﴿قذف﴾ د ضرب د باب مصدر دی: پر يو چا په درواغه د زنا تهمت لګول، ﴿بذلته﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: خرچول، ورکول، ﴿مُغلّب﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: غالب ګرځول سوی، ﴿الفُرقة﴾ جدايي، د ښځي او خاوند سره جلا کېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي ټوله څلور مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو سړی د بل چا مثلاً د زيد په خلاف د زاني يا شرابي يا محدود في القذف کېدلو دعوې کول وغواړي او مجرم (زيد) د هغه سړي سره پر څه مال صلح وکړي (چي ته زما په خلاف دا دعوی پرېږده!)، نو دا صلح جائز نه ده؛ ځکه چي "حدود" د الله تعالیٰ حق دی او د بنده لپاره د هغوی عوض اخيستل صحيح نه دي. لکه څرنګه چي د ښځي لپاره د نسب د دعوې عوض اخيستل صحيح نه دي، مثلاً که يو ښځي ته خاوند طلاق ورکړي او کله چي له هغې څخه بچی پيدا سي نو هغه دعوی وکړي چي زما د دغه بچي نسب د دې خاوند (طلاق ورکونکي) سره ثابت دی، لېکن خاوند د هغې سره پر څه مال صلح وکړي (چي دا دعوی پرېږده!)، نو دا صلح هم صحيح نه ده؛ ځکه چي نسب اوس د بچي حق دی، د ښځي حق نه دی.

(۲)... که يو چا په عامه لار کي بيت الخلاء يا د اوبو ځای جوړ کړی وي، او بيا يو سړی خصومت او دعویٰ وکړي او د هغه د نړولو ېخه اراده وکړي، نو تنها د يوه کس لپاره دا جائز نه دي چي د هغه سړي (مُخاصِم) سره پر څه مال صلح وکړي (چي ته دا مال واخله! او د هغه د نړولو دعویٰ او اراده پرېږده!)؛ ځکه چي اوس هغه ځای (بيتُ الخلاء او داسي نور) د عوامو حق ګرځېدلی دی او د هغه سره د عوامو فايده متعلق ده، لهذا تنها يوه کس ته په هغه کي د تصرف کولو ملکيت او اختيار نسته. (احسن الهدايه)

(۳)... که يو سړی مثلاً نعمان د فاطمې سره د نکاح کولو دعویٰ وکړي (چي ما د فاطمې سره نکاح کړې ده) او فاطمه له نکاح څخه انکار وکړي، بيا هغه د نعمان سره پر څه مال صلح وکړي (چي ته دا مال واخله او د آينده لپاره د نکاح کولو دعویٰ پرېږده!)، نو دا صلح صحيح ده؛ ځکه چي د نعمان د ګومان مطابق فاطمه د هغه ښځه ده، او ښځه که د مال په عوض کي له خاوند څخه خپل ځان خلاصوي نو دا په شريعت کي خلع ده او خلع جائز ده، نو ځکه پورتني صورت به خلع او جائز ګرځول کيږي. لېکن که خاوند ته دا معلومه وي چي زه په خپل قول او دعویٰ کي پر ناحقه او درواغجن يم، نو د هغه لپاره ديانتاً دا مال (بدلِ صلح) اخيستل روا نه دي.

(۴)... كه فاطمه دعوىٰ وكړي چي ادريس زما سره نكاح كړې ده، ليكن ادريس انكار وكړي او هغې ته څه مال وركړي او صلح ور سره وكړي (چي دا مال واخله! او دآينده لپاره د نكاح نعرې مه وهه!)، نو د امام قدوري رَحِمَهُ الله يو قول دا دى چي دا صلح صحيح ده، او په بعضي نسخو كي دويم قول دا ذكر سوى دى چي صحيح نه ده. د اول قول يعني د صلحي د صحيح كېدلو دليل دا دى چي په دې مسئله كي به بدل صلح (مال) د خاوند له طرفه د ښځي په مهر كي اضافه ګرځول كيږي (يعني دا به وبل كيږي چي ګواكي خاوند دا مال هغې ته د زائد مهر په توګه وركړى دى)، د دې لپاره چي د مسلمان كلام د لغو كېدلو څخه محفوظ پاته سي. او د دويم قول يعني د صلحي نه صحيح كېدلو دليل دا دى چي دلته خاوند د همدې لپاره ښځي ته مال وركړى دى چي ښځه خپله دعوىٰ پرېږدي، ليكن كه مورږ دا "ترک الدعوىٰ" (دعوىٰ پرېښوول) د ښځي له طرفه فرقت اختيارول ومنو (يعني كه د هغې دعوىٰ پرېښوول داسي وشمېرل سي چي ګواكي هغې له خاوند څخه فرقت اختيار كړى)، نو پرېشاني دا ده چي په فرقت كي خاوند عوض اخلي، وركوي يې نه، حال دا چي دلته خاوند په خپله عوض وركړى دى، نو ځكه دا فرقت ګرځول ممكن نه دي، او د فرقت نه منلو په صورت كي خاوند ته پر مال وركولو هيڅ فايده نه حاصليږي؛ ځكه چي ښځه د مخكي په څېر پر خپله دعوىٰ قائمه ده، نو ځكه دلته غوره همدا ده چي دا صلح باطله وګرځول سي او خاوند چي ښځي ته كوم مال وركړى دى هغه واپس خاوند ته وركول سي. (احسن الهدايه)

## د غلامۍ او آزادۍ په دعوىٰ كي د صلح بيان

قَالَ: وَإِذَا ادَّعٰى عَلٰى رَجُلٍ أَنَّهُ عَبْدُهُ فرمايي: او كله چي يو شوک پر يو سړي دا دعوىٰ وكړي چي هغه زما غلام دى فَصَالَحَهُ عَلٰى مَالٍ أَعْطَاهُ او مدعىٰ عليه هغه ته مال وركړي او صلح ور سره وكړي جَازَ نو دا جائز دي وَكَانَ فِي حَقِّ الْمُدَّعِي بِمَنْزِلَةِ الْإِعْتَاقِ عَلٰى مَالٍ او د مدعي په حق كي به دا عمل د مال په عوض كي د آزادولو په څېر وي لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ عَلٰى هٰذَا الْوَجْهِ فِي حَقِّهِ لِزَعْمِهِ ځكه چي د مدعي د ګومان مطابق د هغه په حق كي پر همدغه طريقه د دې تصحيح ممكن ده وَلِهٰذَا يَصِحُّ عَلٰى حَيَوَانٍ فِي الذِّمَّةِ إِلٰى أَجَلٍ او په همدې وجه تر يوه ميعاده پوري په خپله ذمه پر اخيستل سوي حيوان صلح كول صحيح دي وَفِي حَقِّ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ يَكُونُ لِدَفْعِ الْخُصُومَةِ او د مدعىٰ عليه په حق كي به د خصومت ليري كولو لپاره وي لِأَنَّهُ يَزْعُمُ أَنَّهُ حُرُّ الْأَصْلِ ځكه مدعىٰ عليه [غلام] دا ګومان كوي چي

زه له اصله آزاد يم فَجَازَ نو ځکه به صلح جائز وي إِلَّا أَنَّهُ لَا وَلَاءَ لَهُ ليکن مدعي ته د دې غلام امدعی عليه] ولاء نه حاصليږي لِإِنْكَارِ الْعَبْدِ د غلام د انکار په وجه [په بله وينا: ځکه چي مدعیٰ عليه له خپل غلام کېدلو څخه منکر دی] إِلَّا أَنْ يُقِيمَ الْبَيِّنَةَ مګر دا چي مدعي بيّنه پېش کړي فَتُقْبَلَ وَيَثْبُتَ الْوَلَاءُ نو بيّنه به قبلول کيږي او ولاء به ثابتيږي قَالَ: وَإِذَا قَتَلَ الْعَبْدُ الْمَأْذُونُ لَهُ رَجُلًا عَمْدًا فرمايي: او که عبد ماذون لهٗ قصداً يو سړی قتل کړي لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يُصَالِحَ عَنْ نَفْسِهِ نو هغه لره جائز نه دي چي د خپل ځان په هکله صلح وکړي وَإِنْ قَتَلَ عَبْدٌ لَهُ رَجُلًا عَمْدًا او که د مأذون لهٗ خپل غلام يو سړی قصداً قتل کړي فَصَالَحَ عَنْهُ او مأذون لهٗ د خپل قاتل غلام په هکله [د مقتول د ولي سره] صلح وکړي جَازَ نو جائز دي وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ رَقَبَتَهُ لَيْسَتْ مِنْ تِجَارَتِهِ او وجه د فرق دا ده چي د عبد مأذون لهٗ غاړه د هغه له تجارت [کاروبار] څخه نه ده [يعني هغه ته په خپل ذات کي د تجارت کولو حق نسته] وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ فِيهِ بَيْعًا او په همدې وجه هغه په خپل غاړه [ذات] کي د خرڅولو د تصرف ملکيت نه لري [يعني خپل ځان نه سي خرڅولای] فَكَذَا اسْتِخْلَاصًا بِمَالِ الْمَوْلَى لهذا هغه به د مالک په مال سره د خپل ځان خلاصولو ملکيت هم نه لري وَصَارَ كَالْأَجْنَبِيِّ او هغه د اجنبي کس په څېر سو أَمَّا عَبْدُهُ فَمِنْ تِجَارَتِهِ وَتَصَرُّفُهُ فِيهِ نَافِذٌ بَيْعًا او پاته سو د هغه غلام نو هغه د ده له تجارت څخه دی او په هغه کي د ده د خرڅولو تصرف نافذ دی فَكَذَا اسْتِخْلَاصًا نو ځکه ده ته به د هغه د خلاصولو ملکيت هم وي وَهَذَا لِأَنَّ الْمُسْتَحَقَّ كَالزَّائِلِ عَنْ مِلْكِهِ او دا ځکه چي مستحق شُده شی داسي دی لکه د ده له ملکيت څخه چي زائل سوی وي وَهَذَا شِرَاؤُهُ او د هغه خلاصولول داسي دي لکه د هغه رانيول فَيَمْلِكُهُ نو ځکه به عبد مأذون لهٗ د دې ملکيت لري.

**اللغات**: ﴿أجل﴾ ټاکل سوی وخت، ميعاد (مياد)، ﴿خصومة﴾ جنګ، دعویٰ، ﴿ولاء﴾ د آزاد سوي غلام ميراث، ﴿رقبة﴾ غاړه، مراد ځني ذات (خپل ځان) دی، ﴿استخلاص﴾ د استفعال مصدر دی: خلاصول، ﴿شراء﴾ د ضرب مصدر دی: رانيول.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که خالد دعویٰ وکړي چي زيد زما غلام دی ليکن زيد له دې څخه انکار وکړي، بيا زيد خالد ته څه مال ورکړي او صلح ور سره وکړي، نو دا صلح جائز ده، او داسي به ګڼل کيږي چي خالد د څه مال په عوض کي خپل غلام آزاد کړی، او اعتاق علیٰ مال صحيح دی، لهذا دا صلح به هم صحيح

وي، همدا وجه ده که مدعیٰ علیه مدعي ته ووايي چي زه تا ته په دومره ورځو کي څاروی (مثلا پُسه) درکوم، نو پر دغه معلوم الاجل حيوان هم صلح صحيح ده؛ ځکه د مدعي په حق کي دا صلح اعتاق علیٰ مال ده، او څرنګه چي مدعیٰ علیه (زيد) خپل ځان حُرّ الاصل ګڼي، نو د هغه په حق کي به دا صلح فقط د خصومت (دعوې) د دفع کولو لپاره وي، او د خصومت دفع کولو لپاره مال ورکول روا دي، نو ګواکي په دې مسئله کي ورکول او اخيستل دواړه روا دي.

لېکن د مدعیٰ علیه د انکار په وجه به مدعي ته د هغه ولاء نه حاصلېږي. ها! که چيري مدعي په بيّنه سره دا ثابته کړي چي مدعیٰ علیه واقعتاً زما غلام دی، نو بيا هغه د ولاء مستحق کېږي.

(۲)... که يو مأذون لهٗ غلام عمداً يو څوک قتل کړي، نو هغه ته دا جائز نه دي چي د خپل ځان له طرفه (د قتل په عوض کي) د مقتول وارثانو ته مال (ديت) ورکړي او صلح ور سره وکړي. او که مأذون لهٗ غلام په خپله يو غلام لري او هغه يو څوک عمداً قتل کړي او بيا مأذون لهٗ غلام (مالک) د خپل قاتل غلام له طرفه مال ورکړي او صلح وکړي، نو دا جائز دي. په دې دواړو مسئلو کي فرق دا دی چي مأذون لهٗ غلام ته د خپل مالک په مال کي د تجارت (کاروبار کولو) اجازت وي لېکن هغه ته د خپل ځان د خرڅولو حق نه وي او کله چي هغه ته د خپل ځان خرڅولو حق نسته، نو هغه ته به د مالک په مال سره د ځان خلاصولو حق هم نه وي؛ لهذا هغه د خپل ځان له طرفه صلح نه سي کولای، لکه يو اجنبي کس چي د بل چا له اجازت څخه بغير د هغه په مال سره صلح نه سي کولای. د دې په خلاف د مأذون لهٗ چي کوم خپل غلام دی هغه د ده له تجارت څخه دی او ده ته د خپل غلام خرڅولو پوره حق سته، او کله چي ده ته د غلام خرڅولو حق او ملکيت (اختيار) سته، نو ده ته به د مال په عوض کي د هغه د خلاصولو ملکيت هم وي؛ ځکه کله چي د ده غلام قتل وکړی او د مقتول وارثانو هغه ونيوی، نو غلام د هغو مستحق وختی او د ده له ملکيت څخه ووتی، او بيا چي کله ده يعني مأذون لهٗ غلام د مقتول وارثانو ته مال ورکړی او هغه يې خلاص کړی، نو مأذون لهٗ غلام له نوي سره د هغه رانيونکی سو، او مأذون لهٗ غلام ته د رانيولو او خرڅولو حق سته، نو ځکه هغه مذکوره غلام رانيولای سي، د دې په خلاف که مأذون لهٗ غلام په خپله قتل کړی وي او د قتل په وجه مستحق ختلی وي، نو هغه ته د خپل ځان رانيولو ملکيت (اختيار) نسته، لهذا هغه ته به د خپل ځان له طرفه د صلح کولو ملکيت هم نه وي. (احسن الهدايه)

## له متنازع شي څخه پر زيات بدل (عوض) صلح کول

قَالَ: وَمَنْ غَصَبَ ثَوْبًا يَهُودِيًّا قِيمَتُهُ دُونَ الْمِائَةِ فرمايي: او که څوک يو يهودي کپړه غصب کړي چې دهغې قيمت له سلو درهمو څخه کم وي فَاسْتَهْلَكَهُ او غاصب هغه ضايع کړي فَصَالَحَهُ مِنْهَا عَلَى مِائَةِ دِرْهَمٍ بيا غاصب د هغه کپړې د قيمت په هکله د مالک [مغصوب منه] سره پر سلو درهمو صلح وکړي جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا صلح جائز ده وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ❁: يَبْطُلُ الْفَضْلُ عَلَى قِيمَتِهِ بِمَا لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د هغه پر قيمت دومره زياتوب باطل دی چې په هغه کې خلک دوکه نه خوري [په بله وينا:..دومره زياتوب باطل دی چې هغومره زياتوب (زائد مقدار) خلک نه زغمي] لِأَنَّ الْوَاجِبَ هِيَ الْقِيمَةُ ځکه چې [پر غاصب] صرف قيمت واجب دی وَهِيَ مُقَدَّرَةٌ او هغه مُتعيّن [او معلوم] دی فَالزِّيَادَةُ عَلَيْهَا تَكُونُ رِبًا لهذا پر هغه به زياتوب کول ربوا وي بِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَلَى عَرَضٍ په خلاف د هغه صورت کله چې پريو سامان صلح وکړي لِأَنَّ الزِّيَادَةَ لَا تَظْهَرُ عِنْدَ اخْتِلَافِ الْجِنْسِ ځکه چې د جنس د اختلاف په صورت کې زياتوب نه ښکاره کيږي وَبِخِلَافِ مَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ او په خلاف د داسې زياتوب چې خلک په هغه کې دوکه کيږي [يعني په خلاف د غبنِ يسير] لِأَنَّهُ يَدْخُلُ تَحْتَ تَقْوِيمِ الْمُقَوِّمِينَ ځکه چې هغه د قيمت لګونکو تر قيمت لاندې داخليږي [په بله وينا: ځکه چې هغه د اندازه کونکو تر اندازې لاندې راتلای سي] فَلَا تَظْهَرُ الزِّيَادَةُ نو ځکه به زياتوب نه ښکاره کيږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ حَقَّهُ فِي الْهَالِكِ بَاقٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې په هلاک سوي شي [يعني په ضايع سوې کپړه] کې د مالک حق باقي دی حَتَّى لَوْ كَانَ عَبْدًا وَتَرَكَ أَخْذَ الْقِيمَةِ همدا وجه ده که مغصوب [د کپړې پر ځای] غلام وای [بيا غاصب هغه ضايع کړی وای] او مالک د هغه قيمت پرې ايښې وای يَكُونُ الْكَفَنُ عَلَيْهِ نو د هغه د کفن [او دفن] خرچ به پر مالک وای أَوْ حَقُّهُ فِي مِثْلِهِ صُورَةً وَمَعْنًى يا د مالک حق

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الهندية (ج:۴، ص:۲۴۱)، وفي كنـز الدقائق (ص:۲۹۴). [القـول الراجح ج:۲، ص:۲۰۴]

د صورت او معنیٰ په اعتبار سره د هلاک سوي شي په مثل کي دی لِأَنَّ ضَمَانَ الْعُدْوَانِ بِالْمِثْلِ ځکه چي د تعدی ضمان [تاوان] په مثل سره وي [يعني که يو څوک په تعدی (يعني ظلماً او په نا حقه) ديو چا شی هلاک کړي نو په تاوان [ضمان] کي پر هلاکونکي د هغه شي مثل واجبيږي] وَإِنَّمَا يَنْتَقِلُ إِلَى الْقِيمَةِ بِالْقَضَاءِ او دا حکم [ضمان بالمثل] صرف د قاضي په حکم سره د قيمت وطرف ته منتقل کيږي فَقَبْلَهُ إِذَا تَرَاضَيَا عَلَى الْأَكْثَرِ لهذا د قاضي تر فيصلې مخکي چي کله دواړه فريقين [غاصب او مالک] پر زيات قيمت راضي سي كَانَ اعْتِيَاضًا نو دا به [د خپل حق] عوض اخيستل وي فَلَا يَكُونُ رِبًا نو ځکه به ربوا نه وي بِخِلَافِ الصُّلْحِ بَعْدَ الْقَضَاءِ په خلاف د قاضي تر فيصلې وروسته د صح کولو لِأَنَّ الْحَقَّ قَدِ انْتَقَلَ إِلَى الْقِيمَةِ ځکه چي [تر فيصلې وروسته] حق د قيمت وطرف ته منتقل سو.

**اللغات**: ﴿ثوب يهودي﴾ دا يو قسم کپړه وه کوم چي ديهودو وطرف ته منسوبه وه او قيمت يې معلوم وو، مراد ځني هر هغه شی دی چي قيمت يې معلوم او مُتعيّن وي (عنايه)، ﴿استهلک﴾ د استفعال د باب ماضي ده: هلاکول، ضايع کول. ﴿فضل﴾ زياتوب، زائد مقدار، اضافي مقدار، ﴿مقدّرة﴾ د تفعيل د باب مؤنث اسم مفعول دی: مُتعيّن، ټاکل سوی، ﴿هالك﴾ د ضرب د باب اسم فاعل دی، الشئ الهالك: هلاک کړی سوی شی، ضايع کړی سوی، ﴿عَرَضٌ﴾ او عَرْضٌ: سامان، جمع: عُرُوْض، ﴿لا يتغابن﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده، تَغَابَنَ يَتَغَابَنُ تَغَابُنًا: د دغه باب خپله معنیٰ ده: يو بل ته نقصان رسول، يو بل ته دوکه ورکول، لېکن شارحينو يې دا معناوي هم ذکر کړي دي: دوکه خوړل (دوکه کېدل)، نقصان برداشت کول (تاوان زغمل)، د "لا يتغابن الناس" څخه مراد غبنِ فاحش (زيات تاوان) دی او د "يتغابن الناس" څخه مراد غبنِ يسير (معمولي تاوان) دی، ﴿تقويم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي او د صلح په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي: قيمت ټاکل، رېټ لګول، ديو شي اندازه بيانول. او مُقَوِّمِيْن د همدې باب جمع اسم فاعل دی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د يهودي کپړې تان غصب کړي او د هغه قيمت له سلو درهمو څخه کم وي، او تر غصبولو وروسته دا سړی (غاصب) هغه ضايع کړي، بيا غاصب پر سلو درهمو د تان د مالک (مغصوب منه) سره صلح وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا صلح جائز او صحيح ده. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي که بدل صلح (دراهم) د کپړې له قيمت څخه دومره

زیات وي چي خلک هغه زیات تاوان ګڼي او په هغومره تاوان هیڅوک نه مبتلا کیږي (یعني په هغومره زیاتوب هیڅوک داسي تان نه رانیسي)، نو په دې صورت کي زیاتوب (زائد مقدار) ربوا ده. لیکن که هغه زیاتوب معمولي وي یا له بل جنس څخه وي نو بیا هیڅ حرج نسته.

**د صاحبینو دلیل**: دا دی چي په دې مسئله کي پر غاصب د مغصوب (تان) قیمت واجب دی، او څرنګه چي د هغه قیمت مُتعیّن او معلوم دی، لهذا د هغه پر مُتعیّن قیمت چي کوم زیاتوب او اضافه وسي هغه به ربوا (سُود) وي او د ربوا اخیستل او ورکول دواړه حرام دي.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چي په ضایع کړی سوي تان کي اوس هم د مالک حق باقي دی، همدا وجه ده که د تان پر ځای غلام مغصوب وای او مالک د هغه قیمت پرې ایښې وای، بیا هغه ضایع کړی سوي یا مړ سوی وای، نو د هغه د کفن دفن خرچ به پر مالک وای. یا په بله وینا دا چي په دې ضایع کړی سوي تان کي د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار سره د مالک حق سته؛ ځکه چي دلته د تان ضمان بالمثل واجب دی (یعني غاصب به مالک ته خاص دیهودي کپړې تان ورکوي) او له مثل څخه د قیمت وطرف ته د قاضي په فیصله سره د هغه حق منتقل کیږي، لهذا کله چي د قاضي له فیصلې څخه مخکي غاصب او مالک دواړه پر زائد قیمت راضي سوه، نو دا به د خپل حق عوض اخیستل وي، سُود به نه وي (ځکه په عوض اخیستلو کي سود نه متحقق کیږي)، نو ځکه په دې مسئله کي پر سلو درهمو صلح کول صحیح دي. لیکن که قاضي د قیمت فیصله کړې وي نو بیا د تان له قیمت څخه پر زائد مقدار صلح کول به سُود وي، ځکه چي اوس د هغه حق د قیمت وطرف ته منتقل سو.

## د مشترک غلام د آزادولو په صورت کي د صلح کولو بیان

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ فرمایي: او کله چي یو غلام د دوو خلکو په مینځ کي مشترک وي أَعْتَقَهُ أَحَدُهُمَا وَهُوَ مُوسِرٌ [او] له هغه دواړو څخه یو سړی دا غلام آزاد کړي او دا آزادونکی سړی مالدار [هم] وي فَصَالَحَهُ الْآخَرُ عَلَى أَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ قِيمَتِهِ او دویم شریک د غلام له نیم قیمت څخه پر زیات قیمت د هغه [آزادونکي شریک] سره صلح وکړي فَالْفَضْلُ بَاطِلٌ نو زیاتوب [زائد مقدار] باطل دی وَهٰذَا بِالِاتِّفَاقِ او دا حکم په اتفاق سره [متفق علیه] دی وَأَمَّا عِنْدَهُمَا فَلِمَا بَيَّنَّا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز خو د هغه دلیل په وجه [باطل دی] کوم چي موږ بیان کړی وَالْفَرْقُ لِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ الْقِيمَةَ فِي الْعِتْقِ مَنْصُوصٌ عَلَيْهَا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله لپاره د فرق وجه دا ده چي [د مشترک غلام] د آزادېدلو په صورت کي چي کوم قیمت دی پر هغه نص [حدیث] وارد سوی دی [یعني د عتق د صورت په باره کي نص وارد سوی دی] وَتَقْدِيرُ الشَّرْعِ لَا يَكُونُ دُونَ تَقْدِيرِ

الْقَاضِي او د شريعت ټاكل [مقرر كول] د قاضي له ټاكلو څخه نه سي كمېداى [په بله وينا: او د شريعت مُتعيّن كړه [ټاكل سوى] مقدار د قاضي له مُتعيّن كړه قيمت څخه نه سي كمېداى] فَلَا يَجُوزُ الزِّيَادَةُ عَلَيْهِ نو ځكه پر هغه به زياتوب كول [اضافه كول] جائز نه وي بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د مخكنۍ مسئلې [يعني چي كله غاصب كپړه ضايع كړي] لِأَنَّهَا غَيْرُ مَنْصُوصٍ عَلَيْهَا ځكه چي پر هغه قيمت نص نه دی وارد سوى وَإِنْ صَالَحَهُ عَلَى عُرُوضٍ او كه دويم شريک پر سامان د هغه سره صلح وكړي جَازَ نو جائز دي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ لَا يَظْهَرُ الْفَضْلُ د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړى چي [داختلافُ الجنس په صورت كي] زياتوب نه ښكاره كيږي.

**اللغات**: ﴿موسر﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: مالدار، شتمن. ﴿منصوص عليها﴾ د كوم شي په باره كي چي نص (حديث) وارد سوى وي هغه ته "منصوص عليه" وايي، ﴿عروض﴾ جمع د عَرضٌ ده: سامان. ﴿فضل﴾ زياتوب، زائد مقدار.

**تشريح**: كه يو غلام د دوو كسانو په مينځ كي مشترک وي نو ښكاره خبره ده چي په دوی كي هر د غلام د نيم قيمت حقداره دی، اوس كه له دوی څخه يو شريک هغه غلام آزاد كړي، نو ټوله غلام آزاديږي، ځكه چي عتق (آزادي) نه سي متجزي كېداى (يعني عتق جزء، جزء [حصه، حصه] نه سي كېداى)، لهذا پر آزادونكي شريک به د بل شريک لپاره د غلام نيم قيمت واجب وي، ليكن كه هغه شريک له نيم قيمت څخه پر زائد مقدار صلح وكړي مثلاً د غلام نيم قيمت پنځوس (۵۰) درهمه وي او هغه پر اويا (۷۰) درهمه صلح وكړي، نو د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نيز دا صلح ناجائز او زائد مقدار باطل دی.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د باطلېدلو وجه خو هغه ده كوم چي په تېر عبارت كي ذكر سوه (يعني د زائد مقدار سود كېدل)، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د باطلېدلو وجه دا ده چي د مشترک غلام د عتق په صورت كي قيمت شرعاً مُتعيّن دی، ځكه په دې باره كي نص يعني حديث وارد سوى دی او هغه دا حديث دی: "مَنْ أَعْتَقَ شِقْصًا مِنْ عَبْدٍ مُشْتَرَكٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَ شَرِيكِهِ، قُوِّمَ عَلَيْهِ نَصِيبُ شَرِيكِه"، نو ځكه د شريعت پر مُتعيّن كړى سوي مقدار زياتوب كول جائز نه دي.

د دې په خلاف څرنگه چي په مخكنۍ مسئله كي د "ثوب يهودي" قيمت منصوص عليها نه دی، نو ځكه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هلته له قيمت څخه پر زائد مقدار هم صلح كېداى سي. همدارنگه په دواړو مسئلو كي د سامان په عوض كي هم صلح جائز ده، كه څه هم د سامان قيمت له منصوص عليها قيمت څخه زيات وي. لما بيّنا أنه لا يظهر الفضل عند اختلاف الجنس. والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ التَّبَرُّعِ بِالصُّلْحِ وَالتَّوْكِيْلِ بِهٖ

(دا) باب په صلح سره د احسان کولو (یعنی د بل چا له طرفه د صلح کولو)

او د صلح د وکیل جوړولو (په بیان کی) دی

**تشريح:** مخکي تر دې د هغه صلح بيان وو کوم چي يې انسان بذات خود وکړي، او اوس په دې باب کي د بل چا له طرفه د صلح کولو بيان دی، او انسان په خپل فعل کي اصل وي او د بل چا په فعل کي د هغه له طرفه نائب وي، او اصل له نائب څخه مخکي وي، نو ځکه يې دا باب تر "باب الصلح" وروسته بيان کړی دی.

**يادونه:** د "تبرّع بالصلح" مراد او مطلب دا دی چي انسان د بل چا له طرفه د هغه له حکم څخه بغير صلح وکړي، او د "توکيل بالصلح" مطلب دا دی چي انسان د بل چا له طرفه د هغه په حکم سره صلح وکړي.

## د صلح لپاره يو څوک وکيل جوړول او د وکيل صلح کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ وَكَّلَ رَجُلًا بِالصُّلْحِ عَنْهُ فرمايي: او که څوک يو سړی د خپل ځان له طرفه د صلح کولو وکيل جوړ کړي فَصَالَحَ او وکيل صلح وکړي لَمْ يَلْزَمِ الْوَكِيلَ مَا صَالَحَ عَنْهُ نو وکيل چي د کوم شي [يا د کوم چا] په هکله صلح وکړي هغه پر وکيل نه لازميږي إِلَّا أَنْ يَضْمَنَهُ مگر دا چي وکيل د هغه ضامن سي [يعني د هغه ضمانت (ذمه واريّ) په خپله غاړه واخلي] وَالْمَالُ لَازِمٌ لِلْمُوَكِّلِ او مال پر وکيل لازم دی وَتَأْوِيلُ هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ إِذَا كَانَ الصُّلْحُ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ او د دغه مسئلې تأويل دا دی چي صلح د قتلِ عمد په هکله وي أَوْ كَانَ الصُّلْحُ عَنْ بَعْضِ مَا يَدَّعِيهِ مِنَ الدَّيْنِ يا صلح د هغه قرض د بعضي حصې په هکله وي د کوم چي مدعي دعوىٰ کوي لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ مَحْضٌ ځکه چي دا اسقاطِ محض [محض ساقطول] دي فَكَانَ الْوَكِيلُ فِيهِ سَفِيرًا وَمُعَبِّرًا لهذا په دې کي به وکيل صرف استازی او خبره نقلونکی وي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو ځکه پر هغه به ضمان لازم نه وي كَالْوَكِيلِ بِالنِّكَاحِ لکه وکيل بالنکاح [چي سفير او معبر دی او پر هغه هيڅ ضمان (تاوان) نه لازميږي] إِلَّا أَنْ يَضْمَنَهُ مگر دا چي وکيل [په خپله] د هغه ضامن سي لِأَنَّهُ حِينَئِذٍ هُوَ مُؤَاخَذٌ بِعَقْدِ الضَّمَانِ لَا بِعَقْدِ الصُّلْحِ ځکه چي په دې وخت

کي هغه د عقد ضمان [ضامن کېدلو] په وجه ماخوذ کيږي، نه د عقد صلح [صلح کولو] په وجه أَمَّا إِذَا كَانَ الصُّلْحُ عَنْ مَالٍ او که چيري صلح د مال په هکله وي فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْبَيْعِ نو هغه د بيع په درجه کي ده فَتَرْجِعُ الْحُقُوقُ إِلَى الْوَكِيلِ لهذا [د هغه] حقوق به د وکيل وطرف ته راجع کيږي فَيَكُونُ الْمُطَالِبُ بِالْمَالِ هُوَ الْوَكِيلُ دُونَ الْمُوَكِّلِ او په مال به سره همدا وکيل مُطالِب وي، نه مؤکل [يعني د مال مطالبه به هم له وکيل څخه کيږي. نه له مؤکل څخه].

**اللغات**: ﴿وكّل﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: يو څوک د ځان وکيل کول، وکيل جوړول. ﴿للمؤكل﴾ د دې په شروع کي چي کوم لام دی هغه د "علیٰ" په معنیٰ سره دی يعني: المال لازم علی المؤكل. لکه څرنګه چي د قرآن کريم په دې آيت "وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا" کي لام د علیٰ په معنیٰ سره دی يعني: فَعَلَيْهَا". ﴿سفير﴾ استازی، پيغام رسونکی، خبره رسونکی، ﴿معبر﴾ خبره نقلونکی، بيانونکی (ترجماني کونکی). ﴿مُطَالَب﴾ د مفاعلې د باب مفعول دی: مطالبه کړی سوی، له چا څخه چي مطالبه کيږي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که زيد عمداً يو څوک قتل کړي، بيا زيد د خپل ځان له طرفه د صلح کولو لپاره ادريس وکيل جوړ کړي، يا يو څوک پر زيد د قرض دعویٰ وکړي، او زيد د قرض پر څه حصې د صلح کولو لپاره ادريس وکيل جوړ کړي، او ادريس صلح وکړي، نو بدل صلح پر مؤکل يعني پر زيد لازميږي، پر وکيل (ادريس) نه لازميږي؛ ځکه چي د قتلِ عمد په هکله صلح کول يا پر څه قرض صلح کول په حقيقت کي اسقاطِ محض دی يعني د قتل په صورت کي دا صلح له مؤکل (قاتل) څخه اسقاط قصاص دی او د قرض په صورت کي له مؤکل څخه اسقاط بعض دی (په بله وينا دا چي په دې صلح سره د مؤکل له ذمې څخه قصاص او باقي قرض ساقطيږي)، نو وکيل محض سفير وګرځېدی، نه عاقد. لهذا حقوق به صرف د مؤکل وطرف ته راجع کيږي (يعني بدلِ صلح به صرف پر مؤکل لازميږي او وکيل به د هغه ضامن نه وي)، لکه څرنګه چي د نکاح وکيل د مهر او داسي نورو نه ضامن کيږي. ها! که چيري وکيل په خپله د بدل صلح د اداء کولو ضامن جوړ سي، نو بيا بدل صلح پر هغه لازميږي، لېکن دا د وکيل جوړېدلو په وجه نه، بلکي د ضامن جوړېدلو په وجه.

او که چيري دعویٰ د مال په هکله وي او بيا د مال په عوض کي صلح وسي، نو دا صلح د بيع په حکم سره ده (لکه مخکي چي ذکر سوه). او په بيع کي صرف د عاقد وطرف ته حقوق راجع کيږي، لهذا

په صلح عن المال کې به هم د وکيل وطرف ته حقوق راجع کيږي او صرف له وکيل څخه به د مال (بدلِ صلح) مطالبه کيږي.

## د يو چا له حکم څخه بغير د هغه له طرفه د صلح کولو بيان

قَالَ: وَإِنْ صَالَحَ رَجُلٌ عَنْهُ بِغَيْرِ أَمْرِهِ فرمايي: او که يو [اجنبي] سړی د يو چا له طرفه د هغه له حکم څخه بغير صلح وکړي فَهُوَعَلَى أَرْبَعَةِ أَوْجُهٍ نو دا صلح پر څلورو صورتونو ده [څلور بوله دا] إِنْ صَالَحَ بِمَالٍ وَضَمِنَهُ [۱] که چيري هغه [اجنبي کس] د مال په عوض کې صلح وکړي او د هغه ضامن سي تَمَّ الصُّلْحُ نو صلح پوره سوه لِأَنَّ الْحَاصِلَ لِلْمُدَّعَى عَلَيْهِ لَيْسَ إِلَّا الْبَرَاءَةَ ځکه چې مدعیٰ عليه لره صرف برائت حاصل سوی دی وَفِي حَقِّهَا هُوَ وَالْأَجْنَبِيُّ سَوَاءٌ او د برائت په حق کې اجنبي کس [مُصالِح] او مدعیٰ عليه دواړه سره برابر دي فَصَلُحَ أَصِيلًا فِيهِ إِذَا ضَمِنَهُ لهذا په دې سلسله کې اجنبي کس د اصيل جوړېدلو صلاحيت لري [په دې شرط] کله چې هغه ضامن سي كَالْفُضُولِيِّ بِالْخُلْعِ إِذَا ضَمِنَ الْبَدَلَ لکه د خلع فضولي [اجنبي] چې کله د "بدل خلع" ضامن سي وَيَكُونُ مُتَبَرِّعًا عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ او دا [اجنبي مُصالِح] به پر مدعیٰ عليه تبرع کونکی وي كَمَا لَوْتَبَرَّعَ بِقَضَاءِ الدَّيْنِ لکه يو يو څوک چې د قرض په اداء کولو کې تبرع وکړي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ بِأَمْرِهِ په خلاف د هغه صورت کله چې صلح د مدعیٰ عليه په حکم سره سوې وي وَلَا يَكُونُ لِهَذَا الْمُصَالِحِ شَيْءٌ مِنَ الْمُدَّعَى او د دې صلح کونکي [اجنبي] لپاره به له مدعیٰ بِه څخه هيڅ څه نه وي [يعني هغه ته له مدعی بِه څخه هيڅ شی نه حاصليږي] وَإِنَّمَا ذَلِكَ لِلَّذِي فِي يَدِهِ [بلکي] هغه به د هماغه کس لپاره وي د چا په قبضه کې چې هغه موجود وي لِأَنَّ تَصْحِيحَهُ بِطَرِيقِ الْإِسْقَاطِ ځکه چې د دې صلح تصحيح د اسقاط په طريقه سره ده [يعني دا صلح صرف د اسقاط په طريقه سره صحيح ګرځي] وَلَا فَرْقَ فِي هَذَا بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ مُقِرًّا أَوْ مُنْكِرًا او په دې کې هيڅ فرق نشته چې مدعیٰ عليه اقرار کونکی وي يا انکار کونکی وي وَكَذَلِكَ إِنْ قَالَ: صَالَحْتُكَ عَلَى أَلْفِي هَذِهِ أَوْعَلَى عَبْدِي هَذَا [۲] او همدارنګه کله چې اجنبي کس [مدعي ته] ووايي: ما پر خپل دغه زر درهمو يا ما پر خپل دغه غلام ستا سره صلح وکړه [يعني ستا سره پر دې صلح کوم] صَحَّ الصُّلْحُ وَلَزِمَهُ تَسْلِيمُهُ نو صلح صحيح کيږي او پر هغه د بدل [يعني د زر درهمو يا د غلام]

ورسپارل لازمیږي لِأَنَّهُ لَمَّا أَضَافَهُ إِلَى مَالِ نَفْسِهِ ځکه کله چي هغه د صلح نسبت د خپل مال
وطرف ته وکړی فَقَدِ الْتَزَمَ تَسْلِيمَهُ نو د هغه [مال] ورسپارل يې پر ځان لازم کړه فَصَحَّ الصُّلْحُ نو
ځکه صلح صحيح کيږي وَكَذَلِكَ لَوْ قَالَ: عَلَى أَلْفٍ [۳] او همدارنګه [صلح صحيح کيږي] که
چيري صلح کونکی [اجنبي کس] ووايي: ما پر زر درهمو صلح وکړه وَسَلَّمَهَا او هغه زر درهمه
[مدعي ته] وسپاري لِأَنَّ التَّسْلِيمَ إِلَيْهِ يُوجِبُ سَلَامَةَ الْعِوَضِ لَهُ ځکه چي مدعي ته ورسپارل د هغه
لپاره د عوض سلامتي [سالم پاتېدل] لازموي [په بله وينا: ځکه چي مدعي ته ورسپارل د هغه لپاره د عوض د
سلامتيا موجب دي] فَيَتِمُّ الْعَقْدُ نو ځکه به عقد په پوره کيږي لِحُصُولِ مَقْصُودِهِ ځکه چي د مدعي
مقصد حاصل سو وَلَوْ قَالَ: صَالَحْتُكَ عَلَى أَلْفٍ [۴] او که چيري هغه [مُصالِح (اجنبي)] ووايي: ما
ستا سره پر زر درهمو صلح وکړه فَالْعَقْدُ مَوْقُوفٌ نو عقد [صلح] موقوف پاتيږي فَإِنْ أَجَازَهُ الْمُدَّعَى
عَلَيْهِ نو که چيري مدعىٰ عليه د هغه اجازت ورکړي [يعني دا عقد نافذ کړي] جَازَ وَلَزِمَهُ الْأَلْفُ نو عقد
جائز کيږي او پر هغه [مُصالِح] زر درهمه لازميږي وَإِنْ لَمْ يُجِزْهُ او که مدعىٰ عليه د هغه اجازت نه
ورکړي بَطَلَ نو عقد باطليږي لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الْعَقْدِ إِنَّمَا هُوَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ ځکه چي په دې عقد [صلح]
کي صرف مدعىٰ عليه اصل دی لِأَنَّ دَفْعَ الْخُصُومَةِ حَاصِلٌ لَهُ ځکه چي د خصومت [دعوې] دفع
صرف هغه لره حاصله ده إِلَّا أَنَّ الْفُضُولِيَّ يَصِيرُ أَصِيلًا بِوَاسِطَةِ إِضَافَةِ الضَّمَانِ إِلَى نَفْسِهِ مګر فضولي د
خپل ځان وطرف ته د ضمان په نسبت کولو سره اصيل ګرځي فَإِذَا لَمْ يُضِفْهُ لېکن کله چي هغه د
ځان وطرف ته ضمان منسوب نه کړی بَقِيَ عَاقِدًا مِنْ جِهَةِ الْمَطْلُوبِ نو هغه د مدعىٰ عليه له طرفه
صرف عاقد پاته سو فَيَتَوَقَّفُ عَلَى إِجَازَتِهِ نو ځکه به دا عقد د مدعىٰ عليه پر اجازت موقوف وي
قَالَ: وَوَجْهٌ آخَرُ وَهُوَ أَنْ يَقُولَ: صَالَحْتُكَ عَلَى هٰذِهِ الْأَلْفِ أَوْ عَلَى هٰذَا الْعَبْدِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله
فرمايي: چي اله پورتني مذکوره صورتونو څخه بغير [بل صورت دا هم دی چي مصالح [اجنبي] داسي
ووايي: ما پر دغه زر درهمو يا پر دغه غلام ستا سره صلح وکړه وَلَمْ يَنْسُبْهُ إِلَى نَفْسِهِ او مصالح هغه د
خپل ځان وطرف ته منسوب نه کړي لِأَنَّهُ لَمَّا عَيَّنَهُ لِلتَّسْلِيمِ ځکه کله چي مصالح د ورسپارلو لپاره

هغه [زر درهمه یا غلام] مُتعین کړی صَارَ شَارِطًا سَلَامَتَهُ لَهُ نو مصالح د مدعي لپاره د هغه د سلامتی شرط لګونکی سو فَيَتِمُّ بِقَوْلِهِ نو ځکه د مصالح په قول سره به صلح پوره کیږي وَلَوِ اسْتُحِقَّ الْعَبْدُ أَوْ وَجَدَ بِهِ عَيْبًا فَرَدَّهُ او که [په بدلِ صلح کي ورکول سوی] غلام د بل چا مستحق وخیږي او مدعي په هغه کي يو عيب وموندي او هغه مصالح ته واپس کړي فَلَا سَبِيلَ لَهُ عَلَى الْمُصَالِحِ نو [په دې صورت کي] مدعي لره پر مصالح هیڅ لاره [او اختيار] نسته لِأَنَّهُ الْتَزَمَ الْإِيفَاءَ مِنْ مَحَلٍّ بِعَيْنِهِ ځکه چي هغه په يو مُعین محل [غلام] سره د اداء کولو التزام کړی وو [په بله وینا: ځکه چي مُصالح د مُعین غلام ورکول پر ځان لازم کړي وه] وَلَمْ يَلْتَزِمْ شَيْئًا سِوَاهُ او له هغه څخه بغیر د بل شي التزام يې کړی نه وو فَإِنْ سَلِمَ الْمَحَلُّ لَهُ نو که هغه مُتعیّن محل [غلام] د مدعي لپاره سالم پاته سو [او د بل چا مستحق نه وختی یا عیبجن نه وموندل سو] تَمَّ الصُّلْحُ نو صلح پوره سوه وَإِنْ لَمْ يَسْلَمْ لَهُ او که د هغه لپاره سالم پاته نه سو لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهِ بِشَيْءٍ نو مدعي به پر مصالح د هیڅ شي رجوع نه سي کولای [يعني هيڅ شی نه سي ځني اخیستلای] بِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَلَى دَرَاهِمَ مُسَمَّاةٍ وَضَمِنَهَا وَدَفَعَهَا په خلاف د هغه صورت کله چي مصالح پر مُتعیّنو دراهمو صلح وکړي او د هغوی ضامن سي او مدعي ته يې ورکړي ثُمَّ اُسْتُحِقَّتْ أَوْ وَجَدَهَا زُيُوفًا بيا هغه دراهم مستحق وخیږي یا مدعي هغوی کوټه وموندي حَيْثُ يَرْجِعُ عَلَيْهِ نو [په دې صورت کي] هغه پر مصالح رجوع کولای سي لِأَنَّهُ جَعَلَ نَفْسَهُ أَصِيلًا فِي حَقِّ الضَّمَانِ ځکه چي [په دې صورت کي] مصالح د ضمان په حق کي خپل ځان اصيل وګرځوی وَلِهَذَا يُجْبَرُ عَلَى التَّسْلِيمِ او په همدې وجه هغه پر ورسپارلو [ورکولو] مجبورول کیږي فَإِذَا لَمْ يَسْلَمْ لَهُ مَا سَلَّمَهُ لهذا کله چي هغه مال [زر درهمه] د مدعي لپاره سالم پاته نه سو کوم چي مصالح هغه ته سپارلی وو [بلکي د بل چا مستحق وختی یا کوټه (زیوف) وموندل سو] يَرْجِعُ عَلَيْهِ بِبَدَلِهِ نو ځکه [اوس] به مدعي پر مصالح د هغه د بدل رجوع کوي [يعني له مصالح څخه به د هغه بدل [عوض] واپس اخلي].

**اللغات**: ﴿أوجه﴾ جمع د وجه ده، د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنی ده: صورت، شکل. ﴿تسليم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ورسپارل، ورکول، اداء کول. ﴿أجاز﴾ د افعال د باب ماضي ده: اجازت ورکول. ﴿أُسْتُحِق﴾ د استفعال د باب ماضي مجهوله ده: مستحق ختل.

مستحق ثابتېدل. ﴿إيفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: پوره اداء کول، ورکول. ﴿مُصالِح﴾ د مفاعلې د باب اسم فاعل دی: صلح کونکی. ﴿مسماة﴾ د تفعيل د باب مؤنث اسم مفعول دی: نومول سوی، مُتعين، ټاکل سوی. ﴿زيوف﴾ جمع د زَيْفٌ ده: کوټه (هغه دراهم چي څه کوټ [غش] په گډ وي).

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که ديو سړي (مدعیٰ عليه) له طرفه بل څوک صلح وکړي او مدعیٰ عليه هغه (مُصالِح) ته د صلح حکم نه وي کړی، يعني د مدعیٰ عليه له حکم څخه بغير يو اجنبي او فضولي کس د هغه له طرفه صلح وکړي، نو دا صلح پر څلورو صورتونو مشتمله ده:

(۱)... يو صورت دا دی چي دغه اجنبي کس (مُصالِح) به د مال په عوض کي صلح کړې وي او هغه به په خپله د بدل صلح د اداء کولو ضامن سوي وای (يعني د بدلِ صلح ضمان به يې په خپله ذمه اخيستی وي). نو دا صلح صحيح ده؛ ځکه چي په دې صورت کي مدعیٰ عليه بلا عوضه بري کيږي او د دې برائت په عوض کي هغه هيڅ مال نه ورکوي، لهذا د صلح د جواز لاره بالکل صفا او خلاصه ده. لکه څرنګه چي يو فضولي کس د ښځي له حکم څخه بغير د هغې د خاوند سره خلع وکړي او هغه فضولي په خپله د بدل خلع ضامن سي، نو دا خلع صحيح ده. همداسي به دا صلح هم صحيح وي، او صلح کونکی (اجنبي) متبرّع دی (يعني د مال [بدل صلح] په ورکولو کي هغه د مدعیٰ عليه سره احسان کونکی دی) مطلب دا چي په دې صورت کي مصالح (اجنبي) ته دا حق نسته چي له مدعیٰ عليه څخه هغه مال واپس واخلي کوم چي يې مدعي ته په بدل صلح کي ورکړی دی. لېکن که دا صلح د مدعیٰ عليه په حکم سره سوې وي، نو بيا هغه له مدعیٰ عليه څخه بدل صلح واپس اخيستلای سي. او مدعیٰ به (دعویٰ داره شی) يعني د کوم شي په هکله چي صلح سوې وي. هغه صرف د مدعیٰ عليه لپاره دی او مصالح (اجنبي) ته به له هغه څخه هيڅ نه ورکول کيږي؛ ځکه چي دا صلح د اسقاط په طريقه سره صحيح ګرځول سوې ده، نه د مبادله په طريقه سره. نو ځکه مصالح به تر صلح ورکولو وروسته له منځه وځي.

(۲)... دويم صورت دا دی چي مصالح مدعي ته داسي ويلي وي: "زه د خپل دغه زر درهمو (أَلْفِيْ) يا د خپل دغه غلام په عوض کي ستا سره صلح کوم"، نو په دې صورت کي هم صلح صحيح ده، لېکن پر مصالح د مصالح عليه يعني د بدل صلح اداء کول (مدعي ته ورسپارل) لازم دي؛ ځکه د أَلْفِيْ او عَبْدِيْ په ويناسره هغه د خپل ذاتي مال وطرف ته بدل صلح منسوب کړې ده او مدعیٰ عليه بلا عوضه او مفت بري کيږي. نو ځکه دا صورت هم جائز او صحيح دی.

(۳)... که مُصالِح د خپل ذاتي مال وطرف ته نسبت نه وکړي لېکن بدل صلح مدعي ته وسپاري. مثلاً هغه داسي ويلي وي: "زه ستا سره پر زرو درهمو صلح کوم". او هغه زر درهمه مدعي ته ورکړي، نو دا صلح هم صحيح ده؛ ځکه چي مدعي ته خپل مقصد يعني عوض حاصل سو.

(۴)... څلورم صورت دا دی چي مصالح نه بدل صلح د خپل ذاتي مال وطرف ته منسوب کړي او نه هغه مدعي ته وسپاري او نه يې ضامن سي بلکي هغه مطلقاً داسي ويلي وي "زه پر زر درهمو ستا سره صلح کوم". نو دا صلح د مدعیٰ عليه پر اجازت موقوف کېږي؛ ځکه چي دلته مصالح صرف متکلم او معبر دی. او څرنګه چي دا صلح د مدعیٰ عليه له حکم څخه بغير سوې ده. نو ځکه مورږ هغه وکيل هم نه سو ګرځولای. او د خصومت دفع کولو ضرورت مدعیٰ عليه لره دی. نو ځکه دا صلح به د مطلوب يعني د مدعیٰ عليه پر اجازت موقوفه وي، که چيري هغه اجازت ورکړي، نو نافذيږي به، کنې صلح به باطليږي.

(۵)... صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي له مذکوره څلورو صورتونو څخه ماسوا يو بل پنځم صورت هم سته او هغه دا دی چي مصالح مدعي ته داسي ويلي وي "زه پر دغه زر درهمو يا دغه غلام ستا سره صلح کوم" او هغه د خپل ځان وطرف ته منسوب نه کړي. نو دا صلح هم جائز او صحيح ده؛ ځکه کله چي مصالح زر درهمه يا غلام د بدل صلح لپاره مُتعيّن کړی. نو ګواکي هغه دا شرط ولګوی چي که صلح وسي نو دا زر درهمه يا دا غلام بدل صلح دی، او د بدل صلح په تعيين سره د صلح د صحت لاره صفا کيږي. نو ځکه په دې صورت کي هم صلح صحيح ده.

ولو استحق العبد إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مصالح د بدل صلح لپاره مُتعيّن سوی غلام مدعي ته صحيح سالم وسپاري. نو صلح پوره سوه. تر دې وروسته که هغه غلام مستحق وخيږي يا مدعي په هغه کي يو عيب ووينې. نو مدعي لره پر مصالح هيڅ لاره نسته يعني له مصالح څخه هيڅ شی نه اخيستلای او نه هغه ته غلام واپس کولای سي، ځکه مصالح چي کوم غلام مُتعيّن کړی وو (يعني کوم غلام چي يې پر ځان لازم کړی وو) خاص هغه غلام يې مدعي ته ورکړی دی. لهذا که دا مُتعيّن محل (غلام) د مدعي لپاره صحيح سالم پاته سو (يعني استحقاق او عيب پکښې ثابت نه سو). نو صلح پوره سوه. او که سالم پاته نه سو. نو هغه به له مصالح څخه هيڅ شی نه سي اخيستلای (لېکن د خپل دعویٰ وطرف ته به رجوع کوي يعني له ابتداء څخه به دعویٰ کوي).

د دې په خلاف که مصالح پر څه مُتعينو دراهمو صلح وکړي بيا په خپله د هغه دراهمو ضامن سي او مدعي ته يې ورکړي. تر دې وروسته هغه دراهم د بل چا مستحق وخيږي. يا مدعي هغوی کوټه ومونډي. نو په دې صورت کي مدعي ته دا اختيار سته چي له مصالح څخه نور دراهم واخلي؛ ځکه چي دلته مصالح د ضمانت په حق کي خپل ځان اصيل ګرځولی دی. همداه وجه چي هغه د بدل صلح پر ورکولو مجبورول کيږي. لهذا کله چي هغه دراهم (بدل صلح) کوم چي مصالح ورکړي وه. د مدعي لپاره سالم پاته نه سوه. نو ځکه به اوس مدعي له هغه څخه صحيح سالم دراهم (واپس) واپس اخلي.



# بَابُ الصُّلۡحِ فِي الدَّيۡنِ

(دا) باب د قرض په هکله د صلح کولو (په بیان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې د عامو شيانو په باره کي د صلح کولو بيان وو، او اوس په دغه باب کي د خاص يعني د قرض په باره کي د صلح کولو بيان دی، او دا ښکاره خبره ده چي عام له خاص څخه مخکي وي او خاص وروسته (مؤخر) وي.

**د زيات قرض په صورت کي پر کم مقدار صلح کول يا په ګـره دراهمو کي پر کم کوټه دراهمو يا په ميعادي دراهمو کي پر غير ميعادي دراهمو يا دنانيرو صلح کول (حکم او تفصيل)**

قَالَ: وَكُلُّ شَيۡءٍ وَقَعَ عَلَيۡهِ الصُّلۡحُ وَهُوَ مُسۡتَحَقٌّ بِعَقۡدِ الۡمُدَايَنَةِ فرمايي: او هر هغه شی چي پر هغه صلح واقع سي او هغه د قرض د معاملې په وجه واجب سوی وي لَمۡ يُحۡمَلۡ عَلَى الۡمُعَاوَضَةِ نو هغه به پر معاوضه نه حمل کيږي وَإِنَّمَا يُحۡمَلُ عَلَى أَنَّهُ اسۡتَوۡفَى بَعۡضَ حَقِّهِ وَأَسۡقَطَ بَاقِيَهُ بلکي هغه به پر دې حمل کيږي چي مدعي خپل څه حق واخيستی او باقي يې ساقط کړی كَمَنۡ لَهُ عَلَى آخَرَ أَلۡفُ دِرۡهَمٍ فَصَالَحَهُ عَلَى خَمۡسِمِائَةٍ لکه د يو چا چي پر بل چا زر درهمه باندي وي او هغه پر پنځه سوه درهمه صلح ور سره وکړي وَكَمَنۡ لَهُ عَلَى آخَرَ أَلۡفٌ جِيَادٌ او لکه د يو چا چي پر بل چا زر ګـره درهمه باندي وي فَصَالَحَهُ عَلَى خَمۡسِمِائَةٍ زُيُوفٍ او هغه پر پنځه سوه کوټه درهمو صلح ور سره وکړي جَازَ نو دا جائز دي وَكَأَنَّهُ أَبۡرَأَهُ عَنۡ بَعۡضِ حَقِّهِ او ګواکي هغه [قرضخواه] مقروض له خپل حق څخه بري کړی وَهَذَا لِأَنَّ تَصَرُّفَ الۡعَاقِلِ يَتَحَرَّى تَصۡحِيحَهُ مَا أَمۡكَنَ او دا [حکم] ځکه دی چي حتی الامکان به د عاقل بالغ کس د تصرف د صحيح کولو کوشش کيږي وَلَا وَجۡهَ لِتَصۡحِيحِهِ مُعَاوَضَةً او د معاوضې په توګه د هغه صحيح کولو لره هيڅ وجه نسته لِإِفۡضَائِهِ إِلَى الرِّبَا ځکه چي دا ربوا ته رسول کوي [يعني د سود سبب جوړيږي] فَجُعِلَ إِسۡقَاطًا لِلۡبَعۡضِ فِي الۡمَسۡأَلَةِ الۡأُولَى وَلِلۡبَعۡضِ وَالصِّفَةِ فِي الثَّانِيَةِ لهذا په اوله مسئله به کي هغه د بعضي حصې اسقاط ګرځول کيږي او په دويمه مسـئله کي به د بعضي حصې

او صفت [دوارو] اسقاط ګرځول کيږي وَلَوْ صَالَحَ عَلَى أَلْفٍ مُؤَجَّلَةٍ او که چيرې قرضخواه پر زر ميعادي [مياد والا] دراهمو صلح وکړي جَازَ نو هم جائز دي وَكَأَنَّهُ أَجَّلَ نَفْسَ الْحَقِّ او ګواکي هغه نفس حق مؤخر کړی [ميعادي کړی] [په بله وينا: ګواکي هغه په اصل قرض کي مهلت ورکړی] لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ جَعْلُهُ مُعَاوَضَةً ځکه چي هغه معاوضه ګرځول ممکن نه دي لِأَنَّ بَيْعَ الدَّرَاهِمِ بِمِثْلِهَا نَسِيئَةً لَا يَجُوزُ ځکه دراهم په دراهمو سره په قرض خرڅول جائز نه دي فَحَمَلْنَاهُ عَلَى التَّأْخِيرِ نو ځکه موږ هغه پر تاخير حمل کړي دي وَلَوْ صَالَحَهُ عَلَى دَنَانِيرَ إِلَى شَهْرٍ او که قرضخواه د يوې مياشتي لپاره پر دنانيرو صلح وکړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي لِأَنَّ الدَّنَانِيرَ غَيْرُ مُسْتَحَقَّةٍ بِعَقْدِ الْمُدَايَنَةِ ځکه چي [دلته] دنانير په عقد مداينه سره واجب نه دي فَلَا يُمْكِنُ حَمْلُهُ عَلَى التَّأْخِيرِ نو ځکه پر تاخير د هغه حمل کول ممکن نه دي وَلَا وَجْهَ لَهُ سِوَى الْمُعَاوَضَةِ او د هغه له معاوضه کېدلو څخه بغير بله وجه نسته [يعني له معاوضې څخه بغير هغه بل څه ګرځول ممکن نه دي] وَبَيْعُ الدَّرَاهِمِ بِالدَّنَانِيرِ نَسَأً لَا يَجُوزُ حال دا چي دراهم د دنانيرو په عوض کي په قرض سره خرڅول جائز نه دي فَلَمْ يَصِحَّ الصُّلْحُ نو ځکه به دا صلح صحيح نه وي.

**اللغات**: ﴿مداينة﴾ د مفاعلې مصدر دی: يو د بل سره په قرض معامله کول، په قرض ورکول او اخيستل. ﴿استوفى﴾ د استفعال د باب ماضي ده: پوره اخيستل، ترلاسه کول. ﴿أسقط﴾ د استفعال د باب ماضي ده: ساقطول، معافول. ﴿يتحرّى﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: طلبُ الأحرٰی (د غوره او مناسب شي طلب کول [تلاش کول])، مراد: کوشش او سعي کول، طلب کول. ﴿نسيئةً﴾ په تاخير سره، يعني په قرض سره (په پور)، همدا د نَسَأً معنیٰ ده. ﴿إفضاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: رسېدل، رسول، سبب جوړېدل. ﴿أجّل﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: وخت (مياد) ټاکل، ميعادي کول، مؤخر کول. ﴿مؤجلة﴾ ميعادي (ميادي)، نېټه داره، چي د هغه لپاره وخت (مياد) ټاکل سوی وي.

**تشريح**: د دې باب قاعدهٔ کليه دا ده چي که پر داسي شي صلح واقع سي چي هغه د عقد مداينت (مثلاً د قرضاً خرڅولو يا قرضاً ورکولو) په وجه واجب سوی وي، نو دا صلح به د بعضي حق پر اسقاط حمل کيږي، يعني دا به ويل کيږي چي مدعي خپل څه حق ساقط (معاف) کړی او نور حق يې

واخيستی، او داسي صلح به پر معاوضه نه حمل کيږي. د دې لپاره چي په عوضينو کي د کمي و زياتوب (کمي بيشي) په سبب سود لازم نه سي.

مثلاً که پر نعمان د ادريس زر درهمه قرض باندي وي او بيا ادريس پر پنځه سوه درهمه صلح ور سره وکړي يا د ادريس پر نعمان زر کَرَه درهمه باندي وي او هغه پر پنځه سوه کوټه درهمو صلح وکړي يا د هغه پر نعمان زر درهمه غير ميعادي باندي وي (يعني ادريس د هغه د اداء کولو لپاره ميادنه وي ټاکلی چي په دومره وخت کي به ته! ما ته قرض را کوې!) او بيا ادريس پر زر ميعادي درهمو صلح وکړي؛ نو په دې ټولو صورتونو کي صلح جائز او صحيح ده؛ وجه دا ده چي د عاقل بالغ کس تصرف حتى الامکان صحيح ګرځول ضروري دي. او دلته د معاوضې په توګه هغه صحيح ګرځول ممکن نه دي؛ ځکه چي سود لازميږي. نو هغه به اسقاط (معافي) ګرځول کيږي. يعني ګواکي په اول صورت کي ادريس (قرضخواه) خپل بعضې حق يعني پنځه سوه درهمه ساقط (معاف) کړل. او ګواکي په دويم صورت کي يې پنځه سوه درهمه هم معاف کړل او د کَرَه والي صفت (جودت) يې هم معاف کړی. او ګواکي په دويم صورت کي يې في الفور واجبېدل معاف کړل. يعني نفس حق يې مؤخر کړی. او که چيري دا صلح اسقاط (معافول) نه وګرځول سي. نو د خپل مثل په عوض کي به د دراهمو خرڅول لازم سي، کوم چي جائز نه دي.

ولوصالحه على دنانير إلخ: د دې حاصل دا دی چي که پر نعمان مثلاً د ادريس زر درهمه غير ميعادي باندي وي او بيا ادريس پر سل ميعادي دنانيرو صلح ور سره وکړي (مثلا ادريس يو مياشته مياد وټاکي او نعمان ته ووايي چي ته به ما ته خامخا په يوه مياشت کي هغه دنانير [بدل صلح] را کوې). نو دا صلح جائز نه ده، ځکه چي دا دنانير د عقد مداينه په وجه واجب نه دي. په بله وينا دا چي د ادريس پر نعمان دراهم باندي دي، نه دنانير. لهذا په دې صورت کي تاجيل (مياد ټاکل) د حق پر تاخير نه سي حمل کېدای. نو ځکه پر معاوضه به حمل کيږي. او کله چي دا صلح معاوضه سوه. نو دا بيع صَرف وګرځېده (يعني دا داسي سوه لکه نقود (نغد مال) د نقودو په عوض کي خرڅول). او په بيع صَرف کي دراهم د دنانيرو په عوض کي په قرض سره خرڅول جائز نه دي.

## د پورتنۍ مسئلې نور صورتونه

قَالَ: وَلَوْكَانَتْ لَهُ أَلْفٌ مُؤَجَّلَةٌ فرمايي او که د يو چا [پر بل چا] زر درهمه ميعادي قرض وي فَصَالَحَهُ عَلىٰ خَمْسِمِائَةٍ حَالَّةً بيا هغه د مقروض سره پر پنځه سوه غير ميعادي درهمو صلح وکړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي لِأَنَّ الْمُعَجَّلَ خَيْرٌ مِنَ الْمُؤَجَّلِ ځکه چي معجل [نغدا] له ميعادي څخه غوره دي [په بله

وينا: ځکه چي نقد (نغد) له قرض څخه غوره دی| وَهُوَ غَيْرُ مُسْتَحَقٍّ بِالْعَقْدِ او دا معجل [نقد] دراهم په عقد [عقدِ مداينه] سره واجب نه دي [ځکه دلته خو په عقد سره مؤجل (ميعادي) دراهم واجب دي] فَيَكُونُ بِإِزَاءِ مَا حَطَّهُ عَنْهُ نو ځکه دا به د هغه دراهمو په مقابله کي وي کوم چي ده کم کړي دي [په بله وينا: نو معجل اخيستل به د کم کړده دراهمو په مقابله کي وي] وَذٰلِكَ اعْتِيَاضٌ عَنِ الْأَجَلِ حالانکي دا د ميعاد [په هکله] عوض اخيستل دي وَهُوَ حَرَامٌ او د ميعاد عوض اخيستل حرام دي وَإِنْ كَانَ لَهُ أَلْفٌ سُوْدٌ او که د يو چا [پر بل چا] زر تور درهمه وي فَصَالَحَهُ عَلٰى خَمْسِ مِائَةٍ بِيْضٍ او هغه د مقروض سره پر پنځه سوه سپينو درهمو صلح وکړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي لِأَنَّ الْبِيضَ غَيْرُ مُسْتَحَقَّةٍ بِعَقْدِ الْمُدَايَنَةِ ځکه چي په عقد مداينه سره سپين دراهم واجب نه دي وَهِيَ زَائِدَةٌ وَصْفًا او دا زائد وصف دی [په بله وينا: او هغه (بيض) د وصف زياتوب دی] فَيَكُونُ مُعَاوَضَةُ الْأَلْفِ بِخَمْسِ مِائَةٍ وَزِيَادَةِ وَصْفٍ نو ځکه دا به د پنځه سوه درهمو سره د زرو درهمو معاوضه او د وصف زياتوب وي وَهُوَ رِبَوا او دا سود دي بِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَنِ الْأَلْفِ الْبِيْضِ عَلٰى خَمْسِ مِائَةٍ سُوْدٍ په خلاف د هغه صورت کله چي قرضخواه د زر سپينو درهمو په هکله پر پنځه سوه تورو درهمو صلح وکړي [نو دا جائز دي] لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ بَعْضِ حَقِّهِ قَدْرًا وَوَصْفًا ځکه چي دا د قدر او وصف په توګه د څه حصې ساقطول دي وَبِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَلٰى قَدْرِ الدَّيْنِ وَهُوَ أَجْوَدُ او په خلاف د هغه صورت کله چي هغه د قرض پر مقدار صلح وکړي [مثلا قرض زر درهمه وي او صلح هم پر زر درهمو وکړي] حال دا چي د صلح مقدار زيات کره وي [يعني قرضخواه د دې مقدار د کَره کېدلو شرط ولګوي] لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةُ الْمِثْلِ بِالْمِثْلِ ځکه چي دا د مثل معاوضه د مثل سره ده [يعني دواړو طرفونو ته برابر او مساوي دراهم دي. کمي وزياتوب پکښي نسته] وَلَا مُعْتَبَرَ بِالصِّفَةِ او صفت لره اعتبار نسته إِلَّا أَنَّهُ يُشْتَرَطُ الْقَبْضُ فِي الْمَجْلِسِ لېکن په مجلس کي [دننه] قبضه کول شرط دي وَلَوْ كَانَ عَلَيْهِ أَلْفُ دِرْهَمٍ وَمِائَةُ دِينَارٍ او که پر مقروض زر درهمه او سل ديناره باندي وي فَصَالَحَهُ عَلٰى مِائَةِ دِرْهَمٍ حَالَّةٍ أَوْ إِلٰى شَهْرٍ او قرضخواه پر سل حالي [نغد] درهمو يا د يوې مياشتي تر ميعاده [ميادا] پوري صلح ور سره وکړي صَحَّ الصُّلْحُ نو دا صلح صحيح ده لِأَنَّهُ أَمْكَنَ أَنْ يُجْعَلَ إِسْقَاطًا لِلدَّنَانِيرِ

كُلِّهَا وَالدَّرَاهِمِ إِلَّا مِائَةً وَتَأْجِيلًا لِلْبَاقِي ځکه دا ممکنه ده چې دا صلح د ټولو دنانیرو لپاره او له سلو درهمو څخه بغیر د نور دراهمو لپاره اسقاط [معافول] وګرځول سي او د باقي [سل درهمو] لپاره تاجیل [میعاد ټاکل] وګرځول سي فَلَا يُجْعَلُ مُعَاوَضَةً تَصْحِيحًا لِلْعَقْدِ نو ځکه د عقد صحیح ګرځولو لپاره به دا معاوضه نه ګرځول کیږي أَوْ لِأَنَّ مَعْنَى الْإِسْقَاطِ فِيهِ أَلْزَمُ او ځکه چې په دې صلح کې د اسقاط معنیٰ زیاته لازم ده [یعني د دې صلح سره د ساقطولو او معافولو معنیٰ زیاته لګیږي].

**اللغات**: ﴿مؤجلة﴾ د تفعیل د باب مؤنث اسم مفعول دی: میعادي، چې د هغه لپاره میعاد (میاد) ټاکل سوی وي، ﴿معجّل﴾ د تفعیل د باب مذکر اسم مفعول دی: د مؤجل ضد دی، نغد، غیر میعادي، چې د هغه لپاره میعاد نه وي ټاکل سوی بلکي في الحاله اداء کړی سي، ﴿بإزاء﴾ بالمقابل، په مقابله کې، برابر، ﴿حطّ﴾ د نصر د باب ماضي ده، حَطَّ يَحُطُّ حَطًّا: ساقطول، کمول، ﴿اعتیاض﴾ د افتعال د باب مصدر دی: د یو شي عوض اخیستل (د یو شي په بدله کي بل څه اخیستل)، ﴿أجل﴾ میعاد، ټاکل سوی مودت، ﴿سُوْد﴾ جمع د أَسْوَد ده، تور، أَلْفٌ سُوْد: زر بد او خراب دراهم، کمزوري دراهم، ﴿بِيْض﴾ جمع د أَبْيَض ده: سپین، غوره او سپېڅلي دراهم.

**تشریح**: په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که پر نعمان د ادریس زر درهمه باندي وي او دا زر درهمه میعادي وي، لېکن ادریس د نعمان سره پر پنځه سوه نغد (غیر میعادي) دراهمو صلح وکړي او باقي قرض (پنځه سوه درهمه) ساقط کړي، نو دا صلح صحیح نه ده؛ ځکه چې نغد مال له میعادي قرض څخه غوره دی، او څرنګه چې د عقد مداینت په وجه نغد دراهم واجب نه دي (بلکي هغه میعادي دراهم دي)، نو ځکه اوس پر نغدو صلح کول په حقیقت کي د میعاد (اجل) عوض اخیستل دي، حال دا چې د میعاد عوض اخیستل حرام او ناجائز دی، نو ځکه دا صورت صحیح نه دی.

(۲)... که د ادریس پر نعمان زر تور درهمه باندي وي او هغه د نعمان (مقروض) سره پر پنځه سوه سپینو اصلي دراهمو صلح وکړي، نو دا صلح هم جائز نه ده؛ ځکه چې په عقد سره تور دراهم واجبُ الاداء دي (یعني ادریس تور دراهم په قرض اخیستي وه)، اوس د هغه پر ځای پنځه سوه سپین دراهم اخیستل په دې وجه صحیح نه دي چې دلته سُود (ربوا) لازمیږي، ځکه دراهم به د دراهمو په مقابله کي راسي لېکن سپینوالی کوم چې وصف دی هغه به سُود وګرځي. د دې په خلاف که قرض زر درهمه سپین وي او صلح پر پنځه سوه تورو درهمو وسي، نو دا صلح صحیح ده؛ ځکه چې په دې

صورت کي د قرضخواه حق غوره دی، او هغه د خراب مال په اخيستلو سره د خپل حق په ساقطولو راضي سوی دی، نو ځکه دا د هغه له طرفه حط او معافي سوه، او د معافی په جواز کي هيڅ شبهه نسته.

همدارنګه که د قرض پر مقدار صلح وسي، مثلاً قرض زر درهمه وي او صلح هم پر زر درهمو وسي، لېکن قرضخواه پر مقروض دا شرط ولګوي چي ته به ما ته د قرض له دراهمو څخه هم غوره او کَرَه دراهم راکوې، نو دا صلح هم جائز ده، ځکه چي دلته په ورکول سوي او اخيستل سوي دواړو دراهمو کي کمي وزياتوب نسته (بلکي په مثل سره د مثل معاوضه سوې ده)، ها! په اخيستل سوي دراهمو کي د وصف جودة څه اضافه سوې ده، او دا اضافه د صلح د صحت لپاره مانع نه ده. لېکن په دې صورت کي د عقد په مجلس کي دننه قبضه کول شرط دي، د دې لپاره چي وروسته نزاع او اختلاف پېښ نه سي.

(۳)... که د ادريس پر نعمان زر درهمه او سل ديناره باندي وي، بيا قرضخواه يعني ادريس د مقروض (نعمان) سره پر سل نغدو درهمو صلح وکړي يا د يوې مياشتي د ميعاد (مياد) پر سل درهمو صلح ور سره وکړي، نو دا صلح صحيح ده؛ ځکه چي دا صورت د اسقاط (معافولو) په معنیٰ سره ګرځول ممکن دي؛ په دې توګه (يعني داسي به ويل کيږي) چي دلته قرضخواه دنانير ټوله ساقط (معاف) کړل او له سلو درهمو څخه بغير نور دراهم يې هم ټوله ساقط کړل، بيا يې د سلو درهمو لپاره ميعاد وټاکی، نو ځکه د صحيح ګرځولو لپاره به دا صلح د معاوضې په معنیٰ سره نه اخيستل کيږي، بلکي د اسقاط په معنیٰ سره به ګرځول کيږي. او په دې وجه هم چي په دې صلح کي د ساقطولو او معافولو معنیٰ سته، او دا معنیٰ په مذکوره طريقه کي زياته موجوده ده.

## د قرض په صورت کي مؤقت او مشروط صلح کول

قَالَ: وَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ أَلْفُ دِرْهَمٍ فرمايي: او که د يو چا پر بل چا زر درهمه باندي وي فَقَالَ: أَدِّ إِلَيَّ غَدًا مِنْهَا خَمْسَ مِائَةٍ عَلَى أَنَّكَ بَرِيءٌ مِنَ الْفَضْلِ او هغه [مقروض ته] ووايي: ته له هغه زر درهمو څخه ما ته سبا پنځه سوه درهمه راکړه پر دې شرط چي له باقي درهمو څخه ته بري يې! فَفَعَلَ او مقروض همداسي وکړي [يعني په سبا ورځ پنځه سوه درهمه ورکړي] فَهُوَ بَرِيءٌ نو هغه اله باقي درهمو څخه] بري ګرځي فَإِنْ لَمْ يَدْفَعْ إِلَيْهِ خَمْسَ مِائَةٍ غَدًا لېکن که هغه په سبا ورځ پنځه سوه درهمه نه ورکړي عَادَ عَلَيْهِ الْأَلْفُ نو پر هغه زر درهمه بيرته راګرځي وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا د طرفينو

رَحِمَهُمَا الله قول دی وَقَالَ أَبُويُوسُفَ ❁: لَا يَعُودُ عَلَيْهِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر هغه زر درهمه بيرته نه راګرځي لِأَنَّهُ إِبْرَاءٌ مُطْلَقٌ ځکه چي دا مطلق بري کول دي أَلَا تَرٰى أَنَّهُ جَعَلَ أَدَاءَ خَمْسَ مِائَةٍ عِوَضًا آيا ته نه ګورې! چي قرضخواه د پنځه سوه درهمو اداء کول عوض ګرځولي دي حَيْثُ ذَكَرَهُ بِكَلِمَةِ عَلٰى ځکه چي قرضخواه هغه د "عَلٰی" په کلمه سره بيان کړي دي وَهِيَ لِلْمُعَاوَضَةِ او "عَلٰی" د معاوضې لپاره [مستعمل] ده وَالْأَدَاءُ لَا يَصْلُحُ عِوَضًا حالانکي اداء د عوض صلاحيت نه لري [په بله وينا: اداء کول عوض نه سي ګرځېدای] لِكَوْنِهِ مُسْتَحَقًّا عَلَيْهِ ځکه چي اداء پر مقروض واجب ده [يعني پر مقروض د هغه قرض اداء کول واجب دي] فَجَرٰى وُجُودُهُ مَجْرٰى عَدَمِهِ لهذا د اداء وجود د عدم وجود په درجه کي سو فَبَقِيَ الْإِبْرَاءُ مُطْلَقًا او ابراء مطلق پاته سوه فَلَا يَعُودُ نو ځکه پر مقروض به زر درهمه [قرض] بيرته نه راګرځي كَمَا إِذَا بَدَأَ بِالْإِبْرَاءِ لکه [په هغه صورت کي] کله چي قرضخواه په ابراء سره شروع وکړي [يعني اول د ابراء جمله اداء کړي] وَلَهُمَا: أَنَّ هٰذَا إِبْرَاءٌ مُقَيَّدٌ بِالشَّرْطِ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي دا ابراء په شرط سره مقيده ده فَيَفُوتُ بِفَوَاتِهِ نو ځکه د شرط په فوتېدلو سره به ابراء هم فوتيږي لِأَنَّهُ بَدَأَ بِأَدَاءِ خَمْسِ مِائَةٍ فِي الْغَدِ ځکه چي قرضخواه په غد [سبا] کي د پنځه سوه په اداء کولو سره شروع کړې ده [يعني هغه اول "اداء خمس مائة في الغد" ذکر کړي دي] وَأَنَّهُ يَصْلُحُ غَرَضًا حِذَارَ إِفْلَاسِهِ أَوْ تَوَسُّلًا إِلٰى تِجَارَةٍ أَرْبَحَ مِنْهُ او دا [جمله] غرض صحيح کېدای سي د هغه له افلاسه په ځان ساتلو سره يا تر دې د زيات نفع مند تجارت په وسيله جوړولو سره [په بله وينا: او دا په دې غرض سره صحيح کېدای سي چي قرضخواه د مقروض د مفلس والي په خيال کولو سره هغه له نور محتاجي او بد حالۍ څخه ساتي يا د داسي تجارت قصد کوي چي دئ د هغه په ذريعه زياته نفعه حاصله کړي] وَكَلِمَةُ عَلٰى إِنْ كَانَتْ لِلْمُعَاوَضَةِ فَهِيَ مُحْتَمِلَةٌ لِلشَّرْطِ او کلمه د "عَلٰی" که څه هم د معاوضې لپاره ده خو بيا هم شرط لره محتمله ده [يعني "علیٰ" چي څرنګه د معاوضې لپاره راځي همداسي په هغه کي د شرط احتمال هم ستء] لِوُجُودِ مَعْنَى الْمُقَابَلَةِ فِيهِ ځکه چي په هغه کي د مقابلې معنیٰ موجوده ده فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الخانية (ج:۳، ص:۱۸۵)، وكذا في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۴۳۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۰۵]

تَعَذُّرِ الْحَمْلِ عَلَى الْمُعَاوَضَةِ نو ځکه پر معاوضې د حمل کولو د ناممکن والي په صورت کې به هغه پر شرط حمل کیږي تَصْحِيحًا لِتَصَرُّفِهِ د دې لپاره چې د قرضخواه تصرف صحیح وګرځول سي أَوْ لِأَنَّهُ مُتَعَارَفٌ یا په دې وجه [به پر شرط حمل کیږي] چې همدا په عرف کې عادت دی وَالْإِبْرَاءُ مِمَّا يَتَقَيَّدُ بِالشَّرْطِ وَإِنْ كَانَ لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ او ابراء له هغه شیانو څخه ده کوم چې په شرط سره مقید کیږي که څه هم هغه د شرط سره نه متعلق کیږي كَالْحَوَالَةِ لکه څرنګه چې حواله [هم داسي ده] وَسَنُخَرِّجُ الْبِدَايَةَ بِالْإِبْرَاءِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او په ابراء سره د شروع کولو تخریج [او تفصیل] به موږ انشاء الله ژر بیان کړو. [یعني امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله چې کوم دا قیاس او مثال پېش کړی دی "کما إذا بدأ بالإبراء"، د دې جواب به موږ څه وروسته ذکر کړو].

**اللغات**: ﴿أَدِّ﴾ د تفعیله له بابه د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده: اداء کول، ﴿غد﴾ سبا، سبا ورځ، ﴿فضل﴾ باقي مانده، بقیه، اضافي مقدار ﴿حذار﴾ په معنیٰ سره د حَذَرًا ده: بیرېدل، احتراز کول (ځان ساتل، ځان ژغورل)، احتیاط کول، ﴿إفلاس﴾ دافعال د باب مصدر دی: مفلس کېدل، غربت، تنګلاسي، ﴿أربح﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: زیات نفع مند (زیات ګټمن)، ﴿متعارف﴾ د تفاعل د باب اسم مفعول دی: په عرف کې پېژندل سوی، په عرف کې رواج او عادت.

**تشریح: صورت د مسئلې**: که د ادریس پر نعمان زر درهمه قرض باندي وي بیا قرضخواه یعني ادریس مقروض (نعمان) ته ووایي "که چیري ته زما له قرض څخه سبا ما ته صرف پنځه سوه درهم راکړې!، نو له بقیه پنځه سوه درهمو څخه ته بري یې!"، نو اوس که مقروض همداسي وکړي او قرضخواه ته په سبا ورځ پنځه سوه درهمه ورکړي، نو هغه له بقیه پنځه سوه درهمو څخه بري کیږي، لېکن که مقروض په سبا ورځ (غد) کې هغه ته پنځه سوه نه ورکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز پر هغه د مخکې په څېر زر درهمه قرض باقي پاتیږي، لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز که مقروض پنځه سوه ورکړي، که نه، په هر صورت کې د هغه له غاړي څخه پنځه سوه درهمه ساقطیږي.

**د امام ابو یوسف دلیل**: دا دی چې په دې مسئله کې قرضخواه د "أَدِّ إِلَيَّ مِنْهَا خَمْسَ مِائَةٍ عَلَى أَنَّكَ بَرِيءٌ مِنَ الْفَضْلِ" په وینا سره د مطلق ابراء معامله کړې ده او د "خمس مائة" اداء کول یې د ابراء عوض ګرځولي دي (یعني هغه مقروض ته ویلي دي چې ته زه تا د پنځه سوه درهمو د اداء کولو په عوض کې بري

کوم)، حال دا چې دا اداء کول د ابراء عوض نه سي کېدای؛ ځکه چې دا خو بغیر له ابراء هم پر هغه واجب دي، لهذا اوس د قرضخواه له طرفه د اداء وجود او عدم وجود دواړه سره برابر دي او ابراء مطلق ده، نو ځکه په "غَد" کي د "خمس مائة" له اداء کولو څخه بغیر به هم د هغه له طرفه ابراء ثابتیږي او مقروض به له "خمس مائة" قرض څخه بري کیږي.

کما إذا بدأ بالإبراء إلخ: امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د خپل دلیل په تائید کي یو مثال پېش کړی دی او هغه دا چې که قرضخواه اول د ابراء جمله اداء کړي یعني هغه اول داسي ووایي "أَبْرَأْتُكَ عَنْ خَمْسِ مِائَةٍ مِنْ أَلْفٍ لِيْ عَلَيْكَ" او بیا ووایي "عَلَىٰ أَنْ تُؤَدِّيَ إِلَيَّ غَدًا خَمْسَ مِائَةٍ"، نو په دې صورت کي بالاتفاق مقروض له "خمس مائة" (پنځه سوه درهمو) څخه بري کیږي، برابره ده هغه په سبا ورځ کي پنځه سوه اداء کړي، که نه، همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم مقروض له پنځه سوو څخه بري کیږي.

**د طرفینو دلیل:** دا دی چې په پورتنۍ مسئله کي "ابراء" مطلق نه ده بلکي په "غَد" کي د "خَمْس مِائَة" د اداء کولو په شرط سره مقیده ده، لهذا که شرط موجود سي، نو ابراء به ثابتیږي، او که شرط موجود نه سي، نو ابراء به هم نه ثابتیږي؛ د دې دلیل دا دی چې قرضخواه (ادریس) په "غَد" کي اول کار د "خمس مائة" اداء کول ښوولی دی او د هغه پر اداء کولو یې ابراء موقوف کړې ده، لهذا که اداء کول موجود سي، نو ابراء به موجودیږي، کنې هغه به معدومه ګرځي. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دا خبره چې اداء عوض نه سي ګرځېدای، صحیح نه ده، ځکه چې دلته اداء کول په دې حواله سره عوض ګرځېدای سي چې قرضخواه د مقروض د مفلسي او محتاجي په خیال کولو سره له هغه څخه پنځه سوه درهمه واخلي او بقیه دراهم معاف کړي او یا دا فکر او قصد وکړي چې زه به په همدې پنځه سوه درهمو سره نوره نفع او ګټه کوم چې په دې سره به زما خساره په نفعي سره بدله سي، او کلمه د "عَلىٰ" چې څرنګه د عوض لپاره ده همداسي د شرط والي احتمال هم پکښې سته؛ ځکه چې په هغه کي هم د شرط او جزاء په څېر د مقابلې معنیٰ موجوده ده، او څرنګه د عاقل بالغ د کلام او تصرف د صحیح ګرځولو لپاره دلته "علیٰ" د معاوضې پر معنیٰ حمل کول ناممکن دي، نو ځکه به هغه د شرط پر معنیٰ حمل کیږي، یا په دې وجه به دلته هغه د شرط پر معنیٰ حمل کیږي چې د "علیٰ" همدا معنیٰ متعارفه ده، یعني په عرف کي پر داسي د شرط معنیٰ مرادول کیږي، او لفظ پر خپل متعارفه معنیٰ حمل کول اولیٰ او غوره دي.

والابراء ممايتقيد الخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي ابراء پر شرط معلق کول باطل دي، او تعليق او تقييد دواړه يو شي دي، لهذا کله چي دابراء تعليق باطل دی نو د ابراء تقييد (مقيد کول) هم باطلېدل پکار دي؟ حالانکي دلته تاسو ابراء مقيد کړې ده؟.

دې جواب دا دی چي په تقييد او تعليق کي فرق دی او تعليق که څه هم باطل دی لېکن تقييد باطل نه دی، په تعليق بالشرط او تقييد بالشرط کي فرق دا دی چي د تقييد په صورت کي برائت موجوديږي حالانکي د تعليق بالشرط په صورت کي برائت نه موجوديږي او صرف د شرط له وجود څخه وروسته ښکاره کيږي، نو ځکه ابراء په شرط سره مقيد کول صحيح دي لکه څرنګه چي حواله هم په شرط سره مقيد کول صحيح دي او که چيري محتال عليه د مفلس والي په حالت کي مړ سي نو حواله ختميږي او قرض بيا د محيل پر غاړه راګرځي، همداسي دلته که په "غد" (سبا ورځ) کي مقروض "خمس مائة" اداء کړي، نو بيا خو به هغه له بقيه دراهمو څخه بري کيږي، کنې نه به بري کيږي.

## د پورتنۍ مسئلې نور صورتونه

قَالَ: وَهٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى وُجُوهٍ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: او دا مسئله پر څو صورتونو [مشتمله] ده أَحَدُهَا مَا ذَكَرْنَاهُ يو صورت هغه دی کوم چي موږ ذکر کړی وَالثَّانِي إِذَا قَالَ: صَالَحْتُكَ مِنَ الْأَلْفِ عَلٰى خَمْسِ مِائَةٍ تَدْفَعُهَا إِلَى غَدًا وَأَنْتَ بَرِيءٌ مِنَ الْفَضْلِ عَلٰى أَنَّكَ إِنْ لَمْ تَدْفَعْهَا إِلَى غَدًا فَالْأَلْفُ عَلَيْكَ عَلٰى حَالِهِ دويم صورت دا دی چي کله قرضخواه داسي ووايي: ما د زر درهمو په عوض کي په دې شرط ستا سره صلح وکړه چي ته به ما ته هغه پنځه سوه درهمه سبا راکوې! او [بيا] ته له بقيه دراهمو څخه بري يې! لېکن که ته سبا ما ته پنځه سوه درهمه نه راکړې نو د مخکني حالت په څېر [زما] پر تا زر درهمه باقي پاته دي وَجَوَابُهُ أَنَّ الْأَمْرَ عَلٰى مَا قَالَ او د دې حکم دا دی چي په دې صورت کي به معامله همداسي وي لکه څرنګه چي قرضخواه ويلي دي [يعني په دې صورت کي به د قرضخواه (متکلم) د قول مطابق فيصله کيږي] لِأَنَّهُ أَتٰى بِصَرِيحِ التَّقْيِيدِ ځکه چي هغه صراحتاً برائت معلق کړی دی فَيُعْمَلُ بِهِ نو ځکه پر هغه به عمل کيږي وَالثَّالِثُ إِذَا قَالَ: أَبْرَأْتُكَ مِنْ خَمْسِ مِائَةٍ مِنَ الْأَلْفِ عَلٰى أَنْ تُعْطِيَنِي خَمْسَ مِائَةٍ غَدًا او درېيم صورت دا دی چي کله قرضخواه داسي ووايي: ما په زرو درهمو کي ته له پنځه سوه درهمو څخه بري کړې پر دې شرط چي ته به ما

ته سبا پنځه سوه راکوې! فَالْإِبْرَاءُ فِيهِ وَاقِعٌ نو په دې صورت کې ابراء واقع کيږي أَعْطَى خَمْسَ مِائَةٍ أَوْ لَمْ يُعْطِ برابره ده مقروض پنځه سوه ورکړي او که يې نه ورکړي لِأَنَّهُ أَطْلَقَ الْإِبْرَاءَ أَوَّلًا ځکه چې هغه اول ابراء مطلق کړې ده وَأَدَاءُ خَمْسِ مِائَةٍ لَا يَصْلُحُ عِوَضًا مُطْلَقًا او د پنځه سوو اداء کول د مطلق عوض جوړيدلو صلاحيت نه لري وَلٰكِنَّهُ يَصْلُحُ شَرْطًا ليکن هغه د شرط جوړيدلو صلاحيت لري [يعني شرط جوړيدای سي] فَوَقَعَ الشَّكُّ فِي تَقْيِيدِهِ بِالشَّرْطِ نو د هغه په مقيد بالشرط کيدلو کې شک واقع سو فَلَا يَتَقَيَّدُ بِهِ نو ځکه دا صورت به په شرط سره نه مقيد کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا بَدَأَ بِأَدَاءِ خَمْسِ مِائَةٍ په خلاف د هغه صورت کله چې قرضخواه د "خمس مائة" په اداء سره شروع وکړي [يعني اول د "اداء کولو" خبره وکړي] لِأَنَّ الْإِبْرَاءَ حَصَلَ مَقْرُونًا بِهِ ځکه چې د دې اداء سره ابراء متصل سوه فَمِنْ حَيْثُ أَنَّهُ لَا يَصْلُحُ عِوَضًا يَقَعُ مُطْلَقًا نو په دې اعتبار سره چې ابراء مطلق عوض نه سي جوړيدای هغه مطلق ابراء ګرځي وَمِنْ حَيْثُ أَنَّهُ يَصْلُحُ شَرْطًا لَا يَقَعُ مُطْلَقًا او په دې اعتبار سره چې ابراء شرط جوړيدای سي هغه مطلق ابراء نه ګرځي فَلَا يَثْبُتُ الْإِطْلَاقُ بِالشَّكِّ نو د شک په وجه. به اطلاق [مطلق والي] نه ثابتيږي فَافْتَرَقَا لهذا دواړه صوتونه سره جلا سول [يعني په دواړو کې فرق ثابت سو] وَالرَّابِعُ إِذَا قَالَ: أَدِّ إِلَيَّ خَمْسَ مِائَةٍ عَلَى أَنَّكَ بَرِيءٌ مِنَ الْفَضْلِ او څلورم صورت دا دی چې قرضخواه داسې ووايي: ته ما ته پنځه سوه درهمه راکړه! پر دې شرط چې ته له بقيه درهمو څخه بري يې وَلَمْ يُؤَقِّتْ لِلْأَدَاءِ وَقْتًا او هغه د اداء کولو هيڅ وخت بيان نه کړي وَجَوَابُهُ أَنَّهُ يَصِحُّ الْإِبْرَاءُ وَلَا يَعُودُ الدَّيْنُ او د دې حکم دا دی چې ابراء صحيح کيږي او قرض [پر مقروض] واپس نه راګرځي لِأَنَّ هٰذَا إِبْرَاءٌ مُطْلَقٌ ځکه چې دا مطلق ابراء ده لِأَنَّهُ لَمَّا لَمْ يُؤَقِّتْ لِلْأَدَاءِ وَقْتًا ځکه کله چې قرضخواه د اداء کولو لپاره هيڅ وخت بيان نه کړي لَا يَكُونُ الْأَدَاءُ غَرَضًا صَحِيحًا نو اداء کول به صحيح غرض نه وي لِأَنَّهُ وَاجِبٌ عَلَيْهِ فِي مُطْلَقِ الْأَزْمَانِ ځکه په مطلق زمانه کې اداء کول خو پر هغه واجب دي فَلَمْ يَتَقَيَّدْ بَلْ يُحْمَلُ عَلَى الْمُعَاوَضَةِ نو ځکه ابراء مقيد نه سوه بلکې پر معاوضه به حمل کيږي وَلَا يَصْلُحُ عِوَضًا حال دا چې ابراء د عوض جوړيدلو صلاحيت نه لري بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه

صورت کوم چي مخکي تېر سو لِأَنَّ الْأَدَاءَ فِي الْغَدِ غَرَضٌ صَحِيحٌ ځکه چي په "غد" اسبا ورځ ا کي اداء کول صحيح غرض دی وَالْخَامِسُ إِذَا قَالَ: إِنْ أَدَّيْتَ إِلَيَّ خَمْسَ مِائَةٍ أَوْ قَالَ: إِذَا أَدَّيْتَ أَوْ مَتَى أَدَّيْتَ او پنځم صورت دا دی چي کله قرضخواه داسي ووايي: که چيري ته ما ته پنځه سوه درهمه اداء کړې! يا داسي ووايي: کله چي ته [هغه] اداء کړې! يا څه وخت چي ته [هغه] اداء کړې! فَالْجَوَابُ فِيهِ أَنَّهُ لَا يَصِحُّ الْإِبْرَاءُ نو په دې صورت کي حکم دا دی چي ابراء نه صحيح کيږي لِأَنَّهُ عَلَّقَهُ بِالشَّرْطِ صَرِيحًا ځکه چي قرضخواه هغه پر صريح شرط معلق کړې ده وَتَعْلِيقُ الْبَرَاءَاتِ بِالشُّرُوطِ بَاطِلٌ حال دا چي برائت پر شرطونو معلق کول باطل دي لِمَا فِيهَا مِنْ مَعْنَى التَّمْلِيكِ ځکه چي په دې کي د تمليک معنیٰ سته حَتَّى تَرْتَدَّ بِالرَّدِّ همدا وجه ده چي برائت په ردولو سره رد کيږي بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه صورت کوم چي مخکي تير سو لِأَنَّهُ مَا أَتَى بِصَرِيحِ الشَّرْطِ ځکه چي اهلته ا هغه صريح شرط نه دی راوړی [يعني هلته قرضخواه صراحتاً د شرط جمله نه ده ذکر کړې] فَحُمِلَ عَلَى التَّقْيِيدِ بِهِ نو ځکه هغه پر تقييد بالشرط حمل کړی سوه [په بله وينا: نو ځکه هغه ابراء به په شرط سره پر مقيد کېدلو حمل کيږي].

**اللغات**: ﴿مقرون﴾ د نصر د باب اسم مفعول دی: متصل، ور سره يوځای سوی. ﴿لم يُوقت﴾ د تفعيل له بابه د جحد صيغه ده: وخت ټاکل، وخت بيانول. ﴿ترتد﴾ د افتعال د باب مضارع ده: ردېدل (رد کېدل).

**تشريح**: دا عبارت د مخکني مسئلې سره مربوط دی او د ابراء او اسقاط د مقيد کولو او نه مقيد کولو تر پنځه صورتونه چي له هغوی څخه يو صورت هماغه دی کوم چي په تېر عبارت کي بيان سو چي په هغه کي د امام ابو يوسف او طرفينو رَحِمَهُمَا الله اختلاف وو. (۲).... دويم صورت دا دی چي قرضخواه د خپل زرو درهمو په هکله د مقروض سره پر دې شرط پر پنځه سوه درهمو صلح وکړي چي "که ته هغه (پنځه سوه) ما ته سبا راکړې، نو له بقيه دراهمو څخه ته بري يې! او که هغه سبا را نه کړې، نو ټوله زر درهمه پر تا واجب پاتيږي". د دې صورت حکم دا دی چي د قرضخواه د قول مطابق به معامله او فيصله کيږي. يعني که مقروض په سبا ورځ هغه ته "خمس مائة" (پنځه سوه درهمه) ورکړي نو هغه بري کيږي، کنې پر هغه زر درهمه واجب الاداء پاتيږي.

(۳)... درېيم صورت دا دی چي قرضخواه اول د برائت ذکر وکړي او بيا په "غد" کي د "خمس مائة" داداء کولو خبره وکړي، نو په دې صورت کي ابراء واقع کيږي. برابره ده مقروض په سبا ورځ هغه ته "خمس مائة" ورکړي، که نه؛ ځکه چي په دې صورت کي ابراء مخکي هم ده او د "خمس مائة" داداء کولو له قيد څخه مطلق هم ده، پاته سوه د "خمس مائة" اداء کول نو دا اداء د مطلق عوض نه سي جوړېدای، ځکه چي دا خو په هر صورت کي پر مقروض واجب ده، او په دې سره هغه ته هيڅ فايده (برائت) نه حاصليږي. ها! دا اداء شرط جوړېدای سي، لېکن څرنګه چي صراحتاً هغه ابراء مقيد کړې هم نه ده، نو ځکه دابراء په مقيد بالشرط کېدلو کي شک واقع سو، او د شک په وجه تقييد نه ثابتيږي، نو ځکه دلته به ابراء مقيده نه وي، لېکن که چيري قرضخواه اول د "خمس مائة" داداء کولو خبره کړې وای لکه څرنګه چي په اول صورت کي داسي سوي دي (کوم چي په تېر عبارت کي ذکر سو)، نو په دې صورت کي به ابراء مقيده وای؛ ځکه چي په دې صورت کي ابراء د "خمس مائة" سره مقرون او متصل ده. او په ابراء او د "خمس مائة" په اداء سره د کلام شروع کولو په حواله سره د ابراء په مقيد کېدلو او نه مقيد کېدلو کي فرق دی (يعني دابراء په تقييد او عدمِ تقييد کي په دې حواله سره فرق دی چي قرضخواه اول برائت ذکر کړی دی او که د "خمسة مائة" اداء)، تاسو اول په دې فرق ځان پوه کړئ! او بيا مطالعه وکړئ!.

(۴)... څلورم صورت دا دی چي قرضخواه د وخت او ورځي له تعيين څخه بغير مطلق داسي ووايي "که چيري ته ما ته پنځه سوه درهمه راکړې!، نو ته له بقيه پنځه سوو څخه بري يې!"، نو دا ابراء مطلق ده، يعني مقروض له پنځه سوه درهمو څخه فوراً بري کيږي او د بقيه پنځه سوو په اداء کولو کي ده ته اختيار دی، هر وخت چي وغواړي، هغه اداء کولای سي؛ ځکه چي دلته قرضخواه د "خمس مائة" داداء کولو لپاره هيڅ وخت نه دی ټاکلی (چي په دې وخت کي يې راکړه!)، نو ځکه په دې صورت کي به ابراء مطلق وي او پر معاوضه به حمل کيږي، همدارنګه دلغو کېدلو څخه د متکلم (قرضخواه) د کلام ساتلو لپاره به هغه عوض نه ګرځول کيږي.

(۵)... پنځم صورت دا دی چي قرضخواه ابراء د "خمس مائة" داداء کولو پر شرط معلقه او مشروطه کړي يعني داسي ووايي "إنْ أَدَّيْتَ يا إذَا أَدَّيْتَ يا مَتٰى أَدَّيْتَ إلَيَّ خَمْسَ مِائَةٍ فَأَنْتَ بَرِيْءٌ مِنَ الْفَضْل"، نو د دې صورت حکم دا دی چي ابراء صحيح نه ده؛ ځکه چي برائت پر شرط معلق کول

باطل دي؛ ځکه چي ابراء اسقاط دی او په اسقاط کي د تمليک معنیٰ موجوده ده. همدا وجه ده چي که مقروض ابراء ردّ کړي، نو هغه رديږي، نو ځکه په دې صورت کي به برائت ساقطيږي. (احسن الهدایه)

## اقرار په مهلت يا په حق کمولو سره مشروط کول

قَالَ: وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ: لَا أُقِرُّ لَكَ بِمَالِكَ حَتّٰى تُؤَخِّرَهُ عَنِّيْ أَوْ تَحُطَّ عَنِّيْ فرمايي: که يو څوک بل چا [قرضخواه] ته ووايي: زه تر هغه وخته ستا د مال اقرار نه کوم تر دې چي ته هغه زما څخه مؤخر کړې! [ما ته مهلت را کړې!] يا يې زما څخه څه کم کړې! فَفَعَلَ او قرضخواه همداسي وکړي جَازَ عَلَيْهِ نو دا پر هغه جائز ګرځي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُكْرَهٍ ځکه چي هغه مُکرَه [مجبور کړی سوی] نه دی وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ إِذَا قَالَ ذٰلِكَ سِرًّا او د مسئلې مطلب دا دی چي کله مقروض په پټه دا خبره کړې وي أَمَّا إِذَا قَالَ عَلَانِيَةً ليکن که هغه په ښکاره دا خبره کړې وي يُؤْخَذُ بِهِ نو هغه به په مال سره نيول کيږي [يعني له هغه څخه به مال اخيستل کيږي].

**اللغات**: ﴿تحطّ﴾ د نصر د باب مضارع ده: کمول، ساقطول، په اول صورت کي يې معنیٰ ده: چي ته زما څخه څه مال کم کړې، په دويم صورت کي يې معنیٰ ده: چي ته زما څخه مال ساقط کړې! (يعني ما معاف او بري کړې!)، شارحينو دواړي معناوي ذکر کړي دي، ﴿مُكرَه﴾ د افعال د باب مفعول دی: مجبور کړی سوی، ﴿سِرًّا﴾ په پټه، په خفيه توګه، ﴿علانية﴾ په ډاګه، په ښکاره.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که پر نعمان د ادريس څه مال مثلاً دراهم باندي وي او نعمان په پټه ادريس ته داسي ووايي "چي زه په هماغه صورت کي ستا د مال (دراهمو) اقرار کوم کله چي ته! ما ته د هغه د اداء کولو لپاره څه مهلت راکړې!، يا ته زما څخه څه دراهم کم کړې!"، نو اوس که قرضخواه يعني ادريس د مقروض (نعمان) خبره ومني او هغه ته مهلت ورکړي يا څه مال ځني کم کړي، نو دا جائز او صحيح دي؛ ځکه چي قرضخواه په خپل رضا سره دا کار کوي او په دې باره کي هغه مُکرَه او مجبوره نه دی. بلکي هغه د ګواهۍ، قسم او داسي نورو په ذريعه هم خپل قرض ثابتولای سي، نو ځکه دا قرضخواه چي په کوم اړخ هم راضي سي، د هغه مطابق به فيصله کيږي. هو! که چيري مقروض په ښکاره پورتنۍ خبره وکړي، نو د هغه مؤاخذه به کيږي او هغه به مقر لهٗ (قرضخواه) ته پر مال ورکولو مجبورول کيږي. (احسن الهدایه)



# فَصْلٌ فِي الدَّيْنِ الْمُشْتَرِكِ

(دا) فصل د مشترک قرض (په بیان کي) دی

## له دوو شریکانو څخه د یوه د صلح کولو حکم

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الدَّيْنُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ فرمايي: او کله چي قرض د دوو شريکانو په مينځ کي مشترک وي فَصَالَحَ أَحَدُهُمَا مِنْ نَصِيبِهِ عَلَى ثَوْبٍ بيا له دوی دواړو څخه يو شريک د خپل حصې په عوض کي پر يو کپړه صلح وکړي فَشَرِيكُهُ بِالْخِيَارِ نو د هغه شريک ته اختيار دی إِنْ شَاءَ اتَّبَعَ الَّذِي عَلَيْهِ الدَّيْنُ بِنِصْفِهِ که وغواړي نو د خپل نصف حصې لپاره دي په مقروض پسې سي وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ نِصْفَ الثَّوْبِ او که وغواړي نو نيمه کپړه دي واخلي إِلَّا أَنْ يَضْمَنَ لَهُ شَرِيكُهُ رُبُعَ الدَّيْنِ مګر دا چي د هغه شريک د قرض د يوې ربع [څلورمي حصې] ضامن سي وَأَصْلُ هَذَا أَنَّ الدَّيْنَ الْمُشْتَرَكَ بَيْنَ اثْنَيْنِ إِذَا قَبَضَ أَحَدُهُمَا شَيْئًا مِنْهُ او د دې اصل دا دی چي هغه قرض کوم چي د دوو کسانو په مينځ کي مشترک وي کله چي له هغو څخه يو شريک د هغه قرض پر څه حصه قبضه وکړي فَلِصَاحِبِهِ أَنْ يُشَارِكَهُ فِي الْمَقْبُوضِ نو د هغه ملګري ته دا اختيار دی چي په قبضه کړی سوي حصه کي ور سره شريک سي لِأَنَّهُ ازْدَادَ بِالْقَبْضِ ځکه چي هغه په قبضه کولو کي زياتوب اخيستی دی [پله ورنا: ځکه اخيستونکي شريک له خپل حق څخه يات اخيستی دی (احسن الهدايه)] إِذْ مَالِيَّةُ الدَّيْنِ بِاعْتِبَارِ عَاقِبَةِ الْقَبْضِ ځکه چي د قرض ماليت د قبضه کولو [اخيستلو] د انجام په اعتبار سره وي [يعني د همدې قبضه کولو په اعتبار سره د قرض د ماليت علم کيږي] وَهَذِهِ الزِّيَادَةُ رَاجِعَةٌ إِلَى أَصْلِ الْحَقِّ او دا زياتوب د اصل حق وطرف ته راجع دی [يعني د اصل حق سره متعلق دی] فَتَصِيرُ كَزِيَادَةِ الْوَلَدِ وَالثَّمَرَةِ نو دا د اولاد او ميوې د زياتوب په څېر سو فَلَهُ حَقُّ الْمُشَارَكَةِ نو ځکه هغه [غير قابض] ته به د شريک کېدلو حق حاصل وي وَلَكِنَّهُ قَبْلَ الْمُشَارَكَةِ بَاقٍ عَلَى مِلْكِ الْقَابِضِ لېکن له مشارکت څخه مخکي هغه [کپړه]

د قبضه کونکي شريک پر ملکيت باقي پاتيږي لِأَنَّ الْعَيْنَ غَيْرُ الدَّيْنِ حَقِيقَةً ځکه چي دا عين [کپړه] په حقيقت کي قرض نه دی وَقَدْ قَبَضَهُ بَدَلًا عَنْ حَقِّهِ او قابض [مصالح] شريک د خپل حق د بدل په توګه پر هغه قبضه کړې ده فَيَمْلِكُهُ نو ځکه قابض به د هغه مالک وي حَتَّى يَنْفُذَ تَصَرُّفُهُ فِيهِ تر دي چي په هغه کي به د ده تصرف نافذيږي وَيَضْمَنَ لِشَرِيكِهِ حِصَّتَهُ او دا قابض به د خپل شريک لپاره د هغه د حصې ضامن کيږي وَالدَّيْنُ الْمُشْتَرَكُ يَكُونُ وَاجِبًا بِسَبَبٍ مُتَّحِدٍ او مشترک قرض دا دی چي په يو متحد سبب سره هغه واجب سوی وي كَثَمَنِ الْمَبِيعِ إِذَا كَانَ صَفْقَةً وَاحِدَةً لکه د مبيع ثمن کله چي عقد يو وي [يعني په يوه عقد سره ثمن واجب سوی وي] وَثَمَنِ الْمَالِ الْمُشْتَرَكِ وَالْمَوْرُوثِ بَيْنَهُمَا وَقِيمَةِ الْمُسْتَهْلَكِ الْمُشْتَرَكِ او لکه د مشترک مال ثمن او لکه د هغه مال ثمن کوم چي د دوو کسانو په مينځ کي موروث وي او لکه د هغه شي قيمت کوم چي په مشترکه توګه هلاک کړی سوی وي فَإِذَا عَرَفْتَ هَذَا فَنَقُولُ فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ: لَهُ أَنْ يَتْبَعَ الَّذِي عَلَيْهِ الْأَصْلُ کله چي تا ته دا معلومه سوه نو د کتاب [متن] د مستئلې په باره کي موږ وايو: چي غير مصالح [غير قابض] شريک ته دا حق سته چي په هغه کس پسې سي چي پر هغه اصل قرض دی [يعني مقروض] لِأَنَّ نَصِيبَهُ بَاقٍ فِي ذِمَّتِهِ ځکه چي د مقروض پر غاړه د هغه حصه باقي پاته ده لِأَنَّ الْقَابِضَ قَبَضَ نَصِيبَهُ ځکه چي قابض صرف پر خپله حصه قبضه کړې ده لَكِنَّ لَهُ حَقَّ الْمُشَارَكَةِ ليکن هغه [غير مُصالح] ته د شريک کېدلو حق [هم] سته وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ نِصْفَ الثَّوْبِ او که هغه وغواړي نو نيمه کپړه دي واخلي لِأَنَّ لَهُ حَقَّ الْمُشَارَكَةِ ځکه چي هغه ته د شريک کېدلو حق سته إِلَّا أَنْ يَضْمَنَ لَهُ شَرِيكُهُ رُبُعَ الدَّيْنِ مګر دا چي د هغه شريک [يعني قابض شريک] د قرض د يوې ربع ضامن سي لِأَنَّ حَقَّهُ فِي ذَلِكَ ځکه چي د هغه حق په دې کي [هم] دی.

**اللغات**: ﴿اتَّبع﴾ د افتعال د باب ماضي ده: په يو چا پسې کېدل. ﴿مَن عليه الدّين﴾ پر چا چي قرض باندي وي. يعني مقروض (پوروړی). ﴿اِزْدَادَ﴾ د افتعال د باب ماضي ده: زياتېدل، اضافه کېدل. ﴿عاقبة﴾ انجام. ﴿موروث﴾ د حسب د باب اسم مفعول دی: په ميراث کي حاصل سوی (په

میراث کي تر لاسه کړی سوی شی)، ﴿مُستهلَك﴾ د استفعال د باب مفعول دی: هغه شی کوم چي قصداً هلاک کړی سوی وي، ضایع کړی سوی.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که پر یو سړي د دوو کسانو قرض باندي وي، مثلاً دوو خلکو خپل مشترک شی پر مشتري خرڅ کړی وي او پر مشتري د هغه ثمن پاته وي، یا دوو خلکو په مشترکه توګه یو شی رانیولی وي، یا مثلاً د دوو خلکو یو قریب مړ سوی وي او دوی دواړو ته د هغه قریب په میراث کي داسي قرض حاصل سوی وي کوم چي پر یو سړي پاته وي، یا دوو کسانو د یو چا شی هلاک کړی وي او پر دوی د هغه ضمان (تاوان) واجب وي، ښکاره خبره ده چي په دې ټولو صورتونو دا قرض او مال د دوی په مینځ کي مشترک دی، اوس که له دوی څخه یو شریک په داسي مشترک قرض کي پر خپله حصه قبضه وکړي (یعني له مقروض څخه یې واخلي) یا د خپلي حصې په عوض کي پر یو شي مثلاً پر کپړې صلح وکړي، نو بل شریک ته له دوو شیانو څخه د یوه شي اختیار دی: ① یو دا چي له مقروض څخه د خپلي حصې قرض واخلي، ② یا له خپل شریک څخه (کوم چي پر کپړه قبضه کړې ده) نیمه کپړه واخلي او مابقی قرض د دواړو په مینځ کي مشترک پاته سي. لېکن که مصالح (قابض) شریک د غیر مصالح (غیر قابض) لپاره د قرض د یوې ربع (څلورمي حصې) ضامن سي (یعني د یوې رُبع ضمان [تاوان] ورکړي)، نو بیا د کپړې په هکله د غیر مصالح دعوی ختمیږي (یعني تر دې وروسته هغه پوره نیمه کپړه نه سي اخیستلای)، او د یوې ربع له حاصلېدلو څخه وروسته دویمه ربع چي څرنګه د ده (غیرِ مصالح) خوښه وي، هغه دي تر لاسه کړي. لنډه دا چي غیر مصالح (غیرِ قابض) شریک ته دغه پورتني اختیارات حاصلیږي؛ ځکه چي په اصل یعني په قرض کي هغه په هر اعتبار سره شریک دی، لهذا د دې قرض د اخیستلو (تر لاسه کولو) چي څومره هم صورتونه او شکلونه وي، په هغوی ټولو کي به هغه شریک او سهیم (حصه داره) وي چي د هغه کیفیت او تشریح له ترجمې څخه هم ښکاره کیږي، لهذا نور وضاحت او تشریح ته یې ضرورت نسته.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: وَلَوِ اسْتَوْفَى أَحَدُهُمَا نِصْفَ نَصِيْبِهِ مِنَ الدَّيْنِ فرمايي: او که له دوو شریکانو څخه یو د خپلي حصې قرض (له مقروض څخه) پوره واخلي كَانَ لِشَرِيكِهِ أَنْ يُشَارِكَهُ فِيمَا قَبَضَ نو د هغه شریک ته دا اختیار سته چي په قبضه کړی سوي (اخیستل سوي) قرض کي ور سره شریک سي لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی ثُمَّ يَرْجِعَانِ عَلَى الْغَرِيمِ بِالْبَاقِي بیا به دوی دواړه له مقروض څخه

ما بقي قرض واپس اخلي لِأَنَّهُمَا لَمَّا اشْتَرَكَا فِي الْمَقْبُوضِ ځکه کله چي په قبضه کړی سوي قرض کي دوی دواړه شريکان دي لَا بُدَّ أَنْ يَبْقَى الْبَاقِي عَلَى الشَّرِكَةِ نو ما بقي قرض به [هم] ضرور پر شرکت پاتيږي [يعني ما بقي قرض به خامخا مشترک وي].

**اللغات:**

**تشريح: مسئله:** دا ده که له مشترک قرض څخه يو شريک د خپلي حصې قرض واخلي، نو بل شريک ته دا حق او اختيار حاصليږي چي له هغه (اخيستل سوي قرض) څخه نيمه حصه واخلي، او د ما بقي قرض مطالبه به دوی دواړه په ګډه له مقروض څخه کوي، ځکه کله چي د دوی په مينځ کي قرض مشترک دی نو د هغه هره حصه به د دوی په مينځ کي مشترکه وي او په هر صورت کي به شرکت ثابتيږي، او کله چي مقبوضه (اخيستل سوې) حصه مشترکه ده، نو ښکاره خبره ده چي پر مقروض پاته سوې حصه به هم مشترکه وي.

## که له دوو شريکانو څخه يو د خپل قرض په عوض کي سامان رانيسي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَلَوِ اشْتَرَى أَحَدُهُمَا بِنَصِيبِهِ مِنَ الدَّيْنِ سِلْعَةً فرمايي: او که چيري له دوی څخه يو شريک د خپل قرض د حصې په عوض کې سامان رانيسي كَانَ لِشَرِيكِهِ أَنْ يُضَمِّنَهُ رُبُعَ الدَّيْنِ نو بل شريک ته دا حق سته چي هغه د خپل قرض د يوې ربع [څلورمي حصې] ضامن وګرځوي [يعني بل شريک له هغه څخه د قرض د څلورمي حصې ضمان (تاوان) اخيستلای سي] لِأَنَّهُ صَارَ قَابِضًا حَقَّهُ بِالْمُقَاصَّةِ كَامِلًا ځکه چي رانيونکی شريک پر خپل حق د مقاصه [تبادله] په وجه په پوره توګه قابض وګرځېدی لِأَنَّ مَبْنَى الْبَيْعِ عَلَى الْمُمَاكَسَةِ ځکه چي د بيع مدار پر مماسکت دی بِخِلَافِ الصُّلْحِ په خلاف د صلح لِأَنَّ مَبْنَاهُ عَلَى الْإِغْمَاضِ وَالْحَطِيطَةِ ځکه چي د صلح مدار پر چشم پوشۍ او [د څه حق] پر ساقطولو دی فَلَوْ أَلْزَمْنَاهُ دَفْعَ رُبُعِ الدَّيْنِ نو [اوس] که موږ پر قابض [مُصالح] شريک د قرض د يوې ربع اداء کول لازم وګرځوو يَتَضَرَّرُ بِهِ نو په دې سره به هغه ته ضرر ورسيږي فَيَتَخَيَّرُ الْقَابِضُ نو ځکه به قابض ته اختيار وي كَمَا ذَكَرْنَا لکه څرنګه چي موږ ذکر کړه وَلَا سَبِيلَ لِلشَّرِيكِ عَلَى الثَّوْبِ فِي الْبَيْعِ او د بيع په صورت کي غيرِ قابض شريک ته په کپړه کي [د شريک کېدلو] هيڅ اختيار نسته لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِعَقْدِهِ ځکه چي قابض شريک په خپل عقد سره د هغې مالک سوی دی وَالِاسْتِيفَاءِ

بِالْمُقَاصَّةِ بَيْنَ ثَمَنِهِ وَبَيْنَ الدَّيْنِ او [د قرض] اخيستل د مبيع [کپړې] د ثمن او قرض په مينځ کې په مقاصه سره دي [يعني دلته د "قرض اخيستل" د کپړې د ثمن او د قرض په مينځ کې د مقاصه په ذريعه سوي دي] وَلِلشَّرِيكِ أَنْ يَتْبَعَ الْغَرِيمَ فِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَا او غير قابض شريک ته دا حق سته چې زموږ په ذکر کړده ټولو صورتونو کې په مقروض پسې سي [يعني له هغه څخه خپله حصه واخلي] لِأَنَّ حَقَّهُ فِي ذِمَّتِهِ بَاقٍ ځکه چې د مقروض پر غاړه د هغه حق پاته دی لِأَنَّ الْقَابِضَ اسْتَوْفَى نَصِيبَهُ حَقِيقَةً ځکه قابض په حقيقت کې صرف خپله حصه اخيستې ده لَكِنَّ لَهُ حَقَّ الْمُشَارَكَةِ لېکن قابض ته [د بل شريک سره] د شريک کېدلو حق سته [يعني دا حق ورته سته چې هغه په خپله حصه کې شريک کړي] فَلَهُ أَنْ لَا يُشَارِكَهُ نو ده ته دا حق هم سته چې د هغه سره شريک نه سي [يعني هغه په خپله حصه کې شريک نه کړي] فَلَوْ سَلَّمَ لَهُ مَا قَبَضَ ثُمَّ تَوَى مَا عَلَى الْغَرِيمِ بيا که هغه قابض شريک ته مقبوضه [اخيستل سوې] حصه وسپاري [يعني په د قابض سره د هغه په مقبوضه حصه کې شرکت نه وکړي] او بيا هغه قرض ضايع سي کوم چې پر مقروض پاته دی لَهُ أَنْ يُشَارِكَ الْقَابِضَ نو هغه [غير قابض شريک] ته دا حق سته چې د قابض سره شريک سي لِأَنَّهُ رَضِيَ بِالتَّسْلِيمِ لِيَسْلَمَ لَهُ مَا فِي ذِمَّةِ الْغَرِيمِ ځکه چې هغه په دې وجه په سپارلو [يعني په شرکت پرېښوولو] راضي سوی وو چې د ده لپاره هغه قرض سالم پاته سي [يعني ده ته هغه قرض حاصل سي] کوم چې پر مقروض پاته دی وَلَمْ يَسْلَمْ حالانکي هغه سالم پاته نه سو [بلکي ضايع سو او ده ته حاصل نه سو] وَلَوْ وَقَعَتِ الْمُقَاصَّةُ بِدَيْنٍ كَانَ عَلَيْهِ مِنْ قَبْلُ او که چيري په يو داسي قرض سره مقاصه واقع سوې وي کوم چې پر يوه شريک له مخکي څخه باندي وي لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهِ الشَّرِيكُ نو بل شريک پر هغه رجوع نه سي کولای لِأَنَّهُ قَاضٍ بِنَصِيبِهِ لَا مُقْتَضٍ ځکه چې [په دې صورت کې] قابض شريک د مقروض د حق اداء کونکی دی، تقاضا کونکی [د قرض اخيستونکی] نه دی وَلَوْ أَبْرَأَهُ عَنْ نَصِيبِهِ او که چيري يو شريک له خپلي حصې څخه مقروض بري کړي فَكَذَلِكَ نو هم دغه حکم دی لِأَنَّهُ إِتْلَافٌ وَلَيْسَ بِقَبْضٍ ځکه چې دا اتلاف [ضايع کول] دي او قبضه نه ده وَلَوْ أَبْرَأَهُ عَنِ الْبَعْضِ او که چيري له څه حصې څخه مقروض بري کړي كَانَتْ قِسْمَةُ الْبَاقِي عَلَى مَا بَقِيَ مِنَ السِّهَامِ نو د باقي قرض تقسيم به د ما بقي حصو مطابق وي وَلَوْ أَخَّرَ أَحَدُهُمَا عَنْ نَصِيبِهِ او که

چیري یو شریک د خپلې حصې [اخیستل] مؤخر کړي [یعني مقروض ته په خپله حصه کې مهلت ورکړي] صَحَّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز صحیح دی اعْتِبَارًا بِالْإِبْرَاءِ الْمُطْلَقِ پر مطلق ابراء په قیاس کولو سره وَلَا يَصِحُّ عِنْدَهُمَا[*] او د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز صحیح نه دي لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى قِسْمَةِ الدَّيْنِ قَبْلَ الْقَبْضِ ځکه چي دا رسول کوي [یعني دا سبب ګرځي] تر قبضې مخکي د قرض تقسیمولو ته وَلَوْ غَصَبَ أَحَدُهُمَا عَيْنًا مِنْهُ او که چیري یو شریک له مقروض شخصه یو شی غصب کړي أَوِ اشْتَرَاهَا شِرَاءً فَاسِدًا یا په فاسده توګه [له مقروض شخصه] یو شی رانیسي وَهَلَكَ فِي يَدِهِ او هغه شی د ده په قبضه کي هلاک سي فَهُوَ قَبْضٌ نو دا قبضه ده [یعني دا هم قبضه کول شمارل کیږي]. وَالِاسْتِئْجَارُ بِنَصِيبِهِ قَبْضٌ او د خپلې حصې په عوض کي [له مقروض شخصه] یو شی په کرایه اخیستل هم قبضه ده وَكَذَا الْإِحْرَاقُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او همدارنګه [د مقروض سامان] سوځول هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز قبضه ده خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ په خلاف د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله وَالتَّزَوُّجُ بِهِ إِتْلَافٌ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د خپلې حصې په عوض کي نکاح کول اتلاف دی په ظاهر روایت کي [یعني په ظاهر روایت کي هغه اتلاف شمارل کیږي] وَكَذَا الصُّلْحُ عَلَيْهِ مِنْ جِنَايَةِ الْعَمْدِ او همدارنګه د خپلې حصې په عوض کي د قتلِ عمد په هکله صلح کول [هم اتلاف دی].

**اللغات**: ﴿سلعة﴾ سامان. ﴿مقاصة﴾ د مفاعلې مصدر دی: یو شی د بل شي سره مقابله کول، ادل بدل کول (مثلاً پر زید د خالد لس درهمه قرض باندي وي، او بیا د خالد هم پر زید لس درهمه قرض باندي سي، نو دوی خپل قرضونه سره ادل بدل کړي، دې ته مقاصه وایي)، تبادله کول. ﴿مماسکة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، مراد: قیمت کمول، قیمت په کمول (احسن الهدایه)، سختي کول. ﴿إغماض﴾ د افعال د باب مصدر دی: چشم پوشي کول (پر یو شي سترګي پټول)، رعایت او نرمي کول. ﴿حطيطة﴾ د نصر د باب مصدر دی: کمول، ساقطول (معافول). ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: (خپل حق) پوره اخیستل، ترلاسه کول. ﴿لِيَسْلَم﴾ د سمع د باب مضارع ده. په شروع کي یې "لام جاره" دی چي تر هغه

[*] القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في العنايه (ج:۷، ص: ۴۰۵)، وملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۴۳۷). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۰۷]

وروسته "أنْ ناصبه" مقدر دی: سالم پاتېدل، له عيبه پاکېدل، ﴿إتـلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضايع کول، هلاکول، ﴿إحراق﴾ مخکنۍ صيغه ده: سوځول، سوزول، ﴿اسـتيجار﴾ د استفعال د باب مصدر دی: په اُجرت (په کرايه) اخيستل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که پر يو سړي د وو کسانو مشترک قرض باندي وي او بيا له هغو څخه يو شريک (قرضخواه) د خپلي حصې په عوض کي له مقروض سړي څخه يو سامان رانيسي، نو په دې صورت کي بل شريک ته دا حق او اختيار سته چي رانيونکی شريک د قرض د يوې ربع ضامن وګرځوي (يعني د يوې رُبع ضمان [تاوان] څني وٌاخلي)؛ ځکه چي د بيع مدار پر مماسکت دی يعني بائع د خپل مال او خپل شي تړوله ثمن له مشتري څخه اخلي لېکن مشتري په کم از کم (ډېر کم) قيمت هغه اخلي، لهذا مونږ به همدا وايو چي مشتري خپل قرض تړوله اخيستی دی، لهذا هغه به د بل شريک لپاره ضامن جوړېږي او ضمان به ورکوي، لېکن د شريکانو معامله له صلح څخه جلا ده؛ ځکه چي په صلح کي عموماً کم مال اخيستل کيږي او د مقروض سره د نرمۍ او چشم پوشۍ معامله کيږي، اوس که مونږ په صلح کي پر مصالح د ربعِ دَين اداء کول لازم وګرځوو، نو په دې کي به د مصالح ضرر او نقصان وي، نو ځکه د صلح والا په صورت کي به قابض ته د ضمان په ورکولو کي اختيار وي.

ولا سبيل للشريك إلخ: د دې حاصل دا دی چي که يو شريک (قرضخواه) د خپلي حصې په عوض کي له مقروض څخه کپړه رانيسي، نو بل شريک ته په هغه کي د شرکت حق نه حاصليږي؛ ځکه رانيونکي شريک په جائز طريقه سره هغه رانيولې او د هغې مالک سوی دی، او څرنګه چي صراحتاً هغه خپل قرض نه دی اخيستی او بل شريک (غيرِ قابض شريک) صرف په قرض کي د هغه شريک او سهيم کېدای سي، او دلته قرض سته نه، نو ځکه دا بل شريک (غيرِ قابض) به په هغه کپړه نه شريک کيږي، ها! دا بل شريک به له مقروض څخه خپله حصه اخلي؛ ځکه چي اصل حق پر هغه باندي دي، او دا جلا خبره ده چي رانيونکی شريک په خپله حصه کي هغه (غيرِ قابض) شريک کړي.

فلو سلّم له إلخ: فرمايي که چيري غيرِ قابض (نارانيونکی) شريک د قابض (رانيونکي) شريک سره په مقبوضه کپړه کي شريک نه سي، بيا پر مقروض ما بقي قرض هلاک سي يعني مقروض مفلس (او ديوالي) سي يا د مفلس والي په حالت کي مړ سي، نو اوس به هغه (غيرِ قابض شريک) د قابض سره شريک کيږي؛ ځکه چي غيرِ قابض د دې لپاره په شرکت پرېښوولو راضي سوی سو، چي د مقروض پر ذمه کوم قرض باقي دی هغه ده ته پوره حاصل سي، لېکن څرنګه چي د مقروض د مفلس والي يا مړ کېدلو په وجه له هغه څخه باقي قرض اخيستل ناممکن سوه، نو ځکه اوس له شرکت څخه بغير بله هيڅ لاره پاته نه ده.

**ولو وقعت المقاصة إلخ:** مسئله دا ده چي که له دوارو شریکانو (قرضخواهانو) څخه پر یوه شریک د مقروض هم قرض باندي وي، او دا شریک د هغه قرض په عوض کي د خپل قرض سره مقاصه (تبادله) وکړي، نو په دې صورت کي هم بل شریک په هغه کي نه سي شریک کېدای؛ ځکه چي په دې صورت کي خو هغه (مقاصه کونکي شریک) مقروض ته د مقروض حق ورکړي دی او له هغه څخه يې اخیستی نه دی. همدا حکم د بري کولو هم دی؛ ځکه چي ابراء اتلاف دی، قبضه او استیفاء نه ده.

او که چیري له دوارو شریکانو څخه یو شریک د خپل قرض له بعضي حصې څخه مقروض بري کړي (معاف کړي)، نو په دې صورت کي چي د بري کونکي شریک د حصې څومره قرض پاته وي، د هغه مطابق به ده ته له ما بقي قرض څخه حصه ورکول کیږي، مثلاً د دوارو شریکانو پر مقروض پنځوس، پنځوس درهمه (مجموعتاً سل درهمه) باندي وي، او بیا له دوی څخه یو د خپل قرض نیمه حصه یعني پنځویشت درهمه مقروض ته ور معاف کړي، نو اوس به ما بقي قرض (یعني پنځه اویا درهمه) پر دریو حصو تقسیمول کیږي چي له هغه څخه به دوې حصې د نه بري کونکي شریک وي او یوه حصه به د بري کونکي شریک وي.

**ولو أخّر إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که یو شریک د خپلې حصې مطالبه مؤخره کړي (مثلاً مقروض ته ووايي چي زه ستا څخه یو کال وروسته خپله حصه غواړم)، نو دا تاخیر د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز صحیح دی، لکه څرنګه چي له قرض څخه د مقروض بري کول صحیح دي، لېکن د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا تاخیر صحیح نه دی؛ ځکه د کوم شریک له طرفه چي تاخیر نه دی سوی، هغه ته خو في الحال د خپل قرض د مطالبه کولو حق سته او که چیري هغه مطالبه وکړي، نو پر قرض له قبضه کولو څخه مخکي به د قرض تقسیمول لازم سي، حال دا چي قبل القبض د قرض تقسیم صحیح نه دی.

**ولو غصب إلخ:** تشریح يې واضحه ده.

**والتزوّج به إتلاف إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که پر یو ښځي د دوو کسانو قرض باندي وي او له هغو څخه یو شریک د خپلې حصې په عوض کي د هغې سره نکاح وکړي، نو دا نکاح کول پر قرض قبضه نه شمارل کیږي، بلکي پر قرض نکاح کول یعني قرض مهر ګرځول په حقیقت کي د قرض (د خپلې حصې) اتلاف دی. همدارنګه که یو شریک عمداً مقروض زخمي کړي، بیا د هغه سره د خپلې حصې په عوض کي صلح وکړي، نو دا هم قبضه نه ده، بلکي اتلاف دی، یعني له دې صورتونو څخه په یوه صورت کي هم بل شریک ته د شرکت حق نه حاصلیږي. (احسن الهدایه)

## په پورتني مسئله کي د بيع سَلم صورت

قَالَ: وَإِذَا كَانَ السَّلَمُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ فرمايي: او کله چي په بيع سَلم کي مسلم فيه د دوو شريکانو په مينځ کي مشترکه وي فَصَالَحَ أَحَدُهُمَا مِنْ نَصِيبِهِ عَلَى رَأْسِ الْمَالِ بيا له دوی څخه يو شريک د خپلي حصې په عوض کي پر رأسُ المال صلح وکړي لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا صلح جائز نه ده وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يَجُوزُ الصُّلْحُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي صلح جائز ده اعْتِبَارًا بِسَائِرِ الدُّيُونِ پر نورو قرضونو په قياس کولو سره وَبِمَا إِذَا اشْتَرَيَا عَبْدًا فَأَقَالَ أَحَدُهُمَا فِي نَصِيبِهِ او پر هغه صورت په قياس کولو سره چي دوه کسان يو غلام رانيسي او بيا له دوی څخه يو په خپله حصه کي اقاله وکړي [يعني په خپله حصه کي بيع فسخ کړي] وَلَهُمَا: أَنَّهُ لَوْ جَازَ فِي نَصِيبِهِ خَاصَّةً او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي که صرف د يوه شريک په حصه کي صلح جائز سي يَكُونُ قِسْمَةَ الدَّيْنِ فِي الذِّمَّةِ نو د داسي قرض تقسيم به لازم سي کوم چي پر ذمه ثابت دی وَلَوْ جَازَ فِي نَصِيبِهِمَا او که چيري د دواړو په حصه کي صلح جائز سي لَا بُدَّ مِنْ إِجَازَةِ الْآخَرِ نو [په دې صورت کي] د بل شريک اجازت ضرورت دی بِخِلَافِ شِرَاءِ الْعَيْنِ په خلاف د عَين شي [مثلاً د غلام] د رانيولو وَهَذَا لِأَنَّ الْمُسْلَمَ فِيهِ صَارَ وَاجِبًا بِالْعَقْدِ او دا حکم ځکه دی چي د عقد په وجه مسلم فيه واجب وګرځېده وَالْعَقْدُ قَامَ بِهِمَا او عقد په دوی دواړو سره قائم [او منعقد سوی] دی فَلَا يَنْفَرِدُ أَحَدُهُمَا بِرَفْعِهِ لهذا تنها يو شريک به د عقد په فسخ کولو کي منفرد نه وي وَلِأَنَّهُ لَوْ جَازَ او ځکه که چيري د يوه شريک صلح يا فسخ جائز سي لَشَارَكَهُ فِي الْمَقْبُوضِ نو بل شريک به هم د هغه سره په قبضه کړی سوي حصه کي شريک وګرځي فَإِذَا شَارَكَهُ فِيهِ او کله چي هغه په دې کي شريک وګرځي رَجَعَ الْمُصَالِحُ عَلَى مَنْ عَلَيْهِ بِذَلِكَ نو صلح کونکی شريک به هغه مقدار له مقروض [مسلم إليه] څخه واپس اخلي فَيُؤَدِّي إِلَى عَوْدِ السَّلَمِ بَعْدَ سُقُوطِهِ او دا به د بيع سَلم تر ساقطېدلو وروسته د هغه د راګرځېدلو [جائز ګرځېدلو] سبب جوړ سي قَالُوا: هَذَا إِذَا خَلَطَا رَأْسَ الْمَالِ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چي دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي دوی دواړو رأسُ المال سره ګډ کړی وي فَإِنْ

لَمْ يَكُونَا قَدْ خَلَطَاهُ لېکن که دوی رأسُ المال سره ګډ کړی نه وي فَعَلَى الْوَجْهِ الْأَوَّلِ هُوَ عَلَى الْخِلَافِ نو په اول صورت کي دا [مسئله] پر اختلاف ده وَعَلَى الْوَجْهِ الثَّانِي هُوَ عَلَى الِاتِّفَاقِ او په دويم صورت کي هغه پر اتفاق ده.

**اللغات**: ﴿السلم﴾ بيع سلم، بيع الاجل بالعاجل، يعني څنډ من شی د نغد شي په عوض کي خرڅول، مثلاً يو سړی (بائع) له يو چا څخه ثمن في الحاله واخلي او د يوې مياشتي پر قرض غنم پر خرڅ کړي چي غنم يوه مياشت وروسته درکوم. په بيع سَلم کي ثمن ورکونکي (مشتري) ته رَبُّ السَّلَم وايي او په قرض خرڅونکي (بائع) ته مُسْلَم إِلَيْه وايي او په کوم شي کي چي بيع سَلم وسي لکه په دې مثال کي چي غنم دي، هغه ته مُسْلَمْ فِيْه وايي او ثمن ته رَأْسُ الْمَال وايي، ﴿أقال﴾ د افعال د باب ماضي ده: اقاله کول، بيع فسخ کول (سودا ماتول)، ﴿عود﴾ د نصر د باب مصدر دی: راګرځېدل، واپس کېدل (بيرته راګرځېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري دوه کسان په ګډه بيع سَلم وکړي او مسلم فيه د دوی په مينځ کي مشترکه وي، بيا له دوی څخه يو کس د خپل حصې رأسُ المال واخلي او له بيع سَلم څخه ووځي او په دې توګه هغه صلح وکړي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دَ صلح صحيح نه ده، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا صلح صحيح او جائز ده.

**د امام ابو يوسف دليل**: قياس دی چي څرنګه په نورو قرضونو کي صلح جائز ده، همداسي په پورتنی مسئله کي هم صلح جائز ده؛ ځکه چي مسلم فيه هم د مسلم اليه پر ذمه قرض (دَين) وي، يا مثلاً لکه څرنګه چي دوه خلک په ګډه يو غلام رانيسي بيا له دوی څخه يو شريک خپله حصه واخلي او شرکت ختم کړي، نو دا صورت هم جائز دی، لهذا همداسي به په پورتنی مسئله کي د بيع سَلم له دوو شريکانو (عاقدَينو) څخه د يوه لپاره د خپلي حصې په عوض کي پر رأسُ المال صلح کول هم جائز وي.

**د طرفينو دليل**: دا دی چي د دې صلح د جائز ګرځولو هيڅ صورت نسته؛ ځکه که موږ دا صلح د يوه شريک يعني د مصالح شريک په حق کي صحيح وګرځوو، نو د داسي قرض تقسيم به لازم سي کوم چي تر اوسه (د مسلم إليه) پر ذمه ثابت دی او چي پر هغه قبضه نه ده سوې، حالانکي له قبضې څخه مخکي هغه قرض مشترک او غير مملوک وي، نو ځکه په هغه کي صلح جائز نه سي ګرځول کېدای، او که چيري د دواړو شريکانو په حق کي صلح جائز وګرځوو، نو د دې لپاره به د بل يوه اجازت ضروري وي، حالانکي دلته د بل يوه اجازت معدوم دی، نو ځکه د صلح د جواز لاره به هم بنده وي.

او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله چي کوم مثال پېش کړی دی، په هغه کي د بیع له پوره کېدلو څخه وروسته بیع فسخ کیږي، او تر عقد پوره کېدلو (تام کېدلو) وروسته د هغه فسخ کول صحیح او جائز دي، او په دې پورتنۍ مسئله کي پر قرض قبضه نه ده سوې، نو ځکه دلته عقد د ابتدائي عقد په درجه کي دی او تام سوی نه دی، نو ځکه پر تام عقد نا تمام عقد قیاسول صحیح نه دي. د بیع سَلم او د عَین شي په رانیولو کي یو فرق دا دی چي په بیع سَلم کي مسلم فیه د عقد په وجه واجبیږي او څرنګه چي عقد د دواړو شریکانو په رضا سره واقع او منعقد سوی دی، نو ځکه تنها یو شریک به د هغه د فسخ کولو ملکیت (اختیار) نه لري، او دا صلح به صحیح نه وي؛ ځکه چي د صلح د جائز ګرځولو په صورت کي به دویم شریک د مصالح شریک په قبضه کړی سوي مال کي شریک وګرځي او بیا به دا مصالح شریک له مسلم الیه څخه د رأسُ المال ربع (څلورمه حصه) اخلي او په دې توګه به د هغه په حق کي بیع سَلم تر ساقطېدلو وروسته بیا واپس راوګرځي، حالانکي تر ساقطېدلو وروسته بیع سَلم واپس نه راګرځي، نو ځکه له دې خرابۍ څخه د بچ کېدلو لپاره به مذکوره صلح هم صحیح نه وي.

قالوهذا إلخ: د مشایخو رَحِمَهُمُ الله رایه دا ده چي د طرفینو او د امام ابو یوسف رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي دواړو شریکانو خپل، خپل رأسُ المال یو د بل سره ګډ کړی وي او تر ګډولو وروسته یې عقد سَلم کړی وي، لېکن که د دواړو رأسُ المال جلا، جلا وي او سره ګډ کړل سوي نه وي، نو په اول صورت کي دا مسئله مختلف فیها ده. له اول صورت څخه دا صورت مراد دی "أَنَّهُ لَو جَازَ فِيْ نَصِيْبِه خَاصَّةً يَكُوْنُ قِسْمَةَ الدَّيْنِ فى الذِّمَّة"، او په دویم صورت یعني د "لَوْ جَازَ، لَشَارَكَهُ فِي المَقْبُوْضِ" والا په صورت کي د امام ابو یوسف او طرفینو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نېز حکم یو دی او صلح جائز ده؛ ځکه کله چي د دواړو شریکانو رأسُ المال یو له بل څخه جلا دی، نو ښکاره خبره ده چي یو شریک چي د کوم مال په عوض کي صلح کوي، په هغه کي به د بل شریک لپاره د شرکت حکم نه ثابتیږي؛ ځکه چي دا مال غیر (د بل چا مال) دی او په مال غیر کي زور او جبر جائز نه دی. والله أعلم وعلمه أتم



# فَصْلٌ فِي التَّخَارُجِ

(دا) فصل د تخارج (په بيان كې) دى

**تشريح:**

**د تخارج لغوي او اصطلاحي معنى:** "تخارج" د تفاعل د باب مصدر دى: لغوي معنى يې ده: وتل، ايستل (لازمي او متعدي)، يو د بل په رضا له مشترک مال څخه وتل.

د شريعت په اصطلاح كې د تخارج مطلب دا دى چې له ميراث څخه يو وارث (ميراث خور) ايستل د څه مال په عوض كې، يعني چې د مړي (ميت) وراثان متفق سي او يوه وارث ته څه مال وركړي او له ميراث څخه يې وباسي، د تخارج د صحيح كېدلو لپاره څو شرطونه دي: ① يو دا چې وتونكى وارث (خارج) په خپله د دې مطالبه كوي، ② او نور وارثان په دې راضي وي، ③ همدارنګه د مړي په ميراث كې د قرض اداء كول شامل نه وي او وتونكي وارث ته وركول سوى مال د مذكوره ميراث له جنس څخه د هغه تر حق زيات وي په دې شرط كه چيري ميراث سره زر يا سپين زر او داسي نور وي، او كه چيري ميراث سامان يا عقار (غير منقوله جايداد) وي، نو كم يا زيات وركول كېداى سي. صاحب د معجم لغة الفقهاء د "تخارج" مختصر عربي تعريف داسي ذكر كړى دى "مُصَالَحَةُ بَعْضِ الْوَرَثَةِ عَلَى خُرُوْجِهِ مِنَ الْقِسْمَةِ بِأَدَاءِ شَيْءٍ مُعَيَّنٍ مِنَ التَّرِكَةِ". (معجم لغة الفقهاء)

څرنګه چې تخارج ډېر كم پېښيږي، ځكه چې هيڅ وارث هم د خپل پوره حصي له اخيستلو څخه بغير له ميراث څخه وتلو ته نه اماده كيږي، همدارنګه تخارج د مړي (مورث) تر مرګ وروسته واقع كيږي، نو ځكه يې د تخارج بيان د "كتابُ الصلح" په آخر كې ذكر كړى دى.

## د تخارج تعريف، حكم او دليل

| |
|---|
| وَإِذَا كَانَتِ التَّرِكَةُ بَيْنَ وَرَثَةٍ او كله چې ميراث د څو وارثانو په مينځ كې مشترک وي فَأَخْرَجُوْا أَحَدَهُمْ مِنْهَا بِمَالٍ أَعْطَوْهُ إِيَّاهُ او هغوى [وارثان] له دې ميراث څخه خپل يو وارث وباسي د څه مال په عوض كې چې هغوى يې ده ته وركړي وَالتَّرِكَةُ عَقَارٌ أَوْ عُرُوضٌ او ميراث جايداد يا سامان وي جَازَ نو دا [باسل] جائز دي قَلِيلًا كَانَ مَا أَعْطَوْهُ إِيَّاهُ أَوْ كَثِيرًا برابره ده هغه مال كوم چې وارثانو ده ته وركړى وي |

کم [الړ] وي او که زيات وي لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ بَيْعًا ځکه چي دا صلح د بيع په توګه صحيح ګرځول ممکن دي وَفِيهِ أَثَرُ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او په دې باره کي د حضرت عثمان رضي الله عنه اثر [هم] موجود دی فَإِنَّهُ صَالَحَ تَمَاضُرَ الْأَشْجَعِيَّةَ امْرَأَةَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ رُبُعِ ثُمُنِهَا عَلَى ثَمَانِينَ أَلْفِ دِينَارٍ چي هغه د عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه د ښځي "تماضر اشجعيه" سره د هغې دا اتمي حصې د ربع [څلورمي حصې] په هکله پر اتيا زره دينارو صلح وکړه.

**اللغات**: ﴿التَّرِكَة﴾ (د راء په کسره سره) او التِّرْكَة: مړی چي کوم مالونه پرېږدي ايښي وي هغه ته "ترکه" ويل کيږي، ميراث، ﴿عقار﴾ غير منقوله جايداد، لکه ځمکه، کور او داسي نور، ﴿عروض﴾ جمع د عَرَضٌ ده: سامان، ﴿رُبُع﴾ او رُبْع: څلورمه حصه، کوم شی چي څلور حصې کړل سي، نو د هغه هري حصې ته يوه ربع وايي، ﴿ثُمُن﴾ صحيح دا ده چي دا لفظ ثُمُن او ثُمْن دی، نه ثَمَن، معنی يې ده: اتمه حصه، کله چي خاوند مړ سي په داسي حال کي چي د هغه ځامن هم پاته سي، نو په ميراث کي د ښځو حق يو ثُمُن (اتمه حصه) ده لکه څرنګه چي په قرآن کي ذکر سوي دي ﴿فَإِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ﴾، يعني ښځو ته به د خاوند له ميراث څخه اتمه حصه ورکول کيږي او دا اتمه حصه به د دوی په مينځ کي برابره تقسيمول کيږي، ﴿تماضر الأشجعيّة﴾ تماضر د عربو د مشهور شاعر "امرئ القيس" له نسله يوه شاعره ښځه وه کوم چي يې پر نبي کريم صلى الله عليه وسلم ايمان راوړی، نبي صلى الله عليه وسلم عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه ته د هغې سره د نکاح کولو اجازت ورکړی، نو هغه د تماضر سره نکاح وکړه او له هغې څخه يې يو ځوی "ابو سلمه" پيدا سو، تماضر نازک مزاجه او څه بد اخلاقه ښځه وه، عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه هغې ته دوه طلاقه ورکړې وه او هغه په عدت کي وه چي په دې دوران کي عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه مريض سو نو هغې ته يې درېيم طلاق هم ورکړی او د هغې تر عدت تېرېدلو وروسته عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه وفات وکړی، مګر حضرت عثمان رضي الله عنه دا طلاق فرار وګرځوی او د هغې لپاره يې د خپل خاوند "عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه" په ميراث کي حصه وټاکله چي هغه يوه ربع کېدل او بيا يې د هغې سره د دغه ربع په هکله د مال په عوض کي صلح وکړه (وضاحت به يې په تشريح کي ذکر سي)، ﴿عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه﴾ له عشره مبشره وو څخه مشهوره جليل القدر صحابي وو، د اسلام په ابتدائي دور کي هغه د حضرت ابو بکر رضي الله عنه پر لاس ايمان راوړی، تر دې وروسته هغه په ټولو غزاګانو کي شرکت وکړی او د هجرت په ۳۲ کال وفات سو چي په همدې وخت کي د هغه عمر ۷۲ کاله وو او په جنت البقيع کي ښخ کړی سو، هغه ډېر مالدار او دولت من وو، کله چي د هغه د وفات وخت نژدې سو، نو په يوه ورځ يې دېرش (۳۰) غلامان آزاد کړل، په طبقات ابن سعد کي ذکر سوي ده چي کله عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه وفات وسو نو د هغه په ميراث کي له نورو شيانو څه بغير يوازي سره زر

دومره وه چي د تقسیم لپاره قربانو هغه په تبر (تبرزین) سره ټوټه ټوټه کړل. حتیٰ چي د هغوی په لاسو کي تڼاکي راپورته سوې. (طبقات ابن سعد)

**تشریح**: د تخارج اصطلاحي معنیٰ او د هغه حقیقت او کیفیت خو تاسو ته معلوم سو او دا هم معلومه سوه چي تخارج صحیح او جائز دی، د دې سلسلې واضح دلیل دا دی چي د حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه څلور ښځي وې چي له هغوی څخه یوه ښځه "تماضر اشجعیه" وه. او تاسو ته معلومه سوه چي په میراث کي د ښځو حق یو ثُمن دی او څرنګه چي دوی ټوله څلور ښځي وې، نو ځکه هري یوې ته له ثُمن څخه څلورمه حصه "ربع" رسېدل. او تماضر اشجعیه د عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه له طرفه له میراث څخه ایستل سوې وه (لکه څرنګه چي موږ په لغاتو کي اشاره ورته وکړه) او حضرت عثمان رضي الله عنه د هغې سره د هغې د ربع (څلورمي حصې) په هکله پر اتیا زره دینارو صلح وکړه. نو معلومه سوه چي تخارج جائز او صحیح دی، د تخارج د جواز یو دلیل دا هم دی چي خارج (وتونکی وارث) چي کوم مال اخلي، هغه داسي دی لکه د ده د میراث د حصې عوض او ثمن، یعني ګواکي هغه خپله حصه د مذکوره مال (ثمن) په عوض کي خرڅه کړه. (احسن الهدایه)

## په میراث کي د سرو زرو او سپینو زرو د موجود والي په صورت کي د تخارج طریقه

قَالَ: وَإِنْ كَانَتِ التَّرِكَةُ فِضَّةً او که چیري ترکه سپین زر وي فَأَعْطَوْهُ ذَهَبًا او وارثان وتونکي وارث [خارج] ته سره زر ورکړي أَوْ كَانَ ذَهَبًا یا ترکه سره زر وي فَأَعْطَوْهُ فِضَّةً او وارثان هغه ته سپین زر ورکړي فَكَذٰلِكَ نو هم دغه حکم دی لِأَنَّهُ بَيْعُ الْجِنْسِ بِخِلَافِ الْجِنْسِ ځکه چي دا یو جنس د بل مخالف [جلا] جنس په عوض کي خرڅول دي فَلَا يُعْتَبَرُ التَّسَاوِيْ نو ځکه د برابرۍ اعتبار به نه کیږي وَيُعْتَبَرُ التَّقَابُضُ فِي الْمَجْلِسِ [لیکن] په مجلس کي دننه د قبضه کولو اعتبار به کیږي لِأَنَّهُ صَرْفٌ ځکه چي دا بیع صرف ده غَيْرَ أَنَّ الَّذِيْ فِيْ يَدِهٖ بَقِيَّةُ التَّرِكَةِ إِنْ كَانَ جَاحِدًا خو د کوم وارث په قبضه کي چي مابقي ترکه وي که چیري هغه [د ترکې د وجود] انکار کونکی وي يُكْتَفٰى بِذٰلِكَ الْقَبْضِ نو په همدې قبضه به اکتفاء کیږي [یعني همدا قبضه کافي ده] لِأَنَّهُ قَبْضُ ضَمَانٍ ځکه چي دا د ضمان والا قبضه ده فَيَنُوْبُ عَنْ قَبْضِ الصُّلْحِ نو ځکه دا به د صلح د قبضې قائم مقام وي وَإِنْ كَانَ مُقِرًّا او که چیري هغه وارث [د ترکې د وجود] اقرار کونکی وي لَا بُدَّ مِنْ تَجْدِيْدِ الْقَبْضِ نو قبضه نوي کول

ضروري دي [يعني په دې صورت کې له نوي سره قبضه کول لازمي دي] لِأَنَّهُ قَبْضُ أَمَانَةٍ ځکه چې هغه د امانت قبضه ده فَلَا يَنُوبُ عَنْ قَبْضِ الصُّلْحِ نو ځکه هغه به د صلح د قبضې قائم مقام نه وي وَإِنْ كَانَتِ التَّرِكَةُ ذَهَبًا وَفِضَّةً وَغَيْرَ ذٰلِكَ او که چیرې ترکه سره زر، سپين زر او داسې نور شیان وي فَصَالَحُوهُ عَلٰى ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ او وارثان د خارج [وتونکی وارث] سره صرف پر سرو زرو یا سپینو زرو صلح وکړي فَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ مَا أَعْطَوْهُ أَكْثَرَ مِنْ نَصِيبِهِ مِنْ ذٰلِكَ الْجِنْسِ نو دا ضروري ده چې خارج ته ورکول سوی مال به له هغه جنس څخه د ده له حصې څخه زیات وي حَتّٰى يَكُونَ نَصِيبُهُ بِمِثْلِهِ وَالزِّيَادَةُ بِحَقِّهِ مِنْ بَقِيَّةِ التَّرِكَةِ د دې لپاره چې د ده حصه د هغه په مثل سره سي او زیاتوب [زائد مقدار] د ده د هغه حق په مقابله کې راسي کوم چې په بقیه ترکه [مابقي میراث] کې دی اِحْتِرَازًا عَنِ الرِّبٰوا له سُود څخه د ځان ساتلو لپاره وَلَا بُدَّ مِنَ التَّقَابُضِ فِيمَا يُقَابِلُ نَصِيبَهُ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ او د دې خارج د حصې په مقابه کې چې کوم سره زر او سپین زر وي پر هغه قبضه کول ضروري دي لِأَنَّهُ صَرْفٌ فِي هٰذَا الْقَدْرِ ځکه چې صلح په همدې مقدار [یعني د خارج د حصې په مقدار] کې بیع صَرف ده وَلَوْ كَانَ بَدَلُ الصُّلْحِ عَرَضًا او که چیرې بدل صلح سامان وي جَازَ مُطْلَقًا نو مطلقاً صلح جائز ده لِعَدَمِ الرِّبٰوا ځکه چې [په دې صورت کې] ربوا نسته وَلَوْ كَانَ فِي التَّرِكَةِ دَرَاهِمُ وَدَنَانِيرُ وَبَدَلُ الصُّلْحِ دَرَاهِمُ وَدَنَانِيرُ أَيْضًا او که چیرې په ترکه کې دراهم او دنانیر وي او بدل صلح هم دراهم او دنانیر وي جَازَ الصُّلْحُ كَيْفَ مَا كَانَ نو هم هر ډول [په هره توګه] صلح جائز ده صَرْفًا لِلْجِنْسِ إِلٰى خِلَافِ الْجِنْسِ په ګرځولو سره د یوه جنس و مخالف جنس ته [یعني په دې صورت کې به یو جنس د خلاف الجنس عوض ګرځول کیږي] كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه څرنګه چې په بیع کې کیږي لٰكِنْ يُشْتَرَطُ التَّقَابُضُ لیکن [په مجلس کې] قبضه شرط ده لِلصَّرْفِ د بیع صَرف کېدلو په وجه.

**اللغات**: ﴿تساوي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو د بل سره برابر ېدل، برابري. ﴿تقابض﴾ مخکنی صیغه ده: یو تر بله قبضه سره کول، یعني د جانبینو قبضه. ﴿ینوب﴾ د نصر د باب مضارع ده: نائب کېدل، قائم مقام کېدل. ﴿عَرَض﴾ او عَرْض: سامان، د عَرَض جمع أَعْرَاض راځي او د عَرْض جمع

عُرُوْض راځي، ﴿بيع صَرف﴾ هغه بيع ته وايي چي په هغه کي دواړو طرفونو ته نقود وي. مثلاً يوه طرف ته دراهم وي او بل طرف ته دنانير وي (يعني درهم د دينار په عوض کي خرڅول يا برعکس)،

﴿تجديد﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: نوي کول.

**تشريح**: په عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که چيري ترکه سپين زر وي او وارثان خارج ته سره زره ورکړي، يا ترکه سره زر وي او وارثان خارج ته سپين زر ورکړي، نو دغه تخارج او صلح صحيح ده. برابره ده ورکول سوی مقدار لږ وي او که ډېر؛ ځکه چي دا يو جنس د بل (جلا) جنس په عوض کي خرڅول دي او د اختلاف الجنس په صورت کي تفاضل (کمي بيشي) يعني کمي وزياتوب جائز دی، خو څرنګه چي دا بيع صَرف ده او په بيع صَرف کي پر دواړو عوضَينو په مجلس کي دننه قبضه کول ضروري دي، نو ځکه په دې صورت کي هم د عقد په مجلس کي دننه پر پر عوضَينو قبضه کول ضروري دي. بيا د کوم وارث سره چي مابقي ترکه پاته وي، که چيري هغه د ترکې له موجود والي څخه انکار وکړي يعني داسي ووايي چي "زما سره د ترکې (ميراث) مال نسته"، نو د دې انکار په وجه مخکني قبضه کافي ده او د نوي قبضې ضرورت نسته، ځکه چي مخکني قبضه هم د ضمان والا قبضه ده او د صلح قبضه هم د ضمان والا قبضه ده، نو ځکه د مجانست په وجه به يوه قبضه د بلي قبضې قائم مقام کيږي، ها! که چيري هغه وارث د ترکې د موجود والي اقرار وکړي، نو اوس دا قبضه د امانت قبضه ګرځي، او د صلح د قبضې نه قائم مقام کيږي؛ ځکه چي د صلح قبضه مضمونه (ضمان والا) قبضه ده، او قاعده دا ده چي غير مضمونه قبضه د مضمونه قبضي قائم مقام کېدای نه سي، نو ځکه په دې صورت کي به د نوي قبضې (له نوي سره د قبضه کولو) ضرورت وي.

(۲)... که په ترکه کي سره زر هم وي، سپين زر هم وي او نور سامان هم وي، او وارثان (د خارج سره) صرف پر سرو يا سپينو زرو صلح وکړي، نو په صلح کي به دومره سره زر او سپين زر د بدل صلح (بدلِ خروج) په توګه ورکول کيږي چي د هغه مقدار په موجوده سرو او سپينو زرو کي د خارج له حق او حصې څخه زيات وي، يعني که خارج ته په ميراث کي ۱۰۰ ګرامه سره زر يا نيم کېلو سپين زر رسيږي، نو د تخارج په صورت کي به هغه ته له ۱۰۰ ګرامو سرو زرو څخه زيات ورکول کيږي يا له نيم کېلو سپينو زرو څخه به زيات ورکول کيږي، د دې لپاره چي ۱۰۰ ګرامه يا نيم کېلو د خپل جنس والا حصې سره مساوي او مقابل سي او کوم چي زائد مقدار دی، هغه د بل جنس مقابل سي او د خارج په حق کي د سُود (ربوا) شبهه پيدا نه سي. د دې په خلاف که چيري د سامان په عوض کي صلح سوې وي، نو هغه مطلق جائز ده. برابره ده خارج ته ورکول سوی مال د هغه له حصې څخه کم

وي او که زيات وي، او برابره ده په مجلس کي پر عوض قبضه سوې وي، که نه وي؛ ځکه چي د سامان او نقودو (دراهم و دنانيرو) جنسونه سره جلا دي او داختلاف الجنس په صورت کي تفاضل جائز دی.

(۳)... که ترکه دراهم ودنانير وي او بدل صلح (بدلِ خروج) هم له دراهمو و دنانيرو څخه وي، نو په دې صورت کي هم مطلق تفاضل (کمي وزياتوب) جائز دي؛ ځکه چي دراهم به د دنانيرو عوض ګرځول کيږي چي اختلاف الجنس ثابت سي، لهذا کله چي يو جنس د خلاف الجنس وطرف ته وګرځول سي، نو کمي وزياتوب به هم جائز وي، لېکن ځرنګه چي دا بيع صَرف ده. نو ځکه به د عقد په مجلس کي قبضه شرط وي.

## که په ميراث کي داسي مال وي کوم چي پر خلګو قرضاً پاته وي؟

قَالَ: وَإِنْ كَانَ فِي التَّرِكَةِ دَيْنٌ عَلَى النَّاسِ فرمايي: که چيري په ترکه کي پر خلګو قرض وي [يعني په ترکه کي داسي مال وي کوم چي (د مړي) پر خلګو قرضاً پاته وي] فَأَدْخَلُوهُ فِي الصُّلْحِ عَلَى أَنْ يُخْرِجُوا الْمُصَالِحَ عَنْهُ وَيَكُونَ الدَّيْنُ لَهُمْ او وارثان پر دې شرط دا قرض په صلح کي داخل کړي چي دوی به صلح کونکی [خارج] له دې قرض څخه باسي او دا قرض به ټوله د دوی [وارثانو] لپاره وي فَالصُّلْحُ بَاطِلٌ نو صلح باطله ده لِأَنَّ فِيهِ تَمْلِيكَ الدَّيْنِ مِنْ غَيْرِ مَنْ عَلَيْهِ ځکه په دې صورت کي د داسي کس [مُصالِح] له طرفه د قرض تمليک لازميږي چي پر هغه قرض نسته وَهُوَ حِصَّةُ الْمُصَالِحِ او هغه د مصالح [خارج] حصه ده وَإِنْ شَرَطُوا أَنْ يَبْرَأَ الْغُرَمَاءُ مِنْهُ وَلَا يَرْجِعُ عَلَيْهِمْ بِنَصِيبِ الْمُصَالِحِ او که وارثان دا شرط ولګوي چي مصالح به مقروضين له هغه [خپلي حصې] څخه بري کوي او هيڅ وارث به له مقروضينو څخه د مصالح حصه نه اخلي فَالصُّلْحُ جَائِزٌ نو صلح جائز ده لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ ځکه چي دا اسقاط دی وَهُوَ تَمْلِيكُ الدَّيْنِ مِمَّنْ عَلَيْهِ الدَّيْنُ و دا د مقروض له طرفه د قرض تمليک دی وَهُوَ جَائِزٌ او دا جائز دي وَهٰذِهِ حِيلَةُ الْجَوَازِ او دا د جواز [جائز کېدلو] حيله ده وَأُخْرَى أَنْ يُعَجِّلُوا قَضَاءَ نَصِيبِهِ مُتَبَرِّعِينَ او دويمه حيله دا ده چي وارثان د تبرّع [احسان] په توګه د مصالح حصه اداء کړي وَفِي الْوَجْهَيْنِ ضَرَرٌ بِبَقِيَّةِ الْوَرَثَةِ [لېکن] په دې دواړو صورتونو کي د نورو وارثانو نقصان دی وَالْأَوْجَهُ أَنْ يُقْرِضُوا الْمُصَالِحَ مِقْدَارَ نَصِيبِهِ وَيُصَالِحُوا عَمَّا وَرَاءَ الدَّيْنِ او غوره توجيه [او صورت] دا دی چي وارثان مصالح ته د هغه د حصې په اندازه قرض ورکړي او له قرض څخه بغير په نوره ترکه کي د

هغه سره صلح وکړي وَيُحِيْلهُمْ عَلَى اسْتِيفَاءِ نَصِيبِهِ مِنَ الْغُرَمَاءِ او مصالح له مقروضينو څخه د خپلي حصې د اخيستلو لپاره نور وارثان ذمه واره وګرځوي.

**اللغات**: ﴿تمليك﴾ مالک کول، مالک جوړول، مالک ګرځول. ﴿غرماء﴾ جمع د غَرِيْم ده: مقروضين، قرضداران، پور وړي، ﴿مُصَالِح﴾ د مفاعلې د باب اسم فاعل دی: صلح کونکی، ﴿إسقاط﴾ د افعال د باب مصدر دی: ساقطول، معافول. ﴿ورثة﴾ جمع د وَارِث ده: وارثان، ميراث خواره، ﴿نصيب﴾ حصه، برخه، حق، ﴿يحيلهم﴾ د افعال د باب مضارع ده: حواله کول. أَحَالَ الغَرِيْمَ بِدَيْنِهٖ عَلٰى آخَرَ: قرض پر بل چا حواله کول، بل څوک د قرض ذمه وار ګرځول، دلته يې مطلب دا دی چې مصالح وارث د خپل قرض اخيستل پر نورو وارثانو حواله کړي يعني له قرضدارانو څخه د خپل قرض اخيستلو په هکله بقيه وارثان ذمه واره وګرځوي او له هغوی څخه يې واخلي، ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: اخيستل، ترلاسه کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که د مورث (مړي) په ترکه کې داسي مال وي کوم چې في الحاله موجود نه وي بلکې پر يو سړي قرضاً پاته وي (يعني مُورث هغه يو چا ته په قرض ورکړی وي)، او د هغه وارثان پر دې شرط يو وارث خارج کړي (او د هغه سره پر يو عَين شي صلح وکړي) چې دا قرض زموږ لپاره پرېږده! او خارج هم له دې قرض څخه خپله حصه ختمه کړي او هغه د وارثانو لپاره پرېږدي (ګواکي هغه وارثان د خپل قرض [خپلي حصې] مالکان جوړ کړل)، نو په دې صورت په قرض (دَين) او عَين دواړو کې صلح باطليږي او تخارج نه صحيح کيږي؛ ځکه چې دا قرض پر مصالح (خارج) نه دی بلکې پر بل سړي باندي دی، او مصالح په عَين اخيستلو او قرض پرېښوولو سره ګواکي وارثان د دې قرض مالکان جوړ کړل، حال دا چې پر مصالح قرض باندي نه دی، نو ځکه د هغه له طرفه به د دې قرض تمليک باطل وي، ځکه د فقهي قاعده دا ده "مَنْ لَا يَمْلِكُ شَيْئًا لا يُمَلِّكُهُ غَيْرَه" يعني څوک چې د يو شي مالک نه وي هغه بل څوک د هغه شي مالک نه سي جوړولای، نو ځکه په دې قرض کې صلح باطله ده او څرنګه چې صفقه (عقد) يو دی، نو ځکه په عَين کې به هم صلح باطله وي.

**وإن شرطوا إلخ**: او که چېر وارثان دا شرط ولګوي چې مصالح به مقروضين له دې قرض (خپلي حصې) څخه بري کوي او له وارثانو څخه به يو هم له مقروضينو څخه د مصالح د حصې مطالبه نه کوي (يعني مُصالح به صرف له خپلي حصې څخه مقروضين بري کوي)، نو دا جائز دي؛ ځکه چې دا اسقاط دی، يا پر چا چې قرض باندي دی، هغه د قرض مالک کول دي، ګواکي دا د صلح د جواز يو حيله ده. او دويمه حيله دا ده چې وارثان څه کښته راسي او په قرض کې چې د مصالح کومه حصه ده، وارثان هغه له

خپل طرفه تبرعاً مصالح ته ورکړي چي په دې سره مصالح ته کما حقهٗ د هغه حصه حاصله سي، مګر په دې دواړو صورتونو کي د وارثانو نقصان دی، په اول صورت کي په دې توګه نقصان دی چي هغوی به له مقروضینو څخه د مصالح حصه واپس نه سي اخیستلای، او په دویم صورت کي به پر هغو د مصالح لپاره د قرض په عوض کي نغد مال لازم سي (یعني هغوی به دمُصالح د قرض د حصې په عوض کي مُصالِح ته [تبرعاً] نغد مال ورکوي)، حال دا چي "النَّقْدُ خَيْرٌ مِنَ النَّسِيْئَةِ" (نقد له قرض څخه غوره دی). نو په همدې وجه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي غوره او غیر ضار صورت دا دی چي په قرض کي د مصالح څومره حصه وي، د هغه په اندازه وارثان مصالح ته قرض ورکړي او وروسته له مقروضینو څخه هغه مقدار واخلي، د دې لپاره چي هغوی (وارثان) له ضرر او نقصان څخه محفوظ سي. (احسن الهدایه)

## پر غیر معیّنه ترکه صلح کول (حکم او تفصیل)

وَلَوْ لَمْ يَكُنْ فِي التَّرِكَةِ دَيْنٌ او که چیري په ترکه کي قرض نه وي وَأَعْيَانُهَا غَيْرُ مَعْلُومَةٍ او د ترکې اعیان [شیان] معلوم نه وي وَالصُّلْحُ عَلَى الْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ او صلح پر کَیلي یا وزني شي وسي قِيلَ: لَا يَجُوزُ نو ویل سوي دي: چي دا صلح جائز نه ده لِاحْتِمَالِ الرِّبَوا ځکه چي [په دې کي] د سُود احتمال سته وَقِيلَ: يَجُوزُ او ویل سوي دي: چي جائز ده لِأَنَّهُ شُبْهَةُ الشُّبْهَةِ ځکه چي دا [د سود] شبهة الشبهه ده وَلَوْ كَانَتِ التَّرِكَةُ غَيْرَ الْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ او که چیري ترکه له کَیلي او وزني شیانو څخه بغیر نور شیان وي لَكِنَّهَا أَعْيَانٌ غَيْرُ مَعْلُومَةٍ لیکن هغه نا معلومه اعیان [شیان] وي قِيلَ: لَا يَجُوزُ نو ویل سوي دي: چي صلح جائز نه ده لِكَوْنِهِ بَيْعًا ځکه چي دا صلح بیع ده إِذِ الْمُصَالَحُ عَنْهُ عَيْنٌ ځکه مصالح عنه عَین شی دی وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يَجُوزُ [لیکن] زیاته صحیح دا ده چي صلح جائز ده لِأَنَّهَا لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ ځکه چي د عَین جهالت نزاع ته رسول نه کوي [یعني د اختلاف او دعوې سبب نه جوړېږي] لِقِيَامِ الْمُصَالَحِ عَنْهُ فِي يَدِ الْبَقِيَّةِ مِنَ الْوَرَثَةِ ځکه چي مصالح عنه د نورو وارثانو په قبضه کي موجود دی وَإِنْ كَانَ عَلَى الْمَيِّتِ دَيْنٌ مُسْتَغْرِقٌ او که پر مړي مستغرق [محیط] قرض وي [یعني داسي قرض کوم چي پر ټوله ترکه یې احاطه کړې وي] لَا يَجُوزُ الصُّلْحُ وَلَا الْقِسْمَةُ نو صلح جائز نه ده او نه تقسیم جائز دی لِأَنَّ التَّرِكَةَ لَمْ يَتَمَلَّكْهَا الْوَارِثُ ځکه چي [په دې صورت کي] وارث د ترکې مالک نه

سو [په بله وينا: ځکه چي په دې صورت کي ترکه د وارث په ملکيت کي نه راځي] وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُسْتَغْرِقًا او که هغه قرض مستغرق نه وي [يعني پر مړي محيط قرض نه وي باندي. بلکي تر هغه لږ وي] لَا يَنْبَغِي أَنْ يُصَالِحُوا مَا لَمْ يَقْضُوا دَيْنَهُ نو پکار نه ده چي وارثان د مړي له قرض اداء کولو څخه مخکي صلح وکړي لِتَقَدُّمِ حَاجَةِ الْمَيِّتِ ځکه چي د مړي حاجت مخکي دی وَلَوْ فَعَلُوا او که [بيا هم] هغوی داسي وکړي [يعني له قرض اداء کولو څخه مخکي صلح وکړي] قَالُوا: يَجُوزُ نو مشايخو فرمايلي دي: چي صلح جائز ده وَذَكَرَ الْكَرْخِيُّ فِي الْقِسْمَةِ: أَنَّهَا لَا تَجُوزُ اسْتِحْسَانًا وَتَجُوزُ قِيَاسًا او د تقسيم په هکله امام کرخي رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي: چي هغه استحساناً جائز نه دی او قياساً جائز دی.

**اللغات:** ﴿أعيان﴾ مُتعيَّن شيان، واحد: عَيْنٌ ﴿المكيل﴾ کَيلي (مکيلي) شی، هغه شی کوم چي په کَيل (معلوم لوښي او ظرف) سره اندازه کيږي، ﴿موزون﴾ وزني (موزوني) شی، هغه شی کوم چي په وزن سره اندازه کيږي (تلل کيږي)، ﴿شبهة الشبهه﴾ د شبهې شبهه، ﴿لا تفضي﴾ د افعال له بابه د نفي صيغه ده: رسېدل، رسول، سبب جوړېدل، ﴿مُصالَح عنه﴾ د کوم شي په هکله چي صلح سوې وي، مثلاً په ترکه (ميراث) کي صرف پنځه پسونه وي او وارثان ديوه وارث (خارج) سره د هغه پسونو په هکله پر يو شي صلح وکړي (چي ته له ميراث څخه ووځه! او پسونه [ترکه] موږ ته پرېږده!)، نو په دې صورت کي پنځه پسونه مصالح عنها دي، ﴿مستغرق﴾ د استفعال د باب فاعل دی: په پوره توګه نيونکی، احاطه کونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د مورث (مړي) په ترکه کي داسي مال نه وي کوم چي پر يو چا قرضاً پاته وي، لېکن د ترکې شيان معلوم نه وي او يو وارث (خارج) د خپلي حصې په عوض کي پر کَيلي يا وزني شي صلح وکړي، نو په دې سلسله کي له مشايخو څخه دوه قوله نقل سوي دي: ①

اول قول کوم چي د امام ظهير الدين مرغيناني رَحِمَهُ الله دی، دا دی چي صلح جائز نه ده؛ ځکه چي د ترکې (ميراث) شيان معلوم نه دي او دا احتمال سته چي په ترکه کي هم کَيلي يا وزني شی موجود وي نو په دې اعتبار سره به د همجنسه (متحد جنس والا) شي په عوض کي صلح سوې وي او په هغه کي به کمي وزياتوب سوی وي کوم چي سُود دی، لهذا د سُود له احتمال څخه د بچ کېدلو لپاره دلته صلح صحيح نه ده.

② دویم قول کوم چي د امام ابو جعفر هندواني رَحِمَهُ الله دی، دا دی چي په دې مسئله کي صلح جائز ده؛ ځکه چي دلته د شبهةُ الشبهه په وجه د سُود احتمال سته او په شریعت کي شبهه خو معتبره ده لېکن شبهة الشبهه لره هیڅ اعتبار نسته. دلته شبهة الشبهه په دې توګه ده چي کېدای سي په ترکه کي کَیلي او وزني شی موجود نه وي یا که موجود وي نو کېدای سي چي د وارث (خارج) حصه به له بدل صلح څخه کمه وي، او په دې دواړو صورتونو کي صلح صحیح ده. لهذا کله چي دلته د جواز دوه اړخونه دي او د عدمِ جواز صرف احتمال سته. نو ځکه د جواز والا اړخ به غالب او راجح وي. قاضي خان همدا قول اصح ګرځولی دی. (بنایه ج:۹، ص:۵۱)

ولوكانت التركة إلخ: مسئله دا ده که چیري په ترکه کي کَیلي او وزني شیان نه وي لېکن په هغه کي داسي شیان (اعیان) وي کوم چي نا معلومه وي، او بیا یو وارث (خارج) د کَیلي یا وزني شي په عوض کي صلح وکړي، نو د یوه قول مطابق دا صلح صحیح نه ده؛ ځکه چي صلح بیع ده، حال دا چي دلته مصالح عنه (اعیان) نا معلوم او مجهول دي لهذا څرنګه چي د مبیع جهالت بیع فاسدوي، همداسي د مصالح عنه جهالت هم بیع فاسدوي. لېکن په دې سلسله کي اصح او معتمد قول دا دی چي صلح جائز ده؛ ځکه که څه هم مصالح عنه مجهول دی، لېکن هغه د نورو وارثانو په قبضه کي موجود دی لهذا د هغه جهالت مفضي الی النزاع نه ګرځي، نو ځکه هغه به له صلح څخه مانع هم نه ګرځي؛ ځکه چي صرف مفضي الی النزاع جهالت له عقد څخه مانع ګرځي.

وإن كان إلخ: فرمایي که چیري پر مړي (مُورِث) دومره قرض باندي وي چي هغه د ده پر ټوله ترکه احاطه کړې وي (مثلا ترکه دوه زره درهمه وي او قرض هم دوه زره درهمه یا تر دې هم زیات وي)، نو په دې صورت کي د هیڅ وارث لپاره نه صلح او تخارج کول جائز دي او نه د ترکې (میراث) تقسیمول صحیح دي؛ ځکه چي د محیط قرض په وجه په ترکه کي د وارثانو ملکیت نه سي ثابتېدای. او له ملکیت څخه بغیر صلح او تقسیم نه سي جائز کېدای. او که چیري پر مړي قرض خو باندي وي لېکن هغه محیط او مستغرق نه وي، نو هم د مړي له قرض اداء کولو څخه مخکي صلح کول مناسب نه دي؛ ځکه چي قرض پر مړي لازم شُده حق دی او د هغه اداء کول ضروري دي. لهذا غوره همدا ده چي اول د مړي قرضونه اداء کړی سي چي د هغه غاړي خلاصې سي، بیا د صلح او تخارج وطرف ته رجوع وسي، خو بیا هم که له قرض اداء کولو څخه مخکي صلح وسي، نو جائز دي؛ ځکه چي لږ قرض له ارث او صلح څخه مانع نه ګرځي، ځکه عموماً په ترکه کي څه نا څه قرضونه وي. دا خو د صلح حکم دی، او پاته سو د ترکې (میراث) تقسیمول، نو د هغه په باره کي د امام کرخي رَحِمَهُ الله رایه دا ده چي د قرض له اداء کولو څخه مخکي استحساناً تقسیم جائز نه دی، لېکن قیاساً جائز دی. والله أعلم وعلمه أتم



# كِتَابُ الْمُضَارَبَةِ

## (دا) كتاب د مضاربت (د احكامو په بيان كي) دى

**تشريح**: له كتابُ الصلح څخه وروسته د كتابُ المضاربة بيانولو وجه دا ده چي په صلح او مضاربت دواړو كي د نفع حصول مقصود وي، خو څرنګه چي صلح د مضاربت په مقابله كي زياته واقع كيږي، نو ځكه صلح له مضاربت څخه مخكي بيان كړى سوې ده.

**د مضاربت لغوي او اصطلاح معنىٰ**: مضاربت له "ضرب" څخه مشتق دى چي د هغه يوه معنىٰ ده: پر ځمكه تلل، تګ كول، لكه څرنګه چي په قرآن كريم كي ذكر سوي دي: ﴿وَآخَرُوْنَ يَضْرِبُوْنَ فِي الْأَرْضِ يَبْتَغُوْنَ مِنْ فَضْلِ اللهِ﴾ [المزمل: ٢٠]

او د شريعت په اصطلاح كي د مضاربت معنىٰ ده: "هُوَ عَقْدُ شِرْكَةٍ فِي الرِّبْحِ بِمَالٍ مِنْ رَجُلٍ وَعَمَلٌ مِنْ آخَر" (يعني مضاربت په نفع كي هغه عقد شركت دى چي مال د يوه سړي له طرفه وي او كار د بل سړي له طرفه وي)، يعني مضاربت دې ته وايي چي پيسې د يوه سړي وي او عمل (كاروبار) د بل سړي وي او نفع (ګټه) د دواړو په مينځ كي مشتركه وي. مال (پيسې) چي د كوم سړي وي، هغه ته "رَبُّ الْمَال" وايي، او كوم يو چي په دغه مال سره كاروبار كوي، هغه ته "مُضَارِب" وايي.

## د مضاربت لغوي معنىٰ او عقلي دلائل

اَلْمُضَارَبَةُ مُشْتَقَّةٌ مِنَ الضَّرْبِ فِي الْأَرْضِ مضاربت له "ضرب فى الارض" څخه مشتق دى [چي د هغه معنىٰ ده: پر ځمكه تلل (تګ كول)] سُمِّيَ بِهَا لِأَنَّ الْمُضَارِبَ يَسْتَحِقُّ الرِّبْحَ بِسَعْيِهِ وَعَمَلِهِ او عقد مضاربت ځكه په مضاربت سره نومول سوى دى چي مضارب په كوښښ [زيار ايستلو] او كار كولو سره د نفع مستحق كيږي وَهِيَ مَشْرُوعَةٌ او مضاربت مشروع [په شريعت كي جائز او جاري] دى لِلْحَاجَةِ إِلَيْهَا ځكه چي هغه ته ضرورت دى [يعني د مضاربت د مشروعيت او جواز يو دليل دا دى چي هغه ته د خلكو احتياج او ضرورت سته] فَإِنَّ النَّاسَ بَيْنَ غَنِيٍّ بِالْمَالِ غَبِيٍّ عَنِ التَّصَرُّفِ فِيهِ ځكه ځيني خلك

د مال په اعتبار سره مالداره وي لېکن په مال کي د تصرف [کاروبار کولو] په باره کي غبي [ناواقفه] وي وَبَيْنَ مُهْتَدٍ فِي التَّصَرُّفِ صِفْرِ الْيَدِ عَنْهُ او ځيني په تصرف کولو کي لار موندونکي [ماهره] وي لېکن له مال څخه بالکل خالي لاسي وي فَمَسَّتِ الْحَاجَةُ إِلَى شَرْعِ هَذَا النَّوْعِ مِنَ التَّصَرُّفِ لهذا د دا ډول تصرف و مشروع کېدلو ته ضرورت پېښ سو لِيَنْتَظِمَ مَصْلَحَةُ الْغَبِيِّ وَالذَّكِيِّ وَالْفَقِيرِ وَالْغَنِيِّ د دې لپاره چي د غبي، هوښيار، فقير او مالدار مصلحتونه منظم سي [او د ټولو ضرورت پوره سي] وَبُعِثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ يُبَاشِرُونَهُ او [د مضاربت د جواز واضح نقلي دليل دا دی چي] نبي کريم ﷺ مبعوث کړی سو په داسي حال کي چي خلګو د مضاربت عقد کوی فَقَرَّرَهُمْ عَلَيْهِ نو نبي کريم ﷺ هغوی پر دغه عقد باقي پرېښول وَتَعَامَلَتْ بِهِ الصَّحَابَةُ او صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم هم د مضاربت معامله کوله [نو ځکه په دې حوالو سره مضاربت جائز او صحيح دی] ثُمَّ الْمَدْفُوعُ إِلَى الْمُضَارِبِ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ بيا مضارب ته ورکول سوی مال د هغه په قبضه کي امانت دی لِأَنَّهُ قَبَضَهُ بِأَمْرِ مَالِكِهِ ځکه چي مضارب پر مال د هغه د مالک په حکم سره قبضه کړې ده لَا عَلَى وَجْهِ الْبَدَلِ وَالْوَثِيقَةِ د عوض او وثيقه [رهن] په توګه يې قبضه نه ده پر کړې وَهُوَ وَكِيلٌ فِيهِ [همدارنګه] مضارب په دې مال کي [د ربُ المال] وکيل دی لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ فِيهِ بِأَمْرِ مَالِكِهِ ځکه چي هغه د مال د مالک په حکم سره [د هغه د منشاء او خوشی مطابق] تصرف کوي وَإِذَا رَبِحَ او کله چي مضارب [په هغه مال سره] نفع وکړي فَهُوَ شَرِيكٌ فِيهِ نو مضارب په هغه نفع کي شريک ګرځي لِتَمَلُّكِهِ جُزْءًا مِنَ الْمَالِ بِعَمَلِهِ ځکه چي هغه د خپل کار په وجه د مال د يوې حصې مالک کيږي فَإِذَا فَسَدَتْ او کله چي مضاربت فاسد سي ظَهَرَتِ الْإِجَارَةُ نو هغه اجاره ښکاره کيږي [يعني که چيري مضاربت فاسد سي نو هغه اجاره ګرځي او مضارب داسي ګرځي لکه أجير (په اُجرت نيول سوی مزدور)] حَتَّى اسْتَوْجَبَ الْعَامِلُ أَجْرَ مِثْلِهِ تر دې چي [په دې صورت کي] مضارب د اُجرت مثلي مستحق کيږي [يعني په دې صورت کي به ربُ المال هغه ته د خپل کار اُجرت (مزدوري) ورکوي. او هغه په نفع کي نه شريک کيږي] وَإِذَا خَالَفَ او کله چي مضارب [د ربُ المال د حکم] مخالفت وکړي [يعني د ربُ المال د حکم په خلاف کار وکړي] كَانَ غَاصِبًا نو هغه غاصب

ګرځي لِوُجُودِ التَّعَدِّی مِنْهُ عَلٰی مَالِ غَیْرِہٖ ځکه چې [په دې صورت کې] د مضارب له طرف د بل چا [ربُ المال] پر مال تعدی موجوده سوه.

**اللغات**: ﴿ضرب﴾ د ضرب د باب مصدر دی چي د هغه يوه معنیٰ ده: تلل، تګ او سفر کول، ﴿الربح﴾ نفع، ګټه، منافع، ﴿غبي﴾ کم ذهنه (کند ذهنه)، مراد ځني نا تجربه کار او نا واقف (لا علمه) دی، ﴿مهتد﴾ د افتعال د باب فاعل دی: لاره موندونکی (لاره پیدا کونکی)، مراد ځني واقف او ماهر (تجربه کار) دی، ﴿صفر اليد﴾ خالي لاسی (کوم چي هيڅ مال نه لري)، ﴿بعث﴾ د فتح له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: استول کېدل (د معلوم په صيغه سره: استول)، بُعِثَ النبيّ ﷺ: يعني کله چي نبي کريم ﷺ د الله له طرفه دې نړۍ ته واستول سو (يعني پېغمبر جوړ کړی سو)، ﴿تعاملت﴾ د تفاعل د باب ماضي ده: يو د بل سره معامله کول، ﴿وثيقة﴾ مضبوطي (مضبوطتيا)، هغه څه چي د هغه په ذريعه معامله مضبوطه کړی سي او عاقدين يو پر بل اعتماد وکړي، (او رهن هم داسي دی، يعنی يو سړی چي بل سړي ته مال ورکړي او له هغه شخصه يو شی په رهن کي واخلي نو په دې رهن [مرهون شي] سره مال ورکونکي [مرتهن] ته اعتماد حاصل سي، او په دې سره د هغه لپاره خپل مال حاصلول مضبوط او لازم وګرځي)، لنډه دا چي دلته له "وثيقه" څخه مراد "رهن" دی، او د عبارت مطلب دا دی چي مضارب له مالک څخه د مضاربت مال د رهن په توګه نه دی اخيستی (يا بله وينا دا چي ربُ المال هغه ته د مضاربت په توګه مال نه دی ورکړی)، - ﴿إجارة﴾ د افعال د باب مصدر دی: په اجاره (کرايه) ورکول، په أُجرت (مزدوري) نيول، په کرايه نيول، ﴿رَبِح﴾ د سمع د باب ماضي ده: (په کاروبار کي) ګټه کول، نفع حاصلول، ﴿التعدّي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: تجاوز کول، نا حقه تصرف کول.

**تشريح**: په دې عبارت کي د مضاربت لغوي معنیٰ او د هغه د جواز دلائل بيان سوي دي کوم چي له ترجمې څخه هم ښکاره دي او تشريح ته يې څه ضرورت نسته، خو دا په ياد لرئ! چي کله په يو وجه مضاربت فاسد سي، نو په دې صورت کي مضاربت په اجاره بدليږي؛ ځکه ښکاره خبره ده چي مضاربت ظاهراً اجاره ده، چي يو سړی د مالک (ربُ المال) په پيسو سره د هغه لپاره کاروبار کوي او مالک هغه ته أُجرت او مزدوري ورکوي. (احسن الهدايه)

## د مضاربت اصطلاحي تعريف او د صحت شرطونه

قَالَ: اَلْمُضَارَبَةُ عَقْدٌ يَقَعُ عَلَی الشِّرْكَةِ بِمَالٍ مِنْ أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ فرمايي: مضاربت داسي عقد دی کوم چي [د نفع] پر شرکت واقع کيږي چي په هغه کي له يوه طرفه مال وي وَمُرَادُهُ الشِّرْكَةُ فِي الرِّبْحِ او له

شرکت څخه مراد د نفع [ګټې] شرکت دی وَهُوَ يُسْتَحَقُّ بِالْمَالِ مِنْ أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ وَالْعَمَلِ مِنَ الْجَانِبِ الْآخَرِ او نفع مستحق کيږي له يوه طرفه د مال او له بل طرفه د کار په ذريعه [يعني د نفع (ګټې) استحقاق له يوه طرفه په مال او له بل طرفه په کار سره ثابتيږي] وَلَا مُضَارَبَةَ بِدُونِهَا او له شرکت څخه بغير مضاربت نه ثابتيږي أَلَا تَرَى أَنَّ الرِّبْحَ لَوْ شُرِطَ كُلُّهُ لِرَبِّ الْمَالِ آيا ته نه ګورې! چې کله د ربُ المال لپاره ټوله نفع شرط کړی سي كَانَ بِضَاعَةً نو دا بضاعت ګرځي [يعني په دې صورت کې مضاربت عقد بضاعت ګرځي] وَلَوْ شُرِطَ جَمِيعُهُ لِلْمُضَارِبِ او که ټوله نفع د مضارب لپاره شرط کړی سي كَانَ قَرْضًا نو دا قرض ګرځي قَالَ: وَلَا تَصِحُّ إِلَّا بِالْمَالِ الَّذِي تَصِحُّ بِهِ الشَّرِكَةُ فرمايي: او نه صحيح کيږي مضاربت مګر په هغه مال سره په کوم سره چې شرکت صحيح کيږي وَقَدْ تَقَدَّمَ بَيَانُهُ مِنْ قَبْلُ او د دې بيان مخکې سوی دی وَلَوْ دَفَعَ إِلَيْهِ عَرَضًا وَقَالَ: بِعْهُ وَاعْمَلْ مُضَارَبَةً فِي ثَمَنِهِ او که چيرې ربُ المال يو څه [مضارب] ته سامان ورکړي او هغه ته ووايي: چې دا خرڅ کړه! او د دې په ثمن سره مضاربت وکړه! جَازَ نو دا جائز دي لِأَنَّهُ يَقْبَلُ الْإِضَافَةَ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ تَوْكِيلٌ وَإِجَارَةٌ ځکه چې عقد مضاربت اضافت قبلوي په دې اعتبار سره چې دا توکيل [وکيل جوړول] او اجاره [په اُجرت نيول] دي فَلَا مَانِعَ مِنَ الصِّحَّةِ نو ځکه [د هغه] له صحيح والي څخه به هيڅ شی مانع نه وي وَكَذَا إِذَا قَالَ لَهُ: اِقْبِضْ مَالِي عَلَى فُلَانٍ وَاعْمَلْ بِهِ مُضَارَبَةً او همدارنګه کله چې ربُ المال مضارب ته ووايي: زما کوم مال چې پر فلانکي دی هغه واخله! او په هغه سره مضاربت وکړه! جَازَ نو دا [هم] جائز دي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: اِعْمَلْ بِالدَّيْنِ الَّذِي فِي ذِمَّتِكَ په خلاف د هغه صورت کله چې ربُ المال [مضارب ته] ووايي: زما کوم قرض چې ستا پر ذمه دی په هغه سره مضاربت وکړه! حَيْثُ لَا تَصِحُّ الْمُضَارَبَةُ نو [په دې صورت کې] مضاربت نه صحيح کيږي لِأَنَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ لَا يَصِحُّ هَذَا التَّوْكِيلُ ځکه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز داسې توکيل او وکيل جوړول] نه صحيح کيږي عَلَى مَا مَرَّ فِي الْبُيُوعِ لکه [مخکې] چې دا په کتاب البيوع کې تېر سوه وَعِنْدَهُمَا يَصِحُّ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز صحيح کيږي لَكِنْ يَقَعُ الْمِلْكُ فِي الْمُشْتَرَى لِلْآمِرِ

لېکن په رانیول سوي شي کي به د آمر [ربُ المال] لپاره ملکیت ثابتیږي فَتَصِيرُ مُضَارَبَةً بِالْعَرَضِ او دا به د سامان په عوض کي مضاربت وګرځي.

**اللغات**: ﴿عقد﴾ معامله، تړون، ﴿مُراد﴾ مقصود، ﴿بضاعة﴾ د دې لفظ څو معناوي وي: ① د مال يوه حصه، ② سامان (سلعة)، ③ عقد بضاعت، د "عقد بضاعت" مختصر تعريف دا دی چي "بېله أجرته (مفت) د يو چا سامان خرڅول"، مثلاً يو څوک بل چا ته مال يا سامان ورکړي او هغه ته ووايي چي ته زما سره احسان او مرسته وکړه!، دا خرڅ کړه! او په هغه سره زما لپاره ګټه وکړه! يعني ګټه (نفع) ټوله زما ده، نو دې ته عقد بضاعت وايي، دلته همدا معنیٰ مراد ده. ﴿توكيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: وکيل کول، وکيل جوړول. ﴿آمر﴾ د نصر د باب فاعل دی: امر کونکی، حکم کونکی.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي، چي يوه مسئله د مضاربت د اصطلاحي تعريف په هکله ده، يعني په مضاربت کي د يوه سړي له طرفه مال او پيسې وي او د بل سړي له طرفه کار وي او حاصل شُده نفع د دواړو په مينځ کي مشترکه وي کوم چي به د دوی د شرط مطابق د دوی په مينځ کي تقسيمول کيږي، په مضاربت کي شرکت فی الربح (يعني ګټه مشترک کېدل) ضروري دي، همدا وجه ده که يو فريق د ټولي نفعي د اخيستلو شرط ولګوي، نو عقد مضاربت باطليږي او په عقد بضاعت يا په قرض سره بدليږي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چي د مضاربت د صحت (صحيح کېدو) لپاره دا ضروري ده چي رأسُ المال (د مضاربت مال) به له نقودو څخه وي يعني له دراهمو يا دنانيرو (يا مثلاً له کلدارو يا افغانيو) څخه به وي، برابره ده هغه في الحاله نقود وي يا له خرڅولو او تغيّر څخه وروسته نقود جوړ سي، مثلاً ربُ المال مضارب ته يو سامان ورکړي او هغه ته ووايي چي "دا خرڅ کړه! او د هغه په ثمن سره مضاربت وکړه!"، نو دا د مضاربت لپاره د وکيل جوړولو په څېر صورت دی او داسي عقد مضاربت به د سامان خرڅولو وطرف ته مضاف کيږي، او دا د عقد له جواز څخه مانع نه دي؛ ځکه چي عقد مضاربت اضافت قبلوي، همدا وجه ده که يو څوک بل چا ته ووايي "چي پر فلانکي زما کوم مال باندي دی، پر هغه قبضه وکړه! (يعني هغه ځني واخله!) او په هغه سره مضاربت وکړه!" نو دا صورت هم صحيح دی؛ ځکه چي په دې صورت کي هم مضاربت د ما بعد القبض وخت وطرف ته مضاف کړی سوی دی.

د دې په خلاف که د يو چا مثلاً د خالد پر زيد قرض باندي وي او خالد زيد ته ووايي "چي زما پر تا کوم قرض باندي دی، په هغه سره مضاربت وکړه!"، نو دا صورت جائز نه دی او په دې صورت کي مضاربت نه صحيح کيږي؛ ځکه چي د اضافت والا مضاربت د توکيل په حواله سره صحيح کيږي، حال دا چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په داسي صورت کي توکيل صحيح نه دی، نو ځکه

مضاربت به هم نه صحیح کیږي. او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز که څه هم توکیل صحیح دی لېکن په هغه سره چي کوم ملکیت ثابتیږي، هغه به د آمر (ربُ المال) په حق کي ثابتیږي او دا مضاربت به مضاربت بالعرض وي، او مضاربت بالعرض فاسد دی؛ ځکه چي دا شرط او ضروري ده چي د مضاربت مال به له نقودو (دراهم یا دنانیرو او داسي نورو) څخه وي. (احسن الهدایه)

## د مضاربت د صحت نور شرطونه

قَالَ: وَمِنْ شَرْطِهَا أَنْ يَكُونَ الرِّبْحُ بَيْنَهُمَا مُشَاعًا لَا يَسْتَحِقُّ أَحَدُهُمَا دَرَاهِمَ مُسَمَّاةً مِنَ الرِّبْحِ فرمایي: د مضاربت له شرطونو څخه دا هم دي چي نفع به د دواړو په مینځ کي مشترکه وي [او] په دوی کي به یو له نفعي څخه د مُتعیَّنو دراهمو مستحق نه وي لِأَنَّ شَرْطَ ذٰلِكَ يَقْطَعُ الشَّرِكَةَ بَيْنَهُمَا ځکه چي دا شرط د دوی په مینځ کي شرکت ختموي وَلَا بُدَّ مِنْهَا حال دا چي [په مضاربت کي] شرکت ضروري دي كَمَا فِي عَقْدِ الشَّرِكَةِ لکه څرنګه چي په عقد شرکت کي [شرکت ضروري دی] قَالَ: فَإِنْ شَرَطَ زِيَادَةَ عَشَرَةٍ فرمایي: که چیري [په مضاربت کي] د لسو زیاتو درهمو [داخیستلو] شرط ولګول سي فَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ نو د مضارب لپاره أُجرت مثلي دی [یعني په دې صورت کي به مضارب ته صرف أجرت مثلي ورکول کیږي] لِفَسَادِهِ ځکه چي مضاربت فاسد سو فَلَعَلَّهُ لَا يَرْبَحُ إِلَّا هٰذَا الْقَدْرَ ځکه کېدای سي چي مضارب صرف همدومره مقدار نفع [کټه] وکړي فَتَنْقَطِعُ الشَّرِكَةُ فِي الرِّبْحِ نو په نفع کي به شرکت ختم سي وَهٰذَا لِأَنَّهُ ابْتَغَى عَنْ مَنَافِعِهِ عِوَضًا او دا [دأجرت مثلي وجوب] په دې وجه دی چي مضارب د خپلي نفع د عوض طلب وکړی وَلَمْ يَنَلْ لِفَسَادِهِ او د مضاربت فاسدېدلو په وجه مضارب هغه حاصل نه کړی وَالرِّبْحُ لِرَبِّ الْمَالِ او [په دې صورت کي] ټوله نفع د ربُ المال لپاره ده لِأَنَّهُ نَمَاءُ مِلْكِهِ ځکه چي دا نفع صرف د هغه د ملکیت وده [او ثمره] ده وَهٰذَا هُوَ الْحُكْمُ فِي كُلِّ مَوْضِعٍ لَمْ تَصِحَّ الْمُضَارَبَةُ او دا حکم په هر هغه ځای کي دی چیري چي مضاربت نه صحیح کیږي وَلَا تُجَاوِزُ بِالْأَجْرِ الْقَدْرَ الْمَشْرُوطَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ او أُجرت مثلي به له مشروط مقدار څخه نه اضافه کیږي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ❁ په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله كَمَا بَيَّنَّا فِي الشَّرِكَةِ لکه څرنګه چي موږ په "کتاب الشرکة" کي بیان کړه وَيَجِبُ الْأَجْرُ وَإِنْ لَمْ يَرْبَحْ او [په مضاربت فاسده کي] أُجرت

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في مجمع الأنهر (ج:٣، ص:٤٢٥)، وكذا في رد المحتار (ج:٤، ص:٥٣٩). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٠٩١]

واجبیږي که څه هم مضارب نفع [ګټه] نه وي کړې فِي رِوَايَةِ الْأَصْلِ د مبسوط په روایت کې [یعني دا حکم په مبسوط کې مذکور دی] لِأَنَّ أَجْرَ الْأَجِيرِ يَجِبُ بِتَسْلِيمِ الْمَنَافِعِ أَوِ الْعَمَلِ ځکه چې د مزدور اُجرت واجبیږي د منافعو په ورسپارلو سره یا په کار کولو سره وَقَدْ وُجِدَ او هغه دلته موجود سوه وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَا يَجِبُ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چې [په مضاربت فاسده کې] اُجرت نه واجبیږي اِعْتِبَارًا بِالْمُضَارَبَةِ الصَّحِيحَةِ پر مضاربت صحیحه په قیاس کولو سره مَعَ أَنَّهَا فَوْقَهَا سره د دې چې مضاربت صحیحه له مضاربت فاسده څخه بالا [فائق] دی وَالْمَالُ فِي الْمُضَارَبَةِ الْفَاسِدَةِ غَيْرُ مَضْمُونٍ بِالْهَلَاكِ او په مضاربت فاسده کې د هلاکت [ضایع کېدلو] په وجه د مال ضمان نه لازمیږي اِعْتِبَارًا بِالصَّحِيحَةِ پر مضاربت صحیحه په قیاس کولو سره وَلِأَنَّهُ عَيْنٌ مُسْتَأْجَرَةٌ فِي يَدِهِ او ځکه چې مال خو د هغه په قبضه کې په اجاره اخیستلی سوی شی دی [یعني د مضارب په قبضه کې چې کوم مال وي، هغه داسې دی لکه په اُجرت سره (د امانت په توګه) اخیستل سوی مال] وَكُلُّ شَرْطٍ يُوجِبُ جَهَالَةً فِي الرِّبْحِ او هر هغه شرط کوم چې په نفع کې جهالت پیدا کړي يُفْسِدُهُ هغه مضاربت فاسدوي لِاخْتِلَالِ مَقْصُودِهِ ځکه چې په دې سره د نفع مقصود مختل [او مختلف] کیږي [یعني په دې سره په هغه کې خلل راځي] وَغَيْرُ ذَٰلِكَ مِنَ الشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ لَا يُفْسِدُهَا او له دې څخه بغیر نور فاسد شرطونه مضاربت نه فاسدوي وَيَبْطُلُ الشَّرْطُ بلکې [په خپله] شرط باطلیږي كَاشْتِرَاطِ الْوَضِيعَةِ عَلَى الْمُضَارِبِ لکه پر مضارب د تاوان شرط لګول.

**اللغات**: ﴿مشاع﴾ د ضرب د باب اسم مفعول دی، شایع شُده (خپور)، مشترک، ﴿مسماة﴾ د تفعیل د باب اسم مفعول دی: نومول سوی، مُتعیّن، ټاکل سوی، ﴿يقطع﴾ د فتح د باب مضارع ده: پرېکول (غوڅول)، ختمول، ﴿ابتغى﴾ د افتعال د باب ماضي ده: طلب کول، غوښتل، ﴿لم ينل﴾ د فتح له بابه د جحد صیغه ده: حاصلول، ترلاسه کول، ﴿مستأجرة﴾ د استفعال د باب مؤنث اسم مفعول دی: په اُجرت (کرایه) اخیستل سوی شی، ﴿وضيعة﴾ تاوان، نقصان، خساره.

**تشریح**: په دغه عبارت کې دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(١)... اوله مسئله دا ده چې د عقد مضاربت د صحت لپاره دا شرط او ضروري ده چې حاصلېدونکې نفع (ګټه) به د ربُ المال او د مضارب په مینځ کې مشترکه وي او که چیري له دوی څخه یو د ځان

لپاره د خاص او ټاكلي مقدار اخيستلو شرط ولګوي، نو دا صحيح نه دي؛ ځکه چې دا شرط شركت فاسدوي، حال دا چې د مضاربت د صحت لپاره شركت ضروري دی.

(۲)... دويمه مسئله دا ده كه له مضارب او ربُ المال څخه يو مثلاً مضارب د خپل ځان لپاره له نفعي څخه د لس فيصده زياتي نفعي شرط ولګوي (مثلا مضارب و ربُ المال ته داسي ووايي: چي په حاصل شُده نفع [ګټه] كي به ته! ما ته د خپلي حصې سره لس درهمه نور راكوې!)، نو په دې شرط سره عقد فاسديږي او په دې صورت كي به مضارب ته د هغه د كار أُجرت مثلي وركول كيږي؛ ځکه كېداى سي چي صرف همدومره مقدار ګټه وسي او د لسو درهمو څخه بغير نوره نفع حاصله نه سي، نو ځکه به دا شرط د عقد باطلونكى وي. او كومه نفع چي حاصله سي هغه به ټوله ربُ المال ته وركول كيږي؛ ځکه چي هغه صرف د ربُ المال په مال سره حاصل شُده نفع (ګټه) ده. لېكن كله چي مضارب ته أُجرت مثلي وركول كيږي نو د دې خبري خيال به ساتل كيږي چي هغه ته وركول كېدونكى أُجرت له مشروط كړه مقدار څخه زيات نه سي، مثلاً كه أُجرت مثلي زر درهمه وي او په نفع كي د هغه لپاره مشروط او ټاكل سوى مقدار نهه سوه درهمه وي، نو هغه ته به نهه سوه درهمه وركول كيږي، دا حكم د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز دی. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز حكم دا دی چي هغه ته به په هر صورت كي أُجرت مثلي وركول كيږي، برابره ده هغه له ټاكل سوي مقدار څخه زيات وي او كه كم وي، وبهٖ قالت الائمة الثلاثة. (بنايه)

ويجب الأجر الخ: فرمايي: امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط كي ذكر كړي دي چي برابره ده په عقد مضاربت كي نفع حاصله سي، كه نه، په هر صورت كي به هغه ته أُجرت مثلي وركول كيږي؛ ځکه چي د أُجرت مثلي دارومدار د نفع پر ورسپارلو يا پر كار كولو دی، او څرنګه چي دلته د مضارب له طرفه كار كول (عمل) موجود دي، نو ځکه به هغه د أُجرت مستحق وي. له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوى دی چي څرنګه په مضاربت صحيحه كي د نفعي نه حاصلېدلو (ګټه نه كېدلو) په صورت كي مضارب ته أُجرت نه وركول كيږي، همداسي به په مضاربت فاسده كي هم د نفع نه حاصلېدلو په صورت كي هغه ته أُجرت نه وركول كيږي، ځکه كله چي په مضاربت صحيحه كي د عدم ربح (ګټه نه كېدلو) په صورت كي مضارب د أُجرت نه مستحق كيږي، نو ښكاره خبره ده چي په مضاربت فاسده كي به هغه په درجه اولىٰ د أُجرت نه مستحق كيږي، ځکه مضاربت صحيحه له مضاربت فاسده څخه فائق او بالا دی.

والمال في إلخ: فرمايي: څرنګه چي په مضاربت صحيحه کي که د مضارب له تعدی څخه بغير مال هلاک او ضايع سي، نو پر مضارب د هغه ضمان (تاوان) نه لازميږي، همداسي به په مضاربت فاسده کي هم مال په هلاکت سره نه مضمون کيږي، او په دي وجه هم چي د مضاربت مال داسي دی لکه امانت مال، او امانت په هلاکت سره نه مضمون کيږي (لکه مخکي چي څو ځله ذکر سوه چي که امانت د امين په قبضه کي هلاک سي، نو له هغه څخه تاوان نه سي اخيستل کېدای).

وکل شرط إلخ: فرمايي: هر هغه شرط چي په هغه سره په نفع کي جهالت پيدا سي، هغه مضاربت فاسدوي، مثلاً ربُ المال د مضارب سره پر دې شرط مضاربت وکړي چي "ته! (مضارب) به ما ته تر يوه کاله پوري يو کور د اوسېدلو لپاره راکوې!"، يا "ته! به ماته تر يوه کاله پوري د کښت کرلو لپاره خپله ځمکه راکوې!"، نو په دا ډول شرط سره مضاربت فاسديږي؛ ځکه چي په داسي کولو سره به حاصل شُده نفع (ګټه) د عمل او د کور دواړو اُجرت وګرځي (يعني ګواکي ربُ المال نيمه نفع د مضارب د عمل او د کور [يا ځمکي] د اُجرت عوض وګرځوله) نو ځکه د عمل د اُجرت والا حصه به مجهوله وي او دا به د جهالت في الربح (د ګټي د مجهول والي) سبب وګرځي، او جهالت في الربح له عقد څخه مانع دی، نو ځکه داسي شرط لګول باطل او مبطل دي. او له دې څخه بغير په نورو فاسدو شرطونو سره د مضاربت پر صحت هيڅ اثر نه پرېوځي بلکي مضاربت صحيح کيږي او فاسد شرط په خپله باطليږي. مثلاً ربُ المال او مضاب پر دې شرط عقد مضاربت سره وکړي چي "نفع زما او ستا په مينځ کي مشترکه ده لېکن تاوان پر تا (مضارب) دی او په تاوان کي زه ستا سره نه شريک کېږم"، نو دا شرط د عقد (مضاربت) د مقتضاء خلاف دی، نو ځکه دا به باطليږي، لېکن عقد به صحيح کيږي. دا ګواکي د "وغير ذٰلك من الشروط إلخ" تشريح او وضاحت دی.

## د مضاربت د صحت نور شرطونه

قَالَ: وَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الْمَالُ مُسَلَّمًا إِلَى الْمُضَارِبِ وَلَا يَدَ لِرَبِّ الْمَالِ فِيهِ فرمايي: او [د عقد مضاربت لپاره] ضروري ده چي مال مضارب ته ورسپارل سوی وي او په هغه کي د ربُ المال هيڅ قبضه [او اختيار] نه وي لِأَنَّ الْمَالَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ ځکه چي مال د مضارب په قبضه کي امانت دی فَلَا بُدَّ مِنَ التَّسْلِيمِ إِلَيْهِ نو ځکه هغه ته ورسپارل ضروري دي وَهٰذَا بِخِلَافِ الشَّرِكَةِ او دا حکم د عقد شرکت په خلاف دی لِأَنَّ الْمَالَ فِي الْمُضَارَبَةِ مِنْ أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ وَالْعَمَلَ مِنَ الْجَانِبِ الْآخَرِ ځکه چي په مضاربت کي مال صرف له يوه طرفه وي او کار له بل طرفه وي فَلَا بُدَّ مِنْ أَنْ يَخْلُصَ الْمَالُ لِلْعَامِلِ نو ځکه د کار

کونکي [مضارب] لپاره د مال خالص کېدل ضروري دي لِيَتَمَكَّنَ مِنَ التَّصَرُّفِ فِيهِ د دې لپاره چي هغه په مال کي پر تصرف کولو قادر سي أَمَّا الْعَمَلُ فِي الشَّرِكَةِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ لیکن په عقد شرکت کي له دواړو طرفونو څخه کار وي فَلَوْ شُرِطَ خُلُوصُ الْيَدِ لِأَحَدِهِمَا لهذا که چیري خالص د یوه شریک لپاره قبضه شرط کړی سي لَمْ تَنْعَقِدِ الشَّرِكَةُ نو شرکت به نه منعقد کیږي وَشَرْطُ الْعَمَلِ عَلَى رَبِّ الْمَالِ مُفْسِدٌ لِلْعَقْدِ او پر ربُ المال د کار کولو شرط لګول عقد [مضاربت] فاسدوي لِأَنَّهُ يَمْنَعُ خُلُوصَ يَدِ الْمُضَارِبِ ځکه چي هغه د مضارب د قبضې خالص والی منع کوي [په بله وينا: ځکه چي دا شرط د مضارب لپاره پر مال مضاربت له قبضه کولو څخه مانع دی] فَلَا يَتَمَكَّنُ مِنَ التَّصَرُّفِ لهذا هغه به پر تصرف کولو قادر نه وي فَلَا يَتَحَقَّقُ الْمَقْصُودُ نو ځکه مقصود [د نفع حصول] به ثابت نه سي سَوَاءٌ كَانَ الْمَالِكُ عَاقِدًا أَوْ غَيْرَ عَاقِدٍ كَالصَّغِيرِ برابره ده مالک عقد کونکی وي او که عقد کونکی نه وي لکه کوچنی [یعني په هر صورت کي پورتنی حکم دی] لِأَنَّ يَدَ الْمَالِكِ ثَابِتَةٌ لَهُ ځکه چي پر مال د مالک قبضه ثابته ده [په بله وينا: ځکه پر مال د مالک قبضه ثابته پاتیږي] وَبَقَاءُ يَدِهِ يَمْنَعُ التَّسْلِيمَ إِلَى الْمُضَارِبِ او د مالک د قبضې باقي پاتېدل مضارب ته له ورسپارلو څخه مانع دي وَكَذَا أَحَدُ الْمُتَفَاوِضَيْنِ وَأَحَدُ شَرِيكَيِ الْعِنَانِ إِذَا دَفَعَ الْمَالَ مُضَارَبَةً وَشَرَطَ عَمَلَ صَاحِبِهِ او همدارنګه که د عقد مفاوضه له دواړو شریکانو څخه یو شریک یا د شرکتِ عنان یو شریک د مضاربت په توګه مال ورکړي او د خپل ملګري [شریک] د کار کولو شرط ولګوي [نو هم عقد فاسدیږي] لِقِيَامِ الْمِلْكِ لَهُ ځکه چي پر مال د صاحب المال ملکیت باقي پاته وي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ عَاقِدًا که څه هم هغه عاقد نه وي وَاشْتِرَاطُ الْعَمَلِ عَلَى الْعَاقِدِ مَعَ الْمُضَارِبِ وَهُوَ غَيْرُ مَالِكٍ يُفْسِدُهُ [همدارنګه] د مضارب سره پر عاقد د عمل کولو شرط لګول حال دا چي عاقد مالک [صاحبُ المال] نه وي [نو دا شرط هم] عقد فاسدوي إِنْ لَمْ يَكُنْ مِنْ أَهْلِ الْمُضَارَبَةِ فِيهِ په دې شرط چي عاقد په هغهٔ مال کي د مضاربت کولو اهل نه وي كَالْمَأْذُونِ لکه مأذون لهٔ غلام بِخِلَافِ الْأَبِ وَالْوَصِيِّ په خلاف د پلار او وصي لِأَنَّهُمَا مِنْ أَهْلِ أَنْ يَأْخُذَا مَالَ الصَّغِيرِ مُضَارَبَةً بِأَنْفُسِهِمَا ځکه چي پلار او وصي دواړه د دې اهل دي چي بذات خود د صغير مال د

مضاربت په توګه واخلي [یعني هغو ته دا اختیار سته چي په خپله د مضاربت کولو لپاره د صغیر مال واخلي] فَكَذَا اشْتِرَاطُهُ عَلَيْهِمَا بِجُزْءٍ مِنَ الْمَالِ نو همداسي به پر هغو د مال د څه حصي په عوض د کار کولو شرط لګول هم صحيح وي.

**اللغات:** ﴿مُسلَّم﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: سپارل سوی، ﴿ید﴾ قبضه، ﴿یخلص﴾ د کَرُم د باب مضارع ده: خالص کېدل، علیحده کېدل، ﴿یتمکّن﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: قدرت پیدا کول، قادر کېدل، ﴿متفاوِضَین﴾ تثنیه د مُتَفَاوِضٌ ده: د شرکتِ مفاوضه عاقد (شرکتِ مفاوضه کونکی).

﴿مأذون﴾ هغه غلام چي مالک د تجارت او کاروبار اجازه ورکړې وي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله دوه خلک په ګډه عقد مضاربت وکړي، نو د دې خبري خاص خیال به ساتي چي مال مضاربت (د مضاربت مال) په کامله توګه د مضارب په قبضه کي وي او د هغه مال سره د ربُ المال هیڅ حق هم متعلق نه وي، د دې لپاره چي مضارب په هغه مال سره په کاروبار کولو او نفع حاصلولو کي د یو ستونزي او مشکل سره مخامخ نه سي، نو ځکه دا ضروري ده چي ربُ المال مال مضاربت په پوره توګه مضارب ته وسپاري او د هغه سره خپل تعلق ختم کړي چي مضارب په آزادی سره کاروبار شروع کړي؛ ځکه چي د عقد مضاربت همدا اُصول دی چي له یوه طرفه مال وي او له بل طرفه کار وي، په همدې وجه خو په مضاربت کي د ربُ المال لپاره د کار شرط لګول عقد فاسدوي، برابره ده ربُ المال عاقد وي او که عاقد نه وي یعني صغیر (کوچنی) وي او پلار یا وصي د دې صغیر مال د مضاربت لپاره ورکړی وي او په خپله د صغیر د کار کولو شرط لګول سوی وي (چي هغه به کار کوي)، نو په دې شرط سره عقد مضاربت فاسدیږي؛ ځکه د عاقد نه کېدلو باوجود پر مال څه نا څه د صغیر قبضه پاتیږي او د قبضې بقاء مضارب ته له مال ورسپارلو څخه مانع ده. حال دا چي د مضاربت د صحت لپاره په کامله توګه مضارب ته مال ورسپارل ضروري دي.

**وكذا أحد المتفاوضين إلخ:** فرمايي: که چیري د شرکت مفاوضه یا شرکت عنان یو شریک بل چا (مضارب) ته د مضاربت لپاره مال ورکړي او د خپل ملګري لپاره د کار کولو شرط ولګوي یعني داسي ووایي چي "زما ملګری (شریک) به د دې مضارب سره کار وي". نو په دې شرط سره هم عقد فاسدیږي؛ ځکه په هغه مال کي د ده د ملګري ملکیت هم سته او په دې حواله سره دا شرط داسي دی لکه د ربُ المال لپاره د کار کولو شرط لګول. او د ربُ المال لپاره د کار په شرط لګولو سره مضاربت فاسدیږي، نو ځکه په مذکوره شرط سره به عقد فاسدیږي. برابره ده من علیه الشرط عاقد وي، که نه وي.

واشتراط العمل إلخ: د دې حاصل دا دی چې مثلاً خالد ربُ المال دی، زيد مضارب دی او حامد د ربُ المال (خالد) له طرفه عاقد دی، که په دې صورت کې د حامد او مضارب (زيد) د کار کولو په شرط سره عقد مضاربت وسي، نو هم عقد فاسديږي، لکه مأذون لهٔ غلام چې د مضاربت لپاره خپل مال يو مضارب ته ورکړي او د مضارب سره د خپل کار کولو شرط هم ولګوي (چې مضارب به هم کاروبار کوي او زه هم)، نو په دې شرط سره عقد فاسديږي؛ ځکه مأذون لهٔ غلام که څه هم په مضاربت کې د ورکول سوي مال حقيقي مالک نه دی بلکي د هغه حقيقي مالک د ده مولیٰ دی، خو بيا هم پر هغه مال مأذون لهٔ غلام ته يدوي تصرف حاصل دی او دا شی مضارب ته له مال ورسپارلو څخه مانع دی، نو ځکه په دې صورت کې عقد فاسديږي. همداسي د ربُ المال له چې کوم عاقد (حامد) دی هغه که څه هم د مال مضاربت مالک نه دی، خو پر هغه مال ده ته يدوي تصرف حاصل دی. او دا حصول مضارب ته له مال ورسپارلو څخه مانع دی.

د دې په خلاف که د صغير پلار يا د هغه وصي يو چا ته د صغير مال د مضاربت لپاره ورکړي او د خپل کار کولو شرط ولګوي نو په دې سره د عقد (مضاربت) پر صحت هيڅ اثر نه پرېوځي؛ ځکه کله چې پلار او وصي ته دا اختيار سته چې په خپله د مضاربت کولو لپاره د صغير مال واخلي، نو ښکاره خبره ده چې هغو ته به دا اختيار هم وي چې د صغير له طرفه د هغه په عمل (کار کولو) کې شريک سي او بيا نفع حاصله کړي. (احسن الهدايه)

## هغه کارونه کوم چې د مضارب لپاره جائز يا ناجائز دي

قَالَ: وَإِذَا صَحَّتِ الْمُضَارَبَةُ مُطْلَقَةً فرمايي: او کله چې مضاربت مطلقاً صحيح سي [يعني کله چې مضاربت مطلق وګرځول سي (يعني يو څوک د مطلق کار مضارب جوړ کړی سي)] جَازَ لِلْمُضَارِبِ أَنْ يَبِيعَ وَيَشْتَرِيَ وَيُوَكِّلَ وَيُسَافِرَ وَيُبْضِعَ وَيُودِعَ نو د مضارب لپاره خرڅول او رانيول، وکيل جوړول، سفر کول، په بضاعت [مال] ورکول او امانتاً ورکول [ټوله] جائز دي لِإِطْلَاقِ الْعَقْدِ ځکه چې عقد [مضاربت] مطلق دی وَالْمَقْصُودُ مِنْهُ الِاسْتِرْبَاحُ او مقصود له دې عقد [مضاربت] څخه نفع حاصلول دي وَلَا يَتَحَصَّلُ إِلَّا بِالتِّجَارَةِ او نفع صرف په تجارت [کاروبار] سره حاصليږي فَيَنْتَظِمُ الْعَقْدُ صُنُوفَ التِّجَارَةِ وَمَا هُوَ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ نو ځکه دا عقد به د تجارت ټولو انواعو او د تاجرانو افعالو [کارو] لره شامليږي وَالتَّوْكِيلُ مِنْ صَنِيعِهِمْ او وکيل جوړول د تاجرانو له اعمالو څخه يو عمل دی وَكَذَا

الْإِبْضَاعُ وَالْإِيدَاعُ وَالْمُسَافَرَةُ او همدارنګه بضاعتاً ورکول، امانتاً ورکول او سفر کول [هم د تاجرانو له اعمالو څخه] دي أَلَا تَرَى أَنَّ الْمُودَعَ لَهُ أَنْ يُسَافِرَ آيا ته نه ګورې! مودَع [امانت ساتونکي] ته دا اختيار سته چې [د امانت د مال سره] سفر وکړي فَالْمُضَارِبُ أَوْلَى نو مضارب ته به په درجه اولیٰ دا اختيار وي كَيْفَ وَأَنَّ اللَّفْظَ دَلِيلٌ عَلَيْهِ او څنګه به هغه ته دا اختيار نه وي حال دا چې لفظ د "مضاربت" پر همدې سفر کولو دليل دی لِأَنَّهَا مُشْتَقَّةٌ مِنَ الضَّرْبِ فِي الْأَرْضِ وَهُوَ السَّيْرُ ځکه چې "مضاربت" له ضَرب فی الارض څخه مشتق دی چې د هغه معنیٰ ده "تګ کول" وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَيْسَ لَهُ أَنْ يُسَافِرَ ❁ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې مضارب ته [د مضاربت د مال سره] د سفر کولو اختيار نسته وَعَنْهُ وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ إِنْ دَفَعَ فِي بَلَدِهِ او له هغه او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې که ربُ المال د مضارب په ښار کې هغه ته مال ورکړی وي لَيْسَ لَهُ أَنْ يُسَافِرَ نو هغه ته [د مال سره] د سفر کولو اختيار نسته لِأَنَّهُ تَعْرِيضٌ عَلَى الْهَلَاكِ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ ځکه چې دا بېله ضرورته مال پر هلاکت [ضياع] پېښول دي وَإِنْ دَفَعَ فِي غَيْرِ بَلَدِهِ [ها!] که چيرې ربُ المال په يو بل ښار کې مضارب ته مال ورکړی وي لَهُ أَنْ يُسَافِرَ إِلَى بَلَدِهِ نو مضارب ته دا اختيار سته چې [د مال سره] خپل ښار ته سفر وکړي لِأَنَّهُ هُوَ الْمُرَادُ فِي الْغَالِبِ ځکه چې غالب مراد همدا وي [يعني ځکه انسان عموماً خپل منزل ته په رسيدلو سره په خپل ښار کې کاروبار او تجارت کول اختياروي] وَالظَّاهِرُ مَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ او ظاهر روايت هغه دی کوم چې په قدوري [متن] کې ذکر سوی دی [چې په هغه کې مطلقاً د سفر اجازت ورکول سوی دی برابره ده ضرورت وي، که نه وي].

**اللغات:** ﴿يُبضع﴾ د افعال د باب مضارع ده، أَبْضَعَ يُبْضِعُ إِبْضَاعًا: د عقد بضاعت په توګه ورکول (بضاعتاً ورکول)، د عقدِ بضاعت تعريف مخکې تېر سو، د تعريف خلاصه دا ده چې يو چا ته په دې توګه مال ورکول چې نفع به ټوله زما وي او کار به ستا وي. ﴿يودع﴾ مخکنۍ صيغه ده: يو چا ته په امانت ايښوول، امانتاً ورکول. ﴿استرباحَ﴾ د استفعال د باب مصدر دی: نفع حاصلول، ګټه کول.

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الخانيه (ج:۲ ص:۲۲۰)، وكذا في بدائع الصنائع (ج:۶، ص:۱۳۴). [القول الراجح ج:۲، ۲۰۹]

﴿صنيع﴾ عمل، کار (کارونه)، ﴿مُودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی: چا ته چي امانت ايښول سوی وي (چا ته چي امانتاً يو مال ورکول سوی وي)، امانت ساتونکی، ﴿سَيْر﴾ د ضربُ د باب مصدر دی: تګ کول، ﴿تعريض﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: پېشول.

**تشريح**: له دې ځايه د هغه اُمورو بيان دی کوم چي د مضارب لپاره جائز يا ناجائز دي. حاصل د عبارت دا دی چي که عقد مضاربت د مکان، زمان او تصرف خاص په قيد سره مقيد نه وي بلکي مطلق وي، نو د مضارب لپاره هغه ټوله کارونه جائز دي کوم چي د تاجرانو په نېز معتاد او رواج وي، لکه خرڅول او رانيول (همدارنګه په قرض خرڅول او رانيول. لېکن د ائمه ثلاثه وو په نېز په قرض خرڅول جائز نه دي، او په قرض ورکول [اقرض] زموږ په هم جائز نه دي)، وکيل جوړول، سفر کول، بضاعتاً مال ورکول، مال يو چا امانتاً ورکول، په کرايه اخيستل، په کرايه ورکول او داسي نور؛ ځکه چي دا ټوله کارونه د تاجرانو (سوداګرانو) په نېز معتاد دي او د تجارت په سلسله کي دې کارونو ته ضرورت پيښيږي. او بل دا چي د مضاربت مقصد همدا دی چي نفع حاصله سي او هغه له تجارت څخه بغير نه سي کېدای، نو ځکه دا عقد (مضاربت) به د تجارت ټولو اقسامو لره شامليږي.

وعن أبي يوسف إلخ: له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت نقل سوی دی چي د مضارب لپاره دا جائز نه دي چي د مضاربت مال د ځان سره په سفر يووسي يعني بل ښار ته يې نقل کړي، بناءً على قوله في الوديعة (مبسوط). او په دې سره هغه مال مراد دی چي د هغه پر نقل کولو خرچه پرېوځي (مثلاً ربُ المال مضارب ته لس ګوني غنم ورکړي وي، يعني مالِ مضاربت "لس ګوني غنم" وي). او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي که مالک مضارب ته د هغه په ښار کي مال ورکړی وي، نو مضارب ته په سفر کي د هغه د وړلو او نقل کولو اختيار نسته... الخ. لېکن ظاهر روايت هغه دی کوم چي په متن کي مذکور دی چي على الإطلاق د سفر اجازت سته.

## د مضارب لپاره کوم کارونه ناجائز دي؟

قَالَ: وَلَا يُضَارِبُ إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ رَبُّ الْمَالِ فرمايي: او مضارب [په خپله] د مضاربت معامله نه سي کولای مګر دا چي ربُ المال هغه ته اجازت ورکړي أَوْ يَقُولَ لَهُ: اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ يا هغه ته ووايي: چي ته په خپله رايه عمل کوه! [د خپل خوښي مطابق کار کوه!] لِأَنَّ الشَّيْءَ لَا يَتَضَمَّنُ مِثْلَهُ ځکه چي يو شی خپل هم مثل شي لره نه شامليږي [او مضاربت د مضاربت هم مثل دی] لِتَسَاوِيهِمَا فِي الْقُوَّةِ ځکه چي

دوه هم مثله شيان په قوت کي سره برابر وي فَلَا بُدَّ مِنَ التَّنصِيصِ عَلَيْهِ أَوْ التَّفْوِيضِ الْمُطْلَقِ إِلَيْهِ لهذا د هغه صراحت يا د مضارب وطرف ته مطلقاً [عمل] ورسپارل ضروري دي وَكَانَ كَالتَّوْكِيلِ او دا به د توکيل اوکيل جوړولو] په څېر وي فَإِنَّ الْوَكِيلَ لَا يَمْلِكُ أَنْ يُوَكِّلَ غَيْرَهُ إِلَّا إِذَا قِيلَ لَهُ: اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ ځکه وکيل هم د دې ملکيت [اختيار] نه لري چې بل څوک وکيل جوړ کړي مګر دا چې کله هغه ته [د مؤکل له طرفه] ويل سوي وي: ته په خپله رايه عمل کوه! بِخِلَافِ الْإِيدَاعِ وَالْإِبْضَاعِ په خلاف د امانتاً او بضاعتاً ورکولو لِأَنَّهُ دُونَهُ ځکه چې هغه له مضاربت څخه د کمي درجې دي [او د هغه هَمْ مثله نه دي] فَيَتَضَمَّنُهُ نو ځکه مضاربت به هغوى لره شامليږي وَبِخِلَافِ الْإِقْرَاضِ او په خلاف د قرضاً ورکولو حَيْثُ لَا يَمْلِكُهُ وَإِنْ قِيلَ لَهُ: اعْمَلْ بِرَأْيِكَ نو مضارب د هغه ملکيت [اختيار] نه لري که څه هم هغه ته ويل سوي وي: ته په خپله رايه عمل کوه! لِأَنَّ الْمُرَادَ مِنْهُ التَّعْمِيمُ فِيمَا هُوَ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ ځکه چې په دې [اعمل برأيک] سره په هغه کارو کي عموم پيدا کول مقصود وي کوم چې د تاجرانو له اعمالو څخه وي وَلَيْسَ الْإِقْرَاضُ مِنْهُ او قرضاً ورکول له هغه څخه نه دي وَهُوَ تَبَرُّعٌ كَالْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ [بلکي] هغه خو د هبې او صدقې په څېر تبرّع [احساناً ورکول] دي فَلَا يَحْصُلُ بِهِ الْغَرَضُ وَهُوَ الرِّبْحُ نو ځکه په هغه سره به [د مضاربت] مقصود يعني نفع نه حاصليږي لِأَنَّهُ لَا تَجُوزُ الزِّيَادَةُ عَلَيْهِ ځکه چې پر قرض زياتوب کول [زيات اخيستل] جائز نه دي أَمَّا الدَّفْعُ مُضَارَبَةً فَمِنْ صَنِيعِهِمْ پاته سو د مضاربت په توګه ورکول نو هغه د تاجرانو له اعمالو څخه دي [نو ځکه هغه به جائز وي] وَكَذَا الشِّرْكَةُ وَالْخَلْطُ بِمَالِ نَفْسِهِ او همدارنګه [يو څوک] شريک کول او د خپل مال سره [د بل چا مال] ګډول [هم د تاجرانو له اعمالو څخه دي] فَيَدْخُلُ تَحْتَ هَذَا الْقَوْلِ نو ځکه هغه [هم] به تر دې قول "اعمل برأيك" لاندي داخليږي.

**اللغات**: ﴿تفويض﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: ورسپارل. ﴿صنيع﴾ عمل، کار. ﴿إقراض﴾ د افعال د باب مصدر دى: په قرض ورکول (قرضاً ورکول). ﴿تبرّع﴾ د تفعّل د باب مصدر دى: نېکي او احسان کول. بلا عوضه (مفت) يو شى ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې تر څو د ربُ المال له طرفه مضارب ته صراحتاً یا دلالتاً اجازت نه ورکول سي، تر هغه وختـه مضارب ته دا اختیار نسته چې د مضاربت مال بل چا ته په مضاربت ورکړي؛ ځکه چې دواړه مضاربتونه په قوت کي سره برابر دي، او شی خپل همُ مثل لره نه شامليږي، نو ځکه داول مضاربت په ضمن کي به دویم مضاربت نه داخليږي. ها! که چیري ربُ المال مضارب ته د دې اجازت ورکړی وي، نو بیا بېله شکه هغه بل څوک مضارب جوړولای سي. لکه څرنګه چي وکیل بالبیع د مؤکل له اجازت څخه بغیر بل څوک وکیل نه سي جوړولای، ها! که د مؤکل له طرفه هغه د توکیل اجازت ورکول سوی وي، نو هغه ته د وکیل جوړولو اختیار وي.

د دې په خلاف په مطلق مضاربت کي په دې وجه مضارب ته د ابضاع او ایداع اختیار سته، ځکه چي دا شیان له مضاربت څخه په درجه کي کم او کښته دي، او کله چي هغه ته د مضاربت کولو اختیار سته، نو له مضاربت څخه په کښته درجې والا شیانو کي به په درجه اولیٰ هغه ته د مال لګولو اختیار وي. لېکن مضارب ته دا اختیارنسته چي مالِ مضاربت یو چا ته په قرض ورکړي، که څه هم ربُ المال هغه ته "اعمل برأيك" ويلي وي؛ ځکه چي په "اعمل برأيك" سره په تجارت او د تجارت په اعمالو کي تعمیم مقصود وي، او قرض ورکول نه تجارت دی او نه د تاجرانو له اعمالو څخه دی، بلکي هغه صرف تبرّع او احسان دی او په هغه سره د مضاربت مقصود نه حاصلیږي بلکي د نفعي پر ځای نقصان پيښيږي، حالانکي مضارب ته د نفعي حاصلولو لپاره مال ورکول سوی دی، نه د بربادولو او ضایع کولو لپاره. او څرنګه چي د قرض ورکولو په عوض کي نفع اخیستل جائز نه دي، نو ځکه دا عمل به د مضاربت د روح منافي او ناجائز وي، د دې په خلاف که مضارب ته د ربُ المال له طرفه اجازت حاصل وي، نو هغه بل چا ته په مضاربت مال ورکولای سي، همدارنګه په مال کي بل څوک شریکولای سي؛ ځکه چي مضاربت او شرکت د تجارانو له اعمالو څخه دي، نو ځکه دا اعمال به هم د ربُ المال تر دغه قول "اعمل برأيك" داخليږي او د مضارب لپاره به دا کارونه جائز او صحیح وي. (احسن الهدایه)

## په مضاربت کي قیود لګول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِنْ خَصَّ لَهُ رَبُّ الْمَالِ التَّصَرُّفَ فِي بَلَدٍ بِعَيْنِهِ أَوْ فِي سِلْعَةٍ بِعَيْنِهَا فرمايي: که چیري ربُ المال په یو مُتعیّن ښار یا په یو مُتعیّن سامان کي تصرف کول خاص کړي لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَجَاوَزَهَا نو د مضارب لپاره دا جائز نه دي چي له هغه څخه تجاوز [تېری] وکړي لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ ځکه چي مضاربت توکیل [وکیل جوړول] دي وَفِي التَّخْصِيصِ فَائِدَةٌ او په تخصیص [خاص کولو] کي فایده ده

فَيَتَخَصَّصُ نو ځکه هغه به خاص کيږي [په بله وينا: نو ځکه هغه به مخصوص پرېښوول کيږي] وَكَذَا لَيْسَ لَهُ أَنْ يَدْفَعَهُ بِضَاعَةً إِلَى مَنْ يُخْرِجُهَا مِنْ تِلْكَ الْبَلْدَةِ او همدارنګه مضارب ته دا اختيار هم نسته چې د مضاربت مال داسې کس ته بضاعتاً ورکړي چې هغه دا مال له هغه ښاره بهر وباسي [يعني بل ښار ته يې يوسي] لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْإِخْرَاجَ بِنَفْسِهِ ځکه چې مضارب په خپله د هغه د بهر ايستلو ملکيت [اختيار] نه لري فَلَا يَمْلِكُ تَفْوِيضَهُ إِلَى غَيْرِهِ نو ځکه مضارب به بل چا ته د هغه د ورسپارلو [د اخراج د اجازت ورکولو] ملکيت هم نه لري قَالَ: فَإِنْ خَرَجَ إِلَى غَيْرِ ذَلِكَ الْبَلَدِ فرمايي: که چيرې مضارب له هغه ښار ځخه بغير بل ښار ته [د مال مضاربت سره] ووځي فَاشْتَرَى او [هلته] يو شی رانيسي ضَمِنَ نو هغه ضامن کيږي [يعني پر هغه ضمان [تاوان] لازميږي] وَكَانَ ذَلِكَ لَهُ وَلَهُ رِبْحُهُ او رانيول شی او د هغه نفع [ګټه] د مضارب ګرځي لِأَنَّهُ تَصَرَّفَ بِغَيْرِ أَمْرِهِ ځکه چې هغه د ربُ المال له حکم ځخه بغير دا تصرف کړی دی وَإِنْ لَمْ يَشْتَرِ حَتَّى رَدَّهُ إِلَى الْكُوفَةِ وَهِيَ الَّتِي عَيَّنَهَا او که مضارب [هلته] شی نه رانيسي او بيا مال مضاربت [بيرته] کوفې ته واپس کړي او ربُ المال همدا کوفه [د تصرّف لپاره] مُتعيّن کړې وي بَرِئَ مِنَ الضَّمَانِ نو [په دې صورت کې] مضارب له ضمان ځخه بري کيږي كَالْمُودَعِ إِذَا خَالَفَ فِي الْوَدِيعَةِ ثُمَّ تَرَكَ لکه مودَع [امانت ساتونکی] چې کله په امانت کې [د مودِع د حکم] مخالفت وکړي او بيا مخالفت پريږدي [نو هغه هم له ضمان ځخه بري کيږي] وَرَجَعَ الْمَالُ مُضَارَبَةً عَلَى حَالِهِ او په [دې صورت کې هغه ايستل سوی مال] پر خپل مخکني حالت مالِ مضاربت پاتيږي لِبَقَائِهِ فِي يَدِهِ بِالْعَقْدِ السَّابِقِ ځکه چې هغه [اوس هم] په مخکني عقد سره د مضارب په قبضه کې پاته دی وَكَذَا إِذَا رَدَّ بَعْضَهُ وَاشْتَرَى بِبَعْضِهِ فِي الْمِصْرِ او همدارنګه که مضارب ځه مال [د مال بعضي حصه] واپس وکړي او په ځه مال سره په ښار کې يو شی رانيسي كَانَ الْمَرْدُودُ وَالْمُشْتَرَى فِي الْمِصْرِ عَلَى الْمُضَارَبَةِ نو واپس کړی سوی مال او په ښار کې رانيول سوی شی دواړه پر مضاربت [پاتيږي] لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې [اوس] موږ ذکر کړی ثُمَّ شَرَطَ الشِّرَاءَ هَهُنَا بيا دلته [د ضمان لازميدلو لپاره] رانيول شرط کړی سوي دي وَهُوَ رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او دا د جامع صغير روايت

دی وَفِي كِتَابِ الْمُضَارَبَةِ: ضَمِنَهُ بِنَفْسِ الْإِخْرَاجِ او [د مبسوط] په كتاب المضاربت كي [ذكر سوي] دي: چي [د مالِ مضاربت] په نفس ايستلو سره مضارب ضامن كيږي وَالصَّحِيحُ أَنَّ بِالشِّرَاءِ يَتَقَرَّرُ الضَّمَانُ لِكن] صحيح دا ده چي د رانيولو په وجه ضمان مضبوطيږي [مستحكم كيږي] لِزَوَالِ احْتِمَالِ الرَّدِّ إِلَى الْمِصْرِ الَّذِي عَيَّنَهُ ځكه د رانيولو په وجه د ربُ المال د مُتعيّن كرده ښار وطرف ته [د مالِ مضاربت] د واپس كولو احتمال ختميږي أَمَّا الضَّمَانُ فَوُجُوبُهُ بِنَفْسِ الْإِخْرَاجِ پاته سو ضمان نو هغه [د مالِ مضاربت] په نفس ايستلو سره واجبيږي وَإِنَّمَا شَرَطَ الشِّرَاءُ لِلتَّقَرُّرِ لَا لِأَصْلِ الْوُجُوبِ او رانيول [صرف] د ضمان مضبوطېدلو لپاره شرط كړى سوي دي، نه د اصل وجوب لپاره وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: عَلَى أَنْ تَشْتَرِيَ فِي سُوقِ الْكُوفَةِ او دا د هغه صورت په خلاف دي كله چي ربُ المال داسي ووايي: [زه] پر دې شرط [تا ته مال دركوم] چي ته به د كوفې په بازار كي په هغه سره رانيول كوې حَيْثُ لَا يَصِحُّ التَّقْيِيدُ نو دا تقييد [مقيّد كول] نه صحيح كيږي لِأَنَّ الْمِصْرَ مَعَ تَبَايُنِ أَطْرَافِهِ كَبُقْعَةٍ وَاحِدَةٍ ځكه چي ښار د اطرافو د تباين [توپير] باوجود د يوه ځاى په حكم كي دى فَلَا يُفِيدُ التَّقْيِيدُ نو ځكه به تقييد فايده نه كوي إِلَّا إِذَا صَرَّحَ بِالنَّهْيِ مګر دا چي ربُ المال د منع صراحت وكړي [يعني په صراحت سره مضارب منع كړي] بِأَنْ قَالَ: اِعْمَلْ فِي السُّوقِ وَلَا تَعْمَلْ فِي غَيْرِ السُّوقِ په دې توګه چي [مضارب ته] ووايي: چي په فلانكي بازار كي كار [كاروبار] كوه! او له هغه بازار څخه بغير بل ځاى كار مه كوه! لِأَنَّهُ صَرَّحَ بِالْحَجْرِ ځكه چي [په دې صورت كي] هغه د ممانعت صراحت كړى دى وَالْوِلَايَةُ إِلَيْهِ او ولايت [اختيار] صرف هغه ته حاصل دى وَمَعْنَى التَّخْصِيصِ أَنْ يَقُولَ: عَلَى أَنْ تَعْمَلَ كَذَا أَوْ فِي مَكَانِ كَذَا او د تخصيص مطلب دا دى چي ربُ المال [مضارب ته] داسي ووايي: پر دې شرط [مال دركوم] چي ته به فلانكى كار كوې! يا په فلانكي ځاى كي به كار كوې! وَكَذَا إِذَا قَالَ: خُذْ هٰذَا الْمَالَ تَعْمَلُ بِهِ فِي الْكُوفَةِ او همدارنګه كه ربُ المال ووايي: دا مال واخله! چي په هغه سره به ته په كوفه كي كار كوې! لِأَنَّهُ تَفْسِيرٌ لَهُ ځكه چي دويمه جمله [يعني تعمل به في الكوفة] د اولي جملې تفسير ده أَوْ قَالَ: فَاعْمَلْ بِهِ فِي الْكُوفَةِ يا ربُ المال داسي ووايي: نو په كوفه كي كار په كوه! او لِأَنَّ الْفَاءَ لِلْوَصْلِ

ځکه چي فاء د وصل لپاره راځي أَوْ قَالَ: خُذْهُ بِالنِّصْفِ بِالْكُوفَةِ يا داسي ووايي: چي د دې مال په نصف سره په کوفه کي کار کوه! لِأَنَّ الْبَاءَ لِلْإِلْصَاقِ ځکه چي باء د الصاق لپاره راځي أَمَّا إِذَا قَالَ: خُذْ هَذَا الْمَالَ وَاعْمَلْ بِهِ بِالْكُوفَةِ او که چيري ربُ المال ووايي: چي دا مال واخله! او په دې سره په کوفه کي کار کوه! فَلَهُ أَنْ يَعْمَلَ فِيهَا وَفِي غَيْرِهَا نو مضارب ته په کوفه او غير کوفه [هر ځاى] کي د کار کولو اختيار سته لِأَنَّ الْوَاوَ لِلْعَطْفِ ځکه چي واو د عطف لپاره راځي فَيَصِيرُ بِمَنْزِلَةِ الْمَشُورَةِ لهذا دا به د مشورې په درجه کي وګرځي وَلَوْ قَالَ: عَلَى أَنْ تَشْتَرِيَ مِنْ فُلَانٍ وَتَبِيعَ مِنْهُ او که چيري ووايي: پر دې شرط [مال درکوم] چي ته به د فلانکي شخه رانيول او پر هغه خرڅول کوې! [يعني د شراء او بيع معامله به د فلانکي سره کوې!] صَحَّ التَّقْيِيدُ نو دا تقيد صحيح کيږي لِأَنَّهُ مُفِيدٌ لِزِيَادَةِ الثِّقَةِ بِهِ فِي الْمُعَامَلَةِ ځکه چي د مقيد به [فلانکي] سره په معامله کولو کي د زيات اعتماد په حواله سره دا تقييد مفيد دى بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: عَلَى أَنْ تَشْتَرِيَ بِهَا مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ په خلاف د هغه صورت کله چي ربُ المال داسي ووايي: پر دې شرط [مال درکوم] چي ته به په هغه له اهل کوفه شخه رانيول کوې! أَوْ دَفَعَ فِي الصَّرْفِ عَلَى أَنْ تَشْتَرِيَ بِهِ مِنَ الصَّيَارِفَةِ وَتَبِيعَ مِنْهُمْ او يا ربُ المال په بيع صَرف کي [يعني د صرافى] مال ورکړي پر دې شرط چي ته به په هغه له صرافانو شخه رانيول او پر هغوى خرڅول کوې! فَبَاعَ بِالْكُوفَةِ مِنْ غَيْرِ أَهْلِهَا أَوْ مِنْ غَيْرِ الصَّيَارِفَةِ او بيا مضارب په کوفه کي له اهل کوفه شخه بغير يا له صرافانو شخه بغير پر بل چا خرڅول وکړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ فَائِدَةَ الْأَوَّلِ التَّقْيِيدُ بِالْمَكَانِ ځکه چي د اول قول فايده په مکان سره مقيد کول دي وَفَائِدَةَ الثَّانِي التَّقْيِيدُ بِالنَّوْعِ او د دويم قول فايده په نوع سره مقيد کول دي وَهَذَا هُوَ الْمُرَادُ عُرْفًا او همدا عرفاً مراد دي [يعني په عرف کي له داسي قول شخه همدا مراديږي] لَا فِيمَا وَرَاءَ ذَلِكَ او له هغه [مکان او نوع] شخه بغير بل شه مراد نه دي.

**اللغات**: ﴿سلعة﴾ سامان، ﴿تخصيص﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: خاص کول، خاص ګرځول، ﴿توکيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: يو شوک د يو کار وکيل کول، وکيل جوړول، ﴿إخراج﴾ د افعال د باب مصدر دى: ايستل، باسل، (بهر ورل)، ﴿سوق﴾ بازار، ﴿تباين﴾ د تفاعل د باب مصدر

دی: يو له بله جلا کېدل، عليحده کېدل، ﴿بقعة﴾ د ځمکې ټوټه، قطعه، ﴿صيارفة﴾ جمع د صَيْرَفِيّ ده: صراف، د روپو بدلونکی.

**تشريح**: په دې عبارت کې د مضاربت د تخصيص او تقييد په هکله څو مسئلې ذکر سوي دي:

که ربُ المال مضارب ته داسي ووايي چي "ته! به صرف په فلانکي ښار کي په مال مضاربت سره کار کوې، يا صرف د فلانکي سامان تجارت به کوې!"، نو د مضارب لپاره د هغه خلاف کول صحيح نه دي؛ ځکه چي عقد مضاربت توکيل دی، او په توکيل کي وکيل د مؤکل (وکيل جوړونکي) د حکم پابندي وي، لهذا په مضاربت کي به هم مضارب د مضاربت د جهت پابند وي؛ ځکه په دې تخصيص کي فايده هم سته چي د ربُ المال مال به له ضايع کېدلو څخه محفوظ وي او د مضارب له طرفه به د خيانت امکان معدوم وي، لهذا مضارب ته به د هغه د خلاف کولو اجازت نه وي. همدارنګه مضارب ته دا اختيار هم نسته چي يو داسي سړي ته مالِ مضاربت بضاعتاً ورکړي کوم چي هغه مال له ښار څخه بهر نقل کړي او په بل ښار کي په هغه سره کاروبار وکړي؛ ځکه کله چي په خپله مضارب ته د بهر نقل کولو اجات نسته، نو بل چا ته به د دې څه اجازت وي؛ د فقهي دا مشهوره قاعده ده "مَنْ لَا يَمْلِكُ شيئًا لا يُمَلِّكُهُ غَيْرَهُ"، يعني څوک چي په خپله د يو شي ملکيت او اختيار نه لري، هغه بل چا ته د دې شي ملکيت او اختيار نه سي ورکولای، او څرنګه چي دلته مضارب د اخراج المال اختيار نه لري، نو ځکه هغه ته به د اخراج د تمليک او تفويض اختيار هم نه وي.

او که د ربُ المال له تخصيص او تعيين څخه وروسته مضارب هغه مالَ له مُتعيّن کړده ښار څخه بل ښار ته نقل کړي او هلته رانيول او خرڅول وکړي، نو په دې صورت کي د هغه نفع او نقصان د مضارب ګرځي او مضارب د ربُ المال لپاره د مالِ مضاربت ضامن کيږي؛ ځکه چي هغه د ربُ المال د حکم او رضا په خلاف تصرف کړی دی. هو! که چيري هغه بل ښار ته ولاړ سي، ليکن هلته په مالِ مضاربت سره هيڅ رانيول او خرڅول نه وکړي، بيا هغه بيرته د ربُ المال مُتعيّن کړده ښار ته واپس راسي، نو په دې صورت کي پر هغه ضمان نه لازميږي او دا مال د مخکي په څېر مال مضاربت پاتيږي. د دې مثال داسي دی لکه يو سړی چي مثلاً خالد ته يو شی په امانت ورکړي او مُودَع (خالد) د هغه سړي (مودِع) د رضا په خلاف په هغه کي تصرف وکړي، نو په دې صورت کي مُودَع (خالد) د امانت شي ضامن کيږي، ليکن که هغه له مخالفت څخه منع سي، نو له ضمان څخه بري کيږي، نو همداسي به مُتعيّن کړده ښار ته د مالِ مضاربت په واپس راوړلو سره مضارب هم له ضمان څخه بري کيږي.

وكذا إلخ: كه ربُ المال مضارب ته مثلاً يو لک روپۍ ورکړي او هغه ته ووايي چي "ته! په دې سره په کابل کي تجارت کوه!"، لېکن مضارب په زابل کي د پنځوسو زرو په عوض کي يو شی رانيسي او باقي پنځوس زره واپس کابل ته يوسي، نو په دې صورت کي هم رانيول سوی شی او باقي مانده مال دواړه د مضاربت مالونه دي؛ ځکه چي د مخکني عقد په وجه اوس هم دا دواړه مالونه د مضارب په قبضه دي، لېکن فقهاؤ د ربُ المال د مُتعيّن کړه ښار څخه بغير په بل ښار کي د رانيول سوي شي ضمان پر هغه واجب کړی دی، ځکه چي په دې عمل کي هغه د ربُ المال مخالف کونکی دی.

ثم شرط إلخ: د دې حاصل دا دی چي پر مضارب د ضمان واجبېدلو لپاره په جامع صغير کي د اخراج (ايستلو) سره شراء (رانيول) هم مشروط کړل سوي دي، لېکن د مبسوط په کتاب المضاربت کي صرف په نفس اخراج سره ضمان واجب کړی سوی دی؟ نو د دې وجه دا ده چي ضمان خو واقعتاً په نفس اخراج سره واجبېږي، لېکن د هغه استحکام او تقرّر په شراء سره کېږي، لهذا د جامع صغير او مبسوط په عبارتونو کي څه ژور فرق نسته.

وهذا بخلاف إلخ: مسئله دا ده که چيري ربُ المال مضارب ته ووايي چي "زه پر دې شرط تا ته مال درکوم چي ته به د کوفې په بازار کي رانيول او خرڅول کوې!"، نو دا تقييد نه صحيح کېږي او مضارب ته په ټوله کوفه کي هر ځای د رانيولو او خرڅولو اختيار سته، ها! که چيري ربُ المال په صراحت سره داسي ووايي چي "ته صرف په فلانکي بازار کي کاروبار کوه! او له هغه څخه بغير بل هيڅ ځای کاروبار مه کوه!"، نو اوس مضارب د دې حکم پابند ګرځي او له مُتعيّن کړه بازار څخه بغير بل ځای د هغه لپاره رانيول و خرڅول جائز نه دي؛ ځکه چي په دې صورت کي ربُ المال په صراحت سره پر هغه پابندي لګولې ده، او صراحت له دلالت څخه فائق او بالا وي.

ومعنى التخصيص إلخ: ښکاره دې وي چي که ربُ المال مضارب ته داسي ووايي "زه پر دې شرط تا ته مال درکوم چي ته به د کوفې د خلګو سره کاروبار کوې!"، يا "پر دې شرط مال درکوم چي ته به د صرافانو سره کاروبار کوې!"، نو دا شرط و قيد صحيح او مفيد نه دی، يعني د مضارب لپاره په هغه عمل کول ضروري نه دي نو که چيري هغه د کوفې له خلګو يا له صرافانو څخه بغير د بل چا سره معامله او کاروبار وکړي، نو بيا هم مضاربت جائز دی؛ ځکه چي له اهل کوفه څخه مراد مقام کوفه (مکانِ کوفه) دی او له صرافانو څخه مراد بيع صَرف او تجارت صرافي دی، او عموماً او عرفاً له هغه څخه همدا مراد کېږي، نو ځکه په دې حواله سره د مضارب دا عمل هم صحيح دی او مضاربت هم صحيح او جائز دی. (احسن الهدايه)

## په مضاربت کې د ټاکلي وخت قيد لګول او داسې غلام رانيول کوم چې د ربُ المال په حق کې آزاديږي

قَالَ: وَكَذٰلِكَ إِنْ وَقَّتَ لِلْمُضَارَبَةِ وَقْتًا بِعَيْنِهِ فرمايي: او همدارنګه که ربُ المال د مضاربت لپاره يو مُتعيّن وخت وټاکي يَبْطُلُ الْعَقْدُ بِمُضِيِّهِ نو د هغه وخت په تېرېدلو سره عقد [مضاربت] باطليږي لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ ځکه چې دا عقد [مضاربت] توکيل دی فَيَتَوَقَّتُ بِمَا وَقَّتَهُ نو ځکه په هغه وخت سره به مؤقت کيږي کوم چې ربُ المال ټاکلی وي وَالتَّوْقِيتُ مُفِيدٌ او توقيت [وخت ټاکل] مفيد هم دي فَإِنَّهُ تَقْيِيدٌ بِالزَّمَانِ ځکه چې هغه په زمانه سره مقيد کول دي فَصَارَ كَالتَّقْيِيدِ بِالنَّوْعِ وَالْمَكَانِ نو دا په نوع او مکان سره د مقيد کولو په شان سو قَالَ: وَلَيْسَ لِلْمُضَارِبِ أَنْ يَشْتَرِيَ مَنْ يَعْتِقُ عَلَى رَبِّ الْمَالِ لِقَرَابَةٍ أَوْ غَيْرِهَا فرمايي: او مضاب ته دا اختيار نسته چې داسې غلام رانيسي کوم چې د قرابت او داسې نورو په وجه پر ربُ المال آزاد سي لِأَنَّ الْعَقْدَ وُضِعَ لِتَحْصِيلِ الرِّبْحِ ځکه چې دا عقد [مضاربت] د نفع حاصلولو لپاره وضع سوی دی وَذٰلِكَ بِالتَّصَرُّفِ مَرَّةً بَعْدَ أُخْرٰى او نفع په بار، بار تصرف کولو [خرڅولو او رانيولو] سره حاصليږي وَلَا يَتَحَقَّقُ فِيهِ او دا بار، بار تصرف کول په داسې غلام کې نه ثابتيږي لِعِتْقِهِ ځکه چې [په يو ځل تصرف کولو سره] هغه آزاديږي وَلِهٰذَا لَا يَدْخُلُ فِي الْمُضَارَبَةِ شِرَاءُ مَا لَا يُمْلَكُ بِالْقَبْضِ او په همدې وجه په مضاربت کې د هغه شي رانيول نه داخليږي کوم چې په قبضه کولو سره [د انسان] په ملکيت کې نه داخليږي [يعني که انسان (مضارب) قبضه پر وکړي نو هم يې نه مالک کيږي] كَشِرَاءِ الْخَمْرِ وَالشِّرَاءِ بِالْمَيْتَةِ لکه د شرابو رانيول او د مردار سوي حيوان رانيول بِخِلَافِ الْبَيْعِ الْفَاسِدِ په خلاف د بيع فاسد لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ بَيْعُهُ بَعْدَ قَبْضِهِ ځکه چې له قبضه کولو څخه وروسته د هغه خرڅول ممکن دي [يعني په بيع فاسد سره رانيول سوی شی که مضارب قبضه پر وکړي نو بيا هغه خرڅولای سي] فَيَتَحَقَّقُ الْمَقْصُودُ نو ځکه مقصود [د نفعي حاصلول] به ثابت سي.

قَالَ: وَلَوْ فَعَلَ فرمايي: که چيري مضارب دا کار وکړي [يعني داسې غلام رانيسي کوم چې پر ربُ المال آزاديږي] صَارَ مُشْتَرِيًا لِنَفْسِهِ دُونَ الْمُضَارَبَةِ نو مضارب د خپل ځان لپاره رانيونکی ګرځي، نه د مضاربت په توګه لِأَنَّ الشِّرَاءَ مَتٰى وَجَدَ نَفَاذًا عَلَى الْمُشْتَرِيْ ځکه کله چې زانيول پر مشتري د نفاذ

لاره پیدا کړي [یعني کوم رانیول (رانیول سوی شی) چي داسي وي چي د مشتري په حق کي د هغه نافذول ممکن وي] نَفَذَ عَلَيْهِ نو هغه پر مشتري نافذول کیږي كَالْوَكِيلِ بِالشِّرَاءِ إِذَا خَالَفَ لکه د یو شي د رانیولو وکیل چي کله [د مؤکل د حکم] مخالفت وکړي.

**اللغات**: ﴿وقّت﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: وخت ټاکل (متعیّن کول)، وخت بیانول. ﴿مُضِيّ﴾ د ضرب د باب مصدر دی: وخت تېرېدل (ختمېدل)، ﴿شراء﴾ او شِریٰ رانیول، خریداري، ﴿المیتة﴾ مردار سوی (مړ سوی) حیوان، ﴿نَفَاذ﴾ (بفتح النون) د نصر د باب مصدر دی: نافذېدل، جاري کېدل، پوره کېدل.

**تشریح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که چیري ربُ المال د مضاربت لپاره وخت مُتعیّن کړي، مثلاً مضارب ته داسي ووایي چي "ته به نیم کال مضاربت کوې! (یا مثلاً زما او ستا په مینځ کي صرف دیوې میاشتي لپاره د مضاربت معامله سوې ده)! له هغه څخه وروسته به ما ته خپل مال راکوې!"، نو دا توقیت صحیح او مفید دی او مضارب د هغه ټاکلي وخت پابند ګرځي، او څرنګه چي د "نوع" یعني د طعام او ثوب او د "مکان" مثلاً د کوفې او بصرې تعیین وا تقیید مفید دی، همداسي به د وقت او زمان تقیید هم مفید وي.

(۲)... مضارب په مالِ مضاربت سره داسي غلام نه سي رانیولای کوم چي په رانیولو سره پر ربُ المال آزادیږي، مثلاً داسي غلام چي هغه د ربُ المال قریب (ذو رحم محرم) وي یا داسي غلام چي ربُ المال د هغه د آزادولو قسم کړی وي، او ښکاره خبره ده چي داسي غلام به د مضارب په رانیولو سره سمدستي آزاد سي او په دې سره به ربُ المال ته ضرر او نقصان ورسیږي؛ ځکه چي د عقد مضاربت مقصد نفع حاصلول دي، او د نفعي حاصلولو لپاره څو ځله تصرف کولو ته ضرورت پرېوځي، حال دا چي مذکوره کسان په یوه ځل رانیولو سره آزادیږي او په هغو کي دوباره تصرف نه سي کېدای.

ولهذا لایدخل إلخ: څرنګه چي د مضاربت مقصد نفع حاصلول دي او د نفعي حاصلولو لپاره څو ځله تصرف ته ضرورت پېښیږي او د څو ځله تصرف لپاره قبضه او ملکیت ضروري دي، نو په همدې وجه فقهاؤ د داسي شي رانیول منع کړي دي کوم چي تر قبضې وروسته هم په ملکیت کي نه راځي، لکه د مسلمان لپاره شراب رانیول یا مردار سوی حیوان رانیول، ځکه چي د دې شیانو تر قبضه کولو وروسته هم مسلمان د هغوی نه مالک کیږي، نو ځکه د هغوی رانیول به په مضاربت کي نه داخلیږي. ها! د بیع فاسد معامله په مضاربت کي داخلېدای سي؛ ځکه په بیع سره د رانیول سوي شي تر قبضه کولو وروسته د هغه خرڅول او پر هغه نفع حاصلول ممکن دي، او تاسي ته معلومه ده چي د مضاربت مقصد نفع حاصلول دي، نو ځکه په مضاربت کي دا صورت داخلېدای سي.

قال ولوفعل إلخ: مخکي ذکر سوه چي د مضارب لپاره داسي غلام رانيول ناجائز او ممنوع دي کوم چي پر ربُ المال آزاديږي، نو که چيري مضارب هغه رانيسي، نو په دې صورت کي مضارب د خپل ځان لپاره رانيونکی ګرځي او په هغه غلام کي مضاربت نه واقع کيږي بلکي غلام صرف د مضارب ګرځي. لکه کله چي وکيل بالشراء د مؤکل د رضا په خلاف رانيول وکړي، نو هغه رانيول (خرايداري) د هغه د خپل ځان لپاره ګرځي او په هغه کي مؤکل نه شريک کيږي.

## که مضارب داسي غلام رانيسي کوم چي په رانيولو سره د هغه په حق کي آزاديږي

قَالَ: فَإِنْ كَانَ فِي الْمَالِ رِبْحٌ فرمايي: که چيري په مال کي څه نفع حاصله سي لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ مَنْ يُعْتَقُ عَلَيْهِ نو د مضارب لپاره جائز نه دي چي داسي غلام رانيسي کوم چي پر مضارب آزاديږي لِأَنَّهُ يُعْتَقُ عَلَيْهِ نَصِيبُهُ وَيُفْسَدُ نَصِيبُ رَبِّ الْمَالِ ځکه چي [په داسي کولو سره] پر مضارب خپله حصه آزاديږي او د ربُ المال حصه فاسديږي أَوْ يُعْتَقُ عَلَى الِاخْتِلَافِ الْمَعْرُوفِ يا د ربُ المال حصه هم آزاديږي، بناء پر هغه اختلاف کوم چي مشهوره دی فَيَمْتَنِعُ التَّصَرُّفُ لهذا تصرف به ممتنع وګرځي فَلَا يَحْصُلُ الْمَقْصُودُ نو ځکه مقصود به حاصل نه سي وَإِنِ اشْتَرَاهُمْ او که چيري مضارب داسي غلامان [من يُعتَق عليه] رانيسي ضَمِنَ مَالَ الْمُضَارَبَةِ نو هغه د مال مضاربت ضامن کيږي [يعني په دې صورت کي پر هغه د مال مضاربت ضمان (تاوان) لازميږي] لِأَنَّهُ يَصِيرُ مُشْتَرِيًا لِلْعَبْدِ ځکه چي هغه [د خپل ځان لپاره] د غلام رانيونکی ګرځي فَيَضْمَنُ بِالنَّقْدِ مِنْ مَالِ الْمُضَارَبَةِ نو ځکه هغه به له مال مضاربت څخه په اداء کولو سره ضامن کيږي [په بله وزنا: نو ځکه هغه به د مال مضاربت د اداء کولو ضامن کيږي] وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِي الْمَالِ رِبْحٌ او که چيري په مال کي نفع حاصله نه سي جَازَ أَنْ يَشْتَرِيَهُمْ نو د مضارب لپاره جائز دي چي هغوی [من يُعتَق عليه] آزاد کړي لِأَنَّهُ لَا مَانِعَ مِنَ التَّصَرُّفِ ځکه چي [اوس] له تصرف څخه هيڅ مانع نسته إِذْ لَا شَرِكَةَ لَهُ فِيهِ لِيُعْتَقَ عَلَيْهِ ځکه [اوس] په مال مضاربت کي شرکت نسته چي رانيول سوی غلام پر هغه آزاد سي فَإِنْ زَادَتْ قِيمَتُهُمْ بَعْدَ الشِّرَاءِ بيا که چيري تر انيولو وروسته د هغه غلامانو قيمت زيات سي عَتَقَ نَصِيبُهُ مِنْهُمْ نو له هغوی څخه د مضارب حصه آزاديږي لِمِلْكِهِ بَعْضَ قَرِيبِهِ ځکه چي مضارب د خپل قريب د بعضي حصې مالک

سوی دی وَلَمْ يَضْمَنْ لِرَبِّ الْمَالِ شَيْئًا او مضارب د ربُ المال لپاره د هیڅ شي نه ضامن کيږي لِأَنَّهُ لَا صُنْعَ مِنْ جِهَتِهِ فِي زِيَادَةِ الْقِيمَةِ ځکه چي د قيمت په زياتېدلو کي د مضارب د عمل هيڅ دخل نسته وَلَا فِي مِلْكِهِ الزِّيَادَةَ او نه د هغه په ملکيت کي قيمت زيات سوی دی لِأَنَّ هَذَا شَيْءٌ يَثْبُتُ مِنْ طَرِيقِ الْحُكْمِ ځکه چي دا شی خو د عقد [مضاربت] په حکم سره ثابتيږي فَصَارَ كَمَا إِذَا وَرِثَهُ مَعَ غَيْرِهِ نو دا داسي سوه لکه يو څوک چي د بل چا سره د خپل يو قريب غلام وارث جوړ سي [يعني دوو کسانو ته په مشترکه توګه په ميراث کي يو قريب غلام حاصل سي].

وَيَسْعَى الْعَبْدُ فِي قِيمَةِ نَصِيبِهِ مِنْهُ او غلام به د ربُ المال د حصې په اندازه قيمت کي سعی کوي [يعني کوښښ او مزدوري به کوي چي ربُ المال ته د خپل پاته حصې قيمت ورکړي او په بشپړه توګه آزاد سي] لِأَنَّهُ احْتَبَسَتْ مَالِيَّتُهُ عِنْدَهُ ځکه چي د ربُ المال ماليت د دې غلام سره محبوس پاته دی فَيَسْعَى فِيهِ نو ځکه دا غلام به د هغه په حصه کي کوښښ کوي كَمَا فِي الْوَرَاثَةِ لکه څرنګه چي په وراثت کي کيږي.

**اللغات:** ﴿ربح﴾ نفع، ګټه. ﴿نصيب﴾ حصه، حق. ﴿يمتنع﴾ د افتعال د باب مضارع ده: ممتنع کېدل، ممنوع کېدل، ناروا کېدل. ﴿احتبست﴾ د افتعال د باب ماضي ده: بندېدل، محبوس کېدل (يو شی د چا په قبضه کي راګرځېدل). ﴿يسعٰى﴾ د فتح د باب مضارع ده: کوښښ او هڅه کول (د يو چا په حق او حاجت پوره کولو کي هڅه کول)، زحمت او خواري کښل، مراد ځني کسب او مزدوري کول او د پاته حصې د آزادولو لپاره مال ګټل دي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مال مضاربت څه نفع او ګټه وکړي، نو ښکاره خبره ده چي هغه نفع د ربُ المال او مضارب په مينځ کي مشترکه ګرځي او د مضارب لپاره په هغه مال سره د داسي کس رانيول جائز نه دي کوم چي د مضارب قريب (ذو رحم محرم) وي، ځکه چي د مضارب د قريب کېدلو په وجه به هغه د مضارب د نفعي په حصه کي آزاد سي، او څرنګه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا اللهُ په نيز عتق نه سي متجزي کېدای (يعني آزادي جزء، جزء او توټه، توټه نه سي کېدای)، نو ځکه د مالک د مال په حصه کي به هم هغه آزاد سي، او د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نيز عتق متجزي کېدای سي، نو ځکه د هغه په نيز ربُ المال ته اختيار دی چي که هغه وغواړي نو په خپله حصه کي دي عتق نافذ کړي او له مضارب څخه دي د مال مضاربت او د خپلي نفعي تاوان (ضمان) واخلي، او که وغواړي نو په خپله

حصه کې دي د غلام آزادي منع کړي او په غلام دي سعي او مزدوري وکړي. په "الاختلاف المعروف" سره همدغه اختلاف ته اشاره سوې ده او څرنګه چې په داسې کولو سره د مضاربت مقصود نه حاصلیږي. نو ځکه د مضارب لپاره دا کار صحیح نه دی. او که هغه داسې وکړي. نو د مال مضاربت ضامن کیږي: ځکه چې هغه د عقد د مقتضاء په خلاف کار کونکی دی.

وإن لم يكن إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مال مضاربت هيڅ نفع نه وکړي بلکې صرف مال مضاربت وي. نو مضارب خپل قريب (کوم چې د بل چا تر غلامتوب لاندې وي) رانيولای سي. ځکه چې اوس په مال مضاربت کې د هغه شرکت نسته (ځکه د هغه شرکت او ملکيت صرف په نفع کې دی). نو ځکه رانيول سوی غلام به پر هغه آزاديږي هم نه. او دا شی به مانع د تصرف هم نه وي. لېکن که تر رانيولو وروسته د هغه غلام قيمت زيات سي او مال مضاربت نفع وکړي. نو د مضارب په حصه کې چې څومره نفع راځي. د هغه حصې په اندازه هغه غلام آزاديږي: ځکه چې اوس د مضارب په قبضه کې مال راغلی او هغه د خپل قريب د بعضي حصې مالک سو. لېکن څرنګه چې دا ملکيت هغه ته په غير اختياري توګه (بلا اختياره) حاصل سوی دی او په دې کې د مضارب د عمل هيڅ دخل نسته، نو ځکه هغه به د ربُ المال لپاره د مذکوره مال ضامن کيږي هم نه.

فصار كما إذا ورثه إلخ: د دې مثال دا دی لکه يو سړی چې د بل چا سره د خپل قريب وارث سي. صورت يې دا دی چې مثلاً ادريس د يو مالک د مينځې سره نکاح وکړي او له هغې څخه د ده يو ځوی پيدا سي (چې پر هغه د زيد نوم کېښېنول سي. او تاسو ته به معلومه وي چې داسې بچې د مور تابع کيږي او د خپل مالک غلام ګرځي). او بيا ادريس د يو آزادې ښځې سره نکاح وکړي. او هغه آزاده ښځه له مالک څخه د خپل خاوند يعني د ادريس ځوی (زيد) رانيسي. بيا دا آزاده ښځه مړه سي او خپل تر شا يو ورور او دا خاوند (ادريس) پرېږدي (يعني د هغې صرف دوه وارثان پاته سي: ورور او خاوند). نو ښکاره خبره ده چې د هغې ميراث د دغه دوو کسانو (ورور او خاوند) په مينځ کې نصف، نصف مشترک ګرځي. لهذا د غلام (زيد) نيمه حصه د ورور په ملکيت کې راغله او نيمه حصه يې د خاوند په ملکيت کې راغله کوم چې د غلام پلار دی. نو اوس دا خاوند د خپل قريب غلام (ځوی) مالک سو. نو ځکه هغه قريب غلام (ځوی) سمدستي پر خاوند آزاديږي. ...کن خاوند د ښځې د ورور لپاره د هيڅ شي نه ضامن کيږي (يعني د مشترک غلام (ځوی) د آزادېدلو په وجه پر خاوند د خپل شريک (اخښي) ضمان نه لازميږي)، ځکه چې خاوند په خپل اختيار سره د دې قريب (ځوی) نه دی مالک سوی بلکې د وارثت په نعمت سره هغه ته دا ملکيت حاصل سوی دی. همداسې په پورتنۍ مسئله کې هم مضارب په غير اختياري توګه د خپل قريب مالک سوی دی. نو ځکه هغه به هم د ربُ المال لپاره نه ضامن کيږي. لېکن څرنګه چې د

ربُ المال په حصه کي آزادي نه واقع کيږي او د هغه ماليت په دې غلام کي محبوس پاته دى. نو ځکه دا غلام (د مضارب قريب غلام) به د ربُ المال په حصه کي سعى او مزدوري کوي او د هغه لپاره به مال ګټي او ربُ المال ته به يې ورکوي چي په بشپړه توګه آزاد سي.

## که مضارب له مالِ مضاربت ځخه مينځه أم ولد جوړه کړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: فَإِنْ كَانَ مَعَ الْمُضَارِبِ أَلْفٌ بِالنِّصْفِ فرمايي: که چيري د مضارب سره د نيمي نفع پر شرط زر درهمه [مالِ مضاربت] وي فَاشْتَرَى بِهَا جَارِيَةً قِيمَتُهَا أَلْفٌ بيا په هغه زر درهمو سره مضارب يو داسي مينځه رانيوله چي د هغې قيمت زر درهمه وو فَوَطِئَهَا او مضارب د هغه مينځي سره وطي وکړي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ يُسَاوِي أَلْفًا بيا هغې يو بچى وزېږوى چي د هغه قيمت زر درهمه وو فَادَّعَاهُ او مضارب د هغه دعوىٰ وکړه [چي دا زما له نطفې ځخه دى] ثُمَّ بَلَغَتْ قِيمَةُ الْغُلَامِ أَلْفًا وَخَمْسَ مِائَةٍ بيا د هغه هلک قيمت يو نيم زر درهمو ته ورسېدى وَالْمُدَّعِي مُوسِرٌ او مدعي [مضارب] مالدار وو فَإِنْ شَاءَ رَبُّ الْمَالِ اسْتَسْعَى الْغُلَامَ فِي أَلْفٍ وَمِائَتَيْنِ وَخَمْسِينَ نو که د ربُ المال خوښه وي نو په دوولس نيم سوه [۱۲۵۰] درهمو کي دې په غلام هلک سعى [او کسب] وکړي [يعني هغه ته دې ووايي چي کوښښ او مزدوري وکړه او زما لپاره ۱۲۵۰ درهمه وګټه!] وَإِنْ شَاءَ أَعْتَقَ او که غواړي نو هغه دې آزاد کړي وَوَجْهُ ذَلِكَ: أَنَّ الدَّعْوَةَ صَحِيحَةٌ فِي الظَّاهِرِ حَمْلًا عَلَى فِرَاشِ النِّكَاحِ د دې دليل دا دى: چي په ظاهره دا دعوىٰ صحيح ده. د نکاح پر فراش [د نکاح پر وطي] په حمل کولو سره لَكِنَّهُ لَمْ يَنْفُذْ لېکن [د عتق (آزادى) په حق کي] دا دعوىٰ نه نافذيږي لِفَقْدِ شَرْطِهِ وَهُوَ الْمِلْكُ ځکه چي د عتق شرط يعني ملکيت معدوم دى لِعَدَمِ ظُهُورِ الرِّبْحِ ځکه چي نفع ښکاره نه سوه لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَعْنِي الْأُمَّ وَالْوَلَدَ مُسْتَحَقٌّ بِرَأْسِ الْمَالِ ځکه چي له دوى دواړو يعني له مور [مينځي] او أم ولد ځخه هر يو په رأسُ المال سره مستحق سوى دى كَمَالِ الْمُضَارَبَةِ إِذَا صَارَ أَعْيَانًا كُلُّ عَيْنٍ مِنْهَا يُسَاوِي رَأْسَ الْمَالِ لکه د مضاربت مال. کله چي هغه اعيان [شيان] وګرځي او هر عَين [شى] د رأسُ المال سره برابر وي لَا يَظْهَرُ الرِّبْحُ نو نفع نه ښکاره کيږي كَذَا هَذَا همداسي به دلته هم نفع نه ښکاره کيږي فَإِذَا زَادَتْ قِيمَةُ الْغُلَامِ الْآنَ او کله چي اوس د غلام قيمت زيات سو ظَهَرَ الرِّبْحُ نو نفع ښکاره سوه فَنَفَذَتِ الدَّعْوَةُ السَّابِقَةُ

نو ځکه مخکنۍ دعویٰ به نافذيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَعْتَقَ الْوَلَدَ ثُمَّ ازْدَادَتِ الْقِيمَةُ په خلاف د هغه صورت کله چي مضارب بچی آزاد کړي بيا [د هغه] قيمت زيات سي لِأَنَّ ذٰلِكَ إِنْشَاءُ الْعِتْقِ ځکه چي دا د عتق انشاء ده فَإِذَا بَطَلَ لِعَدَمِ الْمِلْكِ او کله چي د ملکيت د نشتوالي په وجه [يو وار] انشاء باطله سوه لَا يَنْفُذُ بَعْدَ ذٰلِكَ بِحُدُوثِ الْمِلْكِ نو تر هغه وروسته به د ملکيت په موجودېدلو سره عتق نه نافذيږي أَمَّا هٰذَا إِخْبَارٌ او پاته سو دا دعویٰ خو محض إخبار [خبر ورکول] دي فَجَازَ أَنْ يَنْفُذَ عِنْدَ حُدُوثِ الْمِلْكِ نو ځکه د ملکيت موجودېدلو په وخت کي د هغه نافذېدل جائز دي كَمَا إِذَا أَقَرَّ بِحُرِّيَّةِ عَبْدِ غَيْرِهِ ثُمَّ اشْتَرَاهُ لکه کله چي يو څوک د بل چا د غلام آزادېدلو اقرار وکړي او بيا هغه غلام رانيسي وَإِذَا صَحَّتِ الدَّعْوَةُ وَثَبَتَ النَّسَبُ او کله چي دعویٰ صحيح سوه او نسب ثابت سو عَتَقَ الْوَلَدُ نو هغه بچی به آزاديږي لِقِيَامِ مِلْكِهِ فِي بَعْضِهِ ځکه چي د بچي په بعضي حصه کي د مضارب ملکيت موجود دی وَلَا يَضْمَنُ لِرَبِّ الْمَالِ شَيْئًا مِنْ قِيمَةِ الْوَلَدِ او دا مضارب د ربُ المال لپاره د بچي له قيمت څخه د هيڅ مقدار نه ضامن کيږي لِأَنَّ عِتْقَهُ ثَبَتَ بِالنَّسَبِ وَالْمِلْكِ ځکه چي د هغه عتق په نسب و ملکيت دواړو سره ثابت سوی دی وَالْمِلْكُ آخِرُهُمَا او ملکيت د دې دواړو آخر دی [يعني ملکيت په آخر کي موجود سوی دی] فَيُضَافُ إِلَيْهِ نو ځکه حکم به د هغه وطرف ته منسوب کيږي وَلَا صُنْعَ لَهُ فِيهِ او په هغه کي د مضارب د عمل هيڅ دخل نسته وَهٰذَا ضَمَانُ إِعْتَاقٍ او دا د آزادولو ضمان [تاوان] دی فَلَا بُدَّ مِنَ التَّعَدِّيْ نو ځکه د تعدی موجودېدل ضروري دي وَلَمْ يُوجَدْ حال دا چي تعدی موجوده نه سوه وَلَهُ أَنْ يَسْتَسْعِيَ الْغُلَامَ او ربُ المال ته دا حق سته چي په غلام [هلک] سعي [او کسب] وکړي لِأَنَّهُ احْتَبَسَتْ مَالِيَّتُهُ عِنْدَهُ ځکه چي د رب الماليت د دې غلام سره محبوس پاته دی وَلَهُ أَنْ يُعْتِقَ او ربُ المال ته دا حق هم سته چي دا غلام آزاد کړي لِأَنَّ الْمُسْتَسْعَى كَالْمُكَاتَبِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ځکه چي مستسعیٰ غلام د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د مکاتب په څېر دی [يعني د مکاتب په څېر اعتاق قبلوي] وَيَسْتَسْعِيهِ فِي أَلْفٍ وَمِائَتَيْنِ وَخَمْسِينَ او [په غلام د سعی کولو په صورت کي] رب المال به په دوولس نيم سوه درهمو کي په غلام سعي کوي لِأَنَّ الْأَلْفَ مُسْتَحَقٌّ

بِرَأْسِ الْمَالِ وَالْخَمْسَمِائَةِ رِبْحٌ ځکه چې زر درهمه خو په رأسُ المال سره مستحق سوي دي او پنځه سوه درهمه نفع ده وَالرِّبْحُ بَيْنَهُمَا او نفع د مضارب او ربُ المال په مينځ کي مشترکه ده [يعني ۲۵۰ (دوه نيم سوه درهمه) ديوه دي او ۲۵۰ د بل دي] فَلِهَذَا يَسْعَى لَهُ فِي هَذَا الْمِقْدَارِ نو ځکه غلام به په دغه مقدار [۲۵۰] کي هم د ربُ المال لپاره سعى کوي.

ثُمَّ إِذَا قَبَضَ رَبُّ الْمَالِ الْأَلْفَ بيا چې کله ربُ المال پر زرو درهمو قبضه وکړي [يعني زر درهمه واخلي] لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُدَّعِيَ نِصْفَ قِيمَةِ الْأُمِّ نو هغه ته دا حق سته چې مدعي [يعني مضارب] د مور [مينځي] د نيم قيمت ضامن وګرځوي لِأَنَّ الْأَلْفَ الْمَأْخُوذَ لَمَّا اسْتُحِقَّ بِرَأْسِ الْمَالِ ځکه اخيستل سوي زر درهمه چې کله په رأسُ المال سره مستحق وختل لِكَوْنِهِ مُقَدَّمًا فِي الِاسْتِيفَاءِ ځکه هغوئ په اخيستلو کي مخکي دي ظَهَرَ أَنَّ الْجَارِيَةَ كُلَّهَا رِبْحٌ نو ښکاره سوه چې مينځه ټوله نفع [ګټه] ده فَيَكُونُ بَيْنَهُمَا نو ځکه هغه به [هم] د دوی په مينځ کي مشترکه وي وَقَدْ تَقَدَّمَتْ دَعْوَةٌ صَحِيحَةٌ لېکن مخکي [د مضارب له طرفه] صحيح دعوىٰ سوي ده لِاحْتِمَالِ الْفِرَاشِ الثَّابِتِ بِالنِّكَاحِ د نکاح په ذريعه د ثابتېدونکي فراش د احتمال پر بناء [يعني کېدای سي چې د نکاح په وجه په مذکوره مينځه کي د مضارب فراش ثابت سوی وي او مينځه د هغه اُم ولد ګرځېدلې وي] وَتَوَقَّفَ نَفَاذُهَا لِفَقْدِ الْمِلْكِ [لېکن] د ملکيت د نشتوالي په وجه د دې دعوې نافذېدل موقوف وه فَإِذَا ظَهَرَ الْمِلْكُ او کله چې ملکيت ښکاره سو نَفَذَتْ تِلْكَ الدَّعْوَةُ نو دا [مخکنی] دعوىٰ به نافذېږي وَصَارَتِ الْجَارِيَةُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او مينځه به د مضارب اُم ولد ګرځي وَيَضْمَنُ نَصِيبَ رَبِّ الْمَالِ او مضارب به د ربُ المال د حصې ضامن کيږي لِأَنَّ هَذَا ضَمَانُ تَمَلُّكٍ ځکه چې دا د مالک کېدلو [مالک جوړېدلو] ضمان دی وَضَمَانُ التَّمَلُّكِ لَا يَسْتَدْعِي صُنْعًا او ضمان تملک د هيڅ عمل تقاضا نه کوي كَمَا إِذَا اسْتَوْلَدَ جَارِيَةً بِالنِّكَاحِ لکه کله چې يو سړی د نکاح په ذريعه يو مينځه اُم ولد جوړه کړي ثُمَّ مَلَكَهَا هُوَ وَغَيْرُهُ وِرَاثَةً بيا دا سړی [مستولد]

او بل يو د ميراث ټوګه د هغه مينځي مالکان سي يَضْمَنُ نَصِيبَ شَرِيكِهِ نو دا سړی استولد! د خپل شريک د حصې ضامن کيږي كَذَا هٰذَا همداسي به دا وي ايعني همداسي به مضارب هم د ربّ المال د حصې ضامن کيږي ا بِخِلَافِ ضَمَانِ الْوَلَدِ په خلاف د بچي د ضمان عَلٰى مَا مَرَّ لکه اخه امخکي چي تېر سوه.

**اللغات**: ﴿يستسعي﴾ د استفعال د باب مضارع ده: په غلام سعی او کوښښ کول، د مال ګټلو لپاره کسب او مزدوري په کول. ﴿غلام﴾ هلک، خادم (مزدور)، غلام، ﴿فراش﴾ بستره. مابنه والی (د يو سړي په نکاح کېدل). په نکاح يا ملک يمين سره وطي کړل سوي ښځه (المرأة الموطوءة بالنكاح أو ملك اليمين). ﴿التعدّي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: تجاوز کول، ناحقه تصرف کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که ربُ المال مضارب ته زر درهمه ورکړي او د نيمايي نفعي شرط ولګوي (چي نفع به نيمه ستاوي او نيمه زما)، او مضارب د هغه زر درهمو په عوض کي يوه مينځه رانيسي او د هغې سره وطي وکړي چي د هغه په نتيجه کي له مينځي څخه بچی پيدا سي او دا بچی چي څه غټ سي. د هغه قيمت زر درهمه وي، او مضارب د هغه د نسب دعویٰ وکړي چي دا هلک زما دی. بيا د هغه قيمت اضافه سي او يو نيم زر درهمو ته ورسيږي، نو ګواکي په اصل رأسُ المال (زر درهمه) کي پنځه سوه درهمه نفع وسوه، او مضارب مالدار هم وي. نو په دې صورت کي مضارب (د مالدار والي باوجود) د ربِ المال لپاره د هغه د حصې د نفعي يعني د ٢٥٠ درهمو نه ضامن کيږي. بلکي ربُ المال به يا د ١٢٥٠ درهمو دا خيستلو تر وخته پوري په هغه هلک (غلام) سعی او مزدوري کوي يا هغه به آزادوي. او مضارب که څه هم مالدار دی لېکن ربُ المال ته به يو درهم ضمان (تاوان) هم نه ورکوي:

ځکه چي په ظاهره د دې هلک د نسب په هکله د مضارب دعویٰ صحيح ده. په دې توګه چي بائع به اول د مضارب سره د هغه مينځي نکاح کړې وي بيا به يې هغه پر مضارب خرڅه کړې وي، لېکن څرنګه چي د مضارب د دعوې په وخت کي نفع (ګټه) نه وه سوې او د مضارب ملکيت معدوم وو (ځکه چي د مضارب ملکيت صرف په نفع کي دی. لهذا په هغه وخت کي مينځه او د هغې بچي دواړه صرف په مال مضاربت سره رانيول سوي وه). نو ځکه د دعوې د نفاذ لاره بنده وه، اوس چي کله نفع وسوه او د هلک قيمت ١٥٠٠ درهمو ته ورسېدی. نو د مضارب ملکيت هم موجود سو. نو ځکه اوس د مضارب مخکنۍ دعوی به نافذيږي او هغه هلک به د مضارب سره ثابت النسب ګرځي، ځکه همدا قاعده ده "إِذَا زَالَ الْمَانِعُ عَادَ الْمَمْنُوعُ" (کله چي مانع زائل سي نو ممنوع شی واپس راګرځي).

ها! كه چيرې مضارب په هغه وخت كې بچي آزاد كړى واى، بيا د بچي قيمت اضافه سوي وى، نو په دې صورت كې وروسته په هغه كې اعتاق (آزادول) نه نافذيږي؛ ځكه چې اعتاق په اصل كې انشاء العتق (دعتق نوى كول) دي، لېكن څرنګه چې دلته د اعتاق (آزادولو) په وخت كې ملكيت معدوم وو، لهذا دا انشاء په هغه وخت كې باطله سوه، نو ځكه وروسته به (د مضارب) د ملكيت په موجودېدلو سره دا بطلان د صحت وطرف ته نه راګرځي (يعني انشاء العتق به صحيح نه ګرځي). لېكن د نسب دعوىٰ به د ملكيت تر موجوېدلو وروسته د صحت وطرف ته راګرځي او د مضارب نسب به هم ثابتيږي او د ده په حصه كې به هغه هلک آزاديږي؛ ځكه چې مضاب د هغه د بعضي حصې مالک سوى دى، لېكن په دې ملكيت سره مضارب د ربُ المال لپاره د هيڅ شي نه ضامن كيږي؛ ځكه چې د هلک آزادي (عتق) په نسب او ملكيت دواړو سره ثابت سوى دى او ملكيت وروسته (په آخر كې) ثابت سوى دى، نو ځكه عتق به د همدې ملكيت وطرف ته مضاف او منسوب وي، او څرنګه چې په دې ملكيت كې د مضارب د عمل هيڅ دخل نسته نو ځكه هغه به نه ضامن كيږي، او بل دا چې دا ضمان اعتاق (د آزادولو تاوان) دى، او د ضمان اعتاق لپاره تعدى ضروري ده، حالانكې دلته د مضارب له طرفه تعدى او نا حقه تصرف نه دى سوى، نو ځكه په دې حواله سره به هم هغه نه ضامن كيږي. ها! ربُ المال ته په خپله حصه كې په دې هلک (غلام) سره د سعى كولو حق سته، يعني هغه به كوښښ او كسب كوي او د مالک لپاره به د هغه د حصې ١٢٥٠ درهمه ګټي (٢٥٠ د نفعې او ١٠٠٠ د مالِ مضاربت).

ثم إذا قبض إلخ: فرمايي كله چې د مدعي يعني د مضارب دعوىٰ صحيح ده او هغه هلک د ده سره ثابت النسب دى. نو ښكاره خبره ده چې د هغه مور به هم د مضارب أم ولد وي او مضارب به د ربُ المال د حصې يعني د نصف نفعې ضامن وي؛ ځكه چې د بچي سره، سره دا مينځه هم له نفعې څخه ده او په دې كې دواړه يعني مضارب او ربُ المال مشترک دي، نو ځكه مضارب به د ربُ المال د حصې ضامن وي؛ ځكه چې دا ضمان ملک (د ملكيت ضمان) دى او ضمان ملک د عمل د دخل تقاضا نه كوي، لكه يو كس چې د يو مينځې سره نكاح وكړي او هغه أم ولد جوړه كړي (يعني د هغې سره وطي وكړي چې د وطي په نتيجه كې له هغې څخه بچى پيدا سي)، بيا دا مستولد (أم ولد جوړونكى كس) او بل كس په وراثت كې د هغه مينځې مالكان سي، نو د أم ولد جوړولو په وجه دا مستولد كس د هغه بل كس (شريک) ضامن كيږي؛ ځكه چې دا ضمان ملک دى، او ضمان ملک د تعدى او عمل محتاج نه وي. د دې په خلاف په ضمان اعتاق كې تعدى موجدېدل ضروري دي او هلته تعدى معدوم ده، نو ځكه په هغه صورت كې ضمان نه لازميږي. په ضمان ملک او ضمان اعتاق كې په همدې حواله سره فرق دى، دا فرق به ياد ساتل كيږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ الْمُضَارِبِ يُضَارِبُ

(دا) باب د مضارب د مضاربت کولو (په بيان کې) دی

**تشريح**: مخکې تر دې دا بيان وو چې ربُ المال يو څوک مضارب جوړ کړي، اوس په دې باب کې دا بيان دی چې مضارب په خپله بل څوک مضارب جوړ کړي (کوم ته چې مضاربتِ ثانيه وايي)، او څرنګه چې مضاربت ثانيه له مضاربت اولیٰ څخه وروسته وي، نو ځکه د هغه بيان د مضاربت اولیٰ له بيان څخه وروسته کړی سوی دی.

## د ربُ المال له اجازت څخه بغير مضاربتِ ثانيه کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا دَفَعَ الْمُضَارِبُ الْمَالَ إِلَى غَيْرِهِ مُضَارَبَةً فرمايي: او کله چې مضارب مال بل چا ته د مضاربت په توګه ورکړي وَلَمْ يَأْذَنْ لَهُ رَبُّ الْمَالِ حال دا چې ربُ المال هغه ته اجازت ورکړی نه وي لَمْ يَضْمَنْ بِالدَّفْعِ وَلَا بِتَصَرُّفِ الْمُضَارِبِ الثَّانِي نو محض په ورکولو او د دويم مضارب په تصرف کولو سره هغه [اول مضارب] نه ضامن کيږي حَتَّى يَرْبَحَ تر دې چې دويم مضارب نفع حاصله کړي [يعني په مال مضاربت سره ګټه وکړي] فَإِذَا رَبِحَ او کله چې هغه نفع حاصله کړي ضَمِنَ الْأَوَّلُ لِرَبِّ الْمَالِ نو اول مضارب د ربُ المال لپاره ضامن کيږي وَهٰذَا رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زياد روايت دی وَقَالَا[●]: إِذَا عَمِلَ بِهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې کله دويم مضارب په دې مال سره کار [کاروبار] وکړي ضَمِنَ رَبِحَ أَوْ لَمْ يَرْبَحْ نو هغه ضامن کيږي، برابره ده هغه نفع حاصله کړي او که نه [يعني برابره ده په مالِ مضاربت سره ګټه وکړي او که يې نه وکړي] وَهٰذَا ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ او دا ظاهر روايت دی وَقَالَ زُفَرُ: يَضْمَنُ بِالدَّفْعِ عَمِلَ أَوْ لَمْ يَعْمَلْ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې محض په ورکولو سره اول مضارب ضامن کيږي، برابره ده هغه کار وکړي، که يې نه وکړي وَهُوَ

---

● القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۵۴۳)، وكذا في بدائع الصنائع (ج:۶، ص:۱۴۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۱۰]

رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دى لِأَنَّ الْمَمْلُوكَ لَهُ الدَّفْعُ عَلَى وَجْهِ الْإِيدَاعِ ځکه چې مملوک [يعني مضارب] ته صرف د امانت په توګه د ورکولو اختيار سته وَهٰذَا الدَّفْعُ عَلَى وَجْهِ الْمُضَارَبَةِ حالانکي دا د مضاربت په توګه ورکول دي [نو ځکه ورکونکی (مضارب) به ضامن کيږي] وَلَهُمَا: أَنَّ الدَّفْعَ إِيدَاعٌ حَقِيقَةً او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې ورکول په حقيقت کي [د بل چا په قبضه کي] امانتاً ورکول دي وَإِنَّمَا يَتَقَرَّرُ كَوْنُهُ لِلْمُضَارَبَةِ بِالْعَمَلِ او د هغه د مضاربت لپاره کېدل خو په کار کولو سره ثابتيږي فَكَانَ الْحَالُ مُرَاعًى قَبْلَهُ نو ځکه تر هغه مخکي حالت به د حفاظت حالت وي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الدَّفْعَ قَبْلَ الْعَمَلِ إِيدَاعٌ وَبَعْدَهُ إِبْضَاعٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې ورکول له کار شروع کولو څخه مخکي امانتاً ورکول [امانتاً ايښودل] دي او له کار څخه وروسته بضاعتاً ورکول دي وَالْفِعْلَانِ يَمْلِكُهُمَا الْمُضَارِبُ او مضارب د دې دواړو کارو [إيداع او إبضاع] ملکيت لري فَلَا يَضْمَنُ بِهِمَا نو ځکه د دې کارو په وجه به هغه نه ضامن کيږي إِلَّا أَنَّهُ إِذَا رَبِحَ مګر دا چې دويم مضارب نفع حاصله کړي [په مال مضاربت سره ګټه وکړي] فَقَدْ ثَبَتَ لَهُ شَرِكَةٌ فِي الْمَالِ نو په مال کي د هغه [دويم مضارب] شرکت ثابتيږي فَيَضْمَنُ نو ځکه به ضامن کيږي كَمَا لَوْ خَلَطَهُ بِغَيْرِهِ لکه [په هغه وخت کي چې ضامن کيږي] کله چې هغه [اول مضارب] مال مضاربت په بل مال ګډ کړي وَهٰذَا إِذَا كَانَتِ الْمُضَارَبَةُ صَحِيحَةً او دا حکم په هغه صورت کي دی کله چې مضاربت صحيح وي فَإِنْ كَانَتْ فَاسِدَةً لېکن که مضاربت فاسد وي لَا يَضْمَنُهُ الْأَوَّلُ نو اول مضارب د مال نه ضامن کيږي وَإِنْ عَمِلَ الثَّانِي که څه هم دويم مضارب [په مال] کار وکړي لِأَنَّهُ أَجِيرٌ فِيهِ ځکه چې دويم مضارب په دې کي اجير [مزدور] دی وَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ او د هغه لپاره خپل أجرت مثلي دی فَلَا يَثْبُتُ الشَّرِكَةُ بِهِ نو ځکه په مال کي به د هغه شرکت نه ثابتيږي ثُمَّ ذَكَرَ فِي الْكِتَابِ: يَضْمَنُ الْأَوَّلُ وَلَمْ يَذْكُرِ الثَّانِيَ بيا په قدوري [متن] کي يې ذکر کړي دي: چې اول مضارب ضامن کيږي او د دويم مضارب [ضامن کېدل] يې نه دي ذکر کړي [ځکه چې په دې کي اختلاف دی او هغه دا چې] وَقِيلَ: يَنْبَغِي أَنْ لَا يَضْمَنَ الثَّانِي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ويل سوي دي: چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دويم مضارب

ضامن کېدل پکار نه دي وَعِنْدَهُمَا يَضْمَنُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه ضامن کېدل پکار دي بِنَاءً عَلَى اخْتِلَافِهِمْ فِي مُودَعِ الْمُودَعِ او دا اختلاف په مودَع المودَع کې د دوی پر اختلاف مبني دی وَقِيلَ: رَبُّ الْمَالِ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْأَوَّلَ وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الثَّانِيَ بِالْإِجْمَاعِ او ويل سوي دي: چي بالاجماع ربُ المال ته اختيار دی که وغواړي نو اول دي ضامن وګرځوي [يعني له اول مضارب څخه دي ضمان (تاوان) واخلي] او که وغواړي نو دويم مضارب دي ضامن وګرځوي وَهُوَ الْمَشْهُورُ او همدا مشهور مذهب دی وَهٰذَا عِنْدَهُمَا ظَاهِرٌ او دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز ښکاره ده وَكَذَا عِنْدَهُ همدارنګه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم ښکاره ده وَوَجْهُ الْفَرْقِ لَهُ بَيْنَ هٰذِهِ وَبَيْنَ مُودَعِ الْمُودَعِ أَنَّ الْمُودَعَ الثَّانِيَ يَقْبِضُهُ لِمَنْفَعَةِ الْأَوَّلِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دې مسئلې او د مودَع المودَع والا مسئلې په مينځ کې فرق دا دی چې دويم مودَع د اول مودَع د منفعت لپاره پر مال [امانت] قبضه کوي فَلَا يَكُونُ ضَامِنًا نو ځکه هغه به نه ضامن کيږي أَمَّا الْمُضَارِبُ الثَّانِي يَعْمَلُ فِيهِ لِنَفْعِ نَفْسِهِ لېکن دويم مضارب په دې کې د خپل ځان د نفعې لپاره کار کوي فَجَازَ أَنْ يَكُونَ ضَامِنًا نو ځکه هغه ضامن کېدای سي ثُمَّ إِنْ ضَمَّنَ الْأَوَّلَ بيا که ربُ المال اول مضارب ضامن وګرځوي [يعني له هغه څخه ضمان (تاوان) واخلي] صَحَّتِ الْمُضَارَبَةُ بَيْنَ الْأَوَّلِ وَبَيْنَ الثَّانِي نو د اول و دويم مضارب په مينځ کې مضاربت صحيح کيږي وَكَانَ الرِّبْحُ بَيْنَهُمَا عَلَى مَا شَرَطَا او د هغه نفع به د دوی په مينځ کې د دوی شرط مطابق مشترکه وي لِأَنَّهُ ظَهَرَ أَنَّهُ مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ مِنْ حِينِ خَالَفَ بِالدَّفْعِ إِلَى غَيْرِهِ لَا عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي رَضِيَ بِهِ ځکه چي اول مضارب په ضمان ورکولو سره د مال مالک سو، له هغه وخت څخه کله چي هغه د ربُ المال مخالفت وکړی په ورکولو سره د مال وبل چا ته په داسي توګه نه چي ربُ المال په هغه راضي وي [ځکه ربُ المال په دې راضي نه دی چي مضارب مال بل چا ته د مضاربت په توګه ورکړي. (په لنډه توګه د دې جملې معنیٰ دا ده چي اول مضارب د ضمان په ورکولو سره د مالِ مضاربت مالک سو] فَصَارَ كَمَا إِذَا دَفَعَ مَالَ نَفْسِهِ نو دا داسي سوه لکه هغه چي [بل چا ته] خپل مال [د مضاربت لپاره] ورکړی وي وَإِنْ ضَمَّنَ الثَّانِيَ او که ربُ المال دويم مضارب ضامن وګرځوي رَجَعَ عَلَى الْأَوَّلِ بِالْعَقْدِ نو دويم مضارب به د عقد په سبب پر اول مضارب رجوع کيږي لِأَنَّهُ عَامِلٌ لَهُ ځکه چي هغه د اول مضارب لپاره کار

کونکی دی كَمَا فِي الْمُودَعِ لکه څرنګه چي د مُودَع په صورت کي دي وَلِأَنَّهُ مَغْرُورٌ مِنْ جِهَتِهِ فِي ضِمْنِ الْعَقْدِ او ځکه چي دويم مضارب د عقد په ضمن کي د اول مضارب له طرفه دوکه سوی دی [نو ځکه په دې حواله سره به هم هغه پر اول مضارب رجوع کوي] وَتَصِحُّ الْمُضَارَبَةُ وَالرِّبْحُ بَيْنَهُمَا عَلَى مَا شَرَطَا او مضاربت صحيح کيږي او نفع به د دوی د شرط مطابق د دوی په مينځ کي مشترکه وي لِأَنَّ قَرَارَ الضَّمَانِ عَلَى الْأَوَّلِ ځکه چي د ضمان ثبوت [په حقيقت کي] پر اول مضارب دی فَكَأَنَّهُ ضَمَّنَهُ ابْتِدَاءً نو ګواکي ربُ المال ابتداءً هغه ضامن ګرځولی دی [يعني ګواکي اول يې له هغه څخه ضمان (تاوان) اخيستی دی] وَيَطِيبُ الرِّبْحُ لِلثَّانِي وَلَا يَطِيبُ لِلْأَعْلَى او نفع د دويم مضارب لپاره حلال [پاکه] ده او د اول مضارب لپاره نه ده لِأَنَّ الْأَسْفَلَ يَسْتَحِقُّهُ بِعَمَلِهِ ځکه دويم مضارب د خپل کار په وجه د نفع مستحق دی وَلَا خُبْثَ فِي الْعَمَلِ او په کار کي هيڅ بدي نسته وَالْأَعْلَى يَسْتَحِقُّهُ بِمِلْكِهِ الْمُسْتَنِدِ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ او اول مضارب د خپل هغه ملکيت په وجه د نفع مستحق دی کوم چي د ضمان اداء کولو د حالت وطرف ته منسوب دی فَلَا يَعْرَى عَنْ نَوْعِ خُبْثٍ نو ځکه دا به له يو ډول بدي څخه خالي نه وي.

**اللغات**: ﴿ضَمِنَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: ضامن کېدل، ضمان (تلوان) پر لازمېدل، ﴿رِبح﴾ مخکني صيغه ده: ګټه کول، نفع حاصلول (ګټه ترلاسه کول)، ﴿إِيداع﴾ د افعال د باب مصدر دی: په امانت ورکول، امانتاً ايښوول، ﴿مُودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی: چا ته چي امانت ايښول سوی وي (چا ته چي امانتاً يو مال ورکول سوی وي)، امانت ساتونکی، ﴿ابضَاع﴾ مخکنی صيغه ده: بضاعتاً ورکول، چي نفع به ټوله زما وي او کار به ستا وي (تفصيلي تعريف يې مخکي تېر سو)، ﴿ضَمَّن﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: ضامن ګرځول، ضمان (تاوان) څني اخيستل، ﴿يطيب﴾ د ضرب د باب مضارع ده، د دې باب څو معناوي دي: پاکېدل، ښه کېدل (غوره کېدل)، حلال کېدل (روا کېدل) اوداسې نور. (معجم وسيط)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري مضارب د ربُ المال له اجازت او رضا څخه بغير مال مضاربت د مضاربت په توګه بل چا (دويم مضارب) ته ورکړي، نو پر اول مضارب ضمان (تاوان) لازميږي، ليکن دا ضمان کله لازميږي؟ په دې سلسله کي د فقهاؤ قولونه مختلف دي: ①... له حسن بن زياد رَحِمَهُ الله څخه د امام صاحب رَحِمَهُ الله روايت دا دی چي محض دويم مضارب ته په مال ورکولو سره يا د دويم مضارب په کار شروع کولو سره اول مضارب نه ضامن کيږي، بلکي کله چي

دويم ضارب په هغه مال سره نفع (ګټه) وکړي، نو بيا هغه ضامن کيږي؛ ځکه چي اول مضارب ته دا اختيار هم سته چي مال مضاربت بل چا ته په امانت ورکړي او دا اختيار هم ورته سته چي هغه په بضاعت ورکړي، او څرنګه چي په دې صورتونو کي په نفع کي د دويم مضارب شرکت هم نه ثابتيږي (د اصل مال مستحق کېدل خو هلته پرېږده!)، نو ځکه د ورکولو او په بل چا د کار کولو په صورت کي به پر اول مضارب ضمان نه لازميږي، ها! کله چي دويم مضارب نفع حاصله کړي، نو بيا په هغه کي د دويم مضارب شرکت ثابتيږي او په دې وخت کي اول مضارب ضامن کيږي.

②... صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي کله دويم مضارب محض کار شروع کړي، نو اول مضارب ضامن کيږي، برابره ده دويم مضارب په مال سره نفع حاصله کړي، که نه؛ ځکه چي د کار شروع کولو په وجه به دا ورکول د مضاربت لپاره ثابت سي، او نفع حاصلېدل، نه حاصلېدل خو د بعد خبر ده او په هغه هيڅوک خبر نه دی، لهذا محض کار شروع کول به د مضاربت ثانيه د ثابتېدلو دليل وي، نو پر همدې به ضمان مُرتّب کيږي. همداظاهر روايت دی.

③... امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي فقط دويم مضارب ته په ورکولو سره هم اول مضارب ضامن کيږي، برابره ده دويم مضارب کار شروع کړي، که نه، و بِه قَالَتِ الائمة الثلاثة. (بناية ج:۹، ص:۸۲)

وهذا إذا كانت إلخ: دا حکم يعني پر اول مضارب د ضمان لازمېدلو حکم په هغه صورت کي دی کله چي مضاربت صحيح وي، او که چيري مضاربت فاسد وي، نو پر اول مضارب په هيڅ صورت کي هم ضمان نه لازميږي؛ ځکه چي په دې وخت کي به دويم مضارب محض اجير او مزدور وي او هغه ته به صرف د خپل کار أجرت مثلي ورکول کيږي، که څه هم هغه نفع هم حاصله کړي. بيا په متن کي صرف پر اول مضارب د ضمان لازمېدلو يادونه سوې ده او پر دويم مضارب د ضمان لازمېدلو په هکله هيڅ يادونه سوې نه ده؛ ځکه چي پر دويم مضارب د ضمان لازمېدلو حکم مختلف فيه دی، يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه ضمان نه لازميږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هغه ضامن کيږي؛ ځکه که چيري مُودَع د امانت مال بل چا ته مثلاً خالد ته په امانت ورکړي او د دويم مُودَع (خالد) په قبضه کي هغه مال هلاک سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر دويم مُودَع (خالد) ضمان نه لازميږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د مال مالک ته اختيار دی که له هر مُودَع څخه ضمان اخلي، يعني که وغواړي نو له اول مُودَع څخه دي ضمان واخلي او که له هغه څخه يې نه اخلي نو له دويم مُودَع څخه دي يې واخلي، همداسي په پورتنی مسئله کي هم د هغو په نيز ربُ المال ته له

دواړو شخصه د ضمان اخيستلو اختيار ورکول سوی دی. او له ضمان اخيستلو څخه وروسته د اول مضارب او دويم مضارب په مينځ کي عقدِ مضاربت صحيح کيږي او کومه نفع چي حاصله سي، هغه به د دوی د شرط مطابق په دوی کي تقسيميږي، لېکن د دويم مضارب لپاره هغه نفع په هره توګه حلال ده؛ ځکه چي دا د هغه د خپل کار (محنت کولو) اثر او نتيجه ده. نو ځکه د هغه لپاره بېله شکه حلال ده. لېکن د اول مضارب لپاره مناسب او غوره دا ده چي هغه نفع صدقه کړي، ځکه هغه که څه هم د ده د ملکيت نفع ده لېکن د ده ملکيت د ضمان په ذريعه ثابت سوی دی او له هغه شخصه د غصب بوی راځي، نو ځکه د اول مضارب لپاره د نفعي اخيستل ښه نه دي او د هغه صدقه کول غوره دي.

## د ربُ المال په اجازت سره مضاربتِ ثانيه کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا دَفَعَ إِلَيْهِ رَبُّ الْمَالِ مُضَارَبَةً بِالنِّصْفِ فرمايي: او کله چي ربُ المال مضارب ته د نيمي نفعي پر شرط مال ورکړي وَأَذِنَ لَهُ بِأَنْ يَدْفَعَهُ إِلَى غَيْرِهِ او ربُ المال مضارب ته د دې اجازت ورکړي چي هغه دا مال بل چا ته [د مضاربت لپاره] ورکولای سي فَدَفَعَهُ بِالثُّلُثِ بيا مضارب د ثلث [دريمي حصې] نفعي پر شرط بل چا [دويم مضارب] ته مال ورکړی وَقَدْ تَصَرَّفَ الثَّانِي وَرَبِحَ او دويم مضارب [په هغه مال سره] کار وکړی او نفع يې حاصله کړه فَإِنْ كَانَ رَبُّ الْمَالِ قَالَ لَهُ: عَلَى أَنَّ مَا رَزَقَ اللهُ فَهُوَ بَيْنَنَا نِصْفَانِ نو که چيري ربُ المال اول مضارب ته داسي ويلي وي: کومه نفع چي الله پاک [موږ ته] را روزي کړي هغه به زموږ په مينځ کي نصف نصف وي فَلِرَبِّ الْمَالِ النِّصْفُ وَلِلْمُضَارِبِ الثَّانِي الثُّلُثُ وَلِلْمُضَارِبِ الْأَوَّلِ السُّدُسُ نو [په دې صورت کي] د ربُ المال لپاره [د حاصل شُده نفعي] نيمه حصه ده، د دويم مضارب لپاره دريمه حصه ده او د اول مضارب لپاره شپږمه حصه ده لِأَنَّ الدَّفْعَ إِلَى الثَّانِي مُضَارَبَةً قَدْ صَحَّ ځکه چي دويم مضارب ته د مضاربت لپاره مال ورکول صحيح سوه لِوُجُودِ الْأَمْرِ بِهِ مِنْ جِهَةِ الْمَالِكِ ځکه د مالک [ربُ المال] له طرفه د ورکولو حکم موجود سو وَرَبُّ الْمَالِ شَرَطَ لِنَفْسِهِ نِصْفَ جَمِيعِ مَا رَزَقَ اللهُ تَعَالَى او ربُ المال د خپل ځان لپاره د هغه ټولي نفعي د نصف شرط لګولی دی کوم چي الله تعالیٰ [دوی ته] روزي کړي [په بله وينا: او ربُ المال د ځان لپاره د ټولي حاصل شُده نفعي څخه نيمه نفع د ځان لپاره شرط کړې ده] فَلَمْ يَبْقَ لِلْأَوَّلِ إِلَّا النِّصْفُ لهذا د اول مضارب لپاره صرف نصف نفع باقي پاته سوه فَيَنْصَرِفُ تَصَرُّفُهُ إِلَى نَصِيبِهِ نو ځکه د اول مضارب

تصرف به د هغه د حصې وطرف ته راجع كيږي وَقَدْ جَعَلَ مِنْ ذٰلِكَ بِقَدْرِ ثُلُثِ الْجَمِيعِ لِلثَّانِيْ او هغه له خپلې حصې څخه د ټولې نفعې د ثلث [دريمې حصې] په اندازه نفع د دويم مضارب لپاره شرط كړې ده فَيَكُوْنُ لَهُ نو هغه [د ټولې نفعې ثلث] به د دويم مضارب لپاره وي فَلَمْ يَبْقَ إِلَّا السُّدُسُ نو ځكه صرف سدس [شپږمه حصه نفع] پاته سوه وَيَطِيْبُ لَهُمَا ذٰلِكَ او دا نفع د دواړو مضاربانو لپاره حلال ده لِأَنَّ فِعْلَ الثَّانِيْ وَاقِعٌ لِلْأَوَّلِ ځكه چې د دويم مضارب فعل د اول مضارب لپاره واقع سوى دى كَمَنِ اسْتُؤْجِرَ عَلٰى خِيَاطَةِ ثَوْبٍ بِدِرْهَمٍ لكه يو خياط [درزي] چې د يوه درهم په عوض كې د كپړې د ګنډلو [كالي جوړولو] لپاره په أجرت ونيول سي وَاسْتَأْجَرَ غَيْرَهُ عَلَيْهِ بِنِصْفِ دِرْهَمٍ او بيا دا خياط بل څوک د نصف درهم په عوض كې د هغه كپړې د ګنډلو لپاره په أجرت ونيسي وَإِنْ كَانَ قَالَ لَهُ: عَلٰى أَنَّ مَا رَزَقَكَ اللّٰهُ او كه ربُ المال اول مضارب ته داسې ويلي وي: كومه نفع چې الله تا ته روزي كړي [كومه نفع چې تا ته حاصله سي] فَهُوَ بَيْنَنَا نِصْفَانِ نو هغه زموږ په مينځ كې نصف، نصف ده فَلِلْمُضَارِبِ الثَّانِي الثُّلُثُ وَالْبَاقِيْ بَيْنَ الْمُضَارِبِ الْأَوَّلِ وَرَبِّ الْمَالِ نِصْفَانِ نو [په دې صورت كې] د دويم مضارب لپاره [د ټولې نفعې] دريمه حصه ده او باقي نفع د اول مضارب او ربُ المال په مينځ كې نصف، نصف ده لِأَنَّهُ فَوَّضَ إِلَيْهِ التَّصَرُّفَ وَجَعَلَ لِنَفْسِهِ نِصْفَ مَا رُزِقَ الْأَوَّلُ ځكه چې ربُ المال اول مضارب ته تصرف ور سپارلى دى او د ځان لپاره يې د هغه نفعې د نصف شرط ټكولى دى كوم چې اول مضارب ته حاصله سي [روزي] وَقَدْ رُزِقَ الثُّلُثَيْنِ او هغه [اول مضارب] ته دوه ثلثه نفع حاصله سوې ده فَيَكُوْنُ بَيْنَهُمَا نو ځكه هغه به د دوى په مينځ كې مشتركه وي بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت لِأَنَّهُ جَعَلَ لِنَفْسِهِ نِصْفَ جَمِيْعِ الرِّبْحِ ځكه چې [په هغه كې] رب المال د ټولې نفعې نصف د ځان لپاره شرط كړى دى فَافْتَرَقَا نو ځكه دواړه صورتونه سره جلا سول [يعني په دواړو مسئلو كې فرق ثابت سو].

**اللغات**: ﴿أَذِن﴾ د سمع د باب ماضي ده: اجازت وركول (اجازه وركول)، ﴿ثُلُث﴾ او ثُلْث: دريمه حصه، ﴿سُدُس﴾ او سُدْس: شپږمه حصه، ﴿نصيب﴾ حصه، حق. ﴿فوّض﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: ورسپارل، ﴿استؤجر﴾ او استوجر، د افعال د باب ماضي مجهوله ده: په أجرت نيول كېدل، (په

مزدوري [په کرايه] نيول کېدل)، استأجر: په اُجرت نيول. ﴿خياطة﴾ د ضرب د باب مصدر دی، خياطة الثوب: کپړه ګنډل، کالي (جامه) جوړول.

**تشريح**: په دې عبارت کې دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که ربُ المال مضارب ته د بل چا سره د مضاربت کولو اجازت ورکړي او هغه ته داسي ووايي چي "ته بل چا ته هم دا مال په مضاربت ورکولای سې!، زما له طرفه تا ته پوره اختيار دی، خو کومه نفع چي حاصله سي، هغه به زما او ستا په مينځ کي نصف، نصف وي"، بيا هغه مضارب دا مال د ثلث نفعي پر شرط بل چا (دويم مضارب) ته د مضاربت کولو لپاره ورکړي، او هغه دويم مضارب په دې مال سره مثلاً ۱۲۰۰ (دوولس سوه روپۍ) نفع حاصله کړي، نو له هغه څخه به نصف نفع يعني ۶۰۰ روپۍ ربُ المال ته ورکول کيږي او ثلث يعني ۴۰۰ به دويم مضارب ته حاصليږي او سدس يعني ۲۰۰ به اول مضارب ته ورکول کيږي، او د دواړو مضاربانو لپاره دا حاصل شُده نفع حلال او پاکه ده؛ ځکه که څه هم د اول مضارب له طرفه عمل (کار) نه دی موجود سوی لېکن د دويم مضارب عمل د اول مضارب د عمل قائم مقام دی، ځکه چي په حقيقت کي همدا اول مضارب د دواړو مضاربتونو مُباشِر (کونکی) دی. د دې مثال داسي دی لکه زيد چي يو خياط ته د خپلو کالو (جامو) د جوړولو لپاره يو درهم ورکړي او خياط د نيم درهم په عوض کي هغه کالي په بل چا جوړ کړي مثلاً په ادريس يې جوړ کړي، نو داسي معامله جائز ده او دا مزدوري يعني نصف، نصف درهم د دواړو لپاره حلال دي، همداسي په پورتني مسئله کي هم د دواړو مضاربانو لپاره نفع اخيستل حلال او جائز دي.

(۲)... دويمه مسئله بعينهٖ د اولي مسئلې په شان ده، فرق صرف دومره دی چي په دې کي ربُ المال د نفع په شرط کي "كَ" د خطاب ضمير استعمال کړی دی او مضارب يې په هغه سره مخاطب کړی دی "عَلٰى أَنَّ مَا رَزَقَكَ اللّٰهُ تَعَالٰى فَهُوَ بَيْنَنَا نِصْفَانِ"، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي دويم مضارب ته به ثلث يعني ۴۰۰ روپۍ ورکول کيږي او ما بقي ۸۰۰ روپۍ به د اول مضارب او ربُ المال په مينځ کي نصف، نصف تقسيمول کيږي يعني هر يوه ته به ۴۰۰ ورکول کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي ربُ المال د ځان لپاره له هغه نفعي څخه د نصف نفعي شرط لګولی دی کوم چي اول مضارب ته حاصله سي (يعني په دې صورت کي هغه اول مضارب ته ويلي دي چي "کومه نفع تا ته حاصله سي [تا ته يې الله روزي کړي]، له هغه څخه نيمه نفع زما ده")، لېکن په اول صورت کي هغه له ټولي نفعي څخه د نصف اخيستلو شرط لګولی دی، وهو الفرق بينهما.

## مضاربتِ ثانيه د نصف نفعي پر شرط کول (حکم او تفصيل)

وَلَوْكَانَ قَالَ لَهُ: فَمَا رَبِحْتَ مِنْ شَيْءٍ فَبَيْنِيْ وَبَيْنَكَ نِصْفَانِ او که چيري ربُ المال هغه [اول مضارب] ته ويلي وي: کومه نفع چي ته حاصله کړې! [څومره گټه چي وکړې!] نو هغه زما او ستا په مينځ کي نصف، نصف ده وَقَدْ دَفَعَ إِلَى غَيْرِهِ بِالنِّصْفِ او اول مضارب د نصف نفع پر شرط دا مال بل چا [دويم مضارب] ته ورکړي فَلِلثَّانِي النِّصْفُ نو د دويم مضارب لپاره نصف نفع ده وَالْبَاقِي بَيْنَ الْأَوَّلِ وَرَبِّ الْمَالِ او بقيه نفع د اول مضارب او ربُ المال په مينځ کي [مشترکه] ده لِأَنَّ الْأَوَّلَ شَرَطَ لِلثَّانِي نِصْفَ الرِّبْحِ ځکه چي اول مضارب د دويم مضارب لپاره د نصف نفعي شرط لګولی دی وَذَلِكَ مُفَوَّضٌ إِلَيْهِ مِنْ جِهَةِ رَبِّ الْمَالِ او دا [شرط لګول] هغه ته د ربُ المال له طرفه سپارل سوي دي [يعني د ربُ المال له طرفه هغه ته د دې اختيار هم ورکول سوی دی] فَيَسْتَحِقُّهُ نو ځکه دويم مضارب به د نصف نفعي مستحق کيږي وَقَدْ جَعَلَ رَبُّ الْمَالِ لِنَفْسِهِ نِصْفَ مَا رَبِحَ الْأَوَّلُ او ربُ المال د خپل ځان لپاره د هغه نفعي د نصف شرط لګولی دی کوم چي اول مضارب حاصله کړي وَلَمْ يَرْبَحْ إِلَّا النِّصْفَ او هغه صرف نصف نفع حاصله کړې ده فَيَكُونُ بَيْنَهُمَا نو ځکه هغه به د دوی په مينځ کي [نصفا] مشترکه وي وَلَوْكَانَ قَالَ لَهُ: عَلَى أَنَّ مَا رَزَقَ اللهُ تَعَالَى فَلِيْ نِصْفُهُ او که چيري ربُ المال اول مضارب ته داسي ويلي وي: کومه نفع چي الله تعالیٰ [موږ ته] را روزي کړي نو د هغه نصف زما دی أَوْ قَالَ: فَمَا كَانَ مِنْ فَضْلٍ فَبَيْنِيْ وَبَيْنَكَ نِصْفَانِ يا ربُ المال داسي ويلي وي: کومه اضافه چي وسي [يا کوم څه چي زيات سي] نو هغه زما او ستا په مينځ کي نصف، نصف ده وَقَدْ دَفَعَ إِلَى آخَرَ مُضَارَبَةً بِالنِّصْفِ او اول مضارب د نصف نفع پر شرط دا مال بل چا ته د مضاربت په توګه ورکړي فَلِرَبِّ الْمَالِ النِّصْفُ وَلِلْمُضَارِبِ الثَّانِي النِّصْفُ وَلَا شَيْءَ لِلْمُضَارِبِ الْأَوَّلِ نو د ربُ المال او دويم مضارب لپاره نصف نفع ده او د اول مضارب لپاره

هيڅ شی نسته لِأَنَّهُ جَعَلَ لِنَفْسِهِ نِصْفَ مُطْلَقِ الْفَضْلِ ځکه چي ربُ المال د خپل ځان لپاره د مطلق اضافي [د مطلق زائد مقدار] د نصف شرط لګولی دی فَيَنْصَرِفُ شَرْطُ الْأَوَّلِ النِّصْفَ لِلثَّانِي إِلَى جَمِيعِ نَصِيبِهِ نو ځکه د دويم مضارب لپاره د اول مضارب [د نصف نفعي] شرط به د هغه د ټولي حصي وطرف ته راجع کيږي فَيَكُونُ لِلثَّانِي بِالشَّرْطِ وَيَخْرُجُ الْأَوَّلُ بِغَيْرِ شَيْءٍ نو ځکه د شرط په وجه به د دويم مضارب لپاره نصف وي او مضارب به بغير له څه شي [خالي لاس] له منځه وځي كَمَنْ اُسْتُؤْجِرَ لِيَخِيطَ ثَوْبًا بِدِرْهَمٍ لکه يو خياط چي د دې لپاره په اُجرت ونيول سي چي ديوه درهم په عوض کي کپړه وګنډي [کالي جوړ کړي] فَاسْتَأْجَرَ غَيْرَهُ لِيَخِيطَهُ بِمِثْلِهِ بيا دا خياط بل څوک د دې لپاره په اُجرت ونيسي چي هغه ديوه درهم په عوض کي کپړه وګنډي [نو په دې صورت کي خياط ته هيڅ شی نه حاصليږي].

**اللغات**: ﴿رَبِحتَ﴾ د سمع له بابه د واحد مذکر مخاطب ماضي صيغه ده: ګټل (ګټه کول)، نفع حاصلول، ﴿مفوّض﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: ورسپارل سوی، ﴿يخيط﴾ د ضرب د باب مضارع ده: ګنډل، کپړه کنډل (کالي جوړول)، ﴿فضل﴾ اضافه، اضافي مقدار (زائد مقدار)، باقي مانده.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که ربُ المال و مضارب اول ته داسي ويلي وي "څومره نفع چي ته حاصله کړې!، هغه زما او ستا په مينځ کي نصف، نصف ده"، او بيا هغه د ربُ المال په اجازت سره مال مضاربت د نصف نفعي پر شرط دويم مضارب ته ور کړي، نو په دې صورت کي به د حاصل شُده نفعي نصف دويم مضارب ته ور کول کيږي او په پاته نصف کي به هغوی دواړه يعني اول مضارب او ربُ المال شريک کيږي؛ ځکه چي اول مضارب ته صرف همدا نصف په نفع کي حاصل سوی دی.

(۲)... که ربُ المال داسي ويلي دي" چي کومه نفع الله پاک را روزي کړي" يا هغه ويلي وي "پر رأسُ المال چي څومره اضافه وسي (يا تر مال مضاربت چي څومره مقدار زائد سي)"، "هغه زما او ستا په مينځ کي نصف نصف دی"، بيا اول مضارب هم د نصف نفعي پر شرط مال مضابت دويم مضارب ته ورکړي، نو په دې صورت کي به د ټولي نفعي نصف ربُ المال ته ورکول کيږي او کوم نصف چي پاته سي هغه به دويم مضارب اخلي او اول مضارب ته هيڅ شی نه حاصليږي اويوه روپي به هم نه

ورکول کیږي، د دې مثال دا دی لکه زید چې يو خياط ته د خپلو کالو (جامو) د جوړولو لپاره يو درهم ورکړي او خياط د يوه درهم په عوض کې هغه کالي په ادريس جوړ کړي، نو په دې صورت کې خياط ته هيڅ شی نه حاصليږي بلکې هغه درهم به ادريس ته ورکول کیږي، همداسي به په پورتنی مسئله کي هم اول مضارب ته هيڅ شی نه حاصليږي. (احسن الهدايه)

## مضاربت ثانيه د زياتي نفعي پر شرط کول

وَإِنْ شَرَطَ لِلْمُضَارِبِ الثَّانِي ثُلُثَيْ الرِّبْحِ او که اول مضارب د دويم مضارب لپاره د نفعي د دوو ثلثو [درېيمو حصو] شرط ولګوي [مثلا داسي ورته ووايي چي: په حاصل شُده نفع کي دوې حصې ستا دي] فَلِرَبِّ الْمَالِ النِّصْفُ وَلِلْمُضَارِبِ الثَّانِي النِّصْفُ نو نصف نفع د ربُ المال لپاره ده او نصف نفع د دويم مضارب لپاره ده وَيَضْمَنُ الْمُضَارِبُ الْأَوَّلُ لِلثَّانِي سُدُسَ الرِّبْحِ فِي مَالِهِ او اول مضارب د دويم مضارب لپاره له خپل مال څخه د نفعي د سدس [شپږمي حصې] ضامن کیږي لِأَنَّهُ شَرَطَ لِلثَّانِي شَيْئًا هُوَ مُسْتَحَقٌّ لِرَبِّ الْمَالِ ځکه چي هغه د دويم مضارب لپاره داسي شرط لګولی دی کوم چي د ربُ المال مستحق دی فَلَمْ يَنْفُذْ فِي حَقِّهِ لِمَا فِيهِ مِنَ الْإِبْطَالِ نو د ربُ المال په حق کي به دا شرط نه نافذيږي؛ ځکه چي په دې [د هغه د حق] باطلول سته لَكِنَّ التَّسْمِيَةَ فِي نَفْسِهَا صَحِيحَةٌ لیکن تسميه [تاکل (يعني شرط لګول)] بذات خود صحيح دي [يعني اول مضارب چي د دويم مضارب لپاره د نفعي دوه ثلثه ټاکلي او شرط کړي دي، دا ټاکل او شرط کول بذاتِ خود صحيح دي] لِكَوْنِ الْمُسَمَّى مَعْلُومًا فِي عَقْدٍ يَمْلِكُهُ ځکه چي ټاکل سوی مقدار [دوه ثلثه] په داسي عقد کي مُتعيّن [او ټاکل سوی] دي چي اول مضارب د هغه مالک دی وَقَدْ ضَمِنَ لَهُ السَّلَامَةَ او [ځرنګه چي] اول مضارب د دويم مضارب لپاره د سلامتيا ضمانت اخيستی دی [يعني هغه د دويم مضارب سره د پورتني شرط د پوره کولو عهد او ترون کړی دی] فَيَلْزَمُهُ الْوَفَاءُ بِهِ نو ځکه د هغه پوره کول به پر اول مضارب لازم وي وَلِأَنَّهُ غَرَّهُ فِي ضِمْنِ الْعَقْدِ او ځکه چي اول مضارب د عقد په ضمن کي دويم مضارب ته دوکه ورکړي ده وَهُوَ سَبَبُ الرُّجُوعِ او دوکه ورکول د رجوع کولو سبب وي

فَلِهَذَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ نو په همدې وجه به دويم مضارب پر اول مضارب [د نفعي د سدس لپاره] رجوع کوي [يعني سدس (شپږمه حصه نفع) به هغه له اول مضارب څخه اخلي] وَهُوَ نَظِيرُ مَنِ اسْتُؤْجِرَ لِخِيَاطَةِ ثَوْبٍ بِدِرْهَمٍ او د دې مثال دا دی چې يو خياط د يوه درهم په عوض کې د کپړې ګنډلو [کالي جوړولو] لپاره په اُجرت ونيول سي فَدَفَعَهُ إِلَى مَنْ يَخِيطُهُ بِدِرْهَمٍ وَنِصْفٍ بيا دا خياط بل چا ته کپړه ورکړي چې هغه يې په يو نيم درهم وګنډي.

**اللغات:** ﴿ثُلثي﴾ دوه ثلثه، دوې درېيمې حصې، يعني له درېو حصو څخه دوې حصې، ﴿سُدس﴾ شپږمه حصه، ﴿مُسمّٰى﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: نومول سوی، ټاکل سوی، مقرر.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ربُ المال له ټولي نفع څخه د خپل ځان لپاره د نصف نفعي شرط لګولی وي (چې نفع زما او ستا په مينځ کې نصف، نصف ده)، بيا اول مضارب د دوه ثلثه نفعي پر شرط دويم مضارب ته مال ورکړي، نو په دې صورت کې به له حاصل شُده نفعې څخه نصف (نيمه نفع) رب المال ته ورکول کيږي او د دويم مضارب حق دوه ثلثه دی کوم چې د نفعي له مقدار څخه زيات دی، نو ځکه هغه ته خو به يو د نفعي مابقي نصف ورکول کيږي او تر دې وروسته د هغه حق يو سدس (شپږمه حصه) پاتيږي، لهذا هغه به د اول مضارب پر ذمه قرض وي (تکملةً للثلثين)، او هغه سُدس به صرف د اول مضارب له مال څخه اداء کيږي او دويم مضارب ته به ورکول کيږي؛ ځکه چې همدې اول مضارب د هغه لپاره د دوه ثلثو شرط لګولی دی، نو ځکه د هغه پوره کول به هم صرف د اول مضارب پر ذمه لازم وي. لکه زيد چې يو خياط ته د خپلو کالو (جامو) د جوړولو لپاره يو درهم ورکړي او خياط د يو نيم درهم په عوض کې هغه کالي په ادريس جوړ کړي، نو په دې صورت کې به زيد (د کپړې مالک) ادريس ته يو درهم ورکوي او مابقي نيم درهم به خياط اداء کوي، ځکه چې د نيم درهم اضافه د همدې خياط له طرفه سوې ده، نو ځکه د هغه اداء کول به هم صرف پر خياط لازم وي.



# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ إِدْخَالِ الْغَيْرِ مَعَ الْمُضَارِبِ)

(دا) فصل (د مضارب سره د بل چا د شاملولو په بيان کې) دی

## د مضارب سره بل څوک شريک کول (حکم او تفصيل)

وَإِذَا شَرَطَ الْمُضَارِبُ لِرَبِّ الْمَالِ ثُلُثَ الرِّبْحِ او که چيرې مضارب د ربُ المال لپاره د نفعې د ثلث[دريمې حصې] شرط ولګوي وَلِعَبْدِ رَبِّ الْمَالِ ثُلُثَ الرِّبْحِ عَلٰى أَنْ يَعْمَلَ مَعَهُ او د ربُ المال د غلام لپاره د نفعې د ثلث شرط ولګوي پر دې شرط چې غلام به د ده سره کار کوي وَلِنَفْسِهِ ثُلُثَ الرِّبْحِ او د خپل ځان لپاره [هم] د نفعې د ثلث شرط ولګوي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي لِأَنَّ لِلْعَبْدِ يَدًا مُعْتَبَرَةً خُصُوصًا إِذَا كَانَ مَأْذُونًا لَهُ ځکه چې د غلام قبضه معتبره ده، خصوصاً په هغه صورت کې کله چې غلام ته [د کاروبار] اجازت ورکول سوې وي وَاشْتِرَاطُ الْعَمَلِ إِذْنٌ لَهُ او [د هغه] د کار کولو شرط لګول د هغه لپاره اجازت دی وَلِهٰذَا لَا يَكُونُ لِلْمَوْلٰى وِلَايَةُ أَخْذِ مَا أَوْدَعَهُ الْعَبْدُ او له همدې کبله مالک ته د هغه شي د اخيستلو ولايت [اختيار] نسته کوم چې غلام امانتاً اېښى وي وَإِنْ كَانَ مَحْجُورًا عَلَيْهِ که څه هم هغه محجور غلام وي وَلِهٰذَا يَجُوزُ بَيْعُ الْمَوْلٰى مِنْ عَبْدِهِ الْمَأْذُونِ لَهُ او له همدې کبله د مالک لپاره پر خپل مأذون لهُ غلام [يو شی] خرڅول جائز دي وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ لَمْ يَكُنْ مَانِعًا مِنَ التَّسْلِيمِ وَالتَّخْلِيَةِ بَيْنَ الْمَالِ وَالْمُضَارِبِ او کله چې خبره داسې ده نو مذکوره شرط [يعنې د کارکولو شرط] به مانع وي د مال له ورسپارلو او مضارب ته له مال ور پرېښوولو څخه بِخِلَافِ اشْتِرَاطِ الْعَمَلِ عَلٰى رَبِّ الْمَالِ په خلاف پر ربُ المال د کار کولو شرط لګول لِأَنَّهُ مَانِعٌ مِنَ التَّسْلِيمِ ځکه چې دا شرط له ورسپارلو څخه مانع دی عَلٰى مَا مَرَّ لکه مخکې چې تېر سوه وَإِذَا صَحَّتِ الْمُضَارَبَةُ

يَكُونُ الثُّلُثُ لِلْمُضَارِبِ بِالشَّرْطِ وَالثُّلُثَانِ لِلْمَوْلَى او کله چي مضاربت صحيح سو نو ثلث نفع به د مضارب وي او دوه ثلثه به د مالک وي لِأَنَّ كَسْبَ الْعَبْدِ لِلْمَوْلَى إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ ځکه چي د غلام ګټه د مالک وي، کله چي پر غلام قرض نه وي وَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ فَهُوَ لِلْغُرَمَاءِ او که چيري پر هغه قرض وي نو د هغه ګټه د قرضخواهانو وي هٰذَا إِذَا كَانَ الْعَاقِدُ هُوَ الْمَوْلَى دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي عقد کونکی [د غلام] مالک وي وَلَوْ عَقَدَ الْعَبْدُ الْمَأْذُونُ عَقْدَ الْمُضَارَبَةِ مَعَ أَجْنَبِيٍّ وَشَرَطَ الْعَمَلَ عَلَى الْمَوْلَى او که چيري مأذون لهٗ غلام د يو اجنبي کس سره عقد مضاربت وکړي او د مالک د کار کولو شرط ولګوي لَا يَصِحُّ إِنْ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ نو دا نه صحيح کيږي، که چيري پر هغه قرض نه وي لِأَنَّ هٰذَا اشْتِرَاطُ الْعَمَلِ عَلَى الْمَالِكِ ځکه چي دا پر مالک د کار کولو شرط لګول دي وَإِنْ كَانَ عَلَى الْعَبْدِ دَيْنٌ او که چيري پر مأذون لهٗ غلام قرض وي صَحَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا شرط صحيح دی لِأَنَّ الْمَوْلَى بِمَنْزِلَةِ الْأَجْنَبِيِّ عِنْدَهُ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [د مقروض غلام] مالک د اجنبي کس په څېر دی عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي معلومه سوې ده.

**اللغات**: ﴿يد﴾ قبضه، ﴿محجور عليه﴾ هغه غلام چي د تجارت پابندي پر لګول سوې وي (يعني له کاروبار څخه منع سوی وي)، ﴿تسليم﴾: د تفعيل د باب مصدر دی: ورسپارل، ﴿تخلية﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چي د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي: آزادول، دوه شيان يا دوه کسان په خپل مينځ کي سره پرېښوول او داسي نور، کله چي د مبيع او داسي نورو سره ذکر سي، نو د "ورسپارلو" معنیٰ ورکوي، يعني له مبيع څخه خپل قبضه ختمول او د مشتري په قبضه کي ورکول (د مشتري لپاره په هغه کي تصرف مباح کول)، مشتري د مبيع قابض ګرځول. ﴿غرماء﴾ جمع د غَرِيْمٌ ده، دا لفظ له اضدادو څخه دی، يعني مقروض ته هم وايي او قرضخواه (قرض غوښتونکي) ته هم وايي، يعني هغه کس چي مقروض ته يې قرض ورکړی وي، د قرض مالک. ﴿أجنبي﴾ پردی کس، له عقد څخه وتلی کس (کوم چي د عاقدينو سره هيڅ تعلق نه لري، يعني کوم چي د عقد له اطرافو څخه نه وي).

**تشريح**: صورت د مسئلې واضح او آسانه دی، غورچاڼ يې دا دی چې څرنګه د مضارب لپاره د مضاربت په توګه دويم مضارب ته مال ورکول او له هغه شخصه دويم مضارب ته نفع ورکول صحيح دي، همداسې د مضارب يا د ربُ المال غلام د کار کولو پر شرط په مضاربت او نفع کې شريکول هم صحيح او جائز دي؛ ځکه چې غلام هم پر مال قبضه کوي او د هغه قبضه معتبره هم ده. خصوصاً کله چې هغه مأذون لهٔ وي، او دا ښکاره خبره ده چې کله د مالک (مولیٰ) مخته د غلام د کار شرط ولګول سي او هغه په مضاربت کې شريک کړی سي، نو دا د غلام په حق کې د مالک له طرفه اذن (اجازت) دی. او څرنګه چې د مالک لپاره د خپل مأذون لهٔ غلام سره بيع و شراء کول صحيح دي، همداسې د مأذون لهٔ غلام لپاره د مالک په مال کې مضاربت کول هم صحيح دي. او د شرط يعني د غلام د کار کولو د شرط په وجه پر رأسُ المال د مضارب د قابض کېدلو په حواله سره هيڅ مانع هم نسته (يعني دا شرط له دې شخه مانع نه دی چې رأسُ المال [اصل مالِ مضاربت] د مضارب په قبضه کې پاته سي، بلکې د دې شرط باوجود مال د هغه په قبضه کې پاتيږي او هغه قابض ګرځي)، نو په دې وجه هم دا شرط صحيح دی. لهذا مضاربت به صحيح کيږي او کومه نفع چې حاصله سي، له هغه شخه به يو ثلث مضارب ته ورکول کيږي او دوه ثلثه به مالک يعني ربُ المال ته ورکول کيږي؛ ځکه مأذون لهٔ غلام که مقروض نه وي، نو د هغه ګټه صرف د مالک (مولیٰ) وي، لېکن د مقروض کېدلو په صورت کې د هغه ګټه قرضخواهان اخلي؛ لأنه يَكسب لهم لتخليص الرقبة عن ديونهم.

**هذا إلخ**: د دې حاصل دا دی چې پورتنی حکم په هغه صورت کې دی کله چې مالک (مولیٰ) عاقد وي، او که چيري د مالک پر ځای په خپله مأذون لهٔ غلام عقد مضاربت وکړي او په مضاربت کې د خپل مالک د کار کولو شرط ولګوي، نو په دې صورت کې حکم دا دی چې که هغه مقروض نه وي، نو دا شرط نه صحيح کيږي؛ ځکه چې دا پر مالک د عمل شرط لګول دي، او پر مالک د عمل شرط لګول عقد فاسدوي، او که چيري هغه مأذون لهٔ غلام مقروض وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا شرط صحيح کيږي؛ ځکه چې د هغه په نېز د مقروض غلام مالک د اجنبي په حکم کې دی، او پر اجنبي کس شرط لګول صحيح دي. والله أعلم وعلمهٔ أتم



# فَصْلٌ فِي الْعَزْلِ وَالْقِسْمَةِ

(دا) فصل د مضارب معزوله کولو او د نفعې تقسيمولو (په بيان کې) دی

**تشريح**: څرنګه چې عزل له تحقق او ثبوت څخه وروسته په وجود کي راځي، همداسي د نفعي تقسيم هم د نفعي له تحصيل څخه وروسته کيږي، نو ځکه د عزل او تقسيم بيان د مضاربت او د تحصيل نفع له بيان څخه وروسته کړی سوی دی. (بنايه)

## د ربُ المال يا مضارب د مړه کېدلو حکم

قَالَ: وَإِذَا مَاتَ رَبُّ الْمَالِ أَوِ الْمُضَارِبُ فرمايي: او که چي ربُ المال يا مضارب مړ سي بَطَلَتِ الْمُضَارَبَةُ نو مضاربت باطليږي لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ ځکه چي مضاربت توکيل دی عَلٰى مَا تَقَدَّمَ لکه مخکي چي تېر سوه وَمَوْتُ الْمُوَكِّلِ يُبْطِلُ الْوَكَالَةَ او د مؤکل [وکيل جوړونکي] مرګ وکالت باطلوي وَكَذَا مَوْتُ الْوَكِيلِ همدارنګه د وکيل مرګ هم [وکالت باطلوي] وَلَا تُوَرَّثُ الْوَكَالَةُ او وکالت نه ميراث کيږي [يعني په وکالت کي ميراث (وراثت) نه جاري کيږي يعني داسي نه کيږي چي که وکيل مړ سي نو د هغه وارث وکيل ګرځي، بلکي د وکيل په مرګ سره سمدستي وکالت باطليږي] وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او دا مخکي تېر سوي دي وَإِنِ ارْتَدَّ رَبُّ الْمَالِ عَنِ الْإِسْلَامِ وَالْعِيَاذُ بِاللّٰهِ وَلَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ او که چيري ربُ المال (نعوذ بالله) له اسلام څخه وګرځي [مرتد سي] او دارُ الحرب ته ولاړ سي بَطَلَتِ الْمُضَارَبَةُ نو [هم] مضاربت باطليږي لِأَنَّ اللُّحُوقَ بِمَنْزِلَةِ الْمَوْتِ ځکه چي دارُ الحرب ته تلل د مړه کېدلو په درجه کي دي أَلَا تَرٰى أَنَّهُ يُقْسَمُ مَالُهُ بَيْنَ وَرَثَتِهِ آيا ته نه ګوري! چي [تر لحوق] وروسته د هغه مال د هغه د وارثانو په مينځ کي تقسيمول کيږي وَقَبْلَ لُحُوقِهِ يَتَوَقَّفُ تَصَرُّفُ مُضَارِبِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او دارُ الحرب ته د هغه تر تللو مخکي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه د مضارب تصرف موقوف کيږي لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ لَهُ ځکه چي مضارب د هغه لپاره تصرف کوي فَصَارَ كَتَصَرُّفِهِ بِنَفْسِهِ نو دا

داسي سوه لکه په خپله د مرتد تصرف [چي هغه موقوف کيږي] وَلَوْكَانَ الْمُضَارِبُ هُوَ الْمُرْتَدُّ او که مضارب [په خپله] مرتد وي فَالْمُضَارَبَةُ عَلٰى حَالِهَا نو مضاربت پر خپل حال باقي پاتيږي لِأَنَّ لَهُ عِبَارَةً صَحِيحَةً ځکه چي د مضارب عبارت [او خبره] يو صحيح عبارت دی وَلَا تَوَقُّفَ فِي مِلْكِ رَبِّ الْمَالِ او د ربُ المال په ملکيت کي هيڅ توقف نسته فَبَقِيَتِ الْمُضَارَبَةُ نو ځکه مضاربت به باقي پاتيږي.

**اللغات**: ﴿توکيل﴾ يو څوک د خپل کار وکيل جوړول، وکيل کول. ﴿لَحِق﴾ د سمع د باب ماضي ده: لَحِقَ يَلْحَقُ لُحُوْقًا وَلحَاقًا: لاحق کېدل، متصل کېدل، يو شی د بل شي سره يو ځای کېدل (يو څوک د بل چا سره يو ځای کېدل)، ﴿يتوقّف﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: موقوف کېدل (موقوف پاتېدل).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي مضاربت توکيل دی او څرنګه چي د وکيل يا مؤکل په مرګ سره وکالت باطليږي، همداسي د مضارب يا ربُ المال په مرګ سره مضاربت هم باطليږي. او څرنګه چي په وکالت کي ميراث نه جاري کيږي، لکه مخکي چي ذکر سوه، نو ځکه په مضاربت کي به هم ميراث نه جاري کيږي. همدارنګه د ربُ المال د مرتد کېدلو او دارُ الحرب ته د تللو په وجه هم مضاربت باطليږي؛ ځکه دارُ الحرب ته تلل د مرګ په درجه کي دي او په مرګ سره مضاربت باطليږي، نو ځکه دارُ الحرب ته د تللو په وجه به هم مضاربت باطليږي.

لېکن که ربُ المال صرف مرتد سي او دارُ الحرب ته ولاړ نه سي، يا ولاړ سي لېکن امام او قاضي تر اُوسه د هغه د تللو فيصله نه وي کړي، نو د هغه د مضارب تصرف د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز موقوف پاتيږي؛ ځکه چي مضارب صرف د ربُ المال لپاره تصرف کوي، نو دا په خپله د ربُ المال د تصرف کولو په څېر سو. او ښکاره خبره ده چي که ربُ المال په خپله عاقد او تصرف کونکی وي، نو په پورتني حالت کي د هغه تصرف موقوف پاتيږي، نو ځکه د هغه د مضارب تصرف به هم موقوف پاتيږي. د دې په خلاف که خودي مضارب مرتد سي، نو مضاربت باقي پاتيږي او هغه چي کوم رانيول او خرڅول کړي وي، هغه ټوله صحيح کيږي او حاصل شُده نفع (ګټه) به د دوی په مينځ کي مشترکه ګرځي على حسب ما شرط؛ ځکه چي د مرتد کېدلو باوجود د هغه ادميت (انسان والي) باقي پاتېږي او د هغه کلام او خبري صحيح کيږي. او څرنګه چي د ربُ المال په ملکيت کي هم هيڅ توقف او خرابي يا کمي نسته، نو ځکه د مضاربت په پاتېدلو او صحيح کېدلو کي به هيڅ شک نه وي.

## مضارب له مضاربته معزوله کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: فَإِنْ عَزَلَ رَبُّ الْمَالِ الْمُضَارِبَ فرمايي: که چيري ربُ المال مضارب معزوله کړي وَلَمْ يَعْلَمْ بِعَزْلِهِ او مضارب په خپل معزول والي خبر نه سي حَتَّى اشْتَرَى وَبَاعَ تر دې چي رانيول او خرڅول [شراء او بيع] وکړي فَتَصَرُّفُهُ جَائِزٌ نو د هغه تصرف جائز دی لِأَنَّهُ وَكِيلٌ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي هغه د ربُ المال له طرفه وکيل دی وَعَزْلُ الْوَكِيلِ قَصْدًا يَتَوَقَّفُ عَلَى عِلْمِهِ او د وکيل قصداً [بالقصد] معزوله کول د هغه پر علم موقوف کيږي وَإِنْ عَلِمَ بِعَزْلِهِ وَالْمَالُ عُرُوضٌ او که چيري مضارب ته د خپل معزو والي خبر وي او مالِ مضاربت سامان وي فَلَهُ أَنْ يَبِيعَهَا نو مضارب ته د هغه د خرڅولو اختيار سته وَلَا يَمْنَعُهُ الْعَزْلُ مِنْ ذَلِكَ او معزول والی مضارب له دې څخه نه منع کوي لِأَنَّ حَقَّهُ قَدْ ثَبَتَ فِي الرِّبْحِ وَإِنَّمَا يَظْهَرُ بِالْقِسْمَةِ ځکه چي په نفع کي د مضارب حق ثابت سوی دی کوم چي [صرف] په تقسيمولو سره ښکاره کيږي وَهِيَ تُبْتَنَى عَلَى رَأْسِ الْمَالِ او تقسيم د رأسُ المال پر جلا کولو مبني دی وَإِنَّمَا يَنِضُّ بِالْبَيْعِ او رأسُ المال [کوم چي دلته سامان دی] په خرڅولو سره نقد ګرځي [په بله وينا: او رأسُ المال په بيع سره حاصليږي] قَالَ: ثُمَّ لَا يَجُوزُ أَنْ يَشْتَرِيَ بِثَمَنِهَا شَيْئًا آخَرَ فرمايي: بيا [له سامان خرڅولو څخه وروسته] مضارب ته دا جائز نه دي چي د هغه په ثمن سره بل شی رانيسي لِأَنَّ الْعَزْلَ إِنَّمَا لَمْ يَعْمَلْ ضَرُورَةَ مَعْرِفَةِ رَأْسِ الْمَالِ ځکه چي معزول والي د رأسُ المال د معرفت [د رأسُ المال حاصلولو] د ضرورت په وجه خپل اثر نه دی کړی وَقَدِ انْدَفَعَتْ حَيْثُ صَارَ نَقْدًا او د رأسُ المال د نقد ګرځېدلو په وجه دا ضرورت دفع سو فَيَعْمَلُ الْعَزْلُ نو ځکه معزول والي به [اوس] خپل اثر کوي فَإِنْ عَزَلَهُ وَرَأْسُ الْمَالِ دَرَاهِمُ أَوْ دَنَانِيرُ او که چيري ربُ المال مضارب معزوله کړي او رأسُ المال دراهم يا دنانير وي وَقَدْ نَضَّتْ او هغوی نقد ګرځېدلي وي [يعني سامان خرڅ سوی وي چي د هغه په عوض کي مضارب ته نغد دراهم يا دنانير په لاس ورغلي وي] لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَصَرَّفَ فِيهَا نو د مضارب لپاره په هغوی کي تصرف کول جائز نه دي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي إِعْمَالِ عَزْلِهِ إِبْطَالُ حَقِّهِ فِي الرِّبْحِ ځکه چي [اوس] د هغه د معزول والي په مؤثر کولو کي په نفع کي د هغه د حق باطلول نسته [يعني ځکه چي اوس د هغه

معزول والي ته په عمل ورکولو کې د مضارب د حق باطلول نسته (یا په بله وینا داسې هم ویل کېدای سي: د ربُ المال د معزولو کولو کار دا نه دی چې هغه د مضارب د نفعې حصه ختمه کړي) فَلَا ضَرُورَةَ نو ځکه د هغه هیڅ ضرورت نسته قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: وَهٰذَا الَّذِي ذَكَرَهُ إِذَا كَانَ مِنْ جِنْسِ رَأْسِ الْمَالِ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: چې د امام قدوري رَحِمَهُ الله دغه ذکر سوی حکم په هغه صورت کې دی کله چې موجوده نقد مال د رأسُ المال له جنس څخه وي فَإِنْ لَمْ يَكُنْ و که چیرې د هغه له جنس څخه نه وي بِأَنْ كَانَ دَرَاهِمَ وَرَأْسُ الْمَالِ دَنَانِيرَ په دې توګه چې موجوده نقد مال دراهم وي او رأسُ المال دنانیر وي أَوْ عَلَى الْقَلْبِ یا د دې برعکس وي لَهُ أَنْ يَبِيعَهَا بِجِنْسِ رَأْسِ الْمَالِ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً مضارب ته دا اختیار سته چې هغه موجوده مال د رأسُ المال د جنس په عوض کې خرڅ کړي لِأَنَّ الرِّبْحَ لَا يَظْهَرُ إِلَّا بِهِ ځکه چې له دې څخه بغیر نفع نه ښکاره کیږي وَصَارَ كَالْعُرُوضِ او دا د سامان په څېر سوه وَعَلَى هٰذَا مَوْتُ رَبِّ الْمَالِ فِي بَيْعِ الْعُرُوضِ وَنَحْوِهَا او پر همدغه حکم دي د سامان او داسې نورو په بیع کې د ربُ المال مړه کېدل.

**اللغات**: ﴿عزل﴾ د ضرب مصدر دی: معزوله کول، له منصبه لیرې کول (ګوښه کول)، له کار څخه برطرفه کول، ﴿يَنِضُّ﴾ د ضرب د باب مضارع ده، نَضَّ يَنِضُّ نَضِيضًا، د دې باب څو معناوې دي چې د صلې په بدلون سره یې معنیٰ هم بدلیږي، کله چې د دې باب په صله کې ثمن او داسې نورو راسي نو معنیٰ یې ده: حاصلېدل، ترلاسه کېدل، او کله چې یې په صله کې سامان او داسې نور راسي نو معنیٰ یې ده، نقد کېدل، سامان په نغدو سره بدلېدل (سامان خرڅېدل او د هغه په عوض کې نغدي پیسې ترلاسه کېدل)، او کله چې په یې صله کې اوبه او داسې نور راسي، نو معنیٰ یې ده: په کراره، کراه بهېدل، په څاڅکي، څاڅکي راوتل، دلته مخکنۍ معنیٰ مراد ده، ﴿عروض﴾ جمع د عَرْضٌ ده: سامان، ﴿ربح﴾ نفع، ګټه.

**تشریح**: **مسـئله**: دا ده که چیرې ربُ المال د مضاربت له معاملې څخه مضارب معزوله او برطرفه کړي، نو تر څو چې مضارب په دې معزول والي خبر نه سي، تر هغه وخت عزل نه ثابتیږي او په دې دوران کې چې مضارب کوم څه رانیول او خرڅول وکړي، هغه ټوله صحیح کیږي؛ ځکه چې مضارب د ربُ المال وکیل وي، او وکیل که چیرې قصداً معزوله کړی سي، نو په خپل عزل د هغه خبرېدل ضروري دي، حال دا چې دلته مضارب په عزل خبر نه دی، نو ځکه به دا عزل نه صحیح

کيږي. او که چيرې مضارب په خپل عزل خبر سي، لېکن د هغه سره چې کوم مالِ مضاربت وي هغه سامان وي (او تر اوسه خرڅ سوی نه وي)، نو هم د مضارب لپاره د هغه سامان خرڅول صحیح دي؛ ځکه چې د مضارب کېدلو په وجه په نفع کي د هغه حق ثابت سوی دی، او د هغه د ظهور او تقسیم دار ومدار د رأسُ المال (سامان) پر نقد کېدلو دی (يعني په نفع کي د دې مضارب حق هغه وخت ښکاره کيږي کله چي نفع تقسيم کړی سي او د نفعي ښکاره کېدل او تقسيمول هغه وخت ممکن دي کله چي سامان په نغدو پيسو سره بدل کړی سي)، او د سامان د نقد کېدلو لاره صرف بيع (خرڅول) دي؛ نو ځکه په عزل د خبرېدلو باوجود به د مضارب لپاره مذکوره سامان خرڅول صحيح وي.

وإن عزله إلخ: د دې حاصل دا دی چي که ربُ المال مضارب معزوله کړي او د مضارب سره چي کوم د مضاربت مال او سامان موجود وي، هغه خرڅ کړل سوي وي او د نغد دراهمو يا دنانيرو په شکل موجود وي او حاصل شُده نفع هم نغده وي، سامان نه وي، نو په دې صورت کي په عزل له خبرېدلو څخه وروسته د مضارب لپاره تصرف کول جائز نه دي، لېکن که موجوده مال او حاصل شُده نفع د رأسُ المال (اصل مالِ مضاربت) له جنس څخه نه وي، په دې توګه چي د موجوده نفعي مال دراهم وي او رأسُ المال دنانير وي، يا موجوده مال دنانير وي او رأسُ المال دراهم وي، نو په دې صورت کي استحساناً حکم دا دی چي په عزل له خبرېدلو څخه وروسته هم د مضارب لپاره دا اجازت سته چي د رأسُ المال سره د همجنسه کولو لپاره هغه مال خرڅ کړي (يعني د دې لپاره يې خرڅ کړي چي د هغه په عوض کي د رأسُ المال د جنس په څېر شی حاصل کړي)؛ ځکه چي د رأسُ المال او د نفعي د همجنسه کېدلو په صورت کي به د نفعي تقسيمول او اخيستل آسانه وي، لهذا په يوه اعتبار سره دلته هم بيع (خرڅولو) ته ضرورت سته، نو ځکه استحساناً د هغه اجازت سته، لکه څرنګه چي په هغه وخت کي مضارب ته د موجوده مال د خرڅولو اجازت سته کله چي هغه سامان وي، همداسي به دلته هم هغه ته د دې اجازت وي.

وعلى هذا موت رب المال إلخ: د دې حاصل دا دی چي که ربُ المال مړ سي او د مضارب سره موجوده مال سامان وي، نو په دې صورت کي هم د ربُ المال په مرګ سره مضاربت نه باطليږي، بلکي د مذکوره سامان د خرڅولو، نقد کولو او د رأسُ المال سره د همجنسه کولو تر وخته پوري مضاربت باقي پاتيږي؛ ځکه چي له دې څخه بغير د نفعي تقسيمول ممکن نه دي. (احسن الهدايه)

## له مضاربت ختمېدلو څخه وروسته به قرضونه څوک اداء کوي؟

| قَالَ: وَإِذَا افْتَرَقَا وَفِي الْمَالِ دُيُونٌ فرمايي: او کله چي مضارب او ربُ المال [مضاربت ختم کړي او] يو له بله جلا سي او په مال مضاربت کي قرضونه وي وَقَدْ رَبِحَ الْمُضَارِبُ فِيهِ او مضارب په هغه مال سره |
|---|

نفع اخته! کړې وي أَجْبَرَهُ الْحَاكِمُ عَلَى اقْتِضَاءِ الدُّيُونِ نو قاضي به مضارب د قرضونو پر اخيستلو مجبوره کوي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْأَجِيرِ ځکه چې مضارب د مزدور په درجه کې دی وَالرِّبْحُ كَالْأَجْرِ لَهُ او نفع د هغه لپاره د أُجرت [مزدورۍ] په شان ده وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ رِبْحٌ او که چیرې د مضارب لپاره نفع نه وي [یعني په مالِ مضاربت سره يې نفع نه وي کړې] لَمْ يَلْزَمْهُ الِاقْتِضَاءُ نو پر هغه د قرضونو اخيستل نه لازميږي لِأَنَّهُ وَكِيلٌ مَحْضٌ ځکه چې هغه خو صرف وکيل دی وَالْمُتَبَرِّعُ لَا يُجْبَرُ عَلَى إِيفَاءِ مَا تَبَرَّعَ بِهِ او احسان کونکی [احساناً کار کونکی] د هغه څه پر پوره کولو نه مجبورول کيږي کوم چې هغه احساناً کړي وي وَيُقَالُ لَهُ: وَكِّلْ رَبَّ الْمَالِ فِي الِاقْتِضَاءِ او مضارب ته به ويل کيږي: چې د قرضونو د اخيستلو لپاره ربُ المال وکيل جوړ کړه! لِأَنَّ حُقُوقَ الْعَقْدِ تَرْجِعُ إِلَى الْعَاقِدِ ځکه چې د عقد حقوق د عاقد وطرف ته راجع کيږي فَلَا بُدَّ مِنْ تَوْكِيلِهِ وَتَوَكُّلِهِ لهذا د هغه وکيل جوړول او [په خپله] د هغه وکيل جوړېدل ضروري دي كَيْ لَا يَضِيعَ حَقُّهُ د دې لپاره چې د ربُ المال حق ضايع نه سي وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: يُقَالُ لَهُ أَحِلْ مَكَانَ قَوْلِهِ وَكِّلْ او په جامع صغير کې امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چې مضارب ته به د "وَكِّلْ" [وکيل جوړولو] پر ځای د "أَحِلْ" [حواله کولو] ويل کيږي وَالْمُرَادُ مِنْهُ الْوَكَالَةُ او له حواله کولو څخه [هم] وکالت مراد دی وَعَلَى هٰذَا سَائِرُ الْوَكَالَاتِ او ټوله وکالتونه پر همدغه حکم دي وَالْبَيَّاعُ وَالسِّمْسَارُ يُجْبَرَانِ عَلَى التَّقَاضِي او دلال او دريمګری [منځګری] به د قرض پر اخيستلو مجبورول کيږي لِأَنَّهُمَا يَعْمَلَانِ بِأُجْرَةٍ عَادَةً ځکه چې دوی دواړه عموماً په أُجرت کار کوي.

**اللغات**: ﴿افترقا﴾ د افتعال له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو له بله جلا کېدل. ﴿ديون﴾ جمع د دَيْنٌ ده: قرضونه، پوروونه. ﴿حاکم﴾ د نصر د باب اسم فاعل دی: قاضي، د ښار او ملک ستر رئيس (مشر). ﴿اقتضاء﴾ د افتعال د باب مصدر دی: کله چې د دې باب په صله کې مال، قرض يا بل حق ذکر سي نو معنیٰ يې ده: اخيستل، ترلاسه کول، حاصلول. ﴿متبرع﴾ د تفعّل د باب اسم فاعل دی: احسان کونکی (احساناً بلا أجرته کار کونکی). ﴿إيفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: پوره کول، پوره اداء کول. ﴿بيّاع﴾ د ضرب له بابه د صفت مشبه صيغه ده: هغه کس چې په أُجرت د بل چا مال

خرڅوي، دلال، هغه کس چې د مال خرڅولو لپاره په اُجرت ونيول سي، ﴿سِمْسَار﴾ د فَعْلَلَةٌ (سَمْسَر) له بابه اسم فاعل دی: د مشتري اوَ بائع تر مينځ جوړه کونکی کس، (دريمګړی کوم چې په اُجرت بائع او مشتري پر قيمت سره جوړوي او د بائع يا مشتري لپاره کار کوي) (معجم لغة الفقهاء)، هغه کس کوم چې په اُجرت له نېول کېدلو څخه بغير ديو چا لپاره شی په اُجرت خرڅوي يا يې رانيسي، داسي معلوميږي چې د معنیٰ په اعتبار سره د "بياع" او "سمسار" په مينځ کي ډېر فرق نسته، او په رد المحتار کي ذکر سوي دي: د "سمسار" او "دلال" په مينځ کي هيڅ فرق نسته (يعني په عربي ژبه کي د دواړو معنیٰ يوه ده)، او فقهاؤ يې فرق کړی دی، کوم چې په تفصيل سره په حاشيه کي ذکر سوی دی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که چيري مضارب او ربُ المال د عقد مضاربت له فسخ کولو (ماتولو) څخه وروسته يو له بل څخه جلا سي، حال دا چې مال مضاربت پر خلکو قرض وي او مضارب په تجارت کي نفع حاصله کړې وي، نو قاضي به له هغه خلکو څخه د قرضونو پر اخيستلو مضارب مجبوره کوي؛ ځکه چې د مضارب حيثيت د مزدور په شېر دی او هغه ته حاصل شُده نفع د اُجرت مشابه ده، لهذا کله چې هغه نفع حاصله کړي (نو ګواکي هغه ته اُجرت ورکول سو)، نو ځکه اوس دا ضروري ده چې هغه د ربُ المال مال او حق په هر اعتبار سره فارغ او خالص کړي او هغه ته يې وسپاري. لېکن که چيري هغه نفع نه وي حاصله کړي، نو په دې صورت کي هغه محض وکيل او متبرّع (احساناً مضاربت کونکی) دی (ځکه چې هغه ته د خپل کار کولو اُجرت نه دی حاصل سوی)، او پر متبرّع کس جبر او زور کول صحيح نه دي، خو هغه ته به صرف دا ويل کيږي چې "له ربُ المال څخه دا غوښتنه وکړه! او هغه وکيل جوړ کړه! (يا ربُ المال دي بل څوک وکيل جوړ کړي) چې مذکوره قرضونه له مقروضه خلکو څخه واخلي" او مضارب دي (ربُ المال ته) د مقروضه خلکو نومونه او د قرضونو تفصيلات واضح وکړي، د دې لپاره چې د مالک حق ضايع نه سي.

قال في الجامع إلخ: فرمايي چې په جامع صغير کي امام محمد رَحِمَهُ الله د "وَكِّلْ" پر ځای د "أَحِلْ" لفظ استعمال کړی دی، حالانکي د "وَكِّلْ" او "أَحِلْ" دواړو مراد يو دی. او د تمام وکالتونو همدغه حکم دی چې که وکيل ته اُجرت حاصل سوی (ورکول سوی) وي، نو د قرضونو پر اخيستلو به هغه مجبورول کيږي، او که هغه ته اُجرت نه وي حاصل سوی، نو هغه به نه مجبورول کيږي. په همدې وجه د "دلال" او "اُجرتي دريمګړي" په باره کي حکم دا دی چې هغوی به د قرضونو پر اخيستلو مجبورول کيږي؛ ځکه چې دوی عموماً د خپل کار اُجرت او حق الزحمه غواړي او له اُجرت اخيستلو څخه بغير کار نه کوي. (احسن الهدايه)

## په مالِ مضاربت کي به هلاک سوی مقدار له نفعي څخه ايستل کيـږي

قَالَ: وَمَا هَلَكَ مِنْ مَالِ الْمُضَارَبَةِ فرمايي: او څه چي له مالِ مضاربت څخه هلاک سي فَهُوَ مِنَ الرِّبْحِ دُونَ رَأْسِ الْمَالِ نو هغه له نفعي څخه دي، نه له رأسُ المال څخه [يعني هغه به له نفعي څخه شمارل کيږي او ايستل کيږي، نه له رأسُ المال څخه] لِأَنَّ الرِّبْحَ تَابِعٌ ځکه چي نفع تابع ده وَصَرْفُ الْهَلَاكِ إِلَى مَا هُوَ التَّبَعُ أَوْلَى او هلاک سوی شی د تابع وطرف ته گرځول زيات غوره دي كَمَا يُصْرَفُ الْهَلَاكُ إِلَى الْعَفْوِ فِي الزَّكَاةِ لکه څرنگه چي د زکاة په نصاب کي هلاک سوی مقدار د عفو وطرف ته گرځول کيږي فَإِنْ زَادَ الْهَالِكُ عَلَى الرِّبْحِ او که چيري هلاک سوی مقدار له نفعي څخه زيات سي فَلَا ضَمَانَ عَلَى الْمُضَارِبِ نو پر مضارب [د هغه] ضمان نسته لِأَنَّهُ أَمِينٌ ځکه چي هغه امين دی [يعني د امانت ساتونکي په درجه کي دی] وَإِنْ كَانَا يَقْتَسِمَانِ الرِّبْحَ وَالْمُضَارَبَةُ بِحَالِهَا ثُمَّ هَلَكَ الْمَالُ بَعْضُهُ أَوْ كُلُّهُ او که چيري ربُ المال او مضارب نفع تقسيموي او مضاربت پر خپل حال پاته وي بيا څه مال يا ټوله مال هلاک سي تَرَادَّا الرِّبْحَ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ رَبُّ الْمَالِ رَأْسَ الْمَالِ نو دواړه به نفع واپس کوي تر دې چي ربُ المال رأسُ المال واخلي [يعني تر دې چي هغه ته خپل رأسُ المال پوره حاصل سي] لِأَنَّ قِسْمَةَ الرِّبْحِ لَا تَصِحُّ قَبْلَ اسْتِيفَاءِ رَأْسِ الْمَالِ ځکه چي د پوره رأسُ المال له اخيستلو څخه مخکي د نفعي تقسيمول صحيح نه دي لِأَنَّهُ هُوَ الْأَصْلُ ځکه چي همدا رأسُ المال اصل دی وَهٰذَا بِنَاءٌ عَلَيْهِ وَتَبَعٌ لَهُ او نفع پر هغه مبني ده او د هغه تابع ده فَإِذَا هَلَكَ مَا فِي يَدِ الْمُضَارِبِ أَمَانَةً لهذا کله چي د مضارب په قبضه کي د امانت په توگه اينبوول سوی مال هلاک سو تَبَيَّنَ أَنَّ مَا اسْتَوْفَيَاهُ مِنْ رَأْسِ الْمَالِ نو دا څرگنده سوه چي مضارب او ربُ المال چي کوم مال [د نفعي په توگه] اخيستی دی، هغه د رأسُ المال مال دی فَيَضْمَنُ الْمُضَارِبُ مَا اسْتَوْفَاهُ نو ځکه به مضارب د هغه مقدار ضامن کيږي کوم چي ده اخيستی وي لِأَنَّهُ أَخَذَهُ لِنَفْسِهِ ځکه چي ده هغه مال د خپل ځان لپاره اخيستی دی وَمَا أَخَذَهُ رَبُّ الْمَالِ مَحْسُوبٌ مِنْ رَأْسِ مَالِهِ او کوم مقدار چي ربُ المال اخيستی وي، هغه مقدار به له رأسُ المال څخه شمارل کيږي وَإِذَا اسْتَوْفَى رَأْسَ الْمَالِ فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ كَانَ بَيْنَهُمَا او کله چي ربُ المال رأسُ المال واخلي [يعني هغه ته خپل پوره رأسُ المال حاصل سي] نو که [تر دې وروسته] څه مال اضافه پاته سي نو

هغه به د مضارب او ربُ المال په مينځ کي مشترک وي لِأَنَّهُ رِبْحٌ ځکه چي هغه نفع ده وَإِنْ نَقَصَ او که څه مال کم سي فَلَا ضَمَانَ عَلَى الْمُضَارِبِ نو پر مضارب [د هغه] ضمان نسته لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی فَلَوِ اقْتَسَمَا الرِّبْحَ وَفَسَخَا الْمُضَارَبَةَ ثُمَّ عَقَدَاهَا فَهَلَكَ الْمَالُ او که چيري دوی دواړه نفع سره تقسيم کړي او عقد مضاربت فسخ کړي بيا دوباره عقد مضاربت وکړي او [تر دې وروسته] مال هلاک سي لَمْ يَتَرَادَّا الرِّبْحَ الْأَوَّلَ نو دوی به اوله نفع نه واپس کوي لِأَنَّ الْمُضَارَبَةَ الْأُولَى قَدِ انْتَهَتْ ځکه چي اول مضاربت خو پوره سو وَالثَّانِيَةَ عَقْدٌ جَدِيدٌ او دويم مضاربت يو نوی عقد دی فَهَلَاكُ الْمَالِ فِي الثَّانِي لَا يُوجِبُ انْتِقَاضَ الْأَوَّلِ نو ځکه په دويم عقد کي د مال هلاکېدل به د اول عقد ماتېدل نه لازموي [يعني دا به په اول عقد کي د اخيستل سوي مال د ختمولو سبب نه ګرځي] كَمَا إِذَا دَفَعَ إِلَيْهِ مَالًا آخَرَ لکه کله چي ربُ المال و مضارب ته بل مال ورکړی وي.

**اللغات:** ﴿ربح﴾ نفع، ګټه، ﴿رأسُ المال﴾ اصل مال (اصل مالِ مضاربت کوم چي د ربُ المال له طرفه مضارب ته ورکول سوی وي)، ﴿صَرْف﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ګرځول، راجع کول، ﴿الهلاك﴾ هلاک کړی سوی، هلاک شُده، ﴿ترادّا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو تر بله واپس کول (د دوو کسانو له طرفه ديو شي واپس کول)، يو تر بله ردول.

**تشريح:** په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که چيري له مالِ مضاربت څخه څه مال هلاک او ضايع سي، نو دا هلاکت (ضياع) به له نفعي څخه شمارل کيږي او له رأسُ المال څخه به نه ايستل کيږي؛ ځکه چي رأسُ المال اصل دی او نفع تابع ده، او په عامه توګه هلاکت او داسي نور د تابع سره متعلق کيږي. د دې مثال دا دی لکه د زکاة له نصابه که چيري څه نصاب هلاک سي، نو دا هلاکت د عفو يعني له نصاب څخه د زائد مقدار و طرف ته ګرځول کيږي او د نصاب سره نه متعلق کيږي، همداسي به دلته هم هلاکت له رأسُ المال څخه د زائد مقدار يعني د نفعي و طرف ته ګرځول کيږي او د هغه سره به متعلق کيږي، نه د اصل رأسُ المال سره: ها! که چيري هلاک سوی مال له نفعي څخه زيات وي، نو بيا به هغه له رأسُ المال څخه ايستل کيږي او د هغه سره به متعلق کيږي، او پر مضارب به د هغه ضمان نه لازميږي؛ ځکه چي مضارب امين دی او پر امين ضمان نه لازميږي.

وإن كان يقتسمان إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده چې که مضارب او ربُ المال په خپل مینځ کې نفع تقسیموي او مضاربت باقي وي، فسخ سوی نه وي، بيا څه مال هلاک سي يا ټوله مال هلاک سي، نو په دې صورت کې به دوی دواړه نفع واپس کوي او نه به يې اخلي؛ ځکه چې د څه مال يا ټوله مال د هلاکېدلو په وجه به اوس ربُ المال ته په پوره توګه رأسُ المال نه رسيږي، حال دا چې ربُ المال ته د پوره رأسُ المال له رسېدلو څخه مخکې د نفعې تقسیم صحیح نه دی؛ ځکه چې رأسُ المال اصل دی او د هغه پوره کول (تکمیل) ضروري دي، نو ځکه که چيري د نفعې مال د دواړو سره موجود وي، نو دواړه به هغه واپس کوي، او که له دواړو څخه خرچ سوی وي، نو مضارب به د هغه ضمان (تاوان) ورکوي؛ ځکه چې دا مال هغه د خپل ځان لپاره اخيستی دی، او ربُ المال که هغه واپس کړي، نو صحيح ده، کنې د هغه په اندازه مال به له رأسُ المال څخه ايستل کيږي او مابقي مال به رأسُ المال ګرځول کيږي.

او که چيري د نفعې تر واپس کولو وروسته له هغه څخه څه مال زائد پاته سي، نو هغه د نفعې مال دی او د مضارب او ربُ المال په مینځ کې مشترک دی کوم چې به د دوی د شرط مطابق د دوی په مینځ کې تقسیمول کيږي. او که څه مال کم سي، نو په دې صورت کې هم پر مضارب ضمان نه لازميږي؛ ځکه چې هغه امين دی، ولا ضمان على الأمين.

(۳)... که چيري مضارب او ربُ المال د نفعې له تقسيمولو او د عقد (مضاربت) له فسخ کولو څخه وروسته دويم وار عقد وکړي او په دويم عقد کې مال هلاک سي، نو که چيري په دويم عقد (دويم مضاربت) کې نفع سوې وي، نو ښکاره خبره ده چې دوی دواړه به هغه نفع واپس کوي، لېکن که په دويم عقد کې نفع نه وي سوې، نو په اول عقد سره حاصل شُده نفع به دوی نه واپس کوي؛ ځکه چې د فسخ کولو په وجه اول عقد پوره سو او دويم عقد (دويم مضاربت) نوی عقد دی، نو ځکه د دويم عقد کمي به د اول عقد والا په نفعې سره نه پوره کول کيږي. د دې مثال دا دی لکه ربُ المال چې مضاربت ته له مال مضاربت څخه ماسوا بل مال ورکړی وي او بيا مال مضاربت هلاک او ضايع سي، نو دا هلاکت (ضياع) به په هغه بل مال سره نه پوره کول کيږي، همداسي به دلته هم په دويم عقد کې د هلاک سوي مال تلافي د اول عقد په حاصل شُده نفعې سره نه کيږي.



# فَصْلٌ فِيْمَا يَفْعَلُهُ الْمُضَارِبُ

(دا) فصل په (بيان د) هغه اُمورو کي دی کوم چي يې مضارب ...

## مالِ مضاربت په نغدو يا په قرض سره خرڅول

قَالَ: وَيَجُوزُ لِلْمُضَارِبِ أَنْ يَبِيعَ بِالنَّقْدِ وَالنَّسِيئَةِ فرمايي: او جائز دي د مضارب لپاره چي په نغدو يا په قرض سره خرڅول وکړي لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ ځکه چي دا ټوله د تاجرانو له اعمالو څخه دي فَيَنْتَظِمُهُ إِطْلَاقُ الْعَقْدِ نو ځکه مطلق عقد به نقد او قرض دواړو لره شامليږي إِلَّا إِذَا بَاعَ إِلَى أَجَلٍ لَا يَبِيعُ التُّجَّارُ إِلَيْهِ مګر دا چي مضارب تر دومره اوږد مودته [په قرض] خرڅول وکړي چي تر هغه مودته تاجران خرڅول نه کوي [يعني تر هغومره وخته پوري تجارت او کاروبار والا خلک چا ته قرض نه ورکوي] لِأَنَّ لَهُ الْأَمْرَ الْعَامَّ الْمَعْرُوفَ بَيْنَ النَّاسِ ځکه چي مضارب ته د هغه شي [او د هغه کار] اختيار سته کوم چي د خلکو [تجارانو] په مينځ کي عام او مشهوره [عادت] وي وَلِهٰذَا كَانَ لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ دَابَّةً لِلرُّكُوبِ وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ سَفِينَةً لِلرُّكُوبِ او په همدې وجه هغه ته د سپرېدلو لپاره د څاروي رانيولو اختيار سته [لېکن] هغه ته د سپرېدلو لپاره د کښتۍ رانيولو اختيار نسته وَلَهُ أَنْ يَسْتَكْرِيَهَا اعْتِبَارًا لِعَادَةِ التُّجَّارِ [خو] د تاجرانو د عادت په اعتبار کولو سره هغه ته په کرايه د کښتۍ اخيستلو اختيار سته وَلَهُ أَنْ يَأْذَنَ لِعَبْدِ الْمُضَارَبَةِ فِي التِّجَارَةِ فِي الرِّوَايَةِ الْمَشْهُورَةِ [همدارنګه] په مشهوره روايت کي مضارب ته دا اختيار هم سته چي د مضاربت غلام ته د تجارت [کاروبار کولو] اجازت ورکړي لِأَنَّهُ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ ځکه چي دا [هم] د تاجرانو له اعمالو څخه دي وَلَوْ بَاعَ بِالنَّقْدِ ثُمَّ أَخَّرَ الثَّمَنَ او که چيري مضارب په نغدو سره [يو شی] رانيسي بيا ثمن وځنډوي [يعني بيا مشتري ته مهلت ورکړي چي ثمن دومره وخت وروسته راوړه!] جَازَ بِالْإِجْمَاعِ نو دا بالاتفاق جائز دي أَمَّا عِنْدَهُمَا فَلِأَنَّ الْوَكِيلَ يَمْلِكُ ذٰلِكَ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز خو ځکه [دا جائز دي] چي وکيل د تاخير

[ځنډولو] ملکيت لري فَالْمُضَارِبُ أَوْلٰى نو ځکه مضارب به په درجه اولیٰ د هغه ملکيت لري إِلَّا أَنَّ الْمُضَارِبَ لَا يَضْمَنُ لېکن مضارب نه ضامن کيږي لِأَنَّ لَهُ أَنْ يُقَايِلَ ثُمَّ يَبِيعَ نَسِيئَةً ځکه چي مضارب ته دا اختيار [هم] سته چي اقاله وکړي [بيع فسخ کړي] بيا هغه په قرض خرڅ کړي وَلَا كَذٰلِكَ الْوَكِيلُ او وکيل داسي نه دی لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ ذٰلِكَ ځکه چي هغه د دې ملکيت [اختيار] نه لري وَأَمَّا عِنْدَ أَبِيْ يُوسُفَ فَلِأَنَّهُ يَمْلِكُ الْإِقَالَةَ ثُمَّ الْبَيْعَ بِالنَّسَاءِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز ځکه [هغه جائز دي] چي مضارب د اقالې ملکيت هم لري او بيا [تر هغه وروسته] په قرض د خرڅولو ملکيت هم لري بِخِلَافِ الْوَكِيلِ په خلاف د وکيل لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْإِقَالَةَ ځکه چي هغه د اقالې ملکيت نه لري.

**اللغات**: ﴿نسيئة﴾ تاخير، ځنډول، مراد ځني په قرض ورکول دي، ﴿صنيع﴾ هر عمل، کار، ﴿دابة﴾ څاروی، ﴿سفينة﴾ کښتی، ﴿يملك﴾ د ضرب د باب مضارع ده: مالک کېدل، ملکيت لرل، ﴿إقالة﴾ بيع فسخ کول (سودا ماتول).

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي د مضارب لپاره په مالِ مضاربت سره په قرض او په نغدو خرڅول دواړه جائز دي او همدا حکم د رانيولو دی (لنډه دا چي څرنګه هغه مناسب وګڼي هغسي خرڅول او رانيول به کوي، مثلاً که هغه له مالِ مضاربت څخه يو شی په قرض خرڅول مناسب وګڼي، نو په قرض به يې خرڅوي)؛ ځکه چي تاجران او کاروبار والا خلک په قرض سره هم معامله کوي او په نغدو سره هم معامله کوي، نو ځکه په مطلق مضاربت کي به د نقد او قرض دواړو کاروبار شامليږي، لېکن د ډېر زيات مودت مثلاً د شلو کالو لپاره د قرض ورکولو (قرضاً خرڅولو) اجازت نسته؛ ځکه چي د ډېر زيات مودت لپاره کاروباري حضرات هيڅچا ته قرض نه ورکوي.

لأن له الأمر العام المعروف إلخ: د دې تشريح واضحه ده.

ولو باع بالنقد ثم أخر إلخ: فرمايي چي که مضارب پر مشتري په نغدو يو شی خرڅ کړي بيا مشتري ته د ثمن په هکله مهلت ورکړي، نو د هغه لپاره دا تاخير او مهلت ورکول جائز دي، او دا جواز د طرفينو او امام ابو يوسف رَحِمَهُمُ الله په نېز برابر دی؛ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دې جواز وجه دا ده چي وکيل بالبيع د ثمن د تاخير ملکيت لري، نو مضارب به په درجه اولیٰ د هغه ملکيت لري؛ ځکه چي مضارب په نفع کي د ربُ المال سره شريک کيږي، لېکن وکيل د مؤکل سره په نفع کي نه شريک کيږي، او د مضارب اختيارات د وکيل له اختياراتو څخه زيات وي، همدارنګه که مضارب تر ډېر

مودته ثمن مؤخر کړي (يعني مشتري ته ډېر مهلت ورکړي)، نو هغه نه ضامن کيږي. لېکن وکيل ضامن کيږي، همدارنګه مضارب ته دا اختيار سته چې بيع فسخ کړي او دوباره شی په قرض خرڅ کړي، حالانکې وکيل ته دا اختيار نه وي، نو ځکه په دې حوالو سره په مضارب او وکيل کې فرق سته. لهذا کله چې وکيل هم د ثمن د تاخير اختيار لري کوم چې په ډېرو اُمورو کې له مضارب څخه په رتبه کې کم دی، نو مضارب به په درجه اولیٰ او خامخا د هغه اختيار لري.

وأماعندأبي يوسف إلخ: او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د تاخير د جواز وجه دا ده چې مضارب ته دا اختيار سته چې بيع فسخ کړي او دوباره شی په قرض خرڅ کړي، لهذا کله چې هغه ته دا اختيار سته چې ابتداءً په قرض شی خرڅ کړي، نو ښکاره خبره ده چې هغه ته به دا اختيار هم وي چې په نغدو د شي له خرڅولو څخه وروسته د ثمن په هکله مهلت ورکړي او ثمن مؤخر کړي؛ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز وکيل د اقالې يعني د بيع فسخ کولو ملکيت نه لري، نو ځکه هغه ته به د تاخير ملکيت او اختيار هم نه وي. (احسن الهدايه)

## د مضارب لپاره حواله قبلول او داسې نورو کارونه کول (حکم او تفصيل)

وَلَوِاحْتَالَ بِالثَّمَنِ عَلَى الْأَيْسَرِأَوِالْأَعْسَرِ او که چيرې مُضارب پر يو مالدار يا غريب کس د ثمن حواله کول قبول کړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ الْحَوَالَةَ مِنْ عَادَةِ التُّجَّارِ ځکه چې حواله کول د تاجرانو له عادت څخه دي بِخِلَافِ الْوَصِيِّ يَحْتَالُ بِمَالِ الْيَتِيمِ د دې په خلاف که وصي د يتيم د مال حواله قبوله کړي حَيْثُ يُعْتَبَرُفِيهِ الْأَنْظَرُ نو په هغه کې به د شفقت [او مصلحت] اعتبار کيږي لِأَنَّ تَصَرُّفَهُ مُقَيَّدٌ بِشَرْطِ النَّظَرِ ځکه چې د وصي تصرف په شفقت [او مصلحت] سره مقيد دی [او پر غريب کس د حواله په قبلولو کې هيڅ مصلحت او ښېګڼه نسته، نو ځکه هغه به پر غريب کس د يتيم د مال حواله نه قبلوي] وَالْأَصْلُ أَنَّ مَا يَفْعَلُهُ الْمُضَارِبُ ثَلَاثَةُ أَنْوَاعٍ او اصل دا دی چې کوم افعال [کارونه] چې مضارب کوي هغه پر درې قسمه دي نَوْعٌ يَمْلِكُهُ بِمُطْلَقِ الْمُضَارَبَةِ [۱] يو قسم هغه دي چې مضارب په مطلق مضاربت سره د هغه مالک کيږي وَهُوَ مَا يَكُونُ مِنْ بَابِ الْمُضَارَبَةِ وَتَوَابِعِهَا او دا هغه افعال دي کوم چې د مضاربت له بابه او د هغه له توابعو څخه دي وَهُوَ مَا ذَكَرْنَا او دا هغه دي کوم چې موږ ذکر کړه وَمِنْ جملته التَّوْكِيلُ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ چې د هغه له جملې څخه د خرڅولو او رانيولو وکيل جوړول دي

لِلْحَاجَةِ إِلَيْهِ ځکه چي هغه ته ضرورت سته وَالرَّهْنُ وَالِارْتِهَانُ او مال په رهن [په ګرو] ورکول او په رهن اخيستل دي لِأَنَّهُ إِيفَاءٌ وَاسْتِيفَاءٌ ځکه چي دا اداء کول او ترلاسه کول [اخيستل] دي وَالْإِجَارَةُ وَالِاسْتِئْجَارُ او مال په اجاره [په کرايه] ورکول او په اجاره اخيستل دي وَالْإِيدَاعُ وَالْإِبْضَاعُ وَالْمُسَافَرَةُ [همدارنګه د هغه له جملې څخه] مال په امانت ورکول، په بضاعت ورکول او [د مال سره] سفر کول دي [يعني مال په سفر وړل او بل ښار ته نقل کول] عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ لکه مخکي چي موږ دا ذکر کړه وَنَوْعٌ لَا يَمْلِكُهُ بِمُطْلَقِ الْعَقْدِ وَيَمْلِكُهُ إِذَا قِيلَ لَهُ: اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ [۲] او دويم قسم هغه [افعال] دي چي مضارب په مطلق عقد [مضاربت] سره د هغه نه مالک کيږي بلکي په هغه صورت کي يې مالک کيږي کله چي [د ربُ المال له طرفه] هغه ته وويل سي: ته په خپل رايه عمل کوه! [يعني د خپل رضا او خوښې مطابق کار کوه!] وَهُوَ مَا يَحْتَمِلُ أَنْ يَلْحَقَ بِهِ او دا هغه افعال دي کوم چي د اول قسم سره د لاحق کېدلو احتمال لري فَيَلْحَقَ عِنْدَ وُجُودِ الدَّلَالَةِ نو ځکه د يو دلالت د موجودېدلو په وخت کي به هغوی د اول قسم سره لاحقول کيږي وَذَلِكَ مِثْلُ دَفْعِ الْمَالِ مُضَارَبَةً أَوْ شَرِكَةً إِلَى غَيْرِهِ وَخَلْطِ مَالِ الْمُضَارَبَةِ بِمَالِهِ أَوْ بِمَالِ غَيْرِهِ او دا مثلاً لکه مال بل چا ته د مضاربت يا شرکت په توګه ورکول او [لکه] د مضاربت مال د خپل مال يا د بل چا د مال سره ګډول لِأَنَّ رَبَّ الْمَالِ رَضِيَ بِشَرِكَتِهِ لَا بِشَرِكَةِ غَيْرِهِ ځکه چي ربُ المال صرف د مضارب په شرکت راضي دی، د بل چا په شرکت راضي نه دی وَهُوَ أَمْرٌ عَارِضٌ لَا يَتَوَقَّفُ عَلَيْهِ التِّجَارَةُ او دا يو عارضي امر دی چي پر هغه تجارت نه موقوف کيږي فَلَا يَدْخُلُ تَحْتَ مُطْلَقِ الْعَقْدِ نو ځکه دا افعال به تر عقد مضاربت لاندي نه داخليږي وَلَكِنَّهُ جِهَةٌ فِي التَّثْمِيرِ لېکن څرنګه چي دا [يعني له مذکوره افعالو څخه هر فعل] هم د مال زياتولو [نفع حاصلولو] يو طريقه ده فَمِنْ هَذَا الْوَجْهِ يُوَافِقُهُ نو له دې وجهي دا هم د عقد مضاربت سره موافق دي فَيَدْخُلُ فِيهِ عِنْدَ وُجُودِ الدَّلَالَةِ نو ځکه د يو دلالت د موجودېدو په وخت کي به دا په مضاربت کي داخليږي

وَقَوْلُهُ: اعْمَلْ بِرَأْيِكَ دَلَالَةٌ عَلَى ذَلِكَ او دا ربُ المال دا قول: "اعمل برأيك" پر همدې دلالت دی [يعني په عقد مضاربت کي د مذکوره افعالو پر داخلېدلو دليل دی] وَنَوْعٌ لَا يَمْلِكُهُ بِمُطْلَقِ الْعَقْدِ وَلَا بِقَوْلِهِ: اعْمَلْ

بِرَأْيِكَ إِلَّا أَنْ يَنُصَّ عَلَيْهِ رَبُّ الْمَالِ [۳] او درېيم قسم هغه [افعال] دي چي مضارب نه په مطلق عقد سره د هغه مالک کيږي او نه د ربُ المال په دې قول: "اعمل برأيك" سره د هغه مالک کيږي، مګر دا چي ربُ المال په وضاحت سره د هغه [افعالو] صراحت وکړي وَهُوَ الِاسْتِدَانَةُ او هغه په قرض اخيستل دي [يعني له هغه افعالو څخه يو فعل استدانت دی] وَهُوَ أَنْ يَشْتَرِيَ بِالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ بَعْدَمَا اشْتَرَى بِرَأْسِ الْمَالِ السِّلْعَةَ وَمَا أَشْبَهَ ذٰلِكَ او د هغه صورت دا دی چي مضارب په رأسُ المال سره تر سامان رانيولو وروسته په دراهمو او دنانيرو يا د هغوی په مثل شي سره رانيول وکړي لِأَنَّهُ يَصِيرُ الْمَالُ زَائِدًا عَلَى مَا انْعَقَدَ عَلَيْهِ الْمُضَارَبَةُ ځکه چي [په دې صورت کي] مالِ مضاربت تر [خپل] هغه مقدار زائد ګرځي پر کوم چي مضاربت منعقد سوی دی فَلَا يَرْضٰى بِهِ وَلَا يَشْغَلُ ذِمَّتَهُ بِالدَّيْنِ نو ځکه په هغه [زائد] به ربُ المال راضي نه وي او نه هغه خپله ذمه په قرض سره مشغوله کوي [يعني په دې نه راضي کيږي چي پر هغه قرض باندي سي] وَلَوْ أَذِنَ لَهُ رَبُّ الْمَالِ بِالِاسْتِدَانَةِ او که چيري ربُ المال مضارب ته د قرض اخيستلو اجازت ورکړی وي صَارَ الْمُشْتَرٰى بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ بِمَنْزِلَةِ شَرِكَةِ الْوُجُوهِ نو هغه زائد رانيول سوی شی د شرکت وجود په څېر د دوی په مينځ کي مشترک ګرځي وَأَخْذُ السَّفَاتِجِ او سفاتج اخيستل [هم دا حکم لري] لِأَنَّهُ نَوْعٌ مِنَ الِاسْتِدَانَةِ ځکه چي هغه [هم] د قرض اخيستلو يو قسم دی وَكَذَا إِعْطَاؤُهَا او همدارنګه سفاتج ورکول هم دي لِأَنَّهُ إِقْرَاضٌ ځکه چي هغه په قرض ورکول دي وَالْعِتْقُ بِمَالٍ وَبِغَيْرِ مَالٍ وَالْكِتَابَةُ او په مال سره يا بغير له ماله آزادول او مکاتب جوړول [هم له هغه افعالو څخه دي] لِأَنَّهُ لَيْسَ بِتِجَارَةٍ ځکه چي دا تجارت نه دي [يعني د تجارت له اعمالو څخه نه دي] وَالْإِقْرَاضُ وَالْهِبَةُ وَالصَّدَقَةُ او [همدارنګه] قرض ورکول، هبه کول او صدقه کول [هم له هغه افعالو څخه دي. يعني د ربُ المال له صراحت څخه بغير مضارب د هغوی نه مالک کيږي] لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ مَحْضٌ ځکه چي دا ټوله محض احسان کول دي [يعني د تبرع او احسان له قبيلې څخه دي، د تجارت له اعمالو څخه نه دي].

**اللغات**: ﴿احتـال﴾ د افتعال د باب ماضي ده: حواله قبلول. ﴿أيسر﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: مالدار، شتمن. ﴿أعسر﴾ مخکنی صيغه ده: غريب، تنګلاسی. ﴿وصي﴾ چا ته چي مړي وصيت

کړي وي، چا ته چي د يو کار وصيت سوی وي. ﴿إِيفَاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: اداء کول (پوره اداء کول)، ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: اخيستل (پوره اخيستل)، ترلاسه کول. ﴿ارتهان﴾ د افتعال مصدر دی: په رهن اخيستل، په ګرو (په ګروي) اخيستل. ﴿إجارة﴾ د افعال د باب مصدر دی: په اُجرت او مزدوري ورکول، په کرايه ورکول. ﴿إيداع﴾ مخکنی صيغه ده: په امانت ايښوول، امانتاً ورکول. ﴿إبضاع﴾ مخکنی صيغه ده: بضاعتاً ورکول چي يو څوک بل چا ته ووايي: ته! په کار کي مرسته او ښه راسره وکړه!، يعني په مال سره کاروبار ته وکړه او نفع به ټوله زما وي (تفصيلي تعريف يې مخکي تېر سو). ﴿يلحق﴾ د سمع مضارع ده: لاحق کېدل، ور سره يو ځای کېدل، متصل کېدل. ﴿تثمير﴾ د تفعيل مصدر دی: زياتول، اضافه کول. ﴿سلعة﴾ سامان. ﴿إقراض﴾ د افعال مصدر دی: په قرض ورکول (په پور ورکول). ﴿تبرع﴾ د تفعّل مصدر دی: نيکي او احسان کول، بلا عوضه (مفت) يو شی ورکول. ﴿سَفَاتِج﴾ جمع د سُفْتَجَةٌ ده (بضم السين وفتح التاء)، د "سفاتج" صورت دا دی چي مثلاً د خالد دوکان او کاروبار په کندهار کي وي او هغه له حامد څخه په هلمند کي پر دې شرط قرض واخلي چي زه تا ته په کندهار کي دغه قرض درکوم (يا ته ورسه! په کندهار کي زما له دوکان څخه دا قرض واخله!)، او په دې توګه هغه د لاري له خطراتو څخه خپل مال وساتي (يعني د خالد مطلب دا وي چي که زه له کندهاره د ځان سره هلمند ته مال يووسم نو شايد غلا به سي، نو په دې غرض سره هغه په هلمند کي له حامد څخه قرض واخلي)، د سفاتج نور صورتونه هم سته، او د دې پوره تحقيق د "کتاب الحواله" په آخري عبارت کي ذکر سو، دلته همدا صورت مراد دی.

**تشريح**: په دغه عبارت کي څو مسئلې ذکر سوي دي چي له هغوی څخه اُوله مسئله دا ده چي که مضارب پر يو سړي له مالِ مضاربت څخه يو شی خرڅ کړي او هغه سړی د ثمن اداء کول پر بل چا حواله کړي (يعني مضارب ته ووايي چي ته د دې شي ثمن [پيسې] له زيد څخه واخله!) او مضارب د هغه حواله قبوله کړي (يعني د هغه مذکوره خبره ومني او له زيد څخه د ثمن اخيستلو اراده وکړي)، نو دا جائز او صحيح دي. برابره ده محتال عليه (زيد) مالدار وي، که غريب وي؛ ځکه چي حواله قبلول هم د تاجرانو له کړنو څخه دي. ها! که چيري يو وصي د يتيم د مال حواله قبوله کړي، نو په دې صورت کي به د شفقت او

مصلحت خيال ساتل کيـږي، لهذا دا حواله که چيري مبني بر شفقت او مصلحت وي، نو وصي به هغه قبلوي، کنې نه به يې قبلوي.

والأصل أن ما يفعله إلخ: صاحب د هدايي رَحِمَهُ الله له دې ځايه د مضارب د افعالو او اختياراتو په هکله يوه قاعده ذکر کوي، فرمايي مضارب ته چي د کومو افعالو د کولو يا نه کولو اختيار او اجازت سته، هغه پر درې قسمه دي: ① ... اول قسم هغه افعال دي چي مضارب په نفسِ عقد سره د هغوی د کولو او اداء کولو مالک کيږي، مثلاً په قرض او نغدو خرڅول، د ثمن اخيستلو په هکله مهلت ورکول او داسي نور، دا ټوله شيان له تجارت او د تجارت د اعمالو سره متعلق دي، او يو وخت نه يو وخت په مضاربت کي هغوی ته ضرورت پيښيږي، نو ځکه په نفسِ عقد سره به مضارب د هغوی مالک کيږي.

② ... دويم قسم هغه افعال او اختيارات دي چي په نفسِ عقد سره مضارب د هغوی نه مالک کيږي، بلکي که چيري ربُ المال هغه ته "اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ" ووايي او هغه ته د خپل رضا مطابق د کار کولو اختيار او اجازت ورکړي (چي څنګه ستا خوښه وي،عمل کوه!)، نو بيا مضارب بل چا ته په مضاربت د مال ورکولو او د خپل مال يا د بل چا د مال سره د مالِ مضاربت ګډولو مستحق کيږي، او څرنګه چي په ګډولو او د بل چا په شريکولو سره په مال کي اضافه ممکن ده، نو ځکه د ربُ المال له طرفه د اختيار حاصلېدلو په صورت کي به مضارب ته د دغو افعالو اختيار حاصليږي.

(۳)... دريم قسم هغه افعال دي چي مضارب ته د هغوی د کولو اختيار او ملکيت نه په مطلق عقد سره حاصليږي او نه د ربُ المال په "اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ" ويلو سره، هو! کله چي د ربُ المال له طرفه په صراحت سره هغه ته اجازت حاصل سي، نو بيا هغه د دې لاندي افعالو مالک کيږي:

① ... قرض اخيستل، چي د هغه صورت دا دی چي مضارب په ټوله رأسُ المال سره سامان رانيسي بيا په قرض د دراهمو او دنانيرو يا د بل شي په عوض کي نور سامان رانيسي، نو ښکاره خبره دا چي دا رانيول له رأسُ المال څخه زائد دي او کېدای سي چي ربُ المال به په دې او د دغه زائد رانيولو په وجه پر هغه په قرض لازمېدلو راضي نه وي، نو ځکه دا ټول افعال به هغه وخت مضارب کوي، کله چي د ربُ المال له طرفه هغه ته صريح اجازت حاصل سي، کنې له هغه څخه به بالکل ځان ساتي. ② د سفاتج معامله کول، ③ قرض ورکول، ④ د مال په عوض کي يا بغير له ماله (مُفت) غلام آزادول، ⑤ مکاتب جوړول، ⑥ هبه کول، ⑦ صدقه کول، دا ټوله هغه کارونه دي چي تر څو ربُ المال په

صراحت سره مضارب ته د هغوی د کولو حق او اختيار نه وي ورکړی، تر هغه وخته مضارب ته د هغوی د کولو سوچ کول هم صحيح نه دي، د هغوی ترسره کول خو هلته پرېږده!.

## په مالِ مضاربت سره د غلام او مينځي نکاح کول

قَالَ: وَلَا يُزَوِّجُ عَبْدًا وَلَا أَمَةً مِنْ مَالِ الْمُضَارَبَةِ فرمايي: چي مضارب د مال مضاربت د يو غلام او مينځي نکاح نه سي کولای وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يُزَوِّجُ الْأَمَةَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي هغه د مينځي نکاح کولای سي لِأَنَّهُ مِنْ بَابِ الِاكْتِسَابِ ځکه چي دا د ګټي له باب څخه دي [يعني دا هم د نفعي او ګټي حاصلولو يو طريقه ده] أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَسْتَفِيدُ بِهِ الْمَهْرَ وَسُقُوطَ النَّفَقَةِ آيا ته نه ګوري! چي په دې سره به مضارب د مهر او د نفقې ساقطېدلو فايده حاصله کړي وَلَهُمَا: أَنَّهُ لَيْسَ بِتِجَارَةٍ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي نکاح تجارت نه دی وَالْعَقْدُ لَا يَتَضَمَّنُ إِلَّا التَّوْكِيلَ بِالتِّجَارَةِ او عقدِ مضاربت صرف د تجارت وکيل جوړولو لره شامليږي وَصَارَ كَالْكِتَابَةِ وَالْإِعْتَاقِ عَلَى مَالٍ لِأَنَّهُ اكْتِسَابٌ او دا د مکاتب جوړولو او د مال په عوض کي د آزادولو په څېر سوه، ځکه چي هغه هم ګټه کول دي وَلَكِنْ لَمَّا لَمْ يَكُنْ تِجَارَةً لېکن څرنګه چي هغه تجارت نه دي [يعني د تجارت له اعمالو څخه نه دي] لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْمُضَارَبَةِ نو ځکه هغه تر مضاربت لاندي نه داخليږي [لکه څرنګه چي مخکي ذکر سوه] فَكَذَا هَذَا نو همداسي به دا هم وي [يعني همداسي به تزويجُ الأمه هم تر مضاربت لاندي نه داخليږي].

**اللغات**: ﴿لا يزوّج﴾ د تفعيل له بابه د نفي صيغه ده: نکاح ورکول، نکاح تړل. ﴿اکتساب﴾ د افتعال مصدر دی: ګټه کول، نفع کول. ﴿يستفيد﴾ د استفعال مضارع ده: حاصلول، فايده اخيستل (ترلاسه کول). ﴿لا يتضمن﴾ د تفعّل له بابه د نفي صيغه ده: متضمن کېدل، ضمناً شاملېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري په مالِ مضاربت کي غلام يا مينځه موجوده وي، نو مضارب ته دا اختيار نسته چي هغه غلام ته د نکاح کولو اجازت ورکړي يا په خپله هغه ته نکاح او واده وکړي، يا مينځه ديو چا په نکاح کي ورکړي، همدا د احنافو مشهور، اصح او معتمد قول دی،

❁ القول الراجح: قول الطرفين، كما ذكر فى الدر المختار (ج:۴، ص:۵۴۲)، وكذا فى مجمع الأنهر (ج:۳، ص:۴۵۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۱۱]

لېکن په "نوادر" کي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا نقل سوی دی چي مضارب هغه مينځه د مهر په عوض کي په نکاح ورکولای سي؛ ځکه چي دا هم يو ګټه او نفع ده چي په دې فعل سره به مضارب ته مهر حاصل سي او د هغه له غاړي څخه به د مينځي نفقه ساقطه سي. (نو د "نوادر" د روايت مطابق امام ابو يوسف له طرفينو څخه جلا دی)

د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي دا ټول خو موږ تسليموو، لېکن په عقد مضاربت کي مضارب صرف وکيل بالتجارة (د تجارت او کاروبار کولو وکيل) دی، حال دا چي نکاح کول تجارت نه دي، نو ځکه دا عقد (مضاربت) به دغه کار يعني نکاح لره نه شامليږي. نو د مينځي نکاح کول داسي سو لکه د مضاربت غلام مکاتب کول يا د مال په عوض کي غلام آزادول چي په دې سره هم ګټه او نفع حاصليږي، لېکن څرنګه چي دا تجارت له اعمالو څخه نه دي، نو ځکه په مضاربت کي نه داخليږي، نو همداسي به مينځه په نکاح ورکول هم په مضاربت کي نه داخليږي.

## رب المال ته د کاروبار لپاره مالِ مضاربت ورکول (حکم او تفصيل)

قَالَ: فَإِنْ دَفَعَ شَيْئًا مِنْ مَالِ الْمُضَارَبَةِ إِلَى رَبِّ الْمَالِ بِضَاعَةً فرمايي: که چيري مضارب له مال مضاربت څخه څه مال بضاعتاً [د کاروبار لپاره] رب المال ته ورکړي فَاشْتَرَى رَبُّ الْمَالِ وَبَاعَ بيا ربُ المال [په هغه سره] رانيول او خرڅول وکړي فَهُوَ عَلَى الْمُضَارَبَةِ نو هغه [هم] پر مضاربت دی وَقَالَ زُفَرُ❁: تَفْسُدُ الْمُضَارَبَةُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مضاربت فاسديږي لِأَنَّ رَبَّ الْمَالِ مُتَصَرِّفٌ فِي مَالِ نَفْسِهِ ځکه چي [په دې مضاربت کي] ربُ المال په خپل ذاتي مال کي تصرف کونکی دی فَلَا يَصْلُحُ وَكِيلًا فِيهِ نو ځکه په دې مال کي هغه [ربُ المال] د وکيل جوړېدلو صلاحيت نه لري [ځکه چي څوک په خپل مال کي د بل چا وکيل نه سي جوړېدای] فَيَصِيرُ مُسْتَرِدًّا نو ځکه هغه به واپس اخيستونکی وګرځي وَلِهَذَا لَا تَصِحُّ إِذَا شَرَطَ الْعَمَلَ عَلَيْهِ ابْتِدَاءً او په همدې وجه په هغه صورت کي مضاربت نه صحيح کيږي کله چي په شروع کي پر ربُ المال د کار شرط ولګول سي وَلَنَا: أَنَّ التَّخْلِيَةَ فِيهِ قَدْ تَمَّتْ او زموږ دليل دا دی چي [د مال او مضارب ترمينځ] تخليه پوره سوه وَصَارَ التَّصَرُّفُ حَقًّا لِلْمُضَارِبِ او تصرف کول د مضارب حق ګرځېدلی فَيَصْلُحُ رَبُّ الْمَالِ وَكِيلًا عَنْهُ فِي التَّصَرُّفِ نو ځکه ربُ المال به په نفس تصرف کي د

❁ القول الراجح: قول الجمهور (أي هو على المضاربة، ولا تفسد المضاربة)، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۵۴۰)، وكذا في البحر الرائق (ج:۴، ص:۲۶۸). [القول الراجح ج:۲، ص: ۲۱,۲]

مضارب د وکيل جوړېدلو صلاحيت لري وَالْإِبْضَاعُ تَوْكِيلٌ مِنْهُ او بضاعتاً مال ورکول د مضارب له طرفه وکيل جوړول دي فَلَا يَكُونُ اسْتِرْدَادًا نو ځکه دا به واپس اخيستل نه وي بِخِلَافِ شَرْطِ الْعَمَلِ عَلَيْهِ فِي الِابْتِدَاءِ په خلاف پر ربُ المال په شروع کي د کار د شرط لګولو لِأَنَّهُ يَمْنَعُ التَّخْلِيَةَ ځکه چي هغه تخليه منع کوي [يعني له تخليه څخه مانع دي] وَبِخِلَافِ مَا إِذَا دَفَعَ الْمَالَ إِلَى رَبِّ الْمَالِ مُضَارَبَةً او په خلاف د هغه صورت کله چي مضارب و ربُ المال ته د مضاربت په توګه مال ورکړی وي حَيْثُ لَا يَصِحُّ نو هغه [دويم مضاربت] نه صحيح کيږي لِأَنَّ الْمُضَارَبَةَ تَنْعَقِدُ شَرِكَةً عَلَى مَالِ رَبِّ الْمَالِ وَعَمَلِ الْمُضَارِبِ ځکه چي مضاربت د ربُ المال پر مال او د مضارب پر عمل د شرکت په توګه واقع کيږي [يعني د ربُ المال د مال او د مضارب د عمل دواړو په يو ځای کېدلو سره په مشترکه توګه مضاربت منعقد کيږي] وَلَا مَالَ هٰهُنَا او دلته [په دويم مضاربت کي] مال نشته فَلَوْ جَوَّزْنَاهُ او که چيري موږ دا جائز وګرځوو يُؤَدِّي إِلَى قَلْبِ الْمَوْضُوعِ نو هغه به د موضوع اوښتلو [چپه کېدلو] سبب وګرځي وَإِذَا لَمْ يَصِحَّ او کله چي دويم عقدِ مضاربت صحيح نه سو بَقِيَ عَمَلُ رَبِّ الْمَالِ بِأَمْرِ الْمُضَارِبِ نو د ربُ المال عمل به د مضارب په حکم سره باقي پاته سي فَلَا تَبْطُلُ بِهِ الْمُضَارَبَةُ الْأُولَى نو ځکه په دې سره به اول مضاربت نه باطليږي.

**اللغات:** ﴿بضاعة﴾ د بضاعت په توګه مال ورکول چي ته په کار کي مرسته او ښه راسره وکړه! يعني په مال سره کاروبار ته وکړه! او نفع به ټوله زما وي، کوم ته چي عقدِ بضاعت وايي. ﴿مُستَرِد﴾ د استفعال اسم فاعل دی: د واپسی طلب کونکی، واپس اخيستونکی. ﴿تخلية﴾ د تفعيل مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چي د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي: آزادول، دوه شيان يا دوه کسان په خپل مينځ کي سره پرېښوول او داسي نور. کله چي د مبيع او داسي نورو سره ذکر سي، نو د "ورسپارلو" معنیٰ ورکوي، يو چا ته يو شی سپارل، يو شی د چا په قبضه کي ورکول او هغه يې قابض ګرځول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي مثلاً ادريس مضارب دی او خالد ربُ المال دی، اوس که مضارب يعني ادريس د مرستي غوښتلو او د مضاربت باقي ساتلو په غرض خالد (ربُ المال) ته د کاروبار لپاره څه مال ورکړي او خالد کاروبار وکړي، نو زموږ په نېز دا معامله صحيح ده او خالد چي

څومره نفع حاصله کړي هغه ټوله به په مضاربت کې شامليږي. ليکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز دا معامله صحيح نه ده او په داسې معامله سره مضاربت فاسديږي؛ ځکه چې په دې کې ربُ المال (خالد) په خپل مال کې تصرف کوي، ځکه مضارب (ادريس) چې هغه ته کوم مال ورکړی دی، هغه د ربُ المال خپل مال دی، او انسان چې کله په خپل مال کې تصرف کوي، نو هغه اصيل وي، وکيل نه وي؛ نو ځکه د مضارب له طرفه ربُ المال ته مال ورکول په حقيقت کې ربُ المال ته مال مضاربت واپس کول دي او د ربُ المال لپاره د هغه اخيستل د مال مضاربت واپس اخيستل دي، او د مال مضاربت په واپس اخيستلو سره مضاربت فاسديږي، نو ځکه دلته به هم مضاربت فاسديږي. لکه څرنګه چې د عقد مضاربت په شروع کې پر ربُ المال د کار په شرط لګولو سره مضاربت فاسديږي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چې په دې مسئله کې ربُ المال مخکې لا مضارب ته مال سپارلی او له هغه څخه جلا سوی دی او مضاربت تام او پوره سوی دی او اوس په دې مال کې مضارب ته د تجارت سره متعلق هر ډول تصرف او اختيار حاصل سوی دی، او څرنګه چې مضارب د همدې تجارت او کاروبار لپاره ربُ المال ته دا مال ورکړی دی، نو ځکه ربُ المال به د مضارب وکيل وي، او څرنګه چې اوس ربُ المال د مضارب په حق کې اجنبي ګرځېدلی دی، نو ځکه د مضارب له طرفه به د هغه وکيل جوړېدل صحيح وي او په دې سره به د مضاربت پر صحت هيڅ اثر نه لوېږي. د دې په خلاف که چيرې په شروع کې پر ربُ المال د کار کولو شرط ولګول سي (يعني چې تر اوسه ربُ المال و مضارب ته مال نه وي سپارلی، په هغه وخت کې د کار شرط پر ولګول سي)، نو دا شرط به له تخليه (مال ورسپارلو) څخه مانع وي، نو ځکه په دې صورت کې به عقد مضاربت فاسديږي. لنډه دا چې يو ابتداءً پر ربُ المال د کار شرط لګول دي او بل انتهاءً (يعني مضارب ته له مال ورسپارلو او مضاربت پوره کېدلو څخه وروسته) پر ربُ المال د کار شرط لګول دي، او په دې دواړو کې ښکاره فرق دی، نو ځکه يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

وبخلاف ما إذا دفع إلخ: د دې حاصل دا دی چې که په پورتنۍ مسئله کې مضارب و ربُ المال ته د کاروبار لپاره مال نه وي ورکړی بلکې د مضاربت لپاره يې ورکړی وي، نو مضاربت نه صحيح کيږي يعني دويم مضاربت فاسديږي؛ ځکه چې دلته د ربُ المال له طرفه مال نسته بلکې کوم مال چې مضارب ورکړی دی هغه په خپله د ربُ المال مال دی، اوس که موږ دويم مضاربت جائز وګرځوو، نو په دې سره به قلب موضوع لازم سي يعني موضوع به پر بل مخ واوړي چې مال والا (ربُ المال) به مزدور (مضارب) وګرځي او مزدور به مالک وګرځي، نو ځکه به دا دويم مضاربت فاسديږي، ليکن دا فساد د اول مضاربت وطرف ته نه متعدي کيږي او هغه جائز او صحيح پاتيږي. (احسن الهدايه)

## د مضارب د خرڅو (اخراجاتو) مسئله

قَالَ: وَإِذَا عَمِلَ الْمُضَارِبُ فِي الْمِصْرِ فرمايي: او کله چې مضارب په خپل ښار کې کار [کاروبار] کوي فَلَيْسَتْ نَفَقَتُهُ فِي الْمَالِ نو په مالِ مضاربت کې د هغه نفقه نشته [يعني په دې صورت کې به مضارب له مالِ مضاربت څخه نفقه (د خوراک او داسې نورو خرڅه) نه اخلي] وَإِنْ سَافَرَ او که چيرې [هغه د کاروبار لپاره] سفر وکړي فَطَعَامُهُ وَشَرَابُهُ وَكِسْوَتُهُ وَرُكُوبُهُ وَمَعْنَاهُ شِرَاءٌ وَكِرَاءٌ فِي الْمَالِ نو د هغه د خوراک او څښاک شيان او د هغه کپړه او سپارلي يعني رانيول او کرايه کول [د څاروي] دا ټوله په مالِ مضاربت کې دي [يعني د دې ټولو خرڅه به له مالِ مضاربت څخه اخلي] وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ النَّفَقَةَ تَجِبُ بِإِزَاءِ الِاحْتِبَاسِ او [په دې دوو صورتونو کې] د فرق وجه دا ده چې نفقه د محبوس کېدلو [او منع کېدلو] په مقابله کې وي كَنَفَقَةِ الْقَاضِي وَنَفَقَةِ الْمَرْأَةِ لکه نفقه د قاضي او نفقه د ښځې [ځکه چې قاضي د عوامو د فيصلو او مصالحو لپاره محبوس وي او هغه له هر شغل څخه ځان منع کړی وي او ښځه د خاوند په کور او قبضه کې د هغه د خدمت لپاره محبوسه وي] وَالْمُضَارِبُ فِي الْمِصْرِ سَاكِنٌ بِالسُّكْنَى الْأَصْلِيِّ حال دا چې مضارب په خپل ښار کې د اصلي سکونت په توګه اوسيږي وَإِذَا سَافَرَ [ليکن] کله چې هغه سفر وکړي صَارَ مَحْبُوسًا بِالْمُضَارَبَةِ نو [بيا] هغه په مضاربت سره محبوس وګرځي [او په مضاربت کې مشغول پاته سي] فَيَسْتَحِقُّ النَّفَقَةَ فِيهِ نو ځکه [په دې وخت کې] به هغه په مالِ مضاربت کې د نفقې مستحق کيږي وَهٰذَا بِخِلَافِ الْأَجِيرِ او دا حکم د مزدور په خلاف دی لِأَنَّهُ يَسْتَحِقُّ الْبَدَلَ لَا مَحَالَةَ ځکه چې اجير په هر حال کې د عوض [مزدوری] مستحق کيږي فَلَا يَتَضَرَّرُ بِالْإِنْفَاقِ مِنْ مَالِهِ نو ځکه له خپل مال څخه په خرڅه کولو کې به هغه ته ضرر [تاوان] نه رسيږي أَمَّا الْمُضَارِبُ فَلَيْسَ لَهُ إِلَّا الرِّبْحُ پاته سو مضارب نو د هغه لپاره صرف نفع وي وَهُوَ فِي حَيِّزِ التَّرَدُّدِ او نفع هم د شک په ځای کې وي [يعني نفع مشکوکه وي چې آيا حاصله به سي، که نه؟] فَلَوْ أَنْفَقَ مِنْ مَالِهِ لهذا که مضارب له خپل مال څخه خرڅه وکړي يَتَضَرَّرُ بِهِ نو په دې سره به هغه ته ضرر [تاوان] ورسيږي وَبِخِلَافِ الْمُضَارَبَةِ الْفَاسِدَةِ او په خلاف د مضاربت فاسده لِأَنَّهُ أَجِيرٌ ځکه [په مضاربت فاسده کې] مضارب مزدور وي وَبِخِلَافِ الْبِضَاعَةِ

او په خلاف د بضاعت لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ ځکه چي [په عقدِ بضاعت کي] هغه احساناً کار کونکی وي.

**اللغات**: ﴿طعام﴾ خوراک (خورکه)، د خوراک شی، كُلُّ مَا يُؤْكَلُ وَبِهِ قِوَامُ البَدَنِ، ﴿شراب﴾ هر د څښلو شی، كُلُّ مَا يُشْرَبُ مِنَ المَائِعَاتِ، ﴿كسوة﴾ کپړه، اللِّبَاسُ الَّذِيْ يَسْتَتِرُ بِهِ وَيَتَجَمَّلُ بِهِ، ﴿ركوب﴾ سپرتیا، سپرېدل، ﴿كراء﴾ کرایه، ﴿بإزاء﴾ بمقابله، په مقابله کي، ﴿احتباس﴾ د افتعال د باب مصدر دی: محبوس کېدل (بند پاتېدل)، منع کېدل، راګرځېدل، ﴿أجير﴾ په اُجرت (مزدوري) سره کار کونکی، مزدور، ﴿يتضرّر﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: تاواني کېدل، ضرر او نقصان رسېدل، ﴿حيّز﴾ پر وزن د فَيْعِل دی او حَيْز هم ويل کېدای سي: مکان، ځای، ګوښه، يو شي ته څرمه ځای، څنګ، ﴿متبرّع﴾ د تفعّل د باب اسم فاعل دی: احسان کونکی (احساناً او بلا اُجرته (د مرستي په توګه) کارکونکی).

**تشريح**: مسئله خو آسانه ده چي که مضارب په خپله علاقه او خپل ښار کي کاروبار کوي، نو هغه به له خپل مال څخه نفقه نه اخلي او که چيري هغه د کاروبار او تجارت لپاره سفر وکړي او له ښاره بهر ولاړ سي، نو بيا به له مال مضاربت څخه نفقه او خرچه اخلي؛ ځکه د نفقي په هکله قاعده او قانون دا دی چي هغه د احتباس او اشتغال يعني د بل چا په کار کي د محبوس او مشغول پاتېدلو په عوض کي واجبيږي، او څرنګه چي په خپل ښار کي احتباس نه ثابتيږي، نو ځکه په خپل ښار کي د کار کولو په بدله کي به نفقه هم نه واجبيږي، لېکن له خپل ښاره د بهر وتلو او سفر کولو په صورت کي احتباس ثابتيږي، نو ځکه په دې صورت کي به مضارب له مال مضاربت څخه د نفقې هم مستحق کيږي. لکه څرنګه چي قاضي هم په دې وجه د نفقې مستحق وي چي هغه د مسلمانانو په کار کي محبوس او مشغول اووسي، نو ځکه له بيتُ المال څخه د هغه لپاره نفقه ټاکل سوې ده، همدارنګه ښځه د خاوند په قبضه کي د هغه د خدماتو او کورنيو چارو لپاره محبوسه وي، نو ځکه د خاوند په مال کي د هغې لپاره نفقه ټاکل سوې ده. همداسي مضارب هم چي تر کومه وخته د مضاربت په کاروبار کي محبوس او مشغول وي، تر هغه وخته به له مال مضاربت څخه د نفقې مستحق وي او خپل مال به نه خرچوي؛ ځکه چي د هغه حق صرف نفع ده او د نفعي حاصلېدل مشکوک وي، لهذا که د مضارب خرچه د هغه په ذاتي مال کي واجب کړی سي، نو هغه ته به تاوان ورسيږي. د دې په خلاف د مزدور نفقه په دې وجه په خپل مال کي واجبيږي چي هغه ته په هر حال کي خپل اُجرت او مزدوري

حاصلیږي (او د اُجرت حاصلېدل مشکوک نه وي)، لهذا اوس چي هغه کوم څه مال خرڅوي (صرفوي)، وروسته به هغه مال د خپل اُجرت په کاته کي له مالک څخه اخلي.

بخلاف المضاربة الفاسدة إلخ: فرمايي چي پورتني احکام د مضاربت صحیحه دي، او پاته سو مضاربت فاسده، نو په هغه کي به مضارب ته له مال مضاربت څخه نفقه نه ورکول کیږي؛ ځکه چي هلته مضارب صرف مزدور وي، او مزدور مستحق د نفقې نه وي، همداسي د بضاعت په توګه کاروبار کونکی هم د نفقې مستحق نه دی؛ ځکه چي هغه متبرّع یعني د احسان او مرستي په توګه کاروبار کونکی وي، او نفقه اخیستل د تبرّع د شان خلاف دي. (احسن الهدایه)

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت او په خرڅو کي به د عُرف لحاظ ساتل کیږي

قَالَ: وَلَوْ بَقِيَ شَيْءٌ فِي يَدِهِ بَعْدَمَا قَدِمَ مِصْرَهُ فرمايي: او که چیري خپل ښار ته له راتللو څخه وروسته د مضارب په قبضه کي [د نفقې] یو شی پاته سي رَدَّهُ فِي الْمُضَارَبَةِ نو هغه دي په مضاربت کي واپس کړي لِانْتِهَاءِ الِاسْتِحْقَاقِ ځکه چي اوس د هغه حق ختم سو وَلَوْ كَانَ خُرُوجُهُ دُونَ السَّفَرِ فَإِنْ كَانَ بِحَيْثُ يَغْدُو ثُمَّ يَرُوحُ فَيَبِيتُ بِأَهْلِهِ او که د هغه وتل له سفر څخه په کمه مسافه وي [یعني له دریو ورځو څخه پر کمه مسافه ووځي] نو که چیري هغه په دې توګه وي چي سهار ولاړ سي او ماښام ته واپس راسي او په خپل کور کي شپه تېره کړي فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ السُّوقِيِّ فِي الْمِصْرِ نو هغه په ښار کي د بازاري کس په درجه کي دی [کوم چي په بازار کي استوګن وي، نو ځکه هغه به له مال مضاربت څخه نفقه نه اخلي] وَإِنْ كَانَ بِحَيْثُ لَا يَبِيتُ بِأَهْلِهِ او که په داسي توګه وي [یعني پر دومره لیري مسافه ووځي] چي په خپل کور کي شپه نه سي تېرولای فَنَفَقَتُهُ فِي مَالِ الْمُضَارَبَةِ نو د هغه نفقه په مضاربت کي ده [یعني په دې صورت کي به له مال مضاربت څخه نفقه او خرڅه اخلي] لِأَنَّ خُرُوجَهُ لِلْمُضَارَبَةِ ځکه چي د هغه وتل د مضاربت لپاره دي وَالنَّفَقَةُ هِيَ مَا يُصْرَفُ إِلَى الْحَاجَةِ الرَّاتِبَةِ او نفقه هغه ده کوم چي د دائمي ضرورت وطرف ته ګرځول کیږي [په بله وینا: او نفقه هغه خرڅه ته وایي کوم چي په دائمي ضروریاتو کي صرفول کیږي (یعني هغه ضروریات کوم چي هره ورځ او هره وخت پیښیږي)، لکه خوراک، څښاک، کالي (جامې) او داسي نور] وَهُوَ مَا ذَكَرْنَا او دا هغه څه دي کوم چي موږ ذکر کړه [یعني طعام، شراب، کسوة او رُکوب] وَمِنْ جُمْلَةِ ذَلِكَ غَسْلُ ثِيَابِهِ وَأُجْرَةُ أَجِيرٍ يَخْدُمُهُ او د هغه [حاجت راتبه] له جملې څخه د مضارب د کپړو پرېولل دي او

[همدارنګه] د هغه مزدور اُجرت هم دی کوم چې د مضارب خدمت کوي [مثلاً د هغه لپاره ډوډۍ او سالن پخوي، یا مثلاً د هغه کالي مینځي] وَعَلَفُ دَابَّةٍ يَرْكَبُهَا وَالدُّهْنُ فِي مَوْضِعٍ يَحْتَاجُ إِلَيْهِ عَادَةً كَالْحِجَازِ او [د حاجت راتبه له جملې څخه] د هغه څاروي خوړکه هم ده کوم چې مضارب پر سپرېږي او [د هغه له جملې څخه] روغن هم دي، په هغه ځایو کي چې هلته د روغنو استعمالولو [تېل لګولو] عادت وي لکه حجاز [ځکه د حجاز علاقه ګرمه ده چې د هغه اوسېدونکي د بدن نرم او تازه ساتلو لپاره ډول، ډول روغنو ته محتاج وه] وَإِنَّمَا يُطْلَقُ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ بِالْمَعْرُوفِ او په دې ټولو شیانو کي به د قاعدې مطابق [یا معنیٰ دا چې په عُرفي طریقه سره] مضارب ته اجازت ورکول کیږي [أي بقدر دفع الضرورة بلا إسراف] حَتَّى يَضْمَنَ الْفَضْلَ إِنْ جَاوَزَهُ همدا وجه ده که چیرې مضارب له معروف څخه تجاوز [او اسراف] وکړي نو هغه د زائد مقدار ضامن کیږي اِعْتِبَارًا لِلْمُتَعَارَفِ بَيْنَ التُّجَّارِ د هغه څه په اعتبار کولو سره کوم چې د تاجرانو په مینځ کي متعارف [او عادت] دي [یعني کوم چې د تاجرانو په عُرف کي مُتعیّن دي] وَأَمَّا الدَّوَاءُ فَفِي مَالِهِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او پاته سوه دواء نو په ظاهر روایت کي هغه به د مضارب له مال څخه وي [یعني مضارب به له خپل مال څخه دواء کوي] وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يَدْخُلُ فِي النَّفَقَةِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چې دواء هم په نفقه کي داخلیږي لِأَنَّهُ لِإِصْلَاحِ بَدَنِهِ ځکه چې دواء د بدن د روغتیا لپاره وي وَلَا يَتَمَكَّنُ مِنَ التِّجَارَةِ إِلَّا بِهِ. او د بدن له روغتیا څخه بغیر مضارب پر تجارت نه سي قادر کېدای [یعني له روغتیا څخه بغیر هغه کاروبار نه سي کولای] فَصَارَ كَالنَّفَقَةِ نو هغه د نفقې په څېر سوه وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى النَّفَقَةِ مَعْلُومَةُ الْوُقُوعِ وَإِلَى الدَّوَاءِ بِعَارِضِ الْمَرَضِ د ظاهر روایت دلیل دا دی چې د نفقې ضرورت واقع کېدل معلوم دي او د دواء ضرورت د مرض د عارض په وجه دي [یعني د نفقې ضرورت خو په یقیني توګه معلوم دی حالانکي دواء ته د مرض پېښېدلو په وخت کي ضرورت پېښیږي، کوم چې نامعلوم دي] وَلِهَذَا كَانَتْ نَفَقَةُ الْمَرْأَةِ عَلَى الزَّوْجِ وَدَوَاؤُهَا فِي مَالِهَا او په همدې وجه د ښځي نفقه پر خاوند وي او د ښځي دواء د هغې له مال څخه وي.

**اللغات**: ﴿قدم﴾ د سمع د باب ماضي ده: راتلل. ﴿يغدو﴾ د نصر د باب مضارع ده: د سهار په وخت کي تلل یا راتلل یا بل کار کول. ﴿يروح﴾ مخکنۍ صیغه ده: د ماښام په وخت کي راتلل یا تلل، د کثرت استعمال په وجه دا دواړه بابونه د مطلق تګ راتګ لپاره هم استعمالیږي، هغه که په هر وخت

کي وي، ﴿السوقي﴾ بازار والا، بازاري، ﴿علف﴾ د څارويو خوړکه يعني وابښه، پروړ او داسي نور، ﴿دهن﴾ تېل، روغن، ﴿راتبة﴾ دائمي، ثابت، همېشني او ورځني (هغه ضرورت کوم چي هر وخت او هره ورځ پېښېږي)، او "راتب" مزدوري او تنخا هم ته وايي (کوم چي هره مياشت ورکول کېږي)، دلته اوله معنیٰ مراد ده.

**تشريح:** په دې عبارت کي بيان سوي مسئلې ټوله واضحه او څرګنده دي، خو د خلاصې په توګه تاسي دا په ياد ساتئ! چي د تاجرانو او کاروباري حضراتو په عرف او عادت کي او د هغوی د معاملاتو او ټولني په اعتبار سره چي په کومو ځايو او مواقعو کي د نفقې ضرورت پرېوځي، مضارب هم د شرعي دستور او ضرورت مطابق په هغه ځايو کي د نفقاتو مستحق کېږي، لېکن په هر حال کي به مضارب له اسراف او فضول خرچۍ څخه لازماً ځان ساتي، کنې د زائد او فضول خرچ کړي سوي مقدار ضمان (تاوان) پر هغه لازمېږي.

## د مضارب د خرچ کړل سوي مال بيان

قَالَ: وَإِذَا رَبِحَ فرمايي: او کله چي مضارب نفع [ګټه] وکړي أَخَذَ رَبُّ الْمَالِ مَا أَنْفَقَ مِنْ رَأْسِ الْمَالِ نو ربُ المال دي هغه مال واخلي کوم چي مضارب له رأسُ المال څخه خرچ کړی وي فَإِنْ بَاعَ الْمَتَاعَ مُرَابَحَةً او که چيري مضارب د بيع مرابحه په توګه سامان خرڅ کړی وي حَسَبَ مَا أَنْفَقَ عَلَى الْمَتَاعِ مِنَ الْحُمْلَانِ وَنَحْوِهِ نو مضارب دي هغه خرچه وشماري [يعني هغه مال او خرچه دي په اصل قيمت کي شامله کړي] کوم چي هغه پر سامان خرچ کړی وي لکه د بارولو [بار وړلو] خرچه او داسي نور وَلَا يَحْتَسِبُ مَا أَنْفَقَ عَلَىٰ نَفْسِهِ او هغه خرچه دي نه شماري کوم چي يې پر خپل ځان خرچ کړې وي لِأَنَّ الْعُرْفَ جَارٍ بِإِلْحَاقِ الْأَوَّلِ دُونَ الثَّانِي ځکه چي عرف د اول په لاحقولو [او شمارلو] سره جاري دی، نه د دويم [يعني عرف دا دی چي صرف د سامان خرچه په اصل قيمت کي شاملول کېږي او شمارل کېږي، نه د خپل ځان خرچه] وَلِأَنَّ الْأَوَّلَ يُوجِبُ زِيَادَةً فِي الْمَالِيَّةِ بِزِيَادَةِ الْقِيمَةِ او ځکه چي اول [اول الحاق] د قيمت زياتولو په حواله سره د ماليت زياتوب ثابتوي وَالثَّانِي لَا يُوجِبُهَا او دويم د ماليت زياتوب نه ثابتوي. [يعني په دويم الحاق سره د ماليت زياتوالی نه حاصلېږي].

**اللغات:** ﴿رَبِح﴾ د سمع ماضي ده: ګټه کول، نفع حاصلول، ﴿أنفق﴾ د افعال ماضي ده: خرچول، خرچ کول (صرفول)، ﴿رأس المال﴾ اصل مال، د شي هغه قيمت په کوم سره چي شی پروت وي

(مثلاً یو سامان په پنځوس درهمه رانیول سي او د هغه پر بارولو [نقل کولو] لس درهمه ورکول سي. نو د هغه سامان رأسُ المال [اصل قیمت] شپېته درهمه دي). ﴿حَسَبَ﴾ د نصر ماضي ده: شمارل (شمېرل). ﴿لا یحتسب﴾ د افتعال له بابه د نفي صیغه ده. د دې باب هم یوه معنیٰ د "شمارلو" ده (مصباح اللغات). ﴿مرابحة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: یو شی په خپل اصل قیمت (رأسُ المال) سره پر معلومه نفع خرڅول (مثلاً بائع مشتري ته ووايي چې دا سامان ما ته په شپېته درهمه پروت دی [یعني د دغه سامان اصل قیمت شپېته درهمه دی] او پر هغه زه نور لس درهمه نفع اخچوم او په اویا درهمه يې درکوم). ﴿حُملان﴾ د بارولو او له یوه ځای څخه بل ځای ته د نقل کولو اُجرت او مزدوري. ﴿إلحاق﴾ د افعال مصدر دی: ور سره یو ځای کول، شاملول. ﴿المالية﴾ مال والی، قیمتي حیثیت، مال. ﴿قیمة﴾ نرخ، د شي بازاري قیمت. رېټ.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې کله مضارب په مالِ مضاربت سره نفع (ګټه) وکړي، نو مالک یعني ربُ المال دي تر ټولو مخکې له نفعې څخه هغومره مال جلا کړي کوم چې مضارب له رأسُ المال څخه په خپل نفقه او ضروریاتو کې خرچ کړی وي او ربُ المال دې هغه په خپل رأسُ المال کې شامل کړي، د دې لپاره چې اصل سرمایه پوره سي او بیا چې کومه نفع پاته سي هغه دې په خپل مېنځ کې تقسیم کړي؛ ځکه چې د رأسُ المال له پوره کولو څخه مخکې نفع تقسیمول صحیح نه دي.

فإن باع إلخ: او کله چې مضارب د مرابحې په توګه د مضاربت مال (سامان) خرڅول غواړي، نو د هغه مال پر وړلو او نقل کولو چې څومره خرچه سوې وي، هغه خرچه به د مال د اصل قیمت سره یو ځای کول کیږي او داسي به ویل کیږي چې دا مال (سامان) ما ته په دومره قیمت پروت دی (یا مثلاً د مضاربت مال [سامان] کپړه وي، او مضارب هغه په بل چا [دُوبي] پرېولې وي یا په رنګریز یې رنګولې وي، نو د هغه د اُجرت خرچه به هم په اصل قیمت [رأسُ المال] کې شاملوي او هغه ټوله به د کپړې قیمت ګرځوي)، او مضارب چې کوم څه پر ځان خرچ کړي وي، هغه به د اصل قیمت سره نه یو ځای کوي (یعني خپل ذاتي خرچه به د اصل قیمت سره نه جمع کوي)، ځکه عُرف او رواج همدا دی چې کوم څه پر سامان (کپړه او داسي نورو) خرچ کړی سي هغه د اصل قیمت سره یو ځای کول کیږي، لېکن خپل ذاتي خرچه د هغه سره نه یو ځای کول کیږي. همدارنګه په دې وجه هم چې د اصل قیمت سره د سامان د خرچې په یو ځای کولو سره د سامان مالیت او قیمت اضافه کیږي، لېکن د هغه سره د ذاتي خرچې په یو ځای کولو سره دا اضافه نه حاصلیږي.

## د مالِ مضاربت اضافي خرڅې (اخراجات)

قَالَ: فَإِنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفٌ فرمايي: او كه چيري د مضارب سره زر درهمه وي فَاشْتَرَى بِهَا ثِيَابًا فَقَصَّرَهَا أَوْحَمَلَهَا بِمِائَةٍ مِنْ عِنْدِهِ او مضارب په هغه زر درهمو سره كپړې رانيسي بيا مضارب د خپل ځان په سلو درهمو سره هغه كپړې [په بل چا (دوبي)] پرېولي يا هغوى [پرېو ښاروي] را بار كړي وَقَدْ قِيلَ لَهُ: اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ حال دا چي مضارب ته [د ربُ المال له طرفه] ويل سوي وي: چي ته په خپله رايه [رضا] سره عمل كوه! [يعني څنګه چي ستا خوښه وي هغسي كوه!] فَهُوَمُتَطَوِّعٌ نو مضارب [د هغه سل درهمو په خرڅولو كي] متبرّع دى لِأَنَّهُ اِسْتِدَانَةٌ عَلَى رَبِّ الْمَالِ ځكه چي دا پر ربُ المال قرض اخيستل دي فَلَا يَنْتَظِمُهُ هَذَا الْمَقَالُ نو ځكه د ربُ المال دا قول "اعمل برأيك" به دغه فعل لره نه شامليږي عَلَى مَا مَرَّ لكه مخكي چي تېر سوه وَإِنْ صَبَغَهَا أَحْمَرَ او كه مضارب هغه كپړې په سور رنګ سره ورنګوي [يعني سور رنګ وركړي] فَهُوَشَرِيكٌ بِمَا زَادَ الصَّبْغُ فِيهَا وَلَا يَضْمَنُ نو په رنګولو سره چي په قيمت كي څومره اضافه راسي په هغه مقدار كي مضارب د ربُ المال شريک كيږي لِأَنَّهُ عَيْنُ مَالٍ قَائِمٍ بِهِ ځكه چي رنګ داسي عَين مالی دی كوم چي په كپړه سره قائم [موجود] دی حَتَّى إِذَا بِيعَ تر دې چي كله رنګول سوې كپړه خرڅ كړی سي كَانَ لَهُ حِصَّةُ الصَّبْغِ نو د مضارب لپاره به د رنګ حصه وي [يعني هغه ته به د خپل رنګولو حصه او ثمن وركول كيږي] وَحِصَّةُ الثَّوْبِ الْأَبْيَضِ عَلَى الْمُضَارَبَةِ او د سپيني كپړې [د ثمن] حصه به پر مضاربت وي بِخِلَافِ الْقِصَارَةِ وَالْحَمْلِ په خلاف [په دوبي] سره د پرېوللو او بارولو لِأَنَّهُ لَيْسَ بِعَيْنِ مَالٍ قَائِمٍ بِهِ ځكه چي هغه داسي شی نه دي كوم چي په كپړه سره قائم وي وَلِهَذَا إِذَا فَعَلَهُ الْغَاصِبُ همدا وجه ده كه غاصب داسي كار وكړي ضَاعَ نو د هغه عمل ضايع كيږي وَلَا يَضِيعُ إِذَا صَبَغَ الْمَغْصُوبَ [ليكن] كله چي غاصب و غصب كړی سوي كپړې ته رنګ

ورکړي نو عمل نه ضايع کيږي وَإِذَا صَارَ شَرِيكًا بِالصَّبْغِ لهذا کله چې د رنګولو په وجه مضارب د ربُ المال شريک سو اِنْتَظَمَهُ قَوْلُهُ: اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ انْتِظَامَهُ الْخَلْطَ نو د ربُ المال دا قول "اعمل بر أيك" به هم داسي هغه [يعني رنګولو] لره شامليږي لکه څرنګه چې دا قول [د بل چا په مال يا په خپل مال کې د مالِ مضاربت] ګډولو لره شامليږي فَلَا يَضْمَنُهُ نو ځکه مضارب به [د رنګولو په وجه] د کپړې نه ضامن کيږي.

**اللغات**: ﴿قَصَّرَ﴾ د تفعيل د باب ماضي ده، د دې باب څو معناوي دي، کله چې د کپړې او جامې سره ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: جامه (کالي) پرېولل او د پرېوللو پر مهال ټکول او سپينول چې پخوا به دوبيانو همداسي کالي پرېولل، او اَلْقَصَارَة د همدې باب مصدر دی: کالي پرېولل، او القِصَارة (بکسر القاف): د دوبي پېشه. ﴿حمل﴾ د ضرب ماضي ده: بارول، بار وړل، يعني پورته کول او له يوه ځايه بل ځای ته وړل، ﴿استدانة﴾ د استفعال مصدر دی: قرض اخيستل، پور غوښتل، ﴿صَبَغَ﴾ د فتح او نصر د باب ماضي ده، صَبَغَ يَصْبَغُ (او يَصْبُغُ) صَبْغًا: رنګول، رنګ ورکول، ﴿الأبيض﴾ سپينه چې له رنګ څخه پاکه وي، نا رنګول سوې (نا رنګېدلې) کپړه، ﴿الخلط﴾ د ضرب د باب مصدر دی: سره ګډول، سره يو ځای کول.

**تشريح**: په دې عبارت کې دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که د مضارب سره د مضاربت مال مثلاً زر درهمه موجود وي او مضارب په هغه سره د کپړې يو څو تانونه رانيسي او بيا مضارب هغه تانونه يو دوبي ته د پرېوللو لپاره ورکړي او هغه يې پرېولي يا مضارب هغه تانونه له يوه ځايه بل ځای ته نقل کړي او په دې کار کې سل درهمه خرچ سي او ربُ المال د مضاربت په شروع کې مضارب ته داسي ويلي وي "اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ"، نو د دغه سل درهمو په خرچولو کې هغه متبرع يعني د ربُ المال سره احسان کونکی دی، نو ځکه مضارب به دا له ربُ المال څخه نه اخلي؛ ځکه چې دا سل درهمه له رأسُ المال څخه زائد دي او پر ربُ المال يو ډول قرض دی، حالانکې په "اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ" کې قرض اخيستل (استدانت) نه داخليږي لکه مخکې چې ذکر سوه، نو

ځکه دا کار به د مضارب له طرفه تبرّع (احسان) وي او مضارب ته به دا حق او اختيار نه وي چي هغه له ربُ المال څخه واخلي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چي که مضارب په زر درهمه د کپړې تانونه رانيسي او هغه ته سور رنګ ورکړي، نو د دې رنګ ورکولو په وجه چي د هغوی په قيمت کي څومره اضافه راسي، هغه اضافي مقدار د ربُ المال او مضارب په مينځ کي مشترک ګرځي او د دې فعل (رنګولو) په وجه مضارب نه ضامن کيږي؛ ځکه چي هغه داسي کار کړی دی او داسي شی يې استعمال کړی دی کوم چي په کپړه سره قائم او موجود دی او په دې صورت حال کي د ربُ المال قول "اِعْمَلْ بِرَأْيِكَ" دغه فعل (رنګولو) لره هم شامليږي لکه څرنګه چي د هغه دا قول د مضارب د خلط فعل لره شامليږي يعني چي مضارب خپل مال يا د بل چا مال په مالِ مضاربت ګډ کړي، لهذا کله چي د ربُ المال قول رنګولو لره هم شامليږي نو ځکه به مضارب له ضمان څخه بري کيږي؛ ځکه دا داسي ده لکه مضارب چي د ربُ المال په حکم سره دا کار کړی وي، او تاسي ته معلومه ده چي کوم کار د ربُ المال په حکم سره وسي، هغه د ضمان مُوجب نه ګرځي. او څرنګه چي رنګ داسي شی دی کوم چي په کپړه سره قائم او موجود دی، نو په همدې وجه که د مضاوب رنګول سوې کپړه خرڅه کړی سي، نو مضارب ته به د رنګ د حصې ثمن ورکول کيږي او د سپينې (نارنګول سوې) کپړې د ثمن حصه به پر مضاربت وي، مثلاً که د نا رنګول سوې کپړې قيمت زر درهمه وي او له رنګولو څخه وروسته د هغې قيمت دوولس سوه درهمه سي، نو زر درهمه به پر مضاربت پاتيږي او دوه سوه درهمه به د مضارب د مال يعني د هغه د رنګ عوض او قيمت وي، دا حکم خو د رنګولو دی، لېکن په دوبي سره د پرېوللو يا نقل کولو (بارولو) حکم د هغه په خلاف دی؛ ځکه چي له دې کارو څخه يو هم موجود پاتېدونکی شی نه دی. همدا وجه ده که يو غاصب د کپړې تانونه غصب کړي او بيا هغه په يو دوبي سره پرېولي يا يې بل ځای ته نقل کړي، نو د هغه اُجرت نه لازميږي، لېکن که غاصب هغوی ته رنګ ورکړي، نو په دې صورت کي به هغه ته د رنګ عوض او قيمت ورکول کيږي.



# فَصْلٌ اٰخَرُ

## (فِیْ بَیَانِ الْمَسَائِلِ الْمُتَفَرِّقَةِ الْمُتَعَلِّقَةِ بِالْمُضَارَبَةِ)

(دا) بل فصل دی (د مضاربت سره د اړوند بېلا بېلو مسئلو په بیان کې)

### په مضاربت کې د نقصان يو صورت

قَالَ: فَإِنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفٌ بِالنِّصْفِ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي] فرمايي: که چيري د مضارب سره زر درهمه وي د نيمي نفعي پر شرط فَاشْتَرٰى بِهَا بَزًّا بيا مضارب په هغه سره پمبيزه کپړې رانيسي فَبَاعَهُ بِأَلْفَيْنِ او هغه په دوه زر درهمه خرڅي کړي ثُمَّ اشْتَرٰى بِالْأَلْفَيْنِ عَبْدًا بيا په دوه زره درهمه يو غلام رانيسي فَلَمْ يَنْقُدْهُمَا حَتّٰى ضَاعَا لېکن دوه زر درهمه [د غلام بائع ته] ور نه کړي تر دې چي هغه ضايع سي [يعني د غلام مالک ته له ورکولو څخه مخکي هغه دوه زره درهمه ضايع سي] يَغْرَمُ رَبُّ الْمَالِ أَلْفًا وَخَمْسَمِائَةٍ وَالْمُضَارِبُ خَمْسَمِائَةٍ نو [په دې صورت کې] رب المال د يو نيم زر درهمو ضامن کيږي او مضارب د پنځه سوه درهمو ضامن کيږي وَيَكُوْنُ رُبْعُ الْعَبْدِ لِلْمُضَارِبِ وَثَلَاثَةُ أَرْبَاعِهِ عَلَى الْمُضَارَبَةِ او د غلام يوه ربع [څلورمه حصه] به د مضارب وي او د هغه درې ربعي به پر مضاربت وي

قَالَ: هٰذَا الَّذِیْ ذَكَرَهُ حَاصِلُ الْجَوَابِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: دغه کوم څه چي امام محمد رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي هغه د جواب خلاصه ده لِأَنَّ الثَّمَنَ كُلَّهُ عَلَى الْمُضَارِبِ ځکه چي [په حقيقت کې] ټوله ثمن پر مضارب لازم دي إِذْ هُوَ الْعَاقِدُ ځکه صرف هغه عقد کونکی دی إِلَّا أَنَّ لَهُ حَقَّ الرُّجُوْعِ عَلٰى رَبِّ الْمَالِ بِأَلْفٍ وَخَمْسِمِائَةٍ لېکن هغه ته پر ربُ المال په يو نيم زر درهمو سره د رجوع کولو اختيار ستهء [په بله وينا: مګر هغه ته له ربُ المال څخه د يو نيم زر درهمو د اخيستلو حق سته] عَلٰى مَا نُبَيِّنُ لکه څرنګه چي دا به موږ بيان کړو فَيَكُوْنُ عَلَيْهِ فِي الْآخِرَةِ نو په آخر کې به دا ثمن [يعني يو نيم زر درهمه] صرف پر ربُ المال واجب وي وَوَجْهُهُ أَنَّهُ لَمَّا نَضَّ الْمَالُ او د دې دليل دا دی چي کله مال

نقد سو ظَهَرَ الرِّبْحُ نو نفع ښکاره سوه وَهُوَ خَمْسُمِائَةٍ او هغه پنځه سوه درهمه دي فَإِذَا اشْتَرَى بِالْأَلْفَيْنِ عَبْدًا بيا چي کله مضارب په دوه زره درهمه غلام رانيوی صَارَ مُشْتَرِيًا رُبُعَهُ لِنَفْسِهِ وَثَلَاثَةَ أَرْبَاعِهِ لِلْمُضَارَبَةِ نو هغه د خپل ځان لپاره د غلام د يوې ربعي او د مضاربت لپاره د غلام د دريو ربعو رانيونکی سو عَلَى حَسَبِ انْقِسَامِ الْأَلْفَيْنِ د دوه زره درهمو د تقسيمېدلو مطابق وَإِذَا ضَاعَتِ الْأَلْفَانِ او کله چي دوه زره درهمه ضاع سول وَجَبَ عَلَيْهِ الثَّمَنُ نو پر هغه ثمن واجب سو لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَلَهُ الرُّجُوعُ بِثَلَاثَةِ أَرْبَاعِ الثَّمَنِ عَلَى رَبِّ الْمَالِ او هغه ته پر ربُ المال د ثمن په دريو ربعو سره د رجوع کولو حق سته لِأَنَّهُ وَكِيلٌ مِنْ جِهَتِهِ فِيهِ ځکه چي هغه په دې کي د ربُ المال له طرفه وکيل دی وَيَخْرُجُ نَصِيبُ الْمُضَارِبِ وَهُوَ الرُّبُعُ مِنَ الْمُضَارَبَةِ او د مضارب حصه يعني ربع [څلورمه حصه] به له مضاربت څخه وځي لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ ځکه چي دا حصه پر هغه مضمونه ده [يعني د دې ضمان (تاوان) پر هغه لازم دی] وَمَالُ الْمُضَارَبَةِ أَمَانَةٌ حال دا چي مالِ مضاربت امانت دی وَبَيْنَهُمَا مُنَافَاةٌ او په مضمون او امانت مال کي منافات دی وَيَبْقَى ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِ الْعَبْدِ عَلَى الْمُضَارَبَةِ او د غلام درې ربعي به پر مضاربت پاتېږي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ مَا يُنَافِي الْمُضَارَبَةَ ځکه چي په دې کي [يعني پر مضاربت د هغوی په پاتېدلو کي] داسي شی نسته کوم چي د مضاربت منافي وي وَيَكُونُ رَأْسُ الْمَالِ أَلْفَيْنِ وَخَمْسَمِائَةٍ او اوس به رأسُ المال دوه نيم زر درهمه وي لِأَنَّهُ دَفَعَ مَرَّةً أَلْفًا وَمَرَّةً أَلْفًا وَخَمْسَمِائَةٍ ځکه چي ربُ المال يو ځل زر درهمه ورکړه او يو ځل يې يو نيم زر درهمه ورکړه وَلَا يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً إِلَّا عَلَى أَلْفَيْنِ او مضارب به پر دوه زره درهمه هغه د مرابحې په توګه خرڅوي [يعني که مضارب پر دې غلام ګټه کوي او د هغه پر قيمت نفع اچوي، نو پر دوه زره درهمو به نفع اچوي، نه له دې څخه پر زيات مقدار] لِأَنَّهُ اشْتَرَاهُ بِأَلْفَيْنِ ځکه چي هغه دا غلام په دوه زر درهمه رانيولی دی وَيَظْهَرُ ذَلِكَ فِيمَا إِذَا بِيعَ الْعَبْدُ بِأَرْبَعَةِ آلَافٍ او د دې [مذکوره ټوله بيان] فايده هغه وخت ښکاره کيږي کله چي دا غلام په څلور زره درهمه خرڅ کړی سي فَحِصَّةُ الْمُضَارَبَةِ ثَلَاثَةُ آلَافٍ يَرْفَعُ رَأْسَ الْمَالِ وَيَبْقَى خَمْسُمِائَةٍ رِبْحٌ بَيْنَهُمَا نو د مضاربت حصه به درې زر درهمه وي چي له هغه څخه به د رأسُ

المال حصه [دوه نیم زره درهمه] ایستل کیږي او ما بقي پنځه سوه درهمه به د دوی په مینځ کې نفع پاتیږي [یعني پنځه سوه درهمه به د نفعې وي چې هغه به د دوی په مینځ کې مشترک وي].

**اللغات:** ﴿البَزّ﴾ (بفتح الباء)، د دې لفظ څو معناوې دي چې له هغه څخه یوه معنیٰ ده: له پمبې څخه جوړې سوي کپړې (کاټن کپړې)، ﴿ینقد﴾ د نصر د باب مضارع ده: نغد اداء کول. ورکول. ﴿یغرم﴾ د سمع د باب مضارع ده: ضامن کېدل، ضمان (تاوان) پر لازمېدل، ﴿أرباع﴾ جمع د رُبع ده: څلورمه حصه، یو شی چې څلور حصې کړل سي، نو د هغه هرې حصې ته "ربع" وایي؛ ځکه چې هره حصه یې د شي څلورمه حصه کیږي، ثلاثة أرباع: درې څلورمې حصې (د هغه شي درې حصې کوم چې څلور حصې وګرځول سي)، ﴿منافاة﴾ تضاد، اختلاف، ﴿مرابحة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په اصل قیمت (رأسُ المال) سره یو شی پر معلومه نفع خرڅول (مثلا بائع مشتري ته ووایي چې دا غلام ما ته په دوه زر درهمه ولاړ دی او پر هغه زه دوه سوه درهمه نفع اچوم او په دوه ویشت سوه درهمه یې درکوم [په مرابحه کې دا ضروري ده چې بائع به مشتري د شي په اصل قیمت او نفعې دواړو خبروي چې د شي اصل قیمت دومره دی او نفع دومره پر اچوم]).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که ربُ المال د نصف نفعې پر شرط مضارب ته زر درهمه ورکړي (چې نفع به زما او ستا په مینځ کې نصف، نصف وي) او مضارب په هغه سره د کپړې تانونه رانیسي او بیا هغه تانونه په دوه زره درهمه خرڅ کړي، نو زر درهمه نفع حاصله سوه چې له هغه څخه پنځه سوه د مضارب دي او پنځه سوه د ربُ المال دي، لېکن بیا له تقسیم څخه مخکې مضارب په هغه دوه زره درهمه له یو چا (مالک) څخه غلام رانیسي او مالک ته له ثمن ورکولو څخه مخکې هغه دوه زره درهمه ضایع سي، نو په دې صورت کې ربُ المال د مالک لپاره دیو نیم زر درهمو ضامن کیږي او مضارب د پنځه سوه درهمو ضامن کیږي (په لنډه توګه دا چې یو نیم زر به ربُ المال د غلام مالک ته ورکوي او پنځه سوه به مضارب ورکوي)؛ ځکه چې له رانیول سوي غلام څخه یوه ربع (یوه حصه) مضارب د خپل ځان لپاره اخیستې ده او ما بقي درې ربعې هغه د مضاربت لپاره اخیستې دي، او څرنګه چې پر هغه خپله حصه مضمونه ده (یعني د خپلې حصې ضمان پر لازم دی)؛ ځکه چې نفع د هغه په ملکیت کې راغلې ده (او مخکې ضمناً ذکر سوه چې پر مضارب هغه وخت د ضیاع او هلاکت ضمان لازمیږي کله چې هغه ته نفع حاصله سي [یعني په ملکیت کې یې نفع راسي]، ځکه د هغه حق او ملکیت صرف په نفع کې دی او مال مضاربت د هغه په قبضه کې امانت وي. او دلته هغه ته نفع حاصله سوې ده)، لهذا په دې مضاربت کې د هغه خپله حصه د ضمانت په توګه ده حالانکې د مضلوبت والا حصه د امانت په توګه ده، او په امانت او ضمانت کې ښکاره منافات دی، نو ځکه به دواړه نه جمع کیږي او د مضارب حصه یعني د غلام یوه ربع به د

مضارب لپاره خالص ګرځي او درې حصې به پر مضاربت وي. او کوم چي رأسُ المال دی، د هغه مقدار به دوه نیم زر درهمه وي؛ ځکه چي ربُ المال اول مضارب ته زر درهمه ورکړي دي او بيا يې د غلام د ضايع کېدلو په ضمان کي يو نيم زر درهمه اداء کړي دي. خو بيا هم په دې صورت کي د مضارب لپاره له دوه زره درهمو څخه پر زائد مقدار د مرابحې په توګه د دې غلام خرڅول صحيح نه دي؛ ځکه چي هغه په همدې دوه زر درهمه دا غلام رانيولی دی. ها! که چيري دا غلام په څلور زر درهمه خرڅ کړی سي، نو له هغه څخه به زر درهمه د مضارب وي او ما بقي درې زره درهمه به د مضاربت وي چي له هغه څخه به دوه نيم زره درهمه د رأسُ المال ايستل کيږي او ما بقي پنځه سوه درهمه به د ربُ المال او مضارب دواړو په مينځ کي مشترک وي. (احسن الهدايه)

## د مضاربت کي د مرابحه يو صورت

قَالَ: وَإِنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفٌ فرمايي: او که چيري د مضارب سره زر درهمه وي فَاشْتَرَى رَبُّ الْمَالِ عَبْدًا بِخَمْسِمِائَةٍ وَبَاعَهُ إِيَّاهُ بِأَلْفٍ بيا ربُ المال [له بل څخه] يو غلام رانيسي او پر مضارب هغه په زر درهمه خرڅ کړي فَإِنَّهُ يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً عَلَى خَمْسِمِائَةٍ نو مضارب به پر پنځه سوه درهمه هغه د مرابحې په توګه خرڅوي [يعني که مضارب هغه مرابحتاً خرڅول غواړي، نو پر پنځه سوه درهمه به ربح (نفع) اچوي] لِأَنَّ هَذَا الْبَيْعَ مَقْضِيٌّ بِجَوَازِهِ لِتَغَايُرِ الْمَقَاصِدِ دَفْعًا لِلْحَاجَةِ ځکه چي د حاجت دفع کولو په خاطر د مقاصدو مختلف کېدلو په وجه دا بيع جائز ګرځول سوې ده وَإِنْ كَانَ بَيْعَ مِلْكِهِ بِمِلْكِهِ که څه هم دا د خپل ملکيت په عوض کي د خپل ملکيت خرڅول دي [يعني که څه هم په دې بيع کي د ربُ المال ملکيت د هغه د ملکيت په عوض کي خرڅ کړی سوی دی] إِلَّا أَنَّ فِيهِ شُبْهَةَ الْعَدَمِ لېکن په دې کي د عدمِ جواز شبهه سته وَمَبْنَى الْمُرَابَحَةِ عَلَى الْأَمَانَةِ وَالِاحْتِرَازِ عَنْ شُبْهَةِ الْخِيَانَةِ حال دا چي د مرابحې مدار پر امانت او د خيانت له شبهې څخه پر بچ کېدلو دی فَاعْتُبِرَ أَقَلُّ الثَّمَنَيْنِ نو ځکه [په مرابحه کي] به د کمتر ثمن اعتبار کيږي وَلَوِ اشْتَرَى الْمُضَارِبُ عَبْدًا بِأَلْفٍ وَبَاعَهُ مِنْ رَبِّ الْمَالِ بِأَلْفٍ وَمِائَتَيْنِ او که چيري مضارب د زر درهمو په عوض کي يو غلام رانيسي او پر ربُ المال هغه په دوولس سوه درهمه خرڅ کړي بَاعَهُ مُرَابَحَةً بِأَلْفٍ وَمِائَةٍ نو ربُ المال به مرابحتاً هغه په يوولس سوه درهمه خرڅوي لِأَنَّهُ اعْتُبِرَ عَدَمًا فِي حَقِّ نِصْفِ الرِّبْحِ وَهُوَ نَصِيبُ رَبِّ الْمَالِ ځکه چي دا بيع د نصف نفعي په

حق کي (کوم چي د ربُ المال حصه ده) کالعدم شمارل سوې ده وَقَدْ مَرَّ فِي الْبُيُوعِ او دا بيان په کتاب البيوع کي تېر سوی دی قَالَ: فَإِنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفٌ بِالنِّصْفِ فرمايي: که چيري د مضارب سره د نصف نفعي پر شرط زر درهمه وي فَاشْتَرَى بِهَا عَبْدًا قِيمَتُهُ أَلْفَانِ بيا مضارب په هغه داسي غلام رانيسي چي د هغه قيمت دوه زره درهمه وي فَقَتَلَ الْعَبْدُ رَجُلًا خَطَأً بيا هغه غلام خطاءً يو سړی قتل کړي فَثَلَاثَةُ أَرْبَاعِ الْفِدَاءِ عَلَى رَبِّ الْمَالِ وَرُبُعُهُ عَلَى الْمُضَارِبِ نو د فديې درې ربعي پر ربُ المال دي او د هغه يوه ربع پر مضارب ده لِأَنَّ الْفِدَاءَ مُؤْنَةُ الْمِلْكِ ځکه چي فديه د ملکيت [پاتېدلو] خرچه ده فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الْمِلْكِ نو ځکه هغه به د ملکيت په اندازه ټاکل کيږي وَقَدْ كَانَ الْمِلْكُ بَيْنَهُمَا أَرْبَاعًا او دا ملکيت د مضارب او ربُ المال په مينځ کي د څلورو حصو په حساب سره دی [يعني دا ملکيت څلور حصې گرځول سوی دی چي په هغه کي درې حصې (درې رُبعي) د مضارب دي او يوه حصه د مضارب ده. نو ځکه ضمان (فديه) به هم په دغه حساب سره پر هغو لازم وي] لِأَنَّهُ لَمَّا صَارَ الْمَالُ عَيْنًا وَاحِدًا قِيمَتُهُ أَلْفَانِ ځکه کله چي مال داسي عَين شی وگرځېدی چي د هغه قيمت دوه زره درهمه دي ظَهَرَ الرِّبْحُ نو نفع ښکاره سوه وَهُوَ أَلْفٌ بَيْنَهُمَا وَأَلْفٌ لِرَبِّ الْمَالِ بِرَأْسِ مَالِهِ او هغه زر درهمه [د نفعي په توگه] په دواړو کي مشترک دي او زر درهمه د ربُ المال لپاره د خپل رأسُ المال په بدله کي دي لِأَنَّ قِيمَتَهُ أَلْفَانِ ځکه چي د هغه [يعني د رانيول سوي غلام] قيمت دوه زر درهمه دي وَإِذَا فَدَيَا او کله چي دوی دواړه فديه ورکړي خَرَجَ الْعَبْدُ عَنِ الْمُضَارَبَةِ نو غلام له مضاربت څخه وځي أَمَّا نَصِيبُ الْمُضَارِبِ فَلِمَا بَيَّنَّاهُ کوم چي د مضارب حصه ده نو د هغه دليل په وجه چي هغه موږ بيان کړی وَأَمَّا نَصِيبُ رَبِّ الْمَالِ فَلِقَضَاءِ الْقَاضِي بِانْقِسَامِ الْفِدَاءِ عَلَيْهِمَا او کوم چي د ربُ المال حصه ده نو هغه په دې وجه [خارجيږي] چي قاضي پر دوی دواړو د فديې د تقسيم فيصله کړې ده لِمَا أَنَّهُ يَتَضَمَّنُ قِسْمَةَ الْعَبْدِ بَيْنَهُمَا ځکه چي دا فيصله د دوی دواړو په مينځ کي د غلام تقسيم لره شامله ده وَالْمُضَارَبَةُ تَنْتَهِي بِالْقِسْمَةِ او په تقسيم سره مضاربت پای ته رسيږي بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه صورت کوم چي مخکي تېر سو [يعني په خلاف د مخکنۍ مسئلې] لِأَنَّ جَمِيعَ الثَّمَنِ فِيهِ عَلَى

... وَإِنْ كَانَ لَهُ حَقُّ الرُّجُوعِ ځکه چې په هغه کې تول ثمن پر مضارب لازم دی، که څه هم هغه ته [پر ربُ المال] د رجوع کولو اختیار سته [یعني که څه هم مضارب ته له ربُ المال څخه د واپس اخیستلو حق سته] فَلَا حَاجَةَ إِلَى الْقِسْمَةِ لهذا تقسیم ته ضرورت نسته وَلِأَنَّ الْعَبْدَ كَالزَّائِلِ عَنْ مِلْكِهِمَا بِالْجِنَايَةِ او ځکه چې د جرم کولو په وجه دا غلام ګواکې د دوی له ملکیت څخه زائل سوی دی وَدَفْعُ الْفِدَاءِ كَابْتِدَاءِ الشِّرَاءِ او فدیه ورکول د ابتدائي رانیولو په څېر دي فَيَكُونُ الْعَبْدُ بَيْنَهُمَا أَرْبَاعًا لَا عَلَى الْمُضَارَبَةِ نو ځکه غلام به د دوی په مینځ کې د څلورو حصو په حساب سره مشترک وي، نه د مضاربت په توګه يَخْدُمُ الْمُضَارِبَ يَوْمًا وَرَبَّ الْمَالِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ لهذا دا غلام به یوه ورځ د مضارب خدمت کوي او درې ورځې به د ربُ المال خدمت کوي بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه صورت کوم چې مخکې تېر سو.

**اللغات**: ﴿مَقضيّ﴾ د ضرب اسم مفعول دی: فیصله کړی سوی، ﴿تَغایُر﴾ د تفاعل مصدر دی: مختلف کېدل، متضاد کېدل، ﴿مرابحة﴾ د تېر عبارت په لغاتو کې د دې تعریف ذکر سو، ﴿احتراز﴾ د افتعال مصدر دی: بچ کېدل، ځان ساتل، پرېز کول، ﴿الفداء﴾ فدیه، ټاکلی مقدار کوم چې (د غلام) د ځان ژغورني لپاره ورکول کیږي، ﴿مؤنة﴾ لګښت، خرچه (صرفه)، مشقت، بار، د یو شي د بقاء (پاتېدلو) سبب او خرچې ته مؤنت ویل کیږي، لکه څرنګه چې نفقې ته هم مؤنت ویل کیږي چې هغه د ښځې د بقاء او پاتېدلو سبب او خرچه ده، همدارنګه دلته فدیه هم د ربُ المال او مضارب د ملکیت پاتېدلو سبب او خرچه ده چې که دوی د غلام د قتل فدیه نه ورکړي نو هغه د دوی له ملکیته وځي، او که یې ورکړي، نو بیا هغه د دوی غلام پاتیږي، ﴿یتقدّر﴾ د تفعّل مضارع ده: اندازه کېدل، مقدار ټاکل کېدل، مُتعیّن کېدل، ﴿الزائل﴾ د نصر د باب اسم فاعل دی: لیرې سوی، ختم سوی.

**تشریح**: په دې عبارت کې درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که مضارب ربُ المال ته زر درهمه د مضاربت لپاره ورکړي، بیا ربُ المال له یو بل سړي څخه په پنځه سوه درهمه یو غلام رانیسي او پر مضارب یې په زر درهمه خرڅ کړي، نو دا بیع جائز ده که څه هم په دې کې د عدم جائز (نه جائز کېدلو) شبهه سته په دې توګه چې مضارب د ربُ المال وکیل دی او دا بیع په حقیقت کې د خپل ملکیت خرڅول او اخیستل دي؛ ځکه ربُ المال چې مضارب ته کوم غلام ورکړی دی هغه هم د ربُ المال خپل ملکیت دی او مضارب چې هغه ته کوم ثمن ورکوي

هغه هم د ربُ المال ملكيت دی. نو ځكه په دې حواله سره دا بيع صحيح كېدل پكار نه دي. لېكن ځرنګه چي دلته مونږ مضارب د ربُ المال په حق كي اجنبي ګرځولی دی (لكه مخكي چي ذكر سوه) او بل دا چي د ربُ المال مقصد د مال يعني د أَلف (زرو درهمو) حاصلول دي او د مضارب مقصد پر هغه غلام قبضه كول دي، نو ځكه د مقاصدو د اختلاف او حاجت دفع كولو په خاطر مونږ دا بيع جائز او صحيح ګرځولې ده. او اوس كه چيري مضارب دا غلام د مرابحې په توګه خرڅول غواړي. نو پر پنځه سوه درهمه به يې مرابحتا خرڅوي؛ ځكه چي دا مقدار له أَلف څخه كم دی او د عدمِ جواز له شبهې څخه خالي دي او د مرابحې مقصد همدا دی چي په هغه كي د امانتداری پوره خيال وساتل سي او له خيانت او د هغه له شبهې څخه ځان وساتل سي.

(۲)... كه چيري مضارب د مال مضاربت د زر درهمو په عوض كي يو غلام رانيسي او پر ربُ المال هغه غلام په دوولس سوه درهمه خرڅ كړي، اوس كه ربُ المال دا غلام د مرابحې په توګه خرڅول غواړي، نو په يوولس سوه درهمه به يې خرڅوي؛ ځكه كوم دوه سوه درهمه چي د نفعې دي، له هغه څخه نصف نفع يعني سل درهمه د ربُ المال دي او نصف نفع د مضارب ده، او نصف نفع كوم چي د ربُ المال حصه ده، د هغه په حق كي دا بيع كالعدم ده لكه په كتاب البيوع كي چي تېر سوه، نو ځكه له دوولس سوو درهمو څخه به سل درهمه ايستل كيږي او پر يوولس سوو درهمو به بيع مرابحه كيږي.

(۳)... كه د مضارب سره د نصف نفعې پر شرط زر درهمه وي او مضارب په هغه زر درهمو داسي غلام رانيسي چي د هغه قيمت دوه زره درهمه وي او بيا دا غلام خطاءً قتل وكړي، نو دده په فديه كي چي كوم مال وركول كيږي، د هغه درې ربعې (درې حصې) به ربُ المال وركوي او يوه ربع به مضارب وركوي، مثلاً كه فديه زر درهمه جوړيږي، نو له هغه څخه به اووه نيم سوه (۷۵۰) رب المال وركوي او دوه نيم سوه (۲۵۰) به مضارب وركوي؛ ځكه چي فديه د دوی د ملكيت پاتېدلو خرڅه او لګښت دی، او په دې غلام كي په همدې حساب سره د دوی ملكيت سته، نو ځكه د هغه فديه به هم په همدې حساب سره واجبيږي، ځكه چي د ربُ المال ټوله مال (يعني نفع او رأسُ المال ټوله) ۱۵۰۰ درهمه دي، او د مضارب په حصه كي صرف پنځه سوه نفع ده، نو ځكه فديه به هم پر هغه په همدې حساب سر واجب وي. او له فديه وركولو څخه وروسته مذكوره غلام له مضاربت څخه وځي؛ د مضاب حصه خو به په دې وجه وځي چي هغه پر مضارب مضمونه ده او د ربُ المال حصه په دې وجه وځي چي قاضي پر دوی فديه تقسيم كړې ده، او د فديې تقسيمول داسي دي لكه د غلام تقسيمول، او مخكي تاسو ته ذكر سوه چي په تقسيم سره مضاربت ختميږي، نو ځكه د دې وجوهاتو پر بناء به دلته مضاربت ساقطيږي.

د دې په خلاف په مخکنۍ مسئله کې يعني کله چې مال ضايع سي، نو پر ربُ المال او مضارب دواړو د غلام ضمان لازميږي، نو هلته مضاربت په دې وجه نه ساقطيږي بلکې باقي پاتيږي؛ ځکه چې هغه د تجارت ضمان دی او دا د جنايت (قتل) ضمان دی او په تجارت او ضمانت کې فرق دی. همدارنګه په مخکنۍ مسئله کې ټوله ضمان (د ثمن ضمان) پر مضارب واجبيږي که څه هم وروسته هغه له ربُ المال څخه د هغه د حصې ثمن واپس واخلي، لېکن بيا هم په دې اخيستلو او ورکولو وسوره تقسيم نه لازميږي، حالانکې په دغه مسئله کې تقسيم لازميږي، نو په دې وجه هم په دواړو مسئلو کې فرق دی.

ولأن العبد كالزائل عن إلخ: په دواړو مسئلو کې د فرق دويمه وجه دا ده چې د جنايت (قتل) کولو په وجه غلام د ربُ المال او مضارب له ملکيت څخه زائل سو، او کله چې دوی د هغه فديه ورکړه نو ګواکې دوی هغه له نوي سره رانيوی، نو ځکه دا رانيول به مضاربت نه وي، بلکې دا غلام به د دوی په مينځ کې ارباعاً يعني د څلورو حصو په اعتبار سره مشترک وي، او د دغه اشتراک په وجه به هغه يوه ورځ د مضارب خدمت کوي او درې ورځې به د ربُ المال خدمت کوي.

## د مالِ مضاربت هلاکېدلو حکم

قَالَ: وَإِنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفٌ فرمايي: او که چيري د مضارب سره زر درهمه وي فَاشْتَرَى بِهَا عَبْدًا بيا مضارب په هغه سره يو غلام رانيسي فَلَمْ يَنْقُدْهَا حَتَّى هَلَكَتْ لېکن مضارب [د غلام بائع ته] زر درهمه نه ورکړي تر دې چې هغه هلاک سي يَدْفَعُ رَبُّ الْمَالِ ذٰلِكَ الثَّمَنَ نو ربُ المال به هغه ثمن [زر درهمه] اداء کوي ثُمَّ وَثُمَّ بيا او بيا [يعني که تر دې وروسته بيا دا زر درهمه هلاک سي نو بيا به يې ربُ المال اداء کوي او که بيا هلاک سي نو بيا... إلى ما لا يتناهى] وَرَأْسُ الْمَالِ جَمِيعُ مَا يَدْفَعُ إِلَيْهِ رَبُّ الْمَالِ او رأسُ المال به هغه ټوله وي کوم چې يې ربُ المال مضارب ته ورکوي [يعني ربُ المال چې مضارب ته څومره مال ورکوي هغه به ټوله رأسُ المال وي] لِأَنَّ الْمَالَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ ځکه چې د مضارب په قبضه کې دا مال امانت وي وَالِاسْتِيفَاءُ إِنَّمَا يَكُونُ بِقَبْضٍ مَضْمُونٍ او اخيستل [حق ترلاسه کول] په ضمان والا قبضه سره کيږي [په بله وينا: او ضمان په هغه صورت کې اخيستل کيږي کله چې قبضه د ضمانت وي] وَحُكْمُ الْأَمَانَةِ يُنَافِيهِ او د امانت حکم د ضمانت خلاف دی فَيَرْجِعُ مَرَّةً بَعْدَ أُخْرَى نو ځکه له يوه ځل وروسته به بل ځل هم [پر ربُ المال] رجوع کوي [يعني له يوه وار وروسته به بل وار هم مضارب له ربُ المال څخه ثمن واپس اخلي] بِخِلَافِ الْوَكِيلِ بِالشِّرَاءِ إِذَا كَانَ الثَّمَنُ مَدْفُوعًا إِلَيْهِ قَبْلَ الشِّرَاءِ وَهَلَكَ بَعْدَ الشِّرَاءِ په خلاف [د يو شي] د رانيولو وکيل. کله چې تر رانيولو مخکې هغه ته ثمن ورکول سوی وي او تر رانيولو وروسته هغه ثمن هلاک سي حَيْثُ لَا يَرْجِعُ إِلَّا مَرَّةً نو هغه صرف يو ځل [پر موکل] رجوع کولای سي [يعني صرف يو ځل له موکل څخه ثمن اخيستلای سي] لِأَنَّهُ أَمْكَنَ جَعْلُهُ مُسْتَوْفِيًا ځکه چې وکيل مستوفي ګرځول ممکن دي

[صاحب د احسن الهدايه داسي ترجمه کړي ده: ځکه چي له وکيل څخه ضمان اخيستل ممکن دي] لِأَنَّ الْوَكَالَةَ تُجَامِعُ الضَّمَانَ ځکه وکالت د ضمان سره جمع کېدای سي كَالْغَاصِبِ إِذَا تَوَكَّلَ بِبَيْعِ الْمَغْصُوبِ لکه کله چي غاصب د غصب کړي سوي شي د خرڅولو وکيل جوړ سي ثُمَّ فِي الْوَكَالَةِ فِي هٰذِهِ الصُّورَةِ يَرْجِعُ مَرَّةً بيا د وکالت په دغه صورت کي وکيل [پر مؤکل] يو ځل رجوع کولای سي وَفِيمَا إِذَا اشْتَرَى ثُمَّ دَفَعَ الْمُوَكِّلُ إِلَيْهِ الْمَالَ فَهَلَكَ او په هغه صورت کي کله چي وکيل يو شی رانيسي بيا مؤکل هغه ته مال ورکړي او هغه مال هلاک سي لَا يَرْجِعُ نو رجوع نه سي کولای [يعني په دې صورت کي وکيل له مؤکل څخه دويم وار ثمن نه سي اخيستلای] لِأَنَّهُ ثَبَتَ لَهُ حَقُّ الرُّجُوعِ بِنَفْسِ الشِّرَاءِ ځکه چي محض په رانيولو سره د وکيل لپاره د رجوع حق حاصل سو فَجُعِلَ مُسْتَوْفِيًا بِالْقَبْضِ بَعْدَهُ نو تر رانيولو وروسته پر مال په قبضه کولو سره هغه د خپل حق اخيستونکی [حاصلونکی] وګرځېدی أَمَّا الْمَدْفُوعُ إِلَيْهِ قَبْلَ الشِّرَاءِ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ لېکن تر رانيولو مخکي ورکول سوی مال د وکيل په قبضه کي امانت وي وَهُوَ قَائِمٌ عَلَى الْأَمَانَةِ بَعْدَهُ او هغه تر رانيوو وروسته هم پر امانت قائم پاتېږي فَلَمْ يَصِرْ مُسْتَوْفِيًا نو ځکه [په دې صورت کي] هغه د خپل حق اخيستونکی [حاصلونکی] نه وګرځېدی فَإِذَا هَلَكَ او کله چي [يو ځل] ثمن هلاک سي رَجَعَ عَلَيْهِ مَرَّةً ثُمَّ لَا يَرْجِعُ نو وکيل به يو ځل پر مؤکل رجوع کوي بيا به رجوع نه پر کوي لِوُقُوعِ الْاِسْتِيفَاءِ ځکه چي د حق اخيستل واقع [او پوره] سوه عَلٰى مَا مَرَّ لکه مخکي چي تېر سو.

**اللغات:** ﴿لم ينقدها﴾ د نصر له بابه د جحد صيغه ده: نغد ورکول، اداء کول. ﴿الاستيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: (خپل حق) پوره اخيستل، ترلاسه کول، حاصلول. ﴿المدفوع﴾ د فتح له بابه د اسم مفعول صيغه ده: ورکول سوی.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که ربُ المال د مضاربت کولو لپاره مضارب ته زر درهمه ورکړي او مضارب په هغه سره يو غلام رانيسي، لېکن د غلام مالک ته له ورکولو څخه مخکي هغه زر درهمه د مضارب په قبضه کي هلاک او ضايع سي، نو اوس به مضارب له ربُ المال څخه هغومره ثمن (زر درهمه) اخلي، او که چيري د غلام مالک ته له ورکولو څخه مخکي دا زر درهمه بيا هلاک سي نو مضارب به دريم او څلورم وار بيا له ربُ المال څخه هغومره ثمن واخلي او دا سلسله به همداسي په لامتناهي توګه روانه وي، او ربُ المال چي څومره ثمن او مال هغه ته ورکوي، هغه ټول له رأسُ المال جوړېږي؛ او په دې صورت کي پر مضارب د ثمن ضمان په دې وجه نه لازمېږي، ځکه د مضارب

سره چي کوم مال وي. هغه د امانت په توګه وي، او له امين څخه ضمان نه اخيستل کيږي. نو ځکه په هر وار اخيستل سوي ثمن کي مضارب امين شمارل کيږي نو پر هغه به ضمان نه لازميږي؛ ځکه د مضارب چي پر اول ثمن کومه قبضه وي، هغه د امانت قبضه وي، اوس که په وروسته والا ثمن کي موږ پر هغه ضمان واجب کړو، نو د امانت او ضمانت اجتماع به لازم سي، حالانکي امانت او ضمانت دواړه نه سي سره جمع کېدای. د دې په خلاف که يو سړی بل څوک وکيل بالشراء (درانيولو) وکيل جوړ کړي او هغه ته له شراء (رانيولو) څخه مخکي څه مال ورکړي او بيا تر شراء وروسته او بائع ته له ورکولو څخه مخکي هغه مال "ثمن" ضايع سي، نو وکيل صرف يو ځل له مؤکل څخه د ثمن مال اخيستلای سي؛ ځکه چي وکيل تر شراء وروسته د هغه مال حقدار ګرځي، نو ځکه تر شراء وروسته به هغه ته يو ځل د رجوع (واپس اخيستلو) حق حاصليږي او په دويم ځل کي به وکيل ضامن ګرځي؛ ځکه چي د وکالت او ضمانت اجتماع ممکن ده، د دې مثال دا دی لکه يو سړی چي د بل چا (مثلا د خالد) پُسه غصب کړي نو دا غاصب سړی د مغصوب شي (پُسه) ضامن دی (يعني پر هغه د پُسه تاوان واجب دی)، اوس که چېري مالک (يعني خالد) همدا غاصب سړی د مغصوب شي (پُسه) د خرڅولو وکيل جوړ کړي، نو د دې غاصب لپاره وکيل جوړېدل او مغصوب شی خرڅول هم جائز دي، همداسي په پورتنۍ مسئله کي وکيل بالشراء د دويم ځل اخيستل سوي ثمن ضامن ګرځول (ضمان ځني اخيستل) ممکن دي، لهذا د دې وکيل په حق کي خير او ښېګڼه همدا ده چي تر يوه ځل ثمن ضايع کېدلو وروسته خپله دفاع ټينګه کړي او دويم ځل ثمن له ضايع کېدلو څخه وساتي.

ثم في الوكالة في هذه الصورة إلخ: فرمايي چي په مخکني صورت کي يو ځل خو وکيل له مؤکل څخه ثمن اخيستلای سي، لېکن که مؤکل هغه صرف وکيل بالشراء جوړ کړی وي او مال (ثمن) يې نه وي ورکړی بلکي تر شراء وروسته يې ثمن ورکړی وي او بيا بائع ته له ورکولو څخه مخکي هغه ثمن ضايع سي، نو په دې صورت کي وکيل د رجوع (ثمن اخيستلو) په هکله خوله هم نه سي خلاصولای؛ ځکه په نفس شراء سره هغه د ثمن اخيستلو مستحق وګرځېدی، او تر شراء وروسته مؤکل هغه ته ثمن ورکړی، لهذا اوس وکيل پوه سو او کار يې پوه سو؛ ځکه چي تر شراء (رانيولو) مخکي د ثمن ورکولو په صورت هغه ثمن د ده سره امانت وي او تر شراء وروسته هم هغه پر امانت قائم پاتيږي، نو ځکه په دې صورت کي هغه ته يو ځل د رجوع حق حاصليږي، لېکن تر شراء (رانيولو) وروسته د اخيستلو په صورت کي د هغه حق ختميږي او هغه له امانت څخه وځي. والله أعلم وعلمه أتم



# فَصْلٌ فِي الِاخْتِلَافِ

(دا) فصل په (بيان د مضارب او ربُ المال تر مينځ) اختلاف کي دی

## د مال مضاربت په هکله د مضارب او ربُ المال اختلاف کول

قَالَ: وَإِذَا كَانَ مَعَ الْمُضَارِبِ أَلْفَانِ فرمايي: او کله چي د مضارب سره دوه زره درهمه وي فَقَالَ: دَفَعْتَ إِلَيَّ أَلْفًا وَرَبِحْتُ أَلْفًا او هغه [ربُ المال ته] ووايي: تا ما ته زر درهمه راکړه او زر درهمه ما نفع [ګټه] وکړه وَقَالَ: رَبُّ الْمَالِ: لَا بَلْ دَفَعْتُ إِلَيْكَ أَلْفَيْنِ او ربُ المال ووايي: چي نه! بلکي ما تا ته دوه زر درهمه درکړه فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُضَارِبِ نو قول د مضارب معتبر دی وَكَانَ أَبُو حَنِيفَةَ يَقُولُ أَوَّلًا: الْقَوْلُ قَوْلُ رَبِّ الْمَالِ او امام صاحب رَحِمَهُ الله به اول فرمايل: چي قول د ربُ المال معتبر دی وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ ❁ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول هم دی لِأَنَّ الْمُضَارِبَ يَدَّعِي عَلَيْهِ الشَّرِكَةَ فِي الرِّبْحِ وَهُوَ يُنْكِرُ ځکه چي مضارب پر ربُ المال په نفع کي د شرکت دعوىٰ کوي او ربُ المال د دې انکار کوي وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ او قول د منکر معتبر وي ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مَا ذَكَرَ فِي الْكِتَابِ بيا امام صاحب رَحِمَهُ الله د هغه حکم وطرف ته رجوع وکړه کوم چي په قدوري [متن] کي ذکر سوی دی لِأَنَّ الِاخْتِلَافَ فِي الْحَقِيقَةِ فِي مِقْدَارِ الْمَقْبُوضِ ځکه چي دا اختلاف حقيقتاً په قبضه کړی سوي مقدار کي اختلاف دی [پر کوم چي مضارب قبضه کړې ده] وَفِي مِثْلِهِ الْقَوْلُ قَوْلُ الْقَابِضِ او په داسي صورت کي قول د قابض معتبر وي ضَمِينًا كَانَ أَوْ أَمِينًا برابره ده هغه ضامن وي او که امين وي لِأَنَّهُ أَعْرَفُ بِمِقْدَارِ الْمَقْبُوضِ ځکه چي هغه په قبضه کړی سوي مقدار [له غير قابض څخه] زيات خبر وي وَلَوِ اخْتَلَفَا مَعَ ذَلِكَ فِي مِقْدَارِ الرِّبْحِ او که په رأسُ المال کي د اختلاف سره، سره د نفعي په مقدار کي هم دوی دواړه اختلاف

❁ القول الراجح: قول الجمهور (أى فالقول قول المضارب)، كما ذكر فى الدر المختار (ج:۴، ص:۵۴۸)، وكذا فى الهندية(ج:۴، ص:۳۲۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۱۳]

وکړي فَالْقَوْلُ فِيهِ لِرَبِّ الْمَالِ نو د نفعي په باره کي د ربُ المال قول معتبر دی لِأَنَّ الرِّبْحَ يُسْتَحَقُّ بِالشَّرْطِ ځکه چي نفع په شرط سره مستحقه کيږي [يعني د نفعي استحقاق د شرط په وجه وي] وَهُوَ يُسْتَفَادُ مِنْ جِهَتِهِ او شرط د ربُ المال له طرفه حاصليږي [يعني شرط د هغه له طرفه لګول کيږي] وَأَيُّهُمَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَىٰ مَا ادَّعَىٰ مِنْ فَضْلٍ او له دوی دواړو څخه چي کوم يو هم د خپل دعوىٰ کړده زياتوب په هکله بيّنه پېش کړي قُبِلَتْ نو [د هغه] بيّنه به قبلول کيږي لِأَنَّ الْبَيِّنَاتِ لِلْإِثْبَاتِ ځکه چي بينې [ګواهياني] د شي د ثابتولو لپاره وي.

**اللغات**: ﴿ربحتُ﴾ د سمع له بابه د واحد متکلم ماضي صيغه ده: ګټه کول، نفع حاصلول، ﴿ضمين﴾ ضامن، ذمه وار، هغه کس چي پر هغه ضمان (تاوان) لازم وي، ﴿أمين﴾ امانت ساتونکی، امانتدار، چي که بغير له تعدی له هغه څخه شی هلاک سي نو هغه نه ضامن کيږي، ﴿يُستفاد﴾ د استفعال له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: حاصلېدل، ترلاسه کېدل، ﴿جهة﴾ طرف، اړخ، کناره، ﴿البيّنات﴾ جمع د بَيِّنَةٌ ده: ګواهياني، دلائل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که چيري د مال مضاربت يعني د رأسُ المال په هکله مضارب او ربُ المال اختلاف وکړي، مثلاً ربُ المال مضارب ته ووايي چي "ما تا ته دوه زره درهمه درکړي وه" او مضارب ووايي "چي تا ما ته زر درهمه راکړي وه او زر درهمه خو ما نفع (ګټه) کړې ده"، نو په دې صورت کي د مضارب قول معتبر دی، يعني د هغه قول او دعوىٰ به قبلول کيږي، همدا مشهور او معتمد قول دی. د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول قول او د امام زفر رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي قول د ربُ المال معتبر دی؛ ځکه چي مضارب د دوه زر درهمو په دعوىٰ سره په نفع کي د شرکت دعوىٰ کوي، حال دا چي ربُ المال د دې منکر دی، او قاعده دا ده چي قول د منکر معتبر وي، نو ځکه دلته به هم د منکر يعني د ربُ المال قول معتبر وي.

د قول مشهور دليل دا دی چي دا اختلاف حقيقتاً په هغه مقدار کي دی کوم چي د مضارب په قبضه کي دی او د مقبوض مقدار په اختلاف کي همېشه د قابض قول معتبر وي، ځکه چي هغه په دې مقدار له غير قابض څخه زيات واقف او خبر وي

او که چيري د پورتني اختلاف سره، سره د نفع په مقدار کي هم دواړه اختلاف وکړي، مثلاً مضارب ربُ المال ته ووايي "چي تا زما لپاره نيمه نفع (نصف ګټه) ټاکلې وه" او ربُ المال وايي چي

"ماستا لپاره د نفعي دريمه حصه (ثلث ګټه) ټاکلې وه او باقي نفع مې د ځان لپاره شرط کړې وه"، نو د نفعي په باره کي د ربُ المال قول معتبر او مقبول دی؛ ځکه چې د نفعي مقدار د ربُ المال له طرفه ټاکل کيږي او په دې سلسله کي د هغه معلومات او خبر له مضارب څخه زيات وي، نو ځکه د هغه قول به راجح او مقبول وي.

وأيهما قام الخ: د دې حاصل دا دی چي که په پورتني اختلاف کي ربُ المال د رأسُ المال پر زياتوب (مثلا پر دوه زره رأسُ المال) بيّنه پيش کړي يا مضارب د نفعي د مقدار پر زياتوب (مثلا پر نصف نفعي) بيّنه پيش کړي، نو د هغه بيّنه معتبره ده او هغه به قبلول کيږي؛ ځکه چي بينات د اثبات (ثابتولو) لپاره وي، نو ځکه دلته به هم د هغه يوه بيّنه قبلول کيږي کوم چي زياتوب ثابتوي.

## د اختلاف يو بل صورت

قَالَ: وَمَنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفُ دِرْهَمٍ فرمايي: او که د يو چا سره [مثلا د زيد سره] زر درهمه وه فَقَالَ: هِيَ مُضَارَبَةٌ لِفُلَانٍ بِالنِّصْفِ او هغه ووېل: چي دا زر درهمه د نصف نفعي پر شرط د فلانکي لپاره پر مضاربت دي وَقَدْ رَبِحَ أَلْفًا حال دا چي هغه [زيد] زر درهمه نفع [ګټه] کړې وه وَقَالَ فُلَانٌ: هِيَ بِضَاعَةٌ او فلانکي ووېل: چي دا زر درهمه د بضاعت په توګه دي [يعني دا ما زيد ته د دې لپاره ورکړي دي چي نفع به ټوله زما وي او هغه به محض زما سره د احسان په توګه په دغه زر درهمو کار (تجارت) کوي] فَالْقَوْلُ قَوْلُ رَبِّ الْمَالِ نو قول د ربُ المال [فلانکي] معتبر دی لِأَنَّ الْمُضَارِبَ يَدَّعِي عَلَيْهِ تَقْوِيمَ عَمَلِهِ أَوْ شَرْطًا مِنْ جِهَتِهِ أَوْ يَدَّعِي الشَّرِكَةَ ځکه چي [دلته] مضارب د ربُ المال په خلاف د خپل کار د قيمتي کېدلو دعویٰ کوي يا د ربُ المال له طرفه د شرط دعویٰ کوي يا [په نفع کي] د شرکت دعویٰ کوي وَهُوَ يُنْكِرُ او ربُ المال د دې انکار کوي وَلَوْ قَالَ الْمُضَارِبُ: أَقْرَضْتَنِي او که چيري مضارب ووايي: تا ما ته [هغه زر درهمه] په قرض راکړي دي وَقَالَ رَبُّ الْمَالِ: هُوَ بِضَاعَةٌ أَوْ وَدِيعَةٌ او ربُ المال ووايي: چي هغه د بضاعت يا امانت په توګه دي فَالْقَوْلُ لِرَبِّ الْمَالِ نو قول د ربُ المال معتبر دی وَالْبَيِّنَةُ بَيِّنَةُ الْمُضَارِبِ او بيّنه د مضارب معتبره ده [يعني که دوی دواړه ګواهي پيش کړي، نو د مضارب ګواهي به قبلول کيږي] لِأَنَّ الْمُضَارِبَ يَدَّعِي عَلَيْهِ التَّمَلُّكَ ځکه چي مضارب پر ربُ المال [د نفعي] د مالک کېدلو دعویٰ کوي وَهُوَ يُنْكِرُ او هغه د دې انکار کوي وَلَوِ ادَّعَى رَبُّ الْمَالِ الْمُضَارَبَةَ فِي نَوْعٍ او که چيري ربُ المال په يو خاص

[او تاکلي] قسم کي د مضاربت [او تجارت] دعویٰ وکړي وَقَالَ الْآخَرُ: مَا سَمَّيْتَ لِيْ تِجَارَةً بِعَيْنِهَا او مضارب ووايي: چي تا زما لپاره مُتعيّن تجارت تاکلی نه وو فَالْقَوْلُ لِلْمُضَارِبِ نو قول د مضارب معتبر دی لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيهِ الْعُمُوْمُ وَالْإِطْلَاقُ ځکه چي اصل په مضاربت کي عام والی او مطلق والی دی وَالتَّخْصِيصُ بِعَارِضِ الشَّرْطِ او خاص ګرځول د عارض شرط پر بنیاد وي [یعني تخصیص د شرط عارضېدلو په وجه وي. لهذا هغه ثابتول پکار دي] بِخِلَافِ الْوَكَالَةِ په خلاف د وکالت لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيهِ الْخُصُوْصُ ځکه چي اصل په هغه کي خاص والی دی وَلَوِ ادَّعٰى كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نَوْعًا او که چیري له مضارب او ربُ المال دواړو څخه هر یو د یو [جلا] قسم تجارت دعویٰ وکړي فَالْقَوْلُ لِرَبِّ الْمَالِ نو قول د ربُ المال معتبر دی لِأَنَّهُمَا اتَّفَقَا عَلَى التَّخْصِيصِ ځکه چي [په دې صورت کي] دواړه پر خاص ګرځولو متفق دي وَالْإِذْنُ يُسْتَفَادُ مِنْ جِهَتِهِ او اجازت صرف د ربُ المال له طرفه حاصلیږي وَالْبَيِّنَةُ بَيِّنَةُ الْمُضَارِبِ او بیّنه د مضارب معتبره ده لِحَاجَتِهِ إِلَى نَفْيِ الضَّمَانِ وَعَدَمِ حَاجَةِ الْآخَرِ إِلَى الْبَيِّنَةِ ځکه چي هغه [له خپل ځان څخه] ضمان لیري کولو ته محتاج دی او بل یو [یعني ربُ المال] بینې ته محتاج نه دی وَلَوْ وَقَّتَتِ الْبَيِّنَتَانِ وَقْتًا او که چیري دواړه بینې [ګواهیاني] یو [جلا] تاریخ بیان کړي فَصَاحِبُ الْوَقْتِ الْأَخِيرِ أَوْلٰى نو د اخرني تاریخ والا بیّنه اولیٰ [او معتبره] ده لِأَنَّ آخِرَ الشَّرْطَيْنِ يَنْقُضُ الْأَوَّلَ ځکه چي په دوو شرطونو کي آخري شرط اول شرط ماتوي.

**اللغات**: ﴿مضاربة بالنصف﴾ د نیمي نفعي پر شرط مضاربت (چي نیمه نفع به زما وي او نیمه د مضارب)، ﴿تقويم﴾ د تفعیل مصدر دی: قیمت لګول، قیمت ټاکل، قیمتداره ګرځول، ﴿بضاعة﴾ د بضاعت په توګه مال ورکول چي ته زما سره دا مرسته او احسان وکړه! چي زما مال په کاروبار کي ولګوه! او نفع به ټوله زما وي. ﴿وديعة﴾ امانت، امانتاً ایښوول سوی شی، ﴿سَمَّيْتَ﴾ د تفعیل له بابه د واحد مذکر مخاطب صیغه ده: نومول، ذکر کول، ټاکل (مقرر کول)، ﴿التملك﴾ د تفعّل مصدر دی: مالک جوړېدل، مالک کېدل، ﴿تخصيص﴾ د تفعیل مصدر دی: خاص کول، خاص ګرځول (مخصوص ګرځول)، ﴿عارض﴾ عارضېدونکی، پېښېدونکی، خلاف اصلي.

**تشريح**: په دغه عبارت کي پنځه مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... د زید سره زر درهمه دي، هغه وایي چي "دا د خالد مال دی او هغه ما ته د نصف نفعي پر شرط د مضاربت لپاره راکړی دی او په دې سره ما زر درهمه نفع (ګټه) هم کړې ده"، لیکن خالد یعني رب

المال ووايي چي "ما زيد ته صرف د بضاعت لپاره دا مال ور کړی دی چي هغه زما سره د احسان او مرستي په توګه په دې سره کاروبار وکړي، د مضاربت لپاره مي نه دی ور کړی"، نو په دې صورت کي د ربُ المال (خالد) قول معتبر دی، يعني د خالد قول او دعویٰ به قبلول کيږي او هغه دوه زر درهمه به خالد ته ورکول کيږي؛ ځکه چي دلته مضارب (زيد) د خپل کار د قيمتي کېدلو يعني د خپل کار د عوض اخيستلو دعویٰ کوي (چي زه مُبضع او متبرّع نه يم بلکي مضارب يم نو ما ته دي د خپل کار قيمت او عوض راکول سي)، يا دلته مضارب د ربُ المال له طرفه د نفعي د شرط کېدلو دعویٰ کوي (چي هغه زما لپاره نصف نفع شرط کړې ده)، يا دلته هغه د شرکت في النفع دعویٰ کوي (چي زه په نفع کي ور سره شريک يم)، حالانکي ربُ المال په هره توګه د هغه د دعوې انکار کوي، او قول د منکر معتبر وي، نو ځکه دلته به هم د منکر يعني د ربُ المال قول د قسم سره معتبر وي.

(۲)... که زيد ووايي چي "خالد ما ته دا مال (زر درهمه) په قرض راکړی دی" او خالد ووايي چي "ما د بضاعت يا د وديعت (امانت) په توګه ورکړی دی يا د مضاربت لپاره مي ورکړی دی"، نو د ربُ المال (خالد) قول معتبر دی؛ ځکه چي د مال مالک صرف هغه دی او د ورکولو په جهت هغه ښه واقف هم دی. ها! که چيري دواړه پر خپله دعویٰ بيّنه پېش کړي، نو د مضارب يعني د زيد بيّنه به قبلول کيږي، ځکه چي دلته مضارب پر ربُ المال د نفعي د مالک کېدلو دعویٰ کوي (يعني ګواکي مضارب دا دعویٰ کوي چي ټوله نفع زما په ملکيت کي ده او زه يې مالک يم، يا د "تملک" معنیٰ دا چي هغه د مال د مالک کېدلو دعویٰ کوي چي اوس د مال مالک زه يم)، او ربُ المال د دې منکر دی، او بيّنه د مدعي معتبره ده، ځکه چي بيّنه د اثبات لپاره وضع سوې ده نو ځکه کوم يو چي د اثبات دعویٰ کوي، د هغه قول او بيّنه به معتبره وي.

(که څوک اعتراض وکړي چي په پورتنۍ مسئله کي مدعي يعني زيد مضارب نه دی، حالانکي په کتاب [متن] کي هغه ته مضارب ويل سوي دي، نو صاحب دعنايې د هغه په جواب کي ليکلي دي چي دا د دې احتمال پر بناء دي چي شايد هغه مخکي مضارب وي او ربُ المال هغه ته قرض ورکړی وي. يا هغه ته مضارب ويل مبني بر مشاکلت دي).

(۳)... که ربُ المال ووايي چي "ما مضارب ته پر دې شرط مال ورکړی وو چي هغه به د کپړې کاروبار (تجارت) کوي"، او مضارب ووايي چي "هغه ما ته بغير له شرطه د مطلق کاروبار لپاره مال راکړی وو"، نو د مضارب قول معتبر او مقبول دی؛ ځکه چي په مضاربت کي عموم او اطلاق اصل دی او زياتره وخت د مطلق کاروبار لپاره مال ورکول کيږي؛ نو ځکه ظاهري حال به د مضارب په حق کي

ګواه وي او صرف د هغه قول به معتبر وي. او که چيرې دا ډول اختلاف د وکيل او مؤکل په مينځ کې واقع سي، نو په دې صورت کې د مؤکل قول معتبر دی؛ ځکه چې په وکالت کې تخصيص اصل دی او زياتره وخت د يو مخصوص شي د رانيولو لپاره وکيل جوړول کيږي.

(۴)... که ربُ المال ووايي چې "ما تا ته د کپړې د کاروبار لپاره مال درکړی وو"، او مضارب ووايي چې "تا ما ته د فرشونو د کاروبار (يا مثلاً د پرچون) لپارهٔ مال راکړی وو"، نو په دې صورت کې د ربُ المال قول معتبر دی؛ ځکه چې په دې صورت کې دواړه پر تخصيص متفق دي (چې کاروبار مطلق نه دی بلکې د مخصوص شي کاروبار دی)، او څرنګه چې تخصيص د ربُ المال له طرفه کيږي او دلته دواړه د تخصيص دعویٰ کوي، نو ځکه د ربُ المال قول او دعویٰ به معتبره وي، او که چيرې په دې صورت کې دواړه بيّنه پېش کړي، نو د مضارب بيّنه به قبلول کيږي؛ ځکه مضارب چې د کوم نوع کاروبار دعویٰ کوي، د هغه د اجازت ثابتولو ضرورت مضارب ته دی (يعني صرف مضارب محتاج دی چې دا ثابته کړي چې ما ته ربُ المال خاص د فلانکي کاروبار اجازت راکړی وو) د دې لپاره چې له هغه څخه ضمان (تاوان) ليرې سي، او ربُ المال ته د بينې پېشولو ضرورت نسته؛ ځکه چې د کاروبار د جهت په تعيين کې هغه اصل دی (يعني په اصل کې د تجارت او کاروبار نوع د هغه له طرفه ټاکل کيږي)، نو ځکه هغه ته د بينې ضرورت نسته، لهذا کوم يوه ته چې د بينې ضرورت دی (يعني کوم يو چې بيّنې ته محتاج دی)، د هغه بيّنه به قبلول کيږي.

(۵)... که په پورتني صورت کې مضارب او ربُ المال او د دواړو ګواهان تاريخ هم بيان کړي، نو د کوم يوه تاريخ چې مؤخر او وروستی وي، د هغه بيّنه به قبلول کيږي؛ ځکه دا خو عامه خبره ده چې مقدم د مؤخر لپاره ناسخ او ناقض ګرځي، نو ځکه دلته هم چې د کوم يوه د بينې (ګواهی) تاريخ مؤخر وي، د هغه بيّنه به معتبره وي او په هغه سره د بل يوه بيّنه نامعتبره ګرځي.



# كِتَابُ الْوَدِيْعَةِ

(دا) كتاب د امانت (د احكامو په بيان كي) دی

**تشريح**: د "كتابُ المضاربة" سره متصلاً د "كتابُ الوديعة" بيانولو وجه دا ده چي په مضاربت او وديعت دواړو كي مال د بل چا سره امانت وي، لېكن د مضاربت امانت عام دی او د وديعت امانت خاص دی، او ښكاره خبره ده چي عام له خاص څخه مخكي وي، نو ځكه صاحب د كتاب رَحِمَهُ الله هم مضاربت له وديعت څخه مخكي بيان كړی دی.

**د وديعت لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: "وَدِيْعَةٌ" پر وزن د فَعِيْلَةٌ په معنیٰ سره د مَفْعُوْلَةٌ دی (يعني مَتْرُوْكَةٌ)، نو د وديعت لغوي معنیٰ ده: "امانتاً پرېښوول سوي مال"، "په امانت ايښوول سوی شی"، جمع يې وَدَائِع راځي. د "و دع" ماده په ثلاثي مجرد كي د فَتَحَ له بابه راځي "وَدَعَ يَدَعُ وَدْعًا" (چي د هغه معنیٰ ده: پرېښوول)، او په غيرِ ثلاثي مجرد كي د افعال او استفعال له بابه راځي "أَوْدَعَ يُوْدِعُ إِيْدَاعًا" او "اِسْتَوْدَعَ يَسْتَوْدِعُ اِسْتِيْدَاعًا"، د امانت په باب كي د دغه ټولو بابونو مطلب او معنیٰ يوه ده، يعني: يو چا ته خپل مال په امانت ايښوول، امانتاً پرېښوول. وديعة (امانت مال) ته ځكه وديعة ويل كيږي چي هغه د امانت ساتونكي سره پرېښوول كيږي.

د شريعت په اصطلاح كي د وديعت معنیٰ ده: "هِيَ أَمَانَةٌ تُرِكَتْ عِنْدَ الْغَيْرِ لِلْحِفظِ قَصْدًا" (هغه امانت مال كوم چي د حفاظت په غرض د بل چا سره قصداً (بالقصد) پرېښوول سي). يعني وديعت صرف هغه مال او هغه شي ته وايي كوم چي يو چا ته په قصد او اراده سره د حفاظت كولو لپاره وركول سي، لېكن "امانة" هغه مال او هغه شي ته هم وايي كوم چي بغير له قصده د انسان په لاس كي راسي. يعني وديعت خاص دی او امانت عام دی چي تفصيل به لاندي ذكر سي. (تعريفات للجرجاني)

او صاحب د احسنُ الهدايې د وديعت شرعي تعريف داسي بيان كړی دی: "تَسْلِيْطُ الْغَيْرِ عَلٰى حِفْظِ الْمَالِ" (بل څوک د خپل مال پر ساتل گومارل). يعني بل چا ته امانتاً د حفاظت لپاره مال ايښوول.

کوم چا ته چې امانتاً (په امانت) مال كښېښول سي، هغه ته "مُوْدَع" وايي (چې په بله وينا هغه ته "مُسْتَوْدَع" او "أمين" [امانت ساتونكى] هم وايي)، او كوم څوک چې بل چا ته امانتاً مال كښېښېږدي، هغه ته "مُوْدِع" (بكسر الدال) وايي.

**د وديعت او امانت په مينځ كي فرق**: په عربي ژبه كي د وديعت او امانت تر مينځ فرق سته، او هغه صرف د عموم او خصوص فرق دى، يعني امانت عام دى او وديعت خاص دى؛ ځكه په وديعت كي په بل چا سره د خپل مال حفاظت كول قصداً مطلوب وي او امانت ځيني وخت بلا قصده هم وي، مثلاً كه د باد (هوا) په وجه ديو چا كپړه د بل سړي كور ته واوړي نو دا كپړه د هغه سړي سره امانت ده، يا مثلاً كه يو سړى په لاره كي يو شى پيدا كړى او هغه راپورته كړي (كوم ته چي لُقطه وايي)، نو هغه شى د پيدا كونكي سړي په لاس كي امانت دى، خلاصه دا چي وديعت دې ته وايي چي انسان په خپل قصد او اراده سره (د عقد په ذريعه) بل چا ته د حفاظت لپاره خپل شى وركړي، او امانت هر هغه شي ته وايي چي پر انسان د هغه حفاظت كول ضروري وي، برابره ده دا شى هغه ته يو چا په قصد او د عقد په ذريعه وركړى وي، يا ديو چا له قصد او عقد څخه بغير د هغه لاس ته راغلى وي.

## د وديعت حكم

قَالَ: الْوَدِيعَةُ أَمَانَةٌ فِي يَدِ الْمُودَعِ فرمايي: وديعت [امانتاً ايښوول سوى مال] د مُودَع په قبضه كي امانت وي إِذَا هَلَكَتْ كله چي وديعت هلاک [ضايع] سي لَمْ يَضْمَنْهَا نو مُودَع د هغه نه ضامن كيږي لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: «لَيْسَ عَلَى الْمُسْتَعِيرِ غَيْرِ الْمُغِلِّ ضَمَانٌ وَلَا عَلَى الْمُسْتَوْدَعِ غَيْرِ الْمُغِلِّ ضَمَانٌ» ځكه نبي ﷺ فرمايلي دي: " پر هغه عاريتاً اخيستونكي ضمان نسته كوم چي خائن [خيانت كونكى] نه وي او نه پر هغه مُودَع ضمان سته كوم چي خائن نه وي" وَلِأَنَّ بِالنَّاسِ حَاجَةً إِلَى الِاسْتِيدَاعِ او ځكه چي امانتاً ايښوولو ته د خلكو ضرورت وي فَلَوْ ضَمَّنَّاهُ نو كه چيري موږ مُودَع ضامن وګرځوو يَمْتَنِعُ النَّاسُ عَنْ قَبُولِ الْوَدَائِعِ نو خلک به د وديعتونو [امانتونو] له قبلولو څخه منع سي فَيَتَعَطَّلُ مَصَالِحُهُمْ او د خلكو مصلحتونه [ضرورتونه] به بلا عمله [او ناحل] پاته سي قَالَ: وَلِلْمُودَعِ أَنْ يَحْفَظَهَا بِنَفْسِهِ وَبِمَنْ فِي عِيَالِهِ فرمايي: او مُودَع ته دا اختيار سته چي په خپله د ويعت [امانت مال] حفاظت وكړي يا د هغه

[1] تخريج: رواه دار قطني في سُنـنـه، رقم الحديث: ۱۷۰. وعبد الرازق في مصنفه، رقم الحديث: ۱۴۷۸۲.

کسانو په ذریعه د هغه حفاظت وکړي کوم چي د ده له کورنۍ څخه وي لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ يَلْتَزِمُ حِفْظَ مَالِ غَيْرِهِ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي يَحْفَظُ مَالَ نَفْسِهِ ځکه ښکاره همدا ده چي مُودَع به د بل چا د مال حفاظت په داسي توګه پر ځان لازموي لکه څرنګه چي د خپل مال حفاظت کوي وَلِأَنَّهُ لَا يَجِدُ بُدًّا مِنَ الدَّفْعِ إِلَى عِيَالِهِ او ځکه چي خپل کورنۍ والا ته له ورکولو څخه هغه هيڅ چاره نه لري لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ مُلَازَمَةُ بَيْتِهِ وَلَا اسْتِصْحَابُ الْوَدِيعَةِ فِي خُرُوجِهِ ځکه چي د هغه لپاره نه د کور لازم نیول [همېشه پکښي اوسېدل] ممکن دي او نه د بهر تللو په صورت کي [همېشه] وديعت د ځان سره ساتل ممکن دي فَكَانَ الْمَالِكُ رَاضِيًا بِهِ نو ځکه مالک [مُودِع] به په داسي حفاظت سره راضي وي [يعني په دې به راضي وي چي مُودَع په خپل کورنۍ والا د وديعت حفاظت وکړي] فَإِنْ حَفِظَهَا بِغَيْرِهِمْ أَوْ أَوْدَعَهَا غَيْرَهُمْ او که چيري مودَع له خپل کورنۍ والا څخه بغير په بل چا د وديعت حفاظت وکړي يا وديعت بل چا ته امانتاً کښېږدي ضَمِنَ نو هغه ضامن کيږي لِأَنَّ الْمَالِكَ رَضِيَ بِيَدِهِ لَا بِيَدِ غَيْرِهِ ځکه چي مالک [مودِع] صرف د هغه په قبضه راضي سوی دی، نه د بل چا په قبضه وَالْأَيْدِي تَخْتَلِفُ فِي الْأَمَانَةِ او په امانت [ساتلو] کي د خلکو قبضې مختلفه وي وَلِأَنَّ الشَّيْءَ لَا يَتَضَمَّنُ مِثْلَهُ او ځکه چي يو شی هم خپل مثل لره نه شاملیږي كَالْوَكِيلِ لَا يُوَكِّلُ غَيْرَهُ لکه څرنګه چي وکيل بل څوک وکيل نه سي جوړولای وَالْوَضْعُ فِي حِرْزِ غَيْرِهِ إِيدَاعٌ او د بل چا په محفوظه ځای کي ايښوول هم امانتاً ايښوول دي إِلَّا إِذَا اسْتَأْجَرَ الْحِرْزَ مګر دا چي مودَع د بل چا محفوظه ځای په کرايه ونيسي فَيَكُونُ حَافِظًا بِحِرْزِ نَفْسِهِ نو په دې صورت کي به هغه په خپل ذاتي محفوظه ځای سره حفاظت کونکی وي قَالَ: إِلَّا أَنْ يَقَعَ فِي دَارِهِ حَرِيقٌ فَيُسَلِّمَهَا إِلَى جَارِهِ فرمايي: مګر دا چي د مودَع کور اُور واخلي او هغه خپل همسايه ته وديعت وسپاري أَوْ يَكُونَ فِي سَفِينَةٍ فَخَافَ الْغَرَقَ فَيُلْقِيَهَا إِلَى سَفِينَةٍ أُخْرَى يا مودَع په کښتۍ کي وي او د غرقېدلو [ډوبېدلو] ډېره وي او هغه بلي کښتۍ ته وديعت وغورځوي [نو په دې صورتونو کي مودَع نه ضامن کيږي] لِأَنَّهُ تَعَيَّنَ طَرِيقًا لِلْحِفْظِ فِي هَذِهِ الْحَالَةِ ځکه چي په دې حالت کي د حفاظت کولو لپاره همدا طريقه مُتعينه ده [يعني په دې صورت کي د حفاظت همدا يوازينۍ لاره ده] فَيَرْتَضِيهِ الْمَالِكُ نو ځکه

مالک به په دې راضي وي وَلَا يُصَدَّقُ عَلَىٰ ذَٰلِكَ إِلَّا بِبَيِّنَةٍ او په دې باره کې به له بيّنه [ګواهي] څخه بغير د مودَع تصديق نه کيږي لِأَنَّهُ يَدَّعِي ضَرُورَةً مُسْقِطَةً لِلضَّمَانِ بَعْدَ تَحَقُّقِ السَّبَبِ ځکه چې هغه د يو داسې ضرورت دعوىٰ کوي کوم چې [د ضمان] د سبب تر ثابتېدلو وروسته د ضمان ساقطونکی دی فَصَارَ كَمَا إِذَا ادَّعَى الْإِذْنَ فِي الْإِيدَاعِ نو دا داسې سوه لکه مودَع چې د امانتاً ايښوولو په هکله [د مودِع] د اجازت دعوىٰ وکړي [چې ما ته خو مودِع د "ايداع" اجازت راکړی وو] قَالَ: فَإِنْ طَلَبَهَا صَاحِبُهَا فرمايي: که چيرې د وديعت مالک د وديعت طلب [مطالبه] وکړي فَحَبَسَهَا وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَىٰ تَسْلِيمِهَا او مودَع هغه [وديعت] منع کړي حال دا چې مودَع د هغه پر ورسپارلو قدرت لري ضَمِنَهَا نو مودَع د هغه ضامن کيږي وَلِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ بِالْمَنْعِ ځکه چې د منع کولو په وجه هغه تجاوز کونکی [تعدی کونکی] دی وَهَٰذَا لِأَنَّهُ لَمَّا طَالَبَهُ او دا حکم ځکه دی چې کله مودِع [د وديعت مالک] له هغه څخه مطالبه وکړه لَمْ يَكُنْ رَاضِيًا بِإِمْسَاكِهِ بَعْدَهُ نو مودِع تر دې وروسته د مودَع په راګرځولو راضي نه سو [يعني تر دې وروسته مودِع په دې راضي نه دی چې مودَع د هغه وديعت راوګرځوي او د ځان سره يې وساتي] فَيَضْمَنُهَا بِحَبْسِهِ عَنْهُ نو ځکه له مودِع څخه د هغه د منع کولو [راګرځولو] په وجه به ضامن کيږي.

**اللغات**: ﴿امانـة﴾ امانت، هغه څه چې د هغه حفاظت کول ضروري وي (مَا وَجَبَ حِفْظُهُ)،

﴿المستعير﴾ هغه کس چې په عاريت يعني په خواست امانتاً له بل چا څخه شی واخلي چې زه يې بيرته درکوم.

﴿المُغِلّ﴾ د افعال د باب فاعل دی: نقصان کونکی، خيانت کونکی، ﴿المستودَع﴾ مودَع، چا ته چې د امانت په توګه مال ايښوول سوی وي، ﴿يتعطّل﴾ د تفعّل مضارع ده: بې کاره کېدل، بلاعمله پاتېدل، ختمېدل، ﴿المصالح﴾ جمع د مَصْلَحَةٌ ده: ښېګڼې، منافع، ﴿يتضمن﴾ د تفعّل مضارع ده: متضمن کېدل، ضمناً شاملېدل، ﴿عِيَال﴾ کورنۍ والا، د کورنۍ غړي کوم چې د سړي (مودَع) سره اوسيږي او د هغه نفقه خوري لکه ښځه، بچيان، غلامان، سپين ږيري او داسې نور، صاحب د معجم يې همداسې تعريف کړی دی: عيال الرجل: الذي يسكنون معه وينفق عليهم كامرأته وأولاده وغلامه، وأمّه وأباه الشيخيان الفانيان الفقيران، ﴿ملازمة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: د يو شي سره لازم او متصل اوسېدل، ﴿استصحاب﴾ د استفعال مصدر دی: د ځان سره ساتل (د ځان سره لرل)، ﴿حِرْز﴾ د

حاء په کسره سره: محفوظه ځای (خوندي ځای)، د حاء په فتحه سره حَرْز: حفاظت، ساتنه، ﴿حريق﴾ اُور، ﴿يرتضي﴾ د افتعال مضارع ده: راضي کېدل، خوښول.

**تشريح**: په دې عبارت کې څلور مسئلې ذکر سوي دي؛

(۱)... اوله مسئله دا ده چې د وديعت مال د مودَع سره امانت وي او که چيري د هغه له تجاوز او خيانت څخه بغير د وديعت مال ضايع سي، نو پر مودَع د هغه ضمان (تاوان) نه لازميږي؛ لکه څرنګه چې په حديث مبارک کې د دې صراحت سوی دی، او بل دا چې امانت ايښوولو ته د خلکو ضرورت هم پېښيږي، اوس که چيري پر مودَع او امين د وديعت ضايع کېدلو ضمان (تاوان) لازم کړی سي، نو د ضمان (تاوان) له بيري به خلک د چا وديعت نه قبلوي او دا به د دغې نقصان سبب وګرځي.

(۲)... مودَع په خپله هم د وديعت حفاظت کولای سي او د خپل کورنۍ په افرادو هم د هغه حفاظت کولای سي، او د کورنۍ په افرادو له حفاظت کولو څخه بغير مودَع بله هيڅ چاره نه لري؛ ځکه چې مودَع نه همېشه په کور کې اوسېدای سي او نه له کور څخه بهر د وديعت مال هر وخت په غاړه ګرځولای سي، نو ځکه خامخا به هغه په خپل کورنۍ والا سره د وديعت حفاظت کوي، او څرنګه چې د مالک (مودِع) مقصود او مطلب دا دی چې د هغه د مال حاظت وسي، نو ځکه مالک به هم په دې راضي وي، ها! مالک د مودَع او د هغه د کورنۍ والا څخه بغير په بل چا سره د وديعت په حفاظت کولو راضي نه وي، لهذا که چيري مودَع له خپل کورنۍ والا څخه بغير په بل چا د وديعت حفاظت وکړي، نو پر هغه ضمان لازميږي؛ ځکه چې مالک صرف پر مودَع او د هغه په ضمن کې د هغه پر کورنۍ والا اعتماد کړی دی، او د امانت ساتلو په هکله د خلکو حالات او قبضې مختلفه وي، نو ځکه ممکنه ده چې بل څوک د هغه دومره حفاظت نه وکړی سي او خيانت وکړي او په دې توګه د مالک مال ضايع سي.

والوضع في الحرز إلخ: د دې حاصل دا دی چې څرنګه بل چا ته د وديعت په ايښوولو سره پر مودَع ضمان لازميږي، همداسې د بل چا په محفوظه ځای کې د وديعت په خوندي کولو سره هم ضمان لازميږي؛ ځکه چې دا هم بل چا ته وديعت ايښوول دي. ها! که چيري مودَع هغه ځای په کرايه واخلي، نو بيا ضمان ختميږي؛ ځکه دا داسې ده لکه په خپل محفوظه ځای کې په خپله د هغه حفاظت کول، او په خپله د مودَع د حفاظت په صورت کې پر هغه ضمان نه لازميږي.

(۳)... درېيمه مسئله دا ده چې مودَع د وديعت مال په خپل کور کې ايښی وي لېکن کور اُور واخلي او هغه دا مال د خپل همسايه کور ته ورسوي، يا د وديعت مال په کښتۍ کې وي او کښتۍ غرقېدلو ته نژدې سي او مودَع دا مال بلې کښتۍ ته وغورځوي، نو په دې صورت کې پر هغه ضمان نه لازميږي؛ ځکه چې په دې صورت کې بل ځای ته له منتقل کولو څخه بغير د هغه مال حفاظت ممکن نه دی

بلکې اوس د حفاظت همدا یوازینۍ لاره ده، نو ځکه مالک به په دې راضي وي او مودَع به په دې فعل کې متعدي او تجاوز کونکی نه وي. لېکن دأور لګېدلو او دکښتۍ غرقېدلو په هکله به د مودِع قول او دعویٰ هغه وخت منل کېږي، کله چې هغه پر خپل قول او دعویٰ بیّنه پېش کړي؛ ځکه چې په دې دعویٰ سره مودَع له خپل ځان څخه ضمان (یعني د ویعت تاوان) لیرې کوي، حال دا چې د هغه د دې فعل په وجه پر هغه ضمان لازم او ثابت دی، نو ځکه له خپل ځان څخه د ضمان لیرې کولو لپاره به پر هغه بیّنه پېشول لازم وي. د دې مثال دا دی چې که مودَع بل چا ته ودیعت کښېږدي او بیا دا دعویٰ وکړي چې "مودِع (مالک) ما ته د دې اختیار او اجازت راکړی وو چې زه ودیعت بل چا ته کښېږدم"، او مودِع د دې انکار کوي، نو په دې صورت کې هم پر مودَع بیّنه پېشول لازم دي؛ ځکه چې دلته هغه د ضمان ساقطېدلو مدعي دی، همداسې په پورتنۍ مسئله کې هم هغه د ضمان ساقطېدلو مدعي دی، نو ځکه په دې حواله سره پر هغه بیّنه پېشول ضروري دي.

(۴)... که چیرې مودِع (مالک) له مودَع څخه د خپل ودیعت مطالبه وکړي چې "زما امانتاً ایښوول سوی مال ما ته وسپاره!"، لېکن مودَع د قدرت علی التسلیم باوجود هغه راو نه ګرځوي او مودِع ته يې نه وسپاري، نو دا د مودَع له طرفه تعدی او تجاوز دی او د دې راګرځولو په وجه پر هغه ضمان لازمیږي؛ ځکه چې د مودِع (مالک) له طرفه له مودَع څخه د خپل ودیعت غوښتل د دې خبرې دلیل دا دی چې تر دې وروسته مودِع (مالک) د هغه سره د ودیعت په ایښوولو راضي نه دی، نو ځکه اوس به د ودیعت په منع کولو او راګرځولو سره پر مودَع ضمان لازمیږي.

## د بل مال سره د ودیعت ګډولو حکم

قَالَ: وَإِنْ خَلَطَهَا الْمُودَعُ بِمَالِهِ حَتَّى لَا يَتَمَيَّزَ فرمايي: او که چیرې مودَع د ودیعت مال په خپل مال داسې ګډ کړي چې [له ودیعت څخه] نه سي جلا کېدای ضَمِنَهَا نو مودَع د ودیعت ضامن کېږي ثُمَّ لَا سَبِيلَ لِلْمُودَعِ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ بیا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [تر دې وروسته] د مودَع لپاره پر دې ودیعت هیڅ لاره [او اختیار] نسته وَقَالَا❁: إِذَا خَلَطَهَا بِجِنْسِهَا او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې که مودَع د ودیعت په همجنس مال هغه ګډ کړي شَرِكَهُ إِنْ شَاءَ نو مودَع د مودِع [مالک] سره شریک کېږي که چیرې د مودِع خوښه وي مِثْلُ أَنْ يَخْلِطَ الدَّرَاهِمَ الْبِيضَ بِالْبِيضِ وَالسُّودَ بِالسُّودِ مثلاً

❁ القول الراجح: قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله، كما ذكر في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۴۷۱)، وكـذا فـي رد المحتـار (ج:۴، ص:۵۵۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۱۴]

مودَع سپين دراهم په سپينو دراهمو ګډ کړي يا تور دراهم په تورو ګډ کړي وَالْحِنْطَةَ بِالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرَ بِالشَّعِيرِ يا غنم په غنمو ګډ کړي يا اوربشي په اوربشو ګډي کړي لَهُمَا: أَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ الْوُصُولُ إِلَى عَيْنِ حَقِّهِ صُورَةً د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې [دلته] د مالک لپاره صورتاً خپل عَين حق ته رسېدل [ترلاسه کول] ممکن نه دي وَأَمْكَنَهُ مَعْنًى بِالْقِسْمَةِ او د تقسيم په ذريعه د هغه لپاره دا ممکن دي فَكَانَ اسْتِهْلَاكًا مِنْ وَجْهٍ دُونَ وَجْهٍ نو ځکه دا به په يوه اعتبار سره هلاکول [ضايع کول] او په يوه اعتبار سره به هلاکول نه وي فَيَمِيلُ إِلَى أَيِّهِمَا شَاءَ نو ځکه په دې دواړو کي چې مودِع کوم يوه ته خوښه ميلان دي وکړي وَلَهُ: أَنَّهُ اسْتِهْلَاكٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي دا په هر اعتبار سره هلاکول دي لِأَنَّهُ فِعْلٌ يَتَعَذَّرُ مَعَهُ الْوُصُولُ إِلَى عَيْنِ حَقِّهِ ځکه دا يو داسې فعل دی چې د هغه سره خپل عَين حق ته رسېدل [ترلاسه کول] ناممکن دي وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْقِسْمَةِ او تقسيم لره هيڅ اعتبار نسته لِأَنَّهَا مِنْ مُوجَبَاتِ الشَّرِكَةِ ځکه چې هغه د شرکت له احکامو څخه دی فَلَا تَصْلُحُ مُوجِبَةً لَهَا نو ځکه تقسيم به د شرکت د مُوجب کېدلو صلاحيت نه لري وَلَوْ أَبْرَأَ الْخَالِطَ او که چيري مودِع ګډونکی [مودَع] بري کړي [معاف يې کړي] لَا سَبِيلَ لَهُ عَلَى الْمَخْلُوطِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر ګډ کړی سوي مال د هغه هيڅ لاره [او اختيار] نسته لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لَهُ إِلَّا فِي الدَّيْنِ ځکه چي د هغه حق صرف په دَين [ضمان] کي دی وَقَدْ سَقَطَ حال دا چي [د ابراء په وجه] دا حق ساقط سو وَعِنْدَهُمَا بِالْإِبْرَاءِ يَسْقُطُ خِيَرَةُ الضَّمَانِ فَيَتَعَيَّنُ الشَّرِكَةُ فِي الْمَخْلُوطِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په ابراء سره د ضمان اخيستلو اختيار ساقطيږي او په مخلوط مال کي شرکت مُتعيّن کيږي وَخَلْطُ الْخَلِّ بِالزَّيْتِ وَكُلِّ مَائِعٍ بِغَيْرِ جِنْسِهِ يُوجِبُ انْقِطَاعَ حَقِّ الْمَالِكِ إِلَى الضَّمَانِ او د کونجتو تېل د زيتون په تېلو ګډول او هر بهېدونکي [اُوبلن (نرم)] شی د هغه له جنس څخه بغير په بل جنس ګډول د ضمان وطرف ته د مالک د حق ختمېدل لازموي [يعني په دې سره د مودِع حق ختميږي او په ضمان يدليږي] وَهٰذَا بِالْإِجْمَاعِ او دا په اجماع سره دي [يعني دا حکم متفق عليه دی] لِأَنَّهُ اسْتِهْلَاكٌ صُورَةً وَكَذَا مَعْنًى ځکه چي دا هم د صورت په اعتبار سره هلاکول دي او هم د معنیٰ په

اعتبار سره لِتَعَذُّرِ الْقِسْمَةِ بِاعْتِبَارِ اخْتِلَافِ الْجِنْسِ ځکه چي [دلته] د جنس د مختلف کېدلو په اعتبار سره تقسيم ناممکن دی وَمِنْ هٰذَا الْقَبِيلِ خَلْطُ الْحِنْطَةِ بِالشَّعِيرِ فِي الصَّحِيحِ او د صحيح قول مطابق غنم په اوربشو ګډول هم له دغه قبيلې څخه دي لِأَنَّ أَحَدَهُمَا لَا يَخْلُو عَنْ حَبَّاتِ الْآخَرِ ځکه چي په دوی کي يو د بل يوه له دانو څخه نه خالي کيږي [بلکي په هريوه کي د بل يوه داني ګډي پاتيږي] فَتَعَذَّرَ التَّمْيِيزُ وَالْقِسْمَةُ نو ځکه [دلته هم] هم تمييز [سره جلا کول] او تقسيم مشکل دی وَلَوْ خَلَطَ الْمَائِعَ بِجِنْسِهِ او که چيري بهيدونکی شی په خپل همجنس شي ګډ کړي فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ يَنْقَطِعُ حَقُّ الْمَالِكِ إِلَى ضَمَانٍ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د مالک حق د ضمان وطرف ته ختميږي [يعني په ضمان سره بدليږي] لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يُجْعَلُ الْأَقَلُّ تَابِعًا لِلْأَكْثَرِ او د امام ابويوسف رَحِمَهُ الله په نيز زيات مقدار والا به د کم مقدار والا تابع ګرځول کيږي اعْتِبَارًا لِلْغَالِبِ أَجْزَاءً د اجزاؤ په توګه د غالب مقدار په اعتبار کولو سره [د زياتو اجزاؤ په عتبار کولو سره] وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ ❁ شَارَكَهُ بِكُلِّ حَالٍ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز مودِع په هر حال کي د مودَع شريک کيږي لِأَنَّ الْجِنْسَ لَا يَغْلِبُ الْجِنْسَ عِنْدَهُ ځکه چي د هغه په نيز جنس پر جنس نه غالب کيږي عَلَى مَا مَرَّ فِي الرَّضَاعِ لکه مخکي چي په كتاب الرضاع کي [دا مسئله] تېره سوه وَنَظِيرُهُ خَلْطُ الدَّرَاهِمِ بِمِثْلِهَا إِذَابَةً او د دې اختلاف مثال د ويعت دراهم په خپل هممثل دراهمو ګډول دي د ويلي کولو په توګه لِأَنَّهُ يَصِيرُ مَائِعًا بِالْإِذَابَةِ ځکه چي په ويلي کولو سره ټوله دراهم مايع ګرځي.

**اللغات:** ﴿يتميز﴾ د تفعّل مضارع ده: جلا کېدل، عليحده کېدل. ﴿الدراهم البيض﴾ سپين دراهم، خالص او اصلي دراهم. ﴿استهلاك﴾ د استفعال مصدر دی: هلاکول، ضايع کول. ﴿يتعذر﴾ د تفعّل مضارع ده، د دې باب دوې معناوي دي: ناممکن کېدل، مشکل کېدل. ﴿يميل﴾ د ضرب مضارع ده: ميلان کول، يو طرف ته رغبت کول. ﴿خيرة﴾ اختيار. ﴿الحَلّ﴾ په حاء سره: د کونجتو تېل چي هغه ته "شيرج" هم وايي (معجم الوسيط، مصباح اللغات). ﴿الزيت﴾ د زيتون تېل (روغن).

❁ القول الراجح: قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله، كما ذكر في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۴۷۱)، و كذا في الدر المختار (ج:۴، ص:۵۵۴)، و الهندية (ج:۴، ص:۳۴۸). [القول الراجح ج:۲ ص:۲۱۵]

مطلق ټېلو ته هم وايي، ﴿مائع﴾ بهېدونکی، اوبلن، نرم، ويلېدونکی شی، ﴿إذابة﴾ دافعال د باب مصدر دی: ويلي کول، مايع کول، ټينګ مواد د حرارت په واسطه اوبه کول.

**تشريح**: په دې عبارت کې درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که چيري مودَع د مال وديعت سره خپل مال داسي ګډ کړي چي د دواړو سره جلا کول ناممکن وي، نو پر مودَع د وديعت ضَمان واجبيږي؛ ځکه چي د ګډولو په وجه هغه تعدی (ناحقه تصرف) وکړی، او د تعدی کولو په صورت کي امين هم ضامن کيږي، او د ضمان ورکولو په وجه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له دغه مال وديعت څخه د مودِع (مالک) حق ختميږي، کنې د ضمان او عَين (مال) اجتماع به لازم سي کوم چي ناممکنه ده. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دلته مودِع ته دوه اختياره حاصليږي: ① يا هغه دي د مال ديعت ضمان (تاوان) واخلي او وديعت دي پرېږدي، ② يا هغه دي په مخلوط (ګډ کړی سوي) مال کي د مودَع سره شريک سي، لېکن دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي ګډ کړی سوی مال د وديعت له جنس څخه وي، مثلاً وديعت سپين دراهم يا غنم وي او مودَع هم په هغه سپين دراهم يا غنم ګډ کړي وي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز مودِع ته داختيار حاصلېدلو دليل دا دی چي د خلط او ګډېدلو په وجه اوس صورتاً مودِع خپل عَين حق نه سي اخيستلای، ها! معناً خپل حق اخيستلای سي په دې توګه چي د مودَع سره شريک سي او دوی دا مخلوط مال سره تقسيم کړي، نو ځکه مودِع ته به له پورتني دوو کارو څخه ديوه اختيار حاصليږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي سره ګډول او خلط کول په هر اعتبار سره استهلاک او ضايع کول دي؛ ځکه چي د دواړو مالونو د ګډېدلو په وجه د مودِع لپاره بعينهٖ خپل حق ترلاسه کول ناممکن سوه، او اوس له ضمان اخيستلو څخه بغير بله هيڅ چاره نسته، نو ځکه مودِع به ضمان اخلي او پر خپله لار به ځي. او د تقسيم په ذريعه به مودِع د حق ترلاسه کونکی (اخيستونکی) نه ګرځول کيږي؛ ځکه چي تقسيم د شرکت له احکامو څخه دی او د شرکت لپاره تقسيم علت مُوجِبه ګرځېدل صحيح نه دي؛ ځکه چي د هيڅ شي حکم هم د هغه شي لپاره علت نه سي ګرځېدای، نو ځکه دلته به نه په مخلوط مال کي مودِع شريک کيږي او نه به هغه تقسيمول کيږي.

(۲)... که چيري مودِع له ضمان څخه ګډونکي (خالط) يعني مودَع بري کړي، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مودِع حق په بشپړه توګه ساقطيږي؛ ځکه چي د هغه حق په ضمان کي دی او هغه په ابراء (بري کولو سره) خپل دغه حق ساقط کړی، نو ځکه اوس به هغه ته هيڅ شی نه

ورکول کیږي. او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز په ابراء سره فقط د ضمان حق ساقطیږي او له ضمان ساقطېدلو څه وروسته شرکت مُتعیّن کیږي (دا ګواکي د مخکنی مسئلې د اختلاف ثمره ده)

(۳)... که چیرې د مودَع سره د کونجتو تېل د ودیعت (امانت) په توګه پراته وي او مودَع په هغه خپل د زیتون تېل ګډ کړي، یا د مودَع سره داسې بل بهېدونکی شی ودیعتاً پروت وي او مودَع په هغه د خلاف جنس بهېدونکی شی ګډ کړي، نو په دې صورت کې بالاتفاق له ودیعت څخه د مالک حق ختمیږي او پر مودَع د هغه ضمان واجبیږي؛ ځکه بهېدونکي شیان سره ګډول مِن کُلّ وجه استهلاک دی او اختلاف الجنس دا استهلاک نور مؤکد او مضبوط ګرځوي.

ولوخلط المائع إلخ: او که چیرې مودَع د ودیعت بهېدونکی شی د خپل هممثل شي سره ګډ کړي (مثلاً ودیعت شلومبې وي او مودَع خپلې شلومبې په هغه ګډې کړي)، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چې د مالک (مودِع) حق ختمیږي او په ضمان سره بدلیږي یعنې مودَع به هغه ته صرف ضمان (تاوان) ورکوي، بله چاره نشته؛ ځکه چې دا مِن کُلّ وجه استهلاک دی، په "لِمَا ذَكَرْنَا" سره همدې طرف ته اشاره سوې ده.

د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چې په دواړو شیانو کې چې د کوم یوه مقدار کم وي، هغه به د زیات (غالب) مقدار والا تابع ګرځول کیږي، لهذا که د ودیعت مقدار زیات او غالب وي، نو ټول مال به مودِع ته ورکول کیږي او مودِع به مودَع ته د هغه مال په اندازه پیسې ورکوي، او که د مودَع د مال مقدار زیات او غالب وي، نو ټول مال به مودَع اخلي او د هغه په عوض کې به مودِع ته ضمان (تاوان) ورکوي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چې دلته مودِع په هر حال کې د مودَع شریک ګرځي، برابره ده ودیعت غالب وي او که مال مخلوط غالب وي؛ ځکه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز یو جنس پر خپل هممثل جنس نه غالب کیږي، لکه مخکې چې ذکر سوه چې که د دوو ښځو شیدې سره ګډې کړل سي او بیا هغه شیدې په یو بچي وروړل سي، نو په دې صورت کې د غالب او نا غالب اعتبار نه کیږي بلکې د دواړو ښځو سره رضاعت ثابتیږي (یعنې دواړې ښځې د هغه بچي رضاعي مندې ګرځي)، همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم د غالب او اکثر اعتبار نه کیږي او مودِع به د مودَع سره شریک کیږي.

ونظيره خلط الدراهم إلخ: فرمایي چې د پورتنۍ اختلاف مثال دا دی چې د مودَع سره مثلاً زر درهمه ودیعتاً (امانتاً) پراته وي او مودَع خپل دراهم وریلي کړي او په هغه دراهمو یې ګډ کړي، نو د امام

صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا مِن كُلّ وجه استهلاک دی نو مالک ته به صرف ضمان ورکول کيږي. او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز کم مقدار والا دزيات (غالب) مقدار والا تابع کيږي. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز مودِع په هر حال کي د مودَع شريک گرځي.

## د بل مال سره د وديعت گډېدلو حکم

قَالَ: وَإِنِ اخْتَلَطَتْ بِمَالِهِ مِنْ غَيْرِ فِعْلِهِ فرمايي: او که چيري د وديعت مال د مودَع له فعل څخه بغير د هغه په مال گډ سي فَهُوَ شَرِيكٌ لِصَاحِبِهَا نو مودَع د وديعت د مالک [مودِع] شريک گرځي كَمَا إِذَا انْشَقَّ الْكِيسَانِ مثلاً دوې خلتۍ څيري سي فَاخْتَلَطَا او دواړي سره گډي سي لِأَنَّهُ لَا يَضْمَنُهَا لِعَدَمِ الصُّنْعِ مِنْهُ ځکه [په دې صورت کي] د مودَع له طرفه د عمل [دخل] د نشتوالي وجه هغه د وديعت نه ضامن کيږي فَيَشْتَرِكَانِ نو ځکه دواړه به [په وديعت کي] شريک کيږي وَهٰذَا بِالِاتِّفَاقِ او دا [حکم] متفق عليه دی قَالَ: فَإِنْ أَنْفَقَ الْمُودَعُ بَعْضَهَا ثُمَّ رَدَّ مِثْلَهُ فَخَلَطَهُ بِالْبَاقِي فرمايي: که چيري مودَع د مالِ وديعت څه مال خرچ کړي [ځان ته نفقه په رانيسي] بيا د هغه په څېر مال واپس کړي او په مالِ وديعت يې گډ کړي ضَمِنَ الْجَمِيعَ نو هغه د ټوله مالِ وديعت ضامن کيږي لِأَنَّهُ خَلَطَ مَالَ غَيْرِهِ بِمَالِهِ ځکه چي هغه د بل چا مال په خپل مال گډ کړی فَيَكُونُ اسْتِهْلَاكًا نو ځکه دا به هلاکول [ضايع کول] وي عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي تَقَدَّمَ په هغه توگه کوم چي مخکي تېر سوه قَالَ: وَإِذَا تَعَدَّى الْمُودَعُ فِي الْوَدِيعَةِ فرمايي: او که چيري مودَع په وديعت کي تعدیٰ [نا حقه تصرّف] وکړي بِأَنْ كَانَتْ دَابَّةً فَرَكِبَهَا په دې توگه چي وديعت ځاروی وي او مودَع پر هغه سپور سي أَوْ ثَوْبًا فَلَبِسَهُ يا وديعت کپړه وي او مودَع هغه واغوندي أَوْ عَبْدًا فَاسْتَخْدَمَهُ يا غلام وي او مودَع له هغه څخه خدمت واخلي أَوْ أَوْدَعَهَا غَيْرَهُ يا مودَع دا وديعت بل چا ته امانتاً کښېږدي ثُمَّ أَزَالَ التَّعَدِّيَ فَرَدَّهَا إِلَى يَدِهِ بيا مودَع دغه تعدی [نا حقه تصرف] ختم کړی او وديعت بيرته خپل لاس ته راوړي [يعني په خپل قبضه کي يې واخلي] زَالَ الضَّمَانُ نو ضمان زائليږي [يعني په دې صورت کي مودَع له ضمان څخه بري کيږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَبْرَأُ عَنِ الضَّمَانِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مودَع له ضمان څخه نه بري کيږي لِأَنَّ عَقْدَ الْوَدِيعَةِ

اِرْتَفَعَ حِينَ صَارَ ضَامِنًا ځکه چي [دلته] د هغه د ضامن ګرځېدلو سره سمدستي عقد وديعت ختم سو لِلْمُنَافَاةِ د منافات په وجه [يعني ځکه چي د ضمان او امانت په مينځ کي منافات او اختلاف دی] فَلَا يَبْرَأُ إِلَّا بِالرَّدِّ عَلَى الْمَالِكِ نو ځکه هغه به [له ضمان څخه] نه بري کيږي مګر په واپس کولو سره و مالک ته وَلَنَا: أَنَّ الْأَمْرَ بَاقٍ او زموږ دليل دا دی: چي د وديعت امر [حکم] اوس هم باقي دی [يا په بله ويناداچي د وديعت معامله اوس هم باقي پاته ده] لِإِطْلَاقِهِ ځکه امر مطلق دی [يعني ځکه چي مالک مودَع ته د وديعت د حفاظت کولو مطلق امر او حکم کړی دی] وَارْتِفَاعُ حُكْمِ الْعَقْدِ ضَرُورَةَ ثُبُوتِ نَقِيضِهِ او د عقد حکم ختمېدل د هغه د نقيض [ضمان] ثابتېدلو د ضرورت په وجه دي فَإِذَا ارْتَفَعَ لېکن کله چي نقيض ختم سي عَادَ حُكْمُ الْعَقْدِ نو د عقد حکم به واپس راګرځي كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَهُ لِلْحِفْظِ شَهْرًا لکه يو سړی چي بل څوک د حفاظت [چوکيدارۍ] لپاره يوه مياشت په أجرت [په نوکري] ونيسي فَتَرَكَ الْحِفْظَ فِي بَعْضِهِ بيا هغه [نوکر (مودَع)] د مياشتي په څه ورځو کي حفاظت [چوکيداري] پرېږدي ثُمَّ حَفِظَ فِي الْبَاقِي بيا په ما بقي ورځو کي حفاظت وکړي [نو هغه ټوله مياشت حفاظت کونکی شمارل کيږي] فَحَصَلَ الرَّدُّ إِلَى نَائِبِ الْمَالِكِ نو [په دې مسئله کي] د مالک و نائب ته واپس کول موجود سوه.

**اللغات**: ﴿اختلط﴾ د افتعال ماضي ده: سره ګډېدل (يو په بل ګډېدل)، ﴿انشق﴾ د انفعال ماضي ده: څيرېدل (څيري کېدل)، خلاصېدل، ﴿الكيسان﴾ تثنيه د كِيْسٌ ده: هغه خلته کوم چي له ټوکر څخه جوړه سوې وي چي په هغه کي به سپين زر، سره زره (دراهم او دنانير)، ملغلري، ياقوت او داسي نور مالونه ساتل کېدل، جمع: أَكْيَاس، ﴿الصنع﴾ عمل، کار، ﴿تَعَدَّى﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: تجاوز او زياتوب کول، ناحقه تصرف کول، ﴿ارتفع﴾ د افتعال ماضي ده: پوره ته کېدل (ليري کېدل)، ختمېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که مودَع په يوه خلته کي خپل مال اېښی وي او په بله خلته کي يې د وديعت مال اېښی وي، بيا هغه دواړي خلتي څيري سي او دواړه مالونه يو د بل سره ګډ سي، نو په دې صورت کي مودَع نه ضامن کيږي؛ ځکه چي د هغه له طرفه هيڅ تعدی (ناحقه تصرّف) موجود نه سو، ها! مودَع او مودِع

دواړه په دغه مال کي شريک کيږي؛ ځکه چي د دواړو مالونه سره ګډ سوه او اوس له شرکت څخه بغير د تقسيم هيڅ صورت نسته.

(۲)... که مودَع له مال وديعت څخه بعضي مال خرچ کړي لېکن بيا د خرچ کړى سوي مال په اندازه مال په مال وديعت ګډ کړي، نو په دې صورت کي هغه د ټوله مال ضامن کيږي؛ د بعضي مال ضمان د انفاق (خرڅ کولو) په وجه پر لازميږي او د بعضي ضمان د خلط (ګډولو) په وجه پر لازميږي؛ ځکه چي انفاق او خلط دواړه د تعدى له قبيلې څخه دي.

(۳)... دريمه مسئله دا ده چي که مودَع په وديعت کي تعدى او نا حقه تصرف وکړي، مثلاً وديعت آس يا موټر سايکل او مودَع پر هغه سپور سي، يا وديعت يو کپړه وي او مودَع هغه واغوندي، يا وديعت غلام وي او مودَع په هغه د ځان خدمت وکړي، يا وديعت بل چا ته کېنېږدي، لېکن بيا هغه دا کارونه پرېږدي او تعدى ختم کړي او وديعت په خپله قبضه کي واخلي، نو زموږ په نېز مودَع له ضمان څخه بري کيږي

لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله له ضمان څخه نه بري کيږي؛ ځکه چي په دې وديعت کي د تعدى او نا حقه تصرف کولو په وجه يو وار ضامن سو، او کله چي هغه ضامن سو، نو عقد وديت ختم سي، نو ځکه اوس دويم وار دا عقد نه بحاله کيږي، ځکه چي په ضمان او امانت کي تضاد او اختلاف دی، نو ځکه اوس له ضمان ورکولو څخه بغير د مودَع لپاره بله چاره نسته.

زموږ دليل دا دی چي مودِع (مالک) ومودَع ته د وديعت د مطلق حفاظت حکم کړی دی (احفظ هذا المال [د دې امانت مال حفاظت وکړه!) کوم چي ټولو وختونو لره شامل دی، لهذا د تعدى له ختمېدلو څخه وروسته به دا حکم باقي پاتيږي، هو! څرنګه چي د تعدى په وخت کي د دغه حکم (امانت) نقيض د ضمان په شکل ثابت سوى وي، نو ځکه په هغه وخت کي دا عقد ضرور تا ختم سوی وي، لېکن کله چي مودع تعدى ختم کړي، نو نقيض هم ختم سي، نو ځکه دوباره به حکم واپس راګرځي او مودَع به د مالک (يعني د مودِع) نائب کيږي، نو ځکه د هغه په خپل قبضه کي وديعت واپس کول (خپل لاس ته راوړل) د مالک د واپس اخيستلو په څېر دي (يعني ګواکي مالک خپل وديعت له مالک څخه واپس واخيستى او قبضه يې پر وکړه) او د مالک د واپس اخيستلو په صورت کي پر مودَع ضمان نه لازميږي، نو ځکه په پورتنى مسئله کي به هم پر مودَع ضمان نه لازميږي. د دې مثال دا دی لکه حامد چي د خپل سامان د حفاظت لپاره زيد يوه مياشته د چوکيدار او محافظ په توګه وټاکي، او زيد پنځلس ورځي چوکيداري وکړي او پنځه ورځي هغه پرېږدي بيا په آخر کي لس ورځي چوکيداري وکړي، نو زيد ټوله مياشت چوکيدار او حفاظت کونکی شمارل کيږي او پر هغه د پنځه ورځو ضمان (تاوان) نه لازميږي، همداسي به په پورتنى مسئله کي هم د وديعت له استعمالولو څخه وروسته د

استعمال او تعدی په ختمولو سره مودَع د مخکي په څېر مودَع شمارل کیږي او پر هغه به ضمان نه لازمیږي.

## له ودیعت څخه د مودَع د انکار کولو حکم

قَالَ: فَإِنْ طَلَبَهَا صَاحِبُهَا فرمايي: كه چيري د وديعت مالک [مودِع] د خپل وديعت طلب وكړي [چي ما ته خپل وديعت واپس كړه!] فَجَحَدَهَا او مودَع د هغه انكار وكړي [چي تا ما ته وديعت نه دی ايښی] ضَمِنَهَا نو مودَع د وديعت ضامن كيږي لِأَنَّهُ لَمَّا طَالَبَهُ بِالرَّدِّ ځكه كله چي مودِع [مالک] له مودَع څخه د واپسۍ مطالبه وكړه فَقَدْ عَزَلَهُ عَنِ الْحِفْظِ نو هغه مودَع [د خپل وديعت] له حفاظت كولو څخه معزوله كړی فَبَعْدَ ذٰلِكَ هُوَ بِالْإِمْسَاكِ غَاصِبٌ مَانِعٌ نو تر دې وروسته مودَع د وديعت په راګرځولو سره غصب كونكی او منع كونكی دی فَيَضْمَنُهَا نو ځكه هغه به د وديعت ضامن كيږي فَإِنْ عَادَ إِلَى الِاعْتِرَافِ او كه چيري [تر دې وروسته] مودَع اقرار ته راوګرځي [يعني د وديعت اقرار وكړي] لَمْ يَبْرَأْ عَنِ الضَّمَانِ نو هغه له ضمان څخه نه بري كيږي لِارْتِفَاعِ الْعَقْدِ ځكه چي عقد ختم سو إِذِ الْمُطَالَبَةُ بِالرَّدِّ رَفْعٌ مِنْ جِهَتِهِ ځكه د واپسۍ مطالبه كول د مودِع له طرفه د عقد ختمول دي وَالْجُحُودُ فَسْخٌ مِنْ جِهَةِ الْمُودَعِ او نكار كول د مودَع له طرفه فسخ ده كَجُحُودِ الْوَكِيلِ الْوَكَالَةَ لكه له وكالت څخه د وكيل انكار كول وَجُحُودِ أَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ الْبَيْعَ او لكه له بيع څخه د يوه عاقد انكار كول فَتَمَّ الرَّفْعُ نو ځكه رفع [د عقد ختمېدل] پوره سوه [يعني د وديعتا ايښوولو عقد فسخ سو] أَوْ لِأَنَّ الْمُودَعَ يَتَفَرَّدُ بِعَزْلِ نَفْسِهِ بِمَحْضَرٍ مِنَ الْمُسْتَوْدِعِ يا په دې وجه [عقد ختميږي] چي د مودِع په موجوديت كي مودَع د خپل ځان په معزوله كولو كي مستقل دی [مطلب دا چي مودَع د خپل ځان معزوله كولو ملكيت (اختيار) لري] كَالْوَكِيلِ يَمْلِكُ عَزْلَ نَفْسِهِ بِحَضْرَةِ الْمُوَكِّلِ لكه وكيل چي د مؤكل په موجوديت كي د خپل ځان معزوله كولو ملكيت لري وَإِذَا ارْتَفَعَ او كله چي عقد ختم سي لَا يَعُودُ إِلَّا بِالتَّجْدِيدِ نو له نوي كولو څخه بغير هغه واپس نه راګرځي فَلَمْ يُوجَدِ الرَّدُّ إِلَى نَائِبِ الْمَالِكِ لهذا د مالک د نائب وطرف ته [د وديعت] واپس كول موجود نه سوه بِخِلَافِ الْخِلَافِ ثُمَّ الْعَوْدِ إِلَى الْوِفَاقِ په خلاف [د عقد په حكم كي] د مخالفت كولو او بيا د اتفاق [موافقت] وطرف ته د واپس كېدلو وَلَوْ جَحَدَهَا عِنْدَ غَيْرِ صَاحِبِهَا او كه

چيرې مودَع د وديعت له مالک څخه بغير د بل چا سره د وديعت انکار وکړي ايعني د بل چا مخته ووايي چې هغه ما ته هيڅ وديعت نه دی ايښی] لَا يَضْمَنُهَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز نه ضامن کيږي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله لِأَنَّ الْجُحُودَ عِنْدَ غَيْرِهِ مِنْ بَابِ الْحِفْظِ ځکه چې د بل چا سره انکار کول [هم] د حفاظت يوه طريقه ده لِأَنَّ فِيهِ قَطْعَ طَمَعِ الطَّامِعِينَ ځکه په دې سره د طمع کونکو [يعني د وديعت د غلا او غصب اراده کونکو] طمع ختميږي وَلِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ عَزْلَ نَفْسِهِ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنْهُ أَوْ طَلَبِهِ او ځکه چې د مودِع له موجوديت يا د هغه له طلب څخه بغير مودَع د خپل ځان معزوله کولو ملکيت [اختيار] نه لري فَبَقِيَ الْأَمْرُ نو ځکه معامله [عقد] باقي پاته سو بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ بِحَضْرَتِهِ په خلاف د هغه صورت کله چې انکار [جحود] د مودِع په موجوديت کې وي.

**اللغات:** ﴿جحد﴾ د فتح ماضي ده: د علم باوجود انکار کول (يعني د يو شي په باره کې د خبر لرلو باوجود د هغه انکار کول)، د يو چا د حق انکار کول. ﴿عزل﴾ د ضرب مصدر دی: معزوله کول، برطرفه کول. له کار او منصبه ليرې کول. ﴿الإمساك﴾ د افعال مصدر دی: منع کول، راګرځول. ﴿فسخ﴾ د فتح مصدر دی: معامله (عقد) ماتول، ختمول. ﴿يتفرّد﴾ د تفعّل مضارع ده: يوازينی کېدل (په يو کار سره مستقل کېدل)، عليحده کېدل. ﴿طمع﴾ تمه، لالچ، اسره.

**تشريح:** مسئله خو ښکاره ده چې که مودِع (مالک) له مودَع څخه د وديعت د واپسۍ مطالبه وکړي او مودَع د وديعت انکار وکړي يا له ورکولو څخه منع وکړي، نو په دې صورت کې مودَع ضامن کيږي؛ ځکه چې د مودِع له طرفه د واپسۍ مطالبه کول په حقيقت کې مودَع د حفاظت له منصبه ليرې کول او معزوله کول دي، لهذا د واپسۍ تر مطالبې د هغه انکار کول يا نه ورکول ظلم دي، او ظالم ضامن ګرځي (يعني پر هغه د خپل ظلم ضمان [تاوان] لازميږي)، نو ځکه دا مودَع به هم ضامن ګرځي. او دا ضمان پر هغه باقي پاتيږي حتیٰ که هغه له انکار څخه وروسته اقرار وکړي، نو بيا هم محض په اقرار سره هغه له ضمان څخه نه بري کيږي، هـا! کله چې هغه و مودِع (مالک) ته وديعت وسپاري، نو بيا هغه خلاصيږي؛ ځکه چې د مالک له طرفه د واپسۍ مطالبه کول داسې دي لکه عقد ختمول (يعني لکه د وديعت عقد ختمول) همدارنګه د مودَع انکار کول داسې دي لکه عقد فسخ کول (يعني لکه د وديعت عقد ماتول او ختمول)، نو په ختمولو او فسخ کولو سره خو د عقد نوم و نښان هم ختم سو. لهذا اوس له نوي

عقد (عقدِ جدید) څخه بغیر دا عقد واپس نه سي راګرځېدای، نو ځکه مودَع ته پکار دي چي ژر تر ژره مودِع ته وديعت واپس کړي او خپل ځان خلاص کړي.

أو لأن المودَع إلخ: فرمايي چي په پورتني مسئله کي د عقد ماتېدلو او ختمېدلو دويم دليل دا دی چي د مودِع (مالک) په موجوديت کي مودَع تن تنها د ځان معزوله کولو يعني د عقد فسخ کولو او ماتولو ملکيت لري، او د هغه انکار د فسخ کولو او ماتولو علامت دی، نو ځکه په دې حواله سره هم عقد ختم سو، لهذا له نوي عقد څخه بغير اوس مودَع د وديعت ساتلو مستحق نه دی؛ ځکه چي تر انکار (جحود) وروسته هغه د مالک (مودِع) له طرفه نائب پاته نه سو چي د هغه قبضه د مالک قبضه وشمارل سي او عقد باقي پاته سي. د دې په خلاف په مخکني مسئله کي يعني کله چي مودَع د عقد د حکم په خلاف کار وکړي او کار پرېږدي، نو بيا هم هغه د مالک نائب پاتېږي؛ ځکه د عقد په خلاف کار کولو سره عقد فاسد يا ختم نه ګرځي.

ولو جحدها إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مودَع له مودِع (مالک) څخه بغير د بل چا مخته د وديعت انکار وکړي، نو په دې سره عقد (د وديعت عقد) نه فسخ کېږي؛ ځکه چي د بل چا له غلا، غصب او شر څخه د بچ کېدلو لپاره مودَع او امين همداسي حربې استعمالوي، نو ځکه دا به د حفاظت مؤکد کول وي نه ختمول. دويم دليل دا دی چي د مودِع (مالک) په ناموجوديت کي يا د هغه له مطالبې څخه بغير مودَع تنها د وديعت عقد نه سي ختمولای او ځان نه سي معزوله کولای، نو ځکه په دې حواله سره هم مودِع (مالک) په ناموجوديت کي د بل چا مخته د مودَع انکار کول به فسخ نه شمارل کېږي.

## د سفر په وخت کي د ځان سره د وديعت ساتلو حکم او تفصيل

قَالَ: وَلِلْمُودَعِ أَنْ يُسَافِرَ بِالْوَدِيعَةِ وَإِنْ كَانَ لَهَا حِمْلٌ وَمُؤْنَةٌ فرمايي: او موع ته دا اختيار سته چي د وديعت سره سفر وکړي که څه هم وديعت لره بوج او خرچه وي [يعني که څه هم وديعت دروند او بار والا شی وي چي د هغه پر وړلو أجرت او خرچه پرېوځي] عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [دا حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا❀: لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ إِذَا كَانَ لَهَا حِمْلٌ وَمُؤْنَةٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي که وديعت لره بوج او خرچه وي نو مودَع ته دا اختيار نسته [چي په سفر کي هغه د ځان سره يووسي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دواړو صورتونو کي هغه ته د دې

---

❀ القول الراجح: قول الإمام، كما ظهر من دأب المصنف رَحِمَهُ الله، لأنه أجاب عن قولهما بقوله "قلنا مونة الردّ يلزمه في ملكه ضرورة امتثال امره..."، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۵۵۶)، والهندية (ج:۴، ص:۳۴۳). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۱۵]

اختيار نسته لِأَبِي حَنِيفَةَ إِطْلَاقُ الْأَمْرِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د حكم مطلق والي دی ايعني مودِع و مودَع ته د حفاظت كولو مطلق حكم كړی دی] وَالْمَفَازَةُ مَحَلٌّ لِلْحِفْظِ إِذَا كَانَ الطَّرِيقُ آمِنًا او كله چي لاره په امن وي نو دښت [صحرا] هم د حفاظت محل دی وَلِهٰذَا يَمْلِكُهُ الْأَبُ وَالْوَصِيُّ فِي مَالِ الصَّبِيِّ او په همدې وجه پلار او وصي د بچي په مال کي د دې [يعني د بچي د مال سره د سفر كولو] اختيار لري وَلَهُمَا: أَنَّهُ تَلْزَمُهُ مُؤْنَةُ الرَّدِّ فِيمَا لَهُ حِمْلٌ وَمُؤْنَةٌ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي كوم مال لره بوج او خرچه وي هغه خرچه پر مالک لازميږي وَالظَّاهِرُ أَنَّهُ لَا يَرْضَى بِهِ او ښكاره دا ده چي مالک به په دې راضي نه وي فَيَتَقَيَّدُ بِهِ نو ځكه دا [د سفر اختيار] به په هغه شي سره مقيد كيږي [چي هغه لره بوج او خرچه نه وي] وَالشَّافِعِيُّ يُقَيِّدُهُ بِالْحِفْظِ الْمُتَعَارَفِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله هغه په متعارف حفاظت سره مقيد كوي وَهُوَ الْحِفْظُ فِي الْأَمْصَارِ او هغه [متعارف] په ښارونو کي حفاظت كول دي وَصَارَ كَالِاسْتِحْفَاظِ بِأَجْرٍ او دا داسي سوه لكه په أجرت سره په بل چا حفاظت كول قُلْنَا: مُؤْنَةُ الرَّدِّ تَلْزَمُهُ فِي مِلْكِهِ ضَرُورَةَ امْتِثَالِ أَمْرِهِ موږ [جوابًا] وايو: چي پر مالک د واپسۍ خرچه د هغه په ملكيت کي د هغه د حكم پوره كولو په ضرورت سره لازميږي فَلَا يُبَالِي بِهِ نو ځكه په هغه به پروا نه كيږي وَالْمُعْتَادُ كَوْنُهُمْ فِي الْمِصْرِ لَا حِفْظُهُمْ او عادت [او متعارف] په ښار کي د حفاظت كونكو اوسېدل دي نه [په ښار کي] د دوی حفاظت كول وَمَنْ يَكُونُ فِي الْمَفَازَةِ يَحْفَظُ مَالَهُ فِيهَا او څوک چي په دښت کي وي [لكه كوچيان] نو هغوی هلته د خپل مال حفاظت كوي بِخِلَافِ الِاسْتِحْفَاظِ بِأَجْرٍ په خلاف په أجرت سره په بل چا حفاظت كول لِأَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ ځكه چي دا د معاوضې عقد دی فَيَقْتَضِي التَّسْلِيمَ فِي مَكَانِ الْعَقْدِ نو هغه د عقد په ځای کي د ورسپارلو تقاضا كوي وَإِذَا نَهَاهُ الْمودِع أَنْ يَخْرُجَ الْوَدِيعَةَ او كله چي مودِع هغه [مودَع] له دې څخه منع كړي چي وديعت [له ښاره] بهر وباسي فَخَرَجَ بِهَا بيا مودَع هغه [له ښاره] بهر وباسي ضَمِنَ نو ضامن كيږي لِأَنَّ التَّقْيِيدَ مُفِيدٌ ځكه چي دا قيد لګول مفيد دي إِذِ الْحِفْظُ فِي الْمِصْرِ أَبْلَغُ ځكه چي په ښار کي حفاظت كول زيات كامل دي [يعني په ښار کي د شي پوره حفاظت كيږي] فَكَانَ صَحِيحًا نو ځكه دا قيد لګول به صحيح وي.

**اللغات**: ﴿حِمْل﴾ دلغت په كتابو کي دا لفظ د حاء په كسره سره د څو معناوو لپاره استعمال سوی دی چي له هغه څخه دوې معناوي دا دي: ① درونډ والی (بوج، ثقل)، هغه شی كوم چي (د انسان يا څاروي) پر شا پورته

کړی سي، يعني بار...، او په حاشيه کي ذکر سوي دي چي حمل د حاء په فتحه سره د هغه معنیٰ ده: پورته کول، ﴿مؤنة﴾ خرچه، لګښت (مصرف)، مشقت، ﴿المفازة﴾ دښت، بيابان، صحرا، ﴿المتعارف﴾ د تفاعل اسم فاعل دی: په عرف کي مشهوره او رواج، الحفظ المتعارف: داسي حفاظت کوم چي د خلګو په عرف کي رواج او عادت وي، ﴿الاستحفاظ﴾ د استفعال مصدر دی: له يو چا څخه د حفاظت طلب کول (په بل چا حفاظت کول)، محافظ او چوکيدار جوړول، ﴿امتثال﴾ د افتعال مصدر دی: حکم او فرمان منل (پر ځای کول)، حکم پوره کول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي مودَع د وديعت شی په سفر د ځان سره وړلای سي، برابره ده د هغه پر وړلو خرچه پرېوځي، که نه (يعني برابره ده هغه دروند او باروالا شی وي کوم چي په اُجرت او خرچه سره وړل کيږي او که سپک شی وي)، دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي که د هغه پر وړلو خرچه نه پرېوځي، نو مودَع هغه په سفر وړلای سي، لېکن که خرچه پرېوځي، نو هغه ته د دې اختيار او اجازت نسته. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي برابره ده خرچه پرېوځي، که نه، په دواړو صورتونو کي مودَع د وديعت شی په سفر نه سي وړلای.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي مودِع (مالک) و مودَع ته د مطلق حفاظت حکم کړی دی او مطلق وديعت يې ورسپارلی دی او په دې کي يې هيڅ قيد نه دی لګولای، نو ځکه به مودَع ته د وديعت سره د سفر کولو او د هغه د وړلو اختيار وي، برابره ده د هغه پر وړلو خرچه پرېوځي، که نه. په همدې وجه خو د بچي پلار او د هغه وصي ته دا اختيار سته چي د بچي مال په سفر يووسي، حال دا چي د هغو ولايت مبني بر شفقت او مصلحت وي (لکه مخکي چي شو ځله ذکر سوي دي) او په سفر کي د بچي د مال په وړلو کي شفقت او مصلحت نسته (ځکه چي د ضايع کېدلو خطره يې سته)، لهذا کله چي وصي او پلار ته هم دا اختيار سته، نو مودَع ته به په درجه اولیٰ دا اختيار حاصل وي؛ ځکه چي د هغه ولايت مبني بر شفقت او مصلحت نه وي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي که د وديعت پر وړلو او راوړلو خرچه پرېوځي نو دا خرچه پر مالک لازميږي، حال دا چي مالک به د وديعت د خرچې په زغملو او اداء کولو راضي نه وي، نو ځکه په سفر کي د وديعت وړلو اختيار به په هغه شي سره مقيد کيږي چي د هغه پر وړلو او راوړلو خرچه نه پرېوځي.

**د امام شافعي دليل:** امام شافعي رَحِمَهُ الله د وديعت حفاظت په حفظ مُتعارف سره مقيد کړی دی، او حفظ متعارف دا دی چي مودَع په ښار کي د هغه حفاظت وکړي، او په ښار کي د حفاظت کولو لپاره د

خرچې او سفر ضرورت نه پرېوځي، نو ځکه مودَع ته به د سفر کولو اختيار نه وي. لکه کله چې يو سړی د خپل سامان د حفاظت او چوکيدارۍ لپاره يو څوک په اُجرت (په مزدورۍ) ونيسي، نو دغه استحفاظ بالاجر د ښار سره خاص وي او محافظ (چوکيدار) ته په سفر د هغه سامان وړلو اجازت نه وي.

قلنا إلخ: دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د دليل جواب دی، حاصل يې دا دی چې ستاسو دا وينا چې "په دې سره پر مالک د وړلو او راوړلو خرچه لازميږي" موږ نه تسليموو؛ ځکه چې دا خرچه د هغه د حکم (يعني د مالک د حفاظت کولو د حکم) د پوره کولو په وجه پرېوځي او که چيرې مودَع دا وديعت پرېږدي او په سفر ولاړ سي او وديعت ضايع او هلاک سي نو بيا به څه کيږي!؟ لهذا د معمولي خرچې په خاطر به ټوله مالِ وديعت په هلاکت کې نه اچول کيږي. همدارنګه امام شافعي رَحِمَهُ الله چې حفظ وديعت د حفظ في الأمصار سره خاص کړی دی، دا هم صحيح نه دي بلکې له هغه څخه مراد دا دي چې که مودَع په ښار کې وي نو هلته دې حفاظت کوي او که په صحرا کې وي نو په صحرا کې دې حفاظت کوي؛ ځکه چې په صحرا کې اوسېدونکي خلک (مثلا کوچيان) هم هلته د خپل او نورو خلکو د سامان حفاظت کوي. او امام شافعي رَحِمَهُ الله چې هغه پر استحفاظ بالاجر قياس کړی دی، دا هم صحيح نه دي؛ ځکه چې استحفاظ عقد معاوضه دی، او په عقد معاوضه کې د عقد په ځای کې تسليم (ورسپارل) ضروري وي او په سفر کې د سامان په وړلو سره تسليم نه متحقق کيږي.

وإذا نهاه إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مودِع (مالک) د وديعت له بهر ايستلو څخه مودَع منع کړی وي چې "ته! به له ښاره بهر (دباندي) وديعت نه باسي"، لېکن بيا هم مودَع دا وديعت بهر يووسي، نو هغه ضامن کيږي؛ ځکه چې دا ممانعت (منع کول) مفيد دي؛ ځکه په ښار کې حفاظت کول زيات کامل او بليغ دي، نو ځکه په دې صورت کې د مودَع لپاره د هغه د حکم مخالفت کول صحيح نه دي، او که هغه مخالفت وکړي، نو ضمان به اداء کوي.

## د مشترکه وديعت حکم

قَالَ: وَإِذَا أَوْدَعَ رَجُلَانِ عِنْدَ رَجُلٍ وَدِيعَةً فرمايي: او کله چې دوه خلک د يوه سړي سره وديعت کښيږدي (يعني هغه ته يو شی امانتا کښيږدي) فَحَضَرَ أَحَدُهُمَا وَطَلَبَ نَصِيبَهُ مِنْهَا بيا له هغه دوو خلکو څخه يو سړی (يو مودِع) راسي او له وديعت څخه خپله حصه طلب کړي لَمْ يُدْفَعْ إِلَيْهِ حَتَّى يَحْضُرَ الْآخَرُ نو تر څو چې دويم سړی (دويم مودِع) رانه سي تر هغه وخته به ده ته خپله حصه نه ورکول

کيږي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [دا حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [دی] وَقَالَا ۞: يُدْفَعُ إِلَيْهِ نَصِيبُهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي ده ته به خپله حصه ورکول کيږي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: ثَلَاثَةٌ اِسْتَوْدَعُوا رَجُلًا أَلْفًا او په جامع صغير کي [داسي ذکر سوي] دي: درې کسانو يو سړي ته زر درهمه په امانت کښېښول فَغَابَ اثْنَانِ بيا دوه کسان غائب سول فَلَيْسَ لِلْحَاضِرِ أَنْ يَأْخُذَ نَصِيبَهُ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حاضر کس ته دا اختيار نسته چي خپله حصه واخلي وَقَالَا: لَهُ ذٰلِكَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي حاضر ته د دې اختيار سته وَالْخِلَافُ فِي الْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ او دا اختلاف په کَيلي او وزني شي کي دی وَهُوَ الْمُرَادُ بِالْمَذْكُورِ فِي الْمُخْتَصَرِ او په مختصر القدوري [متن] کي چي کوم اختلاف ذکر سوی دی له هغه څخه هم دغه اختلاف مراد دی لَهُمَا: أَنَّهُ طَالَبَهُ بِدَفْعِ نَصِيبِهِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي اول مودِع [حاضر] له مودَع څخه د خپلي حصې د ورکولو مطالبه کړې ده [چي ما ته خپله حصه راکړه!] فَيُؤْمَرُ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ نو ځکه مودَع ته به د [هغه د حصې] ورکولو حکم کيږي كَمَا فِي الدَّيْنِ الْمُشْتَرَكِ لکه څرنګه چي په مشترک قرض کي کيږي وَهٰذَا لِأَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِتَسْلِيمِ مَا سَلَّمَ إِلَيْهِ او دا حکم په دې وجه دی چي اول مودِع [حاضر] له مودَع څخه د هغه څه د سپارلو مطالبه کوي کوم چي ده هغه ته ورسپارلي دي وَهُوَ النِّصْفُ او هغه نصف [د وديعت نيمه حصه] ده وَلِهٰذَا كَانَ لَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ او په همدې وجه هغه ته د خپل حق اخيستلو اختيار سته فَكَذَا يُؤْمَرُ هُوَ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ نو مودَع ته به هم دا حکم کيږي چي مودِع [حاضر] ته [خپله حصه] ورکړي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ طَالَبَهُ بِدَفْعِ نَصِيبِ الْغَائِبِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دیٰ: چي اول مودِع [حاضر] د غائب [دويم مودِع] د حصې ورکولو مطالبه کړې ده لِأَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِالْمُفْرَزِ ځکه چي هغه د خپل جلا حصې [حق] مطالبه کوي وَحَقُّهُ فِي الْمُشَاعِ حالانکي د هغه حق په مشترکه حصه کي دی [ځکه چي د هغه حق مشترک سوی دی] وَالْمُفْرَزُ الْمُعَيَّنُ يَشْتَمِلُ عَلَى الْحَقَّيْنِ او مُعينه جلا حصه پر

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في العناية (ج:٧، ص:٤٥٩)، وفي رد المحتار (ج:٤، ص:٥٥٧). [القول الراجح ج:٢، ص:٢١۶]

دواړو حقونو مشتمله وي وَلَا يَتَمَيَّزُ حَقُّهُ إِلَّا بِالْقِسْمَةِ او د اول مودِع [حاضر] حق له تقسيم شخه بغير نه سي جلا کېدای وَلَيْسَ لِلْمُودَعِ وِلَايَةُ الْقِسْمَةِ او مودَع ته د تقسيم ولايت [اختيار] نسته وَلِهٰذَا لَا يَقَعُ دَفْعُهُ قِسْمَةً بِالْإِجْمَاعِ او په همدې وجه د هغه ورکول بالاتفاق تقسيم نه ګرځي بِخِلَافِ الدَّيْنِ الْمُشْتَرَكِ په خلاف د مشترک قرض لِأَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِتَسْلِيمِ حَقِّهِ ځکه چي [په هغه کي] يو شريک د خپل حق د سپارلو مطالبه کوي لِأَنَّ الدُّيُونَ تُقْضٰى بِأَمْثَالِهَا ځکه چي قرضونه بالمثل ادا کيږي قَوْلُهُ ''لَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ'' قُلْنَا: لَيْسَ مِنْ ضَرُورَتِهِ أَنْ يُجْبَرَ الْمُودَعُ عَلَى الدَّفْعِ او د ماتن د دې قول ''له أن يأخذه'' له طرفه موږ [جواباً] وايو: چي د اخيستلو [يا د اخيستلو د جائز کېدلو] لپاره دا ضروري نه ده چي مودَع پر ورکولو مجبوره کړی سي كَمَا إِذَا كَانَ لَهُ أَلْفُ دِرْهَمٍ وَدِيعَةً عِنْدَ إِنْسَانٍ وَعَلَيْهِ أَلْفٌ لِغَيْرِهِ لکه کله چي د يو سړي زر درهمه د بل انسان سره د وديعت په توګه موجود وي او پر هغه سړي د بل چا [مثلا د حامد] زر درهمه قرض باندي وي فَلِغَرِيمِهِ أَنْ يَأْخُذَهُ إِذَا ظَفِرَ بِهِ نو د هغه سړي قرضخواه [حامد] ته دا اختيار سته چي [د هغه] د وديعت زر درهمه واخلي کله چي پر هغه زر درهمو موقع پيدا کړي وَلَيْسَ لِلْمُودَعِ أَنْ يَدْفَعَهُ إِلَيْهِ [لېکن] مودَع ته دا حق نسته چي هغه قرضخواه ته ورکړي.

**اللغات**: ﴿نصيب﴾ حصه، حق، ﴿استودع﴾ د استفعال ماضي ده: په امانت ايښوول (امانتاً ورکول)، ﴿المكيل﴾ په کَيل (معلومه پيمانه سره) اندازه کېدونکی شی، پيمانه کېدونکی شی، ﴿مفرز﴾ د افعال اسم مفعول دی: جلا کړی سوی، عليحده کړی سوی، ﴿غريم﴾ دا لفظ له اضدادو څخه دی مقروض او قرضخواه دواړو ته وايي، دلته قرضخواه (د قرض مالک) څني مراد دی، ﴿ظفر﴾ د سمع د باب ماضي ده: کامیابېدل، بری ترلاسه کول، غالبېدل، د يو شي حاصلول (موقع حاصلول).

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که دوه خلک په مشترکه توګه د يوه مال مالکان وي او دوی خپل دا مشترک مال يو سړي مثلاً خالد ته په امانت کښېښېږدي، بيا له دوی څخه يو مودِع (مالک) يو خوا ته ولاړ سي او بل مودِع موجود وي او هغه له مودَع (خالد) څخه خپله حصه وغواړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي تر څو دويم (غائب) مودِع حاضر نه سي، تر هغه وخته به موجوده مودِع ته خپله حصه نه ورکول کيږي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د يوه مودِع (مالک) په ناموجوديت کي دويم مودِع ته خپله حصه ورکول کېدای سي. دا اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي

مال وديعت وزني او كَيلي شى وي او په هغه كي د كمي وزيا توب خطره او شبهه وي، لېكن كه مالِ وديَعت له وزني او كَيلي څخه بغير بل شى وي نو د هغه حكم جلا دى.

**د صاحبينو دليل:** دا دى چي دلته يوه مودِع له مودَع (خالد) څخه خپله حصه غوښتې ده او دا حصه هغه مودَع ته سپارلې ده، نو ځکه پر مودَع د دې حصې واپس كول لازم دي. د دې مثال دا دى لكه دوه كسان چي په يوه قرض كي شريكان وي او له هغو څخه يو غائب وي نو د حاضر كس لپاره دا اختيار سته چي له مقروض څخه خپل حق واخلي. او بل دا چي مودَع د مالک نائب دى، او مالک چي هر وخت وغواړي خپل حق اخيستلاى سي، نو ځكه مودَع ته هم پكار دي چي هر كله اصل مالک د خپل حق او حصې مطالبه وكړي، نو هغه ته دي خپل حق واپس كړي.

**د امام صاحب دليل:** دا دى چي دلته د دواړو مودعانو (مالكانو) مال يو د بل سره ګډ او مشترک دى، حال دا چي اول مدعي (حاضر مالک) خپله حصه جَلا غواړي، حالانكي حصه جلا نه ده، نو ګواكي دا مودِع د دويم غائب مودِع حصه غواړي، او هغه ته د دويم مودِع د حق او حصې غوښتلو هيڅ اختيار نسته، او نه مودَع (خالد) ته دا اختيار سته چي په خپله د وديعت مال تقسيم كړي او د اول مودِع (حاضر) حصه وركړي، لهذا دلته يوه مودِع ته د حصې وركولو هيڅ صورت نه جوړيږي، نو ځكه تر څو چي دويم غائب مودِع واپس را نه سي، تر هغه وخته به د اول مودِع مطالبه نه قبلول كيږي.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دا پر مشترک قرض قياسول صحيح نه دي؛ ځكه چي قرض قضاء (د اداء په اعتبار سره) مشترک نه وي او بل دا چي قرضونه بالمثل اداء كيږي او اخيستل كيږي، لهذا په هغه كي كه څه هم ظاهراً اشتراک وي لېكن معناً او باطناً اشتراک نه وي او د حاضر شريک پر مطالبه او غوښتنه هغه ته خپل حق وركول كيږي.

وقوله أن يأخذه إلخ: فرمايي اول مدعي (حاضر) ته د خپلي حصې وركولو په دليل او تاكيد د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دا خبره چي "مالک ته د خپل حق اخيستلو اختيار سته" موږ نه تسليموو؛ ځكه د مالک د دې حق دا مطلب نه دى چي د اول مودِع (حاضر) پر مطالبه مودَع د هغه د حق پر وركولو مجبوره كړى سي؛ ځكه كله چي دواړو په ګډه مودَع ته وديعت اينبى دى، نو ښكاره خبره ده چي د قاعدې مطابق دي د دواړو په موجوديت كي هغو ته خپل حق وركول سي، او يوه ته د وركولو په هكله پر مودَع زور او جبر كول صحيح نه دي. د دې مثال داسي دى لكه ادريس چي وزيد ته زر درهمه وديعتاً اينبى وي او پر ادريس د خالد زر درهمه قرض باندي وي، نو خالد ته دا اختيار سته چي كله هم د ادريس مال د يو چا سره ووينې او پر هغه موقع پيدا كړي، نو هغه دي واخلي، لېكن مودَع يعني زيد ته دا اختيار نسته چي د خالد سره مرسته او ښېګڼه وكړي او په خپله خوښه هغه ته د وديعت مال

ورکړي، همداسي حکم په پورتني مسئله کي هم دی چي مالک خو خپل حق اخيستلای سي، لېکن د ده نائب يعني مودَع په خپله خوښه هغه چا ته نه سي ورکولای.

## دوو کسانو ته قابلِ تقسيم وديعت ايښوول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنْ أَوْدَعَ رَجُلٌ عِنْدَ رَجُلَيْنِ شَيْئًا مِمَّا يُقَسَّمُ فرمايي: او که يو سړی دوو خلکو ته داسي شی کښېږدي کوم چي تقسيمېدلای سي لَمْ يَجُزْ أَنْ يَدْفَعَهُ أَحَدُهُمَا إِلَى الْآخَرِ نو جائز نه دي چي په دوی کي يو هغه شی بل يوه ته ورکړي وَلٰكِنَّهُمَا يَقْتَسِمَانِهِ لېکن دوی دواړه به هغه تقسيموي فَيَحْفَظُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفَهُ نو له دوی څخه هريو [هر مودَع] به د هغه شي د نصف حفاظت کوي وَإِنْ كَانَ مِمَّا لَا يُقَسَّمُ او که چيري هغه داسي شی وي کوم چي نه سي تقسيمېدلای [يعني د وديعت شی ناقابلِ تقسيم وي] جَازَ أَنْ يَحْفَظَهُ أَحَدُهُمَا بِإِذْنِ الْآخَرِ نو جائز دي چي يو مودَع د بل يوه له اجازت څخه بغير د هغه حفاظت وکړي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَهُ فِي الْمُرْتَهِنَيْنِ وَالْوَكِيلَيْنِ بِالشِّرَاءِ إِذَا سَلَّمَ أَحَدُهُمَا إِلَى الْآخَرِ او همدا حکم دی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه دوو کسانو په هکله کوم ته چي رهن ايښوول سوی وي يا هغوی [د يو شي] د رانيولو وکيلان وي، کله چي له دوی څخه يو بل يوه ته [رهن يا رانيول سوی شی] وسپاري وَقَالَا✽: لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَحْفَظَ بِإِذْنِ الْآخَرِ فِي الْوَجْهَيْنِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په دواړو صورتونو کي يوه ته د بل يوه له اجازت څخه بغير د حفاظت کولو اختيار سته لَهُمَا: أَنَّهُ رَضِيَ بِأَمَانَتِهِمَا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي مودِع [مالک] د دوی دواړو په امانت راضي سوی دی فَكَانَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يُسَلِّمَ إِلَى الْآخَرِ نو ځکه له دوی څخه به هريوه ته دا اختيار وي چي بل يوه ته يې وسپاري وَلَا يَضْمَنُهُ كَمَا فِيمَا لَا يُقَسَّمُ او ورسپارونکی به نه ضامن کېږي لکه څرنګه چي په هغه شي کي دا حکم دی کوم چي تقسيمېدلای نه سي وَلَهُ: أَنَّهُ رَضِيَ بِحِفْظِهِمَا وَلَمْ يَرْضَ بِحِفْظِ أَحَدِهِمَا كُلِّهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مودِع [مالک] د دوی دواړو په حفاظت راضي سوی دی او په دي

✽ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في العناية (ج:۷، ص:۴۶۰)، و في الدر المختار (ج:۳، ص:۵۵۷)، ومجمع الأنهر (ج:۳، ص:۴۷۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۱۹]

نه دی راضي سوی چي له دوی څخه صرف یو د هغه د ټوله مال [وديعت] حفاظت وکړي لِأَنَّ الْفِعْلَ مَتَى أُضِيفَ إِلَى مَا يَقْبَلُ الْوَصْفَ بِالتَّجَزِّيْ ځکه فعل [حفاظت] چي کله د داسي شي وطرف ته منسوب کړی سي کوم چي د تجزي په ذریعه وصف [تقسیم] قبلوي يَتَنَاوَلُ الْبَعْضَ دُونَ الْكُلِّ نو هغه فعل د دې شي بعضي حصې لپاره شامليږي، نه ټولي حصې لره فَوَقَعَ التَّسْلِيمُ إِلَى الْآخَرِ مِنْ غَيْرِ رِضَا الْمَالِكِ لهذا [دلته] بل يوه ته ورسپارل د مالک له اجازت څخه بغير واقع سوه فَيَضْمَنُ الدَّافِعُ نو ځکه ورکونکی [ورسپارونکی] به ضامن کيږي وَلَا يَضْمَنُ الْقَابِضُ او اخيستونکی به نه ضامن کيږي لِأَنَّ مُودَعَ الْمُودَعِ عِنْدَهُ لَا يَضْمَنُ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د مودَع مودع به ضامن کيږي وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا لَا يُقْسَمُ او دا حکم د نا تقسيمېدونکي [غيرِ قابلِ تقسيم] شي په خلاف دی لِأَنَّهُ لَمَّا أَوْدَعَهُمَا وَلَا يُمْكِنُهُمَا الِاجْتِمَاعُ عَلَيْهِ آنَاءَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَأَمْكَنَهُمَا الْمُهَايَأَةُ ځکه کله چي مو دِع [مالک] دوو خلکو ته وديعت ايښی دی، حال دا چي د دوی دواړو لپاره شپه او ورځ د هغه شي [د حفاظت] په هکله جمع کېدل ممکن نه دي او د دوی لپاره نوبت [واری] تاکل ممکن دي كَانَ الْمَالِكُ رَاضِيًا بِدَفْعِ الْكُلِّ إِلَى أَحَدِهِمَا فِي بَعْضِ الْأَحْوَالِ نو په ځيني احوالو کي به مالک صرف يوه مودَع ته د ټوله وديعت په ورکولو [ورسپارلو] راضي وي.

**اللغات**: ﴿مرتهن﴾ د افتعال د باب اسم فاعل دی: هغه کس کوم ته چي رهن (مرهون شی) ايښوول سوی وي، مثلاً زيد له خالد څخه قرض واخلي او د قرض په بدله کي يو شی خالد ته په ګرو (په رهن) کښېږدي. نو زيد ته رَاهِن وايي او خالد ته مُرتَهِن وايي او کوم شی چي په ګرو ايښوول سوی دی هغه ته مَرْهُون وايي. ﴿أُضِيف﴾ د افعال له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: يو شی بل شي ته منسوب کول. نسبت يې کول. ﴿تجزي﴾ د تفعّل مصدر دی: جزء، جزء (حصه، حصه) کېدل. ټوکره، ټوکره کېدل. پر څو حصو تقسيمېدل. ﴿يتناول﴾ د تفاعل مضارع ده: شاملېدل. ﴿المهايأة﴾ د مفاعلې مصدر دی: په نوبت. نوبت يو کار کول. مطلب دا چي د وديعت حفاظت په وار او نوبت سره کول چي زه به په فلانکي وخت کي د ټوله وديعت حفاظت کوم. او ته! به په دې وخت کي د هغه حفاظت کوې!.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که يو سړی د وديعت (امانت) په توګه دوو خلکو ته داسي مال کښېږدي کوم چي تقسيم قبلوي او په تقسيمولو سره نه عيبداره کيږي لکه وزني او کَيلي شی (مثلا

غنم، وربجي او داسي نور)، نو په دې صورت کې له دواړو مودَعانو څخه پر هر يوه د نصف، نصف مال وديعت حفاظت کول لازم دي او تنها د يوه مودَع په قبضه کې ټوله مال ورکول صحيح نه دي. ها! که چيري هغه مال تقسيم قبلوي، نو د يوه مودَع لپاره د هغه حفاظت کول صحيح او جائز دي. دا حکم دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی. او دوو مرتهنانو ته مرهون شي ايښوول او دوه کسان د رانيولو وکيلان جوړول هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر دغه حکم دي، يعني که مرهون شي او مؤکل به شي تقسيم قبلوي، نو د دواړو لپاره خپل، خپل ذمه واري اداء کول ضروري دي او که هغه تقسيم نه قبلوی، نو صرف يو مرتهن پوره شي په رهن ايښوولای سي او صرف يو وکيل شي رانيولای سي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي وديعت که تقسيم قبلوي او که يې نه قبلوي، په دواړو صورتونو کي له دوی څخه صرف يوه مودَع ته دا اختيار سته چي د بل مودَع په اجازه سره د وديعت حفاظت وکړي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي کله مودِع (مالک) دواړو خلکو ته مال وديعت سپارلی دی او دواړه يې امين ګرځولي دي، نو هغه د دوی دواړو په امانت راضي سوی دی، او د دواړو په امانت راضي کېدلو مطلب دا دی چي په دوی کي چي هر يو وغواړي، هغه دي وديعت د خپل ځان سره کښېږدي او مودِع (مالک) ته به نه پر دې څه اعتراض وي او نه به يو ضامن کيږي، لکه څرنګه چي په ناقابل تقسيم شيانو کي صرف يو مودَع د ټوله مال حفاظت کولای سي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي کله مودِع دواړه خلک امين (امانت ساتونکي) ګرځولي دي، نو هغه د دوی دواړو په حفاظت راضي سوی دی او په دې نه دی راضي سوی چي له هغوی دواړو څخه صرف يو د ټوله وديعت حفاظت وکړي، ځکه که هغه په دې راضي وای، نو بيا به يې دوو خلکو ته زحمت نه ورکولای، او څرنګه چي دلته د حفاظت فعل او حکم د داسي شي سره متعلق دی کوم چي تقسيم او تجزي قبلوي. نو ځکه د مالک (مودِع) د حفاظت حکم به په دواړو مودَعانو کي هر يوه لره نصف، نصف شامل وي او يوه مودَع ته به ټوله مال ورکول، د مالک د حکم او د هغه د رضا خلاف وي او ورکونکی به ضامن کيږي، نه اخيستونکی (قابض)؛ ځکه چي اخيستونکی مودَع المودَع دی. او مودع المودَع د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز نه ضامن کيږي.

ها! په نا قابل تقسيم وديعت کي د امام احب رَحِمَهُ الله په نېز هم يو مودَع د ټوله وديعت حفاظت کولای سي؛ ځکه چي د نا قابل تقسيم کېدلو په وجه د هغه تقسيمول ناممکن وي او هر وخت د دواړو مودعانو اجتماع هم ناممکنه ده. نو ځکه په دې صورت کي دي دواړه مودَعان نوبت او واری وټاکي او په خپل واري کي دي هر مودَع يوازي د ټوله وديعت حفاظت کوي، د دې لپاره چي وديعت

له ضایع کېدلو څخه وساتل سي او په داسي کولو به مالک هم راضي وي؛ ځکه کله چي د هغه مقصد (د ودیعت حفاظت) حاصل سي، نو ښکاره خبره ده چي هغه به په دې هم راضي وي چي یوازي یو مودَع د ټوله ودیعت حفاظت وکړي. لېکن دا راضي کېدل (رضامندي) د مجبوری په وجه دي؛ ځکه چي نا قابل تقسیم شی تقسیم نه قبلوي، نو ځکه پر نا قابل تقسیم شي قابل تقسیم شی قیاسول او هلته هم یوازي دیوه مودَع لپاره حفاظت جائز ګرځول صحیح نه دي.

## د مودِع (مالک) د منع کولو باوجود خپلي ښځي یا خپل کورنۍ والا ته ودیعت ورکول

قَالَ: وَإِذَا قَالَ: صَاحِبُ الْوَدِيعَةِ لِلْمُودَعِ: لَا تُسَلِّمْهَا إِلَى زَوْجَتِكَ فرمايي: او كه چيري د وديعت مالک و مودَع ته ووايي: چي خپلي ښځي ته دا وديعت مه سپاره! فَسَلَّمَهَا إِلَيْهَا لېکن مودَع هغې ته وديعت وسپاري لَا يَضْمَنُ نو مودَع نه ضامن کيږي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: إِذَا نَهَاهُ أَنْ يَدْفَعَهَا إِلَى أَحَدٍ مِنْ عِيَالِهِ او په جامع صغير كي [ذكر سوي] دي: که چيري مودِع [مالک] مودَع له دې څخه منع کړي چي هغه په خپل کورنۍ والا کي يوه ته وديعت ورکړي فَدَفَعَهَا إِلَى مَنْ لَا بُدَّ لَهُ مِنْهُ او مودع داسي کس ته وديعت ورکړي چي له هغه څخه د ده چاره نه وي لَا يَضْمَنُ نو نه ضامن کيږي كَمَا إِذَا كَانَتِ الْوَدِيعَةُ دَابَّةً فَنَهَاهُ عَنِ الدَّفْعِ إِلَى غُلَامِهِ لکه کله چي وديعت يو څاروی [سپارلی] وي او مودِع [مالک] له دې څخه مودَع منع کړي چي هغه دا څاروی خپل غلام ته ورکړي وَكَمَا إِذَا كَانَتْ شَيْئًا يُحْفَظُ فِي يَدِ النِّسَاءِ فَنَهَاهُ عَنِ الدَّفْعِ إِلَى امْرَأَتِهِ او لکه کله چي وديعت داسي شی وي کوم چي د ښځو په لاس کي د هغه حفاظت کيږي او مالک [مودِع] له دې څخه مودَع منع کړي چي هغه دا شی خپلي ښځي ته ورکړي وَهُوَ مَحْمَلُ الْأَوَّلِ او د اول صورت محمل هم دا دی لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ إِقَامَةُ الْعَمَلِ مَعَ مُرَاعَاةِ هَذَا الشَّرْطِ وَإِنْ كَانَ مُفِيدًا ځکه چي د دې شرط د رعايت کولو سره د کار اداء کول [يعني حفاظت کول او د مودِع (مالک) حکم پر ځای کول] ممکن نه دي، که څه هم دا شرط مفيد دی فَيَلْغُو نو ځکه [د مفيد والي باوجود] به دا شرط لغو کيږي وَإِنْ كَانَ لَهُ مِنْهُ بُدٌّ او که چيري له هغه څخه د مودَع چاره وي ضَمِنَ نو بيا مودَع [په وديعت ورکولو سره] ضامن کيږي لِأَنَّ الشَّرْطَ مُفِيدٌ ځکه چي دا شرط مفيدا دی لِأَنَّ مِنَ الْعِيَالِ مَنْ لَا يُؤْتَمَنُ عَلَى الْمَالِ ځکه [ځيني وخت] له کورنۍ والا څخه داسي څوک هم وي چي د مال [د حفاظت]

په باره کي پر هغه اعتماد نه سي کېدای وَقَدْ أَمْكَنَ الْعَمَلُ بِهِ مَعَ مُرَاعَاةِ هَذَا الشَّرْطِ او د دې شرط د رعايت کولو سره د مودَع لپاره عمل کول ممکن هم دي فَاعْتُبِرَ نو ځکه به دا شرط معتبر وي وَإِنْ قَالَ: إِحْفَظْهَا فِي هٰذَا الْبَيْتِ او که مودِع [مالک] ووايي: چي ته! په دغه خونه [کمره] کي وديعت محفوظ کړه! فَحَفِظَهَا فِي بَيْتٍ آخَرَ مِنَ الدَّارِ او مودَع له هغه خوني څخه بغير د کور په بله خونه کي وديعت محفوظ کړي لَمْ يَضْمَنْ نو نه ضامن کيږي لِأَنَّ الشَّرْطَ غَيْرُ مُفِيدٍ ځکه چي دا شرط مفيد نه دی فَإِنَّ الْبَيْتَيْنِ فِي دَارٍ وَاحِدَةٍ لَا يَتَفَاوَتَانِ فِي الْحِرْزِ ځکه د يوه کور دوې خوني د حفاظت په هکله سره متفاوت [او عليحده] نه وي [يعني د حفاظتګاه کېدلو په هکله په دواړو کي فرق او تفاوت نه وي] وَإِنْ حَفِظَهَا فِي دَارٍ أُخْرَى او که مودَع هغه وديعت په بل کور کي محفوظ کړي ضَمِنَ نو ضامن کيږي لِأَنَّ الدَّارَيْنِ يَتَفَاوَتَانِ فِي الْحِرْزِ ځکه چي د حفاظت په هکله دوه کورونه سره متفاوت وي فَكَانَ مُفِيدًا نو دا شرط به مفيد وي فَيَصِحُّ التَّقْيِيدُ نو ځکه [دغه] قيد لګول به صحيح وي وَلَوْ كَانَ التَّفَاوُتُ بَيْنَ الْبَيْتَيْنِ ظَاهِرًا که چيري [ديوه کورا] په دوو خونو کي ښکاره تفاوت [فرق] وي بِأَنْ كَانَتِ الدَّارُ الَّتِي فِيهَا الْبَيْتَانِ عَظِيمَةً وَالْبَيْتُ الَّذِي نَهَاهُ عَنِ الْحِفْظِ فِيهِ عَوْرَةً ظَاهِرَةً په دې توګه چي هغه کور غټ وي په کوم کي چي دوې خوني وي او په هغه خونه کي ښکاره عيب وي په کومه خونه کي چي مودِع [مالک] هغه له حفاظت کولو څخه منع کړی وي صَحَّ الشَّرْطُ نو بيا شرط صحيح کيږي.

**اللغات:** ﴿وديعة﴾ امانت، امانتاً ايښوول سوی شی، ﴿عيال﴾ کورنۍ والا، هغه کسان کوم ته چي سړی نفقه ورکوي، لکه ښځه، بچيان او داسي نور، ﴿بُدّ﴾ چاره، ﴿يؤتمن﴾ د افتعال مضارع مجهول ده: يو څوک امين او قابل اعتماد ګڼل، پر يو چا اعتماد او بروسه کول، ﴿يتفاوت﴾ د تفاعل له بابه مضارع ده: مختلف کېدل، يو شی له بل شي څخه بدلېدل (يعني فرق او توپير پکښي راتلل)، ﴿حَرز﴾ د حاء په فتحه سره: حفاظت، ساتنه، د حاء په کسر سره حِرْز: محفوظه ځای.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چي که مودِع (مالک) و مودَع ته مال وديعت کښېښودي او هغه ته ووايي چي "دا خپل ښځي ته مه ورکوه!"، نو په داسي صورت کي به دې ته کتل کيږي چي خپل ښځي ته له ورکولو څخه بغير مودَع د هغه وديعت حفاظت کولای سي، که نه؟ که چيري خپل ښځي ته له ورکولو څخه بغير د وديعت حفاظت ممکن نه وي او د هغې له حفاظت څخه د ده هيڅ چاره نه وي، نو

ښځي ته په ورکولو سره مودَع نه ضامن کیږي، او که چیري هغې ته له ورکولو ځخه بغیر هم حفاظت ممکن وي. نو په دې صورت کي مودَع ښځي ته د ودیعت په ورکولو سره ضامن کیږي. همدا حکم د هر هغه کس دی چي هغه له ورکولو ځخه بغیر حفاظت ممکن وي یا نه وي، یعني که حفاظت ممکن نه وي. نو مودَع نه ضامن کیږي، او که هغه ته له ورکولو ځخه بغیر هم د ودیعت حفاظت کېدای سي، نو مودع ضامن کیږي، مثلاً که مودِع (مالک) و مودَع ته یو آس امانتاً ورکړي او هغه ته ووایي چي "دا خپل غلام ته مه ورکوه!". نو معلومه خبره ده چي مودَع دآس په پالنه او خوراک ورکولو کي دې ته محتاج دئ چي آس غلام ته ورکړي، نو ځکه په دې صورت کي به شرط د مفید کېدلو باوجود لغو کیږي او هغه لره به هیڅ اعتبار نه وي.

وإن قال: احفظها في هذا البيت: او که مودِع (مالک) ومودَع ته ووایي چي "ته د خپل کور په دویمه خونه کي دا ودیعت محفوظ کړه!"، لېکن مودَع د خپل کور په ځلورمه خونه کي هغه محفوظ کړي او د دواړو خونو غولی (صحن) یو وي، نو مودَع نه ضامن کیږي؛ ځکه چي د حفاظت په حواله سره د یوه کور په دوو خونو کي فرق نه وي، نو ځکه مودَع به د مودِع (مالک) د حکم مخالفت کونکی نه شمارل کیږي، فلا یضمن. صاحب د کفایې رَحِمَهُ الله لیکلي دي چي دلته د ضمان نه لازمېدلو مسئله مبني بر استحسان ده. کنې قیاساً مودَع ضامن کیږي؛ ځکه چي د حفاظت په حواله سره په دوو خونو کي هم فرق وي، په دې توګه چي یوه خونه د یو چا د کور سره متصله وي او د هغې په هکله دا خطره نه وي چي غل به د هغې په دېوال کي سوری او نقب (نغم) جوړ کړي او مال به یووسي، لېکن بله خونه د لاري او ګلۍ سره متصله وي چي له هغې ځخه غل (نقب زن) په آسانه توګه د سوري او نقب جوړولو د لاري مال وړلای سي لهذا په هغه خونه کي د غلا خطره او امکان زیات وي، نو ځکه په پورتني صورت کي به هم مودَع د مودِع د حکم مخالفت کونکی وي، فیضمن. او که چیري واقعتاً او ظاهراً په دواړو خونو کي فرق وي او د حفاظت په حواله سره یوه خونه له بلي خوني ځخه زیاته محفوظه وي، نو په دې صورت کي ښکاره خبره ده چي د مودِع (مالک) د مخالفت کولو په وجه مودَع ضامن کیږي. همدارنګه مودِع (مالک) چي کوم کور ټاکلی وي، له هغه ځخه بغیر په بل کور کي د ودیعت په محفوظه کولو سره هم مودع ضامن کیږي، ځکه کله چي په دوو خونو کي هم فرق راځي، نو په دوو کورنو کي خو به د ځمکي او آسمان فرق وي.

## بل چا ته وديعت ورکول او د هغه په قبضه کي وديعت ضايع کېدل

قَالَ: وَمَنْ أَوْدَعَ رَجُلًا وَدِيْعَةً او که څوک بل چا ته وديعت [امانت] کښېږدي فَأَوْدَعَهَا آخَرَ او دا سړی [مودَع] هغه وديعت بل چا ته کښېږدي فَهَلَكَتْ بيا هغه وديعت هلاک سي فَلَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الْأَوَّلَ وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الْآخَرَ نو مودِع [مالک] ته دا اختيار سته چي له اول مودَع څخه ضمان [تاوان] واخلي او هغه ته دا اختيار نسته چي له دويم مودَع څخه ضمان واخلي [يعني په دې صورت کي مالک صرف له اول مودَع څخه د وديعت تاوان اخيستلای سي، نه له دويم مودَع څخه] وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا❁: لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ أَيُّهُمَا شَاءَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي ده ته دا اختيار سته چي په دوی دواړو کي له هر يوه څخه د ده خوښه وي ضمان واخلي فَإِنْ ضَمَّنَ الْآخَرَ نو که چيري مودِع له دويم مودَع څخه ضمان واخلي رَجَعَ عَلَى الْأَوَّلِ نو دويم مودَع به پر اول مودَع رجوع کوي [يعني هغه به له اول مودَع څخه تاوان (مال) اخلي] لَهُمَا: أَنَّهُ قَبَضَ الْمَالَ مِنْ يَدٍ ضَمِيْنٍ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي دويم مودَع د يو ضامن [ذمه وار] کس له قبضې څخه مال اخيستی دی فَيَضْمَنُهُ نو ځکه هغه به هم ضامن کيږي كَمُوْدَعِ الْغَاصِبِ لکه د مودَع غاصب وَهٰذَا لِأَنَّ الْمَالِكَ لَمْ يَرْضَ بِأَمَانَةِ غَيْرِهِ او دا [حکم] په دې وجه دی چي مالک له اول مودَع څخه بغير د بل چا په امانت راضي نه دی فَيَكُوْنُ الْأَوَّلُ مُتَعَدِّيًا بِالتَّسْلِيْمِ وَالثَّانِيْ بِالْقَبْضِ نو اول مودَع به د ورسپارلو او دويم مودَع به د قبضه کولو [اخيستلو] په وجه تعدی کونکی وي فَيُخَيَّرُ بَيْنَهُمَا نو ځکه مودِع [مالک] ته به د دوی په مينځ کي اختيار ورکول کيږي غَيْرَ أَنَّهُ إِنْ ضَمَّنَ الْأَوَّلَ خو که مالک له اول مودَع څخه ضمان واخلي لَمْ يَرْجِعْ عَلَى الثَّانِيْ نو اول مودَع به پر دويم مودَع رجوع نه کوي لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ فَظَهَرَ أَنَّهُ أَوْدَعَ مِلْكَ نَفْسِهِ ځکه چي په ضمان ورکولو سره اول مودَع د مال وديعت مالک سو او دا ښکاره سوه چي [ګواکي] هغه خپل ملکيت [دويم مودَع ته] ايښی دی وَإِنْ ضَمَّنَ الثَّانِيْ او که مودِع [مالک] له دويم مودَع څخه ضمان واخلي رَجَعَ عَلَى الْأَوَّلِ نو هغه به پر اول مودَع رجوع کوي لِأَنَّهُ عَامِلٌ لَهُ ځکه چي دويم مودَع د هغه لپاره

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الخانية (ج:۴، ص:۳۴۶)، وملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۳۷۵)، والدر المختار (ج:۴، ص:۵۵۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۲۰]

کار کونکی دیٔ فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ بِمَا لَحِقَهُ مِنَ الْعُهْدَةِ نو دویم مودَع به پر هغه رجوع کوي په هغه ذمه واری [تاوان] سره کوم چي ده ته رسېدلی دی وَلَهُ: أَنَّهُ قَبَضَ الْمَالَ مِنْ يَدِ أَمِينٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي دويم مودَع د امين [امانت ساتونکي] له قبضې څخه مال اخیستی دی لِأَنَّهُ بِالدَّفْعِ لَا يَضْمَنُ مَا لَمْ يُفَارِقْهُ ځکه اول مودَع محض په ورکولو سره نه ضامن کیږي تر څو چي [تر ورکولو وروسته] له هغه څخه جلا نه سي لِحُضُورِ رَأْيِهِ ځکه چي [تر مفارقت مخکي] د اول مودَع رايه په دې کي شامله وي فَلَا تَعَدِّيَ مِنْهُمَا لهذا د دوی دواړو له طرفه هیڅ تعدی [نا حقه تصرّف] موجود نه سو فَإِذَا فَارَقَهُ فَقَدْ تَرَكَ الْحِفْظَ الْمُلْتَزَمَ لیکن کله چي اول مودَع له هغه څخه جلا سي نو اول مودَع پر خپل ځان لازم کړی سوی حفاظت پرېښوو‌ی فَيَضْمَنُهُ بِذَٰلِكَ نو ځکه د دې په پرېښوولو سره به هغه ضامن کیږي وَأَمَّا الثَّانِي فَمُسْتَمِرٌّ عَلَى الْحَالَةِ الْأُولَىٰ او پاته سو دويم مودَع نو هغه برابر پر اول حالت باقي دی وَلَمْ يُوجَدْ مِنْهُ صُنْعٌ او د هغه له طرفه هیڅ عمل [او نا حقه تصرّف] نه دی موجود سوی فَلَا يَضْمَنُهُ نو ځکه هغه به نه ضامن کیږي كَالرِّيحِ إِذَا أَلْقَتْ فِي حِجْرِهِ ثَوْبَ غَيْرِهِ لکه کله چي باد د يو سړي په غېږه کي د بل چا کپړه واچوي [نو هغه سړی نه ضامن کیږي].

**اللغات**: ﴿اودع﴾ د افعال ماضي: امانتاً ایښوول، ﴿يُضَمِّن﴾ د تفعيل مضارع ده: ضامن ګرځول، ضمان (تاوان) څني اخيستل، ﴿يُخَيَّر﴾ د مخکني باب مضارع مجهوله ده: اختيار ورکول، ﴿متعدی﴾ د تفعّل د باب اسم فاعل دی، چي د هغه یوه معنیٰ ده: تعدی او تجاوز کونکی، نا حقه تصرف کونکی، ﴿لَحِقه﴾ د سمع ماضي ده: لاحق کېدل، متصل کېدل، ور سره يو ځای کېدل(رسېدل)، ﴿الْمُلْتَزَم﴾ د افتعال اسم مفعول دی: پر ځان لازم کړی سوی، اِلْتَزَمَ يَلْتَزِمُ اِلْتِزَامًا: پر ځان لازمول، ﴿مستمر﴾ د استفعال اسم فاعل دی: برابر جاري، مسلسل، ﴿صنع﴾ عمل، ﴿ألقت﴾ د افعال ماضي ده: غورځول، اچول، ﴿الريح﴾ باد، هوا.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که ادريس د وديعت په توګه د کپړې يو تان و خالد ته کښېښودي او خالد هغه تان و حامد ته کښېښودي، بيا د حامد په قبضه کي هغه تان هلاک او ضايع سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ

الله په نېز مودِع (ادريس) صرف له اول مودَع يعني له خالد څخه ضمان اخيستلای سي او له دويم مودَع يعني له حامد څخه ضمان نه سي اخيستلای، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز مودِع (ادريس) ته اختيار دی که وغواړي نو له خالد څخه دي ضمان واخلي او که وغواړي نو له حامد څخه دي يې واخلي. ليکن کله چي مودِع له اول مودَع (خالد) څخه ضمان واخلي، نو دا مودَع به له دويم مودَع (حامد) څخه هيڅ شه واپس نه اخلي، او که چيري مودِع له دويم مودَع څخه ضمان واخلي، نو دويم مودَع به د ضمان مال (پيسې) له اول مودَع څخه اخلي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د مودِع (ادريس) له رضا څخه بغير دويم مودَع ته په وديعت ورکولو سره اول مودَع په خپله د دې وديعت ضامن (ضمين) سوی دی، لهذا دويم مودَع دا وديعت له ضامن کس (ضمين) څخه اخيستی دی، نو ځکه اول مودَع به د ورکولو په وجه ضامن وي او دويم يو به د اخيستلو په وجه ضامن وي؛ ځکه چي د دواړو له طرفه تعدي موجوده سوه، نو ځکه مالک ته به له دواړو څخه د ضمان اخيستلو اختيار وي. ها! که چيري مالکُ له اول مودَع څخه ضمان واخلي، نو اول مودَع په دې وجه له دويم مودَع څخه هيڅ شه نه سي اخيستلای، ځکه چي د ضمان ورکولو په وجه اول مودَع د وديعت مالک سو، او دويم مودَع د ده په حق کي امين او عامل دی او پر امين ضمان نه لازميږي، همدا وجه ده که مالک له دې دويم مودَع څخه ضمن واخلي، نو دويم مودَع به له اول مودَع څخه د ضمان مال واپس اخلي؛ ځکه چي هغه امين دی او پر امين ضمان نه لازميږي، ها! د مودِع (مالک) سره د آساني او نرمي کولو لپاره هغه په عارضي توګه ضامن ګرځول سوی دی.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي دلته دويم مودَع له ضامن (ضمين) څخه وديعت نه دی اخيستی بلکي له امين څخه يې اخيستی دی؛ ځکه چي اول مودَع محض دويم مودَع ته په ورکولو سره نه ضامن کيږي، بلکي کله چي تر ورکولو وروسته له هغه ځای څخه جلا سي، نو ضامن کيږي او پر دويم مودَع اصلي ضمان هيڅکله نه لازميږي؛ ځکه چي د هغه له طرفه هيڅ تعدي او نا حقه تصرف نه دی موجود سوی. لکه کله چي د تېز باد په وجه د يو سړي څادر (پټو) مثلاً د خالد په غېږه يا د هغه په کور کي ولوېږي، نو محض د څادر په راتللو سره خالد نه ضامن کيږي؛ ځکه چي د هغه له طرفه هيڅ تعدي او نا حقه تصرف نه دی سوی، همداسي دلته هم د دويم مودَع له طرفه هيڅ تعدي او نا حقه تصرف نه دی سوی، فلا يضمن.

## د يوه وديعت په باره کي د دوو کسانو دعویٰ کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ كَانَ فِي يَدِهِ أَلْفٌ فرمايي: او د چا په قبضه کي چي زر درهمه وي فَادَّعَاهُ رَجُلَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنَّهَا لَهُ أَوْدَعَهَا إِيَّاهُ بيا په هغه زر درهمو دوه خلک دعویٰ وکړي چي له هغوی څخه هر يو [دا دعویٰ کوي چي] هغه زر درهمه زما دي او هغه ما ته قابض وديعتاً ايښي دي وَأَبَى أَنْ يَحْلِفَ لَهُمَا او قابض د دوی دواړو لپاره له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي [يعني کله چي له قابض څخه د قسم اخيستلو غوښتنه وسي. چي ته داسي دا قسم واخله! چي زر درهمه د دوی نه دي، نو قابض له قسم څخه انکار وکړي. او تاسو ته معلومه ده چي د دواړو لپاره له قسم اخيستلو څخه د انکار کولو مطلب دا دی چي قابض د دواړو لپاره د زر درهمو اقرار کوي] فَالْأَلْفُ بَيْنَهُمَا وَعَلَيْهِ أَلْفٌ أُخْرَى بَيْنَهُمَا نو هغه زر درهمه د دواړو مدعيانو په مينځ کي مشترک دي او پر قابض زر درهمه نور واجب دي چي هغه به هم د دوی په مينځ کي مشترک وي وَشَرْحُ ذَلِكَ أَنَّ دَعْوَى كُلِّ وَاحِدٍ صَحِيحَةٌ او د دې تشريح دا ده چي [دلته] د هر يوه مدعي دعویٰ صحيح ده لِاحْتِمَالِهَا الصِّدْقَ ځکه چي د دوی د رښتيا والي احتمال سته فَيَسْتَحِقُّ الْحَلِفَ عَلَى الْمُنْكِرِ بِالْحَدِيثِ لهذا د حديث له رويه به هر مدعي پر منکر [قابض] د قسم اخيستلو مستحق وي وَيُحَلَّفُ لِكُلِّ وَاحِدٍ عَلَى الِانْفِرَادِ او له هغه [قابض] څخه به د هر يوه لپاره جلا قسم اخيستل کيږي [يعني قاضي به په قابض د هر مدعي لپاره جلا قسم اخلي] لِتَغَايُرِ الْحَقَّيْنِ ځکه چي د دواړو حقونه سره جلا دي وَبِأَيِّهِمَا بَدَأَ الْقَاضِي جَازَ او په هر يوه چي قاضي شروع وکړي، جائز دي لِتَعَذُّرِ الْجَمْعِ بَيْنَهُمَا وَعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ ځکه [په يوه وخت کي] د دواړو تر مينځ جمع کول نا ممکن دي او ځکه چي اولیٰ والي نسته [يعني يو تر بل اولیٰ او مقدم نه دی] وَلَوْ تَشَاحَّا او که چيري دوی دواړه [د مخکي قسم اخيستلو لپاره] تنازع [او اختلاف] وکړي [يعني هر يو ووايي چي اول دي زما لپاره له قابض څخه قسم واخيستل سي] أَقْرَعَ بَيْنَهُمَا نو قاضي دي د دوی په مينځ کي قرعه اندازه وکړي تَطْيِيبًا لِقَلْبِهِمَا وَنَفْيًا لِتُهْمَةِ الْمَيْلِ د دې لپاره چي د دواړو زړونه خوشاله سي او [له قاضي څخه] د طرفدارۍ کولو تهمت ليري سي ثُمَّ إِنْ حَلَفَ لِأَحَدِهِمَا بيا چي کله د يوه لپاره له قابض څخه قسم واخيستل سي يُحَلَّفُ لِلثَّانِي نو د دويم مدعي لپاره به هم قسم ځني اخيستل کيږي فَإِنْ حَلَفَ او که چيري قابض قسم واخلي

[چي هو! په الله قسم! دا زر درهمه د دوی نه دي، يا مثلاً په الله! قسم! دوی په خپله دعویٰ کي درواغجن دي] فَلَا شَيْءَ لَهُمَا نو د دوی لپاره هيڅ شی نسته [يعني په دې صورت کي د دواړو مدعيانو حق ختميږي] لِعَدَمِ الْحُجَّةِ ځکه چي دليل موجود نه سو وَإِنْ نَكَلَ أُعْطِيَ لِلثَّانِي او که چيري قابض له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي يعني د دويم مدعي لپاره يُقْضَى لَهُ نو د دويم مدعي لپاره به [د زرو درهمو] فيصله کيږي لِوُجُودِ الْحُجَّةِ ځکه چي دليل موجود سو وَإِنْ نَكَلَ لِلْأَوَّلِ او که قابض د اول مدعي لپاره له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي يُحَلَّفُ لِلثَّانِي نو د دويم مدعي لپاره به قسم ځني اخيستل کيږي وَلَا يُقْضَى بِالنُّكُولِ او د انکار په وجه به د اول مدعي لپاره [سمدستي] فيصله نه کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَقَرَّ لِأَحَدِهِمَا په خلاف د هغه صورت کله چي قابض [صرف] د يوه لپاره اقرار وکړي لِأَنَّ الْإِقْرَارَ حُجَّةٌ مُوجِبَةٌ بِنَفْسِهِ ځکه چي اقرار داسي دليل دی کوم چي بذات خود [د حکم] واجبونکی دی فَيُقْضَى بِهِ نو ځکه د اقرار په وجه به [سمدستي د مُقَرلهٗ مدعي لپاره] فيصله کيږي أَمَّا النُّكُولُ إِنَّمَا يَصِيرُ حُجَّةً عِنْدَ الْقَضَاءِ او کوم چي له قسم څخه انکار کول دي نو هغه [صرف] د قاضي د فيصلې په وخت کي حجت ګرځي فَجَازَ أَنْ يُؤَخِّرَهُ لِيُحَلِّفَ لِلثَّانِي فَيَنْكَشِفَ وَجْهُ الْقَضَاءِ نو ځکه دا جائز دي چي هغه وځنډول سي، د دې لپاره چي له قابض څخه د دويم مدعي لپاره قسم واخيستل سي او د فيصلې جهت [او نوعيت] واضح سي وَلَوْ نَكَلَ لِلثَّانِي أَيْضًا او که چيري قابض د دويم مدعي لپاره هم له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي يُقْضَى بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ نو د دواړو لپاره به د نصف، نصف فيصله کيږي عَلَى مَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ لکه څرنګه چي په متن کي ذکر سوي دي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْحُجَّةِ ځکه چي اوس دوی په دليل کي سره برابر دي كَمَا إِذَا أَقَامَا الْبَيِّنَةَ لکه [په هغه صورت کي چي د دواړو لپاره د نصف، نصف فيصله کيږي] کله چي دواړه بيّنه پېش کړي وَيَغْرَمُ أَلْفًا أُخْرَى بَيْنَهُمَا او قابض به د نورو زر درهمو [هم] ضامن کيږي لِأَنَّهُ أَوْجَبَ الْحَقَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِبَذْلِهِ أَوْ بِإِقْرَارِهِ ځکه چي قابض په خپل فعل [انکار] يا په خپل اقرار سره په دوی کي د هر يوه لپاره حق واجب کړی دی وَذٰلِكَ حُجَّةٌ فِي حَقِّهِ او دا [اقرار يا بذل] د دې قابض په حق کي حجت دی وَبِالصَّرْفِ إِلَيْهِمَا صَارَ قَاضِيًا

نِصْفَ حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ بِنِصْفِ حَقِّ الْآخَرِ او د دواړو لپاره د زر درهمو په ګرځولو سره قابض د يوه د نصف حق په ذريعه د بل يوه د نصف حق اداء کونکی وګرځېدی [يعني کله چې قابض هغه مقبوضه زر درهمه د دواړو مدعيانو په مينځ کې تقسيم کړل، نو قابض له هغوی څخه د هر يوه د نصف حق په ذريعه د بل يوه د نصف حق اداء کونکی سو] فَيَغْرَمُهُ نو ځکه به هغه د نصف حق [يعني د نورو زر درهمو] ضامن کيږي فَلَوْ قَضَى الْقَاضِيُ لِلْأَوَّلِ حِينَ نَكَلَ او که چيري په هغه وخت کې کله چې قابض [د اول مدعي لپاره] له قسم څخه انکار وکړي، قاضي [سمدستي] د اول مدعي لپاره فيصله وکړي ذَكَرَ الْإِمَامُ الْبَزْدَوِيُّ فِي شَرْحِ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ أَنَّهُ يُحَلِّفُ لِلثَّانِي نو [په دې باره کې] امام بزدوي رَحِمَهُ الله د جامع صغير په شرح کې ذکر کړي دي چې د دويم مدعي لپاره به هم له قابض څخه قسم څخه اخيستل کيږي وَإِذَا نَكَلَ او که چيري هغه [د دويم مدعي لپاره] له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي يَقْضِيُ بَيْنَهُمَا نو قاضي به د دواړو مدعيانو په مينځ کې [د زر درهمو] فيصله کوي لِأَنَّ الْقَضَاءَ لِلْأَوَّلِ لَا يُبْطِلُ حَقَّ الثَّانِي ځکه چې د اول مدعي په حق کې فيصله کول د دويم مدعي حق نه باطلوي لِأَنَّهُ يُقَدِّمُهُ إِمَّا بِنَفْسِهِ أَوْ بِالْقُرْعَةِ ځکه قاضي اول مدعي [له دويم مدعي څخه] په خپل اختيار يا په قرعه اندازۍ سره مخکې کوي وَكُلُّ ذٰلِكَ لَا يُبْطِلُ حَقَّ الثَّانِي او له دې څخه يو شی هم د دويم مدعي حق نه باطلوي وَ ذَكَرَ الْخَصَّافُ أَنَّهُ يَنْفُذُ قَضَاؤُهُ لِلْأَوَّلِ او امام خصاف رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چې د اول مدعي په حق کې به د قاضي فيصله نافذيږي وَوَضَعَ الْمَسْأَلَةَ فِي الْعَبْدِ او امام خصاف رَحِمَهُ الله [د اُلف پرځای] په عَبْد [غلام] کې مسئله وضع کړې ده [يعني هغه د زر درهمو پر ځای غلام ذکر کړی دی] وَإِنَّمَا نَفَذَ لِمُصَادَفَتِهِ مَحَلَّ الِاجْتِهَادِ او [د اول مدعي په حق کې به] په دې وجه د قاضي فيصله نافذيږي ځکه چې هغه د اجتهاد سره متصل ده لِأَنَّ مِنَ الْعُلَمَاءِ مَنْ قَالَ: يَقْضِيُ لِلْأَوَّلِ وَلَا يَنْتَظِرُ ځکه بعضي علماؤ ويلي دي: چې قاضي به د اول مدعي په حق کې فيصله کوي او د دويم مدعي لپاره به انتظار نه کوي لِكَوْنِهِ إِقْرَارًا دَلَالَةً ځکه چې له قسم اخيستلو څخه انکار کول دلالتاً اقرار دی ثُمَّ لَا يُحَلِّفُ لِلثَّانِي: مَا هٰذَا الْعَبْدُ لِيْ بيا قاضي به د دويم مدعي لپاره له قابض څخه داسي قسم نه اخلي چې: دا غلام زما نه دی لِأَنَّ نُكُوْلَهُ لَا يُفِيْدُ بَعْدَمَا صَارَ لِلْأَوَّلِ ځکه کله چې هغه غلام د اول مدعي ګرځېدلی دی نو اوس [د دويم مدعي لپاره] له

قسم اخيستلو څخه د قابض انکار کول فايده نه کوي وَهَلْ يُحَلِّفُهُ: بِاللهِ مَا لِهٰذَا عَلَيْكَ هٰذَا الْعَبْدُ وَلَا قِيمَتُهُ وَهُوَ كَذَا وَكَذَا وَلَا أَقَلَّ مِنْهُ او آيا قاضي به له قابض څخه داسي قسم اخلي چي: په الله قسم! د دغه دويم مدعي لپاره نه پر تا دا غلام پاته دی او نه يې د هغه دومره او دومره قيمت او نه يې تر هغه کم قيمت پر تا پاته دی. قَالَ: يَنْبَغِي أَنْ يُحَلِّفَهُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ نو امام خصاف رَحِمَهُ الله [په دې باره کې] ويلي دي: چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز له قابض څخه دا قسم اخيستل پکار دي خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله بِنَاءً عَلَى أَنَّ الْمُودَعَ إِذَا أَقَرَّ الْوَدِيعَةَ وَدَفَعَ بِالْقَضَاءِ إِلَى غَيْرِهِ او دا اختلاف پر دې مبني دی چي که مودَع د يو چا لپاره د وديعت اقرار وکړي حال دا چي هغه د قاضي په فيصله سره بل چا ته وديعت ورکړی وي يَضْمَنُهُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دا مودَع [د مُقَر لهٔ لپاره] ضامن کېږي خِلَافًا لَهُ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله وَهٰذِهِ فُرَيْعَةُ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ او دا مسئله [يعني د "تحليف القاضي للمودَع الثاني بعد قضائه للأول" مسئله] د دغه اختلافي مسئلې فرع ده وَقَدْ وَقَعَ فِيهِ بَعْضُ الْإِطْنَابِ او په دغه اختلافي مسئله کي [په مبسوط کي] څه طوالت [او تفصيل] هم واقع سوی دی.

**اللغات**: ﴿يَحْلِفُ﴾ د ضرب له بابه د مضارع صيغه ده: په خپله قسم اخيستل (قسم کول)، ﴿يُحَلِّفُ﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: په بل چا قسم اخيستل، له بل چا څخه قسم اخيستل، ﴿يستحق﴾ د استفعال مضارع ده: مستحق کېدل، حقداره کېدل. ﴿التغاير﴾ د تفاعل مصدر دی: اختلاف، توپير، يو له بل څخه جلا کېدل. ﴿تَشَاحَّا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده. له شُحّ څخه مشتق دی کوم چي بخل او حرص ته وايي. لکه څرنګه چي په عربي کي ويل کيږي: "تَشَاحَّ الرَّجُلَانِ عَلَى هٰذَا الْأَمْرِ" دوو خلکو پر دغه شي حرص وکړی يعني هر يوه دا غوښتل چي زما څخه فوت نه سي، "أَيْ حَرَصَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى أَنْ لَا يَفُوْتَهُ هٰذَا الْأَمْرُ"، دلته څني مراد تنازع ده يعني جنګ او جنجال کول دي. لکه څرنګه چي په حاشيه کي ذکر سوي دي، ﴿أقرع﴾ د افعال ماضي ده: قرعه اندازي کول، ﴿تطييب﴾ د تفعيل مصدر دی: ښه کول، خوشاله

کول، دلجويي (دل اسايي) کول، ﴿الميل﴾ د ضرب مصدر دی: ميلان کول، طرفداري کول، ﴿يغرم﴾ د سمع مضارع ده: تاواني کېدل، ضامن کېدل، يعني تاوان (ضمان) پر لازمېدل، ﴿نَكَلَ﴾ د فتح ماضي ده (او په يوه لغت کي د سمع له بابه هم راځي): له قسم څخه انکار کول، ﴿نفذ﴾ د نصر ماضي ده: نافذېدل، جاري کېدل، پوره کېدل، ﴿مصادفة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو شی د بل شي سره مخامخ کېدل، متصل کېدل، واقع کېدل، ﴿فريعة﴾ د فرع تصغير دی: فرع، ښاخ، ﴿الإطناب﴾ د افعال د باب اسمِ مصدر دی: طوالت (اوږدوالی)، مبالغه.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که (مثلا) د خالد سره زر درهمه موجود وي، بيا دوه خلک مثلاً ادريس او نعمان په هغه دعوىٰ وکړي او هر يو ووايي چي "دا زر درهمه زما دي او دا ما وخالد ته وديعتاً (امانتا) ورکړي دي"، حال دا چي خالد د دوی دواړو له دعوې څخه منکر وي، نو په دې حديث "البَيِّنَةُ عَلَى المُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلىٰ مَنْ أَنْكَرَ" (بيّنه پېشول پر مدعي دي او قسم اخيستل پر منکر دي) په عمل کولو سره که دغه مدعيان بيّنه پېش نه کړی سي نو ښکاره خبره ده چي پر منکر قسم اخيستل لازم دي چي هغه دلته قابض (خالد) دی (چي د هغه په قبضه کي زر درهمه دي)، او څرنګه چي دلته دوه خلک مدعيان دي او د دواړو دعوىٰ يو له بل څخه جلا ده، نو ځکه قابض (منکر) به د دواړو لپاره جلا قسم اخلي (او قسم به مثلاً په داسي الفاظو سره اخلي چي "په الله قسم! دا زر درهمه د دغه مدعي نه دي او ده ما ته وديعتاً نه دي ايښي)، نو که چيري هغه د دواړو لپاره له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي (يعني داسي ووايي چي زه دا قسم نه اخلم چي دا زر درهمه د دوی نه دي)، نو د هر يوه په حق کي به د پنځه سوه درهمو فيصله کېږي (يعني هر مدعي ته به پنځه سوه ورکول کېږي) او پر قابض د دوی لپاره پنځه، پنځه سوه درهمه نور واجبېږي (يعني د هر يوه لپاره پر قابض پنځه سوه درهمه قرض پاتېږي چي هغه به وروسته قابض ورکوي)، او که چيري قابض د يوه مدعي لپاره قسم واخلي (يعني داسي ووايي چي په الله قسم! دا زر درهمه د هغه نه دي او هغه ما ته دا وديعتاً نه دي راکړي) او د دويم مدعي په حق کي له قسم څخه انکار وکړي (مثلا داسي ووايي چي زه پر دې قسم نه اخلم چي دا زر درهمه د هغه نه دي)، نو د دې دويم مدعي دعوىٰ ثابتېږي او د هغه لپاره به د ټوله زر درهمو فيصله کېږي.

ها! که چيري قابض د اول مدعي لپاره انکار وکړي، نو محض د دې اول په حق کي په انکار کولو سره به د هغه لپاره فيصله نه کيږي، بلکي د دويم مدعي په حق کي به د منکر د قسم انتظار کيږي، نو که چيري هغه د دويم مدعي لپاره هم له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، نو د دواړو لپاره به د نصف، نصف يعني د پنځه، پنځه سوه نغدو درهمو او د پنځه، پنځه سوه قرض فيصله کيږي. او که چيري قابض د دويم مدعي لپاره قسم واخلي (چي دا زر درهمه د هغه نه دي)، نو د اول مدعي په حق کي به د ټوله زر درهمو فيصله کيږي.

باقي عبارت واضح دی کوم چي له ترجمې څخه هم معلوميږي.

وذکر الخصاف إلخ: د دې حاصل دا دی چي امام خصاف رَحِمَهُ الله دغه پورتنۍ مسئله د غلام په هکله وضع کړې ده او داسي يې ويلي دي چي: که يو غلام د يو چا په قبضه کي وي او بيا دوه خلک په هغه دعویٰ وکړي او هريو ووايي چي "دا زما غلام دی او دا ما قابض ته وديعتاً ورکړی دی"، ليکن دوی دواړه بيّنه پېش نه کړی سي او کله چي له قابض (منکر) څخه د قسم اخيستلو نوبت راسي. نو هغه د اول مدعي لپاره له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، نو قاضي به د همدې اول مدعي لپاره د ټوله غلام فيصله کوي او د دويم مدعي لپاره به له قابض څخه د قسم اخيستلو انتظار نه کوي؛ ځکه چي نکول يعني له قسم څخه انکار کول دلالتاً اقرار کول دي. او د اقرار په صورت کي سمدستي فيصله کيږي او د بل مدعي لپاره له قابض څخه د قسم اخيستلو ته انتظار نه کيږي، نو ځکه په دې مسئله کي به سمدستي (بېله ځنډه) د اول مدعي په حق کي فيصله کيږي. او تر دې وروسته به د دويم مدعي لپاره له قابض څخه داسي قسم نه اخيستل کيږي چي "دا غلام د هغه نه دی"؛ ځکه اوس که څه هم قابض انکار وکړي، نو هغه فايده نه کوي؛ ځکه دا غلام خو مخکي لا د اول مدعي ګرځېدلی دی، لهذا اوس هغه دويم مدعي ته نه سي حاصلېدای. له همدې کبله د امام خصاف رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي په داسي معامله کي د فيصله کولو ښه طريقه دا ده چي قاضي د دويم مدعي لپاره له قابض څخه داسي قسم واخلي چي " پر ما نه د دويم مدعي لپاره دا غلام پاته دی او نه يې پر ما د هغه قيمت يا د هغه په هکله يو بل حق پاته او واجب دی". د دې لپاره چي قابض په هره توګه له ضمان څخه بري سي او پر هغه قيمت هم واجب نه سي، ليکن دا حکم د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز دی. د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي له منکر څخه به داسي قسم (مذکوره قسم) نه اخيستل کيږي.